# أنوار الهلالين

## لفوايد قيودات الجلالين

پښتو ترجمه — جلد اول

# جمالين شرح جلالين


شارح: محمد جمال بلندشهری

مدرس د دارالعلوم دیوبند

پښتو مترجم: مولانا شاه فیصل

فاضل دارالعلوم اسلامیه چارسده، امداد العلوم پیښور، وفاق المدارس


### خصوصیات

① لغوی تحقیق، چې ددې لفظ په لغت کښې څه معنی ده.

② صرفي تحقیق مثلاً دا کلمه د څه صیغه ده وغیره

③ نحوی تحقیق مثلاً دا کلمه په ترکیب کښې څه واقع شوې ده.

④ بلاغي تحقیق چې په دې اضافي قید کښې کومه بلاغي نکته ده.

⑤ فقهي تحقیق چې په دې اضافي قید سره کومې مسئلې ته اشاره ده.

⑥ د قراءت تحقیق چې په دې مقام کښې دا قراءت څنګه دي.

⑦ تقدیرات راویستل چې دلته کوم لفظ مقدر پروت دې.

⑧ د تقدیري عباراتو وجه او سبب بیانول.


خورونکی

فیصل کتب خانه مدینه مارکیټ

محله جنګی پیښور موبائل نمبر: ۰۳۱۵۹۵۹۵۷۱۷

# فهرس د سورتونو او آیاتونو

## پاره نمبر ۱۵ [سبحٰن الذی]

## [۱۸] سورة الكهف

سُورَة الْكَهْف مَكِّيَّة إِلَّا (وَاصْبِرْ نَفْسَك) الْآيَة وَهِيَ مِائَة وَعَشْر آيَات أَوْ خَمْس عَشْرَة آيَة نَزَلَتْ بَعْد سُورَة الْغَاشِيَة

سوره کهف مکی سورت دی سوا د "واصبر نفسك" آیت نه، په دې کښې (۱۱۰) یا (۱۱۵) آیاتونه دی. د سورة الغاشیه نه پس نازل شوې دې.

### [ایاتونه: ۱]

(الْحَمْد) وَهُوَ الْوَصْف بِالْجَمِيلِ ثَابِت (لِلَّهِ) تَعَالَى وَهَلْ الْمُرَاد الْإِعْلَام بِذَلِكَ لِلْإِيمَانِ بِهِ أَوْ الثَّنَاء بِهِ أَوْ هُمَا احْتِمَالَات أَفْيَدهَا الثَّالِث (الَّذِي أَنْزَلَ عَلَى عَبْده) مُحَمَّد (الْكِتَاب) الْقُرْآن (وَلَمْ يَجْعَل لَهُ) أَيْ فِيهِ (عِوَجًا) اخْتِلَافًا أَوْ تَنَاقُضًا وَالْجُمْلَة حَال مِنْ الْكِتَاب

ترجمه: زه شروع کوم په نوم دالله تعالی دیر مهربان او نهایت رحم والا دې حمد ، دصفات کمالیه بیان کولوته وائي، هرقسمه حمد دالله تعالی دپاره ثابت دې، آیا دجملې خبرئ په استعمال سره دثبوت حمد باندې دایمان خبر ورکول مقصود دی که (انشاء) دثنا مقصود دی یا دواړه مقصود دی داتول درې صورتونه شول، خو په کښې دریم احتمال دیر مفید دې چاچې په خپل بنده محمد ﷺ باندې کتاب قرآن نازل کرو اوپه دې کښې هیڅ قسمه کوګوالې یعنی لفظی اختلاف او معنوی تناقص نه دې ایخودې، او جمله لم یجعل له د کتاب نه حال دې.

### د قیوداتو فوائد اوتسهیل

عوج بالکسر فساد فی المعانی او بالفتح فساد فی الاجسام یعنی عوج داسې کوګوالی ته وائي کوم چې په جوارح محسوس کیږی، او عوج په کسرې سره داسې کوګوالی ته وائي کوم چې په عقل سره محسوس کیږی، خو دا قاعده اکثریه ده کلیه نه ده ـ

قوله: وهل المراد الاعلام بذلك د دې سوالیۀ جملې نه دشارح دعلام دامقصد ښودل دی چې دجملې خبریۀ په ذریعې سره چې دحمد دثبوت چې کوم خبر ورکړې شوې دې ددې درې مراده کېدې شي [۴۰] (۱) یا خو ددې خبرې خبر ورکول دی چې دالله تعالی اوصاف کمالیه ازلی او ابدی دی، په دې صورت کښې به جمله لفظا او معنا خبریه وی، اود خبر ورکولودپاره به ثابت محذوف راوښکوسره جمله اسمیه اختیارکولونه مقصد دې خبرې طرف ته اشاره ده چې بنده ګانولره ضروری دی چې دالله تعالی دپاره دکمالاتو ازلی او ابدی کېدلو اعتقاد اوساتی، (۲) یا خو مقصد انشاء حمد دې دې لره مفسر اعلام اولثناء به سره تعبیر کړې دې، په دې صورت کښې به جمله لفظا خبریه او معنا انشائیه وی، ګویا چې الله تعالی اوفرمائیل أَحمدُ وأُثني حمدًا لِنفسِي لِعجزِ خَلقِي عن كُنهِ حَمدِي (۳۳۳۳) یا خو دواړه مقصود دی دې طرف ته په خپل قول اوهما سره اشاره کړې ده، یعنی اخبار حمد او انشاء

حمد دواړه به مقصودوی، په دې صورت کښې به دجملې استعمال خبر او انشاء دواړو کښې وی، او دابه دحقیقت اومجازدواړو داجتعماع په طورباندې وی، او مقصد به دثبوت حمدباندې د ایمان خبرورکول او انشاء دحمد وی ـ

**قوله:** افيدها الثالث شارح ﷫ فرمائي چې په مذکوره درې صورتونو کښې دريم صورت ډير مفيداو بهتردې، دې وجې نه چې په دې صورت کښې انشاء اواخبار دواړه مقصود بذات کيږی، پخلاف دروميني دواوصورتونوچې په هغې کښې يومقصودبذات اودويم مقصود بالتبع کيږی، که چرې ته اعتراض اوکړې چې انشاءثناءاخبارباالثناءلره مستلزم دې په دې طورچې انشاء حمدکولوو الا هم حمدکولووالا وی، نوددې جواب به داوی چې په مقصودبذات اوپه مقصود بالتبع کښې فرق وی، مثلا که چرته جمله لره فقط خبريه اوګرزولې شی نوپه دې صورت کښې به اخبار بالحمدقصدا وی خوانشاء ثنابه تبعاوی او که چرته جملې لره فقط انشائيه اوګرزولې شی نوپه دې صورت کښې به انشاء حمدقصداوی خو اخبار بالحمد به ضمنا او تبعا وی،اوکه چرته دواړه يعنی جمله خبريه او انشائيه اوګرزولې شی نواخبار اوانشاء دواړه به قصدا وی ـ

**قوله:** الذی انزل (الايه) دثبوت حمددپاره دعلت قائم مقام دې ځکه چې موصول او صله کله صفت واقع شی او صله مشتق وی نوداسې صفت دموصوف دپاره دثبوتِ حکم علت وی، ددې قاعدې مطابق به الذی انزل د الحمد ثابت لله دپاره علت وی، يعنی د الله تعالی دپاره حمددې ځکه چې هغه قرآن نازل کړې دې ـ

**قوله:** الحمد نه پس دهوالوصف بالجميل داضافه کولومقصددحمدمعنی بيانول دی او ثابت مقدر منلو سره دابنودل دی چې الحمدمبتدأ ده اولله دثابت مقدرمتعلق کيدوسره د مبتدأ خبر دې ـ

**سوال:** دثبت په ځې ثابت داسم فاعل صيغه محذوف منلوکښې څه فائده ده ؟

**جواب:** ثابت اسم فاعل په استمراراو دوام باندې دلالت کوی په دې سره ئ اشاره اوکړه چې دباری تعالی دپاره ثبوت حمد دائمی او ازلی دې، په خلاف دثبت چې داپه تجدد او حدوث باندې دلالت کوی ـ

**قوله:** تناقضا دحذفِ مضاف سره داختلافا صفت دې تقديری دادې اختلافا ذاتناقض، د له تفسير په فيه سره کولوکښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې لام په معنی دفيه دې ـ

.......

[ايا تو له: ۲ - ۵]

(قَيِّمًا) مُسْتَقِيمًا حَال ثَانِيَة مُؤَكِّدَة (لِيُنْذِرَ) يُخَوِّف بِالْكِتَابِ الْكَافِرِينَ (بَأْسًا) عَذَابًا (شَدِيدًا مِنْ لَدُنْهُ) من قبل الله (ويبشر المؤمنين الذين يعملون الصالحات أن لهم أجرا حسنا) (مَاكِثِينَ فِيهِ أَبَدًا) هُوَ الْجَنَّة (وينذر) من جملة الكافرين (الذين قالوا اتخذ الله ولدا) (مَا لَهُمْ بِهِ) بِهَذَا الْقَوْل (مِنْ عِلْمٍ وَلَا لِآبَائِهِمْ) مِنْ قَبْلِهِمْ الْقَائِلِينَ لَهُ (كَبُرَتْ) عَظُمَتْ (كَلِمَةً تَخْرُجُ مِنْ أَفْوَاهِهِمْ) كَلِمَة تَمْيِيز مُفَسِّر لِلضَّمِيرِ الْمُبْهَم وَالْمَخْصُوص بِالذَّمِّ مَحْذُوف أَيْ مَقَالَتهمْ الْمَذْكُورَة (إِنْ) ما (يقولون) في ذلك (إلا) مقولا (كذبا)

ترجمه: اوحال دادې چې هغه بالکل نیغ مستقیم دې قیما د کتاب نه حال ثانیه دې او د جملې حالیه تاکید دې، دې د پاره چې ویروی (الله) د کتاب په ذریعه کافرانولره دخپل سخت عذاب نه، کوم چې دهغه دطرف نه دې اودې دپاره چې هغه مؤمنانوته خوشخبری ورکړی کوم چې نیک عمل کوی داچې هغوی دپاره اجرحسن دې اوحال داچې هغوی به په دې اجرحسن کښې چې هغه جنت دې همېشه وی، او منجمله دکافرانونه هغه کافرانولره ویروی کوم چې وائی چې الله لره اولادشته دې ددې وینه نه دوی سره څه سندشته اونه ددوی پلارانوسره کوم چې ددوی نه مخکښې تیرشوی دی اوهغوی هم ددې خبرې قائل وو داخبره چې ددوی دخلې نه اوځې دیره درنه ده، کلمة تمیز دې کوم چې دکبرت د هی ضمیرمبهم تفسیرکوی اومخصوص بالذم محذوف دې اوهغه ددوی مذکوره قول (اتخذالله ولدا) دې اوهغوی په دې باره کښې ددروغونه علاوه نورهیڅ هم نه وائی۔

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** قیماصیغه دصفت ده، ددې دوه معنې دی ①درست، مستقیم، لکه ذلك دين القيمة هم داطریقه درسته ده ②درست کولووالا یعنی داسې کتاب کوم چې دانسانانو دنیوی او آخروی ټول تمام معاملات درست کونکې دې، په دې صورت کښې به قیما مقوم په معنی کښې وی قیما د الکتاب نه حال ثانی دی په دې صورت کښې به حال مترادفه وی، رومبې حال جمله ولم يجعل له عوجا دې به د له دضمیرنه حال وی په دې صررت کښې به حال متداخله وی،او داحال مؤکده بللې شی ځکه چې دویم حال د رومبې حال دمفهوم تاکید کوی، ،اودفعل محذوف مفعول ثانی هم کیدې شی، تقدیری عبارت به داوی جعله قیما.

**قوله:** لينذر کښې لام دتعلیل یا دعاقبت دې اودانزل سره متعلق دې اودلينذر مفعول اول یعنی الكافرين محذوف دې اوباسا شديدا معفول ثانی دې،او من لدنه د کائنا محذوف سره متعلق جمله د باسا صفت ثانی دې، ای باسا شديدا كائنامنه.د يبشر عطف په ینذ.ر باندې دې اودلام لاندې دې،المؤمنين،دیبشر مفعول ثانی دې، اوالذين يعملون الخ د المؤمنين صفت

دي د ان لم نه مخکښې ب حرف جار محذوف دی ـ

**قوله:** ماكثين، د لهم د ضمير نه حال دي اودفيه ضمير مرجع اجر دي د دويم بشر عطف په لينذر باندې دي اوعطف خاص على العام دقبيلې نه دي. اوددې مفعول ثاني محذوف دې، اى بأسا شديدا ـ مالهم جمله مستانفه ده او لهم خبرمقدم دي من علم مبتدأ مؤخره ده اومن زائده دي اولالابائهم په خبرباندې عطف دي اودبه ضمير مرجع قول دي كبرت دكلمة صفت دي اومقالتهم المذكورة مخصوص بالذم دي ـ

**[ايات توله:٦ ـ ٨]**

﴿فَلَعَلَّكَ بَاخِعٌ﴾ مُهْلِكٌ ﴿نَّفْسَكَ عَلَىٰٓ آثَارِهِمْ﴾ بَعْدَهُمْ اَيْ بَعْدَ تَوَلِّيهِمْ عَنْكَ ﴿إِن لَّمْ يُؤْمِنُوا بِهَٰذَا الْحَدِيثِ﴾ الْقُرْآنِ ﴿أَسَفًا﴾ غَيْظًا وَحُزْنًا مِنْكَ لِحِرْصِكَ عَلَىٰ اِيْمَانِهِمْ وَنَصْبُهُ عَلَى الْمَفْعُوْلِ لَهُ ﴿إِنَّا جَعَلْنَا مَا عَلَى الْأَرْضِ﴾ مِنَ الْحَيَوَانِ وَالنَّبَاتِ وَالشَّجَرِ وَالْأَنْهَارِ وَغَيْرِ ذٰلِكَ ﴿زِينَةً لَّهَا لِنَبْلُوَهُمْ﴾ لِنَخْتَبِرَ النَّاسَ نَاظِرِيْنَ اِلَىٰ ذٰلِكَ ﴿أَيُّهُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا﴾ فِيْهِ اَيْ اَزْهَدُ لَهُ ﴿وَإِنَّا لَجَاعِلُونَ مَا عَلَيْهَا صَعِيدًا﴾ فُتَاتًا ﴿جُرُزًا﴾ يَابِسًا لَا يُنْبِتُ

**ترجمه:** شايد ته ددې نه ورستوكه داخلق ايمان نه راوړي نوتهخپل ځان دافسوس دوجې نه په غم اوغصه كښې هلاک كړې يعنى چې د دوى ستا نه د اعراض كولونه پس ته ددوى دايمان د راوړو د حرص د وجې نه، اواسفا مفعول له كېدودوجې نه منصوب دې

بې شكه مونږ په زمكه چې څه دى حيوانات اونباتات او اشجار او انهار وغېره لره دزمكې دپاره زينت جوړكړيدې دې دپاره چې مونږ د دې خلقو ازمېښت اوكړو يعنى هغوى باندې ازمېښت اوكړوكوم چې دې طرف ته مائل دى، چې په دوى څوک د ماعلى الارض باره كښې دعمل په اعتبار سره ډيرښه دې، يعنى په دې كښې څوک ددنيانه ډيربې رخې كونكې دې اومونږ به دزمكې ټول څيزونه صفا ډاګ مېدان كړو يعنى اوچ صفا ميدان به ئ كړوكوم چې به دګياه او د كروندې لائق نه وى

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** مهلك د دې اضافه دبيان معنى دپاره ده ـ

**قوله:** بعدهم: دا د آثار تفسيردې او بعد توليهم د تفسيرتفسيردې، مطلب دادې چې ته ددې كافرانو دايمان نه راوړدومره فكرمه كوه چې خپل ځان هلاک كړې لعل دترجى اوداشفاق دپاره راځى، خودلته دنهى دپاره استعمال شوې دې يعنى دنبى ﷺ دمنع كولودپاره چې ته دومره غم مه كوه. آثار داثرجمع ده، دوى پسې يعنى ددوى په فكركښې ته خپل ځان مه هلاک كوه.

**قوله:** ان لم يؤمنوا ددې دوه تركيبونه كيدې شى ① ان لم يؤمنواشرط دې اوپه ماقبل باندې اعتمادكولوسره جزاء محذوف ده يعنى فلا تهلك نفسك ② ان لم يؤمنوا شرط مؤخر اوفلعلك

یا مجزاء مقدم ۔
قوله: اسفا: دباخع مفعول له دي يادباخع دضميرنه حال دي ۔
قوله: لحرصك دعلة العلة دي يعنى ته لره دومره زيات غم ولې كوى څكه چې ته ددوى په ايمان باندې حريص يې ۔
قوله: انا جعلنا داجمله مستانفه ده اگرچې دجعل صيرپه معنى وى نوزينة به ددې مفعول ثاني وى، دلها لام دزينة سره متعلق دې اوداهم كيدې شى چې دكائنة سره متعلق وى او د زينةصفت وى، ماعلى الارض مفعول اول دې اوكه چرته جعل په معنى دخَلَقَ وى نوزينة به يا حال وى يابه مفعول له ۔
قوله: ناظرين الى ذلك دا د من الناس نه حال دې ۔
قوله: جرزا دصعيداصفت دې په دې كښې اسنادمجازى دې څكه چې دجرزاصلى معنى د داسې زمكې ده چې دهغې گياه كټ كړې شوې وى دادماعلى الارض وصف گرزولې شوى دې حالانكه داد ارض وصف دې لهذا دعلاقه مجاورت دوجې نه به اسنادمجازى وى
قوله: ايهم په تركيب اضافى سره مبتدأ ده اواحسن ددې خبراوعملا تميزدې بيا جمله دنبلوا د دوؤمفعولو قائم مقام ده، دفيه دضميرمرجع ماعلى الارض ده اومرادترې دنيا اومافيهادى ۔
قوله: ازهدله داد احسن عملا تفسيردې ۔
قوله: اسفا ددې تفسير په غيظاوحزنا سره كولو د مقصد تعيين دمعنې دې څكه چه اسف دمتعدد معنو دپاره راځى ۔
قوله: من الحيوان والنبات دادماعلى الارض بيان دې ۔
قوله: ناظرين الى ذلك سره اشاره ده چې هم ذوالحال دې اوناظرين ددې نه حال دې ۔

**[ایاتونه: ۹ ۔ ۱۲]**

(أَمْ حَسِبْتَ) أَيْ ظَنَنْتَ (أَنَّ أَصْحَابَ الْكَهْفِ) الْغَارِ فِي الْجَبَلِ (وَالرَّقِيمِ) اللَّوْحِ الْمَكْتُوبِ فِيهِ أَسْمَاؤُهُمْ وَأَنْسَابُهُمْ وَقَدْ سُئِلَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قِصَّتِهِمْ (كَانُوا) فِي قِصَّتِهِمْ (مِنْ) جُمْلَةِ (آيَاتِنَا عَجَبًا) خَبَرُ كَانَ وَمَا قَبْلَهُ حَالٌ أَيْ كَانُوا عَجَبًا دُونَ بَاقِي الْآيَاتِ أَوْ أَعْجَبَهَا لَيْسَ الْأَمْرُ كَذٰلِكَ اذْكُرْ (إِذْ أَوَى الْفِتْيَةُ إِلَى الْكَهْفِ) جَمْعُ فَتًى وَهُوَ الشَّابُّ الْكَامِلُ خَائِفِينَ عَلَى إِيمَانِهِمْ مِنْ قَوْمِهِمُ الْكُفَّارِ (فَقَالُوا رَبَّنَا آتِنَا مِنْ لَدُنْكَ) مِنْ قِبَلِكَ (رَحْمَةً وَهَيِّئْ) أَصْلِحْ (لَنَا مِنْ أَمْرِنَا رَشَدًا) هِدَايَةً (فَضَرَبْنَا عَلَى آذَانِهِمْ) أَيْ أَنَمْنَاهُمْ (فِي الْكَهْفِ سِنِينَ عَدَدًا) مَعْدُودَةً (ثُمَّ بَعَثْنَاهُمْ) أَيْقَظْنَاهُمْ (لِنَعْلَمَ) عِلْمَ مُشَاهَدَةٍ (أَيُّ الْحِزْبَيْنِ) الْفَرِيقَيْنِ الْمُخْتَلِفَيْنِ فِي مُدَّةِ لُبْثِهِمْ (أَحْصَى) أَفْعَلُ بِمَعْنَى أَضْبَطَ (لِمَا لَبِثُوا) لِلُبْثِهِمْ مُتَعَلِّقٌ بِمَا بَعْدَهُ (أَمَدًا) غَايَةً

ترجمه: آیا ته خیال کوې یعنی گمان کوې چې غاروالا اورقیم والا، کهف دغرسوری یعنی غارته وائي او "رقیم" هغه تخته وه چې په کښې داصحاب کهف نومونه نقش شوی وو او درسول الله صلی الله علیه وسلم نه دهغوی د قصې تپوس کړې شوې وو، چې هغوی دخپلې قصې په اعتبارسره زمونږ (د قدرت په) ایاتونو کښې څه ډیرعجیبه وو عجبا، دکان خبر دې اوددې ماقبل (یعنی من اٰیٰتنا) دکانوا دضمیر نه حال دې یعنی هغوی په آیات قدرت کښې عجیبه وونه چې باقی ایات، یا په عجائباتو کښې ډیر عجیبه وو۔حقیقت حال داسې نه وو .هغه وخت یادکړه چې کله یوڅوځوانانو په یوغارکښې پناه اغستلې وه فتية د فتی جمع ده یعنی کامل ځوانان کله چې هغوی ته دخپل ایمان باره کښې ویره شوه او دخپل کافرقوم دخوانه اوتل نوپه هغه وخت کښې هغوی دا دعااوکړه اې زمونږ پروردگاره ته مونږ ته دخپل طرف نه یعنی د خپل خصوصی عنایت نه رحمت عطاکړې او زمونږ معاملې لره درست اوفرمائې نومونږ په غارکښې دهغوی په غوگونوباندې دکلونو دپاره پرده واچوله یعنی هغوی موږه ډوب (ژور) خوب باندې اوده کړه بیامونږهغوی پاڅول یعنی بیدار مو کړل چې مونږدعلم مشاهده په طورباندې معلومه کړوچې دهغوی په مدت قیام کښې د اختلاف کونکو دوارو ډلوکښې کومې یوې ډلې دهغوی دقیام موده یاده ساتلې ده احصیٰ فعل ماضی دې د ضبط په معنی کښې لما لبثوا دخپل مابعد سره متعلق دې اوامدا په معنی دغایت دې۔

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: ام حسبت کښې ام منقطعه په معنی داستفهام انکاری دې، یعنی اې محمد ﷺ تا لره دخیال نه دی کول پکار۔

قوله: ان اصحٰب الکهف جمله دحسبت مفعول به دې، او کانومن اٰیٰتنا عجبا جمله دان خبردې او عجبا د(اٰیة) محذوف صفت کیدوسره دان خبر دې او اصحاب الکهف دان اسم دې کهف مفرد دې اوجمع ئې کهوف واکهف ده په معنی دغار، دکهف اودغار په مینځ کښې فرق دادې چې غار تنگ او وړوکې وی اوکهف کهولاو فراخه اوغټ وی رقیم په معنی دمرقوم، لیکلې شوې، نوشته، درقیم باره کښې دمفسرینو شپږ اقوال دی ①دا دهغه کلی نوم وودکوم نه چې اصحاب کهف راوتلی وو②دادهغه غرنوم دې په کوم کښې چې هغه غاردې ③دا داصحاب کهف دسپی نوم دې ④دا دهغه میدان نوم دې کوم چې دغارپه لمن کښې واقع دې ⑤هغه تخته ده په کوم کښې چې داصحاب کهف نومونه نسبونه اوحالات لیکلی شوی وو اودغار سرته نصب شوې وه ⑥د سیسې (تانبا) هغه تخته په کومې باندې چې داصحاب کهف نومونه نقش (لیکلې) شوی وو اوپه شاهی خزانه کښې محفوظ کړې شوې وه، امام بخاری رحمه الله دا قول په خپل صحیح کښې تعلیقا ذکرکړې دې، حافظ ابن

حجرددې سند دامام بخاری په شرط باندې صحيح گرزولې دې هيئ _هيئ د هيئه نه فعل امر، اصلاح كول، درست كول، مهيا كول احصی دباب افعال ماضی ده نه چې اسم تفضيل ځكه چې دثلاثی مزيدنه اسم تفضيل دافعل په وزن نه راځی اي الحزبين بتركيب اضافی مبتدأ احصی جمله خبر،داحصی د ضميرمرجع كل واحد من الحزبين ده لما لبثوا په واسطې دحرف جرسره داحصی مفعول به دې او امداً تميزدې ـ

**قوله**: ضربنا على آذانهم د ضربنا مفعول حجابا محذوف دې، په كلام كښې مجازدې ځكه چې القاءنوم لره ئې د ضرب حجاب سره تشبيه وركړې ده او ضربنا په معنی د انمنا دې ـ

**قوله**: عددا بمعنی معدودا دسنين صفت دې ـ

**[اياتونه:۱۲ـ۱۷]**

(نَحْنُ نَقُصُّ) نَقرأ (عَلَيْكَ نَبَأَهُمْ بِالْحَقِّ) بالصِّدْقِ (إنهم فتية آمنوا بربهم وزدناهم هدى) (وَرَبَطْنَا عَلَى قُلُوبِهِمْ) قَوَّيْنَاهَا عَلَى قَوْل الْحَق (إِذْ قَامُوا) بَيْن يَدَيْ مَلِكهمْ وَقَدْ أَمَرَهُمْ بالسجود للأصنام (فقالوا ربنا رب السماوات وَالْأَرْض لَنْ نَدْعُوَمِنْ دُونه) أَيْ غَيْره (لَقَدْ قُلْنَا إِذًا شَطَطًا) أَيْ قَوْلًا ذَا شَطَط أَيْ إِفْرَاط فِي الْكُفْر إِنْ دَعَوْنَا إِلَهًا غَيْر الله فَرْضًا (هَؤُلَاءِ) مُبْتَدَأ (قَوْمنَا) عَطْف بَيَان (اتَّخَذُوا مِنْ دُونه آلِهَة لَوْلَا) هَلَّا (يَأْتُونَ عَلَيْهِمْ) عَلَى عِبَادَتهمْ (بِسُلْطَانٍ بَيِّن) بِحُجَّةٍ ظَاهِرَة (فَمَنْ أَظْلَم) أَيْ لَا أَحَد أَظْلَم (مِمَّنْ افْتَرَى عَلَى الله كَذِبًا) بِنِسْبَةِ الشَّرِيك إِلَيْهِ تَعَالَى قَالَ بَعْض الْفِتْيَة لِبَعْضٍ (وَإِذْ اعْتَزَلْتُمُوهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ إِلَّا الله فَأْوُوا إِلَى الْكَهْف يَنْشُر لَكُمْ رَبّكُمْ مِنْ رَحْمَته وَيُهَيِّئ لَكُمْ مِنْ أَمْركُمْ مِرْفَقًا) بِكَسْرِ الْمِيم وَفَتْح الْفَاء وَبِالْعَكْسِ مَا تَرْتَفِقُونَ بِهِ مِنْ غداء وعشاء (وَتَرَى الشَّمْس إِذَا طَلَعَتْ تَزَّاوَر) بِالتَّشْدِيدِ وَالتَّخْفِيف تَمِيل (عَنْ كَهْفهمْ ذَات الْيَمِين) نَاحِيَته (وَإِذَا غَرَبَتْ تَقْرِضهُمْ ذَات الشِّمَال) تَتْرُكهُمْ وَتَتَجَاوَز عَنْهُمْ فَلَا تُصِيبهُمْ الْبَتَّة (وَهُمْ فِي فَجْوَة مِنْهُ) مُتَّسَع مِنْ الْكَهْف يَنَالهُمْ بَرْد الرِّيح وَنَسِيمهَا (ذَلِكَ) الْمَذْكُور (مِنْ آيَات الله) دَلَائِل قُدْرَته (من يهد الله فهو المهتد ومن يضلل فلن تجد له وليا مرشدا)

**ترجمه**: مونږ تاته دهغوی قصه صحيح بيانوو هغوی يو څو ځوانان وو چې په خپل پروردګار ئې ايمان راوړې وو او مونږ دهغوی په هدايت كښې ترقی وركړې وه اومونږ دهغوی زړونه قوی كړی وو يعنی دحق خبرې وئيلو دپاره موقوی كړی ووكله چې هغوی دخپل بادشاه په وړاندې اودرېدل اوهغه بادشاه دوی ته دبتانومخې ته دسجدې كولو حكم اوكړو، نو هغوی اوئيل زمونږ پروردګار هم هغه دې چه د اسمانونو او د زمكو پروردګار دې مونږ به هغه لره پرېښودو سره د بل چا بندګی هرګز اونه كړوكه چرته مونږ داسې اوكړو نومونږ به ډېره غلطه خبره اوكړه يعنی دحدنه تېر شوې حركت يعنی بالفرض كه چرې مونږ دالله تعالی نه علاوه دبل چابندګی اوكړه نومونږبه په كفركښې دحدنه تجاوز كونكی يو دا زمونږ قوم دې چې معبود حقيقی پرېښودو سره ئې نور معبودان جوړ كړی دی هؤلاءمبتدأ ده او قومنا عطف بيان دې هغوی په دوی

باندې يعنې ددوی په معبودوالی باندې څه واضحه دليل ولې نه راوړی؟ يعنې يوښکاره دليل، دهغه چا نه به بل کوم يو غټ ظالم وی يعنې د هکه نه بل غټ ظالم نشته، څوک چې دهغه طرف ته دشريک نسبت کولوسره په الله تعالی باندې بهتان اوتړی، څوانانو په خپل مينځ کښې يو بل ته اوئيل چې کله تاسودې عابدينولره او دالله نه علاوه ددی معبودانولره پريخودلنو اوس په يو غار کښې پناه واخلئ، ستاسورب به په تاسوباندې خپل رحمت بنور کړی او تاسو لره به ستاسو په کار کښې سهولت (اسانتيا) پيداکړي. مرفقا دميم په کسرې اودفاء په فتحې سره اوددې په عکس هم،دا د سبااوبېگاه خوراک دی چې تاسوتړې فائده اوچتوئ اوچې کله نمر راخيجی نوته بهداې مخاطبه) اوگورې چې هغوی دغار ښئي طرف ته ووه کونکې روځی تزاورپه تشديد اوبغيردتشديدنه په دواړه شان (درست دی) اوچې کله دوبېږی نو دهغوی نه گس اړخ ته ووه کونکې اوځې، يعنې دوی لره پريږدی ووه کونکې اوځی، چې دهغې دوجې نه يقيناپه هغوی باندې تاؤ (دنمر) نه لگی،حال دادې چې هغوی دغارپه کهلاوځاې کښې دی چې هلته هغوی ته يخه هوااوبادنسيم رسيږی دايعنې مذکوره حالات دهغه نخښې يعنې دهغه دقدرت نخښې دی الله چې چاته چه هدايت اوکړی هغه په سمه لاردې اوچې هغه څوک گمراه کړی نونامکنه ده چې ته هغه لره څوک کارساز او رهنما بيا مومې۔

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** فتية،دفتی جمع ده لکه چې صبية دصبی جمع۔ خوان۔

**قوله:** بالحق۔ د متلبساسره متعلق دې يا دنقص دفاعل نه حال دې ياد نبامفعول نه حال دې انهم فتية جمله مستانفه ده يعنې دماهوالخبرالصادق جواب دې آمنوابربهم جمله دفتيةصفت دې.

**قوله:** ربطنا (ن) ربطاتړل، قوی کول، لن ندعوافعل مضارع منصوب بلن جمع متكلم په آخر کښې واؤ دجمع نه دې بلکه لام کلمه ده د واؤ جمع دمشابهت د وجې نه د رسم قرآنی مطابق ددې په آخرکښې الف ليکلې کيږی خو وئيلې کيږی نه او د نه لوستلو د علامت په طور ددې دپاسه يوه گول دائره جوړولې شی (يعنې) هرگزبه نه بلو۔

**قوله:** شططا(ن،ض) شطا دحدنه تجاوزکول دحق نه لرې کېدل اذقاموا، دربطنا ظرف دې فاوواکښې فاء جزائيه ده اواذاعتزلتموهم الخ شرط دې واؤ داشباع دې۔

**قوله:** قولاذاشطط د دې اضافه کولوکښې دې خبر ته اشاره ده چې شططا حذف دمضاف سره دمصدريت دوجې نه منصوب دې اوددې موصوف قولا محذوف دې اوکه چرته ذا محذوف اونه منونو دمصدر حمل به مبالغة وی د زيد عدل پشان۔

**قوله:** فرضا، د فرضا اضافه کولوکښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې دغيرالله دبندگۍ کولوهيڅ قسمه امکان نشته نه عقلی اونه شرعی اونه اخلاقی که چرته بفرض المحال

داسې او شی نو دا به ډیره بې ځایه خبره وی ـ

قوله: هؤلاء مبتدا ده او اتخذوا من دون الله دده خبر دی د لولا تفسیر په هلاسره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چې لولا تحضیضیه دی لوما، د هؤلاء عطف بیان دی او بدل هم کیدې شی ـ

قوله: تزاور په اصل کښې تتزاور وو یوه تا حذف کړې شوه (فعل مضارع واحد مونث غائب) دقوم په مینځ کښې زیارت کول اوکه چرته دده صله عن وی نو انحراف کول اوکه چرته په اصل کښې تزاور وی نو یوه تاء ئې زا کړه او زاء ئې په زاء کښې مدغم کړه تقرضهم مضارع واحده مونثه غائبه، قرضا کتکول، دده کول په ارخ کولوسره وتل ذات د ذومونث دې، په ایت کښې ذات زائد دې دزینت کلام دپاره دې ـ

قوله: ذات الیمین وذات الشمال ـ د تزاور ظرف مکان دې ـ

قوله: ناحیته دده داضافې مقصد دې خبرې ته اشاره کول دی چې ذات الیمین او ذات الشمال ظرف مکان دی، ای جهت الیمین وجهت الشمال وهم فی فجوة جمله حالیه ده ـ

قوله: من یهد الله فهو المهتد دا جمله په درمیان دقصه کښې معترضه ده، مقصد نبی ﷺ ته تسلی ورکول دی ـ

**[ایاتونه: ۱۸ - ۲۰]**

(وَتَحْسَبُهُمْ) لَوْ رَأَيْتَهُمْ (أَيْقَاظًا) أَيْ مُنْتَبِهِينَ لِأَنَّ أَعْيُنَهُمْ مُنْفَتِحَةٌ جَمْعُ يَقِظٍ بِكَسْرِ الْقَافِ (وَهُمْ رُقُودٌ) نِيَامٌ جَمْعُ رَاقِدٍ (وَنُقَلِّبُهُمْ ذَاتَ الْيَمِينِ وَذَاتَ الشِّمَالِ) لِئَلَّا تَأْكُلَ الْأَرْضُ لُحُومَهُمْ (وَكَلْبُهُمْ بَاسِطٌ ذِرَاعَيْهِ) يَدَيْهِ (بِالْوَصِيدِ) بِفِنَاءِ الْكَهْفِ وَكَانُوا إِذَا انْقَلَبُوا انْقَلَبَ هُوَ مِثْلَهُمْ فِي النَّوْمِ وَالْيَقَظَةِ (لَوِ اطَّلَعْتَ عَلَيْهِمْ لَوَلَّيْتَ مِنْهُمْ فِرَارًا وَلَمُلِئْتَ) بِالتَّشْدِيدِ وَالتَّخْفِيفِ (مِنْهُمْ رُعْبًا) بِسُكُونِ الْعَيْنِ وَضَمِّهَا مَنَعَهُمُ اللَّهُ بِالرُّعْبِ مِنْ دُخُولِ أَحَدٍ عَلَيْهِمْ (وَكَذَلِكَ) كَمَا فَعَلْنَا بِهِمْ مَا ذَكَرْنَا (بَعَثْنَاهُمْ) أَيْقَظْنَاهُمْ (لِيَتَسَاءَلُوا بَيْنَهُمْ) عَنْ حَالِهِمْ وَمُدَّةِ لُبْثِهِمْ (قَالَ قَائِلٌ مِنْهُمْ كَمْ لَبِثْتُمْ قَالُوا لَبِثْنَا يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ) لِأَنَّهُمْ دَخَلُوا الْكَهْفَ عِنْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَبُعِثُوا عِنْدَ غُرُوبِهَا فَظَنُّوا أَنَّهُ غُرُوبُ يَوْمِ الدُّخُولِ ثُمَّ (قَالُوا) مُتَوَقِّفِينَ فِي ذَلِكَ (رَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَا لَبِثْتُمْ فَابْعَثُوا أَحَدَكُمْ بِوَرِقِكُمْ) بِسُكُونِ الرَّاءِ وَكَسْرِهَا بِفِضَّتِكُمْ (هَذِهِ إِلَى الْمَدِينَةِ) يُقَالُ إِنَّهَا الْمُسَمَّاةُ الْآنَ طَرَسُوسُ بِفَتْحِ الرَّاءِ (فَلْيَنْظُرْ أَيُّهَا أَزْكَى طَعَامًا) أَيْ أَيُّ أَطْعِمَةِ الْمَدِينَةِ أَحَلُّ (فَلْيَأْتِكُمْ بِرِزْقٍ مِنْهُ وَلْيَتَلَطَّفْ وَلَا يُشْعِرَنَّ بِكُمْ أَحَدًا) (إِنَّهُمْ إِنْ يَظْهَرُوا عَلَيْكُمْ يَرْجُمُوكُمْ) يَقْتُلُوكُمْ بِالرَّجْمِ (أَوْ يُعِيدُوكُمْ فِي مِلَّتِهِمْ وَلَنْ تُفْلِحُوا إِذًا) أَيْ إِنْ عُدْتُمْ فِي مِلَّتِهِمْ (أَبَدًا)

ترجمه: که ته چرته هغوی اوګورې نو بیدار به محسوس کړې یعنی بیدار او ویخ به ئې اوګڼړې ځکه چې دهغوی سترګې غړیدلې دی (ایقاظ) دیقظ (په کسرې دقاف) جمع ده حالانکه هغوی اوده دی رقود دراقد جمع ده او مونږ دهغوی ارخ ښیې او ګس طرف ته بدلوو رابدلوو دې

دپاره چې زمکه دهغوی غوښه اونه خوري اودهغوی سپې دغارپه خله کښې لاسونه خواره کړي ناست دي یعنی دغار په صحن (غولي) کښې چې کله اصحاب کهف اړخ بدلوی نو هغه هم اړخ بدلوی، یعنی دخوب او بیدارۍ کښې هغه سپې هم دهغوی پشان دي اوکهٔ ته سر ورښکاره کړې نو دهغه ځاي نه به په شاشی اوپه تا باندې به ویره غالبه شی (لملئت) دلام په تشدید اوتخفیف سره دي (رعبا) دعین په سکون اوضمې سره دي الله تعالی درعب په ذریعه دهغوی حفاظت فرمائیلې دي چې هیڅوک هلته د هغوی خوا له ورنشی او دغه شان یعنی چې څنګه مونږه هغوی سره مذکوره معاملې اوکړې دغه شان مونږهغوی بیدار کړل چې هغوی دخپل احوالو باره کښې اوپه غارکښې د قیام د مدت باره کښې خپل مینځ کښې تپوس پخشته اوکړی په هغوی کښې یو تپوس کونکی تپوس اوکړو چې تاسو (په غارکښې) څومره موده پاتې شوی یئ، نو وئې وئیل چې مونږه یوه ورځه یاددې نه هم کم ایسارشوی یو څکه چې هغوی په غارکښې دنمر راختو وخت کښې داخل شوی وو، اودنمر پریوتو وخت کښې بیدارشول نو هغوی دا اوګڼل چې داهم دداخلېدودورځې غروب دي، بیائې غورکولونه پس اووئیل چې ستاسو پروردګار ښه خبر دي، چه تاسو څومره وخت تیر کړي دي اوس چاتادادچاندې روپۍ (سکه) ورکړئ اوښارته ئې اولیږئ (بورقکم) دراء سکون او کسره دواړه درست دی، وئیلې کیږی چې اوس دې ښارته طرسوس وئیلې کیږی دراء په فتحې سره اوهغه دې ددې خبرې خیال اوساتی چې کوم خوارک ډیرپاک دي یعنی دښار کوم یوځیزحلال دي یا دې د هغې نه تاسو لره څه روټۍ (خوراک) راوړی اوده لره پکار دی چه ښه دحاضر دماغې نه کار واخلی او هیڅ کله په تاسو څوک خبر نه کړی که چرې هغوی دستاسونه خبر شول نو یا خو به تاسو سنګسار کړی اویا به موخپل دین ته واپس کړی اوپه دې صورت کښې به تاسو هرګز کامیاب نشئ، یعنی که تاسو دهغوی دین ته واپس لاړئ نو تاسو به هیڅ کله کامیاب نه شئ۔

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** الوصید چوکهټ، دورشل، آکنر، شارح دکهلاؤ ځاي یادصحن معنی مراد اغستې ده. باسط ذراعیه، حکایت حال ماضیه دي څکه چې اسم فاعل کله دماضی په معنی وی نوعمل نه کوی، بالوصید_ دباسط سره متعلق دي اوذراعیه _دباسط مفعول به دي _فرارا_ دولیت مفعول بغیرلفظه دي اودولیت نه حال اومفعول له هم کیدشی رعبا ای خوفا دتمیزدوجې نه منصوب دي یا د ولیت مفعول ثانی دي دکمافعلنا داضافې مقصد دکذالك مرجع ظاهرول دی۔

**قوله:** بعثناد دي تفسیرپه ایقظنا سره کول دتعین دمعنی دپاره دی څکه چې بعثنا د ډیرو معنو دپاره استعمالیږی دلته ترې دبېدارولو معنی مراده ده لیتساءلوا کښې لام دعاقبت

یا د سببیت د پاره دي کم د ظرفیت د وجې نه منصوب دي او ددې ممیز محذوف دي تقدیری عبارت دادې کم مدة لبثتم قال قائل منهم، د لبثتم لوابیان دې ـ

**قوله**: ایها ازکی، ایها مرکب اضافی مبتدأ ده ازکی ددې خبر دې طعاما تمیز دې د مضاف الیه نه منقول دې ای ازکی الطعام بیا د جمله د ینظر مفعول به دې او د ایها د ضمیر مرجع الاطعمه دې کوم چې دخپل مینځ کښې د گفتگو په وخت کښې معهود فی الذهن دې (دویم ترکیب) په ایها کښې د ها ضمیر مرجع مدینه او گرزولې شی نو په دې صورت کښې به تقدیری عبارت داوی ای ینظر ای اهلها اطیب طعاما د ښار په باشندگانو کښې کوم یو د خوراک په معامله کښې پاکیزه دې (فتح القدیر شوکانی)

**قوله**: اذا نه پس ان عندتمرا و بنکو سره ئ اشاره اوکړه چې اذا متضمن دې معنی د شرط لره او لن تفلحوا ددې جواب دې ـ

**[ایاتونه: ۲۱ - ۲۶]**

﴿وَكَذٰلِكَ﴾ كَمَا بَعَثْنَاهُمْ ﴿أَعْثَرْنَا﴾ اَطْلَعْنَا ﴿عَلَيْهِمْ﴾ قَوْمَهُمْ وَالْمُؤْمِنِيْنَ ﴿لِيَعْلَمُوٓا﴾ اَيْ قَوْمُهُمْ ﴿أَنَّ وَعْدَ اللّٰهِ﴾ بِالْبَعْثِ ﴿حَقٌّ﴾ بِطَرِيْقِ اَنَّ الْقَادِرَ عَلٰى اِنَامَتِهِمُ الْمُدَّةَ الطَّوِيْلَةَ وَاِبْقَائِهِمْ عَلٰى حَالِهِمْ بِلَا غِذَاءٍ قَادِرٌ عَلٰى اِحْيَاءِ الْمَوْتٰى ﴿وَأَنَّ السَّاعَةَ لَا رَيْبَ﴾ لَا شَكَّ ﴿فِيْهَآ إِذْ﴾ مَعْمُوْلٌ لِاَعْثَرْنَا ﴿يَتَنَازَعُوْنَ﴾ اَيِ الْمُؤْمِنُوْنَ وَالْكُفَّارُ ﴿بَيْنَهُمْ أَمْرَهُمْ﴾ اَمْرَ الْفِتْيَةِ فِي الْبِنَاءِ حَوْلَهُمْ ﴿فَقَالُوا﴾ اَيِ الْكُفَّارُ ﴿ابْنُوْا عَلَيْهِمْ﴾ اَيْ حَوْلَهُمْ ﴿بُنْيَانًا﴾ يَسْتُرُهُمْ ﴿رَبُّهُمْ أَعْلَمُ بِهِمْ قَالَ الَّذِيْنَ غَلَبُوْا عَلٰى أَمْرِهِمْ﴾ اَمْرِ الْفِتْيَةِ وَهُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿لَنَتَّخِذَنَّ عَلَيْهِمْ﴾ حَوْلَهُمْ ﴿مَسْجِدًا﴾ يُصَلّٰى فِيْهِ وَفُعِلَ ذٰلِكَ عَلٰى بَابِ الْكَهْفِ ﴿سَيَقُوْلُوْنَ﴾ اَيِ الْمُتَنَازِعُوْنَ فِيْ عَدَدِ الْفِتْيَةِ فِيْ زَمَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيْ يَقُوْلُ بَعْضُهُمْ هُمْ ﴿ثَلٰثَةٌ رَّابِعُهُمْ كَلْبُهُمْ وَيَقُوْلُوْنَ﴾ اَيْ بَعْضُهُمْ ﴿خَمْسَةٌ سَادِسُهُمْ كَلْبُهُمْ﴾ وَالْقَوْلَانِ لِنَصَارٰى نَجْرَانَ ﴿رَجْمًا بِالْغَيْبِ﴾ اَيْ ظَنًّا فِي الْغَيْبَةِ عَنْهُمْ وَهُوَ رَاجِعٌ اِلَى الْقَوْلَيْنِ مَعًا وَنَصْبُهُ عَلَى الْمَفْعُوْلِ لَهُ اَيْ لِظَنِّهِمْ ذٰلِكَ ﴿وَيَقُوْلُوْنَ﴾ اَيِ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿سَبْعَةٌ وَّثَامِنُهُمْ كَلْبُهُمْ﴾ الْجُمْلَةُ مِنَ الْمُبْتَدَا وَخَبَرِهِ صِفَةُ سَبْعَةٍ بِزِيَادَةِ الْوَاوِ وَقِيْلَ تَاْكِيْدٌ اَوْ دَلَالَةٌ عَلٰى لُصُوْقِ الصِّفَةِ بِالْمَوْصُوْفِ وَوَصْفُ الْاَوَّلَيْنِ بِالرَّجْمِ دُوْنَ الثَّالِثِ دَلِيْلٌ عَلٰى اَنَّهُ مَرْضِيٌّ وَصَحِيْحٌ ﴿قُلْ رَّبِّيْ أَعْلَمُ بِعِدَّتِهِمْ مَّا يَعْلَمُهُمْ إِلَّا قَلِيْلٌ﴾ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَنَا مِنَ الْقَلِيْلِ وَذَكَرَهُمْ سَبْعَةً ﴿فَلَا تُمَارِ﴾ تُجَادِلْ ﴿فِيْهِمْ إِلَّا مِرَآءً ظَاهِرًا﴾ بِمَا اُنْزِلَ عَلَيْكَ ﴿وَلَا تَسْتَفْتِ فِيْهِمْ﴾ تَطْلُبِ الْفُتْيَا ﴿مِّنْهُمْ﴾ مِنْ اَهْلِ الْكِتَابِ الْيَهُوْدِ ﴿أَحَدًا﴾ وَسَاَلَهُ اَهْلُ مَكَّةَ عَنْ خَبَرِ اَهْلِ الْكَهْفِ فَقَالَ اُخْبِرُكُمْ بِهِ غَدًا وَلَمْ يَقُلْ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ فَنَزَلَ ﴿وَلَا تَقُوْلَنَّ لِشَايْءٍ﴾ اَيْ لِاَجْلِ شَيْءٍ ﴿إِنِّيْ فَاعِلٌ ذٰلِكَ غَدًا﴾ اَيْ فِيْمَا يُسْتَقْبَلُ مِنَ الزَّمَانِ ﴿إِلَّآ أَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ﴾ اَيْ اِلَّا مُلْتَبِسًا بِمَشِيْئَةِ اللّٰهِ تَعَالٰى بِاَنْ تَقُوْلَ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ ﴿وَاذْكُرْ رَّبَّكَ﴾ اَيْ مَشِيْئَتَهُ مُعَلِّقًا بِهَا ﴿إِذَا نَسِيْتَ﴾ وَيَكُوْنُ ذِكْرُهَا بَعْدَ النِّسْيَانِ كَذِكْرِهَا مَعَ الْقَوْلِ قَالَ الْحَسَنُ وَغَيْرُهُ مَا دَامَ فِي الْمَجْلِسِ ﴿وَقُلْ عَسٰٓى أَنْ يَّهْدِيَنِ رَبِّيْ لِاَقْرَبَ مِنْ هٰذَا﴾ مِنْ خَبَرِ اَهْلِ الْكَهْفِ فِي الدَّلَالَةِ عَلٰى نُبُوَّتِيْ ﴿رَشَدًا﴾ هِدَايَةً وَقَدْ فَعَلَ

اللّٰه ذٰلِكَ ﴿وَلَبِثُوا فِي كَهْفِهِمْ ثَلَاثَ مِائَةٍ﴾ بِالتَّنْوِيْنِ ﴿سِنِيْنَ﴾ عَطْفُ بَيَانٍ لِثَلَاثِمِائَةٍ وَهٰذِهِ السُّنُوْنُ الثَّلَاثُمِائَةِ عِنْدَ أَهْلِ الْكَهْفِ شَمْسِيَّةٌ وَتَزِيْدُ الْقَمَرِيَّةُ عَلَيْهَا عِنْدَ الْعَرَبِ تِسْعَ سِنِيْنَ وَقَدْ ذُكِرَتْ فِي قَوْلِهِ ﴿وَازْدَادُوا تِسْعًا﴾ أَيْ تِسْعَ سِنِيْنَ فَالثَّلَاثُمِائَةِ الشَّمْسِيَّةُ ثَلَاثُمِائَةٍ وَتِسْعٌ قَمَرِيَّةٌ ﴿قُلِ اللّٰهُ أَعْلَمُ بِمَا لَبِثُوا﴾ مِمَّنْ اخْتَلَفُوا فِيْهِ وَهُوَ مَا تَقَدَّمَ ذِكْرُهُ ﴿لَهُ غَيْبُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ أَيْ عِلْمُهُ ﴿أَبْصِرْ بِهٖ﴾ أَيْ بِاللّٰهِ هِيَ صِيْغَةُ تَعَجُّبٍ ﴿وَأَسْمِعْ﴾ بِهٖ كَذٰلِكَ بِمَعْنٰى مَا أَبْصَرَهُ وَمَا أَسْمَعَهُ وَهُمَا عَلٰى جِهَةِ الْمَجَازِ وَالْمُرَادُ أَنَّهُ تَعَالٰى لَا يَغِيْبُ عَنْ بَصَرِهٖ وَسَمْعِهٖ شَيْءٌ ﴿مَا لَهُمْ﴾ لِأَهْلِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴿مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ وَلِيٍّ﴾ نَاصِرٍ ﴿وَلَا يُشْرِكُ فِي حُكْمِهٖ أَحَدًا﴾ لِأَنَّهُ غَنِيٌّ عَنِ الشَّرِيْكِ

**ترجمه:** او مونږ هم داسې خنګه چې مو دوی لره بیدار کړل، ددوی په حالاتو باندې مو ددوی قوم او مؤمنانو لره خبر کړل چې ددوی قوم ته معلومه شي چې دالله تعالی دبعث بعد الموت وعده حقه ده، په دې طریقه چې کوم ذات اصحاب کهف لره د اوږدې زمانې پورې اوده کولو اودوی لره بغیر دغذا نه په پخپل حال باندې باقي ساتلو باندې قادر دې هغه ذات مړولره په ژوندی کولو باندې هم قادر دې اوداچې په قیامت کښې هیڅ شک نشته اذ اعترنا معمول دې اوچې کله مومنانو اوکافرانو په خپل مینځ کښې ددغه ځوانانو دپاره (دیادګار په طور باندې) دعمارت جوړولو کښې اختلاف کولو، نو کفارو اووئیل چې ددی نه چار چاپیره یو یادګاری عمارت جوړکړئ کوم چې دوی لره مستور کړی ددوی رب ددوی د احوالونه ښه واقف دې (په اخېره کښې) هغه خلقو کوم چې د هغه ځوانانو په معامله غالب وو او هغه مؤمنان وو اووئیل مونږ به دوی سره نزدې یو جماعت تعمیر کړو چې په کښې مونځونه کیږي، نو بس دغار په خوا کښې جماعت جوړ کړې شو، دځوانانو د شمېرباره کښې د اختلاف کونکو قصه چې ستا (دنبی ﷺ) په زمانه (خلقوته) واورولې شی نو په هغوی کښې به بعض خلق وائي چې دغه خلق درې وو او ځلورم ددوی سپې وو او بعض به وائي چې پنځه وو او شپږم دهغوی سپې وو دادواړه اقوال دنجران نصاری دی اوداخلق په اټکل باندې لګیادی (یعنی) ددوی په باره کښې په اندازې ویناکوی او رجماً بالغیب تعلق مذکوره دواړو اقولو سره دې، اود رجماً نصب دمفعول له دوجې نه دې ای لظنهم ذلك اومؤمنان به وائي چې اوو (۷) وو او اتم دهغوی سپې وو جمله مبتدأ او خبر دواو زیاتوالی سره دسعة (بغیرلحاظ دتاکیدنه) صفت دې اوداهم وئیلې شوی دی چې داواؤ زند دې دتاکیدی معنې سره، دصفت دموصوف سره دلاحق کیدو باندې دلالت کوی اوداول دواړو اقولو د رجم بالغیب سره متصف کیدل، او د دریم نه متصف کیدل په دې خبره دلالت کوی چې دریم قول مختار (خوښ کړې شوې) اوصحیح دې۔ (په تاکید او دلالة کښې اوپه معنی دمع دی) ته اووایه چې زمارب ددوی تعداد لره دیر ښه پیژني اوددی صحیح تعداد لره دیرکم خلق پیژني، ابن عباس رضی الله تعالی عنهما او وئ فرمائیل چې څه هم دهغوی خلقونه یم او او فرمائیل چې هغوی اووهٔ دی

لهذا ته دې معامله كښې سوا د سرسرى بحث نه زيات بحث مه كوه كوم چې په تا نازل شوى دى اوته داصحاب كهف په معامله كښې په دوى كښې دچا سره هم يعنى داهل كتاب نه څه مه معلوموه او اهل مكه د اصحاب كهف باره كښې دنبى ﷺ نه سوال كړې وو ،نونبى ﷺ فرمائيلى وو دې باره كښې به څه تاسو ته صبا جواب دركړم خونبى ﷺ انشاء الله نه وو وئيلې نوپه دې باره راتلونكى اياتونه نازل شول اوته دڅه كار باره هرګز داسې مه وايه چې څه به صبا له ده اكومه يعنى په راتلونكى زمانې كښې دڅه كار په باره كښې (مه وايه چې څه به داصباكومه) خوداچې ته انشاء الله اووائې يعنى انشاء الله ونيلوسره دالله تعالى مشيت شاملوه اوكه چرې ته انشاء الله هير كړې نوته خپل رب لره يعنى دهغه مشيت لره يادساته په دې طريقه چې وعدې لره مشيت سره معلق كوه اودنسيان نه پس دا انشاء الله ونيل به دهغه انشاء الله دوينه پشان شى كوم چې ښه په وخت اوئيلې شى، حضرت حسن وغيره فرمائي چې دابه په هغه وخت كښې صحيح وى چې (قائل) هم په دغه مجلس كښې موجودوى (يعنى مجلس ئې نه وى بدل كړې اوته اوايه چې ماته اميدې چې زما پروردګار ددې نه هم زيات (په نبوت باندې دلالت كونكې) دليلونو طرف ته زما رهنمائى اوفرمائي يعنى داصحاب كهف دخبرنه هم زيات زما په نبوت باندې دلالت كونكې اوالله تعالى داسې اوكړل اوهغه خلق په غار كښې درې سوه كالا ايسارشول، مائة دتنوين سره دې سنين،د ثلاث مائة بيان دې اودادرې سوه كالا داهل كتابوپه نيز شمسى حساب سره دې اودعربوپه نيز قمرى حساب سره په درې سوه باندې نور مزيد نهه كاله دى كوم چې الله تعالى په قول وازدادوا تسعا كښې ذكرشوې دې لهذا درې سوه كالا په شمسى حساب سره دى اودرې سوه اونهه كالا په قمرى حساب سره دى ته ورته اوفرمايا چې الله تعالى ددوى د قيام مدت ښه پيژنى يعنى دهغه خلقونه كوم چې ددوى په تعداد كښې اختلاف كوى،ددې ذكرمخكښې شوې دې

هم هغه ته داسمانونو اودزمكو پټ رازونه معلوم دى هغه ددغې مغيباتو علم لره څه ښه ليدونكې دې اوڅه ښه پوهه دې ابصربه اى بالله (به كښې باء په فاعل باندې داخله ده) صيغه دتعجب ده اسمع به هم صيغه د تعجب ده اوپه معنى كښې د ما ابصره وما اسمعه دې اوددې دواړو صيغو استعمال دالله تعالى دپاره په طور د مجازدې او مراد دا دې چې د الله تعالى د سمع او بصر (يعنى د علم ازلى) نه هيڅ يو خبره پټه نه ده اودخلقودپاره يعنى داهل الارض والسماء دپاره دهغه نه سوا هيڅوک مددګار نشته اونه هغه په خپل حكم كښې چالره شريكوى ځكه چه نه هغه دشريک نه مستغنى دې۔

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** اعثرنا،اعثارا(افعال)واقف كول، مطلع كول، خبرول۔

**قوله**: قومهم والمؤمنون دا د اعثرنا مفعول به محذوف دي ـ

**قوله**: ليعلموا دا اعثرنا سره متعلق دي وان الساعة عطف په ان وعدالله باندي دي ـ

**قوله**: يسترهم جمله د بنيانا صفت دي لله د هم مبتدأ محذوف خبر دي، كما اشار اليه الشارح.

**قوله**: رابعهم كلبهم مبتدأ سره دخبر د ثلثة صفت دي هم داسې تركيب به په راتونكې دوؤ جملو كښې وي ـ

**قوله**: رجما بالغيب، د يرمون مفعول مطلق دي اى يرمون رميا او حال هم كيدې شى اى راجمين بالغيب

**قوله**: رابعهم كلبهم د حال د وجې نه محلا منصوب دي اى حال كون كلبهم جاعلهم اربعة بانضمامه اليهم وثامنهم واؤ زئده دي د تاكيدى معنې دلحاظ ساتلونه بغير. يا د تاكيدى معنى دلحاظ ساتلو سره، يعنى د اتصاف موصوف بالصفت د تاكيد د پاره يعنى د دلالت د پاره خكه چې كله موصوف د صفت سره متصف وى نو د موصوف وجود به لازمى وى خكه چې صفت بغير د موصوف نه نشى موجوديدې، مطلب دا شو چې اصحاب كهف د سپې سره تول اته شو يعنى هغوى اوۀ وو او اتم سپې شو ـ

**قوله**: اودلالة كښې او عاطفه تفسيريه (په معنى د) اى دي، يعنى تاكيد په معنى د دلالة دې تاكيد يعنى دلالة على لصوق الصفة بالموصوف باندې دلالت كولو د پاره (لهذا دا دوه اقوال شو) ـ

**قوله**: ربي اعلم دا په درميان كښې جمله معترضه ده ـ

**قوله**: في الدلالة، دا اقرب سره متعلق دي رشدا د لبهدين مفعول مطلق بغير لفظه دي او د اقرب نه تميز واقع كيدل هم صحيح دى اى لاقرب هداية من هذا. مائة د ثلث تميز دي او سنين د مائة عطف بيان يا بدل دي خكه چې د مائة تميز په عام طور باندې مفرد مجرور وى په يو قرات كښې مائة سنين د اضافت سره دي په دې صورت كښې، به سنين د مائة تميز وى او جمع به په محل د مفرد كښې وى خكه چې د الله تعالى په قول بالاخسرين اعمالا كښې دي ـ

**[ايا تو له: ۲۷ - ۲۹]**

(وَاتْلُ مَا أُوحِيَ إِلَيْكَ مِنْ كِتَابِ رَبِّكَ لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمَاتِهِ وَلَنْ تَجِدَ مِنْ دُونِهِ مُلْتَحَدًا) ملجأ (وَاصْبِرْ نَفْسَكَ) احبسها (مَعَ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيدُونَ) بعبادتهم (وَجْهَهُ) تعالى لا شيئا من اعراض الدنيا وهم الفقراء (وَلَا تَعْدُ) تنصرف (عَيْنَاكَ عَنْهُمْ) عبّر بهما عن صاحبهما (تُرِيدُ زِينَةَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَلَا تُطِعْ مَنْ أَغْفَلْنَا قَلْبَهُ عَنْ ذِكْرِنَا) اي القرآن هو عيينة بن حصن واصحابه (وَاتَّبَعَ هَوَاهُ) في الشرك (وَكَانَ أَمْرُهُ فُرُطًا) إسرافا (وَقُلْ) له ولاصحابه هذا القرآن (الْحَقُّ مِنْ رَبِّكُمْ فَمَنْ شَاءَ فَلْيُؤْمِنْ وَمَنْ شَاءَ فَلْيَكْفُرْ) تهديد لهم (إِنَّا أَعْتَدْنَا لِلظَّالِمِينَ) اي الكافرين (نَارًا أَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا) ما احاط بها (وَإِنْ يَسْتَغِيثُوا يُغَاثُوا

بِمَاءٍ كَالْمُهْلِ) كَعَكَرِ الزَّيْتِ (يَشْوِي الْوُجُوهَ) مِنْ حَرِّهِ إِذَا قُرِّبَ إِلَيْهَا (بِئْسَ الشَّرَابُ) هُوَ (وَسَاءَتْ) أَيِ النَّارُ (مُرْتَفَقًا) تَمْيِيزٌ مَنْقُولٌ عَنِ الْفَاعِلِ أَيْ قَبُحَ مُرْتَفَقُهَا وَهُوَ مُقَابِلٌ لِقَوْلِهِ الْآتِي فِي الْجَنَّةِ (وَحَسُنَتْ مُرْتَفَقًا)

ترجمه: اوتاته چې کوم کتاب ستادرب طرف نه دوحی په ذریعه راغلې دې ته دهغې تلاوت کوه،دهغه خبرولره هیڅوک نه شي بدلولې، اوته به د الله تعالی نه سوا هیڅ ځای دپناه پیانه مومې، اوته خپل ځان دهغه خلقوسره پابند مقید اوساته، کوم چې سحر اومانبام (هروخت) دخپل رب عبادت کوی اودهغوی دعبادت مقصدصرف دخپل رب رضامندی ده دهوی څه دونیاوی غرض نشته، اوهغه فقراء دی، اودنیوی ژوند دروتقونو په خیال کښې دې ستا سترګې (توجه) ددوی نه واوړی ذکر د عین په مراد ترې صاحب عین دې او د داسې کس وینا مه مانه دچا زړه چې مونږه دخپل یادنه غافله کړی دی یعنی دقرآن نه، اوهغه عیینه بن حصن اودهغه ملګری دی اوهغه په شرک کښې دخپلو خواهشاتوپیروی کوی اود هغه حال دحدنه تیرشوې دې یعنی دحدنه اوړېدلې دې اوته هغه ته او دهغه ملګروته ښه‌صفا صفا) اوایه چې داقرآن ستاسودرب دطرف نه حق دې بس دچازړه چې غواړې نوایمان دې راوړی اودچازړه چې غواړی کفردې اوکړی، بیشکه مونږه دظالمانو کافرانودپاره اور تیارکړې دې چې ددغې اوریدې به ترې راچپېره شوې وی، اوداهغه پردی دی چې هغې نه به احاطه کړې وی اوکه هغوی (ددیرې تندې دلاسه فریادکوی په داسې اوبو سره به ورته فریادرسی اوشی کومې چې به د تیلو د ویخ د خیری پشان وی هغه اوبهٔ چې کله ددوی مخونوته نزدې کړې شی نودخپل ګرموالی دلاسه به مخونه وراته کړی اوڅه دیرې خرابې اوبهٔ دی هغه اوهغه اورهم څه دیربد دآرام ځای دې مرتفقا تمیزدې کوم چې دفاعل نه منقول دې، ای قبح مرتفقها یعنی ددې آرام دیرزیات خراب دې اوداقول دجنت باره کښې دراتلونکې قول حسنت مرتفقا په مقابل کښې راوړلې شوې دې ګنې په اور کښې کوم آرام دې ؟ بیشکه هغه خلق چا چې ایمان راوړرو اونیک عمل ئې اوکړو نودداسې نیک عمل کونکواجریه مونږ نه ضائع کوو جمله (انالا نضيع الخ) دان لذين آمنوا خبر دې اوپه جمله خبریه کښې دضمیر په ځای اسم ظاهر راوړلې شوې دې اواصل عبارت اجرهم دې یعنی مونږبه دوی لره اجرورکړو داسې اجرچې هغه به مذکوره آرامونولره شامل وی داسې خلقو د پاره دهمیشه اوسیدو قیام کولوباغونه دی چې دهغې دلاندې به نهرونه جاری وی، اوهغوی ته به هلته دسروزروکنګن (باهوګان) واچولې شی وئیلې شوی دی چې من زائده دې اوبعضې مفسرینومن ته تبعیضیه وئیلې دی، اساور د اسورة جمع ده اواسورة د سوار جمع ده، یعنی اساورد سوارجمع الجمع ده، اودرینبمونرې دشین رنګ لباس اود پیړو رینبمو لباس (جامې) به اغوندی اود سورۀ رحمن په ایت کښې بطائنها من استبرق دې (یعنی دهغې استربه د پیړو (غتو) رینبمووی اوهلته به په تختونوتکیه لګونکې ناست وی ارائك د اریكة جمع ده تخت ته

اربکه هغه وخت ته ونیلې کیږي کله چې هغه په (حجله) دولې کښې وي او دولې (حجله) هغه خاې ته وائي کوم چې دناوې دپاره په کهرو او پردو سره خائسته کړې شوې وي جنت ئې خائسته بدله ده او څه ښه دآرام ځاې دې۔

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: واتل ته تلاوت که (ن) تلاوة تلاوت کول. او دا هم احتمال شته چې دتلو نه مشتق وي او ددې معنی ده اتباع کول ورستو ورستو تلل من الكتاب کښې من بیانیه دې دما موصوله بیان دې ملتحدا (اسم ظرف، مصدرمیمی دې) (افتعال) پناه گاه (دپناه ځاې) یاپناه اغستل.

**قوله**: من كتاب ربك، دما اوحی الیك بیان دې۔

**قوله**: لاتعد واحد مؤنث غائب دنهی دوجې نه په آخرکښې حرف علت واؤ ساقط شو (ن) عدوا دڅه څیزنه تجاوزکول، منده وهل، عيناك، دلاتعد فاعل دې اوجمله تريد الخ دعيناك دکاف (مضاف اليه) نه حال دې که چرې مضاف اليه دمضاف جزوی نوبیا خو د مضاف الیه نه حال واقع کیدل درست دی، یاددې وجې نه چې دعین نه صاحب عین مراد دې، لهذا د فعل اسناداگرکه په ظاهره دمضاف الیه طرف ته دې خوپه حقیقت کښې هم دمضاف طرف ته دې فرطا (ن) دحدنه تجاوزکول فرط في الامر کوتاهی کول۔

**قوله**: الحق دادمبتدأ محذوف (هذالقرآن) خبردې څنګه چې مفسرعلام ظاهرکړې دې اوالحق دفعل محذوف فاعل هم کیدې شی ای جاء الحق من ربکم یاخود الحق نه حال دې ای كائنا من ربکم یاد هذا القرآن مبتدأ محذوف خبرثانی دې ای کائن من ربکم انااعتدنا دا لف و نشرغیرمرتب دې یعنی دانااعتدنا تعلق دومن شاء فلیکفر سره دې اودان الذین آمنوا تعلق دفمن شاء فليؤمن سره دې احاط بهم سرادقها، دنارا صفت دې، دسرادق جمع سرادقات ده سرادق هرهغه څیزته وائي کوم چې د یو څیزاحاطه کړی وي، که هغه چاردیواری وي او که شامیانې او پردې وي۔

**قوله**: يستغيثوا مصدر اغاثة مد دطلب کول يستغيثوا په اصل کښې يستغوثوا و، دواؤ کسره ماقبل ته ورکړې شوه او واؤ په یاباندې بدل کړې شونو يستغيثوا شو۔

**قوله**: المهل (اسم) د تیلو د ویخ خیرې، وینې زوئې، پیپ جمله يشوى، دماء صفت هم کیدې شی اودالمهل نه حال هم، عکر: خیرې، تیلچټ،

الشراب دبئس فاعل دې اومخصوص بالذم محذوف دې اوهغه هودې چې مرجع ئې مستغاث به دې، مرتفقا دنسبت نه تمیزدې کوم چې دفاعل نه منقول دې ای قبح مرتفقها المرتفق ظرف مکان دې، دآرام ځاې، دجهنمیانو دپاره ددې استعمال استهزاء شوې دې یا

دمشاكلت په طورهم كيدي شي ځكه چې دجنتيانو دپاره حسنت مرتفقا فرمائيلي شوي دي.

**قوله**: انا ان حرف مشبه بالفعل په دې كښې دننه ضميرددې اسم لانضيع اجرمن احسن عملا **قوله** جمله دان خبر،ان دخپل اسم اوخبرسره خبرشودان اول دپاره،ان اول دخپل اسم اوخبر سره جمله اسميه خبريه شوه اولئك لهم،جنت عدن،لهم خبر مقدم دې اوجنت عدن مبتدأ مؤخره ده بيا جمله د اولئك مبتدأ خبرشو۔

**قوله**: من اساورمن ابتدائيه دې يا په مفعول به باندې زائد دې اومن ذهب كښې من بيانيه دې او كائنة يا مصنوعة سره متعلق كيدوسره داساورصفت دې لساور دسوارجمع ده په معنى د ګنګن (باهوګان) متكئين دفعل محذوف يجلسون دضميرنه حال دې في الجملة دكائنا سره متعلق دې دالسرير نه حال دې ـ

**[اياتونه:۳۰-۳۸]**

﴿وَاضْرِبْ﴾ اجْعَلْ ﴿لَهُمْ﴾ لِلْكُفَّارِ مَعَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿مَثَلًا رَّجُلَيْنِ﴾ بَدَل وَهُوَ وَمَا بَعْده تَفْسِير لِلْمَثَلِ ﴿جَعَلْنَا لِأَحَدِهِمَا﴾ الْكَافِر ﴿جَنَّتَيْنِ﴾ بُسْتَانَيْنِ ﴿مِنْ أَعْنَابٍ وَحَفَفْنَاهُمَا بِنَخْلٍ وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمَا زَرْعًا﴾ يُقْتَات بِهِ ﴿كِلْتَا الْجَنَّتَيْنِ﴾ كِلْتَا مُفْرَد يَدُلّ عَلَى التَّثْنِيَة مُبْتَدَأ ﴿آتَتْ﴾ خَبَره ﴿أُكُلَهَا﴾ ثَمَرهَا ﴿وَلَمْ تَظْلِمْ﴾ تنقص ﴿مِنْهُ شَيْئًا وَفَجَّرْنَا﴾ أَيْ شَقَقْنَا ﴿خِلَالَهُمَا نَهَرًا﴾ يَجْرِي بَيْنهمَا ﴿وَكَانَ لَهُ﴾ مَعَ الْجَنَّتَيْنِ ﴿ثَمَرٌ﴾ بِفَتْحِ الثَّاء وَالْمِيم وَبِضَمِّهِمَا وَبِضَمِّ الْأَوَّل وَسُكُون الثَّانِي وَهُوَ جَمْع ثَمَرَة كَشَجَرَةٍ وَشَجَر وَخَشَبَة وَخَشَب وَبَدَنَة وَبُدْن ﴿فَقَالَ لِصَاحِبِهِ﴾ الْمُؤْمِن ﴿وَهُوَ يُحَاوِرُهُ﴾ يُفَاخِرهُ ﴿أَنَا أَكْثَرُ مِنْكَ مَالًا وَأَعَزُّ نَفَرًا﴾ عَشِيرَة ﴿وَدَخَلَ جَنَّتَهُ﴾ بِصَاحِبِهِ يَطُوف بِهِ فِيهَا وَيُرِيه أَثْمَارهَا وَلَمْ يَقُلْ جَنَّتَيْهِ إرَادَة لِلرَّوْضَةِ وَقِيلَ اكْتِفَاء بِالْوَاحِدِ ﴿وَهُوَ ظَالِمٌ لِنَفْسِهِ﴾ بِالْكُفْرِ ﴿قَالَ مَا أَظُنُّ أَنْ تَبِيدَ﴾ تنعدم ﴿هَذِهِ أَبَدًا﴾ ﴿وَمَا أَظُنُّ السَّاعَةَ قَائِمَةً وَلَئِنْ رُدِدْتُ إِلَى رَبِّي﴾ فِي الْآخِرَة عَلَى زَعْمك ﴿لَأَجِدَنَّ خَيْرًا مِنْهَا مُنْقَلَبًا﴾ مَرْجِعًا ﴿قَالَ لَهُ صَاحِبُهُ وَهُوَ يُحَاوِرُهُ﴾ يُجَاوِبهُ ﴿أَكَفَرْتَ بِالَّذِي خَلَقَكَ مِنْ تُرَابٍ﴾ لِأَنَّ آدَم خُلِقَ مِنْهُ ﴿ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ﴾ مَنِيّ ﴿ثُمَّ سَوَّاكَ﴾ عدلك وصيرك ﴿رَجُلًا﴾ ﴿لَكِنَّا﴾ أَصْله لَكِنْ أَنَا نُقِلَتْ حَرَكَة الْهَمْزَة إلَى النُّون أَوْ حُذِفَتْ الْهَمْزَة ثُمَّ أُدْغِمَتْ النون في مثلها ﴿هُوَ﴾ ضمير الشان تفسيره الجملة بعده والمعنى انا اقول ﴿اللَّهُ رَبِّي وَلَا أُشْرِكُ بِرَبِّي أَحَدًا﴾

**ترجمه**: اوحال بيان كړه دې كافرانو اومؤمنانو دپاره دهغه دوؤ كسانو رجلين دمثلا نه بدل دې اورجلين اوددې مابعد دمثلا تفسير دې په ددې دواړوكښې يوته كوم چې كافروو مونږ د انګورو دوه باغونه وركړي وو اومونږددې دواړوباغونونه دكهجوروپه اونوسره احاطه كړې وه اوددې په مينځ مينځ كښې موفصل هم زرغون كړې وو چې ددې په ذريعه به غذا حاصلې ده دواړوباغونوبه خپلې ميوې پوره پوره وركولې اوپه دې كښې به ئې بلكل كمې نه كولو كلتا دلفظ په اعتبارسره مفرددې (خو د معنې په اعتبارسره) په تثنيه دلالت كوي اوكلتا مبتدأ ده

اوآتت ددې خبر دې اومونږ د دواړو باغونو په مينځ کښې نهرونه جارې کړې وو او ددې سړي دپاره ددوؤ باغونونه علاوه نور مال حال هم وو اوثمرثا اودميم د دواړوپه فتحې سره اوددواړوپه ضمې سره ثمر اوداول په ضمې اودثانى په سکون سره ثمراوثمر دثمرة جمع ده لکه شجرد چه شجرة جمع ده اوخشب دخشبة جمع ده اوبدن دبدنة جمع ده (ددې درېواړو مفردپه يو وزن راځې خو جمع ئې مختلف ده) (يوورځ) دغه کافرخپل مؤمن ملګرى ته په فخريه اندازسره خبروکولو کښې اوئيل چې زه ستانه په مال کښې هم زيات يم اوپه افراد خاندان کښې هم اوخپل ملګرى لره چکروركونکې اوميوولره ښودنکې دخپل ځان سره باغ ته داخل کړواوحال داووچې دې خپل ځان سره ظلم کونکې وو دکفرپه ذريعه. اوپه دې موقع باندې ئ جنته اونه وئيلوياخودې وجې نه چې دجنت نه مراد روضه ده (کوم چې په دواړو باغونو باندې مشتمل ده) اوداهم وئيلې شوى دى چه ده ديوباغ په ښودلو اکتفاء کړې وه ـ اووئې وئيل چې زه خونه ګنړم چې داباغ به کله بربادشي اونه داګنړم چې قيامت به راشي اوکه ستا په خيال (قيامت راشى هم) او زه خپل رب ته واپس کړې شم نو ضرور به ددې باغ نه بهترځاې ماته ملاؤشى دهغه (مؤمن) ملګرى دده دکفريه خبروپه جواب کښې اوئيل چې آياته دهغه ذات سره کفرکوې کوم چې ته دخاورې نه پيدا کړې ئ؟ ځکه چې حضرت آدم ﷺ دخاورې نه پيدا کړې شوى وويياځ ته دنطفې منى نه پيدا کړې بيا ئ ته صحيح سالم يعنى (ته ئ معتدل الاعضاء) سړې جوړکړې دلکنا اصل لکن انا وودهمزې حرکت ئې نون ته ورکړو او همزه حذف کړې شوه بيا نون په نون کښې ادغام کړې شو هوضميرشان دې ددې مابعدجمله ددې تفسيرکوى اومعنى ئ داده چې زه وايم (يعنى عقيده ساتم) چې زمارب خوالله دې اوزه دخپل رب سره څوک نه شريکوم ـ

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** ضرب استعمال چې کله دمثل سره وى نوددې دوه مفعوله وى، دلته يو مفعول مثلا دې اودويم رجلين دواړه مفعولونه په حقيقت کښې هم يودى اورجلين په حذف دمضاف سره دمثلا نه بدل هم کېدې شى اى مثلامثل الرجلين،

**قوله:** من اعناب کښې من بيانيه دې، مائى الجنتين مبين دې من اعناب بيان دې ـ

**قوله:** حففنا دحف نه ماضى جمع متکلم (ن) حف ګهيرول چاپيره کول کلتاچونکه دلفظ په اعتبارسره مفرددې هم ددې اعتبارکولوسره آتت ئ مفرد راؤړواوعلاهما خبردې دمعنې په اعتبار سره تثنيه راؤړلې شوې دې کلتاالجنتين مرکب مبتدا ده اوجمله آتت خبردې ـ

**قوله:** ثمرنه دباغاتونه علاوه نور اموال مراد دى که هغه دنقدوپه شکل وى اوکه هغه دخاروپه شکل وى ـ

قوله: يحاور (مفاعله) محاورة وحوار اخبره اترې کول، جواب ورکول. د يحاور تفسير په يفاخر سره کول د قرينه مقام دوجې نه دې ـ

قوله: مالاونفرا دا دنسبت نه تميز دې ـ

قوله: الثمار هاپه بعضې نسخو کښې دالثمار ها په ځاې آثار ها دې په معنى درونق اوشادابې ـ

قوله: ان تبيد په تاويل د مصدر دا ظن مفعول دې ـ

قوله: سواك تسوية برابر کول، متناسب الاعضاء جوړول. دلته سوى د جعل اود صير په معنى کښې دې، د جعل ك مفعول اول اورجلا مفعول ثانى دې. لكنا په اصل کښې لكن انا وو، دانا همزه خلاف القياس حذف کړې شوه دنون په نون کښې ادغام کړې شوې دى ـ

قوله: لكنا کښې لكن غيرعامل دې، دې کښې کنته ضمير مبتدأ اول ده اوهومبتدأ ثانى ده اوالله مبتدأ ثالث ده ربى ئې خبر دې ـ

**[ايا تونه: ۳۹ - ٤٤]**

﴿وَلَوْلَا﴾ هَلَّا ﴿إِذْ دَخَلْتَ جَنَّتَكَ قُلْتَ﴾ عِنْدَ إِعْجَابِكَ بِهَا هٰذَا ﴿مَا شَاءَ اللّٰهُ لَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ﴾ وَفِي الْحَدِيثِ مَنْ أُعْطِيَ خَيْرًا مِنْ أَهْلٍ أَوْ مَالٍ فَيَقُولُ عِنْدَ ذٰلِكَ مَا شَاءَ اللّٰهُ لَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ لَمْ يَرَ فِيهِ مَكْرُوهًا ﴿إِنْ تَرَنِ أَنَا﴾ ضمير فصل بين المفعولين ﴿أقل منك مالا وولدا﴾ ﴿فعسى ربي أن يؤتين خَيْرًا مِنْ جَنَّتِكَ﴾ جَوَابُ الشَّرْطِ ﴿وَيُرْسِلَ عَلَيْهَا حُسْبَانًا﴾ جَمْعَ حُسْبَانَةٍ أَيْ صَوَاعِقَ ﴿مِنَ السَّمَاءِ فَتُصْبِحَ صَعِيدًا زَلَقًا﴾ أَرْضًا مَلْسَاءَ لَا يَثْبُتُ عليها قدم ﴿أَوْ يُصْبِحَ مَاؤُهَا غَوْرًا﴾ بِمَعْنَى غَائِرًا عَطْفٌ عَلَى يُرْسِلَ دُونَ تُصْبِحَ لِأَنَّ غَوْرَ الْمَاءِ لَا يَتَسَبَّبُ عَنِ الصَّوَاعِقِ ﴿فَلَنْ تَسْتَطِيعَ لَهُ طَلَبًا﴾ حِيلَةً تُدْرِكُهُ بِهَا ﴿وَأُحِيطَ بِثَمَرِهِ﴾ بِأَوْجُهِ الضَّبْطِ السَّابِقَةِ مَعَ جَنَّتِهِ بِالْهَلَاكِ فَهَلَكَتْ ﴿فَأَصْبَحَ يُقَلِّبُ كَفَّيْهِ﴾ نَدَمًا وَتَحَسُّرًا ﴿عَلَىٰ مَا أَنْفَقَ فِيهَا﴾ فِي عِمَارَةِ جَنَّتِهِ ﴿وَهِيَ خَاوِيَةٌ﴾ سَاقِطَةٌ ﴿عَلَىٰ عُرُوشِهَا﴾ دَعَائِمِهَا لِلْكَرْمِ بِأَنْ سَقَطَتْ ثُمَّ سَقَطَ الْكَرْمُ ﴿وَيَقُولُ يَا﴾ لِلتَّنْبِيهِ ﴿ليتني لم أشرك بربي أحدا﴾ ﴿وَلَمْ تَكُنْ﴾ بِالتَّاءِ وَالْيَاءِ ﴿لَهُ فِئَةٌ﴾ جَمَاعَةٌ ﴿يَنْصُرُونَهُ مِنْ دُونِ اللّٰهِ﴾ عِنْدَ هَلَاكِهَا ﴿وَمَا كَانَ مُنْتَصِرًا﴾ عِنْدَ هَلَاكِهَا بِنَفْسِهِ ﴿هُنَالِكَ﴾ أَيْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ﴿الْوَلَايَةُ﴾ بِفَتْحِ الْوَاوِ النُّصْرَةُ وَبِكَسْرِهَا الْمُلْكُ ﴿لِلّٰهِ الْحَقِّ﴾ بِالرَّفْعِ صِفَةُ الْوَلَايَةِ وَبِالْجَرِّ صِفَةُ الْجَلَالَةِ ﴿هُوَ خَيْرٌ ثَوَابًا﴾ مِنْ ثَوَابِ غَيْرِهِ لَوْ كَانَ يُثِيبُ ﴿وَخَيْرٌ عُقْبًا﴾ بِضَمِّ الْقَافِ وَسُكُونِهَا عَاقِبَةً لِلْمُؤْمِنِينَ وَنَصْبُهُمَا عَلَى التَّمْيِيزِ

ترجمه: اوکله چې ته باغ تاداخل شوې وې نوتا په دې باغ باندې د تعجب (خوښې) په وخت کښې ولې اونه وئيل چې داهم هغه دى کوم چې الله اوغوښتل دالله د مدد نه بغير هيڅ قوت نشته او په حديث شريف کښې دى چې کوم کس ته نېه مال يااولاد عطاکړې شوې وى او هغه ماشاء الله لاقوة الا بالله اووئيل نو په دې مال کښې به ده ته ناخوښه حالت نه راپيښيږى او که ته دا گڼړې چې زه ستا نه په مال او په اولاد کښې کم يم نو څه لرې نه ده چې زما رب مالره ستا د باغ نه

بنه باغ راکړی (انا) ددوؤ مفعولونو په مينځ کښې ضمير فصل دې اوفعسى جواب شرط دې اوپه دې «ستا په باغ» باندې څه اسماني آفت راوليږی حسبان د حسبانة جمع ده (يعنى بجليانى نوهغه باغ به يو صفا هوارميدان پاتې شى، يعنى داسې هوارميدان به ئې کړی چې قدم به پرې نه تينګيږی يابه ئې اوبه اوچې شى غورا (مصدر) په معنى دغائردې اوپه يرسل باندې عاطف دې نه چې په تصبح باندې ځکه چې د اوبو د اوچېدو سبب صواعق (بجليانې) نه وی يابه ته ددې دحاصلولو کوشش هم نه شى کولې يعنى ستا په وس کښې به څه داسې تدبيرهم پاتې نه شى چې دهغې په ذريعه ته (اوبه) دوباره حاصلې کړې اودهغه سړی مال لره آفت راګيرکړو سره دهغه باغ هلاک شول په ثمرکښې تيرشوی دريواړه قراءتونه دی، نو دحسرت اوندامت نه ئې لاسونه مروړل (مګل) په هغه څه چې هغه په باغ باندې (يعنى دهغې په شجرکارئ باندې څه خرچ کړی وواوهغه باغ په خپلو چتونو باندې راپريوتې وو يعنى چې په هغه چوپالونو باندې کوم ئې چې د انګور د پاره جوړکړې ووپه دې طورچې هغه چتونه پريوتل نو دهغې دپاسه هغه د انګورو زنيلې راپريوتلې اووينا ئې شروع کړه چې څه بنه به وه چې ما دخپل رب سره څوک شريک کړې نه وې، يادتنبيه دپاره ده اولمیکن کښې ياءاوتاء دواړه قراءتونه دی اونه ووده دپاره څه جماعت چې دهلاکت په وخت کښې ئې ده مدد کړې وې سوادالله نه اوهغه په خپله هم دهلاکت په وخت کښې خپل مدداونه کړې شو، اوهلته يعنى دقيامت په ورځ به حکومت دالله برحق دپاره وی ولاية دواؤپه فتحې سره په معنى دنصرت اودواؤ په کسرې سره په معنى دحکومت الحق که په رفع سره وی نو دولاية صفت به وی اوکه په جرسره وی نو دلفظ الله صفت به وی هم هغه دثواب ورکولوپه اعتبارسره بهتردې دنور چا د اجرنه، بالفرض که نور اجر ورکونکی وی (اودمؤمنانو دپاره) دانجام په اعتبار سره بهتردې عقبا دقاف په ضمې سره او د قاف سکون سره دواړه درست دی اوددې نصب د تميز دوجې دې ـ

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** لولاتحضيضيه دې دآماده کولو اودرغبت پيدا کولو دپاره دې اذ،دخلت ظرف مقدم دې ماشاءالله موصول او صله مبتدأ محذوف خبردې تقديری عبارت دادې الامر ماشاءالله يا ماشاءالله مبتدأ ده اوددې خبرکائن محذوف دې ـ اوداهم جائزدی چې ما شرطيه وی اوجواب شرط محذوف وی ای ای شیءماشاءالله کان بالله دمحذوف سره متعلق دې اود لا نې نفی جنس خبردې ـ

**قوله:** ان ترن ان حرف شرط ترن مضارع مجزوم واحد مذکرحاضر،نون نه رومبې ی لام کلمه محذوف ده نون وقايه ی ضمير متکلم مفعول اول محذوف دې دنون کسره ددې

علامت دې اودرويت نه رويت قلبي مراد دې اناد دوؤ مفعولونو په مينځ كښې ضمير فصل د تاكيد دپاره دې اقل مفعول ثاني دې مالا اوولدا تميز دې، فعسى جواب شرط دې اوكه چرې د ترن نه رؤيت بصرى مرادوى نو اقل به دحال دوجې نه منصوب وى۔

قوله: يؤتين ددې په اخيره كښې ى ضمير دمتكلم محذوف ده آي يؤتي ايتاء نه فعل مضارع واحد مذكر غائب په معنى د وركول۔

قوله: حسبان گرم كرې شوې بگوله، عذاب حسبان (ن) نه بروزن غفران مصدر دې په معنى دحساب اى مقدار قدره الله تعالى علمها ددې واحد حسبانة دى۔

قوله: تصبح فعل ناقص هى په دې كښې ضمير ددې اسم صعيدا زلقا موصوف سره دصفت خبر۔

قوله: او يصبح عطف په سابقه يرسل باندې دې نه چې په تصبح صعيدا زلقا باندې، كه چرې دحسبان تفسير په مطلق عذاب سره اوكړې شى نو په دې صورت كښې به ديصبح عطف په فتصبح باندې هم درست وى، ځكه چې عذاب الهى باغ لره صفا او هوار ميدان كولو او اوبو لره د ښكته بوتلو سبب كيدې شى غورا په معنى دغائر دې چې حمل درست شى، گنى حمل به مبالغه زيد عدل پشان وى۔

قوله: على ما د يقلب متعلق دې۔

قوله: باوجه الضبط السابقة مطلب دادې چې په ماقبل مذكور ثمر كښې چې كوم درې قراءتونه دى نو هغه دلته هم دى۔

قوله: ندما وتحسرا دې داضافه كول مقصد دا ښودل دى چې ديقلب صله على ځكه درست ده چې يقلب د ندما وتحسرا په معنى كښې دې گنى ديقلب صله على نه ده مستعمل، تحسرا ديقلب دضمير نه حال دې اوخاوية اسم فاعل په معنى داسم مفعول پربوتې خيزعروش دعرش جمع ده دالان دخانكو چهت، دعائم دعامة جمع ده، ستنه، آدانه۔

قوله: ينصرونه جمله دفئة صفت اول دې او من دون الله د كائنة سره متعلق صفت ثاني دې۔

قوله: هنالك خبر مقدم او الولاية مبتدأ مؤخر، او لله خبر ثاني الحق، د الولاية صفت دوجې نه مرفوع دې اوكه الحق باندې كسره اوئيلې شى نو د الله صفت به وى، عقبا تميز دې عقب په دمعنى دبدلې، اوثواب۔

**[ايات توله: ٤٥-٤٦]**

(وَاضْرِبْ) صَيِّرْ (لَهُمْ) لِقَوْمِك (مَثَلَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا) مَفْعُول أَوَّل (كَمَاءٍ) مَفْعُول ثَانٍ (أَنْزَلْنَاهُ مِنَ السَّمَاءِ فَاخْتَلَطَ بِهِ) تَكَاثَفَ بِسَبَبِ نُزُول الْمَاء (نَبَاتُ الْأَرْضِ) أَوْ امْتَزَجَ الْمَاء بِالنَّبَاتِ فَرَوِيَ وَحَسُنَ (فَأَصْبَحَ) صَارَ النَّبَات (هَشِيمًا) يَابِسًا مُتَفَرِّقَة أَجْزَاؤُهُ (تَذْرُوهُ) تَنْشُرهُ وَتُفَرِّقهُ (الرِّيَاحُ) فَتَذْهَب بِهِ الْمَعْنَى شَبَّهَ الدُّنْيَا

بنبات حسن فيهن فتكسر فتفرقه الرياح وفي قراءة الريح ﴿وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ مُّقْتَدِرًا﴾ قادرا ﴿اَلْمَالُ وَالْبَنُوْنَ زِيْنَةُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا﴾ يتجمل بهما فيها ﴿وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ﴾ هي سبحان الله والحمد لله ولا إله إلا الله والله أكبر زاد بعضهم ولا حول ولا قوة إلا بالله ﴿خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَّخَيْرٌ اَمَلًا﴾ أي ما يأمله الإنسان ويرجوه عند الله تعالى

ترجمه: تاسو خپل قوم دپاره ددنيوى ژوند مثال بيان كړئ، مثل د (اضرب په معنى د صير) مفعول اول دې كماء مفعول ثانى دې (ددنياوى ژوند مثال داسې دې) لكه چې مونږ دوريځو نه اوبه اورولې دې (اوبو) دوجې دزمكې شينكې په خپل مينځ كښې داوبو دوريدو دوجې نه گورشو اوشينكې داوبو دوجې نه ښه په خپل مينځ كښې گډود شو ښه بارونقه خانسته شو بيادغه شينكې اوچ شو او داسې چوره چوره شو چې ددې ذرې خورې شوې كومولره چې هوا الوزوى راوالوزوى يعنى ريزه ريزه كولو سره هوا ئ د خان سره والوزوى تردې چې نوم اونشان ئ هم باقى پاتې نه شو، مطلب دادې چې ته ددنيا تشبيه دداسې خانسته شينكى سره وركړه چې هغه په اخيره كښې اوچيدو سره چوره چوره شى اوبيا ئې هوا والوزوى او خواره واره ئې كړى په يو قراءت كښې دالرياح په خاې الريح دې اوالله تعالى دهميشه نه په هرڅيزباندې قدرت لرونكې دې مال اواولاد ددنيوى ژوندرونق دې په دنياكښې ددې دواړو نه زينت اوښكله حاصليږى اوباقى پاتې كيدونكې اعمال صالحه دى هغه سبحان الله والحمدالله ولااله الا الله والله أكبردى اوبعضې حضراتو ورسره دلا حول ولا قوة الا باالله اضافه كړې ده دا اعمال ستا درب په وړاندې دثواب په اعتبارسره هم بهتردى اودامید په اعتبارسره هم يعنى دكوم څيزچې انسان طمع اوامید ساتى هغه دالله تعالى سره دى۔

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: كماء كښې كاف په معنى دمثل دې اود اضرب مفعول ثانى دې اومثل الحيوة الدنيا مفعول اول دې او اضرب په معنى د صيردې اوداهم كيدې شى چې كماء دهى مبتدأ محذوف خبروى، او انزلناه جمله دماء صفت۔

قوله: الهشيم (ض) هشماريزه ريزه كول هشم په معنى دمهشوم روي (س) رواتروتازه كيدل ښخكلې نظاره (خانسته منظر والا كيدل) وتفرقه كښې عطف تفسيرى دى شه فعل امردې اودې فاعل نبى ﷺ دې زينة مصدرپه معنى داسم مفعول دې، چې په كښې واحدجمع تثنيه ټول برابر دى ددې وجې نه زينة دالمال او د البنون ددواړو خبرواقع شوې دې داضرب تفسير په صيرسره كولوكښې دې طرف ته اشاره ده چې د اضرب استعمال كله دمثل سره وى نومتعدى به دوو مفعولوته وى، په دې مثال كښې ددنيوى ژوند د ابتداء او د انتهاء

په باران کښې دراختونکې گیاه دابتداء اوانتهاء سره تشبیه ورکړې شوې ده ـ
قوله: المال والبنون داسې قیاس دې چې کبری اونتیجه ئې محذوف دی دقیاس ترتیب دادې: المال والبنون زينة الحيوة الدنيا، وكل ماهو زينتها فهو هالك فالمال والبنون هالكان بیا به اونیلې شی، كل ماهو هالك لايفتخر به، فالمال والبنون لايفتخر بهما.
قوله: الباقيات صفت دې اوددې موصوف محذوف دې اوهغه الكلمات یاالاعمال دې خیراسم تفضیل دې خوپه خپله حقیقی معنی کښې نه دې مستعمل شوې شارح بسبب النزول وئیلو سره ئې اشاره اوکړه چې په کښې باسببیه ده ـ
قوله: امتزج الماء سره ئې د اختلط دویم تفسیرته اشاره اوکړه اوامتزاج چونکې دجانبینونه وی لهذا د امتزاج نسبت داوبوپه ځاې د (نبات) ته طرف درست دې، اگرچې عرف اواستعمال ددې برعکس دې په عرف اولغت کښې باءپه کثیرغیرطاری باندې داخلیږی لکه چې امتزج الماء باللبن اوبۀ په پیئوکښې گډې شوې، نه چې پئې په اوبوکښې گډشول، اودلته په کثیرطاری باندې باداخله ده،داداوبوپه کثرت کښې دمبالغې دپاره دې که چرته پئې لږوی اواوبۀ زیاتې وی نووایوبه امتزج اللبن بالماء پئې په اوبوکښې گډ شول،هم داسې په مذکوره مثال کښې دا ښودل دی مقصودچې اوبۀ دومره زیاتې دی گویاچې هم هغه اصل دی ـ
قوله: املاء د املا تفسیرئې په ماياملہ سره کولوکښې دې خبرې طرف ته اشاره اوکړه چې لملا مصدر په معنی داسم مفعول دمال په معنی کښې دې ـ

**[اياتونه: ٤٧-٤٩]**

(و) اذكر (يوم نسير الجبال) يذهب بها عن وجه الارض فتصير هباء منبثا وفي قراءة بالنون وكسر الياء ونصب الجبال (وترى الارض بارزة) ظاهرة ليس عليها شيء من جبل ولا غيره (وحشرناهم) المؤمنين والكافرين (فلم نغادر) نترك (منهم احدا) (وعرضوا على ربك صفا) حال اي مصطفين كل امة صف ويقال لهم (لقد جئتمونا كما خلقناكم اول مرة) اي فرادى حفاة عراة غرلا ويقال لمنكري البعث (بل زعمتم) ان مخففة من الثقيلة اي انه (لن نجعل لكم موعدا) للبعث (ووضع الكتاب) كتاب كل امرئ في يمينه من المؤمنين وفي شماله من الكافرين (فترى المجرمين) الكافرين (مشفقين) خائفين (مما فيه ويقولون) عند معاينتهم ما فيه من السيئات (يا) للتنبيه (ويلتنا) هلكتنا وهو مصدر لا فعل له من لفظه (مال هذا الكتاب لا يغادر صغيرة ولا كبيرة) من ذنوبنا (الا احصاها) عدها واثبتها تعجبوا منه في ذلك (ووجدوا ما عملوا حاضرا) مثبتا في كتابهم (ولا يظلم ربك احدا) لا يعاقبه بغير جرم ولا ينقص من ثواب مؤمن

ترجمه: او یاده کړئې هغه ورځ چې هغه الله به روان کړی غرونولره یعنی الله تعالی به غرونولره

دمخ دزمکې نه رااوباسي اوغرونه به دوړه شي اوپه يوقراءت کښې نسيردنون اوى په کسرې سره دې اودجبال په نصب سره اواې مخاطب ته به زمکې لره اوګورې چې يوهوارميدان دې چې په دې به غرونه وغيره هيڅ هم نه وى اومونږ به ټولو انسانانولره که هغه مؤمنان وى اوکه کافران راجمع کړو په دوى کښې به يو هم باقي پرې نږدو اوټول په ټول به ستادرب په وړاندې صف بسته حاضرکړې شى صفاحال دې اومعنى کښې دمصطفين دې دهرامت به يوصف وى او دوى ته به اوئيلې شى چې اوګورئ اخېرهم مونږته راغلئ څنګه چې مونږ به رومبى ځل تاسو پيداکړې وئ ينبعى تن تنها ياخپې ابله خپې برېندلغړ،ناسنته،اومنکرين بعثت ته به اوئيلې شى تاسوبه داګنړل چې مونږ به ستاسو بعثت دپاره څه وقت موعود نه مقرروو ان مخففه عن المثقله دې يعنى انه اوعمل نامه به مخامخ کېخودلې شى يعنى د هرکس عمل نامه که مومن وى نوپه ښى لاس کښې اوکه کافروى نوپه ګس لاس کښې به ورکړې شى اوته به اې مخاطب اوګورئ مجرمانو کافرانو لره چې د هغه تحريرنه کوم چې به په هغې کښې وى ويرېږى به اوپه دې اعمال نامه کښې ليکلې شوى بداعمالو لره کتلوسره به وائي هائې زمونږ بدقسمتى ويلتنا د هلکتنا په معنى کښې دې اوويل داسې مصدردې چې ددې فعل (ددې د مادې نه نه دې مستعمل شوې دا(عمل نامه) څنګه عجيبه کتاب دې چې ده نه څه وړه ګناه پرېښې ده اونه څه غټه ؟يعنى هره ګناه ئې شميرولو سره قلمبندکړې ده اومجرمان به دعمل نامه دې کيفيت نه تعجب کوى اوچې څه هغوى کړى وى هغه به موجوداومومى يعنى په خپله عمل نامه کښې به ئې ليکلې شوى اوموى اوستا رب به په چاباندې ظلم نه کوى يعنى د نه ګړې ګناه سزابه چاتانه ورکوى اونه به دچا مومن اجرکم کړى ـ

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** قوله تعالى حشرناهم وعرضوا ووضع مذکوره درې واړه افعال دماضى صيغې دى خوپه معنى داستقبال دى،د يقينى وقوع طرف ته اشاره کولودپاره ماضى راوړلې شوې ده د لم نغادر عطف په حشرنا باندې دې ځکه چې لم نغادرد لم دوجې نه دماضى منفى په معنى کښې دې۔

**قوله:** صفاً، دعرضوا دضميرنه حال دې دمصدردوجې نه په معنى دجمع دې د يسيرتفسيرپه مذهب مها سره کولو کښې اشاره ده چې يسيرمتعدى بالباء دې اوالجبال ددې مفعول اول دې ـ

**قوله:** نغادر ددې تفسيرپه نترك سره کولوکښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې نغادرباب مفاعله اګرچې دطرفين نه دفعل تقاضه کوى خودلته دطرفين نه فعل مرادنه دې بلکه غادرپه معنى دغدردې، اى نترك او عاقبت اللص دقبيلې نه دې ـ

**قوله:** مصطفين سره ئې اشاره اوکړه چې صفا اگرچې مفرددې خو دمصدر دوجې نه په معنیٰ دجمع دې۔

**قوله:** کماء یاخومفعول مطلق دې یادضمیرنه حال دې، په رومبی صورت کښې به کماء د مصدر محذوف صفت وی ای لجئتنا کائنا کماءالخ.

**قوله:** ان لن دادوه حروف دی اول ان مخففه عن المثقله دې ددې اسم ضمیرشان محذوف دې ای انه اوجمله لن نجعل ددې خبردې دویمه کلمه لن حرف ناصب دې د ان نون په لن کښې مدغم کړې شواوپه قرآنی رسم الخط کښې نون حذف کړې شولکم دنجعل مفعول ثانی دې اوموعدامفعول اول دې۔

**قوله:** کتاب کل امرءمفسرعلام دالکتاب تفسیرپه کتاب کل امرءسره کولوکښې اشاره اوکړه چې د الکتاب الف لام دمضاف الیه په عوض کښې دی۔

**قوله** مشفقین د دې فسیرپه خائفین سره د کولو مقصدتعین دمعنی دپاره دې ځکه چې مشفقین دمختلفو معنودپاره استعمالیږی دلته دخوف معنی مراده ده، حسن اوابن کثیر او ابوعمروتسیرمجهول لوستلې دې اوالجبال ئې نائب فاعل گرزولې دې اوابن محیص رحمه الله تسیرالجبال لوستلې دې اوالجبال ئې فاعل گرزولې دې،اوباقی حضراتو نسیرالجبال لوستلې دې اوجبال ئې مفعول گرزولې دې، اوالله تعالی ئې فاعل گرزولې دې یادساتې چې نسیر،دفعل محذوف اذکرظرف دې۔

**قوله:** مال هذا الکتاب کښې مااستفهامیه مبتدأ ده دااستفهام توبیخی دې اولام جاره دې هذااسم اشاره اوالکتاب مشارالیه دلهذالام دلته قرآنی د رسم الخط مطابق دهذانه جدالیکلې کیږی په مصحف عثمانی کښې هم داسې لیکلې شوی دی۔

**قوله:** صغیرة ولاکبیرة موصوف هنة یافعلة محذوف دې معصیة هم مقدرمنلې شو۔

**[ایاتونه:۵۰-۵۲]**

(وَإِذْ) مَنْصُوب بِاذْكُرْ (قُلْنَا لِلْمَلَائِكَةِ اسْجُدُوا لِآدَمَ) سُجُود انْحِنَاء لَا وَضْع جَبْهَة تَحِيَّة لَهُ (فَسَجَدُوا إِلَّا إِبْلِيسَ كَانَ مِنَ الْجِنِّ) قِيلَ هُوَ نَوْع مِنَ الْمَلَائِكَة فَالِاسْتِثْنَاء مُتَّصِل وَقِيلَ هُوَ مُنْقَطِع وَإِبْلِيس هُوَ أَبُو الْجِنّ فَلَهُ ذُرِّيَّة ذُكِرَتْ مَعَهُ بَعْد وَالْمَلَائِكَة لَا ذُرِّيَّة لَهُمْ (فَفَسَقَ عَنْ أَمْرِ رَبِّهِ) أَيْ خَرَجَ عَنْ طَاعَته بِتَرْكِ السُّجُود (أَفَتَتَّخِذُونَهُ وَذُرِّيَّتَهُ) الْخِطَاب لِآدَم وَذُرِّيَّته وَالْهَاء فِي الْمَوْضِعَيْنِ لِإِبْلِيس (أَوْلِيَاءَ مِنْ دُونِي) تُطِيعُونَهُمْ (وَهُمْ لَكُمْ عَدُوٌّ) أَيْ أَعْدَاء حَال (بِئْسَ لِلظَّالِمِينَ بَدَلًا) إِبْلِيس وَذُرِّيَّته فِي إِطَاعَتهمْ بَدَل إِطَاعَة اللّٰه (مَا أَشْهَدْتُهُمْ) أَيْ إِبْلِيس وَذُرِّيَّته (خَلْقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَلَا خَلْقَ أَنْفُسِهِمْ) أَيْ لَمْ أُحْضِر بَعْضهمْ خَلْق بَعْض (وَمَا كُنْتُ مُتَّخِذَ الْمُضِلِّينَ) الشَّيَاطِين (عَضُدًا) أَعْوَانًا فِي الْخَلْق فَكَيْفَ تُطِيعُونَهُمْ (وَيَوْمَ) مَنْصُوب بِاذْكُرْ

(يقول) بالياء والنون (نادوا شركائي) الاوثان (الذين زعمتم) ليشفعوا لكم بزعمكم (فدعوهم فلم يستجيبوا لهم) لم يجيبوهم (وجعلنا بينهم) بين الاوثان وعابديها (موبقا) واديا من اودية جهنم يهلكون فيه جميعا وهو من وبق بالفتح هلك (ورأى المجرمون النار فظنوا) اي ايقنوا (انهم مواقعوها) اي واقعون فيها (ولم يجدوا عنها مصرفا) معدلا

**ترجمه:** واذ قلنا دا داذكرفعل محذوف دوجې نه محلامنصوب دې اوچې كله مونږ فرشتو ته حكم اوكړوچې تاسوآدم ته سجده اوكړئ يعنى دآدم عليه السلام دتعظيم دپاره دهغه د وړاندې ښكته شئ نه چې په زمكه باندې تندى كيږدئ چنانچه دابليس نه علاوه ټولوسجده اوكړه هغه (ابليس) دجناتو(پېريانو)نه وو. وئيلې شوى دى چې جنات د ملائكو د قسمونونه يوقسم دې، نوپه دې صورت كښې به مستثنى متصل وى او داهم وئيلې شوى دى چې الاابليس مستثنى منقطع ده اوابليس دجناتوجداعلى دى دده ذريت هم شته چې دهغې ذكرپه روستوراتلونكوآياتونوكښې رروان دې، اودملائكوذريت نشته هم دې سبب يعنى دجنى كيدلودسبب نه ده دخپل رب دحكم نافرمانى اوكړه يعنى په ترك كولودسجدې دې دخپل رب داطاعت نه خارج شو آيا بيا هم تاسوده لره اودده ذريت لره داخطاب آدم عليه السلام اودده ذريت ته دې زما نه سوا دوستان جوړوئ يعنى ددوى اطاعت كوئ حالانكه دوى ستاسو دښمنان دى عدوپه معنى داعداء دې اوحال دادې چې دا د ظالمانودپاره ډيربد بدل دې يعنى دالله تعالى داطاعت په ځاې دابليس اودده دذريت اطاعت كول نهايت بد بدل دې، اومادوى لره يعنى ابليس اودده ذريت لره د اسمانو او د زمكې دتخليق په وخت او خپله ددوى دتخليق په وخت حاضر كړى نه دى يعنى په خپله په دوى كښې د بعضو دتخليق په وخت كښې په دوى چالره حاضر كړى نه دى اومونږه گمراه كونكو لره خپل مددگار جوړونكى نه يو يعنى په تخليق كښې خپل معاون جوړونكى نه يو نو بيا تاسو ددوى اطاعت ولې كوئ ؟ اويوم د اذكر محذوف دوجې نه منصوب دې يقول په ى اون سره دې او په كومه ورځ به چه هغه اوائي چې ستاسو په خيال كښې چې كوم زماشريكان وو يعنى بوتان هغوى راوبلئ دې دپاره چې ستاسو په خيال كښې ستاسوشفاعت اوكړى نودوى به هغوى راوبلى خوپه هغوى كښې به څوك هم جواب ورنه كړى اوددوى يعنى دبتانو او دهغوى د عابدينو په مينځ كښې به ددزخ دكندو يوه كنده متعينه كړونو هغوى ټول به په دې كښې هلاك شى موبقا دوبق بالفتح نه مشتق دې په معنى دهلك اومجرمان به جهنم لره په كتلوسره پوهه شى يقين به اوكړى چې دوى په دې كښې ټوټونكى دى يعنى په دې كښې به داخليږى اوددې نه دبچ كيدو ځاې به نه مومى ـ

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** قبيلة له دا داسجدوامعمول دې،بعضې حضراتووئيلې دى چې كان په معنى دصاردي

اى صار من الجن، كان من الجن جمله مستانفه ده او دلم سجد علت دي

**قوله:** ففسق عن امر ربه فا تعليليه او سببيه دواړه كيدې شي فسق په معنى دخروج دې عرب وائي فسقت الرطبة عن قشرها چې كله كهجوره دخپل پوستكئ نه راوځي دغه رنګ داهم وائي فسقت الفارة من جحرها مګه دخپل سوړى نه بهر راوتله (ض ن ک) ددې اصطلاحى معنى دحق او صلاح د لارې نه وتل، نافرمانه كيدل، دحدود شريعت نه وتل ـ

**قوله:** هم نوع من الملائكة دا دمستثنى متصل توجيه ده اوابليس ابو الجن دا دمستثنى منقطع توجيه ده افتتخذونه كښې همزه دانكار او داظهار حيرت دپاره ده او فاء دتعقيب دپاره ده د ذريته عطف دتتخذونه په ضمير باندې دې مجاهد وئيلي دى چې دابليس په ذريت كښې لاقس او ولهان دى ددې دواړو كار په طهارت كښې وسوسې اچول دى ـ

**قوله:** ذرية دا په ابو الجن باندې تفريع ده د فسق تفسير په خرج سره كولو كښې ئ د لغوى معنى طرف ته اشاره كړې ده او دعن طاعته بترك السجود اضافه كولو كښې اصطلاحى معنى طرف ته اشاره كړې ده ـ

**قوله:** افتتخذونه همزه په محذوف باندې داخل دې فا عاطفه ده معطوف عليه فعل محذوف دې، استفهام توبيخى دې تقديرى عبارت دا دې ابعد ما حصل منه ما حصل من الاباء والفسق يليق منكم اتخاذه وذريته اولياء ـ

**قوله:** من دونى دمحذوف سره متعلق كيدو سره داولياء صفت دې د من دونى تعلق د تتخذوا سره هم كيدې شي وهم لكم عدو دمفعول يا فاعل نه حال دې عدو دمصدر كيدو دوجې نه په معنى اعداء دې للظالمين دبدلا سره متعلق دې او بدلا دبئس دفاعل د ضمير مستتر هونه تميز واقع دې او ابليس و ذريته دمخصوص بالذم محذوف بيان دې تقديرى عبارت دا دې بئس البدل بدلا هو ابليس وذريته،

**قوله:** شركائى شركاء په قرينه د زعمتو دواړه مفعوله محذوف دى اى زعمتوهم شركائى ـ

**قوله:** رءى كوفيان د رءى په آخره كښې يا ليكى او بصريان نه ليكى، د رآى اصل رأى دې ياء متحرك ماقبل مفتوح دوجې نه په الف باندې بدله شوه نو رآشو په عربئ ژبه كښې دكوفيانو رسم الخط رائج دې لهذا درآ په اخېره كښې ياء او ليكلې شوه ـ

**قوله:** مواقعوا اسم فاعل جمع مذكر په اصل كښې مواقعون وو، داضافت دوجې نه په اخېره كښې نون اوغورزولې شو. ديو بل سره نزدې مصدر مواقعة دې، مصرف ظرف مكان دې دواپس كيدو ځاې ـ

[ایاتونه: ۵۴ - ۵۹]

(وَلَقَدْ صَرَّفْنَا) بَيَّنَّا (فِي هَذَا الْقُرآنِ لِلنَّاسِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ) صِفَة لِمَحْذُوفٍ أَيْ مَثَلًا مِن جِنْسِ كُلِّ مَثَلٍ لِيَتَّعِظُوا (وَكَانَ الْإِنْسَانُ) أَيِ الْكَافِر (أَكْثَرَ شَيْءٍ جَدَلًا) خُصُومَة فِي الْبَاطِلِ وَهُوَ تَمْيِيز مَنْقُول مِن اسْم كَانَ الْمَعْنَى وَكَانَ جَدَلُ الْإِنْسَانِ أَكْثَرَ شَيْءٍ فِيهِ (وَمَا مَنَعَ النَّاسَ) أَيْ كُفَّار مَكَّة (أَنْ يُؤْمِنُوا) مَفْعُول ثَانٍ (إِذْ جَاءَهُمُ الْهُدَى) الْقُرآن (وَيَسْتَغْفِرُوا رَبَّهُمْ إِلَّا أَنْ تَأْتِيَهُمْ سُنَّةُ الْأَوَّلِينَ) فَاعِل أَيْ سُنَّتُنَا فِيهِمْ وَهِيَ الْإِهْلَاكُ الْمُقَدَّر عَلَيْهِمْ (أَوْ يَأْتِيَهُمُ الْعَذَابُ قُبُلًا) مُقَابَلَة وَعِيَانًا وَهُوَ الْقَتْلُ يَوْمَ بَدْرٍ وَفِي قِرَاءَة بِضَمَّتَيْنِ جَمْع قَبِيل أَيْ أَنْوَاعًا (وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِينَ إِلَّا مُبَشِّرِينَ) لِلْمُؤْمِنِينَ (وَمُنْذِرِينَ) مُخَوِّفِينَ لِلْكَافِرِينَ (وَيُجَادِلُ الَّذِينَ كَفَرُوا بِالْبَاطِلِ) بِقَوْلِهِمْ أَبَعَثَ اللّٰهُ بَشَرًا رَسُولًا وَنَحْوه (لِيُدْحِضُوا بِهِ) لِيُبْطِلُوا بِجِدَالِهِمْ (الْحَقَّ) الْقُرآن (وَاتَّخَذُوا آيَاتِي) أَيِ الْقُرآن (وَمَا أُنْذِرُوا) بِهِ مِنَ النَّار (هُزُوًا) سخرية (وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ ذُكِّرَ بِآيَاتِ رَبِّهِ فَأَعْرَضَ عَنْهَا وَنَسِيَ مَا قَدَّمَتْ يَدَاهُ) مَا عَمِلَ مِنَ الْكُفْرِ وَالْمَعَاصِي (إِنَّا جَعَلْنَا عَلَى قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً) أَغْطِيَة (أَنْ يَفْقَهُوهُ) أَيْ مِنْ أَنْ يَفْهَمُوا الْقُرآن أَيْ فَلَا يَفْهَمُونَهُ (وَفِي آذَانِهِمْ وَقْرًا) ثقلا فلا يسمعونه (وَإِنْ تَدْعُهُمْ إِلَى الْهُدَى فَلَنْ يَهْتَدُوا إِذًا) اي بالجعل المذكور (أَبَدًا) (وَرَبُّكَ الْغَفُورُ ذُو الرَّحْمَةِ لَوْ يُؤَاخِذُهُمْ) فِي الدُّنْيَا (بِمَا كَسَبُوا لَعَجَّلَ لَهُمُ الْعَذَابَ) فِيهَا (بَلْ لَهُمْ مَوْعِدٌ) وَهُوَ يَوْم الْقِيَامَة (لَنْ يَجِدُوا مِنْ دُونِهِ مَوْئِلًا) مَلْجَأً (وَتِلْكَ الْقُرَى) أَيْ أَهْلُهَا كَعَادٍ وَثَمُودَ وَغَيْرِهِمَا (أَهْلَكْنَاهُمْ لَمَّا ظَلَمُوا) كَفَرُوا (وَجَعَلْنَا لِمَهْلِكِهِمْ) لِإِهْلَاكِهِمْ وفي قراء ة بفتح الميم اي لهلاكهم (موعدا)

**ترجمه:** اوواقعه داده چې مونږ په دې قرآن کښې هرقسمه عمده مضامين په مختلف اندازسره بيان کړی دی من کل مثل دموصوف محذوف مثلا صفت دې يعنی دهرقسمه مثالو دې د پاره نه چې دوی نصيحت حاصل کړی،او کافر انسان ډيرجهګړالودې يعنی خصومت کښې باطل طريقه اختياروی جدلا دکان داسم نه منقوليدلوسره تميزدې، تقديری عبارت دادې وکان جدل الانسان اکثرشئ فيه اوخلقولره يعنی کفارمکه لره دايمان راوړونه اودخپل پروردګارنه معافی طلب کولونه چې هغوی ته د هدايت قرآن رسيدلو نه پس صرف دې انتظار منع کړی دی چې دوی سره هم د مخکښې خلقوپشان معامله پيښه شي يا دا چه عذاب ددوی وړاندې اودريږی، سنة الاولين د تاتيهم فاعل دې يعنی چې کوم قانون دقدرت زمونږ د دوی باره کښې دې، اوهغه هلاکت دې کوم چې د دوی باره مقدر شوې دې ان يؤمنوا (دمنع) مفعول ثانی دې قبلا په معنی روبرو د نظر مخې ته اوهغه عذاب په ورځ دبدردقتل په شکل کښې پيښ شو ،اوپه يوقراءت کښې قبلا دقاف او د باء په ضمې سره کوم چې دقبيل جمع دی، دانواع په معنی کښې او مونږ رسولانو لره مؤمينو ته بشارت ورکونکې او کافرانولره ويرونکی راليږلو، اوکافران داسې خبرې کوی چې آيا الله تعالی بشرلره رسول جوړ کړو او

راوي لېږلو؟ ناحقه جهګړې کوي چې هغوی په باطله طریقې سره حق قرآن لره ښکته کړي اوهغوی زمونږ آیاتونو قرآن پوري او هغه عذاب نارد کوم نه چې ویرولې شو توقې او کړې او د هغه چا نه غټ ظالم بل څوک دې چاته چې د ده درب په آیاتونو سره نصیحت او کړې شو بیا هغه دهغې نه مخ واوړي؟ او ده هغه کارونولره کوم چې ده په خپل لاسونو باندې مخکښې لیږلی دی هیر کړل یعنی هغه د کفر او دمعصیت اعمال کومولره چې ده کړی دی بیشکه چې مونږ ددوی په زړونو باندې پردې اچولی دی، دې خبرې نه چې دوی په قرآن باندې پوهه شی دې وجې نه دوی په قرآن نه پوهیږی او ددوی غوګونو لره موکاڼه کړی دی چې ددې وجې نه دوی قرآن لره نه اوری او که چرې ته دوی لره هدایت طرف ته راوبلې نو دوی به هیڅکله په راه راست رانه شي یعنی دجعل مذکوردوجې نه او هغه په قلوب باندې پردې دی اوپه غوګونوکښې ثقل (کوڼروالې) دې او ستا پروردګار دیر معاف کونکې او رحم کولووالادې که چرې هغه په دنیاکښې ددوی دکړوپه سبب مؤاخذه او کړه نو فورا به دوی باندې په دنیاکښې عذاب نازل کړی بلکه دوی لره یوه وعده ده او هغه دقیامت ورځ ده او دوی به ددې نه علاوه هیڅ ځائ دپناه تهکانه اونه مومی او مونږ هغه کلو لره یعنی دهغې باشندګانولره مثلا عاد او ثمود وغیره لره په هغه وخت هلاک کړل کله چې هغوی ناانصافی اوکړ کفرئ اوکړواومونږدهغوی هلاکت لره یو وخت مقرر کړې وو یعنی د هغوی دهلاکولو دپاره اوپه یوقراءت دمیم په فتحې سره دې یعنی دهغوی دهلاکت دپاره

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** لقدصرفنا صرف تصریفا په مختلف طریقوسره بیانول اوپه مختلف اندازسره پوهه کول، من کل مثل کښې من زائده دې، من کل مثل دمثلا محذوف صفت دې اود صرفنا مفعول به دې تقدیری عبارت دادې صرفنا في هذاالقرآن مثلا كائنامن كل مثل،

**قوله:** جدلاداکثرشئ دنسبت نه تمیزدې، دکان داسم نه منقول دې، ای کان جدال الانسان اكثرشئ فيه اي جداله اكثرمن كل مجادل منه فعل ماضي (ف) الناس مفعول اول اوان يؤمنواجمله په تاویل دمصدرسره مفعول ثانی ددې نه مخکښې من محذوف دې۔

**قوله:** اذجاءهم د يؤمنواظرف دې يستغفروا عطف په يؤمنو اباندې دې۔

**قوله:** ان تأتيهم په تاویل دمصدرسره دمنع فاعل دې انتظارمضاف محذوف دې اوان تأتيهم مضاف اليه دې کوم چې دمضاف قائم مقام دې اود يأتيهم عطف په تأتيهم باندې دې۔

**قوله:** قبلا، دالعذاب نه حال دې په معنی دمخامخ اوپه یوقراءت کښې قبلا دې کوم چې دقبيل جمع ده په معنی دانواع اوداقسام څنګه چې سبل دسبيل جمع ده په معنی دانواع

**قوله:** مبشرين و منذرين، دمرسلين نه حال دې د يجادل مفعول المرسلين محذوف دې ليدحضوا د يجادل سره متعلق دې ادحاض (افعال) خویول دیکه کول۔

**قوله:** مـا انذروا كښي ما موصوله ده او انذروا جمله صله به عائد محذوف دې يا مـا مصدريه .. د انذارهم په معنى كښې د انذروا عطف په آياتي باندې دې هزوا، د اتخذوا مفعول ثاني دې او ايمتي وما انذروا جمله عاطفه د اتخذوا مفعول اول دې ـ

**قوله:** من لفظا مفرد دې او معنا جمع دې لهذا دې طرف ته د واحد او جمع دواړه قسمه ضميرونه راجع كيدې شي څنګه چې وړاندې پينځه ضميرونه د مفرد او پينځه د جمع د من طرف ته راجع كيږي ـ

**قوله:** اكنة د ادكنان جمع ده په معنى د پردې دا جمله د اعراض او دنسيان علت دې ـ

**قوله:** بالجعل المذكور دې جملې اضافه د اذا د مفهوم د تعيين د پاره ده ـ

**قوله:** ربك مبتدأ الغفور خبر اول ذوالرحمة خبر ثاني ـ

**قوله:** موئل ظرف دې په معنى د ځاى د پناه (ض) وال يئل وألاوال اليه، پناه ئ واغستله ـ

**قوله:** تلك القرى مبتدأ اهلكناهم خبر او تلك القرى د فعل محذوف د وجې نه منصوب هم كيدې شي په دې صورت كښې به د باب اشتغال نه وى تقديرى عبارت به داوى اهلكنا تلك القرى اهلكناهم.

**قوله:** مهلك مصدر ميمي دې، هلا كول يا ظرف زمان دې د هلاكت وخت مهالك ءي جمع ده مهلك كښي درې قراءتونه دى ① د ميم ضمه او د لام فتحه مُهلَك ② د ميم او د لام دواړو فتحه مَهلَك (۳) د ميم فتحه او لام مكسور مَهلِك.

**[ايا تونه: ٦٠-٦٥]**

(و) اذكر (إذ قَالَ موسى) هو بن عِمْرَان (لِفَتَاهُ) يُوشَع بْن نُون كَانَ يَتْبَعهُ وَيَخْدمهُ وَيَأْخُذ عَنْهُ الْعِلْم (لَا أَبْرَح) لَا أَزَال أَسِير (حَتَّى أَبْلُغَ مَجْمَعَ الْبَحْرَيْنِ) مُلْتَقَى بَحْر الرُّوم وَبَحْر فَارِس مِمَّا يَلِي الْمَشْرِق أَيْ الْمَكَان الْجَامِع لِذَلِكَ (أَوْ أَمْضِيَ حُقُبًا) دَهْرًا طَوِيلًا فِي بُلُوغه إنْ بَعُدَ (فلما بلغا مجمع بينهما) بين البحرين (نسيا حوتهما) نَسِيَ يُوشَع حَمْله عِنْد الرَّحِيل وَنَسِيَ مُوسَى تَذْكِيره (فَاتَّخَذَ) الْحُوت (سَبِيله فِي الْبَحْر) أَيْ جَعَلَهُ بِجَعْلِ اللَّه (سَرَبًا) أَيْ مِثْل السَّرَب وَهُوَ الشَّقّ الطَّوِيل لَا نَفَاذ لَهُ وَذَلِكَ أَنَّ اللَّه تَعَالَى أَمْسَكَ عَنْ الْحُوت جَرْي الْمَاء فَانْجَابَ عَنْهُ فَبَقِيَ كَالْكُوَّةِ لَمْ يَلْتَئِم وَجَمَدَ مَا تَحْته مِنْهُ (فَلَمَّا جَاوَزَا) ذَلِكَ الْمَكَان بِالسَّيْرِ إلَى وَقْت الْغَدَاء مِنْ ثَانِي يَوْم (قَالَ) مُوسَى (لِفَتَاهُ آتِنَا غَدَاءَنَا) هُوَ مَا يُؤْكَل أَوَّل النَّهَار (لَقَدْ لَقِينَا مِنْ سَفَرنَا هَذَا نَصَبًا) تعبا وَحُصُوله بَعْد الْمُجَاوَزَة (قَالَ أَرَأَيْت) أَيْ تَنَبَّهْ (إذْ أَوَيْنَا إلَى الصَّخْرَة) بِذَلِكَ الْمَكَان (فَإِنِّي نَسِيت الْحُوت وَمَا أَنْسَانِيهِ إلَّا الشَّيْطَان) يُبْدَل مِنْ الْهَاء (أَنْ أَذْكُرهُ) بدل اشتمال أَيْ أَنْسَانِي ذِكْره (وَاتَّخَذَ) الْحُوت (سَبِيله فِي الْبَحْر عَجَبًا) مَفْعُول ثَانٍ أَيْ يَتَعَجَّب مِنْهُ مُوسَى وَفَتَاهُ لِمَا تَقَدَّمَ فِي بَيَانه (قَالَ) موسى (ذَلِكَ) أَيْ فَقْدنَا الْحُوت (مَا) أي الذي (كُنَّا نَبْغِ) نَطْلُبهُ فَإِنَّهُ عَلَامَة لَنَا عَلَى وُجُود مَنْ نَطْلُبهُ

﴿فَارْتَدَّا﴾ رَجعا ﴿عَلَىٰ آثَارِهِمَا﴾ يَقُصَّانِها ﴿قَصَصًا﴾ فَأتيا الصخرة ﴿فَوَجَدَا عَبْدًا مِنْ عِبَادِنَا﴾ هُوَ الخضر ﴿آتَيْنَاهُ رَحْمَةً مِنْ عِنْدِنَا﴾ نُبُوَّة فِي قَوْل وَوِلَايَة فِي آخر وَعَلَيْهِ أَكْثَر الْعُلَمَاء ﴿وَعَلَّمْنَاهُ مِنْ لَدُنَّا﴾ مِن قِبَلنا ﴿عِلْمًا﴾ مَفْعُول ثَانٍ أَيْ مَعْلُومًا مِنَ الْمُغَيَّبَات رَوَى الْبُخَارِيّ حَدِيث إنَّ مُوسَى قَامَ خَطِيبًا فِي بَنِي إسْرَائِيل فَسُئِلَ أَيّ النَّاس أَعْلَم فَقَالَ أَنَا فَعَتَبَ اللّٰه عَلَيْهِ إذْ لَمْ يَرُدّ الْعِلْم إلَيْهِ فَأَوْحَى اللّٰه إلَيْهِ إنَّ لِي عَبْدًا بِمَجْمَعِ الْبَحْرَيْنِ هُوَ أَعْلَم مِنْك قَالَ مُوسَى يَا رَبّ كَيْف لِي بِهِ قَالَ تَأْخُذ مَعَك حُوتًا فَتَجْعَلهُ فِي مِكْتَل فَحَيْثُمَا فَقَدْت الْحُوت فَهُوَ ثَمَّ فَأَخَذَ حُوتًا فَجَعَلَهُ فِي مِكْتَل ثُمَّ انْطَلَقَ وَانْطَلَقَ مَعَهُ فَتَاهُ يُوشَع بْن نُون حَتَّى أَتَيَا الصَّخْرَة وَوَضَعَا رَأْسَيْهِمَا فَنَامَا وَاضْطَرَبَ الْحُوت فِي الْمِكْتَل فَخَرَجَ مِنْهُ فَسَقَطَ فِي الْبَحْر ﴿فَاتَّخَذَ سَبِيلَهُ فِي الْبَحْرِ سَرَبًا﴾ وَأَمْسَكَ اللّٰه عَنْ الْحُوت جِرْيَة الْمَاء فَصَارَ عَلَيْهِ مِثْل الطَّاق فَلَمَّا اسْتَيْقَظَ نَسِيَ صَاحِبه أَنْ يُخْبِرهُ بِالْحُوتِ فَانْطَلَقَا بَقِيَّة يَوْمهمَا وَلَيْلَتهمَا حَتَّى إذَا كَانَا مِنْ الْغَدَاة قَالَ مُوسَى لِفَتَاهُ ﴿آتِنَا غَدَاءَنَا﴾ إلَى قَوْله ﴿وَاتَّخَذَ سَبِيلَهُ فِي الْبَحْرِ عَجَبًا﴾ قَالَ وَكَانَ لِلْحُوتِ سَرَبًا وَلِمُوسَى وَلِفَتَاهُ عَجَبًا إلخ

**ترجمه:** او هغه وخت يادكړه چې كله موسى عليه السلام كوم چې دعمران خوي دي خپل خادم يوشع بن نون ته كوم چې دموسى عليه السلام سره وو او دموسى عليه السلام دخدمت كولو سره سره دموسى عليه السلام نه علم هم حاصلولو اوئيل چې زه به روان يم سفر دې موقوف كوم به نه تردې چې زه ددواړو دريابونو د يوځاې كيدو ځاې ته اورسيږم يعنى د مشرقى جانب نه دبحرروم او د بحرفارس دملاوئيد ځې ته اوكه چرې منزل مقصودمې اونه موندلونو د يو وخت يعنى اوږدې زمانې پورې به زم چنانچه چې كله دا دواړه د دريابونو ديو ځاې كيدو ځې ته اورسيدل نودى دواړو خپل كب هيركړو يوشع دروانيدوپه وخت كب اوچتول هيركړل اوموسى عليه السلام يوشع ته يادول هيركړل نوكب په درياب كښې دسرنګ پشان لاره جوړه كړه يعنى كب درب په قدرت داسې اوكړل اودسرنګ پشان لاره داسې اوږد سوري ووچې پورې راپورې نه ووادادې وچې نه اوشول چې الله تعالى دكب دتللودلارې نه د اوبو بهيدل بند كړل چه د هغې د وچې اوبه د كب دلارې نه بندې شوې نوپه دې طريقه هغه سورې لكه دطاق پشان شو اودحضرت موسى عليه السلام تروا پسې پورې بندنه شواوكب (مهى) به چې دكوم ځاې نه تريدلونو هغه ځاې به اوچېدلو (چې دهغې دوچې نه به لارې دسورې شكل اختيارولو) چې كله دادواړه حضرات دهغه مقام موعود نه مخكښې لاړل اوددويمې ورځې دروتې وخته پورې ئې سفر اوكړو نوموسى خپل خادم ته اوئيل چې زمونږ خوراك راوړه غدا هغه خوراك ته وئيلې كيږى كوم چې دسحرپه وخت كښې خوړلې شى دنن په سفر كښې مونږ ستړى شو نصب په معنى دتعب دې اوسترې والې ورته دمنزل مقصودنه داوړيدلونه پس محسوس شو نويوشع اوئيل چې اوګورئ واورئ زه تاسوته ددغه كب (مهى) قصه اوروم چې كله مونږ دهغه ګټې سره ايسار شو نو مانه هغه كب هيرشو اودهغې يادول ماناشيطان هيركړى

وو ان اذکره د انسانه دضمیر مفعول ء نه بدل اشتمال دې یعنی زما نه ئ ددې یادول هیرکړل اوهغه کب په دریاب کښې په څه عجیبه طریقې سره لارجوړه کړه عجباً داتخذ مفعول ثانی دې ددې واقعې نه موسی ﷺ اودهغه خادم په تعجب کښې پرېوتل لکه څنګه چې په رومبې واقعه کښې بیان شوی دی موسی ﷺ اوفرمائیل دکب دورکېدوهم هغه ځاې دې دکوم چې مونږ تلاش کولو اوزمونږ دمطلوب دموندلو علامه ده نودواړه حضرات دخپل قدمونو نخښو لټولوسره واپس شول تردې چې هغه ګټې ته اورسیدل بس دواړوزمونږ دبندګانونه یوبنده خضر اوموندلوچې هغه لره مونږدخپل خصوصی رحمتونونه ورکړه کړې وه یعنی د یو قول مطابق د نبوت اودبل قول مطابق د ولایت نه ددې دویم قول اکثرعلماء قائل دی او مونږ هغه ته دخپل جانب نه خاص علم ورکړې وو علماً دعلمناه مفعول ثانی دې یعنی د مغیباتو د معلوماتو علم موورکړې وو ،امام بخاری یوحدیث روایت کړې دې چې دهغې خلاصه داده چې یوه ورځ موسی ﷺ خپل قوم بنی اسراء ئیل ته خطبه ورکړه نو دهغوی نه سوال اوکړې شوچې په انسانانو کښې دتولونه زیات علم والا څوک دې ؟موسی علیه الصلاة و السلام جواب ورکړو چې زه یم نوالله تعالی ددوی د دې جواب دوجې نه په دوی باندې عتاب اوفرمائیلوځکه چې موسی علیه الصلاة والسلام دې مسئلې لره په والله اعلم وئیلوسره الله حواله نکړه نوالله تعالی دوحی په ذریعه سره موسی ﷺ ته اطلاع ورکړه چې زمایوبنده دې کوم چې دمجمع البحرین په خوا کښې دې هغه سره دستا نه زیات علم دې، موسی عرض اوکړویا اله العالمین دغې بنده ته درسیدو زمادپاره څه صورت کیدې شی، نوالله تعالی ارشاداوفرمائیلوچې دخپل ځان سره یو کب واخله اوهغه په تهیلئ کښې کیږده اوچې په کوم ځاې کښې دغه کب ورک شونوپوهه شه چې دغه بنده هلته دې، نوموسی علیه الصلاة و السلام دځان سره یوکب واغستلواوهغه ئ په تهیلئ (خلته) کښې کیښودلواوپه سفرروان شواوددوی سره ددوی یوخادم یوشع بن نون هم روان شوتردې چې دادواړه حضرات یوې ګټې ته اورسیدل اوهلته ددې لګولونه پس اوده شول اوکب په خلته کښې حرکت اوکړلواودخلتې نه بهر وتلو سره په دریاب کښې پریوتواوهغه په دریاب کښې دسرنګ پشان لاره جوړه کړه اوالله تعالی ددغې کب دلارې نه داوبوبهیدل بندکړل بس هغه لاره پشان دیو طاق شوه کله چې د موسی ﷺ خادم بیدارشونودهغه نه دکب واقعه حضرت موسی ته بیانول هیرشول اوباقی شپه اوورځ ئ مزل اوکړوتردې پورې چې ددویمې ورځې دخوراک وخت راغلونوحضرت موسی علیه الصلاة والسلام خپل خادم ته اوفرمائیل زمونږ خوراک راوړه الی قوله واتخذ سبیله فی البحر عجبا نبی علیه الصلاة والسلام ددې آیت په تفسیرکښې فرمائیلې دی کان للحوت سربا ولموسی

ولقد ناة عجباً الخ (یعنی د کب په اوبو کښې دغه شان تلل خود کب دپاره سرنګ وو او دحضرت موسی علیه السلام او دیوشع علیه السلام دپاره دتعجب نه ډکه خبره وه۔

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله. فتی خوان، خادم، غلام (ج) فتیة، مفسرینو په عام طورباندې دلته ترې خادم مراد اغستلې دې لاابرح فعل ناقص په معنی دلاازال ددې اسم انا په دې کښې وجوبا مستتردې ددې خبر د حتی ابلغ د قرینې دوجې نه محذوف دې ای اسیراو که چرې دې لره فعل تام اومنلې شي نودې لره دخبر ضرورت نه شته مفسرعلام دموسی تفسیرپه ابن عمران سره کولو کښې دبعضې خلقو ددې قول تردید اوکړو کوم چې وائي چې موسی نه مراد د موسی ابن عمران نه دې بلکه موسی بن میشابن یوسف بن یعقوب دې ـ

قوله: لاابرح تفسیر په لاازال اسیر سره کولو کښې دې خبرې ته اشاره اوکړه چې لاابرح فعل ناقص دې اوددې خبراسیر محذوف دې اوپه حذف باندې قرینه حتی ابلغ ده ای لا ابرح سائراحقبا حقب اوږدې زمانې ته وئیلې شي اویومقرروخت ته هم وائي. بعضې حضراتو اویا کالا اوبعضې حضراتواتیا کالا اویوقول ددرېشوکالوهم دې دلته مجازا مدت درازمراددې سرب سرنګ، نالۍ، سوري سربا د اتخذ مفعول ثاني دې او سبیله مفعول اول دې نصبا اسم دې په معنی دستړېتوب (ستومانتیا) تکلیف. نصبا د لقینا مفعول به دې ارایت کښې همزه استفهامیه تعجبیه ده یعنی موسی علیه الصلاة والسلام ته داوئیل مقصوددی چې داسې واقعه کومه چې دعجیبه کیدودوجې نه ناقابل فراموش وه خوماهغه هیره کړه. دارایت مفعول محذوف دې ای ارایت مانابنی فی ذلك الوقت په محاوره کښې داخبرنی په معنی کښې مستعمل دې څنګه چې داردو ژبې په محاوره کښې وئیلې کیږی (بھلا بتلاؤ) دلته چونکه څه قابل طلب خبره نشته دې وجې نه صرف داظهارتعجب دپاره دې ابغنا ماضی جمع متکلم اوی یاوی (ض) اویاواواء ځاې نیول. کوزېدل ددې لفظ پوره تحقیق په سورة کهف، آیت ۱۲ کښې تېرشوې دې انسانیه انسانیه انسا ئېنی انساء هیرول نون دوقایه ي ضمیر واحد متکلم مفعول اول ه ضمیر واحد مذکر غائب مفعول ثاني په ه کښې اصل داده چې دا مضموم وی خوکله چې د دې ماقبل ی ساکنه یاکسره راشی نو ه ته هم کسره ورکوی لکه څنګه علیه فیه به خوپه دوؤ ځاینو کښې امام حفص داصل مطابق لوستلې دې یودلته اودویم په سورة الفتح آیت ۱۰ کښې علیه الله کوم چې ملاعلی قاری په شرح دشاطبیه کښې په تفصیل سره لیکلې دی ص ۳۲۰، ان اذکره کښې ان مصدریه دې جمله اذکره په تاویل دمصدرسره دانسانیه دمفعول ثاني نه بدل اشتمال دې ای

ما انسانی ذکره الا الشیطان، ذکره په زړه کښې یادول او دچاپه وړاندې د ذکر کولو دپاره اذکره استعمالیږی عجباً اتخذ مفعول ثانی هم کیدې شی او مفعول مطلق هم په دې صورت کښې به موصوف محذوف وی ای اتخاذا عجبا او فی البحر دحال په بنا منصوب دې ای کائنا فی البحر او داتخذ سره متعلق هم کیدې شی نغ په اصل کښې نبغی ووې په قرآنی رسم الخط کښې دلته حذف کړې شوې ده اود سورة یوسف په آیت ۲۵ کښې لیکلې شوې ده.دې حذف خوپه اسماء کښې شائع او ذائع دې څنګه چې په قاضی کښې خوپه افعالو کښې شاذ اوخلاف قیاس دی قصصا یا مصدر دې(ن). قصصا پیروی کول ای نقص قصصا یا دحال دوجې نه منصوب دې ای قاصین قصصا من عندنا دمحذوف سره متعلق دې د رحمة نه حال دې اومن لدنا هم دمحذوف سره متعلق دې دعلما نه حال دې، رعایت فواصل دوجې نه مقدم کړې شوې دې۔

**[ایاتونه:٦٦ - ٧٤]**

{قَالَ لَهُ مُوسَى هَلْ أَتَّبِعُكَ عَلَى أَنْ تُعَلِّمَنِ مِمَّا عُلِّمْتَ رُشْدًا} أَيْ صَوَابًا أُرْشَدُ بِهِ وَفِي قِرَاءَة بِضَمِّ الرَّاء وَسُكُون الشِّين وَسَأَلَهُ ذلك لأن الزيادة في العلم مطلوبة {قَالَ إِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا} {وَكَيْفَ تَصْبِرُ عَلَى مَا لَمْ تُحِطْ بِهِ خُبْرًا} فِي الْحَدِيث السَّابِق عَقِب هَذِهِ الْآيَة يَا مُوسَى إِنِّي عَلَى عِلْم مِنْ اللَّه عَلَّمَنِيهِ لَا تَعْلَمهُ وَأَنْتَ عَلَى عِلْم مِنْ اللَّه عَلَّمَكَهُ اللَّه لَا أَعْلَمهُ وَقَوْله خُبْرًا مَصْدَر بِمَعْنَى لَمْ تُحِطْ أَيْ لَمْ تُخْبَر حَقِيقَته {قَالَ سَتَجِدُنِي إِنْ شَاءَ اللَّهُ صَابِرًا وَلَا أَعْصِي} أَيْ وَغَيْر عَاصٍ {لَكَ أَمْرًا} تَأْمُرنِي بِهِ وَقَيَّدَ بِالْمَشِيئَةِ لِأَنَّهُ لَمْ يَكُنْ عَلَى ثِقَة مِنْ نَفْسه فِيمَا الْتَزَمَ وَهَذِهِ عَادَة الْأَنْبِيَاء وَالْأَوْلِيَاء أَنْ لَا يَثِقُوا إِلَى أَنْفُسهمْ طَرْفَة عَيْن {قَالَ فَإِنِ اتَّبَعْتَنِي فَلَا تَسْأَلْنِي} وَفِي قِرَاءَة بِفَتْحِ اللَّام وَتَشْدِيد النُّون {عَنْ شَيْءٍ} تُنْكِرهُ مِنِّي فِي عِلْمك وَاصْبِرْ {حَتَّى أُحْدِثَ لَكَ مِنْهُ ذِكْرًا} أَيْ أَذْكُرهُ لَك بِعِلَّتِهِ فَقَبِلَ مُوسَى شَرْطه رِعَايَة لِأَدَبِ الْمُتَعَلِّم مَعَ الْعَالِم {فَانْطَلَقَا} يَمْشِيَانِ عَلَى سَاحِل الْبَحْر {حَتَّى إِذَا رَكِبَا فِي السَّفِينَةِ} الَّتِي مَرَّتْ بِهِمَا {خَرَقَهَا} الْخَضِر بِأَنْ اقْتَلَعَ لَوْحًا أَوْ لَوْحَيْنِ مِنْهَا مِنْ جِهَة الْبَحْر بِفَأْسٍ لَمَّا بَلَغَتْ اللُّجَج {قَالَ} لَهُ مُوسَى {أَخَرَقْتَهَا لِتُغْرِقَ أَهْلَهَا} وَفِي قِرَاءَة بِفَتْحِ التَّحْتَانِيَّة وَالرَّاء وَرَفْع أَهْلهَا {لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا إِمْرًا} أَيْ عَظِيمًا مُنْكَرًا رُوِيَ أَنَّ الْمَاء لَمْ يَدْخُلهَا

**ترجمه:** موسی خضرته اوئیل چې آیا زه ستاسره په دې شرط باندې پاتې کیدې شم چې ته ماته دهغه علم مفید نه ښودنه اوکړې دکوم علم مفید چې تاته تعلیم درکړې شوې دې؟ رشدا ای صوابا چې دکوم دوجې نه زه درستګی حاصل کړم،اوپه یوقراءت کښې دراء په ضمې سره دې، حضرت موسی علیه الصلاة والسلام دخضرنه دعلم سوال څکه اوکړو چې په علم کښې زیات مطلوب دې هغه بنده جواب ورکړوچې ته زماسره هیڅ کله صبر نشې کولې اوپه دامې خبروبه څنګه صبرا وکړې دکوموحقیقت نه چې ته پوره طریقې سره واقف نه یې؟ په سابق کښې

مذکور حدیث کښې ددې آیت نه پس داهم دی چې اې موسی الله ماته یوداسې علم راکړې دې دکوم چې تاته پته نشته اوالله تعالی تا لره یوداسې علم درکړې دې دکوم نه چې زه واقف نه یم اودالله تعالی قول خبرامصدردې اولم تحط دلم تخبر دحقیقته په معنی کښې دې،موسی علیه الصلاة والسلام ورته جواب ورکړوانشاءالله ته به ماصابر اومومې، اوزه به ستا دهیڅ یوحکم نافرمانی نه کوم یعنی چې ته کوم حکم کوې نوزه به دهغې نه نافرمانی نه کوم،موسی علیه الصلاة والسلام خپلې وعدې لره دالله تعالی دمشیت سره مقیده کړه خکه چه موسی علیه الصلاة والسلام په خپل ځان باندې لازمه کړې وعدې د پابندې باره کښې اعتمادنه وواودادانبیاء اواولیاء عادت وی چی هغوی په خپل نفس باندې دیو لحظې دپاره هم اعتمادنه کوی هغه بنده خضرورته اوئیل صیح ده که ته زماسره تلل غواړې نوته به زمانه دیوې خبرې باره کښې هم کومه چې ته دخپل علم په اعتبارسره منکرګنړې تپوس نه کوې اوصبربه کوې تردې چې زه ستا په وړاندې خپله بیان اوکړم یعنی ستا په وړاندې د هغې علت پخپله بیان نه کړم، په یو قراءت کښې دلام په فتحې سره اودنون په تشدیدسره (تسالنی)دې نوموسی علیه الصلاة والسلام دیومتعلم پشان دمعلم سره دپوره ادب رعایت کولو سره دهغه شرط قبول کړو پس ددې نه دادواړه حضرات دریاب په ساحل باندې روان شول تردې چې کله دواړه حضرات په کشتۍ کښې سوارهٔ شول کومه چې ددوی خوا ته تیره شوه نودغې کشتۍ لره خضر ماته کړه په دې طریقې چې کله کشتۍ ګوډرته اورسېده نوخضر د دریاب د ظرف نه دتبرپه ذریعې سره یوه یا دوه تختې اویستلې نوموسی علیه الصلاة والسلام ورته اوئیل چې آیا تاکشتۍ ماته کړه چې کشتۍ والاغرق کړې تایقینادیرنامناسب حرکت اوکړو یعنی دیرناخوښه حرکت دې اوکړو، روایت شوې دې چې اوبهٔ په دغه کشتۍ کښې داخلې نه شوې۔

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: علی ان تعلمن الخ داتبعك دكاف نه حال دې ای حال كونك معلما لی، رشدادتعلمن مفعول ثانی دې ای تعلمن علماًذارشد،ان تعلمن کښې ان مصدریه اوپه اخره کښې نون وقایه دې او یاء دمتکلم محذوف ده دنون کسره دحذف یاعلامه ده، رَشدا و رُشدا(ن) هدایت موندل۔

**قوله**: لم تحط : احاط په ګېرول، احاط به علما په پوره طریقه پوهېدل خبرایا دفاعل نه منقول کېدو سره دنسبت نه دتمیز په وجه منصوب دې، یامفعول مطلق دپاره دتاکیددې خکه چې لم تحط په معنی دلم تخبردې اوخبرپه معنی دعلم دې ای لم تحط علماً.

**قوله**: لااعصی لك ددې عطف په صابراباندې دې اولا په معنی دغیردې –

**قوله:** وغيرعاص سره مفسرعلام دې خبرې طرف ته اشاره اوكره چې لا په معنى دغير او ددې عطف په صابرا باندې دې۔

**قوله:** تأمرني سره دې خبرې طرف ته اشاره ده چې امرا، دتامرفعل محذوف مفعول مطلق دې امرا عجيبه خبره، هغه خبره كومه چې خلاف دشرع اوخلاف دعقل سليم وى فاس تبر كې (ج) فؤوس۔

**قوله:** اصبر، اصبرمحذوف منلو سره ئ دې خبرې طرف ته اشاره اوكره چې حتى احدث لک دمغيا محذوف جزء دې اومغيا اصبردې۔

## پاره نمبر ۱۶ [قَالَ أَلَمْ أَقُلْ]

### [اياتونه:۷۵-۷۸]

(قَالَ أَلَمْ أَقُلْ إِنَّكَ لَن تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا) (قَالَ لَا تُؤَاخِذْنِي بِمَا نَسِيتُ) أَيْ غَفَلْت عَنْ التَّسْلِيم لَك وَتَرْك الْإِنْكَار عَلَيْك (وَلَا تُرْهِقْنِي) تُكَلِّفنِي (مِنْ أَمْرِي عُسْرًا) مَشَقَّة فِي صُحْبَتِي إيَّاكَ أَيْ عَامِلْنِي فِيهَا بِالْعَفْوِ وَالْيُسْر (فَانْطَلَقَا) بَعْد خُرُوجهمَا مِنْ السَّفِينَة يَمْشِيَانِ (حَتَّى إِذَا لَقِيَا غُلَامًا) لَمْ يَبْلُغ الْحِنْث يَلْعَب مَعَ الصِّبْيَان أَحْسَنهمْ وَجْهًا (فَقَتَلَهُ) الْخَضِر بِأَنْ ذَبَحَهُ بِالسِّكِّينِ مُضْطَجِعًا أَوْ اقْتَلَعَ رَأْسه بِيَدِهِ أَوْ ضَرَبَ رَأْسَهُ بِالْجِدَارِ أَقْوَال وَأَتَى هُنَا بِالْفَاءِ الْعَاطِفَة لِأَنَّ الْقَتْل عَقِب اللِّقَاء وَجَوَاب إذَا (قَالَ) لَهُ مُوسَى (أَقَتَلْتَ نَفْسًا زَاكِيَةً) أَيْ طَاهِرَة لَمْ تَبْلُغ حَدّ التَّكْلِيف وَفِي قِرَاءَة زَكِيَّة بِتَشْدِيدِ الْيَاء بِلَا أَلِف (بِغَيْرِ نَفْسٍ) أَيْ لَمْ تَقْتُل نَفْسًا (لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا نُكْرًا) بِسُكُونِ الْكَاف وَضَمّهَا أَيْ مُنْكَرًا (قَالَ أَلَمْ أَقُلْ لَكَ إِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا) زَادَ لَك عَلَى مَا قَبْله لِعَدَمِ الْعُذْر هُنَا وَلِهَذَا (قَالَ إِنْ سَأَلْتُكَ عَنْ شَيْءٍ بَعْدَهَا) أَيْ بَعْد هَذِهِ الْمَرَّة (فَلَا تُصَاحِبْنِي) لَا تَتْرُكنِي أَتَّبِعك (قَدْ بَلَغْتَ مِنْ لَدُنِّي) بِالتَّشْدِيدِ وَالتَّخْفِيف مِنْ قِبَلِي (عُذْرًا) فِي مُفَارَقَتك لِي (فَانْطَلَقَا حَتَّى إِذَا أَتَيَا أَهْلَ قَرْيَةٍ) هِيَ أَنْطَاكِيَة (اسْتَطْعَمَا أَهْلَهَا) طَلَبَا مِنْهُمْ الطَّعَام بِضِيَافَةٍ (فَأَبَوْا أَنْ يُضَيِّفُوهُمَا فَوَجَدَا فِيهَا جِدَارًا) ارْتِفَاعه مِائَة ذِرَاع (يُرِيدُ أَنْ يَنْقَضَّ) أَيْ يَقْرُب أَنْ يَسْقُط لِمَيَلَانِهِ (فَأَقَامَهُ) الْخَضِر بِيَدِهِ (قَالَ) لَهُ مُوسَى (لَوْ شِئْتَ لَاتَّخَذْتَ) وَفِي قِرَاءَة لَتَخِذْت (عَلَيْهِ أَجْرًا) جُعْلًا حَيْثُ لَمْ يُضَيِّفُونَا مع حاجتنا إلى الطعام (قَالَ) له الخضر (هَذَا فِرَاقُ) أَيْ وَقْت فِرَاق (بَيْنِي وَبَيْنِكَ) فِيهِ إضَافَة بَيْن إلَى غَيْر مُتَعَدِّد سَوَّغَهَا تَكْرِيره بِالْعَطْفِ بِالْوَاوِ (سَأُنَبِّئُكَ) قَبْل فِرَاقِي لَك (بِتَأْوِيلِ مَا لَمْ تَسْتَطِعْ عَلَيْهِ صَبْرًا)

**ترجمه:** حضرت خضرورته اوئيل آيا ماتاته نه وو وئيلې چې ته ماسره هرګزصبرنه شې كولې نو موسى ورته اوئيل چې زماپه هيره باندې زمانا مواخذه مه كوه يعنى زمانا ستاپه فرمانبردارې كښې اوپه تاباندې داعتراض ترک كولوكښې غفلت اوشواوتاسوپه ماباندې زماپه معامله كښې تنګى مه كوئ يعنى په سختې كښې مې مه مبتلاكوه اوته دخپل خان سره زماد مصاحبت په معامله كښې سختيا مه پيداكوه يعنى زماسره د دركذراودسهولت او

اسانتیا معامله اوکړه بیادواړه د کشتۍ نه د کوزېدو نه پس خپې ابله خپې روان شول تردې چې دواړویوهلک سره ملاقات اوشو کوم چې تراوسه لاعمرد بلوغت ته نه وورسېدلې دماشومانوسره ئ لوبې کولې په دې تولوکښې دئ دیر زیات خانسته وو نو خضر دا هلک مړکړو، یاخوئ په زمکه باندې څملولو او په چاړهٔ باندې ئ ذبح کړویائ په لاسونوسره اونیولو اوسرئ ترې جداکړواویائ د هغه په دېوال سره اوهلو،دادرې اقواله دی فقتله کښې فاء تعقیبیه عاطفه استعمال دې دپاره شوې دې چه قتل دملاقات نه پس شوې وو او د اذ جواب قال له موسی اقتلت نفسا زکیة دې یعنی موسی علیه السلام خضرته اوئیل تایوبې گناه کس قتل کړو یعنی داسې معصوم نفس کوم چې لاتراوسه پورې حد د تکلیف یعنی عمردبلوغت ته نه وو رسیدلې اوپه یوقراءت کښې زکیة د یاء په تشدید اودالف نه بغیردې کوم چې خون نه دې کړې یعنی هغه دکوم نفس قاتل نه دې (چې قصاصاقتل کړې شي) بېشکه چې تادیرېدکاراوکړو نکرا په سکون دکاف سره اوپه ضمې دکاف سره دواړه قراءتونه شته دې یعنی دیرناخوښه حرکت خضرورته اوئیل چې آیا ماتاته نه وو وئیلې چې ته زماسره هرگزصبرنه شی کولې دلته ئې د لکَ اضافه اوکړه په خلاف دسابق ځکه چې هلته موسی علیه السلام ورته دسهوې اودنسیان عذرنه وو پېش کړې موسی علیه الصلاة والسلام ورته اوئیل ددې نه پس که مادستا نه دڅه پوښتنه اوکړه (اعتراض اوکړم) نوته مادځان سره مه پرېږده یعنی دځان سره دپاتې کیدو اجازت مه راکوه یقینا تا مادپاره څه عذرباقی پرې نه خودلو لدن دنون په تشدیداوتخفیف دواړه قراءتونه شته دمن لدنی معنی من قبلی ده یعنی ته مالره دځان نه دجداکولوپه معامله کښې معذورئ بیا دادواړه حضرات روان شول تردې چې کله دواړه یوکلی والوته اورسیدل هغه علاقه انطاکیه وه دکلی والونه دې حضراتوروټئ اوغښتله یعنی دمېلمستیا په طورباندې دهغوی نه ئ روټې طلب کړه خوکلی والو د دوی دمېلمستیا نه انکار اوکړوبیادې دواړو حضراتوپه دغه کلی کښې یودیوال اولیدلو کوم چې غورځېدل غوښتل اودهغې لوړوالې سل گزه وویعنی په ترس کیدو دوجې نه غورځېدوته نزدې وونوخضرهغه دیوال ته لاس لگولو سره درست کړوموسی ورته اوئیل که ستاخوښه وه نوددې کاربه دې ترې اجرت یعنی مزدوری اغستې وه په یوقراءت کښې لاتخذت دې ځکه چه سره ددې نه چې مونږه دروټئ حاجت مندهم وواودې خلقو زمونږ مېلمستیا اونکړه خضراوئیل بس دا اعتراض زمااوستاپه مینځ کښې جدائ راوستونکې دې یعنی دجدائ سبب دې فراق مصدرپه معنی داسم فاعل تفریق دې په دې کښې دبین اضافت غیرمتعددطرف ته دې دکوم گنجائش چې دواؤپه ذریعه دبین د تکرار دوجې نه دې، زه دهغه خبرو حقیقت ستادجداکولو نه رومبې تاته وایم، په کومو چې تاصبراونکړې شو_

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله** لن تستطيع استطاعت نه مضارع واحد مذکر حاضر، ته به هرگز اونکړې شې۔

**قوله** بمانسيت کښې ماموصوله ده او جارمجرود لاتؤاخذني سره متعلق دې اوعائد محذوف دې اى لاتأخذني بأمرالذى نسيته بعضې حضراتو وئيلي دي چې نسيت په معنى د ترکت دې کوم چې نسيت لازم معنى ده اوداهم احتمال دې چې مامصدريه وى اى لاتاخذني بنسياني، دنسيت تفسيرئ په غفلت سره کولوکښې اشاره اوکړه چې دلته دنسيت لغوى معنى مرادنه ده بلکه لازمی معنى دا ده کومه چې ترک اوغفلت دې ځکه چې دنسيان دپاره ترک لازم دې۔

**قوله**: لاترهقني من امري عسرا عسرا، د لاترهقنى مفعول ثانى دې اوترهقنى کښې يامفعول اول دې يقال ارهقه عسراهغه ئ په تکليف کښې واچولو. هغه سره ئ دتنګئ معامله اوکړه۔

**قوله**: زاکية هغه نفس کوم چې تراوسه پورې ګناه نه ده کړې اوزکية هغه نفس کوم چې د ګناه نه پس توبه کړې وى، کسائ وئيلي دى چې دواړه هم معنى دى۔

**قوله** بغيرنفس په دې کښې درې وجوه داعراب دى ① دقتلت سره متعلق دې ② دمحذوف سره متعلق دې اودفاعل يادمفعول نه حال دې اى قتلته ظالما اومظلوما بغير نفس ③ د مصدر محذوف صفت وى اى قتلت قتلامتلبسا بغيرنفس.

**قوله** لم يبلغ الحنث کښې مضاف محذوف دې، اى وقت الحنث۔ دغلام تفسير په لم يبلغ الحنث سره کولوکښې مقصدتعيين دمعنى دې ځکه چې دغلام مختلفې معنې راځې خو دلته ترې نابالغ هلک مراددې۔

**قوله** هذا فراق يعنى په ترک اجرت باندې اعتراض فراق دې يعنى وقت د فراق دې.

**قوله** بيني وبينك کښې دبين اضافت غيرمتعددطرف ته دې حالانکه دبين اضافت د متعدد طرف ته ضرورى وى، لکه بيننا وبينکم کښې اضافت د متعددطرف ته دې۔

**قوله** واتى هنا بالفاء العاطفه د دې عبارت داضافې مقصد د يو خبرې جواب دې چې دلته يعنى فخرقها باندې فاء داخله ده خو په سابق خرقها باندې فاء داخله نه ده د دې څه وجه ده ؟

د جواب خلاصه دا ده چې دغلام قتل دکشتۍ نه دکوځېدونه پس واقع شوې وو ځکه ئې د دې مناسب فاء تعقيبيه راوړه په خلاف دخرقهاچې هلته په کشتۍ کښې د سورلۍ په دوران کښې خرق واقع شوې وو ځکه ئ هلته خرقها اوئيل نه چې فخرقها

**قوله** لم تعل نفسا د دې اضافې مقصد دې خبرې طرف ته اشاره کول دى چې په غيرنفس کښې مضاف محذوف دې اى بغيرقتل نفس

**قوله**. منكراً د دې اضافې مقصد دا ښودل چې نكرا مصدر دي د منكر امفعول په معنی كښې دی په سابق كښې د موسى عليه الصلاة والسلام غلطي كمه وه نو هلته ئ لك اونه وئيل او دلته چونكه غلطي زياته ده ځكه ئ دلك په ذريعه خطاب اوكړو۔

**قوله**. يريد دې تفسيرئ په يقرب سره كولو كښې دې خبري ته اشاره اوكړه چې دير يد نسبت جدار طرف ته اسناد مجازی دی ځكه چې جدار د ذواراده څيزنو نه دی لم تستطع په اصل كښې تسطيع وو د لم د داخليدو د وجې نه په آخره كښې عين ساكن شو. التقاء ساكنين راغله په ياء او په عين كښې نو ياء ساقط شوه نو تسطع شو۔

**[اياتونه: ۷۹-۸۲]**

﴿أَمَّا السَّفِينَةُ فَكَانَتْ لِمَسَاكِينَ﴾ عشرة ﴿يَعْمَلُونَ فِي الْبَحْرِ﴾ بها مؤاجرة لها طلبا للكسب ﴿فَأَرَدتُّ أَنْ أَعِيبَهَا وَكَانَ وَرَاءَهُم﴾ إذا رجعوا أو أمامهم الآن ﴿مَلِكٌ﴾ كافر ﴿يَأْخُذُ كُلَّ سَفِينَةٍ﴾ صالحة ﴿غَصْبًا﴾ نصبه على المصدر المبين لنوع الأخذ ﴿وَأَمَّا الْغُلَامُ فَكَانَ أَبَوَاهُ مُؤْمِنَيْنِ فَخَشِينَا أَنْ يُرْهِقَهُمَا طُغْيَانًا وَكُفْرًا﴾ فإنه كما في حديث مسلم طبع كافرا ولو عاش لأرهقهما ذلك لمحبتهما له يتبعانه في ذلك ﴿فَأَرَدْنَا أَنْ يُبْدِلَهُمَا﴾ بالتشديد والتخفيف ﴿رَبُّهُمَا خَيْرًا مِّنْهُ زَكَاةً﴾ أي صلاحا وتقى ﴿وَأَقْرَبَ﴾ منه ﴿رُحْمًا﴾ بسكون الحاء وضمها رحمة وهي البر بوالديه فأبدلهما تعالى جارية تزوجت نبيا فولدت نبيا فهدى الله تعالى به أمة ﴿وَأَمَّا الْجِدَارُ فَكَانَ لِغُلَامَيْنِ يَتِيمَيْنِ فِي الْمَدِينَةِ وَكَانَ تَحْتَهُ كَنزٌ﴾ مال مدفون من ذهب وفضة ﴿لَّهُمَا وَكَانَ أَبُوهُمَا صَالِحًا﴾ فحفظا بصلاحه في أنفسهما ومالهما ﴿فَأَرَادَ رَبُّكَ أَنْ يَبْلُغَا أَشُدَّهُمَا﴾ أي إيناس رشدهما ﴿وَيَسْتَخْرِجَا كَنزَهُمَا رَحْمَةً مِّن رَّبِّكَ﴾ مفعول له عامله أراد ﴿وَمَا فَعَلْتُهُ﴾ أي ما ذكر من خرق السفينة وقتل الغلام وإقامة الجدار ﴿عَنْ أَمْرِي﴾ أي اختياري بل بأمر إلهام من الله ﴿ذَٰلِكَ تَأْوِيلُ مَا لَمْ تَسْطِع عَّلَيْهِ صَبْرًا﴾ يقال اسطاع واستطاع بمعنى أطاق ففي هذا وما قبله جمع بين اللغتين ونوعت العبارة في فأردت فأردنا فأراد ربك

**ترجمه**: پس هغه كشتۍ ديوڅو يعنې دلسو غريبانانو كسانووه كوم چې په درياب كښې كښې لره په كرايه باندې چلولو سره رزق كتلو ما اوغوښتل چې دې لره عيب جنه كړم او ددې مخې ته يو كافر باچا ووچې هغه به هره صحيح سالمې كشتۍ لره غصب كوله دغصبا نصب دا ن مصدريه دوجې نه دې كوم چې دبيان نوعيت دپاره دې بهرحال هلك چې وونو دهغه مورپلار مومنان وو پس مونږ سره ويره وشوه چې دا هلك به په هغوی باندې په سركشۍ او كفر سره غالب شي دمسلم شريف په يو حديث كښې دی چې هغه هلك په فطرت كفر باندې پيدا شوې ووكه هغه ژوندې پاتې شوې وونو يقينا هغه به په خپلو والدينو باندې غالب شوې وې او هغوی به دده سره دميني محبت دوجې په كفر كښې دده اتباع كړې وې ددې وجې نه مونږ اوغوښتل چې ددوی پروردګار دده په بدله كښې دپاكيزګۍ اود اصلاح او تقوی په اعتبار سره دده نه بهتر او په محبت او شفقت كښې دده نه زيات عطا كړی يبدلهما ددال په تشديد او

تخفیف دواړوسره دي رحما کښې د ,,ح،، په سکون اوضمې دواړوسره دې په معنی دوالدینو سره رحمت، اطاعت او فرمانبرداری، الله تعالی دهغه هلک په بدله کښې یوه جینۍ عطاء کړه چې هغې دیونبی سره نکاح اوکړه نودهغې نه یونبی پیداشو چې دهغه په ذریعه الله تعالی یو امت ته هدایت نصیب کړو۔

اوس پاتې شودیوال نوهغه د دوؤ یتیمانانو هلکانووو کوم چې په دې ښارکښې اوسیدل اوددې دیوال دلاندې یوه خزانه دسرواودسپینوزرو مال مدفون وو. اودهغوی پلاریونیک سړې وونو چه دهغه دتقوی اودصلاح په وجه دهغه مال حال محفوظ پاتې شی ځکه ستاپروردگار اوغښتل چه دواړه ماشومان ځوانان شی یعنی کمال قوت ته ورسی اوخپله خزانه راوباسی ستاد رب په مهربانې سره رحمة مفعول له دې ددې عامل أراد دې اوما داکار کوم چه په ماقبل کښې ذکرشویعنی کشتئ لره ماتول، غلام لره وژل او دیوال سمول په خپل اختیارسره نه دی کړی بلکه دالله تعالی دجانب نه دالهام په ذریعه مې کړی وو دا دې حقیقت دهغه کارونو په کومو چه تا صبر اونه کړې شو (اسطاع) او (استطاع) د (اطاق) په معنی کښې مستعمل دی په دې کښې اوپه ماقبل کښې د دواړو لغتونو اجتماع ده او اردت او ارادربك او اردنا په عبارت کښې تنوع اختیار کړې شوې ده .

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** السفينة: (ج) سفين وسفائن.

**قوله:** وراء هم دا د اضدادو نه دې ددې معنی مخکښې او روستوده دا په اصل کښې مصدر دې ددې معنی حائل، حد فاصل، دقد په اضمار سره جمله حالیه ده ۔

**قوله:** غصبا د یاخذ مفعول مطلق دبیان نوع دپاره، یاخذ چونکه دغصب معنی لره متضمن دې لهذا تقدیری عبارت به داسې وی غصب عصبا ۔

**قوله:** وراءهم د دې تفسیرئ په رجعوا او امامهم سره کولوکښې اشاره اوکړه چه وراءهم داضدادو نه دې دا په دواړو معنو کښې استعمالیږی ۔

**قوله:** سفينة ددې صفت صالحة محذوف دې اى كل سفينة صالحة دحضرت ابی او د حضرت ابن عباس ﷺ قرامت کښې صالحة لفظ موجود دې ۔

**قوله:** فخشينا ان يرهقهما اى برهق الغلام اويه يقال رهقة اى غشية ـ طغيانا، د يرهقهما مفعول دې، او دكفرا عطف په طغيانا باندې دې رحما مصدر دې په معنی دشفقت او مهربانئ (س) رحمة ورحما مهربانه کیدل زكوة او رحما د خيرا نه تميز واقع دی، خيرا دلته د اسم تفضیل په معنی کښې نه دې ۔

**قوله:** رحمة یاخود یبلغا او د يستخرجا مفعول له دې اویا دفعل محذوف فعلته مفعول به دې ۔

**قوله:** اسطاع يسطيع د تاء په حذف سره استطاع يستطيع کښې دویم لغت دې ۔

[ایاتونه: ۸۲ - ۹۱]

﴿وَيَسْأَلُونَكَ﴾ أَيِ الْيَهُود ﴿عَنْ ذِي الْقَرْنَيْنِ﴾ اسمه الإسكندر وَلَمْ يَكُنْ نَبِيًّا ﴿قُلْ سَأَتْلُو﴾ سَأَقُصُّ ﴿عَلَيْكُمْ مِنْهُ﴾ مِنْ حَالِه ﴿ذِكْرًا﴾ خَبَرًا ﴿إِنَّا مَكَّنَّا لَهُ فِي الْأَرْضِ﴾ بِتَسْهِيلِ السَّيْرِ فِيهَا ﴿وَآتَيْنَاهُ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ﴾ يَحْتَاجُ إِلَيْهِ ﴿سَبَبًا﴾ طَرِيقًا يُوصِلُهُ إِلَى مُرَادِه ﴿فَأَتْبَعَ سَبَبًا﴾ سَلَكَ طَرِيقًا نَحْوَ الْغَرْبِ ﴿حَتَّى إِذَا بَلَغَ مَغْرِبَ الشَّمْسِ﴾ مَوْضِعَ غُرُوبِهَا ﴿وَجَدَهَا تَغْرُبُ فِي عَيْنٍ حَمِئَةٍ﴾ ذَاتِ حَمْأَةٍ وَهِيَ الطِّينُ الْأَسْوَدُ وَغُرُوبُهَا فِي الْعَيْنِ فِي رَأْيِ الْعَيْنِ وَإِلَّا فَهِيَ أَعْظَمُ مِنَ الدُّنْيَا ﴿وَوَجَدَ عِنْدَهَا﴾ أَيِ الْعَيْنِ ﴿قَوْمًا﴾ كَافِرِينَ ﴿قُلْنَا يَا ذَا الْقَرْنَيْنِ﴾ بِالْهَامٍ ﴿إِمَّا أَنْ تُعَذِّبَ﴾ الْقَوْمَ بِالْقَتْلِ ﴿وَإِمَّا أَنْ تَتَّخِذَ فِيهِمْ حُسْنًا﴾ بِالْأَسْرِ ﴿قَالَ أَمَّا مَنْ ظَلَمَ﴾ بِالشِّرْكِ ﴿فَسَوْفَ نُعَذِّبُهُ﴾ نَقْتُلُهُ ﴿ثُمَّ يُرَدُّ إِلَى رَبِّهِ فَيُعَذِّبُهُ عَذَابًا نُكْرًا﴾ بِسُكُونِ الْكَافِ وَضَمِّهَا شَدِيدًا فِي النَّارِ ﴿وَأَمَّا مَنْ آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهُ جَزَاءً الْحُسْنَى﴾ أَيِ الْجَنَّةِ وَالْإِضَافَةُ لِلْبَيَانِ وَفِي قِرَاءَةٍ بِنَصْبِ جَزَاءٍ وَتَنْوِينِه قَالَ الْفَرَّاءُ وَنَصْبُهُ عَلَى التَّفْسِيرِ أَيْ لِجِهَةِ النِّسْبَةِ ﴿وَسَنَقُولُ لَهُ مِنْ أَمْرِنَا يُسْرًا﴾ أَيْ نَأْمُرُهُ بِمَا يَسْهُلُ عَلَيْهِ ﴿ثُمَّ أَتْبَعَ سَبَبًا﴾ نَحْوَ الْمَشْرِقِ ﴿حَتَّى إِذَا بَلَغَ مَطْلِعَ الشَّمْسِ﴾ مَوْضِعَ طُلُوعِهَا ﴿وَجَدَهَا تَطْلُعُ عَلَى قَوْمٍ﴾ هُمُ الزِّنْجُ ﴿لَمْ نَجْعَلْ لَهُمْ مِنْ دُونِهَا﴾ أَيِ الشَّمْسِ ﴿سِتْرًا﴾ مِنْ لِبَاسٍ وَلَا سَقْفٍ لِأَنَّ أَرْضَهُمْ لَا تَحْمِلُ بِنَاءً وَلَهُمْ سُرُوبٌ يَغِيبُونَ فِيهَا عِنْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَيَظْهَرُونَ عِنْدَ ارْتِفَاعِهَا ﴿كَذَلِكَ﴾ أَيِ الْأَمْرُ كَمَا قُلْنَا ﴿وَقَدْ أَحَطْنَا بِمَا لَدَيْهِ﴾ أَيْ عِنْدَ ذِي الْقَرْنَيْنِ مِنَ الآلاتِ وَالْجُنْدِ وَغَيْرِهِمَا ﴿خُبْرًا﴾ عِلْمًا

ترجمة: یهودیان ستاسو نه دذوالقرنین دواقعې تپوس کوی دده نوم اسکندر دې اودې نبی نه وو نو تاسو ورته اووائی چه زه تاسوته دده څه حالت اوروم بیانوم په زمکه کښې سفر اسانولو سره مونږ ده ته په زمکه کښې قدرت ورکړې وو او مونږ ده ته دهر قسمه وسائل دڅه چه باچاهانو ته ضرورت وی ورکړی وو داسې وسائل چه د هغې په زریعه ده ته دخپل مقصد پورې رسیدل حاصل شی بس هغه دمغرب طرف ته په یوه لاره روان شو تر دې پورې چه دمغرب انتهاء ته ورسیدو، نو هغه ته نمر د تورې خټې یوې چینې کښې ډوبیدونکې په نظر راغلو، دتورې خاورې والا چینه کښې، حمأة، توره خاوره اودنمر په چینه کښې ډوبیدل دا دکتونکې په نظر کښې محسوسېدله ګنی نمر خود دنیا نه ډیر لوئ دې اوده ته هلته د چینې سره یو کافر قوم ملاؤ شو مونږ دالهام په ذریعه هغه ته اوئیل چه ته دهغه قوم ته دقتل په ذریعه سزا ورکړه یائې قید کولو سره دوی سره دنرمی سلوک اوکړه نووئیل کوم کس چه شرک کولو سره ظلم اوکړی نو هغه ته به دقتل سزا ورکړو بیا به هغه دخپل رب طرف ته واپس کیږی نو هغه به ورته ددې نه هم سخته سزا ورکړی نکرادکاف په سکون او ضمې دواړو سره دې یعنی داور سخت عذاب او چه څوک ایمان راوړی او نیک عمل اوکړی نود هغه د پاره به په بدله کښې خیګره وی یعنی جنت او اضافت بیانیه دې اوپه یو قراءت کښې جزاء په نصب او تنوین سره دې، اوفراء وئیلی دی چه ددې نصب د جهت دنسبت د تفسیر په وجه نه دې او مونږ به ده ته په خپل کار کښې هم

دآسمانیتا حکم ورکړو یعنی د داسې خبرو کومې به چه هغه دپاره اسانې وی یاهغه مشرو غرف ته (دویمه) لار باندې روان شوتردې پورې چه هغه مطلع الشمس یعنی دنمر راختوځائ انتهاء مشرق) ته اورسیدونوهغه نمر په داسې قوم باندې راختونکې اولیدو اوهغه زنجی قوم وو چه مونږ د هغوی دپاره دنمر نه دبچ کیدوځه پرده لکه لباس وغیره نه ووساتلی ځکه چه دهغوی زمکه دآبادۍ اوعمارت جوګه نه وه اودهغوی دپاره بهتونه غارونه وو چه دنمر راختوپه وخت کښې به په هغې کښې پټیدل اودنمر غورزیدو په وخت به رواتل خبره هم داسې ده څنګه چه مونږ اوئیل اومونږدهغه یعنی دذوالقرنین دټولوځیزونو علمی احاطه کړې وه که هغه دجنګ سازاوسامان وو یا دلښکر وغیره دقبیلې نه ـ

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** سأتلوا سین محض دتاکیددپاره دې استقبال دپاره نه دې ځکه چه پوره کلام مسلسل نازل شوې دې ـ

**قوله:** منهکښې دوه احتمالات دی ① اول داچه من تبعیضیه دې اوضمیر دذولقرنین طرف ته راجع دې اومضاف محذوف دې ای من اخباره جارمجرور په حقیقت کښې د ذکراصفت دې خو دمقدم کیدو په وجه حال واقع شوې دې، ② دویم احتمال دا دې چه دمنه ضمیر دالله تعالی طرف ته راجع وی اومن ابتدائیه وی یعنی زه دالله د طرف نه دا احوال وایم اوبیانوم ئې، خودا احتمال ضعیف دې، ذکراد سأتلوامفعول به دې اوکه اتلواد اذکرپه معنی کښې وی نو ذکرابه مفعول مطلق وی، ای ساذکر ذکرا، ذکرابه په رومبی صورت کښې دنباپه معنی کښې وی اوپه دویم صورت کښې به دقرآن په معنی کښې وی دمنه تفسیر په من حاله سره د کولو کښې مقصد د محذوف مضاف طرف ته اشاره کول دی ځکه چه تپوس داحوالو باره کښې نه وی د ذات باره کښې نه ـ

**قوله:** مکناد تمکین نه قدرت ورکول، قدمونه مظبوطول ـ

**قوله:** سبب رسئ، ذریعه، وسیله، (ج) اسباب ـ

**قوله:** وجد په معنی دراءاوئ لیدل. محسوس ئې کړل. حمئة حمی (س) نه دصفت مشبه حمئا حما الماءاوبه خړې شوې الحمئةتوره خټه ـ

**قوله:** اما دا دان او دما نه مرکب دې او دا حرف تفصیل دې او ان تعذب کښې ان مصدریه دې اوجمله په تاویل دمصدر سره مبتدأ ده اوخبرئې محذوف دې ای تعذیبك واقع یا دا خبردې اومبتدأ محذوف ده ای اما امر تعذیبك یا د فعل محذوف مفعول دې ای اما توقع تعذیبك او او اما ان تتخذ کښې هم دا احتمالات دی ـ

قوله: في رأي العين د دې اضافې مقصد دا ښودل دی چه وجه په خپله حقیقی معنی کښې نه دې بلکه په نظر راتلو یا دمحسوسیدو په معنی کښې دې ځکه چې دا ممکنه نه ده چې نمر دزمکې په یوه چینه کښې پریوزی ځکه چې نمر د دیارلس لاکهوزمکو برابر دې او ددې قطرشپږ آتیه لاکهه پنځه شپیته زره (۸۲۲۵۰۰۰) میله دې، (فلکیات جدیده) نمر په چینه پریوتل په نظر راتلل داسې دې لکه چې کتونکی ته اسمان خلور واړه طرفو نه افق سره لګیدلې (متصل) ښکاری حالانکه په حقیقت کښې داسې نه ده، دغه شان که چرته ته د ریل په لائن کښې اوریدیږې او لائن ته لرې یورې ګورې نو تاته به دواړه لا ئنونه په خپل مینځ کښې یو بل سره پیوست او جخت ښکاری ترې دې چه په آخرې که به درته ملاو شی محسوس شی حالانکه داسې نه وی ـ

قوله: حسنا ددې مضاف محذوف دې ای ذاحسن یا دمصدر حمل مبالغة دې ـ

قوله: اما من ظلم اما حرف تفصیل دې خوپه دې کښې دشرط معنی هم ده ځکه ددې په جواب کښې د فاء راؤړل ضروری دی ـ

قوله: فله جزاء له خبر مقدم دې او الحسنى مبتدأ مؤخرده، جزاء حال دې یا تمیز دې ای له الحسنى جزاء کما یقال لك هذا الثوب هبة ـ

قوله: يسرا دې مضاف محذوف دې ای ذا يسر یا دمصدر حمل مبالغة دې ـ

قوله: كذلك دمبتدأ محذوف صفت دې ای الامر كذلك.

قوله: احطنا دې دپاره دسورة کهف آیت ۸۲ اوګورئ احطنا جمله مستانفه ده مراد خبر مصدر دې (ک ف) خبر الشئ وبه دحقیقت حال نه واقف کیدل ـ

قوله: بالمأمر سره دې خبرې ته اشاره ده چه ذوالقرنین نبی نه وو بلکه یو صالح بادشاه وو ـ

قوله: سنقول تفسیر په نامره سره د کولو مقصد تعیین دمعنی دې ځکه چه قول په مختلف معنو کښې مستعمل دې ـ

**[ایاتونه: ۹۲-۹۸]**

(ثم أتبع سببا) (حَتّٰى إِذَا بَلَغَ بَيْنَ السَّدَّيْنِ) بِفَتْحِ السِّينِ وَضَمِّهَا هُنَا وَبَعْدَهُمَا جَبَلَانِ بِمُنْقَطَعِ بِلَادِ التُّرْكِ سَدَّ الْإِسْكَنْدَرُ مَا بَيْنَهُمَا كَمَا سَيَأْتِي (وَجَدَ مِنْ دُونِهِمَا) أَيْ أَمَامَهُمَا (قَوْمًا لَا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ قَوْلًا) أَيْ لَا يَفْهَمُونَهُ إِلَّا بَعْدَ بُطْءٍ وَفِي قِرَاءَةٍ بِضَمِّ الْيَاءِ وَكَسْرِ الْقَافِ (قَالُوا يَا ذَا الْقَرْنَيْنِ إِنَّ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ) بِالْهَمْزِ وَتَرْكِهِ هُمَا اسمان أَعْجَمِيَّانِ لِقَبِيلَتَيْنِ فَلَمْ يَنْصَرِفَا (مُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ) بِالنَّهْبِ وَالْبَغْيِ عِنْدَ خُرُوجِهِمْ إِلَيْنَا (فَهَلْ نَجْعَلُ لَكَ خَرْجًا) جُعْلًا مِنَ الْمَالِ وَفِي قِرَاءَةٍ خَرَاجًا (عَلَىٰ أَنْ تَجْعَلَ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمْ سَدًّا) حَاجِزًا فَلَا يَصِلُونَ إِلَيْنَا (قَالَ مَا مَكَّنِّي) وَفِي قِرَاءَةٍ بِنُونَيْنِ مِنْ غَيْرِ إِدْغَامٍ (فِيهِ رَبِّي) مِنَ الْمَالِ وَغَيْرِهِ (خَيْرٌ) مِنْ خَرْجِكُمْ

الَّذِي تَجْعَلُونَهُ لِي فَلَا حَاجَةَ بِي إِلَيْهِ وأجعل لَكُمُ السَّدَّ تَبَرُّعًا ﴿فَأَعِينُونِي بِقُوَّةٍ﴾ لما أطلبه منكم ﴿أَجْعَلْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ رَدْمًا﴾ حَاجِزًا حَصِينًا ﴿آتُونِي زُبَرَ الْحَدِيدِ﴾ قِطَعَه عَلَى قَدْرِ الْحِجَارَةِ الَّتِي يبني بها فبنى بها وَجَعَلَ بَيْنَهَا الْحَطَبَ وَالْفَحْمَ ﴿حَتَّىٰ إِذَا سَاوَىٰ بَيْنَ الصَّدَفَيْنِ﴾ بِضَمِّ الْحَرْفَيْنِ وَفَتْحِهِمَا وَضَمِّ الْأَوَّلِ وَسُكُونِ الثَّانِي أَيْ جَانِبَيِ الْجَبَلَيْنِ بِالْبِنَاءِ وَوَضَعَ الْمَنَافِخَ وَالنَّارَ حَوْلَ ذٰلِكَ ﴿قَالَ انفُخُوا﴾ فَنَفَخُوا ﴿حَتَّىٰ إِذَا جَعَلَهُ﴾ أَيِ الْحَدِيدَ ﴿نَارًا﴾ أَيْ كَالنَّارِ ﴿قَالَ آتُونِي أُفْرِغْ عَلَيْهِ قِطْرًا﴾ هُوَ النُّحَاسُ الْمُذَابُ تَنَازَعَ فِيهِ الْفِعْلَانِ وَحُذِفَ مِنَ الْأَوَّلِ لِإِعْمَالِ الثَّانِي النُّحَاسُ الْمُذَابُ عَلَى الْحَدِيدِ الْمُحْمَيِ فَدَخَلَ بَيْنَ زُبَرِهِ فَصَارَا شَيْئًا واحدا ﴿فَمَا اسْطَاعُوا﴾ أَيْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ ﴿أَن يَظْهَرُوهُ﴾ يَعْلُوا ظَهْرَهُ لِارْتِفَاعِهِ وَمَلَاسَتِهِ ﴿وَمَا اسْتَطَاعُوا لَهُ نَقْبًا﴾ لِصَلَابَتِهِ وسمكه ﴿قَالَ﴾ ذُو الْقَرْنَيْنِ ﴿هَٰذَا﴾ أَيِ السَّدُّ أَيِ الْإِقْدَارُ عَلَيْهِ ﴿رَحْمَةٌ مِّن رَّبِّي﴾ نِعْمَةٌ لِأَنَّهُ مَانِعٌ مِنْ خُرُوجِهِمْ ﴿فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ رَبِّي﴾ بخروجهم القريب من البعث ﴿جعله دكا﴾ مَدْكُوكًا مَبْسُوطًا ﴿وَكَانَ وَعْدُ رَبِّي﴾ بِخُرُوجِهِمْ وَغَيْرِهِ ﴿حقا﴾ كائنا

**ترجمه:** بیا هغه دیوبل سفر تیاري شروع کړو تردې پورې چه هغه داسې مقام ته اورسیدو چه هغه د دواؤ غرونوپه مینځ کښې وو دسین فتحه اوضمه دواړه دی، دلته هم او روستوهم، دترک دښآرونوپه اختتام کښې دواه غرونه دی سکندر ددغه دواړو غرونو مینځ کښې دره بنده کړه خنکه چه به ډیر زر «ددې» ذکر رروان دې، نو دغه دواړو غرونو هغه طرف ته یعنی هغوی ته مخامخ یوداسې قوم ئې اموندلوچې هغوی په مشکله په څه خبره پوهیدل یعنی ددیروخت نه پس «اشارې وغیره سره» په یوقراءت کښې دې په ضمه اود قاف په کسره سره دې نوهغوی اوئیل اې ذوالقرنین یاجوج اوماجوج په همزه اوبغیر دهمزه دواړه قراءتونه دی دا دواړه دعجمی قبیلونومونه دی دې وجې نه «یعنی دعجمه اوعلم کیدودوجې نه» غیرمنصرف دی، زمونږ په دې زمکه کښې راځی اوقتلونه اوژوبلتیه کوی فسا د خوری آیا مونږ ستاد پاره دڅه خرچې انتظام اوکړو یعنی دچندې په طورباندې جمع کړواوپه یوقراءت کښې خراجادې په دې شرط باندې چه ته زمونږ اودهغوی په مینځ کښې یودیوال جوړ کړې یعنی یو پرده چې دهغې په وجه دوی مونږ ته نه رارسی ذوالقرنین جواب ورکړوزما «قدرت» اوختیار کښې چه، زما پروردګارچه څه مال وغیره راکړې دې دهغې نه چه تاسومادپاره خومره هم جمع کوی ډیر بهتر «ډیر زیات» دې نولهذا زما دپاره ستاسودمال ضرورت نشته دې زه به هم داسې «بغیر د معاوضه نه» ستاسو دپاره دیوال جوړ کرم مکنی کښې یوقراءت ددواړوسره بغیرد ادغام نه یعنی مکنی هم دې البته تاسوطاقت «محنت مزدوری» سره زما مدد اوکړئ کله چه زه ستاسونه مطالبه اوکرم نوستاسو اودهغوی په مینځ کښې به یو دیوال جوړکرم یعنی مظبوط بند اوردوم «ښه نو» نوتاسوماته داوسپنې لوئ لوئ ټکړې راوړئ دچې دهغې نه دیوال جوړشی، نو «ذوالقرنین» داوسپنودټکړوپه مینځ کښې لرګئ اوکوئله کښخوده تردې پورې چه کله

ودغه دیوال ردې د دوارو غرونو پورې برابرشو (صدفین کښې ډیر قراء تونه دی) (۱) دصاد اوفاء د دوارو په ضمه سره (۲) د دوارو په فتحه سره (۳) دصاد په ضمه او دفاء په سکون سره یعنی ددوارو غرونو په پینځ کښې خلاء لره تعمیر کولو سره ډکه کړه او ددې خوشا ددم کشو (پوهک وهونکو) او داور نظم اوکړو، نو حکم ئې اوکړو چې اوپوهکئ نوهغوی پوهکی ورکړه تردې چه هغه اوسپنې ته اور اولګیدو یعنی داور پشان سورکړو نوحکم ئې اوکړوچې اوس مالره ویلې شوې تانبآ راوړئ چه زه ئې په (ګرمه اوسپنه باندې واچوم قطر ویلې شوې تانبا قطرا کښې دوه فعلونو تنازع کړې ده فعل ثانی لره عمل اورکولودجې نه داول فعل (مفعول قطرا) حذف کړې شو،ویلې شوې تانبائی په اوسپنه واچوله نوهغه د اوسپنوپه تختوکښې ننوتوسره یوځیز شو، نو یاجوج اوماجوج په دې دیوال باندې د اوچتوالی اودغور والی دوجې نه نه راختې شول اونه په دې کښې ئې سورې کولوشو ددې دسختوالی دوجې نه اوددې دمظبوطوالی دوجې نه ذوالقرنین اوئیل دا د دوی دیوال یعنی ددې په جورلوباندې قدرت ورکول زما درب رحمت یعنی نعمت دې ځکه چه دا به دخروج دپاره مانع وی نوکله چه زما درب وعده یعنی قیامت ته نزدې ددوی دخروج وخت راشی نو زما رب به دا دیوال ریزه ریزه کړی اوزما دپروردګار وعده ددوی دخروج وغیره حقه ده چې هغه به خامخه کیږی ـ

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** سدمصدر (ن) بندول ـ

**قوله:** بین السدین دبلغ مفعول دې بین کوم چې دبأن مصدر دې ځکه دظروف متصرفه نه دې یاجوج اوماجوج دا دواړه عجمی لفظونه دی او دوؤ قبیلوداجدادونومونه دی دا دواړه قومونه دحضرت نوح علیه السلام دخوې یافث دنسل نه دی دعجمه او علم د وجې نه غیر منصرف دی خرج محصول بعضې حضراتو خرج او خراج په دواړو کښې دافرق بیان کړې دې چه خرج زر فدیه ته وائی اوخراج عام دې چې په کښې زر فدیه، ټیکس، محصول وغیره ټول شامل دی ـ

**قوله:** مکنی دا په اصل کښې مکننی وو، ماضی واحد مذکر غائب مصدر تمکین بااختیار او بااقتدار جوړول نی کښې نون وقایه اوي ضمیر متکلم مفعول به بیا لام کلمه نون ساکن کولوسره په نون وقایه کښې ادغام کړې شو ردم پیر اومضبوط دیوال ردم (ض) مصدر دې سورې بندول خودلته مصدر په معنی داسم مفعول دې صدف دغرسوکه ـ

**قوله:** اسطاعوا په اصل کښې استطاعوا وو تاء او طاء قریب المخرج کیدو دوجې نه

دنخفيف دپاره تا حذف کړې شوه ـ

**قوله:** الوعد وخت يا مصدر په معنى دموعود اى القيامة ـ

**قوله:** آتونى تاسوما له راوړئ زبرادزبرة جمع ده څنګه چه غرف دغرفة جمع ده د اوسپنې پليټ

**قوله:** آتونى افرغ دتنازع فعلان د قبيلې نه دي قطرادافرغ مفعول اول دې دآتونى مفعول ثانى محذوف دې ـ

**قوله:** يظهروه په تاويل دمصدر سره د ماسطاعوا مفعول دې ـ

**قوله:** اي السد اى الاقدر عليه سره ئې اول دهذا مشار اليه متعين کړو بيائې دا اوښودل چې د ديوال نه د ديوال دجوړولو توفيق مراد دې کوم چې په حقيقت کښې رحمت خداوندى دې، مطلب دا دې چې ديوال خو دغه قوم په حقله رحمتِ خداوندى دې او ددې ديوال د جوړولو توفيق دذوالقرنين دپاره رحمت خداوندى دې ـ

**قوله:** بخروجهم مفسر علام د بخروجهم اضافه کولو سره دوعدې مصداق متعين کړو چې وعده قرب قيامت کښې ددوى خروج دې، بعضې حضراتو دوعدې نه ددې ديوال ماتيدل او روست کيدل مراد اخستې دى.

**قوله:** يموج د ترکنا مفعول ثانى دې او بعضهم مفعول اول دې او ترکنا په معنى د جعلنا دې يومئذ د يموج سره متعلق دې ـ

**[اياتونه: ۹۹-۱۱۰]**

قال تعالى (وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ يَوْمَئِذٍ) يَوْم خُرُوجِهِمْ (يَمُوجُ فِي بَعْضٍ) يَخْتَلِط بِهِ لِكَثْرَتِهِمْ (وَنُفِخَ فِي الصُّورِ) اي الْقَرْن لِلْبَعْثِ (فَجَمَعْنَاهُمْ) اي الْخَلَائِق فِي مكان واحد يوم القيامة (جَمْعًا) (وَعَرَضْنَا) قربنا (جَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ لِلْكَافِرِينَ عَرْضًا) (الَّذِينَ كَانَتْ أَعْيُنُهُمْ) بَدَل مِنَ الْكَافِرِينَ (فِي غِطَاءٍ عَنْ ذِكْرِي) اي القرآن فَهُمْ عُمْي لا يَهْتَدُونَ بِهِ (وَكَانُوا لَا يَسْتَطِيعُونَ سَمْعًا) اي لا يَقْدِرُونَ أَنْ يَسْمَعُوا مِنَ النَّبِيِّ مَا يَتْلُوهُ عَلَيْهِمْ بُغْضًا لَهُ فَلا يُؤْمِنُونَ به (أَفَحَسِبَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنْ يَتَّخِذُوا عِبَادِي) اي مَلَائِكَتِي وَعِيسَى وَعُزَيْرًا (مِنْ دُونِي أَوْلِيَاءَ) أربابًا مَفْعُول ثَانٍ لِيَتَّخِذُوا وَالْمَفْعُول الثَّانِي لِحَسِبَ مَحْذُوف الْمَعْنَى أظنوا أَنَّ الِاتِّخَاذ الْمَذْكُور لا يُغْضِبنِي وَلا أُعَاقِبهُمْ عَلَيْهِ كَلا (إِنَّا أَعْتَدْنَا جَهَنَّمَ لِلْكَافِرِينَ) هَؤُلاءِ وَغَيْرهمْ (نُزُلًا) اي هِيَ مُعَدَّة لَهُمْ كَالْمَنْزِلِ الْمُعَدّ لِلضَّيْفِ (قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُمْ بِالْأَخْسَرِينَ أَعْمَالًا) تَمْيِيز طَابَقَ الْمُمَيَّز وَبَيَّنَهُمْ بِقَوْلِهِ (الَّذِينَ ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا) بَطَلَ عَمَلهمْ (وَهُمْ يَحْسَبُونَ) يَظُنُّونَ (أَنَّهُمْ يُحْسِنُونَ صُنْعًا) عَمَلًا يُجَازَوْنَ عَلَيْهِ (أُولَئِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ) بِدَلَائِل تَوْحِيده مِنَ الْقُرْآن وَغَيْره (وَلِقَائِهِ) اي وَبِالْبَعْثِ وَالْحِسَاب وَالثَّوَاب وَالْعِقَاب (فَحَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ) بَطَلَتْ (فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا) اي لا نجعل لهم قدرا (ذَلِكَ) اي الْأَمْر الَّذِي ذُكِرَتْ مِنْ حُبُوط أَعْمَالهمْ وَغَيْره مُبْتَدَأ خَبَره (جَزَاؤُهُمْ جَهَنَّمُ بِمَا كَفَرُوا وَاتَّخَذُوا آيَاتِي وَرُسُلِي هُزُوًا) اي مَهْزُوءًا

بهما ﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ كَانَتْ لَهُمْ﴾ فِي عِلْمِ اللهِ ﴿جَنَّاتُ الْفِرْدَوْسِ﴾ هُوَ وَسَطُ الْجَنَّةِ وَأَعْلَاهَا وَالْإِضَافَةُ إِلَيْهِ لِلْبَيَانِ ﴿نُزُلًا﴾ مَنْزِلًا ﴿خَالِدِينَ فِيهَا لَا يَبْغُونَ﴾ يَطْلُبُونَ ﴿عَنْهَا حِوَلًا﴾ تَحَوُّلًا إِلَى غَيْرِهَا ﴿قُلْ لَوْ كَانَ الْبَحْرُ﴾ أَيْ مَاؤُهُ ﴿مِدَادًا﴾ هُوَ مَا يُكْتَبُ بِهِ ﴿لِكَلِمَاتِ رَبِّي﴾ الدَّالَّةِ عَلَى حِكَمِهِ وَعَجَائِبِهِ بِأَنْ تُكْتَبَ بِهِ ﴿لَنَفِدَ الْبَحْرُ﴾ فِي كِتَابَتِهَا ﴿قَبْلَ أَنْ تَنْفَدَ﴾ بِالتَّاءِ وَالْيَاءِ تَفْرُغَ ﴿كَلِمَاتُ رَبِّي وَلَوْ جِئْنَا بِمِثْلِهِ﴾ أَيِ الْبَحْرِ ﴿مَدَدًا﴾ زِيَادَةً فِيهِ لَنَفِدَ وَلَمْ تَفْرُغْ هِيَ وَنَصْبُهُ عَلَى التَّمْيِيزِ ﴿قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ﴾ آدَمِيٌّ ﴿مِثْلُكُمْ يُوحَى إِلَيَّ أَنَّمَا إِلَهُكُمْ إِلَهٌ وَاحِدٌ﴾ أَنَّ الْمَكْفُوفَةُ بِمَا بَاقِيَةٌ عَلَى مَصْدَرِيَّتِهَا وَالْمَعْنَى يُوحَى إِلَيَّ وَحْدَانِيَّةُ الْإِلَهِ ﴿فَمَنْ كَانَ يَرْجُو﴾ يَأْمُلُ ﴿لِقَاءَ رَبِّهِ﴾ بِالْبَعْثِ وَالْجَزَاءِ ﴿فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ﴾ أَيْ فِيهَا بِأَنْ يُرَائِيَ ﴿أَحَدًا﴾

ترجمه: الله تعالی اوفرمائیل اومونږ به دوی د دوی راوتلو په ورځ په خپل مینځ کښې چپې وهونکې ګډوډ پریږدو د دوی دکثرت دوجې نه اوصور یعنی په ښکرکښې به پوهکې اوهلې شي دبعث دپاره اومونږبه ټولولره یعنی ټول مخلوق به دقیامت په ورځ رایوځای کولوسره جمع کړواوپه دغه ورځ به مونږ جهنم دکافرانووړاندې پیش کړودچاپه سترګوباندې دا دالکافرین نه بدل واقع دې چه زمونږ دیاد نه پرده پرته وه یعنی دقرآن نه غافل وو، داخلق رانده دی دقرآن نه هدایت نه شی حاصلولې هغوی اوریدلې هم نشو یعنی رسول الله ﷺ سره د بغض او دعداوت دوجې نه دهغوی خبرې اوریدل ئې هم نه خوښول .نوبیا دایمان راوړو به څه سوال پیدا شی ؟ توایادې کافرانوداخیال کړې دې چې دوی به ما نه سوا زما بندګانولره (یعنی زما ملائکو، عیسیٰ، او عزیر لره به کارساز یعنی رب به ئې جوړ کړی، اولیاءد یتخذوامفعول ثانی دې اودحسب مفعول ثانی محذوف دې اومعنی دآیت داده آیا دا کافران داتخاذ مذکور په باره کښې داګنړی (دا خیال کوی) چې داخبره به مونږ غضبناک نه کړی ؟ اودا چې زه به په دې خبره باندې دوی ته سزا ورنه کړم ؟ هرګزیه داسې نه وی، مونږ ددې کافرانو اوددې پشان دنوروکافرانو دضیافت دپاره جهنم تیار کړې دې، څنګه چې په دنیاکښې دمیلمنو دپاره مهمان خانې تیاریږی تاسودوی ته اووائې چې آیا مونږ تاسوته داسې خلق اوښایو کوم چې داعمالو په اعتبار سره بالکل په نقصان کښې دی ؟ اعمالا تمیزدې دممیزمطابق دې، اونقصان اوچتونکو لره ئې په خپل قول الذین ضل سعیهم فی الحیوة الدنیا سره بیان کړل، داهغه خلق دی چې ددوی کړې شوې محنت په دنیاکښې بیکاره شو اودضل سعیهم نه مراد بطل عملهم دې حال دادې چې هغوی ګنړی (دا خیال کوی) چې هغوی ښه کار کوی داسې اعمال کوی دکوم چې به هغوی ته اجرملاویږی، داهغه خلق دی کوموچې دخپل پروردګار دآیتونو یعنی قرآن وغیره دلائل دتوحید اودهغه په وړاندې دپیشې یعنی دبعث او دحساب او ثواب وعقاب انکار اوکړو نو د هغوی ټول اعمال حبط (باطل) شو پس دقیامت په ورځ به مونږ دهغوی دپاره لږ هم وزن قائم نه کړو یعنی مونږ به دهغوی د اعمالو ذرابرابرهم

قدراو قيمت اونه كړودا يعنى هغه امور دكوموچې ذكراوكړې شو بطلانِ عمل وغيره ذلک يعنى حبط اعمال وغيره دكوم چې ذكر اوشو، او جزاءهم جمله مستانفه ده دهغوى دكفردوچې نه دهغوى جزاء جهنم دې اوزما آيتونو او زما رسولانو پورې ئې توقې اوكړې يعنى دهغې توقې ئې جوړې كړې بيشكه هغه كسان چې ايمان ئې راوړو اونيک اعمال ئې اوكړل دهغوى دپاره دالله په علم كښې دجنت الفردوس ضيافت ميلمستيا ده اوجنت الفردوس دجنت په مينځ كښې دتولونه اعلى درجه ده اوپه جنات الفردوس كښې اضافت بيانيه دې په دغه جنت كښې به هغوى هميشه وى دهلته نه به بل يو ځائې دپاره دانتقال مكانى خواهش نه كوى تاسو اوفرمائې كه چرې سمندر يعنى دهغې اوبه سياهى جوړه شى چې په هغې ليكل كيږى زما درب دكلماتو د ختميدونه رومبې به هغه ختم شى اگر كه مونږ دهغې پشان سمندر دهغې په مددې كښې راوړو نوبيابه هم ختم شى اوزما درب كلمات به ختم نشى او مدادا دتميز په وجه منصوب دې تاسو اوفرمائې چې ځه خو هم ستاسو پشان انسان يم سرې يم البته زما طرف ته وحى كيږى داچې ستاسو تولو معبودصرف يو معبود دې ان په كوم چې ما كافه داخله شوې ده هغه په خپل مصدريت باندې باقى دې د آيت معنى داده چې زما طرف ته دوحدانيتِ إله وحى كيږى لهذا څوک چې دخپل رب دملاقات آرزومند وى اميد واروى دبعث او دجزاء په ذريعه نوهغه له پكاردى چې نيک عمل اوكړى اودخپل رب په عبادت كښې څوک شريک نه كړى په دې توگه باندې چې په عبادت كښې رياكارى اونه كړى ـ

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** قَالَ تعالى په ددې جمله سره مفسرعلام اشاره اوكړه چې دذوالقرنين كلام پوره شواو اوس د وتركنانه دالله تبارک وتعالى كلام شروع كيږى ـ

**قوله:** يومئذٍ تفسير ئې په يوم خروجهم سره كولو كښې دمراد د تعيين طرف ته اشاره اوكړه، څكه چې بعضې مفسرينو د يومئذٍ نه هغه ورځ مراداغستلې ده په كومه ورځ چې ئې د هغوى لاره بنده كړې وه دكومې په وجه چې هغوى په خپل مينځ كښې په جهگړو شو، او بعضې مفسرينو وئيلې دى چې د يومئذٍ نه قرب قيامت كښې دقتلِ دجال نه پس خروج مراد دې، دمفسرعلام په نيزچونكه دويمه معنى راجح ده څكه ئې د يومئذٍ تفسير په يوم خروجهم سره كولو كښې خپل مختار مذهب طرف ته اشاره اوكړه اگر چې دمحققيو په نيزاولنې معنى راجح ده ـ

**قوله:** يموج(ن) موجا چپې وهل، دموجونو اوچتيدل د نفخ فى الصور تفسير ئې په اى القرن للبعث سره كولو كښې دې خبرې طرف ته ارشاه اوكړه چې دلته نفخه ثانيه مرادده څكه چې نفخه اولى خو به دكائناتو د فناكولو دپاره وى په فجمعنا كښې فاتعقيبيه هم په دې باندې دلالت كوى.

**قوله:** غطاء ددې معنی اگرچه سر پوش (پرده) دی خودلته مرادی معنی غفلت ده د عرضنا تفسیر په قربنا سره د کولو مقصد د عرضنا په صله کښې لام صحیح گرځول دی گنې دعرضنا صله خوعلی راځی د کانوا عطف په کانت باندې دې بیاجمله د الکافرین صفت دې الذین کفروا د حسب فاعل دې په الحسب باندې همزه په محذوف باندې داخل دې اوفاء عاطفه ده تقدیری عبارت دادې اکفروافحسبوااودا استفهام توبیخی دې۔

**قوله:** ان یتخذواد حسب مفعول به قائم مقام ددوؤ مفعولونو دې عبادی د یتخذوامفعول اول دې او اولیاء مفعول ثانی دې او من دونی د عبادی نه حال دې د حسب مفعول ثانی محذوف هم کیدې شی لکه څنگه چې دشارح خیال دې۔

**قوله:** اعمالاتمیزدې، جمع یا خودمشاکلت په توگه باندې ده یا داعمالو دانواعو دخیال کولودوچې نه جمع راؤ رلې شوې ده حالانکه په تمیزکښې اصل افراد دې۔

**قوله:** الذین مع صله دمبتدأ محذوف خبر دې ای هم الذین داجمله مستانفه ده اودمن هم؟په جواب کښې واقع شوې ده الذین،د الاخسرین صفت، بدل، اوعطف بیان هم کیدې شی وهم یحسبون جمله د ضل دفاعل نه حال دې۔

**قوله:** ذلك د ذلك نه پس ای الامرالذی ذکرت الخ داضافه کولو یومقصدخودادې چې ذلك الامرد مبتدأ محذوف خبردې، اودویم مقصد د ذلك مشارالیه متعین کول دی۔

**قوله:** ذلك جزاء هم کښې دترکیب په اعتبار سره څلور احتمالات دی ① ذلك دمبتدأ محذوف الامر خبر دې ای الامرذلك او جزاءهم مستقله جمله ده ② ذلك مبتدأ اول او جزاءهم مبتدأ ثانی او جهنم ددې خبر،مبتدأثانی دخپل خبرسره جمله خبر دمبتدأ اول اوعائد محذوف دې ای جزاءهم به ③ ذلك مبتدأ مبدل منه او جزاءهم ددې نه بدل یاعطف بیان، بدل مبدل منه یا مبین دبیان سره مبتدأ او جهنم ددې خبر ④ ذلك مبتدأ او جزاهم مبدل منه او جهنم ددې بدل یا بیان، جمله دمبتدأ خبر۔

**قوله:** نزلاد کانت خبردې اوکه چرې لهم خبر مقدم وی نونزلا به جال وی اوخالدین حال مقدره دې لایبغون دویم حال دې حولاد حول نه اسم مصدر دیوځای نه بل ځای ته منتقل کیدل۔

**قوله:** لکلمات ربی په دې کښې مضاف محذوف دې ای لکتابة کلمات ربی.

**قوله:** ان تنفدپه تاویل د مصدر سره د قبل مضاف الیه دې مدادتمیزدې په معنی دزیاتی، اضافه، انماکښې ماکافه ده کومې چې د ان عمل په لفظ کښې، منع کړې دې دواړه یوځای کلمه دحصرشوه، ددواړو معنوی عمل باقی دې د ان عمل دجمله تاکید دې

اوان دجملې دتاكيدسره مابعدلره په تاويل دمصدر كوي، ابن هشام نحوی (متوفی ۷۶۱هـ) مغنی اللبيب ص ۵۹ كښې تحريرفرمائی چې اصل دادې چې أن د إن فرع دې اوددې وجې نه دزمخشری دا دادعویٰ صحيح ده چې أنما د إنما په شان مفيددحصردې او مذكوره دواړه كلمات حصرمذكوره آيت كښې جمع شوې دی رومبې كلمه صفت لره په موصوف باندې دحصركولودپاره ده اودويمه ددې برعكس ده انما انا بشرمثلكم كښې د مخاطبينوپشان بشريت (صفت) مقصور دې اوانا موصوف مقصورعليه دې او انما الٰهكم اِلٰه واحد كښې معبود برحق (موصوف) مقصور دې اووحدانيت (صفت) مقصورعليه دې. پس اوس دجملې مطلب دادې چې زه خوبس هم ستاسوپشان يوسړې يم دالله تعالیٰ تولې خبرې نه پيژنم څنګه چې ئې تاسو نه پيژنئ، صرف هغه خبرې پيژنم كومې چې زما طرف ته دوحی په ذريعه راليږلې كيږی، اود دويمې جملې مطلب دا دې چې په معبود برحق كښې صرف دوحدانيت صفت دې دتعدد صفت نشته لكه څنګه چې دمشركينوخيال دې مثلكم دبشر صفت دې او انما الٰهكم په تاويل دمفرد سره ديوحیٰ نائب فاعل دې ليعمل دامرغائب صيغه ده۔

قوله: ولقاءه اى بالبعث والحساب والثواب مفسرعلام دلقاءه تفسير په مذكوره كلماتوسره كولو كښې ددې سوال جواب وركړو چې دلقاء معنی دوصول اواتصال ده اودا معنی دالله دپاره محال ده څكه چې وصول اواتصال دجسمانياتوصفت دې اوالله تعالیٰ دجسم نه پاک دې لهذا مفسرعلام دلقاء تفسيرپه والحساب وغيره كلماتوسره اوكړو۔

قوله: لانجعل لهم قدراسره ئې د فلا نقيم لهم وزنا تفسيراوكړو دې سره ئې ددې اعتراض جواب وركړو چې په بل آيت كښې دتولو اعمالودوزن ذكردې اوددې آيت نه معلوميږی چې دكافرانوداعمالووزن به نه كيږی؟ دجواب خلاصه داده چې دلته دوزن نه كولونه مراد دهغوی داعمالوقدروقميت نه كول دې،هم ددې اعتراض دډفع كولودپاره بعضې حضراتودوزنا نه پس نافعا صفت محذوف منلې دې يعنی وزن خوبه وی مګر نافع به نه وی۔

قوله: وابتداء ددې اضافه كولوسره مفسرعلام اشاره اوكړه چې داجمله مستانفه ده يعنی جزاءهم مبتدا او جهنم ددې خبراوددې عكس هم صحيح دې ۔

قوله: مهزوا، دهزوا تفسير په مهزوا سره كولوكښې ئې اشاره اوكړه چې مصدر داسم مفعول په معنی دې۔

قوله: فى علم الله په دې اضافې سره ددې سوال جواب مقصود دې چې جنت كښې به دخول په زمانه مستقبل كښې وی، دلته كانت دماضی صيغه استعمال شوې ده دكومې نه چې معلوميږی چې دخول جنت نه شوې دې۔

جواب دا دې حقیقي او واقعي دخول خو به هم په زمانه مستقبل کښې وی خو دعلم ازلی په اعتبار سره دخول شوي دې۔

**قوله:** ما دة سره اشاره ده چې مضاف محذوف دې۔

**قوله:** لنفد محذوف منلو سره ئې اشاره او کړه چې لو شرطيه دې او ددې جواب لنفد دې۔

**قوله:** لم تلفد اضافې سره هم ديو سوال مقدر جواب مقصود دې سوال دا دې چې د مذکوره آيت دالفاظو نه معلوميږي چې کلمات درب به هم ختم شی اگرچه هغه به د سمندرونو د ختميدو نه پس ختم شی؟ دجواب خلاصه داده چې قمل په معنى دغير دې۔

## [۱۹] سورة مَرْيَم

سُوْرَةُ مَرْيَم مَكِّيَّةٌ إِلَّا سَجْدَتَهَا فَمَدَنِيَّةٌ أَوْ إِلَّا ﴿فَخَلَفَ مِنْ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ﴾ الْآيَتَيْنِ فَمَدَنِيَّتَانِ وَهِيَ ثَمَانٍ أَوْ تِسْعٌ وَتِسْعُونَ آيَةً نَزَلَتْ بعد فاطر

سورة مريم مكى دې خو آيت د سجدې مدنى دې، يا **فخلف من بعدهم خلف**" دوه آيتونه مدنى دى اودا ټول ۹۸ يا ۹۹ آيتونه دى.

**وضاحت:** د سوره مريم په مكى يا مدنى كيدو كښې درې اقوال دی: (۱) پوره سورة مكى دې. (۲) دوه آيتونه په کوم کښې چه سجده ده مدنى دى. (۳) **فخلف من بعدهم**" دوه آيتونه مدنى دى.

### [ايات تولد:۱-۶]

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿كهيعص﴾ الله اعلم بمراده بذلك هذا ﴿ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ عَبْدَهُ﴾ مَفْعُول رَحْمَة ﴿زَكَرِيَّا﴾ بَيَان لَهُ ﴿إِذْ﴾ مُتَعَلِّق بِرَحْمَةِ ﴿نَادَى رَبَّهُ نِدَاءً﴾ مُشْتَمِلا عَلَى دُعَاء ﴿خَفِيًّا﴾ سِرًّا جَوْف اللَّيْل لِأَنَّهُ أسرع للإجابة ﴿قَالَ رَبِّ إِنِّي وَهَنَ﴾ ضَعُفَ ﴿الْعَظْمُ﴾ جَمِيعه ﴿مِنِّي وَاشْتَعَلَ الرَّأْسُ﴾ مِنِّي ﴿شَيْبًا﴾ تَمْيِيز مُحَوَّل عَنْ الْفَاعِل أَيْ انْتَشَرَ الشَّيْب فِي شَعْره كَمَا يَنْتَشِر شُعَاع النَّار فِي الْحَطَب وَإِنِّي أُرِيد أَنْ أَدْعُوك ﴿وَلَمْ أَكُنْ بِدُعَائِكَ﴾ أَيْ بِدُعَائِي إِيَّاكَ ﴿رَبِّ شَقِيًّا﴾ أَي خائبا فِيمَا مَضَى فَلَا تُخَيِّبنِي فِيمَا يَأْتِي ﴿وَإِنِّي خِفْتُ الْمَوَالِيَ﴾ أَيْ الَّذِينَ يَلُونِي فِي النَّسَب كَبَنِي الْعَمّ ﴿مِنْ وَرَائِي﴾ أَيْ بَعْد مَوْتِي عَلَى الدِّين أَنْ يُضَيِّعُوهُ كَمَا شَاهَدْته فِي بَنِي إِسْرَائِيل مِنْ تَبْدِيل الدِّين ﴿وَكَانَتِ امْرَأَتِي عَاقِرًا﴾ لَا تَلِد ﴿فَهَبْ لِي مِنْ لَدُنْكَ﴾ مِنْ عِنْدك ﴿وَلِيًّا﴾ ابْنًا ﴿يَرِثُنِي﴾ بِالْجَزْمِ جَوَاب الْأَمْر وَبِالرَّفْعِ صِفَة وَلِيًّا ﴿وَيَرِثُ﴾ بِالْوَجْهَيْنِ ﴿مِنْ آلِ يَعْقُوبَ﴾ جَدِّي الْعِلْم وَالنُّبُوَّة ﴿وَاجْعَلْهُ رَبِّ رَضِيًّا﴾ أَيْ مَرْضِيًّا عِنْدك

**ترجمه:** شروع کوم په نامه دالله تعالى چې بې حده مهربان اوډير رحم والا دې کهيعص ددې نه دالله تعالى څه مراد دې هغه پرې ښه پوهيږى دا (معلو) خپل بنده زکريا باندې ستادرب دحمت تذکره ده عبده درحمت مفعول دې زکريا د عبده بيان دې کله چې هغه خپل رب په مخفى توګه باندې اوبللو

اذد رحمة سره متعلق دي، يعنى داسې بلل کوم چې په رازدارئ باندې مشتمل وو دشپې په درمیانه حصه کښې ځکه چې دا (طريقه) سريع القبول ده عرض ئې اوکړواې پروردګاره زما ټول هډوکی کمزوری شوی دی اوزما په سرکښې دویختو سپینوالي خور شوې دې شیباً دفاعل نه منقول کیدوسره تمیزدې یعنی څنګه چې په لرګوکښې اور خوریږی دغه شان سپینوالی زماپه ویختوکښې خورشو(ددې باوجود) زه ستا نه یودرخواست کول غواړم (اوددې نه مخکښې هم) زه ستا نه اې زما ربه په درخواست کولوسره کله هم محرومه شوې نه یم یعنی زه ستا نه په خپله دعا کښې په زمانه تیره شوې کښې هم (ناکامه شوې نه یم) لهذا آئنده هم مامحرومه نه کړې ماته زماد نیزدې رشته درانونه اندیښنه ده چې زما نه پس یعنی زمادمرګ نه پس به دین لره ضائع کړی څنګه چې ماپه بنی اسرائیلوکښې مشاهده کړې ده اوزماښځه هم شنډه ده دکومې نه چې هیڅ اولادنه وو شوې نو (په دې صورت کښې) ته مالره دخپل طرف نه یعنی دخپل خصوصی رحمت نه (داسباب عادیه دمفقود کیدوباوجود) یو وارث یعنی داسې ځوئې کوم چې زما اوزماد دادایعقوب دخاندان دعلم اونبوت وارث جوړشي برثنی کښې دجواب امردوجې نه جزم او (جمله کیدوسره) د ولیاً صفت کیدو دوجې نه رفع ده او په یرث کښې هم مذکوره دواړه صورتونه جائزدی اواې زماپروردګاره دهٔ لره خوښ یعنی ستاپه وړاندې مقبول جوړ کړې نوالله تعالی دحضرت زکریا ﷺ داجابت دعاء په وجه باندې په توګه درحمت دحاصلیدونکی ځوئې د درخواست په جواب کښې اوفرمائیل یازکریا الخ،

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: کهیعص دادمتشابهاتوڅخه دې دکوم واقعی علم چه الله اودهغه رسول ته دې دبندګانوديپاره ددې تفشیش اوجستجوهم صحیح نه ده بعضې اسلافوددې مرادبیان کړې دې، خوهغه تخمینی (اندازتا) دې تحقیقی نه حضرت ابن عباس ﷺ فرمائیلی دی چې داد اسماء الهیه یونوم دې اوقتاده ﷺ فرمائیلی دی چې دادقرآن پاک دنومونونه یونوم دې اوبعضوداهم وئیلی دی چې دا اسم اعظم دې وغیره وغیره۔

**قوله**: ذکررحمت ربك عبده،عبده د رحمت مفعول به دې اوبعضې حضراتو د ذکرمفعول به وئیلې دې زکریاد عبده نه بدل یاعطف بیان دې په ذکررحمة کښې ذکرمصدر دخپل مفعول طرف ته مضاف دې اود مصدر فاعل محذوف دې أی ذکرالله رحمته اود رحمة مصدر اضافت درب طرف ته دمصدر اضافت دفاعل طرف ته دې اوجمله د هذامبتدأ محذوف خبردې څنګه چې مفسرعلام هذا محذوف منلوسره اشاره اوکړه ای هذا المتلوذکر رحمة ربك اویوترکیب داهم کیدې شی چې ذکررحمة ربك الخ مبتدأ ده اوددې خبرمقدم محذوف دې ای فیما یتلی علیك

ذكررحمة ربك اود ذكر رحمت مطلب درحمت معامله كول دى نه هغه ذكركوم چې دنسيان په مقابله كښې دې اذنادى د رحمة ظرف دې اوبعضې حضراتود ذكرظرف گرخولې دې مفسر علام دا ذنه پس متعلق برحمة اضافه كولو سره دااوبنودل چې اذنادى اگرچه د ذكرظرف هم كيدې شى خو دمفسرپه نيزد رحمة ظرف جوړول بهترى اى رحمة الله اياه وقت اذناداه.

**قوله:** وهن (س ض) وهنا كمزورې كيدل،

**سوال:** حضرت زكريا عليه السلام وهن العظم منى اوفرمائيل حالانكه وهن عظمى زيات مختصر دې ددې څه وجه ده ؟

**جواب:** وهن العظم منى كښې تفصيل بعد الاجمال دې ځكه چې العظم منى په جنسية مقصوده باندې واضح الدلالة دې، ځكه چه وهن العظم مطلق دې چې په كښې دحضرت زكريا عليه السلام دغيرهډوكى شامل دى منى وئيلو سره ئې خپل ځان دوباره شامل كړودغه شان د منى العظم تاكيد اوشو (ودح)

**قوله:** قال رب: داجمله دنادى ربه تفسيردې، العظم كښې الف لام استغراق جنسى دپاره دې مراد ټول هډوكى. العظم مفرد راوړلې شوې دې نه چې جمع ځكه چې دجمع اطلاق په دې صورت كښې هم صحيح دې كله چې بعضې هډوكى كمزورى شوى وى.

**قوله:** اشتعال په اصل كښې انتشار شعاع النار فى الحطب ته وائى، شيبا دتميزدوجې نه منصوب دې اودفاعل نه منقول دې تقديرى عبارت دادې انتشر الشيب فى شعرة شاب (ض) شابودها كيدل دويختوسپينډل، بعضې حضراتو شيبا د مصدريت دوجې نه منصوب وئيلې دې، په دې توگه چې اشتعل الراس دشاب په معنى دې لهذا اوس به عبارت وى شاب شيبا اوبعضې حضراتو دحال دوجې نه منصوب وئيلې دې او شيباء په معنى دشائبا وئيلې دې (روح) خودا دواړه اقوال مرجوح دى د راس نه پس ئې منى په ماقبل باندې داعتماد كولو سره ترک کړو.

**قوله:** الموالى جمع د مولى، نيزدې خپلوان، بنى عم وغيره عاقرا شنډه دعاقر دآخر نه ة حذف كړې شوې ده دحائض پشان، دحضرت زكريا عليه السلام دښځې نوم اشاع بنت فاقوذ دې اواشاع دخور نوم حنه دې داشاع نه يحيى عليه السلام او د حنه نه مريم اودمريم نه عيسى عليه السلام پيدا شوې دې دغه شان عيسى عليه السلام ديحيى دترور ځوې دې.

**قوله:** رضيا مصدر په معنى دمفعول خوښ.

**قوله:** بدعائك د دې تفسيرپه بدعائى سره كولوكښې ئې اشاره اوكړه چې دعاء مصدر دې اودخپل مفعول طرف مضاف دې اوددې عامل ى ضمير دمتكلم محذوف دې.

**قوله:** العلم والنبوة سره ئې اشاره اوكړه چه دانبياؤ ميراث علم دې نه چې مال او دولت.

[ايات نمبر:۷-۱۵]

(يَا زَكَرِيَّا إِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلَامٍ) يَرِثُ كَمَا سَأَلْتَ (اسْمُهُ يَحْيَى لَمْ نَجْعَل لَّهُ مِن قَبْلُ سَمِيًّا) اي مسمى بيحيى (قَالَ رَبِّ أَنَّى) كَيْفَ (يَكُونُ لِي غُلَامٌ وَكَانَتِ امْرَأَتِي عَاقِرًا وَقَدْ بَلَغْتُ مِنَ الْكِبَرِ عِتِيًّا) مِنْ عَتَا يَبِسَ اَيْ نِهَايَةَ السِّنِّ مِائَةً وَعِشْرِيْنَ سَنَةً وَبَلَغَتْ امْرَأَتُه ثَمَانِيَةً وَتِسْعِيْنَ سَنَةً وَاَصْلُ عِتِيٍّ عِتُوْ كُسِرَتِ التَّاء تَخْفِيْفًا وَقُلِبَتْ الْوَاو الأولى ياء لمناسبة الكسرة والثانية ياء لتدغم فيها الياء (قَالَ) الأمر (كَذَٰلِكَ) مِنْ خَلْقِ غُلَامٍ مِنْكُمَا (قَالَ رَبُّكَ هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٌ) اَيْ بِاَنْ اَرُدَّ عَلَيْكَ قُوَّةَ الْجِمَاعِ وَاَفْتُقَ رَحِمَ امْرَأَتِكَ لِلْعُلُوْقِ (وَقَدْ خَلَقْتُكَ مِن قَبْلُ وَلَمْ تَكُ شَيْئًا) قَبْلَ خَلْقِكَ وَلِاِظْهَارِ اللهِ هٰذِهِ الْقُدْرَةَ الْعَظِيْمَةَ اَلْهَمَهُ السُّؤَالَ لِيُجَابَ بِمَا يَدُلُّ عَلَيْهَا وَلَمَّا تَاقَتْ نَفْسه اِلَى سُرْعَةِ الْمُبَشَّرِ بِهِ (قَالَ رَبِّ اجْعَل لِّي آيَةً) اَيْ عَلَامَةً عَلَى حَمْلِ امْرَأَتِيْ (قَالَ آيَتُكَ) عَلَيْهِ (أَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ) اَيْ تَمْتَنِعَ مِنْ كَلَامِهِمْ بِخِلَافِ ذِكْرِ اللهِ (ثَلَاثَ لَيَالٍ) اَيْ بِاَيَّامِهَا كَمَا فِيْ آلِ عِمْرَانَ ثَلَاثَةَ اَيَّامٍ (سَوِيًّا) حَالٌ مِنْ فَاعِلِ تُكَلِّمَ اَيْ بِلَا عِلَّةٍ (فَخَرَجَ عَلَىٰ قَوْمِهِ مِنَ الْمِحْرَابِ) اَيْ الْمَسْجِدِ وَكَانُوْا يَنْتَظِرُوْنَ فَتْحَه لِيُصَلُّوْا فِيْهِ بِاَمْرِهِ عَلَى الْعَادَةِ (فَأَوْحَىٰ) اَشَارَ (إِلَيْهِمْ أَن سَبِّحُوا) صَلُّوْا (بُكْرَةً وَعَشِيًّا) اَوَائِلَ النَّهَارِ وَاَوَاخِرَه عَلَى الْعَادَةِ فَعَلِمَ بِمَنْعِهِ مِنْ كَلَامِهِمْ حَمْلَهَا بِيَحْيَى وَبَعْدَ وِلَادَتِه بِسَنَتَيْنِ قَالَ اللهُ تَعَالَى لَهُ (يَا يَحْيَىٰ خُذِ الْكِتَابَ) اَيْ التَّوْرَاةَ (بِقُوَّةٍ) بجد (وَآتَيْنَاهُ الْحُكْمَ) النبوة (صَبِيًّا) بن ثلاث سنين (وَحَنَانًا) رَحْمَةً لِلنَّاسِ (مِّن لَّدُنَّا) مِنْ عِنْدِنَا (وَزَكَاةً) صَدَقَةً عَلَيْهِمْ (وَكَانَ تَقِيًّا) رُوِيَ اَنَّه لَمْ يَعْمَلْ خَطِيْئَةً وَلَمْ يَهُمَّ بِهَا (وَبَرًّا بِوَالِدَيْهِ) اَيْ مُحْسِنًا اِلَيْهِمَا (وَلَمْ يَكُن جَبَّارًا) مُتَكَبِّرًا (عَصِيًّا) عَاصِيًا لِرَبِّهِ (وَسَلَامٌ) مِنَّا (عَلَيْهِ يَوْمَ وُلِدَ وَيَوْمَ يَمُوتُ وَيَوْمَ يُبْعَثُ حَيًّا) اَيْ فِيْ هٰذِهِ الْاَيَّامِ الْمَخُوْفَةِ الَّتِيْ يَرٰى مَا لَمْ يَرَهُ قَبْلَهَا فَهُوَ آمِنٌ فِيْهَا

**ترجمه:** اې زکريا مونږ تاته ديوفرزند خوشخبرى درکوو کوم چې به ستا ددرخواست مطابق وارث وى دده نوم به يحيى وى مخکښې مونږ څوک دده همنام نه دې کړې يعنى ديحيى همنام نوزکريا عليه السلام عرض اوکړواې زماپروردګاره زما هلک به څنګه کيږى حالانکه زما ښځه شنډه ده اوزهد بوداتوب انتهائى درجې ته رسيدلې يم عتيا دعتا نه ماخوذ دې په معنى ديبس يعنى دعمرآخرى مرحلې ته رسيدلې يم کوم چې يوسل اوشل کاله دې اوزمابنځه د ۹۸ کالوشوې دې عتي په اصل کښې عتوو په وزن دفعود تخفيف دپاره تاء لره ئې کسره ورکړه اول واو لره دکسرې دمناسبت د وجې نه په ى سره بدل کړو اوبيا دويم واو لره هم په ى سره بدل کړو ياء په ياء کښې ادغام کړه بيا دعين کلمې ضمه هم دتاء دموافقت دپاره په کسرې سره بدله کړې شوه نو عتيا شو الله تعالى اوفرمائيل ستاسو دواړو نه دهلک دپيدائش معامله به هم په دې (موجوده) حالت کښې کيږى ستا درب فرمان دې چې دا (امر) زمادپاره آسان دې يعنى داچې زه به په تاکښې دجماع قوت واپس کړم اود استقرارحمل دپاره به ستادبى بى رحم کهولاؤ کړم اوماته پيدا کړې حالانکه ستا دخپل پيدائش نه

وراندې وجود هم نه وو الله تعالى هم د دې خپل قدرت عظيمه داظهار دپاره (د بچي) د سوال خيال د زكريا عليه السلام په زړه كښې واچولو چې د دې په جواب كښې داسې معامله اوكړى كومه چې دهغه په قدرت باندې دلالت كوى، اوچې كله د زكريا عليه السلام د په عجلت سره د مبشر به (فرزند) دپاره مشتاق شو نو زكريا عليه السلام عرض اوكړواې زما پروردګاره زما دپاره څه علامت مقرر اوفرمائې يعنى زما د ښځې دحامله كيدو څه علامه (نخښه) اوښايه الله تعالى اوفرمائيل دحامله كيدو علامت دادې چې ته به دخلقو سره كلام نه شې كولې ته به درې ورځې اودرې شپو پورې دخلقوسره بغيرد ذكرالله نه سره د صحيح سالم كيدو باوجود په كلام كولوباندې به قادر كيږې نه، څنګه چې په آل عمران د ثلثة ايام (صراحت) موجود دې سويا د تكلم دفاعل نه حال دې يعنى بغير د څه مرض نه به (كلام نه شې كولې) پس د حجرې خپل قوم راوتلو يعنى دجمات نه اوخلق دجمات د كهلاويدو منتظروو چې د معمول مطابق دهغه په اجازت سره په دې كښې عبادت اوكړې شى اوخلقو ته ئې په اشاره سره اوئيل چه تاسو خلق صبا اوماښام دخپل خداې پاكى بيانوئ مونځ كوئ، يعنى د معمول مطابق د ورځ په شروع كښې اوپه آخرى حصه كښې په دې كښې بندګى كوئ نو دخلقوسره د كلام نه كولوپه وجه زكريا عليه السلام دخپلې ښځې دحامله كيدو علم اوشو ديحيى عليه السلام دولادت نه دوه كاله پس الله تعالى يحيى ته اوفرمائيل اې يحيى كتاب يعنى تورات لره په مضبوطې سره اونيسه اومونږ ده لره هم په وړكوالى كښې حكمت نبوت عطاء كړو يعنى د دريو كالوپه عمر كښې اوخاص دخپل طرف نه دخلقو دپاره رحم دلى عطاكړه اوهغه مو دخلقو دپاره وقف كړو اوهغه (فطرى توګه باندې) پرهيزګاره وو، اوروايت كړې شوې دې چه هغوى كله هم دجرم ارتكاب نه دې كړې اونه ئې كله دجرم قصد كړې دې اودخپل مورپلار خدمت ګذاره وو يعنى دهغوى سره حسن سلوك كونكې ووسركشه متكبره او نافرمانه نه وو يعنى دخپل رب د احكاماتو خلاف ورزى كونكې نه وو اوپه ده باندې دې زمونږ د طرف نه سلام وى كله چې دې پيدا شو اوپه كومه ورځ به چې، هغه وفات كيږى اوپه كومه ورځ چې هغه ژوندې كولو سره پورته كيږى يعنى دغه درې خطرناكو ورځو كښې په كومو كښې چه (انسان) هغه څيزونه ګورى كوم ئې چې د دې نه مخكښې نه وى ليدلى (يعنى په دغه درې ورځو كښې داسې څيزونو سره واسطه راځى چې د دې نه مخكښې ئې ورسره واسطه نه وى راغلې)۔

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: يحيى (س) صيغه مضارع مثبت واحد مذكرغائب په معنى دژوندې دې وى يحيىٰ دحضرت زكريا عليه السلام دصاحبزاده نوم دې چونكه دحضرت يحيىٰ دولادت دوجې نه دهغوى دمور رحم ژوندې شو (يعنى شندتوب ئې ختم شو) څكه دهغه نوم يحيى كيخودلې شو،

یحییٰ دعلمیت اودعجمه دوجې نه غیرمنصرف دی۔

**قوله:** اسمه یحیی دغلام صفت دی لم نجعل له الخ یا خو دغلام صفت ثانی دې یا دغلام نه حال دې.

**قوله:** عتیاً دا د عتا یعتو مصدر دې، ددې معنی ده ډیر بوډها کیدل، په جوړونو او هډوکو کښې خشکی پیدا کیدل ① عتیاً د بلغت مفعول به دې ② د بلغت دمعنی دپاره مصدر موکد وی څکه چې بلوغ الکبر د عتیاً په معنی کښې دې ③ عتیاً د مصدر په موقع کښې دبلغت د فاعل نه حال واقع دې، ای بلغت عاتیاً ④ د تمیز کیدو دوجې نه منصوب کیدې شی۔

**قوله:** هین د هون نه صفت مشبه په معنی دآسان انّٰی په معنی د کیف دا دحصول ولد د کفیت باره کښې سوال دې نه چې دبعید اودمحال ګنړلو وجې نه، او استفهام تعجبی هم کیدې شی۔

**قوله:** عتیاً دې تفسیرپه نهایة السن سره تفسیر للازم دې۔

**قوله:** ثلث لیال نه پس باایامها اضافه کولو مقصد په دې آیت اود سورت آل عمران په آیت کښې تطبیق کول دی څکه چې هلته داایام ذکر دې اودلته دلیال ذکر دې۔

**قوله:** تأقت (ن) توقاً توقاً وتوقاناً مشتاق کیدل۔

**قوله:** وقد خلقتك: دعلیٰ د ضمیرنه حال دې ولم تك دخلقتك دکاف نه حال دې سویاً دلاتکلم دضمیرنه حال دې۔

**قوله:** المحراب جمات، دشیطان سره دجهګړې ځائې۔

**قوله:** حناناً ددې عطف به الحکم باندې دې حنان په معنی د رحمت، رقت قلب.

**قوله:** بعد ولادته الخ د دې مقدر منلو مقصد دې خبرې ته اشاره کول دی چې یحیی په محذوف باندې مرتب دې څکه چې دیحیی دعلوق دخوشخبرې ورکولو نه فورا پس یحیی ته په مضبوطیا سره دنیولو حکم ورکړې شوې دې حالانکه هغه لا تراوسه پورې پیدا شوې هم نه وو نومعلومه شوه چې په کلام کښې حذف دې کوم چې مفسرعلام دبعد ولادته سره ظاهر کړو۔

**[ایاتونه: ۱۶ - ۲۵]**

﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ﴾ القرآن ﴿مَرْيَمَ﴾ أي خبرها ﴿إِذِ﴾ حين ﴿انتَبَذَتْ مِنْ أَهْلِهَا مَكَانًا شَرْقِيًّا﴾ أي اعتزلت في مكان نحو الشرق من الدار ﴿فَاتَّخَذَتْ مِن دُونِهِمْ حِجَابًا﴾ أرسلت سترا تستتر به لتفلي رأسها أو ثيابها أو تغتسل من حيضها ﴿فَأَرْسَلْنَا إِلَيْهَا رُوحَنَا﴾ جبريل ﴿فَتَمَثَّلَ لَهَا﴾ بعد لبسها ثيابها ﴿بَشَرًا سَوِيًّا﴾ تام الخلق ﴿قَالَتْ إِنِّي أَعُوذُ بِالرَّحْمَٰنِ مِنكَ إِن كُنتَ تَقِيًّا﴾ فتنتهي عني بتعوذي ﴿قَالَ إِنَّمَا أَنَا رَسُولُ رَبِّكِ لِأَهَبَ لَكِ غُلَامًا زَكِيًّا﴾ بالنبوة ﴿قَالَتْ أَنَّىٰ يَكُونُ لِي غُلَامٌ وَلَمْ يَمْسَسْنِي بَشَرٌ﴾ بتزوج ﴿وَلَمْ أَكُ بَغِيًّا﴾ زانية ﴿قَالَ﴾ الأمر

(كَذٰلِكَ) مِنْ خَلْقِ غُلَامٍ مِنْكِ مِنْ غَيْرِ أَبٍ (قَالَ رَبُّكِ هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٌ) أَيْ بِأَنْ يَنْفُخَ بِأَمْرِي جِبْرِيْلُ فِيْكِ فَتَحْمِلِي بِهِ وَلِكَوْنِ مَا ذُكِرَ فِي مَعْنَى الْعِلَّةِ عَطَفَ عَلَيْهِ (وَلِنَجْعَلَهُ آيَةً لِلنَّاسِ) عَلٰى قُدْرَتِنَا (وَرَحْمَةً مِنَّا) لِمَنْ آمَنَ بِهِ (وَكَانَ) خَلْقُهُ (أَمْرًا مَقْضِيًّا) بِهِ فِي عِلْمِي فَنَفَخَ جِبْرِيْلُ فِي جَيْبِ دِرْعِهَا فَأَحَسَّتْ بِالْحَمْلِ فِي بَطْنِهَا مصورا (فَحَمَلَتْهُ فَانْتَبَذَتْ) تَنَحَّتْ (بِهِ مَكَانًا قَصِيًّا) بعيدًا من اهلها (فَأَجَاءَهَا) جَاءَ بِهَا (الْمَخَاضُ) وَجَعُ الْوِلَادَةِ (إِلٰى جِذْعِ النَّخْلَةِ) لِتَعْتَمِدَ عَلَيْهِ فَوَلَدَتْ وَالْحَمْلُ وَالتَّصْوِيْرُ وَالْوِلَادَةُ فِي سَاعَةٍ (قَالَتْ يَا) لِلتَّنْبِيْهِ (لَيْتَنِي مِتُّ قَبْلَ هٰذَا) الْأَمْرِ (وَكُنْتُ نَسْيًا مَنْسِيًّا) شَيْئًا مَتْرُوْكًا لَا يُعْرَفُ وَلَا يُذْكَرُ (فَنَادَاهَا مِنْ تَحْتِهَا) أَيْ جِبْرِيْلُ وَكَانَ أَسْفَلَ مِنْهَا (أَلَّا تَحْزَنِي قَدْ جَعَلَ رَبُّكِ تَحْتَكِ سَرِيًّا) نَهْرَ مَاءٍ كَانَ قَدِ انْقَطَعَ (وَهُزِّي إِلَيْكِ بِجِذْعِ النَّخْلَةِ) كَانَتْ يَابِسَةً وَالْبَاءُ زَائِدَةٌ (تُسَاقِطْ) أَصْلُهُ بِتَاءَيْنِ قُلِبَتِ الثَّانِيَةُ سِيْنًا وادغمت في السين وفي قراءة تركها (عَلَيْكِ رُطَبًا) تَمْيِيْزٌ (جَنِيًّا) صِفَتُهُ

ترجمه: اواې محمد ﷺ په دې کتاب يعنی په قرآن کښې دمريم يعنی دهغې دقصې ذکراوکړه کله چې هغه دخپلې اهل خانې نه جداشوه يوداسې مکان کښې کوم چې دمشرق طرف ورو لاړه يعنی د دار(بيت المقدس) دمشرق طرف ته تنهائې ځاې ته لاړه اوداهل خانه طرف ته ئې پرده واچوله يعنی پرده ئې زوړنده کړه چې يوبند (حائل) شی (او) خپل سر يا خپلو جامو کښې سپکې اوګوری يا دحيض نه دطهارت دپاره غسل اوکړې شی نوموږ هغې ته خپل روح جبرئيل عليه الصلاة والسلام لره اوليږلونوهغه دهغې مخکښې دجامواچولونه پس دمکمل سړی په شکل کښې ظاهر شو حضرت مريم اوئيل چې زه دخپل خدائې پناه طلب کوم که چرې تاته لګه هم دخدائې ويره وی نوته به ددې ځائې نه زمادپناه طلب کولو دوجې لرې شې حضرت جبرائيل عليه الصلاة والسلام ورته جواب ورکړوچې زه ستادرب قاصديم تالره يوپاکيزه هلک درکولوپاره راغلې يم اودهغه پاکيزګی دنبوت دوجې نه ده نوحضرت مريم اوئيل زما څنګه بچې کيديشی حالانکه ماته کوم بشرلاس هم نه دې لګولې نکاح کولو سره اونه زه بدکاره زانيه يم فرښتې اوئيل امرخوهم داسې دې چې ستانه بغير د پلاره هلک پيداشی ستا د پروردګار ارشاد دې چې دازمادپاره ډيره آسانه ده په داسې طريقه چې جبرائيل په تا کښې زما په حکم پوک اوهی بيا به دهغې دوجې نه ته حامله شې، مذکور (يعنی هوعلی هين)چونکه د علت په معنی کښې دې لهذاپه دې باندې لنجعله عطف کړې شوې دې اودې دپاره چې مونږ دې په خپل قدرت باندې خلقودپاره نخښه جوړه کړم او رحمت زمونږ د طرف نه د هغه کس دپاره کوم چې زمونږپه قدرت باندې پوره يقين لری اوددغه (ولد) تخليق فيصله شوې خبره ده زماپه علم کښې، نوحضرت جبرائيل دحضرت مريم دقميص په ګريوان کښې پوک اوهلو نوحضرت مريم په خپله خيټه کښې (حمل) متشکل محسوس کړو نوحضرت مريم په فرزند سره حامله شوه اوددې وجې نه يوائې دخپل اهل خانه نه لرې يومقام ته لاړه بيا دردزه هغې لره

ديوي كهجورې تنې لره راوستله دې دپاره چې هغې ته دده اولګوی بیاهغې (ماشوم) اوزیګولو او دا حمل او تشکل اوولادت (تول هرڅه) په يوساعت کښې اوشول وئیل ئې کاش چې زه ددې واقعې نه وړاندې مړه شوې وې اوزه داسې نیست نابود متروک څیزشوې وې نه چازه پیژندم اونه زما تذکره کیدله هم په دغه وخت کښې دې ته دلاندې جانب نه جبرائیل کوم چې دمریم ګس طرف ته ووآواز وركړوچه ته غمژنه کیږه مه ستارب ستادلاندې يوه چینه جاري کړې ده يعنی داسې نهر(جاري کړو) دکوم نهراوبه چې اوچې شوې وې اودکهجورې تنه خپل طرف ته خوزوه حالانکه هغه اونه اوچه وه بجذع کښې باء زائده ده ستاپه وړاندې به تروتازه پخې کهجورې راوغورزوی رطبا تمیزدې اوجنیا ددې صفت دې تساقط ددې اصل په دوه تاګانوسره دې دویمه تا په سین سره بدله شوه اوسین په سین کښې مدغم کړې شواوپه يوقراءت کښې ترک تاء سره هم دې اى تساقط.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** واذكرفي الكتاب مريم ددې عطف د كلام سابق په مضمون باندې دې تقدیردعبارت دا دې اعلم ذكر رحمة ربك عبده زكريا واذكرفي الكتاب مريم قصتها.

**قوله:** اذكر في الكتاب مريم: أي قصة مريم مضاف محذوف دې مريم په معنى د عبادت ګذاره،زاهده اودخادمة الرب ده، په الكتاب كښې الف لام دعهد دې مراد قرآن کریم دې.

**قوله:** اذانتبذت دمضاف محذوف ظرف دې کوم چې مفسرعلام خبرها وئیلوسره ظاهرکړو دمریم نه بدل الكل يا بدل اشتمال هم كيديشي ـ (مظهري)

**قوله:** مكانا شرقيا موصوف د صفت سره يا خود انتبذت ظرف دې ياذدې مفعول به دې څکه چې انتبذت د اتت معنى ته مشتمل دې اى اتت مكانا انتبذت اى ابتعدت وتنحت یو طرف ته كيدل ـ لرې کیدل.

**قوله:** لتغلي مضارع واحد مؤنث غائب دې دپاره چې سپكې اوګورى.

**قوله:** روحنا اى جبرائيل

**قوله:** بعدلبسها ثيابا دا د دې شبهې جواب دې چې په حديث كښې راغلی دی چې په کوم کورکښې ښځه سرتورسروی نو هغه كور ته درحمت فرښتې نه راځی نومریم خوبې لباسه وه، څنګه فرښته داخل شوه؟ جواب دا دې چې دخل بعدلبسها.

**قوله:** فتنتهي محذوف منلوسره ئې اشاره اوکړه چې دان كنت تقيا جواب شرط فتنتهي محذوف دې.

**قوله:** بتكوين مفسرعلام دبتكوين اضافه كولوسره ديوسوال جواب وركړو، سوال دادې چې لم

بمس دا دعدم جماع نه كنايه ده لهذا داجماع حلال اوحرام دواړو ته شامل دې په دې صورت كښې به د لم اك بغيا دوينا ضروت نه وو؟

جواب: خلاصه داده چې په عرف كښې مس وطئ حلال ته شامل دې وطئ حرام عرفا د دې نه خارج دې وطئ حرام اووطئ حلال ددواړو نفي دپاره ئې د لم اك بغيا اضافه اوفرمائيله۔

قوله: لم اك بغيا بغية ئې اونه فرمائيلو حالانكه موقع دبغية وه ځكه چې داصفت په عام توګه باندې په ښځوكښې زيات وى نوددې دحائض اودعاقرد قبيلې نه دكيدوپه وجه باندې دتا ضرورت نشته۔

قوله: قال ربك هوعلیّ هين د قال كذلك د علت قائم مقام دې، يعنى داسې به كيږى ځكه چې دازمونږ دپاره آسان دې، په اصل كښې داديواعتراض جواب دې، اعتراض دادې چې دلته دجمله تعليليه عطف په غيرتعليليه باندې كيږى كوم چې جائزنه دې؟ جواب دادې چې معطوف عليه هم جمله تعليليه ده لهذاد لنجعله آية للناس عطف به په دې باندې درست وى۔

قوله: رحمة عطف په آية باندې دې۔

قوله: فاجاءها د دې تفسيرپه جاء بها سره كولوكښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې جاء او اجاء دواړه په يومعنى كښې دى يعنى دواړه متعدى بيک مفعول دى په ظاهره داشبه وه چې كله د جاء په شروع كښې دهمزې اضافه اوكړه نو شايد دابه متعدى بدومفعول شوى وى دا شبه مفسر علام د اجاءها تفسيرپه جاء بها سره كولوكښې دفع كړو، دويم جواب داهم كيديشى چې اجاء د جاء په معنى كښې دې اوچې كله استعمال بدل شونومتعدى بيک مفعول شو۔ (جمل)

قوله: المخاض درد زه (س)۔

**[ایاتونه: ۳٦-٤۰]**

(فَكُلِي) مِنَ الرُّطَبِ (وَاشْرَبِي) مِنَ السَّرِيّ (وَقَرِّي عَيْنًا) بِالْوَلَدِ تَمْيِيزٌ مُحَوَّلٌ مِنَ الْفَاعِلِ أَيْ لِتَقَرَّ عَيْنُكِ بِهِ أَيْ تَسْكُنْ فَلَا تَطْمَحُ إِلَى غَيْرِهِ (فَإِمَّا) فِيهِ إِدْغَامُ نُونِ إِنِ الشَّرْطِيَّةِ فِي مَا الزَّائِدَةِ (تَرَيِنَّ) حُذِفَتْ مِنْهُ لَامُ الْفِعْلِ وَعَيْنُهُ وَأُلْقِيَتْ حَرَكَتُهَا عَلَى الرَّاءِ وَكُسِرَتْ يَاءُ الضَّمِيرِ لِالْتِقَاءِ السَّاكِنَيْنِ (مِنَ الْبَشَرِ أَحَدًا) فَيَسْأَلُكِ عَنْ وَلَدِكِ (فَقُولِي إِنِّي نَذَرْتُ لِلرَّحْمَنِ صَوْمًا) أَيْ إِمْسَاكًا عَنِ الْكَلَامِ فِي شَأْنِهِ وَغَيْرِهِ مِنَ الْأَنَاسِيِّ بِدَلِيلِ (فَلَنْ أُكَلِّمَ الْيَوْمَ إِنْسِيًّا) أَيْ بَعْدَ ذَلِكَ (فَأَتَتْ بِهِ قَوْمَهَا تَحْمِلُهُ) حَالٌ فَرَأَوْهُ (قَالُوا يَا مَرْيَمُ لَقَدْ جِئْتِ شَيْئًا فَرِيًّا) عَظِيمًا حَيْثُ أَتَيْتِ بِوَلَدٍ مِنْ غَيْرِ أَبٍ (يَا أُخْتَ هَارُونَ) هُوَ رَجُلٌ صَالِحٌ أَيْ يَا شَبِيهَتَهُ فِي الْعِفَّةِ (مَا كَانَ أَبُوكِ امْرَأَ سَوْءٍ) أَيْ زَانِيًا (وَمَا كَانَتْ أُمُّكِ بَغِيًّا) أَيْ زَانِيَةً فَمِنْ أَيْنَ لَكِ هَذَا الْوَلَدُ (فَأَشَارَتْ) لَهُمْ (إِلَيْهِ) أَنْ كَلِّمُوهُ

﴿قَالُوا كَيْفَ نكلم من كان﴾ اي وجد ﴿في المهد صبيا﴾ ﴿قَالَ إِنِّي عَبْدُ اللَّهِ آتَانِيَ الْكِتَابَ﴾ أي الإنجيل ﴿وجعلني نبيا﴾ ﴿وجعلني مباركا أينما كُنتُ﴾ أي نفاعا للناس إخبار بما كتب له ﴿وأوصاني بالصلاة والزكاة﴾ امرني بهما ﴿ما دمت حيا﴾ ﴿وبرا بوالدتي﴾ منصوب بجعلني مقدرا ﴿وَلَمْ يَجْعَلْنِي جَبَّارًا﴾ متعاظما ﴿شَقِيًّا﴾ عاصيا لربه ﴿وَالسَّلَامُ﴾ من الله ﴿عَلَيَّ يَوْمَ وُلِدتُّ وَيَوْمَ أَمُوتُ وَيَوْمَ أُبْعَثُ حَيًّا﴾ يقال فيه ما تقدم في السيد يحيى قال تعالى: ﴿ذلك عيسى بن مريم قَوْلَ الْحَقِّ﴾ بالرفع خبر مبتدأ مقدر اي قول بن مريم وبالنصب بتقدير قلت والمعنى القول الحق ﴿الَّذِي فِيهِ يَمْتَرُونَ﴾ من المرية أي يشكون وهم النصارى قالوا إن عيسى بن الله كذبوا ﴿مَا كَانَ لِلَّهِ أَن يَتَّخِذَ مِن وَلَدٍ سُبْحَانَهُ﴾ تنزيها له عن ذلك ﴿إِذَا قَضَى أَمْرًا﴾ أي أراد أن يحدثه ﴿فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُن فَيَكُونُ﴾ بالرفع بتقدير هو وبالنصب بتقدير أن ومن ذلك خلق عيسى من غير اب ﴿وَإِنَّ اللَّهَ رَبِّي وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ﴾ بفتح أن بتقدير اذكر وبكسرها بتقدير قل بدليل ﴿مَا قُلْتُ لَهُمْ إِلَّا مَا أَمَرْتَنِي بِهِ أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ رَبِّي وَرَبَّكُمْ﴾ ﴿هَذَا﴾ المذكور ﴿صِرَاطٌ﴾ طريق ﴿مُّسْتَقِيمٌ﴾ مؤد إلى الجنة ﴿فَاخْتَلَفَ الْأَحْزَابُ مِن بَيْنِهِمْ﴾ أي النصارى في عيسى اهو بن الله أو إله معه أو ثالث ثلاثة ﴿فَوَيْلٌ﴾ فشدة عذاب ﴿لِّلَّذِينَ كَفَرُوا﴾ بما ذكر وغيره ﴿مِن مَّشْهَدِ يَوْمٍ عَظِيمٍ﴾ أي حضور يوم القيامة وأهواله ﴿أَسْمِعْ بِهِمْ وَأَبْصِرْ﴾ بهم صيغتا تعجب بمعنى ما أسمعهم وما أبصرهم ﴿يَوْمَ يَأْتُونَنَا﴾ في الآخرة ﴿لَٰكِنِ الظَّالِمُونَ﴾ من إقامة الظاهر مقام المضمر ﴿الْيَوْمَ﴾ أي في الدنيا ﴿فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ﴾ أي بين به صموا عن سماع الحق وعموا عن إبصاره أي اعجب منهم يا مخاطب في سمعهم وإبصارهم في الآخرة بعد أن كانوا في الدنيا صما عميا ﴿وَأَنذِرْهُمْ﴾ خوف يا محمد كفار مكة ﴿يَوْمَ الْحَسْرَةِ﴾ هو يوم القيامة يتحسر فيه المسيء على ترك الإحسان في الدنيا ﴿إِذْ قُضِيَ الْأَمْرُ﴾ لهم فيه بالعذاب ﴿وَهُمْ﴾ في الدنيا ﴿فِي غَفْلَةٍ﴾ عنه ﴿وَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ﴾ به ﴿إِنَّا نَحْنُ﴾ تأكيد ﴿نَرِثُ الْأَرْضَ وَمَنْ عَلَيْهَا﴾ من العقلاء وغيرهم بإهلاكهم ﴿وَإِلَيْنَا يُرْجَعُونَ﴾ فيه للجزاء

ترجمه: بيا پخې اوتازه كهجورې خوره اودچينې اوبه څكه او په خوږ سترګې يخوه عيناً تميزدې دفاعل نه منقول دې يعنى بچې لره كتلوسره سترګې يخوه اوسكون حاصلوه نوره ماشومانو طرف ته التفات مه كوه فإما كښې دإن شرطيه نون په مازائده كښې مدغم كړې شوې دې ترينــددې لام كلمه اوعين كلمه حذف كړې شوى دى عين كلمې حركت نقل كړې شو او راء ته وركړې شو او ياء ضميرته دالتقاء ساكنين دوجې نه كسره وركړې شوه كه ته څوک بشر او وينې اوهغه ستادبچى متعلق تپوس اوكرى نوورته اوايه چې ما ددې بچى وغيره باره خلقو سره كلام د كولونه د رحمن دپاره دسكوت روژه نيولې ده اودسكوت روژې دالله تعالى قول فلن اكلم اليوم انسيا دې يعنى زه به د دې خبرور كولونه پس هيڅ انسان سره كلام نه كومه دغه ماشوم ئې دځان سره نيولې خپل قوم ته راغله تحمله دانت ضميرنه حال دې كله چې قوم ماشوم اوليدلو وې وئيل اې مريم تاخوغټ غضب اوكړو چې بغيرد پلارنه دې

ماشوم اوزیکولو اې دهارون خورې هغه خوېوصالح سړې وواوته په عفت کښې دهغه پشان ئې ستاپلار خویدکاره زانی سړې نه وواونه ستامورېدکاره زانیه وه نوبیا ستادأماشوم څنګه پیداشو، نوحضرت مریم دهغوی دپاره دماشوم طرف ته اشاره اوکړه چې دده نه معلومات اوکړئ، نووې وئیل موږ د غیږې ماشوم سره څنګه خبرې اوکړو نوهغه ماشوم اوئیل چې زه دالله بنده یم هغه ماته کتاب انجیل راکړې دې اوزه ئې نبی جوړکړې یم اوهغه زه بابرکت یعنی دخلقودفائدې رسونکې جوړکړې یم زه چرته چې هم یم حضرت عیسٰی علیه الصلاةوالسلام په حق کښې چې څه مقدروودادهغې خبردې اوماته ئې دمونځ اودزکوٰة تاکیدی حکم فرمائیلې دې اوصاني په معنی د امرنی دې ترڅوچې زه ژوندې یم اوزه ئې دخپلې مورخدمت ګذارجوړکړې یم برا د جعلنی مقدردوجې نه منصوب دې اوزه ئې سرکش متکبر اوبدبخته دخپل رب نافرمان نه یم جوړکړې دالله دې په مابانديې سلام وی کله چې زه پيداشوم اوپه کومه ورځ چې به زه مړکیږم اوپه کومه ورځ چې به زه ژوندې کیږمه اوروړته کیږمه به ددې دریواړو مقاماتوپه تفسیرکښې به هم هغه خبره وئیلې کیږی کومه چې دحضرت سیدنایحیٰی علیه السلام په باره کښې وئیلې شوې وه دا دې عیسی ابن مریم قول ابن مریم قول حق دې دکوم په باره کښې چې خلق شک کوی قول که چرې په رفع سره وی نودمبتدأ محذوف خبربه وی ای قول ابن مریم قول الحق اوکه چرې قول باندې نصب وی نو په دې صورت کښې به قلت فعل مقدر وی دمفعول کیدودوجې نه به منصوب وی، او(د قول الحق معنی به وی) القول الحق وی (یعنی داضافت موصوف الی الصفت دقبیل نه به وی) یمترون دمریة نه مشتق دې اویمترون په معنی کښې دیشکون دې (اودا شک کونکی) نصاری دې کوموچې وئیل عیسی علیه الصلاة والسلام دالله تعالی ځوئې دې کوم چې بلکل دروغ دی دالله تعالی داشان نه دې چې هغه چالره اولادجوړکړی هغه داولاد ساتلونه بالکل پاک ذات دې دهغه پاکی بیانوم اوچې کله دڅه د کولو پیداکولو اراده کوی نوهغې ته وائی چه شه نوهغه اوشی د یکون که چرې رفع اولولې نورفع به دهوتقدیردوجې نه وی اوکه چرې نصب لولې نود ان تقدیر دوجې نه به وی اوددې (کن فیکون) دقبیل نه بغیردپلاره دعیسی علیه الصلاة والسلام پیدائش هم دې، بیشکه زما او ستاسو پروردګار صرف الله دې نوبس هم دهغه عبادت اوکړئ که ان فتح سره وی نود ان نه مخکې به اذکر مقدروی اوکه ان کسره سره وی نود ان نه مخکې به قل مقدر منل پکاروی اودقل مقدرمنلو دلیل په خپله دحضرت عیسی علیه الصلاة والسلام دا قول دې ماقلت لهم الاماامرتنی به‌دا مذکور صراط مستقیم دې کومه چې جنت ته رسونکې ده بیا دافرقې په خپل مینځ کښې اختلاف کولووالا شوې یعنی دنصاری (یوفریق) دعیسی علیه الصلاة والسلام په باره کښې اوئیل چې هغه

ابن الله دي او (دويم فريق) اوئيل چې هغه دخدائي سره دويم خدائې دي «او دريمې» اونيل چې هغه په دريو كښې دريم دي بې كافرانو دپاره مذكوره وغيره (عقائد) دوجې نه دلوئې ورځې دحاضرې سخت عذاب دې يعني دقيامت په ورځ حاضرى اوددغه ورځې سختئ.

اسمع بهم وابصربهم دواړه دتعجب صيغې دى معنى ئې ده څه ښه اوريدونكى اوڅه ښه كتونكى به وى په كومه ورځ چې به په آخرت كښې زمونږ مخې ته حاضرشى خونن په دنياكښې داظالمان په ښكاره گمراهئ كښې دى دضميرپه ځائې باندې اسم ظاهركيخودلو. مبين په معنى د بين دې، ددې گمراهئ دوجې (په دنياكښې) دحق خبره اوريدو نه كاڼرۀ دى اودحق كتلونه ړانده دى يعني اې مخاطبه ته به په آخرت كښې ددوى دكتلو اواوريدلود تيزئ نه تعجب اوكړى حالانكه داخلق په دنياكښې كاڼړه او ړانده وو اواې محمد ﷺ ته دمكې كافرانولره دحسرت دورځې نه اوېروه او هغه به دقيامت ورځ وى په كومه ورځ چې به بدكار په دنيا كښې د نيكئ په نه كولو باندې حسرت كوى اوآخرى فيصله به اوكړې شى يعني دغه خلقو دپاره به دعذاب فيصله اوكړې شى حالانكه داخلق ددغه ورځې نه غافله دى اودوى په دغه ورځ باندې ايمان نه لرى اوهم مونږ به دزمكې اوڅه چې ددې دپاسه ذوى العقول اوغيرذوى العقول دى وارثان يو دوى لره هلاك كولوسره اور په دغه ورځ به دجزاء دپاره زمونږ طرف ته واپس كړې شى

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** فريا بروزن فرى واحدمؤنث حاضرته يخې كره داد فر نه مشتق دې ددې معنى ده يخوالې عيناً تميزدې دفاعل نه محول دې اى لتقرعينك به رؤية اراءة نه واحد مؤنث حاضربانون تاكيد ثقيله ته اوگورې فرياً فرى فعيل په معنى دمفعول دې دروغ جوړول، تراشل، څرمن كټ كول وقيل معناه عظيم عجيب من كان كښې كان تامه دې صبيا دكان دضميرنه حال دې اوكه كان ناقصه وى نو صبيا به ددې خبروى ـ

**قوله:** ذلك عيسى ابن مريم قول الحق د ذلك مشاراليه مذكوره داقرار عبديت وغيره اوصافو حامل شخصيت عيسىٰ ﷺ دې ذلك مبتدأ عيسىٰ موصوف ابن مريم بتركيب اضافى صفت موصوف د خپل صفت سره دذلک مبتدأ خبر قول الحق په تركيب اضافى سره دمبتدأ محذوف خبر اى قوله قول الحق، قول الحق كښې اضافت د موصوف الى الصفت دې يعني قول الحق په معنى د القول الحق دې، اوكه قول الحق منصوب اوئيلې شى نو دالقول فعل محذوف مفعول به وى د دواړو قراءتونو په صورت كښې به قول الحق اضافت موصوف الى الصفت وى۔

في المهد دمهد نه مراد زانگو هم کیدي شي اوددې نه دمور غيږه هم مراد کيدیشی ـ

**قوله**: يمترون د امتراء نه ددې مجرد مريه دې (افتعال) جمع مذکر غائب هغوی شک کوی الذی هو فيه يمترون دمبتدأ محذوف خبردې، ای عيسى ابن مريم الذی فيه يمترون ای يترددون ويصمون ان يتخذ په تاويل دمصدر د کان اسم ای ما کان اتخاذ الولد من صفته بل هو محال عن ذلك ای عن اتخاذ الولد من ولد کښې من زائد دتاکید دپاره دې۔

**قوله**: من ذلك خلق عيسى او د کن فيکون د قبيل نه بغير د پلار نه دعيسى عليه السلام تخليق هم دې سبحانه مصدر دې فعل حذف کولو سره دهغې قائم مقام شو ای اسبحه سبحانا داجمله معترضه ده قل مقدر منلو په صورت کښې به ان الله ربي وربکم دحضرت عيسى عليه الصلاة والسلام مقوله وی اودليل ددې دادې چې حضرت عيسى فرمائيلي دی ما قلت لهم الا ما امرتني به الخ تقدير دعبارت دادې هذا من کلام عيسى عليه الصلاة والسلام بدليل ما قلت لهم الخ بهر حال ددواړو قراءتونو په صورت کښې ان الله ربي وربکم فاعبدوه دحضرت عيسى عليه الصلاة والسلام قول دې ـ

**قوله**: ترين په اصل کښې ترايين وو په دې کښې راء فاء کلمه ده اوهمزه عين کلمه ده اوياء مکسوره لام کلمه ده اوديمه ياء ساکنه ياء ضمير ده اوپه آخره کښې نون اعرابی دې يائ اولی متحرکه خپل ماقبل همزه مفتوح کيدو دوجې نه الف شو، اوس د الف او د ياءِ ضمير ساکنه په مينځ کښې التقاء ساکنينو راغله نو همزه ساقطه شوه نون اعرابی د جازم ساقط کيدو دوجې نه نون اعرابی هم ساقط شو، اودنون تاکيد ثقيله داخليدو نه پس التقاء دساکنينو راغله ياءِ ضمير او د نون تاکيد ثقيله نون اولی سره لهذا ياءِ ضمير لره کسره ورکړې شوه ـ

**خلاصه**: خلاصه داشوه چې په ترايين کښې شپږ عملونه شوې دی ① ياء په الف سره بدله کړې شوه ② الف حذف کړې شو ③ دهمزې حرکت راء لره ورکړې شو ④ همزه حذف کړې شوه ⑤ دان شرطيه دوجې نه نون اعرابی ساقط شو ⑥ ياءِ ضمير ته کسره ورکړې شوه۔

**قوله**: الأنسي يا خود انسي جمع ده يا دانسان، اناسي په اصل کښې اناسين وو نون ياء کړې شوه او ياء په ياء کښې مدغم کړې شوه نو اناسي شو۔

**قوله**: تحمله دانت دضمير نه حال دې، دبه دضمير نه هم حال کيدیشی ـ

**قوله**: من مشهد يوم عظيم دادويل سره متعلق دې ای من شهود يوم عظيم په دې صورت کښې به مشهد دمصدر په معنی وی يا به دوقتِ شهود اودمکان شهود په معنی وی په دې صورت کښې به مشهد د ظرف زمان اودمکان دواړو معنی به وی ـ

**قوله:** لكن الظلمون د مشركينو د قباحت او شناعت بيانولو د پاره د اسم ضمير لكنهم په ځاي باندي اسم ظاهر ظالمون اوفرمائيلو دي دپاره چي ددوى په اعمال قبيحه او شنيعه باندي دلالت اوشي ـ

**قوله:** اي بعد ذلك ددي عبارت داضافي مقصد ددي اعتراض جواب وركول دى چي په كلام كښي تناقض دي ځكه چي پورته وئيلي شوى دى انى نذرت للرحمن صوما ددي جمله نه دكلام نه كولو منخته (نذر) معلوم شوددي نه پس حضرت مريم اوئيل فلن اوكلم اليوم انسيا حالانكه دا كلام دي؟ جواب دادي چي زه به ددي نه پس هيچاسره كلام نه كوم، د كان تفسيرپه وجد سره كولو كښي ئي اشاره اوكړه چي كان تامه دي اوكان زائده هم كيدي شي، او صبيا د حال دوجي نه منصوب دي اى كيف نكلم من فى المهد حال صباه ـ

اخبار عما كتب له په دي سره د جعلنى تفسير كولو كښي مقصد دا ښودل دى چي جعلنى اگرچه د ماضى صيغه دي خو مراد تري نه استقبال دي ـ

**[ اياتونه: ٤١-٥٠ ]**

(وَاذْكُرْ) لَهُمْ (فِي الْكِتَابِ إِبْرَاهِيمَ) أَيْ خَبَره (إِنَّهُ كَانَ صِدِّيقًا) مُبَالِغًا فِي الصِّدْق (نَبِيًّا) وَيُبْدَل مِنْ خَبَره (إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ) آزَر (يَا أَبَتِ) التَّاء عِوَض عَنْ يَاء الْإِضَافَة وَلَا يُجْمَع بَيْنهمَا وَكَانَ يَعْبُد الْأَصْنَام (لِمَ تَعْبُدُ مَا لَا يَسْمَعُ وَلَا يُبْصِرُ وَلَا يُغْنِي عَنْكَ) لَا يَكْفِيك (شَيْئًا) مِنْ نَفْع أَوْ ضُرّ (يَا أَبَتِ إِنِّي قَدْ جَاءَنِي مِنَ الْعِلْمِ مَا لَمْ يَأْتِكَ فَاتَّبِعْنِي أَهْدِكَ صِرَاطًا) طَرِيقًا (سَوِيًّا) مستقيما (يَا أَبَتِ لَا تَعْبُدِ الشَّيْطَانَ) بِطَاعَتِك إِيَّاهُ فِي عِبَادَة الْأَصْنَام (إِنَّ الشَّيْطَانَ كَانَ لِلرَّحْمَٰنِ عَصِيًّا) كَثِير الْعِصْيَان (يَا أَبَتِ إِنِّي أَخَافُ أَنْ يَمَسَّكَ عَذَابٌ مِنَ الرَّحْمَٰنِ) إِنْ لَمْ تَتُبْ (فَتَكُونَ لِلشَّيْطَانِ وَلِيًّا) نَاصِرًا وَقَرِينًا فِي النَّار (قَالَ أَرَاغِبٌ أَنْتَ عَنْ آلِهَتِي يَا إِبْرَاهِيمُ) فَتَعِيبهَا (لَئِنْ لَمْ تَنْتَهِ) عَنْ التَّعَرُّض لَهَا (لَأَرْجُمَنَّكَ) بِالْحِجَارَةِ أَوْ بِالْكَلَامِ الْقَبِيح فَاحْذَرْنِي (وَاهْجُرْنِي مَلِيًّا) دَهْرًا طَوِيلًا (قَالَ سَلَامٌ عَلَيْكَ) مِنِّي أَيْ لَا أُصِيبك بِمَكْرُوهٍ (سَأَسْتَغْفِرُ لَكَ رَبِّي إِنَّهُ كَانَ بِي حَفِيًّا) مِنْ حَفِيَ أَيْ بَارًّا فَيُجِيب دُعَائِي وَقَدْ أَوْفَى بِوَعْدِهِ الْمَذْكُور فِي الشُّعَرَاء وَاغْفِرْ لِأَبِي وَهَذَا قَبْل أَنْ يَتَبَيَّن لَهُ أَنَّهُ عَدُوّ اللَّه كَمَا ذَكَرَهُ فِي بَرَاءَة (وَأَعْتَزِلُكُمْ وَمَا تَدْعُونَ) تَعْبُدُونَ (مِنْ دُونِ اللَّهِ وَأَدْعُو) أَعْبُد (رَبِّي عَسَىٰ أَ) نْ (لَا أَكُونَ بِدُعَاءِ رَبِّي) بِعِبَادَتِهِ (شَقِيًّا) كَمَا شَقِيتُمْ بِعِبَادَةِ الْأَصْنَام (فَلَمَّا اعْتَزَلَهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ) بِأَنْ ذَهَبَ إِلَى الْأَرْض الْمُقَدَّسَة (وَهَبْنَا لَهُ) ابْنَيْنِ يَأْنَس بِهِمَا (إِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ وَكُلًّا) مِنْهُمَا (جَعَلْنَا نَبِيًّا) (وَوَهَبْنَا لَهُمْ) الثلاثة (مِنْ رَحْمَتِنَا) الْمَال وَالْوَلَد (وَجَعَلْنَا لَهُمْ لِسَانَ صِدْقٍ عَلِيًّا) رَفِيعًا هُوَ الثَّنَاء الْحَسَن فِي جَمِيع أَهْل الْأَدْيَان.

**ترجمه:** او ته كفار مكه ته په كتاب كښي مذكوره دابرهيم عليه الصلاة والسلام واقعه واوروه يعنى دهغي خبرورته بيان كړه بيشكه چي هغه ډيرلوي راستئ والا نبى وو يعنى ډير رشتونې نبى وو او اذقال لابيه د خبره نه بدل دي (يعنى دهغه وخت قصه بيان كړه) كله چي هغوى خپل

پلار آزر ته عرض اوکړو يا ابت اي اباجان، تا دياي اضافت په عوض کښې ده (عوض اومعوض) دواړولره جمع کول جائز نه دی او آزر بت پرستی کوله تاسودې بتانوعبادت ولې کوئ ؟ کوم چې نه اوری اونه ګوری اونه ستاسوپه څه کارراتلې شی يعنی نه کفايت کولې شی، اونه نفع رسولې شی اونه نقصان دفع کولوشی اې زما مهربانه پلاره ماته هغه علم راغلې دې کوم چې تاته نه دې راغلي لهذا تاسوزماخبره اومنئ زه به تاته صراط مستقيم يعنی سيدها لار اوښايم اې اباجانا ته دشيطان عبادت مه کوه په بت پرستئ کښې دده اطاعت کولوسره بيشکه شيطان خود رحمان لوئې نافرمانه دې يعنی په کثرت سره نافرمانی کونکې دې اې اباجاناماته ويره ده چې چرته په تاباندې عذاب الهی رانشی که چرته توبه اونه باسې او ته ته دشيطان ملګرې نه شې يعنی معاون اودجهنم ملګرې جوړنه شې (دا اوريدلوسره) پلارجواب ورکړو اې ابراهيم آيا ته زمونږ دمعبودانونه روګردانی کوې ؟ دکوم په وجه چې ته په هغوی باندې نکته چينی کوې (ښه په کهلاؤغوږونو واؤره) که چرې ته دهغوی دچيرچهاړ نه منع نشوې نوزه به تاپه کاڼړو باندې چخړی کړمه يابه تاته کنځل اوردې بدې اووايمه څه د يوې لوې مودې پورې مانه لرې اوسه نوحضرت ابراهيم عليه الصلاة والسلام اوفرمائيل نوښه ده ته زماسلام واخله يعنی زه تاته تکليف رسول نه غوارم زه به خپل رب نه ستادپاره دمغفرت درخواست اوکړمه، بيشکه چې هغه په مانباندې ډيرمهربانه دې حفياً، د حفی نه مشتق دې ددې معنی ده احسان کونکې، لهذاهغه به زما درخواست لره دقبوليت شرف ورکړی اوحضرت ابراهيم عليه الصلاة والسلام خپله وعده په دې قول سره پوره کړه کوم چې په سورة شعراء کښې مذکور دې واغفرلابی اودا دعاء کول دهغه وخت خبره ده کله چې دا واضحه کړې شوې نه وه چې هغه دالله تعالی دشمن دې، څنګه چې په سورة براءة کښې مذکوردی اوزه ستاسو اودهغه بتانونه څانله والې اختياروم دکوموچې تاسودالله پريښودلوسره عبادت کوئ زه خوبه دخپل رب بندګی کومه زماامیددې چې زه به دخپل رب بندګې کولوسره محرومه نه شم لکه څنګه چې تاسودبتانوبندګی کولوسره محروم پاتې ئې نوچې کله ابراهيم عليه الصلاة والسلام هغوی لره اودالله نه علاوه هغه ټولومعبودانولره پريښودلوسره څانله شونومونږ هغه لره دوه څامن چې دوی سره هغه انس حاصل کړی اسحاق اويعقوب عطا کړل اوهغوی مونږيان جوړکړل اومونږه دغه دريواړو ته دخپل رحمت نه مال او اولاد عطاکړل اومونږ هغوی لره د اعلی درجې ذکرجميل عطاکړو او هغه په ټولو اهل اديانو کښې د هغوی ښه تعريف دې -

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: واذکرفی الکتاب ابراهيم عطف په واذکرفی الکتاب مريم باندې دې اودا احتمال هم شته چې ددې عطف په وانذرهم يوم الحسرة باندې وی -

**قوله:** عبره ددې اضافې مقصددا ښودل دی چې دابراهیم نه مخکې مضاف محذوف دې ځکه چې خبرداحوالو وی نه چې د ذات۔

**قوله:** صدیقاً دمبالغې صیغه ده ډیرراست گو، دنبی اوصدیق په مینځ کښې دعموم خصوص مطلق نسبت دې، هرنبی صدیق وی خوهرصدیق نبی کیدل ضروری نه دی اوداشان ولی اوصدیق په مینځ کښې دعموم خصوص مطلق نسبت دې هرصدیق ولی وی خودهرولی صدیق کیدل ضروری نه دی مقام صدیقیت دمقام په اعتبارسره دمقام نبوت نه ښکته دې۔

**قوله:** اذقال لابیه دعبره نه بدل اشتمال دې۔

**قوله:** انه کان صدیقاً نبیاً دماقبل علت دې او د بدل او د مبدل منه په درمیان کښې جمله معترضه ده صدیقاً د کان خبراول دې او نبیاً ئې خبرثانی دې بعضې حضراتو وئیلی دی چې آزردحضرت ابراهیم علیه الصلاة والسلام حقیقی والد وودقرآن طرز بیان نه هم دا راجح معلومیږی او بعضې حضراتو وئیلی دی چې آزر دهغوی تره وو دعرف په اعتبار سره مجازا اب وئیلې شوې دې، دهغوی دپلار نوم تارخ دې۔

**قوله:** اراغب مبتدأ ده او انت قائم مقام دفاعل خبردې، استفهام تعجبی دې، چونکه اراغب استفهام باندې اعتماد کړې دې، لهذا دنکره مبتدأ جوړول صحیح دی، اوداهم کیدې شی چې اراغب خبرمقدم او انت مبتدأ مؤخر وی۔

**قوله:** لئن په دې کښې لام دقسم دې ای والله لئن لم تنته.

**قوله:** العصی والعاصی دواړه په یوه معنی دی عصی په اصل کښې عصوی وو، واؤ یاء کړې شوه اویاء په یاء کښې مدغم کړې شوه بیادیا دمناسبت دوجې نه صاد لره کسره ورکړې شوه، نو عصی شو۔

**قوله:** واهجرنی ملیاً عطف په واحذرنی محذوف باندې دې په کوم باندې چې لارجمنك دلالت کوی دې دپاره چې دواړه جملې انشائیه شی، د معطوف اومعطوف علیه په مینځ کښې موافقت دسیبویه په نیزباندې ضروری دې ملیاً اوږده زمانه، یوه معنی ددې دصحیح سالم هم ده، مطلب دا چې دزمانه دراز دپاره ته زما دنظرد مخې نه لرې شه، ددویمې معنی په اعتبارسره به ترجمه داشی چې ته ما په خپل حالت باندې پریږده ماسره چهیرچهار مه کوه گنی چرته په ماباندې خپل خپې لاسونه مات نه کړې، ملیاً ظرف کیدو دوجې نه منصوب دې ځکه چې مفسرعلام دهراً طویلاً مقدر منلوسره اشاره اوکړه، دواهجرنی دضمیر فاعل نه حال هم کیدیشی۔

**قوله:** نامرا او قرینا مناسبه وه چې مفسر علام قرینا باندې اکتفاء کړې وه ځکه چې د دخول نار نه پس به څوک دچا معاون نه وي ـ

**قوله:** لتکون للشیطان ولیا د آیت ظاهر مفهوم نه دا معلومیږي چې د شیطان سره ولایت په مس عذاب باندې مرتب دې یعنې د مس عذاب دوجې نه به د شیطان سره ولایت وي حالانکه حقیقت دا دې چې د شیطان سره دولایت دوجې نه مس عذاب وي؟ د دې شبهې جواب مفسر علام د قرینا فی النار اضافه کولو سره ورکړو ـ

**قوله:** حفی صفت مشبه، ډیر مهربانه، په اکرام کښې مبالغه کونکې ـ

**قوله:** کلا د جعلنا مفعول اول دې تخصیص د پاره په فعل باندې مقدم کړې شوې دې ـ

**[ایاتونه: ۵۱ ـ ۵۹]**

{وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ مُوسَىٰ إِنَّهُ كَانَ مُخْلَصًا} بِكَسْرِ اللَّامِ وَفَتْحِهَا مِنْ أَخْلَصَ فِي عِبَادَتِهِ وَخَلَّصَهُ اللهُ مِنَ الدَّنَسِ {وَكَانَ رَسُولًا نَبِيًّا} {وَنَادَيْنَاهُ} بِقَوْلِ يَا مُوسَىٰ إِنِّي أَنَا اللهُ {مِنْ جَانِبِ الطُّورِ} اسْمُ جَبَلٍ {الْأَيْمَنِ} أَيِ الَّذِي يَلِي يَمِينَ مُوسَىٰ حِينَ أَقْبَلَ مِنْ مَدْيَنَ {وَقَرَّبْنَاهُ نَجِيًّا} مُنَاجِيًا بِأَنْ أَسْمَعَهُ اللهُ تَعَالَىٰ كَلَامَهُ {وَوَهَبْنَا لَهُ مِنْ رَحْمَتِنَا} نِعْمَتِنَا {أَخَاهُ هَارُونَ} بَدَلٌ أَوْ عَطْفُ بَيَانٍ {نَبِيًّا} حَالٌ هِيَ الْمَقْصُودَةُ بِالْهِبَةِ إِجَابَةً لِسُؤَالِهِ أَنْ يُرْسِلَ أَخَاهُ مَعَهُ وَكَانَ أَسَنَّ مِنْهُ {وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ إِسْمَاعِيلَ إِنَّهُ كَانَ صَادِقَ الْوَعْدِ} لَمْ يَعِدْ شَيْئًا إِلَّا وَفَّىٰ بِهِ وَانْتَظَرَ مَنْ وَعَدَهُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ أَوْ حَوْلًا حَتَّىٰ رَجَعَ إِلَيْهِ فِي مَكَانِهِ {وَكَانَ رَسُولًا} إِلَىٰ جُرْهُمَ {نَبِيًّا} {وَكَانَ يَأْمُرُ أَهْلَهُ} أَيْ قَوْمَهُ {بِالصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ وَكَانَ عِنْدَ رَبِّهِ مَرْضِيًّا} أَصْلُهُ مَرْضُوْوٌ قُلِبَتِ الْوَاوَانِ يَاءَيْنِ وَالضَّمَّةُ كَسْرَةً {وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ إِدْرِيسَ} هُوَ جَدُّ أَبِي نُوحٍ {إِنَّهُ كَانَ صِدِّيقًا نَبِيًّا} {وَرَفَعْنَاهُ مَكَانًا عَلِيًّا} هُوَ حَيٌّ فِي السَّمَاءِ الرَّابِعَةِ أَوِ السَّادِسَةِ أَوِ السَّابِعَةِ أَوْ فِي الْجَنَّةِ أُدْخِلَهَا بَعْدَ أَنْ أُذِيقَ الْمَوْتَ وَأُحْيِيَ وَلَمْ يَخْرُجْ مِنْهَا {أُولَٰئِكَ} مُبْتَدَأٌ {الَّذِينَ أَنْعَمَ اللهُ عَلَيْهِمْ} صِفَةٌ لَهُ {مِنَ النَّبِيِّينَ} بَيَانٌ لَهُ وَهُوَ فِي مَعْنَى الصِّفَةِ وَمَا بَعْدَهُ إِلَىٰ جُمْلَةِ الشَّرْطِ صِفَةٌ لِلنَّبِيِّينَ فَقَوْلُهُ {مِنْ ذُرِّيَّةِ آدَمَ} أَيْ إِدْرِيسَ {وَمِمَّنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوحٍ} فِي السَّفِينَةِ أَيْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ ابْنِهِ سَامٍ {وَمِنْ ذُرِّيَّةِ إِبْرَاهِيمَ} أَيْ إِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ {وَ} مِنْ ذُرِّيَّةِ {إِسْرَائِيلَ} هُوَ يَعْقُوبُ أَيْ مُوسَىٰ وَهَارُونَ وَزَكَرِيَّا وَيَحْيَىٰ وَعِيسَىٰ {وَمِمَّنْ هَدَيْنَا وَاجْتَبَيْنَا} أَيْ مِنْ جُمْلَتِهِمْ وَخَبَرُ أُولَٰئِكَ {إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُ الرَّحْمَٰنِ خَرُّوا سُجَّدًا وَبُكِيًّا} جَمْعُ سَاجِدٍ وَبَاكٍ أَيْ فَكُونُوا مِثْلَهُمْ وَأَصْلُ بُكِيٍّ بُكُوْيٌ قُلِبَتِ الْوَاوُ يَاءً وَالضَّمَّةُ كَسْرَةً {فَخَلَفَ مِنْ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ أَضَاعُوا الصَّلَاةَ} بِتَرْكِهَا كَالْيَهُودِ وَالنَّصَارَىٰ {وَاتَّبَعُوا الشَّهَوَاتِ} مِنَ الْمَعَاصِي {فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا} هُوَ وَادٍ فِي جَهَنَّمَ أَيْ يَقَعُونَ فِيهِ

**ترجمه:** او په کتاب کښې مذکور دموسی علیه الصلاة والسلام ذکر اوکړئ هغه بیشکه لوې مخلص چونړ کړې شوې بنده وو په کسرې دلام او په فتحې دلام سره مخلص من اخلص فی عبادته ته وائی او مخلص من اخلصه الله من الدنس ته وائی (یعنی الله تعالی هغوی

دهرقسمه خاميانونه پاک کړی وو) هغه نبی مرسل وو او مونږ موسی ته دکوه طور ښی طرف نه
یاموسی انی انا الله وئیلو سره اواز اوکړو طور دغرنوم دې یعنی دموسی علیه الصلاة والسلام
دهغه جانب نه (اوبللو) کوم چې د مدین نه دراتللوپه وخت کښې ښی طرف ته راغی
اومونږ هغه لره دخپلې راز دارانه گفتگو دپاره خپل مقرب جوړکړو په داسې طریقه باندې چې
الله تعالی هغه ته خپل کلام واوروِلو اومونږه هغه لره دخپل رحمت نعمت په سبب دهغه
رورهارون نبی جوړکړو (هارون اخاه) نه بدل یا عطف بیان دې نماد (هارون) نه حال دی
اود وهبنا نه هم عطاء نبوت مراددې دموسی علیه الصلاة والسلام دغه درخواست
قبلولوسره هغه رور(هارون) لره نبی جوړکړو اوهارون علیه الصلاة والسلام دموسی علیه
الصلاة والسلام نه مشرو۔ اوپه کتاب کښې مذکور د اسماعیل علیه الصلاة والسلام هم
ذکراوکړئ بیشکه هغه دوعدې ډیررښتونې وو هغوی کومه وعده داسې نه ده کړې چې دهغې
پوراوالې ئې نه وی کړې او کوم سړی سره ئې چې (دانتظار) وعده کړې وه دهغه دری
ورځویا تریوکاله پورې (هم هغه ځائې کښې) انتظار کړې ووتردې پورې چې هغه سړی
کوم سره چې د انتظار وعده کړې وه دهغوی دانتظار ځائې ته واپس راغلو اوهغه دجرهم
طرف ته نبی لیږلې شوې وواوهغه خپل اهل یعنی خپل قوم لره (برابر) دمونځ او دزکوة حکم
ورکولواوهغه دخپل پروردگارپه نزدخوښ شوې وو دمرضی اصل مرضوو و، دواړه واؤونه په ی
سره بدل کړې شو او ضمه کسرې سره بدله کړې شوه و اوپه دې کتاب کښې د ادریس هم
ذکراوکړه هغه دنوح علیه الصلاة والسلام دپلار نیکه وو بیشکه هغه ډیرراستې والابی وو
اومونږه هغه اوچت مقام ته اورسولو، هغه څلورم یاشپږم یااوم اسمان یا جنت کښې ژوندې
دې اوهغه دمرگ مزه څکلونه پس جنت کښې داخل کړې شو اوژوندې کړې شواوهغه
دجنت نه دې وتلې اولئك مبتدأ ده هم دادی هغه خلق په کوموچې الله تعالی (خاص) انعام
فرمائیلې دې الذین انعم الله علیهم من النبیین نه واخله ترجمله شرطیه پورې دنبیین صفت
دې (او دا منعم علیهم) دآدم علیه الصلاة والسلام دنسل نه دی یعنی د ادریس علیه الصلاة
والسلام او په دوی کښې بعضې دهغه خلقودنسل نه دی کومولره چې مونږه دنوح علیه الصلاة
والسلام سره په کشتې کښې سواره کړی وو یعنی ابراهیم علیه الصلاة والسلام دحضرت
نوح علیه الصلاة والسلام دځوې سام دنسل نه دې اوبعضې په دوی کښې دابراهیم علیه
الصلاة والسلام دنسل نه دی یعنی اسماعیل او اسحاق اویعقوب علیهم السلام بعضې
داسرائیل دنسل نه دی اوهغه یعقوب دې موسی اوهارون اوزکریا اویحیی اوعیسی دی
اوداټول (حضرات) دهغه خلقو نه وو کوموته چې مونږه هدایت فرمائیلې وو اومقبول کړی موود
یعنی منجمله هدایت یافته مقبول خلقونه دی اود اولئك خبر اذاتتلی علیهم الخ دې سجدا ساجد

اوبکماً باك جمعه د (ددغه حضراتو دا کفيت ووچې) کله به دهغوی په وړاندې د رحمن آياتونه لوستلې شو نوهغوی سجده کونکی ژړيدونکی (په زمکه) باندې غورزيدل لهذا اې (اهل مکه) تاسوهم دهغوی پشان شی او د بکی اصل بکوی وو واؤ په ی سره اوضمه په کسرې سره بدله شوه بيادهغوی نه پس داسې ناخلف پيداشول چې هغوی مونځ پريخودلو سره ضائع کړو څنګه چې يهودو اونصارئ په معصيت کښې دخواهشاتو اتباع اوکړو داخلق به عنقريب خرابی اوګوری (غياً) په جهنم کښې ديوې وادې نوم دې يعنی په هغې کښې به غورزيږی ـ

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** واذکرفی الکتاب د موسی عطف په واذکرفی الکتاب مريم باندې عطف قصه علی القصه دې، سورة مريم کښې دلسو انبياؤ عليهم السلام اسماء مذکور دی او الله تعالی دهريوڅه اوصاف اومناقب بيان فرمائيلی دی په دې کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې دانبياء عليهم السلام توقيراوتعظيم لازم دې، آسماء مذکوره دا دی ① زکريا ② يحيی ③ ابراهيم ④ عيسیٰ⑤ اسحٰق ⑥ يعقوب ⑦اسماعيل ⑧ موسیٰ ⑨ هارون ⑩ادريس عليهم السلام ـ

مخلصاً ای موحداً اخلص عبادته عن الشرك (دافعال) نه اسم فاعل يا داسم مفعول صيغه ده ای اخلصه الله تعالی واختاره وجعله مختاراً.

**قوله:** الدنس ګندګی (ج) ادناس.

**قوله:** وکان رسولاً نبياً رسولاً د کان خبراول دې اونبياً خبرثانی دې، درسول لغوی معنی مراد ده اودنبی اصطلاحی، په رسولاً نبياً کښې مناسب داووچې عام لره ئې مقدم اوخاص لره ئې مؤخر ذکرکړې وې خو دفواصلو درعايت دوجې نه ئې عکس اوکړو، څنګه چې په سورة طٰهٰ کښې رب هارون وموسیٰ دې، اوبعضې حضراتودرسول نه اصطلاحی معنی اودنبی نه لغوی معنی مراد اخستې ده يعنی عالی مرتبه رسول، په دې وخت کښې به نبی دنبوة نه مشتق وی چې معنی ئې رفعت او اوچتوالې دې.

**قوله:** الطوردمدين او دمصر په مينځ کښې مشهور غردې دکوم نوم چې جبل زبيرهم دې ـ

**قوله:** ايمن که ديمين نه مشتق وی نوددې معنی ده ښی.

**قوله:** نجياً د قربناً دمفعول يادفاعل دضميرنه حال دې اوالايمن دجانب صفت دې ددې وجې نه په اعراب کښې ددې تابع دې بعضې حضراتوئيلی دی چې الايمن ديمن نه مشتق دې نوپه دې صورت کښې دطور صفت واقع کيدې شی يعنی د مبارک غر د طرف نه موسیٰ ته ندا اوکړه وهبنا (ف) عطا کړو.

**قوله:** من رحمتنا كنبې من تعليليه دې اى من اجل رحمتنا اخاه به په دې صورت كنبې د وهبنا مفعول به وى، اوهارون، به داخاه نه بدل وى يا به عطف بيان وى يا به داعنى محذوف دوجې نه منصوب وى نبيا دهارون نه حال دې جرهم ديمن يوه قبيله وه كومه چې داوبوسهولت ليدلودوجې نه په وادى مكه كنبې دحضرت هاجره خوا مقيم شوى وه، اوحضرت اسماعيل عليه الصلاة والسلاة چې خوان شونودغه قبيله كنبې ئې واده اوكړو، دادريس عليه الصلاة والسلاة نوم اخنوخ دې اودې دنوح عليه الصلاة والسلاة جدامجد دې۔

**قوله:** رفعنا بعضې مفسرينو وئيلى دى چې درفع نه مرادشرف نبوت دوجې نه مرتبه ده او بعضې حضراتو وئيلى دى چې رفع اسمانى مراد ده خنكه چې دمفسرعلام هم دا خيال دې

**قوله:** خلف په سكون دلام سره ناخلف (نالائق) ذپاره اوپه فتحې دلام سره د لائق اخلاف دپاره استعماليږى۔

**قوله:** يلقون مضارع جمع مذكرغائب (س) غورزيږى به، ملاقات به كوى ۔

**قوله:** غيا اسم فعل، گمراهى، عذاب ۔

**[اياتونه: ۶۰-۶۵]**

(إِلَّا) لكِنْ (مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَأُولَئِكَ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُونَ) يَنْقُصُونَ (شَيْئًا) من ثوابهم (جَنَّاتِ عَدْنٍ) إقَامَة بَدَل مِنَ الْجَنَّة (الَّتِي وعد الرحمن عباده بالغيب) حال اي غَائِبِينَ عَنْهَا (إِنَّهُ كَانَ وَعْدُهُ) اي مَوْعُوده (مَأْتِيًّا) بِمَعْنَى آتِيًا وَأَصْلَه مَأْتُوي أَوْ مَوْعُوده هُنَا الْجَنَّة يَأْتِيه أَهْله (لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا) مِنَ الْكَلَام (إِلَّا) لكِنْ يَسْمَعُونَ (سَلَامًا) مِنَ الْمَلَائِكَة عَلَيْهِمْ أَوْ مِنْ بَعْضهِمْ عَلَى بَعْض (وَلَهُمْ رِزْقُهُمْ فِيهَا بُكْرَةً وَعَشِيًّا) اي عَلَى قَدرهمَا فِي الدُّنْيَا وَلَيْسَ فِي الْجَنَّة نَهَار وَلَا لَيْل بَلْ ضَوْء وَنُور اَبَدًا (تِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي نُورِثُ) نُعْطِي وَنُنْزِل (مِنْ عِبَادِنَا مَنْ كَانَ تَقِيًّا) بِطَاعَتِهِ وَنَزَلَ لَمَّا تَاخر الْوَحْي اَيَّامًا وَقَالَ النَّبِيّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِجِبْرِيل مَا يَمْنَعك اَنْ تَزُورنَا اَكْثر مِمَّا تَزُورنَا (وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ لَهُ مَا بَيْنَ أَيْدِينَا) اي اَمَامنَا مِنْ اُمُور الْآخرة (وَمَا خَلْفَنَا) مِنْ اُمُور الدُّنْيَا (وَمَا بَيْنَ ذَلِكَ) اي مَا يَكُون فِي هَذَا الْوَقْت اِلَى قِيَام السَّاعَة اي لَهُ عِلْم ذَلِكَ جَمِيعه (وَمَا كَانَ رَبُّكَ نَسِيًّا) بِمَعْنَى نَاسِيًا اي تَارِكًا لَك بِتَاخِير الْوَحْي عَنْك هو (رب) مالك (السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا فَاعْبُدْهُ وَاصْطَبِرْ لِعِبَادَتِهِ) اي اصْبِرْ عَلَيْهَا (هَلْ تَعْلَمُ لَهُ سَمِيًّا) مُسَمًّى بذلك

**ترجمه:** (عنقريب خرابى به اوگورى) آوخوچاچې توبه اويستله او ايمان ئې راوړو اونيک عمل ئې اوكړې نوداخلق به جنت ته ځى اوددوى به ذراهم نقصان نه كيږى يعنى ددوى اجراوثواب كنبې به (ذره برابر) كمې نه كيږى جنت عدن دهميشه دقيام جنت جنت عدن، الجنة نه بدل دې هغه جنت دكوم چې رحمن دخپلوبندگانوسره وعده كړې ده بالغيب حال دې يعنى حال دادې

چې هغه بندګانو دغه جنت لیدلې هم نه دې اودهغې موعود (وعده کړې شوې ځیز) ته به دغه خلق ضرورپه جنت کښې وررسیږی ماتیا په معنی دآتیا دې ددې اصل ماتوی وویاددې موعود بها، جنت دې یعنی دجنت مستحق په دې کښې داخلیږی اودغه خلق به جنت کښې فضول خبرې نه اوری البته ځان دپاسه به دفرښتوپه خپل مینځ کښې کلام اوری دوی ته به په جنت کښې سحراوماښام خوراک ملاویږی یعنی ددنیا دعادت مطابق به په جنت کښې لیل اونهار نه وی بلکه همیشه به رنړه اونوروی دا داسې جنت دې چې مونږ به خپلو بندګانوکښې ددې داسې کس مالک جوړ کړو یعنی عطا به ئې کړو او(په دې کښې) به ئې نازل لره کوم چې متقی وی دده داطاعت په ذریعه باندې اوچې کله وحی لږه متآخره شوه اوحضور ﷺ حضرت جبرائیل علیه الصلاة والسلاة ته اوفرمائیل چې څه ځیزمانع دې ددې خبرې چې ته زمونږ ددې نه زیات ملاقات اوکړې څومره چې ته کوې (نواوفرمائیل ئې) مونږ ستادرب دحکم نه بغیرنه شو راکوزیدې زمونږ مخکې امور د آخرت اوروستو امور د دنیا اوددې په مینځ کښې یعنی هغه امورکوم چې به هغه وخت په قیامت کښې کیږی هم دهغه په ملک کښې دی یعنی ددغه ټولو امورو هم هغه ته علم دې اوستاپروردګارهیرونکې نه دې نسیا په معنی د ناسیا یعنی دوحی دتاخیردوجې نه تالره پریخودونکې نه دې هغه رب مالک دې داسمانونو اودزمکو اوڅه چې ددې په مینځ کښې دی لهذا ته هم دهغه بندګی کوه اوهم دهغه په عبادت باندې کلک اوسیږه آیاستاپه علم کښې دهغه بل څوک هم نامې شته دې _ (همسر)؟ نشته_

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** لکن دالا تفسیرپه لکن سره کولوکښې ئې اشاره اوکړه چې دامستثنی منقطع ده ځکه چې مستثنی، دمستثنی منه دجنس نه نه ده ځکه چې مستثنی منه کافرین دی اومستثنی منه مؤمنین دی کان وعده ای موعوده اوهغه موعودجنت دې ماتیا ای یاتیه ویدخله منه وعدله بها لامحالة په دې صورت کښې به ماتیاداتیان نه اسم مفعول وی یا ماتیا په معنی داسم فاعل ای آتیا البته وعد اسم مصدرهم دې په معنی دوعدې اومصدرهم دې یعنی وعده کول مفسرعلام د اوموعوده اضافه کولو سره دویم تفسیرطرف ته اشاره کړې ده د موعوده نه به ماوعدبه یعنی جنت مرادوی په دې صورت کښې به ماتیا په خپل حالت باندې وی اوکه وعدپه خپلې مصدری معنی کښې نو وی ماتیا به په معنی دآتیا وی، په اول صورت کښې به ترجمه داوی دجنت مستحقین چاسره چې رحمن وعده کړې ده هغوی به جنت ته خامخا داخلیږی اوپه دویم صورت کښې به معنی داوی الله تعالی چه د خپلوبندګانو سره کومه وعده کړې ده هغه به خامخا راځی_

[ایاتونه: ٦٦-٧٥]

لا (ویقول الإنسان) المنكر للبعث ابي بن خلف أو الْوَلِيد بن الْمُغِيرَة النَّازِل فِيهِ الْآيَة (أَإِذَا) بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَة الثَّانِيَة وَتَسْهِيلهَا وَإِدْخَال أَلِف بَيْنهَا بِوَجْهَيْهَا وَبَيْن الْأُخْرَى (مَا مِتُّ لَسَوْفَ أُخْرَجُ حَيًّا) مِنْ الْقَبْر كَمَا يَقُول مُحَمَّد فَالِاسْتِفْهَام بِمَعْنَى النَّفْي أَيْ لَا أَحْيَا بَعْد الْمَوْت وَمَا زَائِدَة لِلتَّأْكِيدِ وَكَذَا اللَّام ورد عليه بقوله تعالى (أَوَلَا يَذْكُرُ الْإِنْسَانُ) أَصْله يَتَذَكَّر أُبْدِلَتْ التَّاء ذَالًا وَأُدْغِمَتْ فِي الذَّال وَفِي قِرَاءَة تَرْكهَا وَسُكُون الذَّال وَضَمّ الْكَاف (أَنَّا خَلَقْنَاهُ مِنْ قَبْلُ وَلَمْ يَكُ شَيْئًا) فَيَسْتَدِلّ بِالِابْتِدَاءِ عَلَى الْإِعَادَة (فَوَرَبِّكَ لَنَحْشُرَنَّهُمْ) أَيْ الْمُنْكِرِينَ لِلْبَعْثِ (وَالشَّيَاطِينَ) أَيْ نَجْمَع كُلًّا مِنْهُمْ وَشَيْطَانه فِي سِلْسِلَة (ثُمَّ لَنُحْضِرَنَّهُمْ حَوْلَ جَهَنَّمَ) مِنْ خَارِجهَا (جِثِيًّا) عَلَى الرُّكَب جَمْع جَاثٍ وَأَصْله جُثُوو أَوْ جُثُوي مِنْ جَثَا يَجْثُو أَوْ يَجْثِي لُغَتَانِ (ثُمَّ لَنَنْزِعَنَّ مِنْ كُلِّ شِيعَةٍ) فِرْقَة مِنْهُمْ (أَيُّهُمْ أَشَدُّ عَلَى الرَّحْمَنِ عِتِيًّا) جَرَاءَة (ثُمَّ لَنَحْنُ أَعْلَمُ بِالَّذِينَ هُمْ أَوْلَى بِهَا) أَحَقّ بِجَهَنَّم الْأَشَدّ وَغَيْره مِنْهُمْ (صِلِيًّا) دُخُولًا وَاحْتِرَاقًا فَنَبْدَأ بِهِمْ وَأَصْله صُلُوي مِنْ صَلِيَ بِكَسْرِ اللَّام وَفَتْحهَا (وَإِنْ) أَيْ مَا (مِنْكُمْ) احد (إِلَّا وَارِدُهَا) أَيْ دَاخِل جَهَنَّم (كَانَ عَلَى رَبِّكَ حَتْمًا مَقْضِيًّا) حَتَمَهُ وَقَضَى بِهِ لَا يَتْرُكهُ (ثُمَّ نُنَجِّي) مُشَدَّدًا وَمُخَفَّفًا (الَّذِينَ اتَّقَوْا) الشِّرْك وَالْكُفْر مِنْهَا (وَنَذَرُ الظَّالِمِينَ) بِالشِّرْكِ وَالْكُفْر (فِيهَا جِثِيًّا) عَلَى الرُّكَب (وَإِذَا تُتْلَى عَلَيْهِمْ) أَيْ الْمُؤْمِنِينَ وَالْكَافِرِينَ (آيَاتُنَا) مِنْ القرآن (بَيِّنَاتٍ) واضحات حال (قَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلَّذِينَ آمَنُوا أَيُّ الْفَرِيقَيْنِ) نَحْنُ وَأَنْتُمْ (خَيْرٌ مَقَامًا) مَنْزِلًا وَمَسْكَنًا بِالْفَتْحِ مِنْ قَامَ وَبِالضَّمِّ مِنْ أَقَامَ (وَأَحْسَنُ نَدِيًّا) بِمَعْنَى النَّادِي وَهُوَ مُجْتَمَع الْقَوْم يَتَحَدَّثُونَ فِيهِ يَعْنُونَ نَحْنُ فنكون خيرا منكم قال تعالى (وَكَمْ) أَيْ كَثِيرًا (أَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِنْ قَرْنٍ) أَيْ أُمَّة مِنْ الْأُمَم الْمَاضِيَة (هُمْ أَحْسَنُ أَثَاثًا) مالا ومتاعا (ورئيا) مَنْظَرًا مِنْ الرُّؤْيَة فَكَمَا أَهْلَكْنَاهُمْ لِكُفْرِهِمْ نُهْلِك هؤلاء (قُلْ مَنْ كَانَ فِي الضَّلَالَةِ) شَرْط جَوَابه (فَلْيَمْدُدْ) بِمَعْنَى الْخَبَر أَيْ يَمُدّ (لَهُ الرَّحْمَنُ مَدًّا) فِي الدُّنْيَا يَسْتَدْرِجهُ (حَتَّى إِذَا رَأَوْا مَا يُوعَدُونَ إِمَّا الْعَذَابَ) كَالْقَتْلِ وَالْأَسْر (وَإِمَّا السَّاعَةَ) الْمُشْتَمِلَة عَلَى جَهَنَّم فَيَدْخُلُونَهَا (فَسَيَعْلَمُونَ مَنْ هُوَ شَرٌّ مَكَانًا وَأَضْعَفُ جُنْدًا) أَعْوَانًا أَهُمْ أَمْ الْمُؤْمِنُونَ وَجُنْدهمْ الشَّيَاطِين وَجُنْد الْمُؤْمِنِينَ عَلَيْهِمْ الملائكة

**ترجمه:** اوانسان وائی کوم چې دبعث بعد الموت منکردی یعنی ابی بن خلف یا ولیدبن مغیره دچاپه باره کښې چې داآیت نازل شوې دې چې آیاکله چې دهمزه ثانی تحقیق اوتسهیل سره او د همزه ثانی او د اول همزه په مینځ کښې الف داخلولو سره په دواړوصورتونو کښې (یعنی دتسهیل اودتحقیق په صورت کښې) زه مړشمه نوبیابه ژوندې کیدوسره دقبرنه راوباسلې کیږم څنګه چې محمد ﷺ وائی استفهام دنفی په معنی کښې دې (یعنی ءَاذاکښې استفهام انکاری دې) یعنی دمرګ نه پس به ژوندې نشم مااو لام دتاکیددپاره زائد دی (ددغه انسان کافرد قول جواب) دالله تعالی قول اولا یذکر(الایة) سره ورکړې شوې دې آیا دا انسان دومره هم یادنه ساتی یذکریه اصل کښې یتذکرو تاء په ذال سره

بدله کړې شوه اوذال په ذال کښې ادغام کړې شواوپه یوقراءت کښې په ترک د تاء اوپه سکون دذال اودکاف په ضمې سره هم دې چې مونږه دې ددې نه مخکې پیدا کړې دې حالانکه هغه څه هم نه وو چې دابتداء نه په اعادې باندې استدلال اوکړی ستادپروردګار قسم چې مونږه به دغه یعنی منکرین دبعث لره اوشیاطینولره به خامخا راجمع کړو یعنی په دوی کښې به هریولره د هغه شیطان به په یوزنځیر کښې راجمع کړو بیا به دوی لره په دوزخ کښې دبهرنه په زنګونانو باندې پریوتلی حاضرکړو بیابه دکافرانو د هرې ډلې نه هغه خلق جداکړو کوم چې درحمن په مقابله کښې دټولونه زیات سخت دی په سرکشۍ یعنی دجرات په اعتبار سره بیامونږ داسې خلق ښه پیژنو کوم چې دجهنم مستحق دی ددخول په اعتبارسره او د سوزیدو په اعتبارسره یعنی دجهنم زیات مستحق دی، په سرکشۍ کښې اشداوغیراشدښه پیژنو، لهذامونږبه هم د دې (اشد) خلقونه ابتداء اوکړو او صلیا په اصل کښې صلوی وو داصلی بکسراللام یا صلی بفتح اللام نه ماخوذدې اوپه تاسوکښې داسې څوک نشته چې دهغه په دې باندې تیریدل نه وی یعنی داخل جهنم نه وی داستادپروردګارپه ذمه قطعی فیصله شوې امردې کوم لره چې هغه لازم کړې دې اودهغې فیصله ئې کړې ده هغه به ترک کوی نه نفی دجیم په تشدید اوتخفیف دواړوسره بیابه مونږ دکفراوشرک نه ځان ساتونکولره بچ کړو او ظالمانو لره یعنی شرک اوکفرکونکولره به په جهنم کښې په زنګوناو باندې غورزیدلی پریږدواوچې کله هغوی ته یعنی مؤمنین اوکافرین ته زمونږه قرآنی روښانه آیاتونه لوستلوسره واوړولې شی نوکافران مؤمنانوته وائی په دواړوډلوکښې کومه ډله د مرتبې یعنی د منزل اومسکن په اعتبار سره بهتره ده زمونږه که ستاسو که مقاماً دمیم په فتح سره وی نو د قام نه به مشتق وی اوکه په ضمې دمیم سره وی نو د اقام نه به مشتق وی اودچامجلس شانداردې ندی دنادی په معنی کښې دې نادی چوپال (دارالمشوره) ته وائی چرته چې خلق جمع کیږی اوخبرې اترې کوی (احسن ندیا) نه مرادخپل ځان اخلی لهذا مونږ ستاسو نه بهتریو (الله تعالی) ددې جواب ورکولو سره فرمائی اومونږ ددوی نه وړاندې تیرشوی قومونو نه ډیرقومونه هلاک کړی دی کوم چې د ساز او سامان اود نام نمود (شان اوشوکت) په اعتبار سره (ددوی نه) بهترووکله چې مونږه هغوی لره دهغوی دکفرپه وجه باندې هلاک کړل نودوی به هم هلاک کړو تاسوورته اووائې چې کوم خلق په ګمراهۍ کښې پراته دی (من کان) شرط دې اوددې جواب فلیمدد (صیغه دامرده)، کوم چې په معنی خبر دې یعنی د یمد له معنی دې یعنی رحمٰن ددوی رسۍ سسته کوی یعنی په دنیاکښې دوی ته ښه ډهیل (مهلت) ورکوی، تردې پورې چې کله هغوی هغه څیزاوګوری دکوم چې دوی سره وعده کړې شوې ده یاخوعذاب، لکه قتل اوقید، یاقیامت کوم به چې په دوزخ باندې مشتمل وی نوپه هغې کښې به داخلیږی،

نودوی ته به ډیر زر معلومه شي چې د چاتهکانه بده ده، او د چا مددګاران کمزوری دي، دوی یا مومنان، د دوی لښکر شیطان دي، او د دوی په مقابله کښې د مؤمنانو لښکر فرښتې دي.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** ویقول الانسان د دې تفسیر په المنکرللبعث سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چې دانسان نه مخصوص کس مراد دې او هغه ابی ابن خلف یا ولید بن مغیره دې۔

**قوله:** ءَإِذَا مَا مِتُّ ما زائده ده مت واحد متکلم ماضی معروف ده مصدر موت دې د حرف شرط دوجې نه دمستقبل په معنی کښې دې۔

**قوله:** لسوف کښې لام زائده دې الانسان کښې الف لام دعهد دې، څنګه چې مفسر علام اشاره کړې ده۔

**قوله:** ءَإِذَا د أخرج ظرف مقدم کیدو دوجې نه منصوب دې۔

**سوال:** د لام تاکید مابعد په ماقبل کښې عمل نه کوی نو دلته به أخرج څنګه عمل اوکړی۔

**جواب:** د اقاعده د لام ابتداء دپاره ده او دا لام زائده دې۔

**سوال:** کوم لام چې په مضارع باندې داخلیږی هغه مضارع لره دحال معنی ته اوړی او سوف مضارع لره داستقبال معنی سره خاص کوی، ددواړو په مقتضٰی کښې تعارض دې؟

**جواب:** دا لام محض دتاکید دپاره دې تخصیص مضارع للحال د معنی نه مجرد دې لهذا اوس څه اعتراض نشته۔ (روح البیان)

بعضې مفسرینو حضراتو ونیلی دی چې ءَإِذَا کښې ابعث فعل محذوف عامل دې په کوم باندې چې أخرج دلالت کوی څکه چې د أخرج ظرف جوړول صحیح نه دی۔

**قوله:** لم یك په اصل کښې لم یکن و ونون د کثرت استعمال د وجې نه حذف کړې شو۔

**قوله:** شیعة ډله، جماعت، حمایتی، طرفدار (ج) شیع په دې کښې واحد تثنیه جمع ټول برابر دی۔

**قوله:** جثیا دا د جاثٍ جمع ده دویرې دوجې نه په زنګونانو باندې غورزیدونکې او ابن عباس رضي الله عنه فرمائیلی دی چې جثیا د جثوة جمع ده، مفسر علام د واردها تفسیر په داخل جهنم سره کولو کښې اشاره اوکړه چې وارد په مختلفو معنو کښې استعمالیږی بعضو ددې معنی حضور او بعضو عبور او بعضو دخول او بعضو مرور مراد اخستې ده مفسر علام د دخول معنی ته ترجیح ورکړې ده، لهذا دا تفسیر د تعیینِ معنی دپاره دې۔

**قوله:** ایهم اسم موصول، ددې صدر صله محذوف ده ای هو اشد ایهم اسم موصول په معنی د الذی د اضافت دوجې نه مبنی بر ضمه دې ددې صدر صله محذوف ده ای هو اشد هو مبتدأ

اشد خبرمبتدأ سره دخبرنه صله دموصول، موصول سره دصلې نه مفعول دننزعن، عتيا تميزمنقول دې دمبتدأ محذوفه نه اى عتوه اشد.

قوله: عتيا سركشى كول، دعتا يعتوا مصدر دې دا په اصل كښې عتو وضمه په كسر سره بدله كړې شوه نو واؤ شو عتيا شو بيا دعين ضمه هم په كسر سره بدله شوه دې دپاره چې دتبديلې ښه تاكيدا وشى دغه شان عتيا شو۔ (لغات القرآن)

او بعضې حضراتو عتيا دعات جمع گرځولې ده يعنى سركشى كونكې۔

قوله: صليا دا په اصل كښې دصلى يصلى مصدر سماعى دې، داخليدل۔

قوله: وارد: رسيدو والا، مراد ترې نه په پل صراط باندې تيريدل دې شارح مسلم علامه نووى هم دې ته ترجيح وركړې ده ـ

قوله: نذر: اى نترك ـ

[ اياتونه: ۷٦-۸۲ ]

{وَيَزِيدُ اللّٰهُ الَّذِينَ اهْتَدَوْا} بِالْإِيمَانِ {هُدًى} بِمَا يُنَزِّلُ عَلَيْهِمْ مِنَ الْآيَاتِ {وَالْبَاقِيَاتُ الصَّالِحَاتُ} هِيَ الطَّاعَةُ تَبْقَى لِصَاحِبِهَا {خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَخَيْرٌ مَرَدًّا} أَيْ مَا يُرَدُّ إِلَيْهِ وَيَرْجِعُ بِخِلَافِ أَعْمَالِ الْكُفَّارِ وَالْخَيْرِيَّةُ هُنَا فِي مُقَابَلَةِ قَوْلِهِمْ أَيُّ الْفَرِيقَيْنِ خَيْرٌ مَقَامًا {أَفَرَأَيْتَ الَّذِي كَفَرَ بِآيَاتِنَا} الْعَاصِي بْنُ وَائِلٍ {وَقَالَ} لِخَبَّابِ بْنِ الْأَرَتِّ الْقَائِلِ لَهُ تُبْعَثُ بَعْدَ الْمَوْتِ وَالْمُطَالِبِ لَهُ بِمَالٍ {لَأُوتَيَنَّ} عَلَى تَقْدِيرِ الْبَعْثِ {مَالًا وَوَلَدًا} فَاقْضِيكَ قَالَ تَعَالَى {أَطَّلَعَ الْغَيْبَ} أَيْ أَعَلِمَهُ وَأَنْ يُؤْتَى مَا قَالَهُ وَاسْتَغْنَى بِهَمْزَةِ الْإِسْتِفْهَامِ عَنْ هَمْزَةِ الْوَصْلِ فَحُذِفَتْ {أَمِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا} بِأَنْ يُؤْتَى مَا قَالَهُ {كَلَّا} أَيْ لَا يُؤْتَى ذٰلِكَ {سَنَكْتُبُ} نَأْمُرُ بِكَتْبِ {مَا يَقُولُ وَنَمُدُّ لَهُ مِنَ الْعَذَابِ مَدًّا} نَزِيدُهُ بِذٰلِكَ عَذَابًا فَوْقَ عَذَابِ كُفْرِهِ {وَنَرِثُهُ مَا يَقُولُ} مِنَ الْمَالِ وَالْوَلَدِ {وَيَأْتِينَا} يَوْمَ الْقِيَامَةِ {فَرْدًا} لَا مَالَ لَهُ وَلَا وَلَدَ {وَاتَّخَذُوا} أَيْ كُفَّارُ مَكَّةَ {مِنْ دُونِ اللّٰهِ} الْأَوْثَانَ {آلِهَةً} يَعْبُدُونَهُمْ {لِيَكُونُوا لَهُمْ عِزًّا} شُفَعَاءَ عِنْدَ اللّٰهِ بِأَنْ لَا يُعَذَّبُوا {كَلَّا} أَيْ لَا مَانِعَ مِنْ عَذَابِهِمْ {سَيَكْفُرُونَ} أَيِ الْآلِهَةُ {بِعِبَادَتِهِمْ} أَيْ يَنْفُونَهَا كَمَا فِي آيَةٍ أُخْرَى {مَا كَانُوا إِيَّانَا يَعْبُدُونَ} {وَيَكُونُونَ عَلَيْهِمْ ضِدًّا} أَعْوَانًا وَأَعْدَاءً

ترجمه: او د هدايت والا خلقو په هدايت كښې الله پاک زياتوالې كوى د هغه آياتونو په ذريعه كوم چه په دوى باندې نازلوى، او باقى پاتې كيدونكې نيكئ نو هغه خو طاعات دى چه د طاعت كونكو دپاره باقى پاتې كيږى ستا درب په نزد دثواب په لحاظ سره دټولو نه بهتر دى يعنى هغه ثواب او اجر چه كوم دوى ته حاصليږى هغه بهتر دې په خلاف دكافرانو داعمالو او دلته د اسم تفضيل (دخير) استعمال ددوى د قول اى الفريقين خيرمقاما په مقابله كښې شوې دې آيا تا هغه سړې هم ليدلې دې؟ چه هغه زمونږ دآيتونو نه كفر كړې دې او هغه عاص بن وائل دې چا ته چه (حضرت) خباب بن ارت وئيلى وو چه ته دمرگ نه پس

(ژوندي کړي شي) پورته کولي به شي او دخباب بن ارت دعاص بن وائل په ذمه (څه) مالي مطالبه وه نو عاص بن وائل د (تقاضي) په جواب کښي اوئيل چه دبعث بعدالموت په صورت کښي به ماته مال او اولاد ضرور راکولي شي نو په هغه وخت به زه ستا مطالبه اداکرم، الله پاک په جواب کښي اوفرمائيل آيا دا (سړي) په غيبو باندي خبرشوي دي؟ يا ده ته ښودل شوي دي چه څه ده اوئيل ده ته به ورکولي شي اودهمزهٔ استفهام دوجي نه دهمزه وصل ضروت پاتي نشو نو حذف کړي شوه، يا ده دالله پاک نه څه وعده اخستي ده داچه څه ده اوئيل هغه به ده ته ورکولي شي داسي هر گز نه ده يعني دا به ده ته نه شي ورکولي دا چه څه هم وائي مونږ دا ضرور ليکو يعني (ملائکو) ته ددي دليکلو حکم ورکوو اود ده دپاره عذاب زياتوو يعني مونږ به د ده دکفر په عذاب باندي دده (د دي) خبرو دعذاب زياتوالي اوکړو اودکومو څيزونو يعني د مال او اولاد په باره کښي چه څه وائي هغه مونږ دده (دمرګ) نه پس واخلو اودقيامت په ورځ به مونږ ته يواځي راځي نه به دده سره مال وي او نه اولاد او دغه دمکي کافرانو الله پاک پريښودي دي او بتان ئي معبودان جوړکړي دي چه دهغوي دوي بندګي کوي دي دپاره چه هغوي دوي ته دعزت باعث وي يعني هغه (بتان) الله پاک ته سفارش اوکړي چه دوي ته عذاب ورنه کړي شي خو هرګز داسي نه شي کيدي يعني دوي ته دعذاب ورکولو نه هيڅ څيز مانع نه شي کيدي هغه معبودان (باطله) د دوي دعبادت نه به هم منکر شي يعني دهغوي دعبادت نه به انکار اوکړي لکه چه په يو بل آيت کښي اوفرمائيل ماكانو ايانا يعبدون دي خلقو زمونږ عبادت هډو کړي نه دي او (اولټه به) ددوي مخالف او دشمنان شي.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** ويزيد دي عطف په فليمد د باندي دي دمعنی په اعتبار سره اى يمد ويزيد الله الذين الخ جمله مستانفه هم کيدي شي په افرأيت کښي استفهام تعجبی دي .

**قوله:** العاص بن وائل عاص بن وائل د فاتح دمصر دحضرت عمرو پلار دي اود عمرو د عبد الله پلار دي کوم چه دځلورو عبادلهٔ نه دي ترتيب دا رنګي دي، عبد الله بن عمرو بن عاص بن وائل .خباب بن ارت بدري دي او په غريبانو صحابو کښي دي اوتين دايتاء نه دفعل مضارع واحد متکلم مجهول بانون تاکيد ثقيله دي،ماته به ضرور ملاويږي لام قسميه دي اى والله لاوتين اطلع الغيب په اصل کښي أأطلع وو په دي کښي اول همزه استفهام او دويمه همزه وصل ده همزه وصل تحفيفا خذف کړي شوه .

**قوله:** کلا دنحويانو په دي کښي شپږ اقوال دي خو راجح دادي چه دا حرف زجر او ردع دي په قرآن کښي ددي کلمي استعمال په دري ديرشو ځايونو کښي شوي دي او داټول په

دويم نيمائي (نصف ثاني) كښې دې سلكټ كښې سين دتاكيد دپاره دې.
قوله: ونرثه ما يقول أي نسلبه وناخذه منه يعنى په كوم مال او اولاد باندې چه فخر كوى مونږ به دا سلب كړو اود دنيا نه به هغه خالى لاسونه لاړشى واتخذوا الاوثان د اتخذوا مفعول اول دې او الهة مفعول ثانى دې ضدا په معنى د أضداد دې يا مصدر په معنى د جمع دې

[ايا تو له: ۸۲-۹۸]

(ألم تر أنا أرسلنا الشياطين) سلطانهم (على الكافرين تؤزهم) تهيجهم الى المعاصي (أزا) (فلا تعجل عليهم) بطلب العذاب (إنما نعد لهم) الأيام واللَّيالي أو الأنفاس (عدًا) الى وقت عذابهم اذكر (يوم نحشر المتقين) بإيمانهم (إلى الرحمن وفدًا) جمع وافد بمعنى راكب (ونسوق المجرمين) بكفرهم (إلى جهنم وردًا) جمع وارد بمعنى ماش عطشان (لا يملكون) أي النّاس (الشفاعة إلا من اتخذ عند الرحمن عهدًا) أي شهادة أن لا إله إلّا الله ولا حول ولا قوة إلّا بالله (وقالوا) أي اليهود والنصارى ومن زعم أن الملائكة بنات الله (اتخذ الرحمن ولدا) قال تعالى لهم (لقد جئتم شيئا إدًا) أي منكرا عظيما (تكاد) بالتاء والياء (السماوات يتفطرن) بالتاء وتشديد الطاء بالإنشقاق وفي قراءة بالنون (منه وتنشق الأرض وتخر الجبال هدًا) أي تنطبق عليهم من أجل (أن دعوا للرحمن ولدا) قال تعالى (وما ينبغي للرحمن أن يتخذ ولدًا) أي ما يليق به ذلك (إن) اي ما (كل من في السماوات والأرض إلا آتي الرحمن عبدًا) ذليلا خاضعا يوم القيامة منهم عزير وعيسى (لقد أحصاهم وعدهم عدًا) فلا يخفى عليه مبلغ جميعهم ولا واحد منهم (وكلهم آتيه يوم القيامة فردًا) بلا مال ولا نصير يمنعه (إن الذين آمنوا وعملوا الصالحات سيجعل لهم الرحمن ودًا) فيما بينهم يتوادون ويتحابون ويحبهم الله تعالى (فإنما يسرناه) أي القرآن (بلسانك) العربي (لتبشر به المتقين) الفائزين بالإيمان (وتنذر) تخوف (به قومًا لدًا) جمع ألد أي جدل بالباطل وهم كفار مكة (وكم) أي كثيرا (أهلكنا قبلهم من قرن) أي أمة من الأمم الماضية بتكذيبهم الرسل (هل تحس) تجد (منهم من أحد أو تسمع لهم ركزًا) صوتا خفيا لا فكما أهلكنا أولئك نهلك هؤلاء

ترجمه: آيا تاته معلوم نه دى چه مونږ شيطانان په كافرانو باندې مسلط كړى دى څوک چه هغوى په معصيت باندې ښه تيزوى نو ته په دوى باندې په عذاب طلب كولو كښې جلتى مه كوه مونږ خو پخپله ددوى شپه اوورځ يا ساه دعذاب تر وخت پورې (مرګ پورې) شمار اوكړو، دهغې ورځې هم ياد ګيرنه اوكړه په كومه ورځ به چه مونږ متقيان ددوى دايمان په دولت (طور د) مليمانو سواره كړو او جمع به كړو وفد دوافد جمع ده په معنى دراكب (سور) ده او مجرمان د دوى دكفر په سبب دسختې تندې په حالت كښې ددوزخ په طرف اوشړو ورد دوارد جمع ده تږى پياده يو كس ته به دسفارش اختيار نه وى سواد هغه كس نه چا چه درحمن ذات نه اجازت اخستې وى (اود اجازت نه مراد) د شهادة ان لا اله الا الله ولا حول ولا قوة الا بالله اقرار دې او

یهودو او نصارې او هغه خلقو چه عقیده یې داده چه ملائکې دالله پاک لونړې دی اوئیل چه الله پاک اولاد لری الله پاک اوفرمائیل تاسو یقینا ډیره درنه یعنی ډیره ناخوښه خبره کړې ده تکاد په تاء اویاء سره دې، نژدې ده چه ددې خبرې (د نحوست) دوجې نه اسمان اوشلیږی او زمکه ټکرې شی اوچوی او غرونه ریزه ریزه شی او پریوزی یعنی ددوی دپاسه پریوزی ددې وجې نه چه دوی رحمن ذات لره اولاد ګرځولې دې ینفطرن په نون سره دې اوپه یو قراءت کښې یتفطرن تاء اویاء او طاء مشدده سره دې، الله پاک اوفرمائیل درحمن ذات دشان سره لائق نه دی چه اولاد اونیسی یعنی دا د هغه شان لائق نه دې په زمکو او اسمانو کښې چه څه هم دی ټول په ټول به دالله پاک په حضور کښې بندګان جوړ شی اوحاضریدو والا دی یعنی ذلیل اوخوار به شی دقیامت په ورځ او ددوی نه عزیر اوعیسی هم دی ددې ټولو هغه احاطه کړې ده اوټول یې په پوره طریقه شمار کړی دی نونه خو دهغه نه د دوی مجموعی تعداد پټ دې او د دوی یو فرد اودا ټول په ټول به دهغه په حضور کښې دقیامت په ورځ یواځې حاضریږی دمال او مددګار نه بغیر چه ددوی حفاظت اوکړې شی بیشک چاچه ایمان راوړو او نیک عملونه یې اوکړل الله پاک به ددوی په مینځ کښې محبت پیدا کړی دوی به په خپل مینځ کښې مینه اومحبت ساتی او الله پاک به هم ددوی سره محبت ساتی مونږ دغه قرآن ستا په عربئ ژبه کښې آسان کړې دې دې دپاره چه ته ددې په بدولت دجهنم نه ویریدونکو ته خوشخبری واوروې په یوه نسخه کښې لتبشر به المتقین الجنة الفائزین بالایمان' دې دپاره چه ته ددې قرآن په دولت دایمان په ذریعه کامیابیدونکو ته خوشخبری واوروې' اود جهګړې کونکې قوم ددې په ذریعه اوویروې لُد د الد جمع ده یعنی دباطل په ذریعه ډیر زیات جهګړه کونکو لره، او هغه دمکې کافران دی او مونږ ددې نه مخکښې ډیر امتونه هلاک کړی دی یعنی دتیرو شوو امتونو نه (ډیر امتونه) درسولانو دتکذیب دوجې نه آیاته په هغوی کښې ډیو دخپو کشار اورې یا ددوی آواز بهنګارستا په غوږلګی یعنی پټ آوازونه، نو مونږ چه څنګه هغوی هلاک کړل دوی به هم هلاک کړو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: تؤز مضارع واحد مؤنث غائب (ن) ازاتزول ازا، دتؤز مفعول مطلق دې الاز فی الاصل الحرکة مع صوت متصل مأخوذ من ازیز القدر ای غلیانه والمراد تعجیب الرسول صلی الله علیه وسلم من اقاویل الکفرة. (روح البیان)

قوله: اوالانفاس دا دنعدلهم دویم تفسیر دې انما نعد لهم دفلا تعجل علت دې عدا، دنعد مفعول مطلق دې یوم نحشر، د اذکر فعل محذوف ظرف دې د یوم نحشر عامل لایملکون دې، او نعدهم کیدې شی وردا د وارد اسم جمع ده، تږی په ګودر باندې راتلونکې لایملکون' دالمجرمین نه جمله حال دې الامن اتخذ دلا یملکون د ضمیر نه مستثنی متصل ده یتفطرن

دتفطر نه دمضارع جمع مؤنث غائب، هغه اوشيلږي، هدا، دتخر مفعول مطلق بغير دلفظ نه دې تخر په معنى دتهد دې اى تهد هدا او هدا د الجبال نه حال هم كيدې شي مفسر علام من اجل مقدر منلو سره دې خبرې ته اشاره اوكړه چه ان دعوا للرحمن ولدا تنشق او د تخر مفعول له دې اوپه محل دنصب كښې دې دان نه مخكښې لام محذوف منلو سره جمله محلا مجرور هم كيدې شي محلا مرفوع هم كيدې شي په دې صورت كښې به ان مصدريه شي، اوتقدير دعبارت به داشى الموجب لذلك دعاء هم للرحمن ولدا ان كل من فى السموات والارض كښې من نكره موصوفه ده فى السموات ددې صفت دې، موصوف سره دصفت نه متبداء الاآتى ددې خبر، آتى دكل لفظ درعايت د وجې نه واحد راوړلې شوې دې ودامحبت، دوستى (س) لدا دالد جمع ده جهګړا كونكې، مراد كافران او مشركين دى۔

**قوله:** العربى د دې په اضافې سره مقصد دا ښودل دى چه دلته دلسان نه مراد لغت عربى دې نه چه ژبه (يعنى آله) ركزا اسم دې كشار، (دخپو آوان

## [۲۰] سورة طه

سورة طه مكية، مائة وخمس وثلثون آية، او اربعون وثنتان،،

سورة طهٰ مكى دې، (۱۳۵) يا (۱۴۲) آيتونه دى.

### [ايالتوله:۱-۱۴]

بسم الله الرحمن الرحيم

(طه) الله أعلم بمُرَادِهِ بِذلِكَ (مَا أَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْقرآن) يَا مُحَمَّد (لِتَشْقَى) لِتتعب بِمَا فعلت بَعْد نُزُوله مِنْ طول قِيَامك بِصَلَاةِ اللَّيْل أَيْ خَفَّفْ عَنْ نَفْسك (إِلَّا) لَكِنْ أَنزَلْنَاهُ (تَذْكِرَةً) بِهِ (لِمَنْ يَخْشَى) يخاف الله (تَنْزِيلًا) بَدَل مِنَ اللَّفْظ بِفِعْلِهِ النَّاصِب لَهُ (ممن خلق الأرض والسماوات الْعُلَى) جَمْع عُلْيَا كَكُبْرَى وَكُبَر (الرَّحْمَن عَلَى الْعَرْش) وَهُوَ فِي اللُّغَة سَرِير الْمَلِك (اسْتَوَى) اسْتِوَاء يَلِيق بِهِ (لَهُ مَا فِي السَّمَاوَات وَمَا فِي الْأَرْض وَمَا بَيْنهمَا) مِنَ الْمَخْلُوقَات (وَمَا تَحْت الثَّرَى) هُوَ التُّرَاب النَّدِيّ وَالْمُرَاد الْأَرَضُونَ السَّبْع لِأَنَّهَا تحته (وَإِنْ تَجْهَر بِالْقَوْلِ) فِي ذِكْر أَوْ دُعَاء فَالله غَنِيّ عَنِ الْجَهْر بِهِ (فَإِنَّهُ يَعْلَم السِّرّ وَأَخْفَى) مِنْهُ أَيْ مَا حَدَّثت بِهِ النَّفْس وَمَا خَطَرَ وَلَمْ تُحَدِّث بِهِ فَلَا تُجْهِد نَفْسك بِالْجَهْرِ (اللَّه لَا إِلَه إِلَّا هُوَ لَهُ الْأَسْمَاء الْحُسْنَى) التِّسْعَة وَالتِّسْعُونَ الْوَارِد بِهَا الْحَدِيث وَالْحُسْنَى مؤنث الأحسن (وهل) قد (أَتَاك حَدِيث مُوسَى إِذْ رَأَى نَارًا فَقَالَ لِأَهْلِهِ) لِامْرَأَتِهِ (امْكُثُوا) هُنَا وَذَلِكَ فِي مَسِيره مِنْ مَدْيَنَ طَالِبًا مِصْر (إِنِّي آنَسْت) أَبْصَرْت (نَارًا لَعَلِّي آتِيكُمْ مِنْهَا بِقَبَسٍ) بِشُعْلَةٍ فِي رَأْس فَتِيلَة أَوْ عُود (أَوْ أَجِد عَلَى النَّار هُدًى) أَيْ هَادِيًا يَدُلّنِي عَلَى الطَّرِيق وَكَانَ أَخْطَأَهَا لِظُلْمَةِ اللَّيْل وقال لعل لعدم الجزم بوفاء الوعد (فلما أتاها) وهي شجرة عوسج (نودي يا موسى) (إني) بِكَسْرِ الْهَمْزَة بِتَأْوِيلِ نُودِيَ بِقِيلَ وَبِفَتْحِهَا بِتَقْدِيرِ الْبَاء (أَنَا) تَأْكِيد لِيَاءِ الْمُتَكَلِّم (رَبّك فَاخْلَع

نعليك إنك بالواد المُقَدَّس﴾ المُطهر أو المُبارك ﴿طُوًى﴾ بَدَل أو عَطف بَيَان بالتنوين وتَركه مَصرُوف باعتِبَار المَكَان وَغير مَصرُوف لِلتَّانِيثِ باعتِبَار البُقعَة مَعَ العلمِيَّة ﴿وَأَنَا اخترتُك﴾ مِن قَومك ﴿فَاستَمِع لِمَا يُوحَى﴾ إليك مني ﴿إنني أنا الله لا إله إلا أنا فاعبدني وأقم الصلاة لذكري﴾ فيها

ترجمه: شروع کوم زه په نوم دالله پاک چه ډیر مهربان اورحم والا دي طه دالله پاک ددې نه څه مراد دي هغه پرې ښه پوهیږی اې محمد مونږ داقرآن په تا باندې دې دپاره نه دې نازل کړې چه ته په مشقت کښې پریوځې یعنی په ستړې والی کښې پریوځې په هغه طرز عمل سره کوم چه تا دقرآن دنزول نه پس اختیار کړو دشپې مونځ په (تهجدو) کښې داوږد قیام په ذریعه، مطلب دا چه (آسانی کوه) په ځان باندې کم بوج اچوه بلکه مونږ قرآن دهغه کس دنصیحت دپاره نازل کړې دې چه دخدائ پاک نه یریږی دادهغه ذات دطرف نه نازل کړې شوې دې چه هغه زمکه او اوچت اسمانونه پیدا کړی دی تنزیلا دخپل فعل ناصب (نزلناه) په عوض کښې دې عُلی دعلیا جمع ده لکه کُبر دکبری جمع ده هغه رحمن دې په عرش باندې قائم دې په داسې قیام چه دهغه دشان سره مناسب دې او عرش په لغت کښې شاهی تخت ته وایې هم دهغه ملک دې څه مخلوق چه په اسمانونو او زمکه او ددې په مینځ کښې دې اوکوم څیزونه چه په تخت الثری کښې دی ثری نمژنه خاوره ده اومراد اومه زمکه ده ځکه چه دنمژنې خاورې لاندې ده اوکه ته ذکر اودعا په زوره کوې نو الله پاک دجهر نه مستغنی دې ځکه چه هغه خو ډیر پټ څیز ښه پیژنی یعنی په مزه وئیلې خبره اوهغه خیالات (کوم چه صرف) په زړه کښې راشی او په ژبه نه وی راغلی هغه هم پیژنی نو دجهر په ذریعه ځان په مشقت کښې مه اچوه هغه الله دې چه دهغه نه سوا هیڅوک دعبادت لائق نشته نهه نوی دهغه بهترین نومونه دی چه دهغې په باره کښې حدیث وارد شوې دې او حسنی داحسن مؤنث دې اوآیا رسیدلې دې تاته دموسی ﷺ خبر کله چه ده اور اولیدو خپلې اهلیې بی بی ته ئې اوئیل ته دلته ایساره شه او دا دمدین نه دمصر ته دتلو د وخت قصه ده ما اور لیدلو ډیر ممکن دی چه زه داور تاته دیو لرگی یا رسی په سر کښې شعلې (اولگوم) راوړم یا داور سره څوک دلارې ښودلو والا مونده کړم یعنی څوک داسې دلارې ښودونکې چه لار ښودنه اوکړه او (موسی ﷺ) دشپې دتیارې دوجې نه لار ورکه کړې وه اوموسی ﷺ دممکن یا شاید لفظ ځکه استعمال کړو چه هغه ته دوعدې پوره کولو پوره یقین نه وو پس کله چه موسی ﷺ دې اور ته اورسیدو اوهغه دبیرې اونه وه نو آواز ورکړې شو اې موسی ﷺ انی دهمزې په کسرې سره نودی دقیل په تاویل کښې راواخسته او د همزې په فتحې سره هم دې په دې صورت کښې به انی نه مخکښې باء مقدر وی (یعنی بانی) انا د یاء متکلم تاکید دې په یقین سره ستارب یم ته خپلې څپلې اوباسه ځکه چه ته په مقدس پاکه یا مبارک وادی طوی کښې یې طوی بدل دې یا عطف بیان دې تنوین اوبغیر دتنوین دواړو (جائز دې) طوی که دمکان په معنی کښې دی

نو منصرف به وی او غیر منصرف به وی کله چه طوی دبقعة په معنی کښې واخستې شی اومؤنث اومنلې شی سره دعلمیت نه اوما ته ستاپه قوم کښې منتخب کړې یې نو زما دطرف نه چه تاته کومه وحی کیږی دا په غور سره واوره بیشک هم زه الله یم زما نه سوا هیڅوک معبود نشته نو ته زما عبادت کوه او مونځ قائم کړه په مونځ کښې زما یادولو دپاره.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** طه مفسر علام الله اعلم بمراده بذلك وئیلو سره او دې خبرې ته اشاره کړې ده چه دا دحروف مقطعاتو نه دی اودې حقیقی علم دالله پاک سره خاص دې.

**قوله:** لتشقی ای لتتعب معنی داده چه مونږ قرآن دې دپاره نه دې نازل کړې چه ته خپل ځان په مشقت کښې واچوې دزیات غم دوجې نه قبس داور شعله، بخرې طوی دیو وادی نوم دې، مفسر علام د الاتفسیر په لکن سره کولو کښې اشاره کړې ده چه دا مستثنی منقطع ده ای لکن انزلناه تذکره ځکه چه تذکره تشقی مستثنی منه دجنس نه نه دې تنزیلا نزلناه فعلِ مقدر مصدر دې کوم چه ددې ناصب دې فعل ئی حذف کړو مصدر ددې په بدله کښې ددې په ځای باندې ایخودې شوې دې او داحذف واجب دې دې ځکه چه مصدر په معنی او عمل کښې دفعل نیابت کوی دلته دبدل نه اصطلاحی بدل مراد نه دې بلکه بدل لغوی مراد دې یعنی عوض، بدل من اللفظ مطلب دادې چه تنزیلا په تلفظ او نطق کښې دخپل فعل ناصب نزلنا محذوف قائم مقام دې، ممن خلق د تنزیلا متعلق دې.

**قوله:** خلق الارض والسموات العلی کښې عطفِ جنس علی الجنس دې نه چه دجمع عطف مفرد په باندې اوس خلاف اولی اعتراض نه شی کیدې هواضافه کولو سره ئی اشاره اوکړه چه الرحمن دهو مبتدأ محذوف خبر کیدو دوجې نه هم مرفوع دې.

**قوله:** وهل اتاك جمله مستانفه ده خطاب حضور ﷺ ته دې او استفهام د یشویق او دپاره د تقریر په ذهن دسامع کښې دې او هل په معنی دقد دې اذرأی دحدیث موسی ظرف دې.

**قوله:** امکثوا دجمع او مذکر صیغه راوړلې شوې ده حالانکه مخاطب صرف دده بی بی ده؟ ددې جواب دادې چه لفظ داهل درعایت د وجې دجمع مذکر صیغه راوړې شوې ده یا صرف تعظیما دجمع صیغه استعمال کړې شوې ده یا خادم او اولاد چه ورسره وو د هغوی رعایت سره دجمع صیغه راوړې شوې ده د آنست تفسیر په ابصرت سره کولو کښې اشاره اوکړه چه دایناس معنی په څه طریقې سره هم محسوسول دی خودلته په بصر سره محسو سول معنی مراد دی قبس بخرې، داور شعله فتیله بتې، رسی وغیره هدی ای هاد مصدر په معنی داسم فاعل دې عوسجداغزو والا اونه، ځنګلی بیری، ځنې حضراتو عناب

او خنې امر بیل مراد اخستې دې، چه ورته په هندی آکاش بیل هم وئیلی شی، په فارسی کښې ورته عشق پیچاں وئیلې شی، په طب کښې ددې نوم افتیمون دې، ددې په زمکې کښې جرړې نه وی دا خپل خوراک داونې نه حاصلوی اوپه کومه اونه چه خور شی هغه اوچه کړی.

**قوله**: طوی د واد نه بدل یاعطف بیان دې دا منصرف اوغیر منصرف دواړه وئیل صحیح دی که دمکان په معنی کښې وی نو منصرف به وی اوکه دبقعة په معنی کښې وی نو دعلمیت اوتانیث د وجې نه غیرمنصرف دې انی انا الله د مما یوحی نه بدل دې فهما ای فی الصلوة، الله دمبتدأ محذوف خبردې ای المنعوت بما ذکر من النعوت الجلیلة الله (یعنی هغه ذات چه په دې ذکر شوو صفاتو کمالیو باندې موصوف دې هغه الله دې لفظ د جلالة (الله) مبتدأ اولااله الاهو ددې خبرهم کیدې شی.

**[ایاتونه:۱۵-۲٤]**

(إِنَّ السَّاعَةَ آتِيَةٌ أَكَادُ أُخْفِيهَا) عَنِ النَّاسِ وَيَظْهَر لَهُمْ قُرْبَهَا بِعَلَامَاتِهَا (لِتُجْزَىٰ) فِيهَا (كُلُّ نَفْسٍ بِمَا تَسْعَىٰ) بِهِ مِنْ خَيْرٍ أَوْ شَرٍّ (فَلَا يَصُدَّنَّكَ) يَصْرِفَنَّكَ (عَنْهَا) أَيْ عَنِ الْإِيمَانِ بِهَا (مَنْ لَا يُؤْمِنُ بِهَا وَاتَّبَعَ هَوَاهُ) فِي إِنْكَارِهَا (فَتَرْدَىٰ) أَيْ فَتَهْلِكَ إِنْ صَدَدْتَ عَنْهَا (وَمَا تِلْكَ) كَائِنَةً (بِيَمِينِكَ يَا مُوسَىٰ) الْاِسْتِفْهَامُ لِلتَّقْرِيرِ لِيُرَتِّبَ عَلَيْهِ الْمُعْجِزَةَ فِيهَا (قَالَ هِيَ عَصَايَ أَتَوَكَّأُ) أَعْتَمِدُ (عَلَيْهَا) عِنْدَ الْوُثُوبِ وَالْمَشْيِ (وَأَهُشُّ) أَخْبِطُ وَرَقَ الشَّجَرِ (بِهَا) لِيَسْقُطَ (عَلَىٰ غَنَمِي) فَتَأْكُلَهُ (وَلِيَ فِيهَا مَآرِبُ) جَمْعُ مَأْرَبَةٍ مُثَلَّثُ الرَّاءِ أَيْ حَوَائِجُ (أُخْرَىٰ) كَحَمْلِ الزَّادِ وَالسِّقَاءِ وَطَرْدِ الْهَوَامِّ زَادَ فِي الْجَوَابِ بَيَانَ حَاجَاتِهِ بِهَا (قَالَ أَلْقِهَا يَا مُوسَىٰ) (فَأَلْقَاهَا فَإِذَا هِيَ حَيَّةٌ) ثُعْبَانٌ عَظِيمٌ (تَسْعَىٰ) تَمْشِي عَلَىٰ بَطْنِهَا سَرِيعًا كَسُرْعَةِ الثُّعْبَانِ الصَّغِيرِ الْمُسَمَّىٰ بِالْجَانِّ الْمُعَبَّرِ بِهِ فِيهَا فِي آيَةٍ أُخْرَىٰ (قَالَ خُذْهَا وَلَا تَخَفْ) مِنْهَا (سَنُعِيدُهَا سِيرَتَهَا) مَنْصُوبٌ بِنَزْعِ الْخَافِضِ أَيْ إِلَىٰ حَالَتِهَا (الْأُولَىٰ) فَأَدْخَلَ يَدَهُ فِي فَمِهَا فَعَادَتْ عَصًا فَتَبَيَّنَ أَنَّ مَوْضِعَ الْإِدْخَالِ مَوْضِعُ مَسْكِهَا بَيْنَ شُعْبَتَيْهَا وَأُرِيَ ذٰلِكَ السَّيِّدُ مُوسَىٰ لِئَلَّا يَجْزَعَ إِذَا انْقَلَبَتْ حَيَّةً لَدَىٰ فِرْعَوْنَ (وَاضْمُمْ يَدَكَ) الْيُمْنَىٰ بِمَعْنَى الْكَفِّ (إِلَىٰ جَنَاحِكَ) أَيْ جَنْبِكَ الْأَيْسَرِ تَحْتَ الْعَضُدِ إِلَى الْإِبِطِ وَأَخْرِجْهَا (تَخْرُجْ) خِلَافَ مَا كَانَتْ عَلَيْهِ مِنَ الْأُدْمَةِ (بَيْضَاءَ مِنْ غَيْرِ سُوءٍ) أَيْ بَرَصٍ تُضِيءُ كَشُعَاعِ الشَّمْسِ تَغْشَى الْبَصَرَ (آيَةً أُخْرَىٰ) وَهِيَ بَيْضَاءُ حَالَانِ مِنْ ضَمِيرِ تَخْرُجْ (لِنُرِيَكَ) بِهَا إِذَا فَعَلْتَ ذٰلِكَ لِإِظْهَارِهَا (مِنْ آيَاتِنَا) الْآيَةَ (الْكُبْرَىٰ) أَيِ الْعُظْمَىٰ عَلَىٰ رِسَالَتِكَ وَإِذَا أَرَادَ عَوْدَهَا إِلَىٰ حَالَتِهَا الْأُولَىٰ ضَمَّهَا إِلَىٰ جَنَاحِهِ كَمَا تَقَدَّمَ وَأَخْرَجَهَا (اذْهَبْ) رَسُولًا (إِلَىٰ فِرْعَوْنَ) وَمَنْ مَعَهُ (إِنَّهُ طَغَىٰ) جَاوَزَ الْحَدَّ فِي كُفْرِهِ إِلَى ادِّعَاءِ الْإِلٰهِيَّةِ

**ترجمه**: قیامت یقینا راتلو والا دې خه دادخلقو نه پټ ساتل غواړم اوددې نزدې والې به دعلاماتو نه ظاهریږی دپاره چه هر کس ته په دې ورځ کښې دده داعمالو نیکو اوبدو بدله

ورکړې شي نو تا دې په دې ديقين کولو نه داسې کس منع نه کړې شي، بند نه کړې شي چه هغه په دې باندې ايمان نه لري او ددې په انکار کښې په خپل خواهش پسې لګيدلې دې کنې ته به هلاک شې يعنې که ته په دې باندې ديقين کولو نه منع شوې نو هلاک به شې اواې موسی ستا په ښي لاس کښې داڅه دی استفهام دتقرير دپاره دې دې دپاره چه په دې باندې دمعجزې ترتب اوکړې شي، اوئ وئيل دازما همسا ده (توپ) وهلو په وخت اودتللو په وخت په دې باندې سهارا کوم او خپلو چيلو دپاره پرې پاڼړې راڅنډوم يعنې ددې په ذريعه داونو پاڼړې را غورزوم چه هغه دا اوخوري اوددې نه زه نورکارونه هم اخلم مآرب دمارية جمع ده په په ر باندې درې واړه اعراب جائز دی مآرب په معنی دحوائج دې مثلا روټئ اوبهٔ رازړوندول او ضروري څناور دفع کول (وغيره) (په اندازه د) جواب کښې ئې دبيان حاجت زياتوالې اوکړو ارشاد اوشو اې موسې دا همسا په زمکه باندې اوغورزوه پس وې غورزوله نو يو دم هغه مندې وهونکې مار جوړ شو غټه اژدها هغې په خپله خيټه د ورکوټې مارپه شان مندې وهلې چه هغې ته په بل آيت کښې جان وئيلې شوی دی ارشاداوشو دا اونيسه او يرېږه مه مونږ به دا په نيولو سره ددې اول صورت باندې واپس کړو سيرتها دحرف جار دحذف کولو دوجې نه منصوب دې ای الې حالتها الاولی پس حضرت موسی ﷺ خپل لاس دهغې په خله کښې دننه کړونو هغه همسا جوړه شوه او داخبره ښکاره شوه چه د (لاس) دننه کولو ځای د دواړو شاخونو په مينځ کښې دنيولو ځاع وو اوحضرت موسی ﷺ ته دا هر څه څکه اوښودلې شو چه کله دفرعون په مخکښې (داهمسا) دمار(په شکل) کښې بدله شي نو چه (موسی) اونه يريږی اوته خپل ښې لاس يعنی تلې دخپلې څنګلې سره ملا وکړه يعنی د ګس ترخ دلاس لاندې ئې داخل کړه او (بيا ئې) رااوباسه، دخپل غنم رنګی حالت نه خلاف به بغير د څه مرض مثلا د برص نه دنمر په شان چمکدار رااوځی، چه سترګې به حيرانې کړی دادويمه نخښه شوه آية آخری او بيضاء دا دواړه دتخرج دضمير نه حال دې، دې دپاره چه مونږ تا ته کله ته د نخښې او(معجزې) داظهار دپاره د هر څه اوکړلی دخپلو نخښو نه يوه لويه نخښه اوښايو يعنی ستا درسالت لويه نخښه اوکله چه ته دا (لاس) په مخکښنی حالت باندې رااوپس کول غواړې نو د مخکښې په شان داد خپل طرف سره ملاووه او رااوباسه (اوس) ته رسول جوړ شوی فرعون او هغه خلقو ته لاړ شه کوم چه ده سره دی بيشک هغه لوی سرکش شوې دې په خپل کفر کښې ئې دالوهيت دعوی کړې ده او د حد نه تير شوې دې .

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: اکاد اخفيها ای اريد اخفاء وقتها دا دعربو دهغه محاورې مطابق ده چه عرب کله ديوې خبرې په پټولو کښې مبالغه کول غواړی نو وائی (کتمه حتی من نفسی) ای لم اطلع عليه

احدا لتجزي يا داخفيها سره متعلق دی يا دآتية سره متعلق دي په دويم صورت كښې د متعلق او متعلق په مينځ كښې به اكاد اخفيها جمله معترضه شی به دمقدر منلو وجه دا ده چه صله كله جمله وی نو دعائد كيدل ضروری وی په دې وجه مفسر به محذوف منلې دی من خیروشرکښې من دمابیان دې بصدنك واحد مذكر غائب نهی بانون ثقيله، ماده ضر ك ضمير مفعول دې تا لره منع نه کړی، فتردی، اصل كښې فأن تردی وو فتردی جواب دنهی دې.

**قوله**: وما تلك ما اسم استفهام مبتدأ تلک اسم اشاره خبر او بيمنك د كائنة مقدر سره متعلق حال دې د اسم اشاره په معنی داشیر نه ماتلك كښې ما استفهاميه دطلب فهم دپاره نه ده ځکه چه دا دذات باری دپاره محال دې بلکه د تقرير شئ دپاره دې يعنی په ښه طريقه اوگوره داڅه دی دې دپاره چه مغالطه نه وی ځکه چه زر ددې همسا د مار په شكل كښې معجزه ظاهريدلو والا دې حية ورواوغتو هر قسم مارانو ته وائی، او جان په خاص طور باندې ورکوتی مار ته وائی او ثعبان لوئ مار او اژدها ته وائی، چرته جان وئيلې شوې دې او چرته ثعبان ددې وجه خو يا داده چه دجسم اوجثې په اعتبار سره خو ثعبان وو اودحركت او تیزوالی په اعتبار سره جان وو يا په اول كښې به جان وو او بيا به ثعبان شو فاذاهی تسعی اذا مفاجاتيه ده هی مبتدأ ده حية خبر اول دې او تسعی خبر ثانی دې، تسعی جمله دحية نه حال هم كيدې شی، او صفت هم سيرتها په اصل كښې الی سيرتها الاولی وو دحذف الی دوجې نه منصوب شو سيرتها الاولی دا دسنعيدها د ضمير مفعول نه بدل الاشتمال هم كيدې شی ای هيئتها الاولی بيضاء دتخرج دضمير نه حال دې من غيرسوء دتخرج متعلق دی په معنی الكف د دې اضافه ئې ددې شبهې دازالې دپاره کړې ده چه يد عربی كښې د گوتو نه تر اوگې پورې ته وائی، ددې په ترڅ كښې دتنه كول ممكن نه دی؟ جواب ئې ورکړو چه کل ئی اوئيل اوجز مراد دې يعنی صرف تلی الاية محذوف منلو سره ئې اشاره اوكره چه الكبرى، دموصوف محذوف صفت دې.

**[ايا ت قوله: ٢٥-٤٢]**

(قَالَ رَبِّ اشْرَحْ لِي صَدْرِي) وَسِّعْهُ لِتَحَمُّلِ الرِّسَالَةِ (وَيَسِّرْ) سَهِّلْ (لِي أَمْرِي) لِأُبَلِّغَهَا (وَاحْلُلْ عُقْدَةً مِنْ لِسَانِي) حَدَثَتْ مِنْ احْتِرَاقِهِ بِجَمْرَةٍ وَضَعَهَا بِفِيهِ وَهُوَ صَغِيرٌ (يَفْقَهُوا) يَفْهَمُوا (قَوْلِي) عِنْدَ تَبْلِيغِ الرِّسَالَةِ (وَاجْعَلْ لِي وَزِيرًا) مُعِينًا عَلَيْهَا (مِنْ أَهْلِي) (هَارُونَ) مَفْعُولٌ ثَانٍ (أَخِي) عَطْفُ بَيَانٍ (اشْدُدْ بِهِ أَزْرِي) ظَهْرِي (وَأَشْرِكْهُ فِي أَمْرِي) أَيِ الرِّسَالَةِ وَالْفِعْلَانِ بِصِيغَتَيِ الْأَمْرِ وَالْمُضَارِعِ الْمَجْزُومِ وَهُوَ جَوَابُ الطَّلَبِ (كَيْ نُسَبِّحَكَ) تَسْبِيحًا (كَثِيرًا) (وَنَذْكُرَكَ) ذِكْرًا (كَثِيرًا) (إِنَّكَ كُنْتَ بِنَا بَصِيرًا) عَالِمًا فَأَنْعَمْتَ بِالرِّسَالَةِ (قَالَ قَدْ

أُوتِيتَ سُؤْلَكَ يَا مُوسَىٰ﴾ مِنًّا عليك ﴿ولقد مننا عليك مرة أخرى﴾ ﴿إِذْ﴾ للتعليل ﴿أَوْحَيْنَا إِلَىٰ أُمِّكَ﴾ منامًا او إلهامًا لما ولدتك وخافت أن يقتلك فرعون في جملة من يولد ﴿مَا يُوحَىٰ﴾ في أمرك ويبدل منه ﴿أَنِ اقْذِفِيهِ﴾ ألقيه ﴿فِي التَّابُوتِ فَاقْذِفِيهِ﴾ بالتابوت ﴿فِي الْيَمِّ﴾ بحر النيل ﴿فَلْيُلْقِهِ الْيَمُّ بِالسَّاحِلِ﴾ أي شاطئه والأمر بمعنى الخبر ﴿يَأْخُذْهُ عَدُوٌّ لِّي وَعَدُوٌّ لَّهُ﴾ وهو فرعون ﴿وَأَلْقَيْتُ﴾ بعد أن أخذك ﴿عَلَيْكَ مَحَبَّةً مِّنِّي﴾ لتحب في الناس فأحبك فرعون وكل من رآك ﴿وَلِتُصْنَعَ عَلَىٰ عَيْنِي﴾ تربى على رعايتي وحفظي لك ﴿إِذْ﴾ للتعليل ﴿تَمْشِي أُخْتُكَ﴾ مريم لتتعرف من خبرك وقد أحضروا مراضع وأنت لا تقبل ثدي واحدة منهن ﴿فَتَقُولُ هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰ مَن يَكْفُلُهُ﴾ فأجيبت فجاءت بأمه فقبل ثديها ﴿فَرَجَعْنَاكَ إِلَىٰ أُمِّكَ كَيْ تَقَرَّ عَيْنُهَا﴾ بلقائك ﴿وَلَا تَحْزَنَ﴾ حينئذ ﴿وَقَتَلْتَ نَفْسًا﴾ هو القبطي بمصر فاغتممت لقتله من جهة فرعون ﴿فَنَجَّيْنَاكَ مِنَ الْغَمِّ وَفَتَنَّاكَ فُتُونًا﴾ اختبرناك بالإيقاع في غير ذلك وخلصناك منه ﴿فَلَبِثْتَ سِنِينَ﴾ عشرا ﴿فِي أَهْلِ مَدْيَنَ﴾ بعد مجيئك إليها من مصر عند شعيب النبي وتزوجك بابنته ﴿ثُمَّ جِئْتَ عَلَىٰ قَدَرٍ﴾ في علمي بالرسالة وهو أربعون سنة من عمرك ﴿يَا موسى﴾ ﴿وَاصْطَنَعْتُكَ﴾ اخترتك ﴿لِنَفْسِي﴾ بالرسالة ﴿اذْهَبْ أَنتَ وَأَخُوكَ﴾ إلى الناس ﴿بِآيَاتِي﴾ التسع ﴿وَلَا تَنِيَا﴾ تفترا ﴿فِي ذِكْرِي﴾ بتسبيح وغيره

**ترجمه:** موسی ﷺ اوئیل اې زما ربه زما سینه کهلاو کړې (حوصله م زیاته کړې) یعنی زما سینه وسیعه کړې دې دپاره چه (بار) درسالت متحمل شی، او زما دپاره زما دا (دتبلیغ) کار آسان کړی او زما دژبې غوټه کهلاو کړې کومه چه په هغه سکروټې سوزیدو سره لګیدلې وه چه ورکوټوالی کښې ئې په خله کښې ایخې وه دې دپاره چه خلق دپیغام رسولو په وخت زما په خبره پوهه شی، او زما څوک وزیر په رسالت کښې معاون زما په خاندان کښې مقرر کړه هارون مفعول ثانی دې او اخی دهارون عطف بیان دې یعنی هارون چه زما رور دې په هغه سره زما ملا مضبوطه کړه اوهغه زما په معامله یعنی درسالت په کار کښې زما شریک کړه او دواړه فعلو نه (یعنی اشدد او اشرکه) دامر صیغې هم کیدې شی، او دمضارع مجزوم هم اومضارع دجواب امر (کیدو په وجې سره مجزوم دی) دې دپاره چه مونږ دواړه په کثرت سره ستا تسبیح بیان کړو او ستا په کثرت سره ذکر اوکړو بیشک ته زمونږ د حالاتو نه ښه خبر یې هم دا وجه ده چه تا په ما رسول جوړولو سره انعام اوکړو ارشاد ئې اوفرمائیلو اې موسی په تا باندې د احسان په طور مونږ ستا درخواست قبول کړو او اې موسی ددې نه علاوه هم مونږ په تا باندې احسان کړې دې اذ تعلیلیه دې کله چه مونږ ستا مور ته په خوب کښې یا الهام په ذریعه ستا په باره کښې هغه خبره اوښودله چه په الهام د ښودلو لائقه وه کله چه ستا مور ته اوزیږولې اوهغې ته دا ویره وه چه فرعون به دې تولو (دنورو ماشومانو) په شان تا قتل کړی او ان اقذفیه فی التابوت، د مایوحی نه بدل دې هغه دا چه دې په صندوق کښې بند کړه او په دریائې نیل کښې ئې واچوه، بیا به دریاب دې په غاړه کښې اوغورزوی یعنی په خپله غاړه باندې او

(فليلقيه) امر په معنى دخبر دې، آخر كار به هغه داسې سړې اونيسى كوم چه زما هم دشمن دې او دده هم او هغه فرعون دې، اوددې نه پس دې خلقو ته اونيولې ما په تا دخپل طرف نه محبت واچولو دې دپاره چه ته په خلقو كښې محبوب شې او بيا فرعون اوهر هغه سړې چه تاوينى تا سره محبت اوكړى او دې دپاره چه ته زما په نگرانۍ رعايت او حفاظت كښې پرورش اومومې اذ تعليليه دې (دا دهغه وخت خبره ده) كله چه ستا خور مريم ستا دخبرا خستلو دپاره روانه وه او هغه خلقو ډيرې دپيو وركولو والا راغوښتې وې او تا په دوى كښې ديوې سينې قبولې نه كړې نو مريم اوئيل آيا زه تاسو ته داسې كس اوښايم چه هغه دده كفالت اوكړى؟ پس دهغې خبره منظوره كړې شوه پس ددې نه هغې دده مور راوستله اوهغه دهغې سينې قبولې كړې، بيا مونږ ته خپلې مور ته واپس راوستلې دې دپاره چه دهغې سترگې ستا په ملاقات سره يخې شى اوهغې ته په دغه وخت هيڅ غم پاتې نه شى (يوه ترجمه دا هم كيدې شى) يعنى تا دخپلې مور پئ قبول كړل نواوس تاته هيڅ غم كول نه دى پكار، او تا يو قبطى سړې په مصر كښې قتل كړې وو او دهغه دقتل په وجه ته دفرعون د طرف نه په غم كښې وې بيا مونږ تاته دهغه غم نه نجات دركړو بيا مونږ ته په مختلف قسمه ازمائشونو كښې واچولې (يعنى) ددې نه علاوه هم مونږ ته په ازمائشونو كښې مبتلا كړې او بيا مو ددې نه تاته خلاصې دركړو بيا په اهل مدين كښې ته څو (لس) كاله اوسيدې دمصر نه مدين ته دراتلو نه پس د شعيب ﷺ سره اوتادده دلور سره نكاح اوكړه بيا ته يو خاص عمر ته اورسيدې كوم چه زما په علم كښې درسالت دپاره مقدر وو اوهغه ستا دعمر څلويښت كاله وو اې موسى ما ته د خپل رسالت دپاره منتخب كړې نو اوس ته او ستا رور زما د نهه نخښو سره خلقو ته لاړ شئ او زما په ياد كښې د كوتاهۍ سستى نه كار مه اخلئ يعنى په تسبيح وغيره كښې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** يفقهوا جوابِ دعا دوجې نه مجزوم دې، وزيرا وزر نه صيغه دصفت ده، مددگار، ناصر، معين، په قول دمفسر علام وزيرا اجعل مفعول اول دې او هارون مفعول ثانى دې، ددې عكس اولى دې ځكه چه قاعده داده چه كله دوه مفعوله جمع شى په دې كښې يو معرفه وى اودويم نكره نو معرفه مفعول اول جوړوى ځكه چه مفعول اول مبتدأ وى چه د هغې معرفه كيدل پكاردى او مفعول ثانى خبر وى چه دهغې دپاره نكره كيدل مناسب دى او دلته هارون معرفه دې او وزيرا نكره دې مقصود بالعنايت او اهم كيدو په وجه سره مفعول ثانى مقدم كړې شوې دې.

**دويم تركيب:** وزيرا مفعول اول وى او لى مفعول ثانى او هارون بدل يا عطف بيان وى اشدد اشركه دا دواړه صيغې كله چه مضارع واحد متكلم وى نو اشدد كښې به دهمزې فتح

وی او اشرکه کښې به د همزې ضمه وی اوجواب دعا کیدو دوجې نه دال ثانی او کاف ساکن وی په دې صورت کښې به د دواړو فعلونو نسبت دموسی په طرف وی مطلب به داشی دې دپاره چه دده په ذریعه خپله ملا مضبوطه کړم او دې دخپل کار شریک جوړم کړم اوکه دواړه صیغې د امروی نو اشدد به دهمزې په ضمې سره وی (ن. ض) او اشرک به دهمزې په فتحې سره وی په دې صورت کښې به ددواړو فعلونو نسبت داﷲ پاک په طرف وی یعنی اې الله ته زما درور په ذریعه زما ملا مضبوطه کړې او دې زمادکار شریک جوړکړې د اشدد چه کله داخی سره وصل کوې نو همزه به غورزیږی ازری الازر قوت، پشت، سؤلك سؤل په وزن دفعل لکه چه خبز په معنی مخبوز فعل په معنی د مفعول دی دکاف په طرف مضاف دې په معنی د درخواست، تمنا ،خواهش اذ اوحینا د مننا ظرف دې او اذلوحنا د مرة نه بدل هم کیدې شی او اذ تعلیله هم کیدې شی لکه چه مفسر ﷺ صراحت کړې دې دمفسر رح مناما او الهاما اضافه کول دې خبرې ته اشاره ده چه داوحی د رسالت نه وه بلکه وحی لغوی وه اقذفی قذف (ض) واحد مؤنث حاضر ددې په آخر کښې ه ضمیر واحد مذکر غائب مفعول دې (نو اوغورزوه، کیږده) یلقه د القاءنه امر واحد مذکر غائب په معنی د خبر دې ضمیر مفعولی دی، دا اوغورزوه، واچوه الیم الیحر مراد دریائی نیل دې یاخذه جواب امر دې مف د القیت سره متعلق دې او دکائنة محذوف سره متعلق دمحبة صفت هم کیدې شی.

**قوله:** لتصبدا د القیت علت دې دا ئی محذوف دې دپاره اومنلو چه ولتصنع عطف صحیح شی ای لتحب وتصنع لذمتی تعلق په ذکر شوو دواړو فعلو کښې د یو سره کیدې شی او داهم صحیح دې چه اذ اولی نه بدل شی، ځکه چه دخور ورسره ورسره تلل هم احسان وو او اذکر محذوف منلو سره تقدیر دعبارت دا هم کیدې شی اذکر اذ تمشی

**قوله:** مراضع د مرضعة جمع ده د پیو ورکولو والا ته وائی فتونا مفعول مطلق دې ای ابتلیناک ابتلاء او د فتنة جمع هم کیدې شی لکه چه د بدرة جمع د بدور ای فتناک بفتون کثیرة مفسر علام فاحببت محذوف منلې دې دپاره چه دفرجعناک عطف صحیح شی اصطنعتك (افتعال) اصطناع په صحیح کیدو کښې مبالغه کول. منتخب کول تنیاونی ینی ونیا سستی کول (ض) تثنیه مذکر حاضر لاتنیا سستی مه کوئ الی الناس دلته فرعون په آئینده باندې د وجې قیاس کړې حذف کړې شوې دې لکه څنګه هلته آیاتی په دې باندې قیاس کړې حذف کړې شوې دې دې ته صنعت احتباک ونیلې شی یعنی نظیر په نظیر باندې قیاس کولو سره حذف کول

**قوله:** التسم مفسر علام التسم په خای العصا والید فرمائیلې وه نو مناسب به وې، ځکه چه

ابتداء صرف دا دوه معجزې ورکړې شوې وې باقي معجزات دبل وخت په دوران کښې ورکړې شوې اوس پاتې شو داسوال چه په دوو معجزو باندې دجمع اطلاق ولې صحیح دی؟
جواب: دا دواړه معجزې چونکه په ډیرو معجزوباندې مشتملې وې ځکه نې په جمع سره تعبیر کول صحیح دی.

**[ایاتونه: ٤٢ - ٥٤]**

﴿اذْهَبَا إِلَى فِرْعَوْنَ إِنَّهُ طَغَى﴾ بِادِّعَائِهِ الرُّبُوبِيَّةَ ﴿فَقُولَا لَهُ قَوْلًا لَيِّنًا﴾ فِي رُجُوعِهِ عَنْ ذَلِكَ ﴿لَعَلَّهُ يَتَذَكَّرُ﴾ يَتَّعِظُ ﴿أَوْ يَخْشَى﴾ اللهَ فَيَرْجِعَ وَالتَّرَجِّي بِالنِّسْبَةِ إِلَيْهِمَا لِعِلْمِهِ تَعَالَى بِأَنَّهُ لَا يَرْجِعُ ﴿قَالَا رَبَّنَا إِنَّنَا نَخَافُ أَنْ يَفْرُطَ عَلَيْنَا﴾ أَيْ يَعْجَلَ بِالْعُقُوبَةِ ﴿أَوْ أَنْ يَطْغَى عَلَيْنَا﴾ أَيْ يَتَكَبَّرَ ﴿قَالَ لَا تَخَافَا إِنَّنِي مَعَكُمَا﴾ بِعَوْنِي ﴿أَسْمَعُ﴾ مَا يَقُولُ ﴿وَأَرَى﴾ مَا يَفْعَلُ ﴿فَأْتِيَاهُ فَقُولَا إِنَّا رَسُولَا رَبِّكَ فَأَرْسِلْ مَعَنَا بَنِي إِسْرَائِيلَ﴾ إِلَى الشَّامِ ﴿وَلَا تُعَذِّبْهُمْ﴾ أَيْ خَلِّ عَنْهُمْ مِنَ اسْتِعْمَالِكَ إِيَّاهُمْ فِي أَشْغَالِكَ الشَّاقَّةِ كَالْحَفْرِ وَالْبِنَاءِ وَحَمْلِ الثَّقِيلِ ﴿قَدْ جِئْنَاكَ بِآيَةٍ﴾ بِحُجَّةٍ ﴿مِنْ رَبِّكَ﴾ عَلَى صِدْقِنَا بِالرِّسَالَةِ ﴿وَالسَّلَامُ عَلَى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدَى﴾ أَيِ السَّلَامَةُ لَهُ مِنَ الْعَذَابِ ﴿إِنَّا قَدْ أُوحِيَ إِلَيْنَا أَنَّ الْعَذَابَ عَلَى مَنْ كَذَّبَ﴾ مَا جِئْنَا بِهِ ﴿وَتَوَلَّى﴾ أَعْرَضَ عَنْهُ فَأَتَيَاهُ وَقَالَا جَمِيعَ مَا ذُكِرَ ﴿قَالَ فَمَنْ رَبُّكُمَا يَا مُوسَى﴾ اقْتَصَرَ عَلَيْهِ لِأَنَّهُ الْأَصْلُ وَلِإِدْلَالِهِ عَلَيْهِ بِالتَّرْبِيَةِ ﴿قَالَ رَبُّنَا الَّذِي أَعْطَى كُلَّ شَيْءٍ﴾ مِنَ الْخَلْقِ ﴿خَلْقَهُ﴾ الَّذِي هُوَ عَلَيْهِ مُتَمَيِّزٌ بِهِ عَنْ غَيْرِهِ ﴿ثُمَّ هَدَى﴾ الْحَيَوَانَ مِنْهُ إِلَى مَطْعَمِهِ وَمَشْرَبِهِ وَمَنْكَحِهِ وَغَيْرِ ذَلِكَ ﴿قَالَ﴾ فِرْعَوْنُ ﴿فَمَا بَالُ﴾ حَالُ ﴿الْقُرُونِ﴾ الْأُمَمِ ﴿الْأُولَى﴾ كَقَوْمِ نُوحٍ وَهُودٍ وَلُوطٍ وَصَالِحٍ فِي عِبَادَتِهِمُ الْأَوْثَانَ ﴿قَالَ﴾ مُوسَى ﴿عِلْمُهَا﴾ أَيْ عِلْمُ حَالِهِمْ مَحْفُوظٌ ﴿عِنْدَ رَبِّي فِي كِتَابٍ﴾ هُوَ اللَّوْحُ الْمَحْفُوظُ يُجَازِيهِمْ عَلَيْهَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ ﴿لَا يَضِلُّ﴾ يَغِيبُ ﴿رَبِّي﴾ عَنْ شَيْءٍ ﴿وَلَا يَنْسَى﴾ رَبِّي شَيْئًا هُوَ ﴿الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ﴾ فِي جُمْلَةِ الْخَلْقِ ﴿الْأَرْضَ مَهَادًا﴾ فِرَاشًا ﴿وَسَلَكَ﴾ سَهَّلَ ﴿لَكُمْ فِيهَا سُبُلًا﴾ طُرُقًا ﴿وَأَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً﴾ مَطَرًا قَالَ تَعَالَى تَتْمِيمًا لِمَا وَصَفَهُ بِهِ مُوسَى وَخِطَابًا لِأَهْلِ مَكَّةَ ﴿فَأَخْرَجْنَا بِهِ أَزْوَاجًا﴾ أَصْنَافًا ﴿مِنْ نَبَاتٍ شَتَّى﴾ صِفَةُ أَزْوَاجًا أَيْ مُخْتَلِفَةِ الْأَلْوَانِ وَالطُّعُومِ وَغَيْرِهِمَا وَشَتَّى جَمْعُ شَتِيتٍ كَمَرِيضٍ وَمَرْضَى مِنْ شَتَّ الْأَمْرُ تَفَرَّقَ ﴿كُلُوا﴾ مِنْهَا ﴿وَارْعَوْا أَنْعَامَكُمْ﴾ فِيهَا جَمْعُ نَعَمٍ وَهِيَ الْإِبِلُ وَالْبَقَرُ وَالْغَنَمُ يُقَالُ رَعَتِ الْأَنْعَامُ وَرَعَيْتُهَا وَالْأَمْرُ لِلْإِبَاحَةِ وَتَذْكِيرِ النِّعْمَةِ وَالْجُمْلَةُ حَالٌ مِنْ ضَمِيرِ أَخْرَجْنَا أَيْ مُبِيحِينَ لَكُمُ الْأَكْلَ وَرَعْيَ الْأَنْعَامِ ﴿إِنَّ فِي ذَلِكَ﴾ الْمَذْكُورِ هُنَا ﴿لَآيَاتٍ﴾ لَعِبَرًا ﴿لِأُولِي النُّهَى﴾ لِأَصْحَابِ الْعُقُولِ جَمْعُ نُهْيَةٍ كَغُرْفَةٍ وَغُرَفٍ سُمِّيَ بِهِ الْعَقْلُ لِأَنَّهُ يَنْهَى صَاحِبَهُ عَنِ ارْتِكَابِ الْقَبَائِحِ

**ترجمه:** تاسو دواړه فرعون ته لاړ شئ هغه دعوی د ربوبیت کولو سره لویه سرکشي کړې ده دربوبیت ددعوی نه درجوع کولو په باره کښې دې په نرمئ سره پوهه کړئ کیدې شي چه هغه پوهه شي یا دالله پاک نه اوېرېږي منع شي او دترجي صیغه د حضرت موسی او دده دروره په اعتبار سره ده، ځکه چه الله پاک ته معلومه وه چه هغه نه منع کیږي (بیا دترجي دصیغې داستعمال څه مطلب نه پاتې کیږي) نو دواړو عرض اوکړو اې زمونږ پروردګار زمونږ یره ده چه

هغه به په مونږ باندې زیاتی اوکړی یعنی په سزا کښې جلتی اوکړی یا په مونږ باندې شرارت اوکړی یعنی په تکبر سره مخ شی، نو ارشاداوشو یره مه کوئ ځکه چه زه په مدد سره تاسو دواړو سره یم څه چه هغه وائی هغه زه اوورم او څه چه هغه کوی زه هغه وینم اوس هغه ته لاړشئ او اوایئ مونږ ستا درب دطرف نه رسولان یو نو بنی اسرائیل مونږ سره دشام په طرف اولیږه اودوی ته تکلیف مه رسوه یعنی دمشقت په کارونوکښې ددوی استعمال بند کړه، لکه دکهدائی کار او د معمارۍ (ګلکارۍ) کار او د بار اوچتولو کار مونږتاته ستا درب دطرف نه نخښه یعنی درسالت په صداقت باندې دلیل راوړی دې او داسې کس دپاره سلامتی ده چا چه دهدایت تابعداری اوکړه یعنی داسې کس دپاره دعذاب نه سلامتی ده مونږته وحې لیږلې شوې ده چه عذاب به په هغه کس باندې وی چاچه زمونږ راوړی شوی څیز تکذیب اوکړو او د هغې نه ئې اعراض اوکړو پس دواړه رونړه هغه ته لاړل اوکوم څه چه ذکر شو هغه ټول ئې ورته اوئیل نو هغه اوئیل اې موسی ستاسو دواړو رب څوک دې (په خطاب کښې ئې) موسی ﷺ باندې اکتفاء اوکړه ځکه چه موسی په (رسالت) کښې اصل وواو فرعون په موسی ﷺ باندې دتربیت احسان ضباتل غوښتل موسی ﷺ جواب ورکړو زمونږ رب هغه دې چه هغه هر شی ته په مخلوق کښې دهغې مناسب صورت ورکړو چه دهغې په وجه هغه دنورو نه ممتاز دې بیا ئې په هر شی کښې حیوان ته دهغې دخوراک سکاک او د نکاح کولو وغیره پوهه ورکړه فرعون اوئیل چه ښه دمخکینو امتونو څه حال شو لکه قوم نوح، قوم هود او قوم صالح ددوی دبتانو دعبادت کولو د وجې نه، موسی ﷺ جواب ورکړو د هغوی یعنی هغوی د دحال علم زما درب سره په کتاب په لوح محفوظ کښې محفوظ دی دقیامت په ورځ به هغوی ته د هغوی داعمالو بدله ورکړی، نه خو زما رب دڅه شی په باره کښې غلطی کوی او نه کوم شې هیروی هغه داسې دې چاچه ستاسو دپاره دټول مخلوق نه زمکه فرش جوړه کړې ده او په زمکه کښې ئې ستاسو دپاره لارې جوړې کړې دی او داسمان نه اوبهٔ باران وروی الله پاک دموسی ﷺ کلام پوره کولو دپاره د اهل مکه سره خطاب کولو سره فرمائی بیا مونږ د دې اوبو په ذریعه سره د مختلف زرغونو مختلف قسمونه پیدا کړل (من نبات شتی) د ازواجا صفت دې یعنی د مختلف رنګونو او ذائقو وغیره، او شتی دشتیت جمع ده لکه چه مرضی د مریض جمع ده او دشتی الامر نه په معنی دتفرق نه (ماخوذ دې) ددې نه په خپله هم خورئ اوپه خپلو څناورو باندې هم اوخوروئ (انعام) دنعم جمع ده او هغه اوښ او غوا اوچیلې دی وئیلې شی څاوری اوځریدل اوما اوځرول، صفیه دامر د اباحت او د تذکیرِ نعمت دپاره ده او جمله آخرجنا دضمیر نه حال دې یعنی حال داچه مونږ ستاسو دپاره خوراک، او دځنارو ځرول مباح کونکی یو، دلته ذکر شوی په ټول څیزونو کښې دعبرت نه دکې نښې دې دعقلمندو دپاره نهی دنهیة جمع ده لکه غرف دغرفة جمع ده څنې حضراتو نهی مفرد

ونیلې دې دعقل نوم نهی ځکه کیخودلې شوې دې چه عقل، عقلمند لره د قبائحو دکولو نه بندوی، نُهَیٰ په اصل کښې نهی وو.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**سوال:** اذهبا الی فرعون دواړه په یو صیغه کښې په جمع کولو کښې څه مصلحت دې؟ سره ددې چه خطاب حضرت موسی ﷺ ته دې او حضرت هارون ﷺ خو په هغه وخت هلته موجود هم نه وو بلکه په مصر کښې وو؟

**جواب:** حاضر ته په غائب باندې دترجیح کورلو دوجې نه داسې کړې شوې دی.

**دویم تفسیر:** الله پاک حجاب منکشف کړې وو چه دهغې دوجې نه حضرت هارون ﷺ هغه کلام الهی واوریدو کوم چه حضرت موسی ﷺ اوریدلې وو.خو موسی ﷺ کلام ربانی بغیر دواسطې نه اوریدلې وو او حضرت هارون ﷺ دحضرت جبرئیل ﷺ په واسطې سره اوریدلې وو.

**قوله:** وَالترجی بالنسبة الیهما دا دیو سوال مقدر جواب دې، سوال دادې چه الله پاک کلمه د ترجی (دشک کلمه) ولی استعمال کړه؟ سره ددې چه دالله پاک په علم ازلی کښې دفرعون ایمان نه راوړل متعین وو.

**جواب:** کلمه د ترجی د موسی او هارون علیهما السلام په عتبار سره ده نه چه دخپل ذات (الله) په اعتبار سره.

**قوله:** یفرط (ن) فَرْطاً فُرطا جلتی کول، پوره خبره اوریدو نه بغیر په سزا کښې جلتی کول (روح) فأتیاه ددې عطف په لاتخافا باندې دې اسم واری داننی معکما تاکید دې.

**قوله:** بعونی د دې اضافه کولو سره ئې معیت جسمانی باطل کړې دې، دلته دمعیت نه مراد اعانت او نصرت دې فأتیاه تاسو په خپله ده ته لاړشئ، نه دا چه دچاپه ذریعه پیغام اورسوئ.

**قوله:** فأتیاه وقالا له جمیع ما ذکرئی مقدر منلو سره دې خبرې طرف ته اشاره اوکړه چه دفرعون قول قال من ربکما یاموسی په محذوف باندې مرتب دې.

**قوله:** اقتصر علیه دا دیو سوال مقدر جواب دې، سوال دادې فمن ربکما کښې هارون او موسی دواړو سره خطاب دې او یاموسی کښې نداء صرف موسی ﷺ ته ده؟ مفسر علام ددې دوه جوابه ورکړی دی، اول جواب دادې چه په دې دواړو حضراتو کښې اصل حضرت موسی ﷺ دې حضرت هارون ﷺ معاون او تابع دې نو اصل ئې د نداء دپاره منتخب کړو،دویم جواب ئې لادلاله سره ورکړې دې ددې خلاصه داده چه اې موسی په

ماشوم والی کښې ستا پرورش ماکړې دې نو ستارب خو زه يم نو ته زما رب څوک گرځوې؟ لکه چه داحسان ضباتلو او د پيغور ورکولو دپاره ئې خاص طور باندې موسی ﷺ ته نداء ورکړه چه ستا دپاره دا ښه نه دی چه ته زما رب. بل څوک گرځوې حالانکه پخپله ستا رب زه يم په خلاف دهارون ﷺ چه په هغوی باندې دفرعون هيڅ احسان نه وو.

قوله: ادلال احسان وراړول، ناز اونخرې کول ربنا الذی اعطی الخ ربنا مبتدأ او الذی الخ دې خبردې اودا هم کيدې شي چه هو مبتدأ محذوف شي او ربنا ددې خبر، مبتدأ سره دخبر نه موصوف او الذی الخ ددې صفت، موصوف سره دصفت نه مقوله اعطی کل شئ خلقه کل شئ د اعطی مفعول اول دې او خلقه مفعول ثانی اوداهم کيدې شي چه خلقه مفعول اول شي او کل شئ مفعول ثانی، داهتمام دپاره مفعول ثانی مقدم کړې شوې دې ای اعطی خلقه کل شئ قـال فرعون فما بال الخ کله چه په فرعون باندې دموسی ﷺ په حق کيدل اوخپله په باطل کيدل ښکاره شول نو داسې خبرې ئې شروع اوکړې چه درسالت سره ئې هيڅ تعلق نه وو اس دخبرې رخ بدلو کوشش ئې اوکړو دې دپاره چه دده رياست په خطره کښې پرې نه وځی،موسی ﷺ دده په چالبازئ باندې پوهه شو او ډير لنډ جواب ئې ورکړو او په اصل موضوع باندې کلک پاتې شواو فرعون ئې هم دموضوع نه بهر وتلو ته پرې نخودو ځکه چه ديو مناظر خوبی داده چه مخالف دموضوع نه بهر پرينږدی ځکه چه دمخالف سره کله څه دليل پاتې نه شي نو هغه دموضوع نه د وتلو کوشش کوی او غير متعلق خبرې شروع کوی.

قوله: الذی جعل لکم الارض دا دفرعون داول سوال د جواب سره متعلق دې.

قوله: لايضل ای لايخطی ابتداء يعنی هيڅ يو شئ دده نه نه خطاکيږی نه پاتې کيږی.

قوله: ولاينسی يعنی دعلم نه پس ذهول اونسيان نه راځی الذی جعل لکم الارض مهدا اود ثم هدی په مينځ کښې مابال القرون الاولی الخ جمله معترضه ده علمها عند ربی فی کتاب.

قوله: ای علم حالهم محفوظ دې خبرې ته اشاره ده چه د هاضمير دمضاف اليه نه مخکښې حال مضاف محذوف دې ځکه دچا دعلم نه مراد ددې شي دحالاتو علم وی نه دذات دشی،او دمحفوظ اضافه کولو سره ئې اشاره اوکړه چه علمها مبتدأ خبر محذوف دې علمها په ترکيب اضافی سره مبتدأ ده او عند ربی خبر اول او فی کتاب خبر ثانی او داهم جائز دی چه هذا حلو حامض په شان دواړه يو خبر وی اوداهم کيدې شي چه عند ربی خبر وی او فی کتاب د ظرف دضمير مستتر نه حال وی.

قـال تعالی تتميما لما وصفه الخ دا دې خبرې ته اشاره ده چه فأخرجنا به الخ دا دحکايت په طور باندې دې، دموسی ﷺ کلام نه دې بلکه دادالله پاک کلام دې چه په دې سره ئې

دموسی ﷺ کلام وانزل من السماء ماء مکمل کولو سره الله پاک دمکې دمشرکانو سره خطاب کړې دې اوپه دوی باندې خپل احسانونه ذکر کوی انعامات شماری او داکلام په تارة آخرى باندې ختم شوې دې .

**قوله:** شتّیٰ دا فعل دې ددې الف د تانیث علامت دې شتّیٰ دشتیت جمع ده لکه دمریض جمع مرضی ده اودازواجا صفت دې دنبات صفت هم کیدې شی کلوا وارعوا انعامکم دا په تقدیر دمبیحین سره د آخرجنا دضمیر نه حال دې ای آخرجنا اصناف النبات مبیحین لکم الاکل ورعی الانعام دمبیحین په ځای قـائلین هم مقدر منلې شي .

**قوله:** رعت الانعام ورعیتها : ددې اضافې مقصد دا ښودل دی چه رعی لازم او متعدی دواړه شان مستعمل دی .

**[ایاتونه:۵۵-۷۰]**

{مِنْهَا} أيْ مِنَ الْأَرْض {خَلَقْنَاكُمْ} بِخَلْقِ أَبِيكُمْ آدَم مِنْهَا {وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ} مَقْبُورِينَ بَعْد الْمَوْت {وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ} عِنْد الْبَعْث {تَارَةً} مَرَّة {أُخْرَى} كَمَا أخرجناكُمْ عِنْد ابْتِدَاء خَلْقكُمْ {وَلَقَدْ أَرَيْنَاهُ} أَيْ أَبْصَرْنَا فِرْعَوْن {آيَاتِنَا كُلَّهَا} التِّسْع {فَكَذَّبَ} بِهَا وَزَعَمَ أَنَّهَا سِحْر {وَأَبَى} أَنْ يُوَحِّد اللَّه تَعَالَى {قَالَ أَجِئْتَنَا لِتُخْرِجَنَا مِنْ أَرْضِنَا} مِصْر وَيَكُون لَك الملك فِيهَا {بِسِحْرِكَ يَا مُوسَى} {فَلَنَأْتِيَنَّكَ بِسِحْرٍ مِثْلِهِ} يُعَارِضهُ {فَاجْعَلْ بَيْنَنَا وَبَيْنَك مَوْعِدًا} لِذَلِكَ {لَا نُخْلِفُهُ نَحْنُ وَلَا أَنْتَ مَكَانًا} مَنْصُوب بِنَزْعِ الْخَافِض فِي {سُوًى} بِكَسْرِ أَوَّله وَضَمّه أَيْ وَسَطًا تَسْتَوِي إِلَيْهِ مَسَافَة الْجَائِي مِنَ الطَّرَفَيْنِ {قَالَ} مُوسَى {مَوْعِدُكُمْ يَوْمُ الزِّينَةِ} يَوْم عِيد لَهُمْ يَتَزَيَّنُونَ فِيهِ وَيَجْتَمِعُونَ {وَأَنْ يُحْشَرَ النَّاسُ} يُجْمَع أَهْل مِصْر {ضُحًى} وَقْته لِلنَّظَرِ فِيمَا يَقَع {فَتَوَلَّى فِرْعَوْنُ} أَدْبَرَ {فَجَمَعَ كَيْدَهُ} أَيْ ذَوِي كَيْده مِنَ السَّحَرَة {ثُمَّ أَتَى} بِهِمْ الْمَوْعِد {قَالَ لَهُمْ مُوسَى} وَهُمْ اثْنَانِ وَسَبْعُونَ مَعَ كُلّ وَاحِد حَبْل وَعَصًا {وَيْلَكُمْ} أَيْ أَلْزَمَكُمْ اللَّه الْوَيْل {لَا تَفْتَرُوا عَلَى اللَّهِ كَذِبًا} بِإِشْرَاكِ أَحَد مَعَهُ {فَيُسْحِتَكُمْ} بِضَمِّ الْيَاء وَكَسْر الْحَاء وَبِفَتْحِهِمَا أَيْ يُهْلِككُمْ {بِعَذَابٍ} مِنْ عِنْده {وَقَدْ خَابَ} خَسِرَ {مَنِ افْتَرَى} كَذَبَ عَلَى اللَّه {فَتَنَازَعُوا أَمْرَهُمْ بَيْنَهُمْ} فِي مُوسَى وَأَخِيهِ {وَأَسَرُّوا النَّجْوَى} أَيْ الْكَلَام بَيْنهمْ فِيهِمَا {قَالُوا} لِأَنْفُسِهِمْ {إِنْ هَذَانِ} وَهُوَ مُوَافِق لِلُغَةِ مَنْ يَأْتِي فِي الْمُثَنَّى بِالْأَلِفِ فِي أَحْوَاله الثَّلَاثَة وَلِأَبِي عَمْرو هَذَيْنِ {لَسَاحِرَانِ يُرِيدَانِ أَنْ يُخْرِجَاكُمْ مِنْ أَرْضِكُمْ بِسِحْرِهِمَا وَيَذْهَبَا بِطَرِيقَتِكُمُ الْمُثْلَى} مُؤَنَّث أَمْثَل بِمَعْنَى أَشْرَف أَيْ بِأَشْرَافِكُمْ بِمَيْلِهِمْ إِلَيْهِمَا لِغَلَبَتِهِمَا {فَأَجْمِعُوا كَيْدَكُمْ} مِنَ السِّحْر بِهَمْزَةِ وَصْل وَفَتْح الْمِيم مِنْ جَمَعَ أَيْ لَمّ وَبِهَمْزَةِ قَطْع وَكَسْر الْمِيم مِنْ أَجْمَعَ أَحْكَمَ {ثُمَّ ائْتُوا صَفًّا} حَال أَيْ مُصْطَفِّينَ {وَقَدْ أَفْلَحَ} فَازَ {الْيَوْمَ مَنِ اسْتَعْلَى} غَلَبَ {قَالُوا يَا مُوسَى} اخْتَرْ {إِمَّا أَنْ تُلْقِيَ} عَصَاك أَوَّلًا {وَإِمَّا أَنْ نَكُونَ أَوَّلَ مَنْ أَلْقَى} عَصَاهُ {قَالَ بَلْ أَلْقُوا} فَأَلْقَوْا {فَإِذَا حِبَالُهُمْ وَعِصِيُّهُمْ} أَصْله عُصُوو قُلِبَتْ الْوَاوَانِ يَاءَيْنِ وَكُسِرَتْ الْعَيْن وَالصَّاد {يُخَيَّلُ إِلَيْهِ مِنْ سِحْرِهِمْ أَنَّهَا} حَيَّات {تَسْعَى} عَلَى بُطُونهَا {فَأَوْجَسَ} أَحَسَّ {فِي نَفْسِهِ خِيفَةً مُوسَى} أَيْ خَافَ مِنْ

جِهَةِ اَنْ سِحْرَهُمْ مِنْ جِنْسِ مُعْجِزَتِهِ اَنْ يَلْتَبِسَ اَمْرُهُ عَلَى النَّاسِ فَلَا يُؤْمِنُوا بِهِ (قُلْنَا) لَهُ (لَا تَخَفْ إِنَّكَ أَنتَ الْأَعْلَىٰ) عَلَيْهِمْ بِالْغَلَبَةِ (وَأَلْقِ مَا فِي يَمِينِكَ) وَهِيَ عَصَاهُ (تَلْقَفْ) تَبْتَلِعْ (مَا صَنَعُوا إِنَّمَا صَنَعُوا كَيْدُ سَاحِرٍ) اَيْ جِنْسِهِ (وَلَا يُفْلِحُ السَّاحِرُ حَيْثُ أَتَىٰ) بِسِحْرِهِ فَأَلْقَى مُوسَى عَصَاهُ فَتَلَقَّفَتْ كُلَّ مَا صَنَعُوهُ (فَأُلْقِيَ السَّحَرَةُ سُجَّدًا) خَرُّوا سَاجِدِينَ لِلّٰهِ تَعَالَى (قَالُوا آمَنَّا بِرَبِّ هَارُونَ وَمُوسَىٰ)

**ترجمه:** اومونږ ددې نه يعنی دزمکې نه تاسو پيدا کړئ ستاسو پلار آدم ﷺ ئې ددې نه پيدا کړې او هم په دې کښې به تاسو دمرګ نه پس واپس کړو حال داچه تاسو به دفن کړې شئ اوددې (زمکې نه به) تاسو دبعث په وخت په دويم ځل رااوباسو لکه څنګه مونږ تاسو دابتداء تخليق په وخت راوخکلی وو اومونږ ده ته يعنی فرعون ته خپلې پوره نهه نخښې اوښودلې نو هغه دا دروغ اوګڼړلې اوپه دې خبره قائم وو چه دا جادودې او دالله پاک دتوحيد نه ئې انکار کولو او وې وئيل اې موسی آيا ته مونږ ته دې دپاره راغلې ئې چه زمونږ دملک مصر نه دجادو په ذريعه مونږ اوباسې او په دې کښې ستا ملکيت (حکومت) شی ؟ بنه نو اوس به مونږ هم ستا په مقابله کښې داسې جادو راوړو چه هغه به ددې مقابله اوکړی، بس زمونږ اوستا په مينځ کښې دې دپاره وخت مقرر کړه چه دهغې خلاورزی نه مونږ اوکړو اونه ته په يو هوار ميدان کښې مکانا منصوب دې دحرف جار فی د حذف کولو دوجې نه سوی دسين په کسرې او ضمې سره دې يعنی په مينځ کښې چه دطرفينو نه د راتلو والا مسافت برابر وی نو موسی ﷺ اوفرمائيل وعده ستاسو دجشن ورځ ده کومه چه ددوی د اختر ورځ ده په دې ورځ هغوی زينت کوی او راټوليږی اوداچه خلق يعنی دښار والا چه ورځ اوخيژی را جمع شئ يعنی) دچاشت په وخت، چه څه په هغه وخت وی د هغې د کتلو دپاره پس فرعون (په خپل ځای ته) واپس لاړو او هغه خپل چالونه (مکر) يعنی مکار جادوګران راجمع کړل بيا ئې هغه راوستل اوپه مقرر وخت راغلو په هغه وخت موسیٰ ﷺ دې (جادوګرو) ته اوئيل او هغوی دوه اويا زره (۷۲۰۰۰) وو او د هريو سره رسئ اولرګی وو اې کمبختو هلاک شئ يعنی الله پاک ستاسو دپاره پلاکت لازم کړې دې په الله پاک باندې بهتان مه لګوئ دهغه سره څوک شريک کولو سره چه هغه به تاسو په خپل مخصوص عذاب نيست او نابود کړی فيسحتکم دياء ضمې او دحاء کسرې او د دوارو فتحې سره دی، يعنی تاسو به هلاک کړی اويادساتئ هغه کس ناکام شو په خساره کښې شو چا چه په الله پاک باندې په دروغه بهتان اوتړلو پس هغه خلق دموسی ﷺ اودده درور په باره کښې په خپلو مشورو کښې مختلف الرائې شول او ددې دوارو په باره کښې ئې په پټه خبرې اوکړې، په خپل مينځ کښې ئې اوئيل دادواړه يقينا جادوګران دی هذين دابوعمرو په نزد دی او دنورو په نيز هذان دې او دا د هغه چا دلغت مطابق دی چه دتثنيې په دريوارو حالتونو کښې الف راوړی ددوی مقصد دادې چه تاسو

دخپل جادو په زور سره ستاسو د ملک نه بهر کړي، او ستاسو بهترین مذهب برباد کړي.

بله توجیه: (ستاسو شریفان خپل خان ته مائل کړي) مثلی دامثل مؤنث دې ددې معنی داشرافو ده، یعنی ستاسو شریفان په خپل فیور کښې کړي، دهغوی ددې دوارو طرف نه دمائل کیدو دوجې نه ددې دوارو دغلبې په وجه نو تاسو هم خپل تدبیرونه یعنی جادو راجمع کړئ فاجمعوا دهمزهٔ وصل اوپه فتحې دمیم سره د جمع نه ماخوذ دی په معنی دلمْ (ای جمع) اودهمزه قطعی او د میم په کسرې سره هم دې (په دې صورت کښې به) اجمع نه ماخوذ وی او په معنی داحکم به شی (یعنی خپل تدبیرونه مضبوط کړئ) او بیا تاسو صف جوړ کړئ (په مقابله کښې) راشئ صفًا حال دې دمصطفین په معنی کښې دې نن به هغه وړ وی څوک چه غالب راغلو استعلی په معنی د غلب دې خلقو اوئیل اې موسی تاته اختیار دې که غوارې نو ته خپله همسا اول اوغورزوه یا مونږ خپلې همساګانې اول غورزونکی شو (حضرت موسٰی) اوفرمائیل نه بلکه تاسو اول اوغورزوئ پس هغوی اوغورزولې بیا یودم دهغوی رسی او همساګانې ددوی دجادو په وجه دده په خیال کښې داسې محسوسې شوې چه هغه همساګانې په خپلو خیتو منډې وهونکی ماران دی عصی په اصل کښې عصوو وو، دواړه واؤنه، په دوؤ یاګانوسره بدل شو او عین اوصادته کسره ورکړې شوه (عصی شو) پس موسی ﷺ په خپل زړه کښې څه ویره محسوسه کړه یعنی په دې وجه نې ویره محسوسه کړه چه ددوی سحر دده دمعجزې دجنس دې (داسې نه وی) چه دده معامله په خلقو باندې ګډه وډه شی او بیا هغه په دده (موسٰی) باندې ایمان رانوړی مونږ دده ته اوئیل یرېږه مه هم ته به په دوی باندې دغلبې په ذریعه یقینا سربلند کیږې، او څه چه ستا په ښی لاس کښې دی اوهغه دده همساوه اوغورزوه څه چه دې جادوګرو کاری ګری کړې ده هغه به دا تیر کړی او څه چه دې جادوګرو جوړ کړی دی بلاشبه دا دجادوګرو کرتب (دلاس صفائی) ده کومه چه دنورو جادوګرو دجنس نه دې جادوګر چه دکوم ځای نه هم راشی (اوځه هم چه اوکړی) نه کامیابیږی پس موسی ﷺ خپله همسا اوغورزوله نو دهغوی ټوله دهنده ئې تیره کړه اوس ټول جادوګران په سجده پریوتل یعنی الله ته سجده کولو د پاره په زمکه پریوتل او چغې کړې چه مونږ دموسی اوهارون په رب باندې ایمان راوړو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: ولقدارینٰـاه :الخ په دې سره ددې شبهې ازاله اوشوه چه موسی ﷺ ته ابتداء صرف دوې معجزې عصا او ید بیضاء ورکړې شوې وې نو نهه معجزې ئې څنګه اوښودلې؟ ذکر شوې جملې سره ددې جواب اوشو چه په ټول مودت ددعوت کښې ئې نهه معجزې اوښودلې څکه چه لقدارینـاه آیاتنا کلها دا جمله خبریه ده ددې مقصد دادې چه ددعوت په مدت کښې مونږ فرعون ته ټولې معجزې اوښودلې، نو شبه ختمه شوه

قوله: اریناه: د دې تفسیر ئې په ابصرنا سره اوکړو اشاره ئې اوکړه چه درؤیت نه رؤیت بصری مراد دې
قوله: فلناتینك: کښې لام په جواب قسم داخل دې او قسم محذوف دې تقدیر دعبارت دادې وکبریائی فلناتینك بسحر مثله، بسحر دفلناتینك متعلق دې فاء ترتیب دمابعد علی ماقبل دپاره ده.
قوله: موعدا: ظرف زمان دې داجعل مفعول اول مؤخر دې او بیناوبینکم: مفعول ثانی مقدم دې یوې دواړه قراءتونه دی موعدکم، مبتدأ اویوم الزینة ددې خبر دې.
قوله: ای ذوی کیده: دې سره ئې اشاره کړې ده چه کلام په حذف دمضاف سره دې او ساحر مراد دې.
قوله: وان یحشر الناس: دا جمله دمحل په اعتبار سره مجروراو مرفوع دواړه کیدې شی که په الزینة باندې عطف وی نو مجرور ده او که په یوم الزینة باندې عطف وی نو مرفوع به وی، اوتقدیر دعبارت به دارنګې شی موعدکم یوم الزینة وموعدکم ان یحشر الناس ای حشرهم.
قوله: ویلکم: ددې تفسیر په الزمکم الله الویل سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چه ویلکم دعامل محذوف دوجې نه منصوب دې.
قوله: باشرافکم، دطریقتکم: تفسیر دې، دطریقة ډیرې معنې راغلې دی یو دقوم داشرافوهم ده.
قوله: ان هذین لسحران: دجادوګرو داقول د اسروالنجوی نتیجه ده یعنی د کافی بحث او مباحثې نه پس دا فیصله اوشوه چه یقینا دا دواړه جادوګران دی هذین دان اسم او لسحران ددې خبر دې اوپه یو قراءت کښې هذانّ دی د بلحارث بن کعب په ژبه کښې هذان دان اسم دې دا خلق تثنیه په دریواړو حالتونو کښې په الف سره وائی او اعراب تقدیری منی او څنو حضراتو وئیلی دی چې دان اسم ضمیر شان محذوف دې ای انه او هذان لسحران دان خبر دی، فاجمعوا همزة وصل او دمیم په فتحې سره وی نو مطلب به داشی چه تاسو خپل تدبیرونه راجمع کړئ، او که فاجمعوا د همزه قطعی او دمیم په کسرې وی نو مطلب به دا شی تاسو خپل تدبیرونه مضبوط اومستحکم کړئ.
قوله: صفا: دا دایتوا د ضمیر نه حال دې صفا چونکه مصدر دې نو ضمیر دجمع نه حال واقع کیدل صحیح دی اوپه معنی دمصطفین دې.
قوله: اختر: محذوف منلو سره مفسر علام اشاره کړې ده چه ان دخپل مابعد سره په تاویل دمفرد سره اختر (فعل مقدر) دوجې نه منصوب دې.
قوله: فاذا حبالهم وعصیهم: دلته په کلام کښې حذف دې، تقدیر دعبارت دادې فالقوا فاذ حبالهم فا فصیحه او اذا مفجاتیه ده یخیل په یو قراءت کښې تخیل هم دې ځکه چه عصا او

حبال مؤنث دې یخیل مبنی للفاعل هم وئیلې شوې دې مخیل کید گرځولې شوې دې، عصی په اصل کښې عصوو په وزن د فلوس اول دویم واو یاء سره بدل کړې شو واؤ او یاء جمع شول اول واو ئې هم په ی سره بدل کړو بیا ئې یاء په یاء کښې مدغم کړه اودې نه پس د صاد او عین ضمه ئې په کسرې سره بدله کړه حبالهم وعصیهم مبتدأ ده او بخیل الیه ددې خبر دې فاذامفاجاتیه خبر مقدم او حبالهم وعصیهم مبتدأ مؤخر، په دې صورت کښې به بخیل حال شي یخیل د یاء سره ددې اسناد به دتسعی طرف وی، او داهم جائز دی چه دحبال دضمیر طرف ته مسند وی حبال مؤنث غیر حقیقی دې دې وجې نه دفعل مذکر راوړل صحیح دی یا بخیل الملقی په تاویل کښې اسناد شی انهاتسعیٰ دا دیخیل نه بدل الاشتمال دې.

قوله: ای خاف من جهة الخ داددې اعتراض جواب دې چه دمناجات په وخت الله تبارک او تعالی عصا اوید بیضاء پشان معجزات باهر ښودلی وو او په هره طریقه د حفاظت او مدد وعده ئې فرمائیلې وه نو بیا دموسی ﷺ د مقابلې په وخت ولې ویریدلو ؟ دجواب خلاصه داده چه یره او اندیښنه دمارانو نه نه وه بلکه اندیښنه ددې خبرې وه چه دجادوګرو جادو دحضرت موسی ﷺ دمعجزې دجنس وو حادوګرانو هم خپلې رسی او لرګی په ښکاره ماران جوړکړی وو اودموسی ﷺ همسا هم دمار شکل اختیارولو په داسې صورت کښې اندیښنه شوه چه چرته حاضرین دحضرت موسی ﷺ معجزه هم جادو اونه ګڼړي او ایمان را نه وړی انما صنعوا کید ساحر په عام قراءت کښې کید په رفع سره دې په دې بنا چه دان خبر دې او ما موصوله ده او صنعوا ددې صله ده او عائد محذوف دې تقدیر دعبارت دادې ان الذی صنعوا کید ساحر او که ان مصدریه دا اومنلې شی نو دعائد ضرورت به نه وی او اعراب به علی حاله باقی پاتې شی.

قوله: ولا یفلح الساحر: (سوال) الله پاک لایفلح السحرة دجمع په صیغه سره ولې اونه فرمائیل حالانکه په مقابله کښې راتلونکی ډیر ساحران وو یو نه وو؟ مفسر علام دساحر تفسیر په جنسه سره کړې اوددې اعتراض د دفع کولو طرف ته ئې اشاره کړې ده، مراد دادې چه دساحر نه یو ساحر مراد نه دې بلکه جنس ساحر مراد دې که دجمع صیغه راوړې وې نو داشبه راتله چه عدد مراد دې جنس دساحر نه فالقی د القاء نه دماضی مجهول واحد مذکر غائب دې هغه اوغورزولې شو فاء فصیحیة یعنی د طرفینو نه د همساګانو او رسې وغیره غورزولو عمل اوشو او څه چه اوشول حاضرینو اوکتل دې نه پس جادوګر په سجده کښې پریوتل سجدا په معنی دساجدین، آمنابرب هارون وموسی دهارون تقدیم دفواصلو درعایت د وجې نه دې.

[ایاتونه: ۷۱ - ۷۶]

(قَالَ) فرعون (آمنتم) بتحقيق الهمزتين وابدال الثانية الفا (لَهُ قَبْلَ أَنْ آذَنَ) انا (لَكُمْ إِنَّهُ لَكَبِيرُكُمُ) معلمكم (الَّذِي عَلَّمَكُمُ السِّحْرَ فَلَأُقَطِّعَنَّ أَيْدِيَكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ مِنْ خِلَافٍ) حال بمعنى مختلفة اي الايدي اليمنى والارجل اليسرى (وَلَأُصَلِّبَنَّكُمْ فِي جُذُوعِ النَّخْلِ) اي عليها (وَلَتَعْلَمُنَّ أَيُّنَا) يعني نفسه ورب موسى (أَشَدُّ عَذَابًا وَأَبْقَى) ادوم على مخالفته (قَالُوا لَنْ نُؤْثِرَكَ) نختارك (عَلَى مَا جَاءَنَا مِنَ الْبَيِّنَاتِ) الدالة على صدق موسى (وَالَّذِي فَطَرَنَا) خلقنا قسم او عطف على ما (فَاقْضِ مَا أَنْتَ قَاضٍ) اي اصنع ما قلته (إِنَّمَا تَقْضِي هَذِهِ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا) النصب على الاتساع اي فيها وتجزى عليه في الآخرة (إِنَّا آمَنَّا بِرَبِّنَا لِيَغْفِرَ لَنَا خَطَايَانَا) من الاشراك وغيره (وَمَا أَكْرَهْتَنَا عَلَيْهِ مِنَ السِّحْرِ) تعلما وعملا لمعارضة موسى (وَاللَّهُ خَيْرٌ) منك ثوابا اذا اطيع (وَأَبْقَى) منك عذابا اذا عصي قال تعالى (إِنَّهُ مَنْ يَأْتِ رَبَّهُ مُجْرِمًا) كافرا كفرعون (فَإِنَّ لَهُ جَهَنَّمَ لَا يَمُوتُ فِيهَا) فيستريح (ولايحيى) حياة تنفعه (وَمَنْ يَأْتِهِ مُؤْمِنًا قَدْ عَمِلَ الصَّالِحَاتِ) الفرائض والنوافل (فَأُولَئِكَ لَهُمُ الدَّرَجَاتُ الْعُلَى) جمع عليا مؤنث اعلى (جنات عدن) اي اقامة بيان له (تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَذَلِكَ جَزَاءُ مَنْ تَزَكَّى) تطهر من الذنوب

**ترجمه:** فرعون اوئيل تاسو زما داجازت نه بغير په ده باندې ايمان راوړو ء امنتم د دواړو همزو د تحقيق سره او دويمه په الف سره بدلولو سره بلا شبه هغه ستاسو لوئ استاذ دې چه تاسو ته ئې سحر ښودلې دی زه ستاسو د ټولو لاسونه خپې ادل بدل کټ کوم خلاف حال دې په معنی د مختلفة د يعنی ښی لاسونه او کسې خپې او تاسو ټول به د کهجورو په ونو پورې زوړند کړم فی جذوع النحل ای عليها او تاسو ته به پته اولگی چه مونږ دواړه يعنی زه او د موسی رب په دواړو کښې دچا عذاب زيات سخت او مضبوط (باقی پاتيکيدنکې) دې، يعنی دچا مخالفت سخت دې او مضبوط دې دې خلقو صفا جواب ورکړو چه مونږ به تا ته کله هم ترجيح درنکړو غوره نکړو په مقابله د هغه دلائيلو کښې کوم چه د موسی ﷺ په صداقت باندې دلالت کونکی مونږ ته ملاو شوی دی او په مقابله د هغه ذات چا چه مونږ پيدا کړی يو واؤ قسميه دې يا په ماجاءنا باندې عطف دې بس ستا چه څه زړه غواړی اوکړه يعنی څه چه تا وئيلی دی هغه اوکړه او ته چه څه کولې شې هغه په دې دنيا کښې کولې شې (اود الحيوة) نصب د توسيع په طور باندې دې ای فيها او (الله پاک) به په دې باندې په آخرت کښې بدله ورکړی مونږ په خپل پروردگار باندې ايمان راوړې دې دې دپاره چه زمونږ د شرک وغيره خطاگانې معاف کړی او هغه سحر هم معاف کړی د کوم په زده کولو او او په عملی طور باندې د موسی مقابله کولو دپاره چه تا مونږ مجبور کړی يو او الله پاک بهتر دې ستا نه داجر په اعتبار سره کله چه دده اطاعت اوکړې شی او زيات باقی پاتې کيدونکې دې تا نه دعذاب په اعتبار سره کله چه دده نافرمانی اوکړې شی، الله پاک اوفرمائيل خبره داده چه کوم کس د خپل رب په مخکښې مجرم

یعنی کافر راشی لکه فرعون نو بیشک دده دپاره جهنم دې نه به په دې کښې مړ کیږي چه راحت اومومی او نه به ژوندي پاتې کیږی داسې ژوند چه دهغې نه ده ته فائده وی او کوم کس چه دده مخې ته مؤمن حاضر شی او ده نیک اعمال یعنی فرض او نفلونه کړی وی نو دادی هغه خلق چه دوئ دپاره اوچتې درجې دی علی دعلیا جمع ده اود اعلی مؤنث دې یعنی د همیشه اوسیدو یعنی داقامت قابل باغونه دی جنت عدن، د درجت العلی بیان دې چه د هغې نه لاندې به نهرونه جاری وی هغوی به په دې کښې همیشه همیشه اوسیږی دا انعام دې دهغه کس کوم چه دګناهونو نه پاک شو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** أامنتم له همزه داستفهام انکاری توبیخ دپاره ده، او دحفص په نزد آمنتم دجمله خبریه په طور باندې استعمال شوې دې دآمنتم صله ئی لام راوړې دې، ځکه چه آمنتم د اتبعتم معنی لره متضمن دې، دد واړو همزو دتحقیق سره اول استفهامیه دي اوثانی فا کلمه ده په اصل کښې جمع مذکر حاضر دې، ءامنتم په وزن د اکرمتم دویمه همزه دقاعدې مطابق په الف سره بدله شوه بیا په دې باندې همزه د استفهام داخله کړې شوه، اوس په کلمه کښې دوه همزې غیر منقلبه شوې، اوس که تحقیق د دوؤ همزو سره لولې یا ئې دهمزې استفهام دحذف سره لولئ دمفسر علام وابدال الثانیة الفا وئیل غیر ظاهر دی ځکه چه ثانی خو په قراءت کښې بغیر دابدال نه باقی ده، البته ابدال الثالثة صحیح دې.

**قوله:** من خلاف، من ابتدائیه دې او خلاف د مختلفه په معنی کښې حال دې ای اقطعها مختلفات.

**قوله:** فی جذوع النخل: ای علیها په دې کښې اشاره ده چه فی په معنی دعلی دې ولتعلمن کښې لام قسمیه دې اینا مبتدأ اشد وابقی معطوف معطوف علیه خبر، مبتدأ سره دخبر نه دلتعلمن مفعول قائم مقام ددوو مفعولو علی مخالفته ددې تعلق داشد او ابقی دواړو سره دې والذی فطرنا که واو قسمیه وی نو موصول سره دصله نه قسم او لانؤثرک علی الحق جواب قسم محذوف ای وحق الذی فطرنا لانؤثرک علی الحق او که واو عاطفه وی نو معطوف علیه به ما جاءنا وی ای لن نؤثرک علی الذی جاءنا ولا الذی فطرنا فاقض ما انت قاض داجواب تهدید دې، هذه الحیوة الدنیا هذه مبدل منه الحیوة بدل داحذف دحرف جر دوجې نه اتساعا منصوب دې تقدیر عبارت دادې انما تقضی فی هذه الحیوة الدنیا فی ئې حذف کړو په دې وجه منصوب شو.

**قوله:** انما: ما کښې دوه وجې جائز دی ① اول دا چه ما په فعل باندې دان دخول جائز کولو دپاره ده او الحیوة الدنیا د تقضی ظرف دې او دتقضی مفعول محذوف دې ای تقضی غرضک دوئمه وجه دا چه ما مصدریه اسم دان وی او ظرف خبر وی، تقدیر د عبارت دا

شو ان تقضائك في هذه الحيوة الدنيا دريمه وجه دا هم كيدې شي چه ما په معنى دالذى موصول اسم دان تقضيه ددې صله عائد محذوف اى الذى ان تقضيه كائن في الحيوة الدنيا (جمل) وما اكرهتنا عطف په خطايانا باندې دې، دې د پاره چه زمونږ خطاګانې او دا دسحر عمل معاف کړی په کوم باندې چه تا مونږ مجبور کړو من السحر دعليه دضمير نه يا د ما موصوله نه حال کيدې شي، من بيان د جنس دپاره هم کيدې شي.

**قوله**: **قال تعالى** سره ئې اشاره اوکړه چه انه من يأت ربه جمله مستانفه ده ددې نه ماقبل دساحرانو کلام وو اوداالله سبحانه کلام دې خالدين دمن دمعنى درعايت د وجې نه جمع راوړلې شوې دې.

**[اياتونه: ۷۷-۸۶]**

(وَلَقَدْ أَوْحَيْنَا إِلَىٰ مُوسَىٰ أَنْ أَسْرِ بِعِبَادِي) بِهَمْزَةِ قَطْعٍ مِنْ أَسْرَى وَبِهَمْزَةِ وَصْلٍ وَكَسْرِ النُّونِ مِنْ سَرَى لُغَتَانِ أَيْ سِرْ بِهِمْ لَيْلًا مِنْ أَرْضِ مِصْرَ (فَاضْرِبْ لَهُمْ) اجْعَلْ لَهُمْ بِالضَّرْبِ بِعَصَاكَ (طَرِيقًا فِي الْبَحْرِ يَبَسًا) أَيْ يَابِسًا فَامْتَثَلَ مَا أُمِرَ بِهِ وَأَيْبَسَ اللّٰهُ الْأَرْضَ فَمَرُّوا فِيهَا (لَا تَخَافُ دَرَكًا) أَيْ أَنْ يُدْرِكَكَ فِرْعَوْنُ (وَلَا تَخْشَىٰ) غَرَقًا (فَأَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ بِجُنُودِهِ) وَهُوَ مَعَهُمْ (فَغَشِيَهُمْ مِنَ الْيَمِّ) اي البحر (مَا غَشِيَهُمْ) اغرقهم (وَأَضَلَّ فِرْعَوْنُ قَوْمَهُ) بِدُعَائِهِمْ إِلَى عِبَادَتِهِ (وَمَا هَدَىٰ) بَلْ أَوْقَعَهُمْ فِي الْهَلَاكِ خِلَافَ قَوْلِهِ (وَمَا أَهْدِيكُمْ إِلَّا سَبِيلَ الرَّشَادِ) (يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ قَدْ أَنْجَيْنَاكُمْ مِنْ عَدُوِّكُمْ) فِرْعَوْنَ بِإِغْرَاقِهِ (وَوَاعَدْنَاكُمْ جَانِبَ الطُّورِ الْأَيْمَنَ) فَنُؤْتِي مُوسَى التَّوْرَاةَ لِلْعَمَلِ بِهَا (وَنَزَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوَىٰ) هُمَا التَّرَنْجَبِينُ وَالطَّيْرُ السُّمَانَى بِتَخْفِيفِ الْمِيمِ وَالْقَصْرِ وَالْمُنَادَى مَنْ وُجِدَ مِنَ الْيَهُودِ زَمَنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَخُوطِبُوا بِمَا أَنْعَمَ اللّٰهُ بِهِ عَلَى أَجْدَادِهِمْ زَمَنَ النَّبِيِّ مُوسَى تَوْطِئَةً لِقَوْلِهِ تَعَالَى لَهُمْ (كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ) أَيِ الْمُنْعَمِ بِهِ عَلَيْكُمْ (وَلَا تَطْغَوْا فِيهِ) بِأَنْ تَكْفُرُوا النِّعْمَةَ بِهِ (فَيَحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبِي) بِكَسْرِ الْحَاءِ أَيْ يَجِبُ وَبِضَمِّهَا أَيْ يَنْزِلُ (وَمَنْ يَحْلِلْ عَلَيْهِ غَضَبِي) بِكَسْرِ اللَّامِ وَضَمِّهَا (فَقَدْ هَوَىٰ) سَقَطَ فِي النَّارِ (وَإِنِّي لَغَفَّارٌ لِمَنْ تَابَ) مِنَ الشِّرْكِ (وَآمَنَ) وَحَّدَ اللّٰهَ (وَعَمِلَ صَالِحًا) يُصَدِّقُ بِالْفَرْضِ وَالنَّفْلِ (ثُمَّ اهْتَدَىٰ) بِاسْتِمْرَارِهِ عَلَى مَا ذُكِرَ إِلَى مَوْتِهِ (وَمَا أَعْجَلَكَ عَنْ قَوْمِكَ) لِمَجِيءِ مِيعَادِ أَخْذِ التَّوْرَاةِ (يَا مُوسَىٰ) (قَالَ هُمْ أُولَاءِ) أَيْ بِالْقُرْبِ مِنِّي يَأْتُونَ (عَلَىٰ أَثَرِي وَعَجِلْتُ إِلَيْكَ رَبِّ لِتَرْضَىٰ) عَنِّي أَيْ زِيَادَةً فِي رِضَاكَ وَقَبْلَ الْجَوَابِ أَتَى بِالْاِعْتِذَارِ حَسَبَ ظَنِّهِ وَتَخَلَّفَ الْمَظْنُونُ لَمَّا (قَالَ) تَعَالَى (فَإِنَّا قَدْ فَتَنَّا قَوْمَكَ مِنْ بَعْدِكَ) أَيْ بَعْدَ فِرَاقِكَ لَهُمْ (وَأَضَلَّهُمُ السَّامِرِيُّ) فَعَبَدُوا الْعِجْلَ (فَرَجَعَ مُوسَىٰ إِلَىٰ قَوْمِهِ غَضْبَانَ) مِنْ جِهَتِهِمْ (أَسِفًا) شَدِيدَ الْحُزْنِ

**ترجمه**: او مونږ موسى ته وحى اوليږله چه زما بندګان د شپې بوځه اسر د همزه قطعى سره دې د أسرى نه ماخوذ دې، يا همزه وصل اودنون په کسرې سره دې اودسرى نه ماخوذ دې دا دوه لغت دى، مطلب دا چه بنى اسرئيل دشپې دمصر نه اوباسه يا ددوى دپاره همسا اووهه

په درياب کښې اوچه لار جوړه کړه يېسا په معنی دیابسا، پس موسیٰ ﷺ د امر امتثال اوکړو او الله پاک زمکه اوچه کړه نو ټول خلق دهغه ځائ نه اوتل، نه خو به تا ته د دریسې کیدلو اندیښنه وی چه فرعون به تاسو اونیسی اونه به تاسو ته دغرقیدو یره وی پس فرعون دخپل لښکر سره ددوی تعاقب اوکړو حال داچه هغه پخپله هم دوی سره وو، پس درياب په دوی باندې راخور شو څنګه چه دخوریدلو والا وو بیا ئی دوی غرق کړل، اوفرعون خپل قوم ګمراه کړو دوی ته دخپل عبادت دعوت ورکولو سره اودوی ته ئی سیده لار اونه ښودله بلکې دوی ئی په هلاکت کښې واچول دخپل قول وما اهديكم الا سبيل الرشاد په خلاف اې بنی اسرائیلو مونږ تاسوته ستاسو د دښمن فرعون نه د هغه غرق کولو سره نجات درکړو او مونږ تاسو سره دطور ښی طرف ته دراتلو وعده اوکړه چه موسیٰ ته به تورات ورکړو په دې باندې دعمل کولو دپاره اومونږ ستاسو دپاره من اوسلوی راولیږل اوهغه ترنجبین اومرزان دی، سمانی دمیم په تخفیف او قصر سره دې او (یا بنی اسرائیل) کښې منادی هغه یهود دی کوم چه دحضور ﷺ په زمانه کښې وو اوهغوی د هغه نعمتونو مخاطب وو کوم چه په هغه یهودو باندې شوی وو، چه دسیدنا موسیٰ ﷺ په زمانه کښې وو د الله پاک قول کلوا من طیبت الخ دتمهید دپاره مونږ چه کوم پاکیزه څیزونه تاسو ته درکړی دی د هغې نه خورئ یعنی هغه څیزونه کوم چه تاسو ته دانعام په طور درکړی شوی دی اوپه دې کښې حد (شرعی) نه تجاوز مه کوئ په داسې طریقی سره چه دمنعم ناشکری اوکرئ چرته داسې نه وی چه زما غضب په تاسو باندې واقع شی دحا په کسرې سره یعنی لازم شی اود حا په ضمې سره یعنی نازل شی اوپه چا باندې چه زما غضب نازل شی یحلل د لام په کسرې او ضمې سره دې نو بلا شبه هغه په اور کښې پریوتلو او بیشک زه دداسې خلقو دپاره ډیر بخښونکې یم چاچه دشرک نه توبه اوکړه او د الله پاک په وحدانیت باندې ئې ایمان راوړو او نیک عمل ئې اوکړو عمل صالح په فرض اونفلو دواړو باندې صادق راځی (یا) (فرض او نفل په ذریعه (دایمان تصدیق کوی په دې وخت به یُصَدِّقُ ونیلې شی) اوبیا مذکور څیزونو باندې تر مرګ پورې قائم هم پاتې شی (الله پاک اونیل) اې موسیٰ دخپل قوم پریښودلو اود زر راتلو څه سبب شو؟ د تورات د اخستلو په وخت د راتلو په وجه حضرت موسیٰ علیه السلام جواب ورکړو هغوی دا دی ما پسې یعنی نزدې راروان دی او اې زما پروردګاره زه تاته زر راغلم چه ته زما نه زیات خوشحال شې یعنی ستا زیاته رضامندی حاصلولو دپاره اودجواب نه مخکښې ئې دخپل ګمان په اعتبار سره عذر بیان کړو او ګمان دواقعې خلاف ثابت شو څکه چه الله پاک اوفرمائیل چه ستا قوم مونږ ستا دوی لره پریښودلو او راتللونه پس یو فتنه کښې مبتلا کړو او دوی سامری ګمراه کړل چه دهغې وجې نه دوی دغوا په عبادت کښې مبتلا شول غرض موسیٰ ددوی دوجې نه په غصه او اوسخت غم نه ډک واپس راغلو.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله: ولقد اوحینا:** الخ دا د عطف القصه علی القصه دقبیلې نه دې ځکه چه اول الله پاک موسی ﷺ فرعون ته رسول په طور د لیږلو قصه سره دمعجزاتو بیان کړه او بیا ئې د فرعون اوددہ دلښکر دعبرت ناک انجام قصه بیان کړه نو دا عطف القصه علی القصه دې.

**قوله: طریقا:** داضرب مفعول دې ځکه چه اضرب داجعل معنی ته متضمن دې لکه ښنګه چه مفسر رح اشاره کړې ده او دا هم کیدې شی چه داضرب مفعول به محذوف وی تقدیر به داشی اضرب موضع طریق په دې صورت کښې داضرب نسبت دطریق طرف ته مجازا وی موضع ئې حذف کړو او طریق ئې ددې قائم مقام کړو اضرب لهم طریقا شودطریق نه مراد جنس طریق دې ځکه چه د بنی اسرائیل دقبیلو دتعدادپه اعتبار سره دولس لارې جوړې کړې وې یبسا مصدر دې دمصدر حمل په طریق باندې مبالغة دې یا مصدر دې مخکښې ترې لفظ ذات محذوف دې ای ذات یَبَس او که دباء په سکون سره یَبْسًا وی نو صیغه د صفت به وی ای یابسًا. لاتخاف په رفع سره دحمزه رح نه علاوه دټول قراؤ دا قراءت دې په دې صورت کښې به دا جمله مستانفه وی په دې وخت کښې به ددې محل داعراب نه وی، یا داضرب دضمیر نه حال دې، ای اضرب لهم طریقا حال کونك غیر خائف او حمزه رح په جزم سره لوستلې دې په دې وجه چه لا ناهیه ده تخف ددې دوجې نه مجزوم دې.

**قوله: ولاتخشی:** داد قراؤ په اتفاق په الف سره دې درفع په صورت کښې به لا تخاف باندې عطف ښکاره دې او دجزم په صورت کښې به د لا تخشی عطف په لا تخف باندې وی او علامت دجزم به په لاتخشی کښې دالف حذف وی او موجوده الف به داشباع وی چه دفواصلو درعایت نه راوړلې شوې دې.

**قوله: بجنوده:** دا په موضع د حال کښې دې اومفعول ثانی محذوف دې ای فاتبعهم فرعون عقابه ومعه جنوده او داهم وئیلې شی چه أَتبَعَ په معنی اتَّبَعَ دې په دې صورت کښې به د بجنوده باء د تعدیه دپاره وی.

**قوله: وهو معهم:** داضافې مقصد داښودګل دې چه جار داتبعهم صله نه ده بلکه په موضع دحال کښې دې او داتبعهم مفعول ثانی محذوف دې اومعنی داده اتبعهم فرعون نفسه مع جنوده اوپه بیضاوی کښې دی والمعنی فاتبعهم فرعون نفسه ومعه جنوده فحذف المفعول الثانی او داهم وئیلې شوی دی چه په بجنوده کښې باء زائده ده ای اتبعهم جنوده وهو معهم فغشیهم من الیم ما غشیهم ای غرقهم من الیم ماغرقهم دسمندر دچپو سختی ښکاره کولو دپاره ئې ابهام کړې دې یعنی هغه چپې په سختئ کښې داسې وې چه دهغې دسختئ حقیقت دالله پاک نه

علاوه څوک نه پيژني.

قوله: فنزلت موسى التورة للعمل بها: ددې داضافې مقصد ددې سوال جواب دې چه وعده خو دموسى ﷺ سره وه نه چه دقوم سره نو بيا وواعدناکم کښې د وعدې نسبت دقوم طرف ولې شوې دې ؟ دجواب خلاصه داده چه چونکه موسى ﷺ ته دتورات ورکولو وعده دقوم دعمل دپاره اود دوی دترقئ دپاره وه لهذا دادنې ملابست د وجې نه نسبت صحيح دې، دويم جواب دادې چه موسى ﷺ ته داحکم هم ووچه دخپل قوم اوويا (۷۰) سردران هم کوه طور ته ځان سره راوله په دې طريقه هم دقوم طرف ته د وعدې نسبت صحيح دې.

قوله: المن: اسم دې شبنمې چيز دې (حميره) چه دحلوه په شکل وو چه په وادی تيه کښې دسرګردان اسرائيليانو دخوراک دپاره روزانه داونو په پانړو الله پاک لګولو سلوی يو قسم مارغه دې چه بټير ورته وئيلې شی په قاموس کښې د دې واحد سلوة ليکلې شوې دې داخفش نه منقول دی چه ددې واحد نه دې اوريدلې شوې هَوَى ماضی واحد مذکر غائب (ض) مصدر هُوِيّ راځی.

قوله: ومن يحلل: دلته هم کسره دحاء او ضمه دحاء دواړه صورتونه دی ثم اهتدى د دې تفسير په باستمراره على ماذکر الى موته سره کولو کښې ددې سوال جواب ورکول مقصود دی چه اهتدى دذکر کولو څه فائده ده حالانکه دآمن په عموم کښې اهتدى هم داخل دې؟ دجواب خلاصه داده چه دلته په ايمان باندې استمرار او دوام مراد دې ځکه چه نجات تامه په هغه ايمان او اعمال صالحه باندې موقوف دې چه تر مرګ پورې باقی وی.

قوله: ما اعجلك عن قومك: مااستفهاميه مبتدأ ده او اعجل ددې خبردې دلته استفهام د استفاده علم دپاره نه دې ځکه چه خدائ پاک ته ددې ضرورت نشته بلکه ددې خبرې ښودلو دپاره دې چه تاسو جلتی اوکړه خپل قوم دې پريښودو اودلته راغلې مونږ ستا قوم په يوه فتنه کښې مبتلا کړو.

قوله: هم اولاء: هم مبتدأ ده اولاء په معنی دالذی دې او على اثرى ددې صله ده.

قوله: زيادة على رضاك: ددې اضافې مقصد دادې چه دموسیٰ عليه السلام دمخکښې تلو وجه د رضا زياتوالې وو نه چه صرف رضا، ځکه چه صرف رضا خو نبی ته حاصل وی البته زياتوالې مطلوب وی.

قوله: وقيل الجواب اتى بالاعتذار الخ ددې خلاصه داده چه د ما اعجلك جواب عجلت اليك رب لترضى دې، موسى ﷺ داصل جواب ورکولو نه مخکښې هم اولاء على اثرى سره دا عذر بيان کړد چه ما دوی پريښی نه دی بلکه هغوی نزدې زما سره دی او دا عذر ئې په دې خيال بيان کړو چه موسى ﷺ دا ګنړل چه واقعی هغوئ زما روستو روستو راروان دی حالانکه

هغوئ هلته پاتې شوې وو چه دهغې وجې نه د حضرت موسى عليه السلام گمان دواقعې خلاف وو او دگمان دواقعې، خلاف كيدل هغه وخت معلوم شو كله چه الله فانا قد فتنا قومك من بعدك اوفرمائيل لما كښې لام تعليليه دې لكه چه دا د خلاف مظنون كيدو علت دې.

**قوله: السامرى:** دبنى اسرائيلو قبيلې سامره طرف ته منسوب دې خنو وئيلى دى چه سامره په يهودو كښې يوه فرقه ده چه په خنو خبرو كښې دنورو يهودونه مختلف دى، خنو وئيلى دى چه دكرمان يو دهقانى كافر وودهغه نوم موسى بن ظفر دې،دا منافق وودده قوم به دغوا عبادت كولو دموسى سامرى پرورش جبرائيل عليه السلام كړې وو څكه چې دې هم مور دذبح ديرې نه په يو غاركښې پټ كړې وو،حضرت جبرائيل عليه السلام ده ته خپلې گوتې رودلې ديوې نه پئ دبلې نه شات او ددريمې نه غورى راوتل: قال الشاعر

موسى الذى رباه فرعون مرسل............موسى الذى رباه جبريل كافر

دقرطبى په حاشيه ئې ليكلى دى چه سامرى دهندوستان اوسيدونكې وو چه دغوا عبادت به ئې كولو (دزيات تفصيل دپاره لغات القرآن دريم جلد تاليف مولانا عبدالرشيد نعمانى ته رجوع اوكړئ).

**قوله: موسى** :علم معرفه ده دبنى اسرائيلو مشهور پيغمبردې، دده دمورنوم يوحانث وو، او دپلار نوم عمران وو،وئيل شى چه په عبرانى ژبه كښې مو اوبو ته وائى او شى اونې ته وائى په عربى كښې شين په سين سره بدل شوې دې، حضرت موسى عليه السلام دپيدائش نه پس د لرگى په يو صندوق كښې بند كړې شو او په سمندر كښې واچولې شو، دې وجې نه موسى نوم شوو.

**[اياتونه: ۸۶-۸۹]**

{قَالَ يَا قَوْمِ أَلَمْ يَعِدْكُمْ رَبُّكُمْ وَعْدًا حَسَنًا} أَيْ صِدْقًا أَنَّهُ يُعْطِيكُمُ التَّوْرَاةَ {أَفَطَالَ عَلَيْكُمُ الْعَهْدُ} مُدَّةَ مُفَارَقَتِي إِيَّاكُمْ {أَمْ أَرَدْتُمْ أَنْ يَحِلَّ} يَجِبَ {عَلَيْكُمْ غَضَبٌ مِنْ رَبِّكُمْ} بِعِبَادَتِكُمُ الْعِجْلَ {فَأَخْلَفْتُمْ مَوْعِدِي} وَتَرَكْتُمُ الْمَجِيءَ بَعْدِي {قَالُوا مَا أَخْلَفْنَا مَوْعِدَكَ بِمَلْكِنَا} مُثَلَّثُ الْمِيمِ أَيْ بِقُدْرَتِنَا أَوْ أَمْرِنَا {وَلَكِنَّا حُمِّلْنَا} بِفَتْحِ الْحَاءِ مُخَفَّفًا وَبِضَمِّهَا وَكَسْرِ الْمِيمِ مُشَدَّدًا {أَوْزَارًا} أَثْقَالًا {مِنْ زِينَةِ الْقَوْمِ} أَيْ حُلِيِّ قَوْمِ فِرْعَوْنَ اسْتَعَارَهَا مِنْهُمْ بَنُو إِسْرَائِيلَ بِعِلَّةِ عُرْسٍ فَبَقِيَتْ عِنْدَهُمْ {فَقَذَفْنَاهَا} طَرَحْنَاهَا فِي النَّارِ بِأَمْرِ السَّامِرِيِّ {فَكَذَلِكَ} كَمَا أَلْقَيْنَا {أَلْقَى السَّامِرِيُّ} مَا مَعَهُ مِنْ حُلِيِّهِمْ وَمِنَ التُّرَابِ الَّذِي أَخَذَهُ مِنْ أَثَرِ حَافِرِ فَرَسِ جِبْرِيلَ عَلَى الْوَجْهِ الْآتِي {فَأَخْرَجَ لَهُمْ عِجْلًا} صَاغَهُ مِنَ الْحُلِيِّ {جَسَدًا} لَحْمًا وَدَمًا {لَهُ خُوَارٌ} أَيْ صَوْتٌ يُسْمَعُ أَيِ انْقَلَبَ كَذَلِكَ بِسَبَبِ التُّرَابِ الَّذِي أَثَرُهُ الْحَيَاةُ فِيمَا يُوضَعُ فِيهِ وَوَضَعَهُ بَعْدَ صَوْغِهِ فِي فَمِهِ {فَقَالُوا} أَيِ السَّامِرِيُّ وَأَتْبَاعُهُ {هَذَا إِلَهُكُمْ وَإِلَهُ مُوسَى فَنَسِيَ} مُوسَى رَبَّهُ هُنَا وَذَهَبَ يَطْلُبُهُ قَالَ تَعَالَى {أَفَلَا يَرَوْنَ أَ} أَنْ مُخَفَّفَةٌ مِنَ الثَّقِيلَةِ وَاسْمُهَا مَحْذُوفٌ أَيْ أَنَّهُ {لَا يَرْجِعُ} الْعِجْلُ {إِلَيْهِمْ قَوْلًا} أَيْ لَا يَرُدُّ لَهُمْ جَوَابًا {وَلَا يَمْلِكُ لَهُمْ ضَرًّا}

اي ذلّه ﴿وَلَا نَفْعًا﴾ اي جَلْبه اي فَكَيْفَ يَتَّخِذُ اِلٰهًا

**ترجمه:** موسى ﷺ اوئيل اې زما قوم آيا تاسو سره زما رب ښه وعده نه وه کړې؟ يعنى رښتونى وعده، دا چه هغه به تاسو ته تورات درکړى، آيا تاسو باندې زما د جدائى زمانه ډيره اوږده شوې وه؟ يا تاسو ته دا منظوره شوه چه په تاسو باندې ستاسو د رب غضب واجب شى، ستاسو د سخى دعبادت کولو دوجې نه چه تاسو زما دوعدې خلاف ورزى اوکړه چه تاسو زما روستو روستو راتلل پرېښودل نو هغوئ اوئيل چه مونږ ستا دوعدې خلاف ورزى په خپل اختيار سره نه ده کړې دملکنا په ميم کښې درې واړه حرکتونه صحيح دى، يعنى په خپل قدرت او خپل اختيار سره (خلاف ورزى نه ده کړې) خود قوم د زيوراتو (کالو) بوج کوم چه په مونږ باندې بار کړې شوې وو مونږ هغه په اور کښې واچول حملنا په فتحې دحاء او په فتحې دميم مخفف سره او دحاء په ضمې اوپه کسرې او د ميم مشدد سره يعنى حُمِّلنَا يعنى دفرعون قوم د (قبط) زيوراتو بوج کوم چه بنى اسرائيلو د قبطيانو نه د اختر په موقع عاريتًا اخستى وو بيا هغه ددوى سره پاتې شو، اومونږ دا زيوارت دسامرى په وينا په اور کښې واچول بس دارنګې يعنى څنګه چه مونږ واچول سامرى هم کوم چه دده سره د هغوى زيورات وو اوهغه خاوره کومه چه هغه دحضرت جبرائيل ﷺ داس دنوکې لاندې نه راخستې وه د (اثينده) ذکر شوې طريقې مطابق واچول بيا هغه ددې خلقو دپاره يو سخې جوړ کړو يعنى دزيوراتو قالب (ډهانچه) ئې جوړه کړه چه دهغې غوښه او وينه هم وه اودهغې د غوائ په شان آواز وو يعنى اوريدووالا آواز اودا انقلاب ددې خاورې دوجې نه اوشو چه د هغې تاثير ژوند وو په څه کښې چه په دې کښې واچولې شى او داخاوره سامرى په قالب کښې اچولو نه پس ددې په خلۀ کښې واچوله پس سامرى اودده متبعينو اوئيل دا دې ستاسو اودموسى خدائ موسى خپل خدائ دلته هير کړې دې او دهغې تلاش کولو دپاره تلې دې آيا هغه خلق دومره نه پوهيدل چه هغه سخى ددوى کومه خبره نه شوه واپس کولې يعنى ددوى دکومې خبرې جواب ئې نه شو ورکولې الا (دا د ان او لا نه مرکب دې) ان مخففه عن الثقيله دې اوددې اسم محذوف دې يعنى انه او نه د دوى دڅه ضرر مالک دې چه دفع ئې کړى اونه دنفع چه هغه حاصل کړى بيا څنګه دا معبود جوړولې شى.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** انه يعطيكم التوراة: دا جمله ديعدکم مفعول ثانى دې او کم مفعول اول دې او وعدا حسنا مفعول مطلق دې.

**قوله:** افطال عليکم العهد: دغوا په عبادت اوزما په مخالفت کوم څيز آماده کړئ؟ يا خو اوږدې زمانې پورې زما جدائې حالانکه داسې نه دى شوى يا دې خبرې چه ستاسو

مقصد غضب الهی ته دعوت ورکول دی ؟ دا هم نامناسب دی ځکه چه دیو عاقل دپاره دامناسب نه دی چه هغه غضب الهی ته دعوت ورکړی فاخلفتم موعدی حضرت موسی ﷺ دخپل قوم نه وعده اخستې وه چه تاسو زمانه روستو روستوکوه طورته راشئ خو قوم دوعدې خلاف اوکړو او دغوا په عبادت کښې مبتلا شول

**قوله:** على الوجه الآتي: ددې جملې تعلق دومن التراب سره دې اى القى التراب على الوجه الآتي او وجه آتی داده والقى فيها ان اخذ قبضة من تراب فاخرج ددې عطف په واضلهم السامرى باندې دې دا دخدائ پاک کلام دې.

**قوله:** جسدا: دا العجل نه حال دې اى آخرج لهم صورة عجل حال كونها جسدا.

**قوله:** لحما ودما، ددې اضافه ددې خبرې ښودلو دپاره ده چه جسد هغه څيز ته وائی چه دغوښې او چرې نه جوړ وی خوار دغوائی آواز ته وائی یعنی داد ماهیت انقلاب ددې خاورې چولو دوجې نه اوشو، بسبب التراب اى بسبب وضع التراب مضاف محذوف دې دمفسر علام د ووضعه داضافې مقصد دې خبرې ته اشاره کول دی چه دتولو نه اول دوضع مضاف محذوف دې.

**قوله:** فنسى: ددې فاعل موسی ﷺ هم کیدې شی لکه څنګه چه مفسر علام رح صراحت کړې دې نو دا به دسامری کلام شو په دې صورت کښې به مطلب داوی چه موسی ﷺ خپل خدائ دلته هیر کړې دې او کوه طور ته د هغې د تلاش کولو دپاره تلې دې، او داهم کیدې شی چه دنَسِیَ فاعل سامری شی په دې صورت کښې به دادخدائ پاک کلام شی او مطلب به داشی چه سامری خپل رب هیر کړو چه ددې په وجه هغه داحرکت اوکړو،او دامطلب هم کیدې شی چه سامری په دې خبره استدلال کول هیر کړل چه سخې معبود نه شی کیدې او ددې دلیل په راتلونکی قول افلا یرون الا یرجع الیهم قولا دی الا په اصل کښې انه لا وو، انّ ئې مخفف آن کړواو ه ضمیر اسم ئې حذف کړواو نون ئې په لام کښې مدغم کړو آلّا شو څنو حضراتو یرجعَ په نصب سره وئیلې دې خو په دې کښې ضعف دې ځکه چه ان ناصبه د افعال یقینی نه پس نه واقع کیږی او رؤیت په اول صورت کښې علمیه دې او په دویم صورت کښې بصریه دې دفعه محذوف منلو سره ئې اشاره اوکړه چه مضاف محذوف دې

**قوله:** جلبه: په دې سره هم دمضاف محذوف طرف ته اشاره اوکول دی.

**قوله:** لا یملك لهم ضرا ولا نفعا: ددې عطف په لا یرجع باندې دې.

[ايا تونه: ٩٠-١٠٤]

(وَلَقَدْ قَالَ لَهُمْ هَارُونُ مِنْ قَبْلُ) أَيْ قَبْل أَنْ يَرْجِع مُوسَى (يَا قَوْمِ إِنَّمَا فُتِنْتُمْ بِهِ وَإِنَّ رَبَّكُمُ الرَّحْمَنُ فَاتَّبِعُونِي) فِي عِبَادَته (وَأَطِيعُوا أَمْرِي) فِيهَا (قَالُوا لَنْ نَبْرَحَ) نَزَال (عَلَيْهِ عَاكِفِينَ) عَلَى عِبَادَته مُقِيمِينَ (حَتَّى يَرْجِعَ إِلَيْنَا مُوسَى) (قَالَ) مُوسَى بَعْد رُجُوعه (يَا هَارُونُ مَا مَنَعَكَ إِذْ رَأَيْتَهُمْ ضَلُّوا) بِعِبَادَتِهِ (أَ) نْ (لَا تَتَّبِعَنِ) لَا زَائِدَة (أَفَعَصَيْتَ أَمْرِي) بِإِقَامَتِك بَيْنَ مَنْ يَعْبُد غَيْر اللّٰه تَعَالَى (قَالَ) هَارُون (يَا ابْنَ أُمَّ) بِكَسْرِ الْمِيم وَفَتْحهَا أَرَادَ أُمِّي وَذِكْرهَا أَعْطَف لِقَلْبِهِ (لَا تَأْخُذْ بِلِحْيَتِي) وَكَانَ أَخَذَهَا بِشِمَالِهِ (وَلَا بِرَأْسِي) وَكَانَ أَخَذَ شَعْره بِيَمِينِهِ غَضَبًا (إِنِّي خَشِيتُ) لَوْ اتَّبَعْتُك وَلَا بُدّ أَنْ يَتْبَعنِي جَمْع مِمَّنْ لَمْ يَعْبُدُوا الْعِجْل (أَنْ تَقُولَ فَرَّقْتَ بَيْنَ بَنِي إِسْرَائِيلَ) وَتَغْضَب عَلَيَّ (وَلَمْ تَرْقُبْ) تَنْتَظِر (قَوْلِي) فِيمَا رَأَيْته فِي ذَلِكَ (قَالَ فَمَا خَطْبُكَ) شَأْنك الدَّاعِي إِلَى مَا صَنَعْت (يَا سَامِرِيُّ) (قَالَ بَصُرْتُ بِمَا لَمْ يَبْصُرُوا بِهِ) بِالْيَاءِ وَالتَّاء أَيْ عَلِمْت مَا لَمْ يَعْلَمُوهُ (فَقَبَضْتُ قَبْضَةً مِنْ) تُرَاب (أَثَرِ) حَافِر فَرَس (الرَّسُولِ) جِبْرِيل (فَنَبَذْتُهَا) أَلْقَيْتهَا فِي صُورَة الْعِجْل الْمَصَاغ (وَكَذَلِكَ سَوَّلَتْ) زَيَّنَتْ (لِي نَفْسِي) وَأُلْقِيَ فِيهَا أَنْ آخُذ قَبْضَة مِنْ تُرَاب مَا ذُكِرَ وَأُلْقِيهَا عَلَى مَا لَا رُوح لَهُ يَصِير لَهُ رُوح وَرَأَيْت قَوْمك طَلَبُوا مِنْك أَنْ تَجْعَل لَهُمْ إِلَهًا فَحَدَّثَتْنِي نَفْسِي أَنْ يَكُون ذَلِكَ الْعِجْل إِلَهَهُمْ (قَالَ) لَهُ مُوسَى (فَاذْهَبْ) مِنْ بَيْنِنَا (فَإِنَّ لَكَ فِي الْحَيَاةِ) أَيْ مُدَّة حَيَاتك (أَنْ تَقُولَ) لِمَنْ رَأَيْته (لَا مِسَاسَ) أَيْ لَا تَقْرَبنِي فَكَانَ يَهِيم فِي الْبَرِّيَّة وَإِذَا مَسَّ أَحَدًا أَوْ مَسَّهُ أَحَد حُمَّا جَمِيعًا (وَإِنَّ لَكَ مَوْعِدًا) لِعَذَابِك (لَنْ تُخْلَفَهُ) بِكَسْرِ اللَّام أَيْ لَنْ تَغِيب عَنْهُ وَبِفَتْحِهَا أَيْ بَلْ تُبْعَث إِلَيْهِ (وَانْظُرْ إِلَى إِلَهِكَ الَّذِي ظَلْتَ) أَصْله ظَلِلْت بِلَامَيْنِ أُولَاهُمَا مَكْسُورَة حُذِفَتْ تَخْفِيفًا أَيْ دُمْت (عَلَيْهِ عَاكِفًا) أَيْ مُقِيمًا تَعْبُدهُ (لَنُحَرِّقَنَّهُ) بِالنَّارِ (ثُمَّ لَنَنْسِفَنَّهُ فِي الْيَمِّ نَسْفًا) نُذَرِّيَنَّهُ فِي هَوَاء الْبَحْر وَفَعَلَ مُوسَى بَعْد ذَبْحه مَا ذَكَرَهُ (إِنَّمَا إِلَهُكُمُ اللَّهُ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ وَسِعَ كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا) تَمْيِيز مُحَوَّل عَنِ الْفَاعِل أَيْ وَسِعَ عِلْمه كُلَّ شَيْء (كَذَلِكَ) أَيْ كَمَا قَصَصْنَا عَلَيْكَ يَا مُحَمَّد هَذِهِ الْقِصَّة (نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ أَنْبَاءِ) أَخْبَار (مَا قَدْ سَبَقَ) مِنَ الْأُمَم (وَقَدْ آتَيْنَاكَ) أَعْطَيْنَاك (مِنْ لَدُنَّا) مِنْ عِنْدنَا (ذِكْرًا) قُرْآنًا (مَنْ أَعْرَضَ عَنْهُ) فَلَمْ يُؤْمِن بِهِ (فَإِنَّهُ يَحْمِلُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وِزْرًا) حِمْلًا ثَقِيلًا مِنَ الْإِثْم (خَالِدِينَ فِيهِ) أَيْ فِي عَذَاب الْوِزْر (وَسَاءَ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حِمْلًا) تَمْيِيز مُفَسِّر لِلضَّمِيرِ فِي سَاءَ وَالْمَخْصُوص بِالذَّمِّ مَحْذُوف تَقْدِيره وِزْرهمْ وَاللَّام لِلْبَيَانِ وَيُبْدَل مِنْ يَوْم الْقِيَامَة (يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّورِ) الْقَرْن النَّفْخَة الثَّانِيَة (وَنَحْشُرُ الْمُجْرِمِينَ) الْكَافِرِينَ (يَوْمَئِذٍ زُرْقًا) عُيُونهمْ مَعَ سَوَاد وُجُوههمْ (يَتَخَافَتُونَ بَيْنَهُمْ) يَتَسَارُّونَ (إِنْ) مَا (لَبِثْتُمْ) فِي الدُّنْيَا (إِلَّا عَشْرًا) مِنَ اللَّيَالِي بِأَيَّامِهَا (نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَقُولُونَ) فِي ذَلِكَ أَيْ لَيْسَ كَمَا قَالُوا (إِذْ يَقُولُ أَمْثَلُهُمْ) أَعْدَلهمْ (طَرِيقَةً) فِيهِ (إِنْ لَبِثْتُمْ إِلَّا يَوْمًا) يَسْتَقِلُّونَ لُبْثهمْ فِي الدُّنْيَا جِدًّا لِمَا يُعَايِنُونَهُ فِي الْآخِرَة مِنْ أَهْوَالهَا

ترجمه: او هارون عليه السلام دوی ته مخکښې يعنې موسى عليه السلام د واپس کيدو نه مخکښې ونيلي وو اې زما قوم تاسو دې سخی دوجې نه په آزمائش کښې مبتلا شوی يئ او بلا شبه ستاسو رب رحمن

دې نو تاسو د هغه په عبادت کولو کښې زما تابعداري اوکړئ او دعبادت په معامله کښې زما خبره اومنئ هغه خلقو جواب ورکړو چه مونږ به په دې باندې اوسوو يعنى ددې په عبادت به قائم يو د موسى مونږ ته د واپس راتلو پورې موسى ﷺ واپس کيدلو نه پس اوفرمائيل اې هارون کله چه تا دوى اوليدل چه داګمراه شوى دى دسخى دعبادت دوجې نه نو ستا ما پسې دراتلو نه کوم څيز مانع شو ؟ الا تتبعن کښې لا زائد دې نو تا زما دوينا خلاف اوکړو؟ دغيرالله عبادت کونکو کښې پاتې شوې هارون ﷺ اوئيل اې زما دمور ځويه زما ګيره مه نيسه په يا ابن ام دميم په کسرې او فتحې سره دې اود ام نه مقصد امّئ دې «ى» حذف کړې شوه يعنى منادى مرخم ده» او دام ذکر کول دحضرت موسى ﷺ زړه زيات مهربان کونکې دې. نه داچه حضرت هارون ﷺ د حضرت موسى ﷺ مور شريک «اخيافى» رور وو او «موسى ﷺ» په خپل ګس لاس سره ګيره نيولې وه او نه دسر ويښته نيسه او موسى ﷺ په غصه کښې په ښى لاس سره د دده دسر ويښته نيولى وو ما ته داانديښنه وه چه که زه په تا پسې راشم نو ضرورى خبره وه چه يو جماعت چه دغوا عبادت ئې نه دې کړې زما سره راتلو نو تا به وئيلې چه تا دبنى اسرائيلو په مينځ کښې تفرقه واچوله او ته به په ما غصه کيدلې او تا به زما دخبرې لحاظ نه کولو په دې معامله کښې چه څه تا اوکتل «يعنى ما داصلاح دپاره وئيلې وو او تا په قوم کښې تفرقه واچوله» «بيا موسى ﷺ اصل مجرم» ته متوجه شو او وې فرمائيل اې سامرى ستا څه معامله ده نو سامرى جواب ورکړو ما ته هغه څيز په نظر راغلو کوم چه نورو ته په نظر نه راتلو تبصروا په ياء او تاء سره دې يعنى کومه خبره چه زما په علم کښې راغله دنورو په علم کښې رانغله بيا ما ددې فرشتې «يعنى جبرائيل ﷺ داس» دخپو نه يوموټې دخاورې ډک کړو بيا ما هغه خاوره ددې جوړ شوى سخى په قالب کښې واچوله اوزما زړه ته داخبره خوښه شو او زما په زړه کښې داخبره واچولې شوه او ما ستا قوم اوليدو چه دوى ستانه مطالبه کړې وه چه ته دوى د پاره يو معبود جوړ کړې نو زما زړه زه پوهه کړم چه داسخى ددوى معبود کيدې شى موسى اوفرمائيل ته زمونږ دمينځ نه ځه په دنيوى ژوند کښې ستا سزا داده چه ته به ټول عمر هغه کس ته کوم چه تا وينى وائى چه ماته لاس مه راوړه يعنى ماته نزدې مه راځه پس هغه به په خنګلونو کښې ګرځيدو او کله به چه هغه چاته لاس وروړو يا به هغه ته چا لاس وروړو نو هغه به په تبه «بخار» کيدو ،او يو وعده ستادپاره دعذاب بله ده ته به هرګز بچ نه شې تخلفه دلام په کسرې سره يعنى ته به ددې نه بچ نه شې، او په فتحې دلام سره يعنى ته به دې عذاب ته ضرور رسولې شى او ته خپل دې معبود ته اوګوره چه دکوم په عبادت باندې ته کلک وې ظلت ددې اصل ظللت د دوؤ لامونو سره وو اول په دې کښې مکسورچه تخفيفا حذف کړې شو او معنى ئې دُمت ده يعنى ته ددې په عبادت کښې هميشه لګيدلې وې مونږ به دا په اور کښې اوسوزوو او بيا به

مونږ دا ریزه ریزه کړو او دریاب کښې به ئې والوزو یعنی دې به مونږ ددریاب په فضا کښې والوزوو او حضرت موسی ﷺ هغې لره د ذبح کولو نه پس هم داسې اوکړل بس ستا معبود (حقیقي) خو الله دې چه د هغه نه سوا هیڅ څوک معبود نشته، د هغه علم په هر شی حاوی دې علمًا تمیز دې د فاعل نه منقول شوې دې (او تقدیر د عبارت دادې) ای وَسِعَ علمه کل شئ یعنی لکه څنګه چه مونږ دا قصه تاته واوروله مونږ دارنګې تا ته د تیرشوو امتونو خبرونه اوروو او مونږ تاته دخپل طرف نه یو نصیحت نامه قرآن درکړې دې اوکوم کس چه ددې نه اعراض اوکړی په دې باندې ایمان رانوړی نو هغه به دقیامت په ورځ دګناهونو درون بوج اوچتوی اوهغه به دګناهونو په عذاب کښې همیشه اوسیږی او دا بوج به دهغه دپاره دقیامت په ورځ بد وی حملًا تمیز دې چه دساء دضمیر تفسیرکوی او مخصوص بالذم محذوف دې ددی تقدیر وزرهم دې او (لهم) کښې لام بیانیه دې او یوم ینفخ فی الصور د یوم القیامة نه بدل دې او دصور نه مراد) ښکر دې او دنفخ نه مراد نفخهٔ ثانیه ده اومونږ به په دې ورځ مجرمان کړان جمع کړو په داسې حال کښې چه شین سترګی به وی یعنی د دوی مخونه توریدو سره به ددوی سترګې هم (شنې) وی په خپلو کښې به خفیه پټې پټې خبرې کوی چه تاسو په دنیا کښې صرف لس شپې ورځې تیرې کړی دی مونږ ښه پوهیږو دقیام هغه (مودې) لره دکوم قیام دمدت په باره کښې د لسو ورځو خبره کوی یعنی خبره داسې نه ده کومه چه دوی وائی کله چه په دوی کښې به دې معاملې کښې دټولو نه زیات دښې رائې والا دا اوائی چه تاسو صرف یو ورځ (په قبر کښې) پاتې شوی ئې داخلق به په دنیا کښې خپل دقیام وخت ډیر لږ اوګنړی کله چه په آخرت کښې ددې سختو مشاهده اوکړی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله: ولقد قال لهم هارون:** ولقد کښې لام قسمیه دې ای والله لقد نصح هارون ونبه علی حقیقة الامر من قبل رجوع موسی الیهم.

**قوله: انما فتنتم به:** یعنی تاسو دسخی په وجه په فتنه کښې مبتلا کړی شوئ انما کلمه دحصر نه چه کوم حصر مستفاد کیږی ددې مطلب دادې چه داسخې ستاسو دفتنې سبب جوړ شوې دې، نه چه دهدایت، دامطلب نه دې چه تاسو دسخی په وجه په فتنه کښې مبتلا شوئ یو نه په څه بله وجه.

**قوله: ربکم الرحمن:** دلته په خاص طور سره رحمن لفظ دې خبرې ته اشاره کولو دپاره راوړې شوې دې چه معلومه شی چه که په رښتیا زړه سره توبه اوکړې شی نو هغه توبه قبلوی ځکه چه هغه رحمن دې.

**قوله: ان لاتتبعن:** لا زائده دې لکه چه ان لا تسجد کښې لا زائده دې دتاکید دپاره دې

ان لا تتبعن، د منع مفعول ثاني كيدو په وجه محلا منصوب دي او په منع كښې كاف مفعول اول دي اذ رايتهم د منع ظرف دي اى أیّ شيٍ منعك حين رؤيتك لضلالهم من اتباعي.

قوله: افعصيت: كښې همزه د استفهام انكاري توبيخ دپاره ده او فاء عاطفه په مقدر باندې د عطف دپاره ده.

قوله: وكان اخذ شعرة اى شعر رأسه.

قوله: ولم ترقب: عطف په ان تقول باندې دې يعنى ددې ويرې نه چه ته به وائې چه ما په قوم كښې تفريق كړې دې او ددې ويرې نه چه ته به وائې چه تا زما دخبرې لحاظ او نه كړو.

قوله: بالياء: اى لم يبصروا اى بنو اسرائيل وبالتاء اى انت وقومك.

قوله: المصاغ الاصح المصوغ كما في بعض النسخ.

قوله: فقبضت قبضا: معنى موټې ډكول، او په څنو نسخوكښې دى فقبصت قبصا په صاد مهمله سره دې يعنى په ګوتو سره اخستل.

قوله: من اثر رسول: اى من محل اثر حافر فرس الرسول يعنى دحضرت جبرائيل عليه السلام اس دقدم دځاى نه.

قوله: والقى فيها: ددې عطف په سولت لى نفسى باندې عطف تفسيرى دې يعنى زما نفس ماته داخبره اوښودله او زما په زړه كښې دا خبره واچولې شوه چه زه ددې خاورې نه يو موټې په دې كښې واچوم نوپه دې كښې به ساه واچولې شى.

قوله: لامساس: دا دباب مفاعله مصدرمنصوب دې يعنى نه به ته چاته لاس وروړې اونه به تاته څوك لاس دروړى.

قوله: وان لك موعدا: موعدا مصدر دې او په معنى د وعدا دې.

قوله: لننسفنه: جمع متكلم مضارع بانون تاكيد ثقيله مونږ به داپه هوا كښې ضرور الوزوو(ض).

قوله: انما الهكم الله: الخ دا جمله مستانفه ده او د موسى عليه السلام دقصې اختتام دې.

قوله: كذالك نقص عليك: الخ داهم جمله مستانفه ده دادحضور ﷺ د تسلى او ډيرو معجزاتو دپاره دې كذالك نقص دا د مصدر محذوف صفت دې اى نقص قصصا كذالك.

قوله: من اعرض عنه: ددې تفسير ئې په فلم يؤمن به سره كولو كښې اشاره اوكړه چه دلته داعراض نه مراد انكار دې.

قوله: فيه: اى في عذاب الوزر په دې كښې حذف د مضاف ته اشاره ده.

**قوله: خالدين**: ديحمل دضميرنه حال دي کوم چه دمن په طرف راګرځي په يحمل کښې د لفظ او خالدين کښې د من دمعنى درعايت د وجې نه دجمع صيغه راورل شوې ده.

**قوله. زرقا**: دا د المجرمين نه حال دې دازرق جمع ده صفت مشبه ده د دې معنى ده ګرد چشم: چه شين سترګي ورته وائي، يتخافتون د زرقا دضمير نه حال دې.

**قوله: اعدلهم**: اعدل دټولو نه زيات صحيح رائې لرلو والا، دا صحيح رائ اقرب الى الصواب په اعتبار سره نه دى وئيلي، بلکه اقرب الى الهول په اعتبار سره اعدل وئيلي دى يعنى دده په قول کښې دهغې ورځې د سختو زيات اظهار دې.

**[اياتونه:۱۰۵-۱۱۵]**

﴿وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْجِبَالِ﴾ كَيْفَ تَكُون يَوْم الْقِيَامَة ﴿فَقُلْ﴾ لَهُمْ ﴿يَنْسِفُهَا رَبِّي نَسْفًا﴾ بِأَنْ يُفَتِّتهَا كَالرَّمْلِ السَّائِل ثُمَّ يُطَيِّرهَا بِالرِّيَاحِ ﴿فَيَذَرُهَا قَاعًا﴾ مُنْبَسِطًا ﴿صَفْصَفًا﴾ مُسْتَوِيًا ﴿لَا تَرَى فِيهَا عِوَجًا﴾ انْخِفَاضًا ﴿وَلَا أَمْتًا﴾ ارْتِفَاعًا ﴿يَوْمَئِذٍ﴾ أَيْ يَوْم إِذْ نُسِفَتْ الْجِبَال ﴿يَتَّبِعُونَ﴾ أَيْ النَّاس بَعْد الْقِيَام مِنْ الْقُبُور ﴿الدَّاعِيَ﴾ إِلَى الْمَحْشَر بِصَوْتِهِ وَهُوَ إِسْرَافِيل يَقُول هَلُمُّوا إِلَى عَرْض الرَّحْمَن ﴿لَا عِوَجَ لَهُ﴾ أَيْ لِاتِّبَاعِهِمْ أَيْ لَا يَقْدِرُونَ أَنْ لَا يَتَّبِعُوا ﴿وَخَشَعَتْ﴾ سَكَنَتْ ﴿الْأَصْوَاتُ لِلرَّحْمَنِ فَلَا تَسْمَعُ إِلَّا هَمْسًا﴾ صَوْت وَطْء الْأَقْدَام فِي نَقْلهَا إِلَى الْمَحْشَر كَصَوْتِ أَخْفَاف الْإِبِل فِي مَشْيهَا ﴿يَوْمَئِذٍ لَا تَنْفَعُ الشَّفَاعَةُ﴾ أَحَدًا ﴿إِلَّا مَنْ أَذِنَ لَهُ الرَّحْمَنُ﴾ أَنْ يَشْفَع لَهُ ﴿وَرَضِيَ لَهُ قَوْلًا﴾ بِأَنْ يَقُول لَا إِلَه إِلَّا اللَّه ﴿يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ﴾ مِنْ أُمُور الْآخِرَة ﴿وَمَا خَلْفَهُمْ﴾ مِنْ أُمُور الدُّنْيَا ﴿وَلَا يُحِيطُونَ بِهِ عِلْمًا﴾ لَا يَعْلَمُونَ ذَلِكَ ﴿وَعَنَتِ الْوُجُوهُ﴾ خَضَعَتْ ﴿لِلْحَيِّ الْقَيُّومِ﴾ أَيْ اللَّه ﴿وَقَدْ خَابَ﴾ خَسِرَ ﴿مَنْ حَمَلَ ظُلْمًا﴾ أَيْ شِرْكًا ﴿وَمَنْ يَعْمَلْ مِنَ الصَّالِحَاتِ﴾ الطَّاعَات ﴿وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَا يَخَافُ ظُلْمًا﴾ بِزِيَادَةٍ فِي سَيِّئَاته ﴿وَلَا هَضْمًا﴾ بِنَقْصٍ مِنْ حَسَنَاته ﴿وَكَذَلِكَ﴾ مَعْطُوف عَلَى كَذَلِكَ نَقُصّ أَيْ مِثْل إِنْزَال مَا ذُكِرَ ﴿أَنْزَلْنَاهُ﴾ أَيْ الْقُرْآن ﴿قُرْآنًا عَرَبِيًّا وَصَرَّفْنَا﴾ كَرَّرْنَا ﴿فِيهِ مِنَ الْوَعِيدِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ﴾ الشِّرْك ﴿أَوْ يُحْدِثُ﴾ الْقُرْآن ﴿لَهُمْ ذِكْرًا﴾ بِهَلَاكِ مَنْ تَقَدَّمَهُمْ مِنَ الْأُمَم فَيَعْتَبِرُونَ ﴿فَتَعَالَى اللَّهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ﴾ عَمَّا يَقُول الْمُشْرِكُونَ ﴿وَلَا تَعْجَلْ بِالْقُرْآنِ﴾ أَيْ بِقِرَاءَتِهِ ﴿مِنْ قَبْلِ أَنْ يُقْضَى إِلَيْكَ وَحْيُهُ﴾ أَيْ يَفْرُغ جِبْرِيل مِنْ إِبْلَاغه ﴿وَقُلْ رَبِّ زِدْنِي عِلْمًا﴾ أَيْ بِالْقُرْآنِ فَكُلَّمَا أُنْزِلَ عَلَيْهِ شَيْء مِنْهُ زَادَ بِهِ عِلْمه ﴿وَلَقَدْ عَهِدْنَا إِلَى آدَمَ﴾ وَصَّيْنَاهُ أَنْ لَا يَأْكُل مِنَ الشَّجَرَة ﴿مِنْ قَبْلُ﴾ أَيْ قَبْل أَكْله مِنْهَا ﴿فَنَسِيَ﴾ تَرَكَ عَهْدنَا ﴿وَلَمْ نَجِدْ لَهُ عَزْمًا﴾ حَزْمًا وَصَبْرًا عَمَّا نَهَيْنَاهُ عَنْهُ

**ترجمه**: او خپني خلق ستا دغرونو متعلق تپوس کوي چه دقيامت په ورځ به ددې څه حال وي؟ ته اوفرمايا زما رب به دا ريزه ريزه کړي (او) په هوا کښې به ئې خواره کړي په دې طريقه چه (اول) به دا دريګ په شان ريزه ريزه کړي بيابه ئې دهوا په ذريعه والوزوي، بيا به زمکه هوار ميدان پريږدي اې مخاطبه ته به په دې کښې اوچتوالی او ټيټوالې نه وينې په دغه ورځ به يعنى په کومه ورځ چه غرونه ريزه ريزه کړې شي نو خلق به د قبرونو نه دراوتلو نه پس دمحشر په

طرف د رابلونکي په آواز پسي شي او هغه (داعي) اسرافیل ﷺ دي، وائي به درحمن په مخکښې پیش کیدو دپاره راشئ په دې کښې به هیڅ کوږ والي نه وي یعنی د دوی په په اتباع کښې، مطلب دا چه د چا به د اتباع نه کولو قدرت نه وي او ټول آوازونه به درحمن په مخکښې ټیټ شي نو ته دخپو دآواز نه سوا به بل څه نه شي اوریدلې یعنی) دمحشر په طرف دتلو دکشار نه علاوه لکه څنګه دتلو په وخت داوښانو دخپو آواز وي په دې ورځ چاته سفارش فائده ورنه کړي، سوا دهغه کس چه چاد پاره (د سفارش) رحمن اجازت ورکړي وي او دده خبره ئې خوښه کړې وي په داسې شان چه هغه لااله الله اووائي هغه پیژنې د راتلونکي آخرت ټول امور او ددنیا تیر شوي ټول امور او ددې د معلوماتو د دوی علم احاطه نشي کولې یعنی دذات خداوندي هیڅ څوک علمي احاطه نشي کولې او (په دې ورځ الحي القیوم یعنی د الله پاک په مخکښې ټول مخونه ټیټ شي، او داسې کس خو به (په هر شان) ناکام وي چه ظلم شرک ئې راوړې وي او چا چه نیک اعمال کړي وي او هغه مؤمن هم وي نو هغه ته به دظلم هیڅ اندیښنه نه وي په دې شان چه دده په ګناهونو کښې زیاتوالې اوکړې شي او نه دنقصان په دې شان چه دده په نیکو کښې کمې اوکړې شي او دغه شان ددې عطف په کذالک نقص علیک باندې دې، یعنی په ماسبق کښې مذکور نازلولو په شان مونږ دغه قرآن د عربي قرآن نازل کړو او په دې کښې مونږ قسما قسم وعیدونه بیان کړل دې دپاره چه دوی دشرک نه اوبریږي یا دا قرآن ددوی دپاره د تیر شوو قومونو دهلاکت نه دنصیحت (سامان) پیدا کړي چه دهغې نه دا خلق عبرت حاصل کړي بس الله پاک چه بادشاه حقیقي دې د هغه خبرو نه پاک دې کومې چه دا مشرکان کوي او ته قرآن وئیلو کښې ددې په تا باندې د مکمل کیدو نه مخکښې جلتي مه کوه یعنی دجبرائیل ﷺ دنازلیدو دفراغت نه مخکښې اودا دعا کوه چه اې زما پروردګار زما په علم کښې اضافه اوکړه یعنی دقرآن په ذریعه چنانچه کله به هم چه په نبی علیه السلام باندې دقرآن څه حصه نازلیده نو په دې سره به ئې په علم کښې اضافه کیدله اومونږ اول یعنی دخوراک نه مخکښې آدم ته تاکیدي حکم ورکړې وو چه ددې اونې نه مه خوره نوآدم هیر کړل او زمونږ د عهد نه غفلت راغې اومونږ دې دپخې ارادې والا اونه موندو یعنی دکوم څیز نه چه مونږ منع کړې وو (په هغې کښې مو) کلک اوصابر اونه موندو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** لَمۡتًا : مصدر (ض) خواره واره کول او الوزول صفصفا کهلاو میدان، هواره زمکه (اسم) أَمۡتًا غونډئ، اوچتوالي ټیټوالي.

**قوله:** وَيَسۡـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلۡجِبَالِ : ای حال الجبال مضاف ئې محذوف دې، مفسر علام دکیف تکون دحذف مضاف په طرف اشاره کړې ده څکه چه سوال دشئ نه نه بلکه ددې داحوالونه کیږي. څنو حضراتو په طور داستهزاء دحضور ﷺ نه دقیامت په ورځ دغرونو

په باره کښې سوال کړې وو لکه چه ابن منذر او ابن جریج وئیلي دی چه څنو قریشو دحضور ﷺ نه تپوس اوکړو چه دقیامت په ورځ به ددې غرونو څه حال وی؟ نوددې په جواب کښې ذکر شوې آیت نازل شو.

**قوله:** فقل :کښې فا دشرط مقدر په جواب کښې ده ای ان سألوك فقل په دې صورت کښې به د سائل دسوال جواب نه وی .

**قوله:** فیذرها: ددې په ضمیر کښې دوه احتمالات دی ①دا چه دجبال په طرف راجع وی په دې صورت کښې به مضاف محذوف وی ای یذر مراکز الجبال ②داچه ها ضمیر دارض په طرف راجع وی کوم چه صراحتا په ماقبل کښې مذکورنه دې خو ددلالت حال دوجې نه مقدر منل شوې دې، لکه چه دالله پاک په قول ما ترک علی ظهرها من دابة، قاعا د یذرها دمفعول ثانی کیدو دوجې نه منصوب دې او یذر دتصیر معنی ته متضمن کیدو دوجې نه متعدی په دوؤ مفعولو وی ها ضمیر مفعول اول دې، قاعا دحال کیدو په وجه هم منصوب کیدې شی په دې صورت کښې به صفصفا دقاعا صفت اول شی او لاتری فیها عوجا به دقاعا صفت ثانی کیدو دوجې نه محلا منصوب دې.

**قوله:** الداعي: دځنې روایاتو نه معلومیږی چه د داعی نه مراد حضرت اسرافیل ﷺ دی څنګه چه دمفسر علام رائ ده، او دځنو نه معلومیږی چه داعی به حضرت جبرئیل ﷺ وی داقول راجح دې البته نافخ به حضرت اسرافیل ﷺ وی .

**قوله:** لاعوج له: دله ضمیر کښې درې احتمالات دی ①مرجع اتباع مصدر محذوف دې کوم چه دیتبعون نه مفهوم دې ②ضمیر دداعی په طرف راجع دې یعنی دداعی په دعوت کښې به هیڅ کمی نه وی بلکه ټول مخلوق به ئې په آسانې سره اوری. ③ په کلام کښې قلب دې او تقدیر دعبارت دادې لاعوج لهم عنه.

**قوله:** همسا : همس ټیټ آواز .

**قوله:** الا من اذن له الرحمن ، په دې کښې درې صورتونه دې ①من منصوب دې دتنفع دمفعول به کیدو دوجې نه ②په محل درفع کښې دې او دشفاعة نه بدل دې په دې صورت کښې به حذف دمضاف ضروری وی، تقدیر دعبارت به داشی لا تنفع الشفاعة الا شفاعة من اذن له الرحمن ③د شفاعة نه استثناء په وجه منصوب وی په دې صورت کښې مستثنی متصل او منقطع دواړه کیدې شی .

**قوله:** لایعلمون :مفسر علام په دې کلمې سره اشاره کړې ده چه علما مفعول مطلق دې او یحیطون دیعلمون په معنی دې ای لایعلمون علما او که یحیطون په خپله معنی وی نو علمًا

د نسبت نه تميز هم كيدې شي.

قوله: وعنت: (ن) عَنْوًا ذليل كيدل، تيټيدل.

قوله: وقد خاب: حال هم كيدې شي او جمله مستانفه هم.

قوله: هضمًا: (ض) هَضْمًا ماتول، كمول.

قوله: كذلك انزلناه: كاف د مصدرِ محذوف صفت دې اى انزلناه انزالا مثل ذلك.

قوله: عزمًا: اى حزما پخه اراده عزمًا د نجد په معنى د نعلم مفعول دې.

قوله: له: يا خو د عزمًا نه حال دې يا د نجد سره متعلق دې، او ځنې حضراتو وئيلى دى چه د آيت معنى لم نجد له قصدا ده، يعنى قصداً ئې اونه خوړه بلكه په هيره ئې اوخوړه.

[ايا تونه: ۱۱٦ - ۱۲۸]

(وَ) اذْكُرْ (إِذْ قُلْنَا لِلْمَلَائِكَةِ اسْجُدُوا لِآدَمَ فَسَجَدُوا إِلَّا إِبْلِيسَ) وَهُوَ أَبُو الْجِنِّ كَانَ يَصْحَبُ الْمَلَائِكَةَ وَيَعْبُدُ اللهَ مَعَهُمْ (أَبَى) عَنِ السُّجُودِ لِآدَمَ (قَالَ أَنَا خَيْرٌ مِنْهُ) (فَقُلْنَا يَا آدَمُ إِنَّ هَذَا عَدُوٌّ لَكَ وَلِزَوْجِكَ) حَوَّاءُ بِالْمَدِّ (فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ الْجَنَّةِ فَتَشْقَى) تَتْعَبُ بِالْحَرْثِ وَالزَّرْعِ وَالْحَصْدِ وَالطَّحْنِ وَالْخَبْزِ وَغَيْرِ ذَلِكَ وَاقْتَصَرَ عَلَى شَقَائِهِ لِأَنَّ الرَّجُلَ يَسْعَى عَلَى زَوْجَتِهِ (إِنَّ لَكَ أَ) نْ (لَا تَجُوعَ فِيهَا وَلَا تَعْرَى) (وَأَنَّكَ) بِفَتْحِ الْهَمْزَةِ وَكَسْرِهَا عَطْفٌ عَلَى اسْمِ إِنَّ وَجُمْلَتِهَا (لَا تَظْمَأُ فِيهَا) تَعْطَشُ (وَلَا تَضْحَى) لَا يَحْصُلُ لَكَ حَرُّ شَمْسِ الضُّحَى لِانْتِفَاءِ الشَّمْسِ فِي الْجَنَّةِ (فَوَسْوَسَ إِلَيْهِ الشَّيْطَانُ قَالَ يَا آدَمُ هَلْ أَدُلُّكَ عَلَى شَجَرَةِ الْخُلْدِ) أَيِ الَّتِي يَخْلُدُ مَنْ يَأْكُلُ مِنْهَا (وَمُلْكٍ لَا يَبْلَى) لَا يَفْنَى وَهُوَ لَازِمُ الْخُلْدِ (فَأَكَلَا) أَيْ آدَمُ وَحَوَّاءُ (مِنْهَا فَبَدَتْ لَهُمَا سَوْآتُهُمَا) أَيْ ظَهَرَ لِكُلٍّ مِنْهُمَا قُبُلُهُ وَقُبُلُ الْآخَرِ وَدُبُرُهُ وَسُمِّيَ كُلٌّ مِنْهُمَا سَوْأَةً لِأَنَّ انْكِشَافَهُ يَسُوءُ صَاحِبَهُ (وَطَفِقَا يَخْصِفَانِ) أَخَذَا يَلْزَقَانِ (عَلَيْهِمَا مِنْ وَرَقِ الْجَنَّةِ) لِيَسْتَتِرَا بِهِ (وَعَصَى آدَمُ رَبَّهُ فَغَوَى) بِالْأَكْلِ مِنَ الشَّجَرَةِ (ثُمَّ اجْتَبَاهُ رَبُّهُ) قَرَّبَهُ (فَتَابَ عَلَيْهِ) قَبِلَ تَوْبَتَهُ (وَهَدَى) أَيْ هَدَاهُ إِلَى الْمُدَاوَمَةِ عَلَى التَّوْبَةِ (قَالَ اهْبِطَا) أَيْ آدَمُ وَحَوَّاءُ بِمَا اشْتَمَلْتُمَا عَلَيْهِ مِنْ ذُرِّيَّتِكُمَا (مِنْهَا) مِنَ الْجَنَّةِ (جَمِيعًا بَعْضُكُمْ) بَعْضُ الذُّرِّيَّةِ (لِبَعْضٍ عَدُوٌّ) مِنْ ظُلْمِ بَعْضِهِمْ بَعْضًا (فَإِمَّا) فِيهِ إِدْغَامُ نُونِ إِنِ الشَّرْطِيَّةِ فِي مَا الْمَزِيدَةِ (يَأْتِيَنَّكُمْ مِنِّي هُدًى فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ) الْقُرْآنَ (فَلَا يَضِلُّ) فِي الدُّنْيَا (وَلَا يَشْقَى) فِي الْآخِرَةِ (وَمَنْ أَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِي) الْقُرْآنِ فَلَمْ يُؤْمِنْ بِهِ (فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنْكًا) بِالتَّنْوِينِ مَصْدَرٌ بِمَعْنَى ضَيِّقَةً وَفُسِّرَتْ فِي حَدِيثٍ بِعَذَابِ الْكَافِرِ فِي قَبْرِهِ (وَنَحْشُرُهُ) أَيِ الْمُعْرِضَ عَنِ الْقُرْآنِ (يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْمَى) أَعْمَى الْبَصَرِ (قَالَ رَبِّ لِمَ حَشَرْتَنِي أَعْمَى وَقَدْ كُنْتُ بَصِيرًا) فِي الدُّنْيَا وَعِنْدَ الْبَعْثِ (قَالَ) الْأَمْرُ (كَذَلِكَ أَتَتْكَ آيَاتُنَا فَنَسِيتَهَا) تَرَكْتَهَا وَلَمْ تُؤْمِنْ بِهَا (وَكَذَلِكَ) مِثْلَ نِسْيَانِكَ آيَاتِنَا (الْيَوْمَ تُنْسَى) تُتْرَكُ فِي النَّارِ (وَكَذَلِكَ) وَمِثْلَ جَزَائِنَا مَنْ أَعْرَضَ عَنِ الْقُرْآنِ (نَجْزِي مَنْ أَسْرَفَ) أَشْرَكَ (وَلَمْ يُؤْمِنْ بِآيَاتِ رَبِّهِ وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ أَشَدُّ) مِنْ عَذَابِ الدُّنْيَا وَعَذَابِ الْقَبْرِ (وَأَبْقَى) أَدْوَمُ (أَفَلَمْ يَهْدِ) يَتَبَيَّنْ (لَهُمْ) لِكُفَّارِ مَكَّةَ (كَمْ) خَبَرِيَّةٌ مَفْعُولٌ (أَهْلَكْنَا) أَيْ كَثِيرًا إِهْلَاكُنَا (قَبْلَهُمْ مِنَ الْقُرُونِ)

اىِ الْأُمَمِ الْمَاضِيَةِ بِتَكْذِيبِ الرُّسُلِ (يَمْشُونَ) حَالٌ مِنْ ضَمِيرِ لَهُمْ (فِي مَسَاكِنِهِمْ) فِي سَفَرِهِمْ إِلَى الشَّامِ وَغَيْرِهَا فَيَعْتَبِرُوا وَمَا ذُكِرَ مِنْ أَخْذِ إِهْلَاكٍ مِنْ فِعْلِهِ الْخَالِي عَنْ حَرْفٍ مَصْدَرِيٍّ لِرِعَايَةِ الْمَعْنَى لَا مَانِعَ مِنْهُ (إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ) لَعِبَرًا (لِأُولِي النُّهَىٰ) لِذَوِي الْعُقُولِ

ترجمه: او هغه وخت ياد كړه كله چه مونږ فرشتو ته حكم وركړو چه آدم ته سجده اوكړئ فرشتو سجده اوكړه مگر ابليس هغه د پيريانو پلار وو د فرشتو سره به اوسيدو او دهغوئ سره به ئى دالله پاک عبادت كولو آدم ته دسجدې كولو نه ئى انكار اوكړو او وې وئيل زه دده نه افضل يم بيا مونږ آدم ته اوئيل بيشكه دا ستاو ستا دبى بى دښمن دې حوا په مد سره چرته داسې نه وى چه تاسو دجنت نه اوباسى بيا ته په مصيبت كښې يعنى ايوه كولو، كرلو او ريبلو او ميده كولو اوپخولو وغيره په مشقت كښې اوغورزيږى (دلته) ئې دآدم د مصيبت په بيان باندې اكتفاء كړې ده (بى بى ئې شريكه نه كړه) ځكه چه دښځې دپاره دژوند دكسب ذمه دارى په خاوند باندې وى دلته ستا دپاره دا آرام دې چه دلته ئې ته نه اوږې كيږې او نه به بربنډيږى او نه به دلته تږې كيږې، انک دهمزې په فتحې سره او ددې په كسرې سره دان په اسم اوددې په جمله باندې عطف كولو سره اونه به دې گرمى كيږى يعنى نه په غرمه كښې گرمى لگى ځكه چه په جنت كښې نمر نشته بيا شيطان آدم ته دهوكه كړو او وې وئيل اې آدم ! زه تا ته دهميشه اونه اونه ښايم يعنى داسې اونه چه څوک دا اوخورى نو هغه به هميشه په جنت كښې اوسيږى اوداسى بادشاهى چه كله په هغې كښې كمزورى نه راځى يعنى نه فنا كيږى اوداخلود لازم (معنى) ده پس آدم اوحواء ددې اونې نه څه اوخوړل نو ددې دواړو ستر ديو بل په مخكښې ښكاره شو يعنى دواړو كښې د هر يو مخكښې او روستو بدن ديو بل په مخكښې ظاهر شو، شرم گاه نه ئى په سوأة سره تعبير اوكړو ځكه چه دشرم گاه كهلاويدل صاحب دشرم گاه دپاره (تكليف وركونكې او) بده خبره وى او دواړو په خپل ځان دپاسه دجنت د اونو پاڼړى لگول شروع كړل دې دپاره چه دواړه ددې په ذريعه خپل ستر پټ كړى او آدم نه دخپل رب خطا اوشوه داونې نه په لږ څه خوړلو سره دهوكه شو بيا دده رب دې غوره كړو يعنى مقرب ئى جوړ كړو نو دده په طرف متوجه شو يعنى دده توبه ئى قبوله كړه او هدايت ئى اوفرمائيلو يعنى په توبه باندې ئې هميشه قائم اوساتلو (الله پاک) ارشاد اوفرمائيلو تاسو دواړه يعنى آدم او حواء ستاسو دهغه اولاد سره چه په كوم تاسو مشتمل يئى دجنت نه اوځئ ستاسو اولاد ځنې به دځنو دښمنان وى دځنې په ځنو دظلم كولو دوجې نه، فاما په دې كښې دان شرطيه نون په مازائده كښې ادغام كړې شوې دې بيا كه زما دطرف نه تاسو ته هدايت راشى نو كوم كس چه زما دې هدايت يعنى دقرآن اتباع اوكړه نو هغه به نه په دنيا كښې گمراه شى اونه به په آخرت كښې بدبخته شى او كوم كس چه زما ددې نصيحت

نه اعراض اوکړو یعنی دقرآن نه چه په دې باندې ایمان نه راوړی نودهغه ژوند به په تنګۍ کښې وی ضنکاًپه تنوین سره دضیقة په معنی کښې مصدر دې ددې تفسیر په حدیث شریف کښې په عذاب قبر سره کړې شوې دې اودقیامت په ورځ به مونږ دا دقرآن نه انکار کونکی ړوند اوچت کړو یعنی دسترګو یا دزړه ړوند نو هغه به وائی اې زما ربه تا زه ړوند ولې پاڅولم؟ زه خو دسترګو والا ووم په دنیا کښې هم اودبعث په وخت هم ارشاد به اوشی معامله هم داسې وه زمونږ آیاتونه تاته رسیدلی وو خو تا هغه هیر کړل پریدې خودل او په دې باندې دې ایمان رانه وړو اودارنګې یعنی چه څنګه تا زمونږ آیاتونه هیر کړل نن به ته هیرولې شې یعنی په جهنم کښې به پریښودلې شې اودارنګې یعنی ددې کس دسزا په شان کوم چه دقرآن نه اعراض اوکړو مونږ به (هر) هغه کس ته سزا ورکړو چا چه (دحد) نه تجاوز اوکړو شرک ئې اوکړو او چا چه دخپل رب په آیتونو ایمان رانه وړو او واقعی دآخرت عذاب ددنیا او عذاب قبر نه ډیر سخت او ډیر باقی پاتې کیدونکې دې دائمی دې آیا دې مکې کافرانو ته په دې سره هم هدایت نه کېږی چه مونږ ددوی نه مخکښې ډیر تیرشوی امتونه درسولانو د تکذیب په وجه هلاک کړل کم خبری دی، داهلکنامفعول دې یعنی زمونږ هلاک کول ډیر واقع شوی دی حال دادې چه ددوی داوسیدو ځایونو کښې دا خلق هم دشام وغیره د سفر په دوران کښې ځی راځی چه ددې نه عبرت واخلی داهلکنا مذکور نه بغیر دیو حرف مصدری نه داهلاک مصدر مراد اخستل دمعنی د رعایت په وجه ممنوع نه دی په دې (امر مذکور) کښې د عقلمندو دپاره دعبرت ډیر دلائل دی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: واذقلناللملئکة اسجدوا : دا قصه دقرآن کریم په اوو (۷) سورتونو کښې ذکر شوې ده، ددې قصې عطف په ماقبل باندې د عطفِ سبب علی المسبب دقبیلې نه دې ځکه چه دا قصه د عداوت ابلیس سبب شوې وو.

قوله: الاابلیس: دمفسر علام داعادت دې چه چرته مشتثنی منقطع وی هلته دالا تفسیر په لکن سره کوی خو دلته د دواړو احتمال وو ځکه ئې دالا تفسیر په لکن سره اونه کړو او د کان یصحب الملائکة اضافې سره ئې اشاره اوکړه چه دامستثنی متصل هم کیدې شی نو اوس دامطلب شو چه حاضرینو سجده اوکړه خو په حاضرینو کښې ابلیس اونکړه او وهو ابو الجن وثیلو سره دې خبرې ته اشاره اوکړه چه دامستثنی منقطع ده ځکه چه جن په ملائکو کښې داخل نه دې.

قوله: ابی: عن السجود دا دماسبق دتاکید دپاره دې ځکه چه دابلیس انکار داستثنا ء نه په پوهه کښې راځی او داهم کیدې شی چه دا جمله داستثناء علت وی یعنی دسجدې نه

کولو وجه د ابلیس استکبار اواستنکاف وو په دې صورت کښې به دابی مفعول محذوف منل جائز نه وی گنی تعلیل الشئ بنفسه لازمیږی بلکه په دې صورت کښې به ابی فعل لازم وی او معنی به اظهر الاباء عن المطاوعة وی.

**قوله: فقلنا**: ددې جملې عطف په جمله مقدره دې ای ادخلنا آدم الجنة فقلنا له یاآدم.

**قوله: حوّاء**: داداحوی صیغه صفت مؤنث ده شینوالی یا سوروالی ته مائل.

**قوله: فتشقی**: داجواب دنهی دې (س) شقاوة مصدر دې چه معنی ئې بدبختې ده دا دمضارع واحد مذکر حاضر صیغه ده شقاوت دسعادت ضد دې څنګه چه د سعادت دوه قسمونه دی دنیوی اوآخروی دارنګې دشقاوت هم دوه قسمونه دی شقاوت دنیوی او آخروی، بیا ددنیوی څو قسمونه دی ددې نه دلته په مشقت اوتعب کښې پریوتل مراد دی لکه وئیلې شی شقیت فی کذا ماته په دې کښې ډیر مشقت پورته کړو.

**قوله: اقتصر علی شقاه**: دادیوسوال جواب دې، سوال دادې چه اوني ته دنزدې ورتلونه ئې دواړه منع کړل فلا تقربا هذه الشجرة نو دشقاوت او محنت دواړو تعلق هم د دواړو سره کیدل پکار دی حالانکه فتشقی کښې ئې دشقاوت نسبت آدم ته کړې دې؟ یو جواب خو دادې چه دنان نفقه ذمه داری په خاوند باندې وی نه په بی بی باندې، محنت مشقت سره ګټل اوراوړل دخاوند ذمه داری وی نه د بی بی ددې وجې نه ئې دشقاوت نسبت دآدم په طرف اوشو، دویم جواب دادې چه د فواصل درعایت دوجې ئې داسې کړی دی مراد دواړه دی خو تغلیباً ئې ښځه دسړی تابع کړې ده. (روح البیان)

**قوله: ضنکا**: تنګ (ک) ضنکاً تنګیدل ضنگاً دمعیشة صفت دې مبالغةً مصدر صفت راوړلې شوې دې.

**سوال**: په موصوف صفت کښې مطابقت نشته دې ؟

**جواب**: ضنکاً چونکه مصدر دې او په مصدر کښې تذکیر اوتانیث برابر وی نو دضنکة وئیلو ضرورت نشته دې.

**قوله: عن القرآن**: مفسر علام دعن القرآن په ځائ عن الهدایة فرمائیلې وې نو ډیر به مناسب وې.

**قوله: ونحشره**: جمله مستانفه ده او که درا په سکون سره وی نو د جواب شرط قائم مقام کیدو په وجه به مجزوم وی دتوالئ حرکات دوجې نه هم را مجزوم کیدې شی اعمیٰ حال دې دنحشره دضمیر نه.

**قوله: افلم یهد لهم**: همزه په محذوف باندې داخل ده فا عاطفه ده چه دهغې په ذریعه په محذوف باندې عطف شوې دې تقدیر دعبارت دارنګې دې اعموا افلم یهد لهم علامه محلی

دیهد تفسیر په بشپړ سره کولو کښې اشاره کړې ده چه یهد فعل لازم دې او معنی داده اعوالملم یظهرلهم اهلاکنا کثیرامن قبلهم من القرون او داهلکنا مفعول به کم مقدم دې او ددې کم تمیز محذوف دې او من القرون دتمیز صفت کیدو په وجه په محل د نصب کښې دې ای کم اهلکنا کاتنا من القرون.

**قوله:** یمشون: علامه محلی یمشون دقبلهم دضمیر نه حال گرځولې دې او ځنو مفسرینو داهلکنا دهم ضمیر نه حال گرځولې دې، مطلب دادې چه مونږ دوی هلاک کړل، حال دادې چه هغوی په خپلو کورونو کښې گرځیدل راگرځیدل.

**قوله:** وما ذکر: مبتدأ ده او من الاخذ ددې بیان دې او لرعایة المعنی داخذ مذکور علت دې او لا مانع منه دمبتدأ خبر دې، مطلب دادې چه فعل مذکور (اهلکنا) نه بغیر دحرف مصدری نه دمعنی درعایت د وجې نه دمصدر داخذ کولو نه څه شئ مانع نشته.
داخبره دسوال او جواب په صورت کښې داسې هم وئیلې شي (سوال) اهلکنا نه اهلاک مصدر مراد اخستل څنگه صحیح دی، حالانکه چه په فعل باندې څه داسې حرف داخل نه دې چه داد مصدر په معنی کښې کړې شي؟ (جواب) دمعنی درعایت دپاره بغیر د حرف مصدری نه هم مصدر مراد اخستلې شي.

**قوله:** فی ذلک ای فی الاهلاک.

**قوله:** نهی جمع نهیة په معنی دعقل.

**[ایاتونه: ۱۲۹-۱۳۵]**

﴿وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ﴾ بِتَاخِيرِ الْعَذَابِ عَنْهُمْ إِلَى الْآخِرَةِ ﴿لَكَانَ﴾ الْإِهْلَاكُ ﴿لِزَامًا﴾ لَازِمًا لَهُمْ فِي الدُّنْيَا ﴿وَأَجَلٌ مُّسَمًّى﴾ مَضْرُوبٌ لَهُمْ مَعْطُوفٌ عَلَى الضَّمِيرِ الْمُسْتَتِرِ فِي كَانَ وَقَامَ الْفَصْلُ بِخَبَرِهَا مَكَانَ التَّاكِيدِ ﴿فَاصْبِرْ عَلَى مَا يَقُولُونَ﴾ مَنْسُوخٌ بِآيَةِ الْقِتَالِ ﴿وَسَبِّحْ﴾ صَلِّ ﴿بِحَمْدِ رَبِّكَ﴾ حَالٌ أَيْ مُلْتَبِسًا بِهِ ﴿قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ﴾ صَلَاةُ الصُّبْحِ ﴿وَقَبْلَ غُرُوبِهَا﴾ صَلَاةُ الْعَصْرِ ﴿وَمِنْ آنَاءِ اللَّيْلِ﴾ سَاعَاتِهِ ﴿فَسَبِّحْ﴾ صَلِّ الْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ ﴿وَأَطْرَافَ النَّهَارِ﴾ عَطْفٌ عَلَى مَحَلِّ مِنْ آنَاءِ الْمَنْصُوبِ أَيْ صَلِّ الظُّهْرَ لِأَنَّ وَقْتَهَا يَدْخُلُ بِزَوَالِ الشَّمْسِ فَهُوَ طَرَفُ النِّصْفِ الْأَوَّلِ وَطَرَفُ النِّصْفِ الثَّانِي ﴿لَعَلَّكَ تَرْضَى﴾ بِمَا تُعْطَى مِنَ الثَّوَابِ ﴿وَلَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ إِلَى مَا مَتَّعْنَا بِهِ أَزْوَاجًا﴾ اصْنَافًا ﴿مِنْهُمْ زَهْرَةَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾ زِينَتَهَا وَبَهْجَتَهَا ﴿لِنَفْتِنَهُمْ فِيهِ﴾ بِأَنْ يَطْغَوْا ﴿وَرِزْقُ رَبِّكَ﴾ فِي الْجَنَّةِ ﴿خَيْرٌ﴾ مِمَّا أُوتُوهُ فِي الدُّنْيَا ﴿وَأَبْقَى﴾ ادْوَمُ ﴿وَأْمُرْ أَهْلَكَ بِالصَّلَاةِ وَاصْطَبِرْ﴾ اصْبِرْ ﴿عَلَيْهَا لَا نَسْأَلُكَ﴾ نُكَلِّفُكَ ﴿رِزْقًا﴾ لِنَفْسِكَ وَلَا لِغَيْرِكَ ﴿نَحْنُ نَرْزُقُكَ وَالْعَاقِبَةُ﴾ الْجَنَّةُ ﴿لِلتَّقْوَى﴾ لِأَهْلِهَا ﴿وَقَالُوا﴾ الْمُشْرِكُونَ ﴿لَوْلَا﴾ هَلَّا ﴿يَأْتِينَا﴾ مُحَمَّدٌ ﴿بِآيَةٍ مِنْ رَبِّهِ﴾ مما يقترحونه ﴿أَوَلَمْ تَأْتِهِمْ﴾ بِالتَّاءِ وَالْيَاءِ ﴿بَيِّنَةُ﴾ بَيَانُ ﴿مَا فِي الصُّحُفِ الْأُولَى﴾ الْمُشْتَمِلِ عَلَيْهِ الْقُرْآنُ مِنْ أَنْبَاءِ الْأُمَمِ الْمَاضِيَةِ وَإِهْلَاكِهِمْ

بتكذيب الرسل (وَلَوْ أَنَّا أَهْلَكْنَاهُمْ بِعَذَابٍ مِنْ قَبْلِهِ) قبل محمد الرسول (لَقَالُوا) يوم القيامة (رَبَّنَا لَوْلَا) هلا أرسلت إلينا رسولا فنتبع آياتك) المرسل بها (مِنْ قَبْلِ أَنْ نَذِلَّ) في القيامة (وَنَخْزَى) في جهنم (قُلْ) لهم (كُلٌّ) منا ومنكم (مُتَرَبِّصٌ) منتظر ما يؤول إليه الأمر (فَتَرَبَّصُوا فَسَتَعْلَمُونَ) في القيامة (مَنْ أَصْحَابُ الصِّرَاطِ) الطريق (السَّوِيِّ) المستقيم (وَمَنِ اهْتَدَى) من الضلالة أنحن أم أنتم

ترجمه: او که ستا درب خبره (حکم ازلی) یعنی ددوی نه عذاب تر قیامت پورې دروستو کولو خبره داول نه فیصله شوې او وخت معین نه وې نو هلاکت به په دنیا کښې (په فوری طور باندې لازم شوې وې مسمی د مضروب له په معنی کښې دې (یعنی مقرر شوې) او د اجل مسمی عطف د کان په ضمیر مستتر باندې دې او دکان دخبر فصل دتاکید قائم مقام دې، پس ته په دې خبرو باندې صبراوکړه داحکم په آیت قتال سره منسوخ دې. او دخپل رب دحمد سره پاکی بیانوه او مونځ کوه یعنی داسې تسبیح کوه چه په حمد باندې مشتمله وی دنمر راختلونه مخکښې دسحر مونځ او دنمر پریوتلو نه مخکښې دمازدیګر مونځ اودشپې په وختونو کښې تسبیح بیانوه یعنی دماښام اوماسخوتن مونځونه کوه اود ورځې په اطرافو کښې او اطراف النهار عطف دمن آناء اليل په محل باندې دې چه منصوب دې یعنی دماسپخین مونځ کوه ددې وخت دزوال الشمس نه داخلیږی او هغه د (ورځې) تر نصف اول (آخری) او دنصف ثانی (ابتدائی) کناره ده دې دپاره چه ته درکړې شوی ثواب سره خوشحال شې او ته هر ګز دهغه څیزونو په طرف نظر مه اوچتوه او مه ګوره چئیه هغې سره مونږ د کافرانو مختلف ګروپونه ددوی دازمائش دپاره متمتع کړی دی په دې طور چه هغوی سرکشی اوکړی دا (صرف) د دنیوی ژوند خائست او رونق دی، او په جنت کښې ستا درب عطیه د هغه څه نه چه دوی ته په دنیاکښې ورکړې شوې ده په څو درجو بهتره او پائیداره ده او خپلو متعلقینو ته دمونځ حکم کوه او خپله هم ددې پابند اوسه او مونږ ستا نه دمعاش سوال نه کوؤ یعنی مونږ تا دخپل ځان او نورو دپاره دمعاش مکلف نه جوړو رزق خو مونږ تا ته درکوواو انجام یعنی جنت خو داهل تقوی دپاره دې او مشرکان وائی چه محمد مونږ ته دخپل رب دطرف نه هغه نخښه ولې نه راوړی دکومې چه هغوی مطالبه کوی اولم تاتهم په تاء او یاء سره آیا دوی ته مخکینو کتابونو بیان نه دې رسیدلې هغه (بیان) چه قرآن پاک په هغې باندې مشتمل دې او هغه بیان دتیر شوو امتونو خبرونه اود رسولانو دتکذیب دوجې نه د هغوی دهلاکولو خبرونه دی اوکه مونږ دوی دمحمد ﷺ دراتلو نه مخکښې د څه عذاب په ذریعه هلاک کړی وې نو دې خلقو به دقیامت په ورځ دا وئیل اې زمونږ ربه تا مونږ ته یو رسول ولې نه وو الیږلې ؟ چه مونږ دهغه په راوړل شوو ستا د احکاماتو تابعداری کړې وی مخکښې ددې نه چه مونږ په قیامت کښې په جهنم کښې ذلیل او رسوا کیدلو نو ته دوی ته اووایه چه مونږ اوتاسو ټول

منتظريو چه انجام به څه وی؟ او انتظار کوئ عنقريب دقيامت په ورځ به تاسو ته معلومه شی چه د نيغې لارې والا څوک دی؟ او څوک د ضلامت نه بچ شول او هدايت ته اورسيدل ؟ مونږ يا تاسو (يعنی هر يو د انجام منتظر دې نو تاسو هم په انتظار کښې اوسئ).

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله: ولولا كلمة سبقت:** الخ که د الله پاک په علم ازلی کښې د حضور ﷺ په اکرام کښې دوی د امت نه دعام عذاب روستو کول مقدر شوې نه وی نو دتيرشوو امتونو په شان به په دې امت باندې هم عام عذاب نازل شوې وې، نو داتاخير امهال دې نه اهمال، دې دپاره چه کافران په بقيه عمر کښې دتيرو کوتاهيانو تلافی اوکړې شی

**قوله: معطوف على الضمير المستتر في كان:** مطلب دادې چه و اجل مسمی عطف دکان په ضمير مستتر باندې دې،تقدير دعبارت دادې مکان الاهلاک والاجل المعين له لزاما او لزاما مصدر په معنی دلازما دې .

**سوال:** اهلاک او اجل مسمی دواړه دکان اسم دی لهذا ددې خبر هم تثنيه پکار دې لهذا دلزاما په ځائ لازمين پکار دې.

**جواب:** لزاما اگر چه دلازما په معنی کښې دې خو په اصل کښې مصدر دې نو ددې دتثنيه په معنی کښې استعمال صحيح دې.

**قوله: قام الفصل:** دا هم ديو سوال مقدر جواب دې، سوال دادې چه کله ضمير مرفوع متصل باندې عطف کيږی نو دضمير مرفوع تاکيد د ضمير مرفوع منفصل په ذريعه ضروری وی،دلته دکان په ضمير مستتر اهلاک باندې داجل مسمی عطف کيږی حالانکه دلته دضمير مستتر تاکيد د ضمير مرفوع منفصل په ذريعه نه دې شوې؟، دجواب خلاصه داده چه دعطف دجواز يو صورت بل هم دې اوهغه دادې چه دضمير منفصل نه علاوه که دبل څيز فصل واقع شی بيا هم عطف صحيح کيږی، دلته دکان د خبر (لزاما) د فصل راتلو دوجې نه عطف صحيح شوې دې.

**قوله: اجل مسمى:** داجل دمرفوع کيدو دوه وجې کيدې شی يو خو داچه د اجل عطف دکان په ضمير مستتر وی، مفسر علام دا اختيار کړې دې، دويمه وجه داده چه داجل عطف په کلمة باندې وی او د لولا لاندې وی، تقدير د عبارت به داشی، لولا كلمة واجل مسمى لكان العذاب لازما لهم.

**قوله: فاصبر على ما يقولون:** په فاصبر کښې فا جزائيه ده شرط محذوف دې تقدير دعبارت دادې ای اذا كان الامر على ما ذكر من ان تاخير عذابهم ليس باهمال بل هو امهال وهو لازم لهم البتة فاصبر على ما يقولون من الكفر- من آناء الليل آناء جمع د آنا په معنی دوخت او من په معنی

د فی ای فی آناء اللیل.

قوله: واطراف النهار: ای صل اطراف النهار د من آناء اللیل په محل باندې د عطف دوجې نه منصوب دې او من آناء اللیل د فسبح دوجې نه منصوب دې ولا تمدن عینیک عطف په فاصبر باندې دې.

قوله: ازواجا: د متعنا مفعول به کیدو دوجې نه منصوب دې او د به ضمیر مجرور چه دما په طرف راجع دې د هغې نه حال واقع کیدو په وجه هم ازواجا منصوب کیدې شی

قوله: زهرة الحیوة الدنیا: د زهرة د منصوب کیدو څو وجې کیدې شی ① د متعنا د مفعول ثانی کیدو دوجې نه، مفعول اول ازواجا دې او متعنا چونکه د اعطینا معنی ته متضمن دې ځکه متعدی دوؤ مفعولو ته شو ② د ازواجا نه بدل کیدو په وجه یا خو په حذف د مضاف سره ای ذوی زهرة یا ③ مبالغة د فعل محذوف دوجې نه منصوب دې چه پرې متعنا دلالت کوی ای جعلنا زهرة ④ منصوب علی الذم ای اذم زهرة الحیوة الدنیا ددې نه علاوه پنځه وجې د نصب نورې هم کیدې شی چه هغه د اختصار دوجې نه پریخودې شوې.

قوله: بأن یطغوا: با سببیه ده ای نفتنهم بسبب طغیانهم.

قوله: بهجة: رونق، خوبصورتی (س، ف، ک).

قوله: یقترحونه: اقتراح خواهش کول، تجویز پیش کول، مطالبه کول.

قوله: اولم یأتهم: همزه په محذوف باندې داخله ده او واو عاطفه دې ای اعموا ولم تأتهم

قوله: ولو انا اهلکنهم: دا جمله مستانفه ده د ماقبل د تاکید د پاره راوړلې شوې ده.

قوله: فنتبع: د لولا استفهامیه جواب دې د ان مقدر دوجې نه منصوب دې ای فان نتبع

قوله: من اصحب الصراط: مبتدأ او خبر دی، علامه محلی د من اهتدی تفسیر من الضلالة سره کړې دې او اصحب الصراط السوی او من اهتدی کښې ئې فرق ته اشاره کړې ده، اصحاب الصراط هغه خلق دی کوم چه د شروع نه په هدایت باندې وی لکه حضور ﷺ او هغه خلق کوم چه د اسلام په حالت کښې بالغ شوی و لکه حضرت علی ؓ وغیره او ومن اهتدی هغه خلق په چا باندې چه د کفر زمانه تیره شوې وه او روستو ئې اسلام راوړو ومَن اهتدی کښې من استفهامیه دې او په محل د خبر کښې هم کیدې شی په الصراط باندې عطف کولو سره ای اصحاب من اهتدی.

# پاره نمبر ۱۷ [اِقْتَرَبَ لِلنَّاس]

## [۲۱] سورة الانبياء

سُورَةُ الْأَنْبِيَاءِ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ مِائَةٌ وَاحِدى او اثنتا عَشَرَة آيَةً نزلت بعد سورة ابراهيم

سوره انبیاء مکی دې، یوسل یوولس یا یوسل دولس آیتونه دی.

### [ایاتونه: ۱-۱۰]

بسم الله الرحمن الرحيم

(اِقْتَرَبَ) قَرُبَ (لِلنَّاسِ) أَهْل مَكَّة مُنكِرِي الْبَعْث (حِسَابُهُمْ) يَوْم الْقِيَامَة (وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ) عَنْهُ (مُّعْرِضُونَ) عَنْ التَّأَهُّب لَهُ بِالْإِيمَانِ (مَا يَأْتِيهِمْ مِّنْ ذِكْرٍ مِّنْ رَّبِّهِمْ مُّحْدَثٍ) شَيْئًا فَشَيْئًا أَيْ لَفْظ قُرْآن (إِلَّا اسْتَمَعُوهُ وَهُمْ يَلْعَبُونَ) يَسْتَهْزِئُونَ (لَاهِيَةً) غَافِلَة (قُلُوبُهُمْ) عَنْ مَعْنَاهُ (وَأَسَرُّوا النَّجْوَى) الْكَلَام (الَّذِينَ ظَلَمُوا) بدل من واو (وأسروا النجوى (هَلْ هَذَا) أَيْ مُحَمَّد (إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ) فَمَا يَأْتِي بِهِ سِحْر (أَفَتَأْتُونَ السِّحْرَ) تَتَّبِعُونَهُ (وَأَنْتُمْ تُبْصِرُونَ) تَعْلَمُونَ أَنَّهُ سِحْر (قَالَ) لَهُمْ (رَبِّي يَعْلَمُ الْقَوْلَ) كَائِنًا (فِي السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ وَهُوَ السَّمِيعُ) لِمَا أَسَرُّوهُ (الْعَلِيمُ) بِهِ (بَلْ) لِلِانْتِقَالِ مِنْ غَرَض إِلَى آخَر فِي الْمَوَاضِع الثَّلَاثَة (قَالُوا) فِيمَا أَتَى بِهِ مِنْ الْقُرْآن هُوَ (أَضْغَاثُ أَحْلَامٍ) أَخْلَاط رَآهَا فِي النَّوْم (بَلِ افْتَرَاهُ) اخْتَلَقَهُ (بَلْ هُوَ شَاعِرٌ) فَمَا أَتَى بِهِ شِعْر (فَلْيَأْتِنَا بِآيَةٍ كَمَا أُرْسِلَ الْأَوَّلُونَ) كالناقة والعصا واليد قال تعالى (مَا آمَنَتْ قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْيَةٍ) أَيْ أَهْلهَا (أَهْلَكْنَاهَا) بِتَكْذِيبِهَا مَا أَتَاهَا مِنْ الْآيَات (أَفَهُمْ يُؤْمِنُونَ) لَا (وَمَا أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ إِلَّا رِجَالًا نُّوحِي) وَفِي قِرَاءَة بِالْيَاءِ وَفَتْح الْحَاء (إِلَيْهِمْ) لَا مَلَائِكَة (فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ) الْعُلَمَاء بِالتَّوْرَاةِ وَالْإِنْجِيل (إِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ) ذَلِكَ فَإِنَّهُمْ يَعْلَمُونَهُ وَأَنْتُمْ إِلَى تَصْدِيقهمْ أَقْرَب مِنْ تَصْدِيق الْمُؤْمِنِينَ بِمُحَمَّدٍ (وَمَا جَعَلْنَاهُمْ) أَيْ الرُّسُل (جَسَدًا) بِمَعْنَى أَجْسَادًا (لَا يَأْكُلُونَ الطَّعَامَ) بَلْ يَأْكُلُونَهُ (وَمَا كَانُوا خَالِدِينَ) فِي الدُّنْيَا (ثُمَّ صَدَقْنَاهُمُ الْوَعْدَ) بِإِنْجَائِهِمْ (فَأَنْجَيْنَاهُمْ وَمَنْ نَّشَاءُ) الْمُصَدِّقِينَ لَهُمْ (وَأَهْلَكْنَا الْمُسْرِفِينَ) الْمُكَذِّبِينَ لَهُمْ (لَقَدْ أَنْزَلْنَا إِلَيْكُمْ) يَا مَعْشَر قُرَيْش (كِتَابًا فِيهِ ذِكْرُكُمْ) لِأَنَّهُ بِلُغَتِكُمْ (أَفَلَا تَعْقِلُونَ) فَتُؤْمِنُونَ بِهِ

**ترجمه:** خلقو (یعنی) دبعث منکرینو اهل مکه دپاره ددوی دحساب (یعنی) دقیامت ورځ نږدې راغله بیا هم هغوی ددې نه په غفلت کښې پراته دی په دې باندې دایمان په ذریعه دتیارۍ نه اعراض کرې دې ددوی درب دطرف نه دوی ته څه نوې نصیحت په تدریج نه راځی (یعنی قرآنی الفاظ) خو داچه داخلق دا په لوبو کښې د استهزاء په طور باندې اوری حال دادې چه ددوی زړونه ددې دمعانیو نه غافل وی او دې ظالمانو پټې مشورې اوکړې الذین ظلموا داسروا دواؤ نه بدل دې چه دا یعنی محمد ﷺ ستاسو په شان انسان دې نو پس څه چه دې پیش کوی هغه سحر دې بیا هم تاسو دجادو دخبرې اوریدو دپاره ده ته ورځئ؟ حالانکه تاسو پوهیږئ چه دا سحر دې پیغمبر ﷺ اوفرمائیل چه زما رب هره خبره (که) هغه په اسمان کښې وی (او که) په زمکه کښې

پیژنی او کومه خبره چه دوی پتوی دهغې بنه اوریدونکې او پیژندونکې دې بَل د یو غرض نه بل غرض ته د انتقال دپاره دې په دریو ارو خایونو کښې (یعنی په جادو وئیلو باندې ئې اکتفاء او نه کړه)
بلکه نبی علیه السلام چه کوم قرآن راوړو دهغې په باره کښې ئې اوئیل دا پریشان خیالات دی یعنی په خوب کښې لیدلې شوی د ګډو وډو خیالونو مجموعه ده بلکه دا ئې دځان نه جوړ کړی دی (یعنی) دروغ ئې جوړ کړی دی بلکه دا شاعر دې نو کوم څیز چې دا پیش کوی هغه شعر دې نو (ده ته پکار دی) چه مونږ ته څه غټ نښه راوړی لکه څنګه چه مخکښې پیغمبران ته (نښې ورکړی شوې) راولیږلې شوی وو مثلا ناقه (اوښه) عصا (همسا) ید بیضاء (پرقیدونکې لاس) الله پاک اوفرمائیل ددوی نه مخکښې چه کوم کلی یعنی کلی والو ایمان رانه وړو مونږ دوی ددې نښو ددروغژن کولو په وجه هلاک کړل نو آیا داخلق ایمان راوړی؟ نه.
مونږ ستا نه مخکښې صرف سړی رسولان لیږلی دی چه هغوی ته وحی لیږل کیده اوپه یو قراءت کښې د نون او حاء په کسرې سره دې (یعنی مونږ وحی لیږله) نه فرشتو ته که تاسو ته داخبره معلومه نه وی نو داهل ذکر یعنی د انجیل او د تورات دعالمانو نه معلومات اوکړئ، ځکه چه هغوی دا خبره پیژنی او تاسو دهغوی تصدیق ته ډیر نزدې یئ په نسبت د محمد ﷺ باندې دایمان راوړونکو او مونږ ددې رسولانو داسې بدنونه نه جوړ کړی چه خوراک نه کوی بلکه خوراک کوی جسد په معنی داجساد دې اودا حضرات په دنیاکښې همیشه نه دې پاتې شوی بیا مونږ چه ددوی سره کومه وعده کړې وه هغه مو رښتیا کړه یعنی پوره مو کړه یعنی مونږ دوی ته او ددوی تصدیق کونکو کښې مو چاته غوښتل نجات ورکړو او دحد نه تیریدونکی یعنی ددوی تکذیب کونکی مو هلاک کړل اې قریشو! مونږ تاسو ته داسې کتاب لیږلې دې چه په هغې کښې ستاسو دپاره نصیحت دې ځکه چه هغه ستاسو په ژبه کښې دې بیا هم تاسو نه پوهیږئ چه په دې باندې ایمان راوړئ.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله: اقترب.** قربَ (س، ک) نزدې راتلل داقترب تفسیر ئې په قرب سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چه اقترب او قرب دواړه په یو معنی دی.
**قوله: للناس:** ددې تفسیر ئې په اهل مکه سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چه دا داطلاق الجنس علی البعض دقبیلې نه دې، دلیل ددې دادې چه آئینده کوم صفات بیانولې شی هغه دمکې په مشرکانو باندې صادقیږی، ګنې حساب خو دهر یو کس نزدې راغلې دې.
**قوله: حسابهم:** ای وقت حسابهم مضاف محذوف دې.
**قوله: وهم فی غفلة معرضون:** داجمله حالیه ده ای قرب وقت حسابهم والحال انهم غافلون معرضون هم مبتدأ معرضون ئې خبر.

قوله: فی غفلة: دمعرضون دضمیر نه حال هم کیدي شي ای اعرضوا غافلین او دمبتدأ خبر ثاني هم کیدي شي.

قوله: تأهب: اهب وتاهب په معنی دتیاریدو، اماده کیدو.

قوله: ما یاتیهم من ذکر: دادماقبل علت دي من ذکر کښې من په فاعل باندي زائد دي.

قوله: لفظ القرآن: مفسر علام دلفظ القرآن اضافه کولو سره داشبه زائله کړه چه دلته دذکر نه مراد قرآن دي او قرآن دالله پاک کلام او دهغه خاص صفت دي اودالله پاک دذات په شان دهغه صفات هم قدیم دی نو بیا هغه ته محدث ولې اونیلې شو؟

جواب: دجواب خلاصه داده چه قرآن پاک دالفاظِ منزله په اعتبار سره حادث دي او دخپل مدلول او د معنی په اعتبار سره قدیم دي.

قوله: واسروا النجوی: الذین ظلموا داسروادواو نه بدل دي اوپه محل درفع کښې دي او الذین ظلموا، د هم مبتدأ محذوف خبر هم کیدي شي ای هم الذین ظلموا او که اعنی فعل مقدر اومنلې شي نو الذین ظلموا به محلا منصوب شي، ای اعنی الذین ظلموا.

قوله: هل هذا: الخ دا النجوی نه بدل دي یعنی ددي ظالمانو پټې خبرې داوې چه دازمونږ په شان بشر دي هل هذا الا بشر مثلکم وانتم تبصرون دتأتون دضمیر نه حال دي علامه محلی د کائنا اضافه کولو سره اشاره اوکړه چه فی السماء والارض دالقول نه حال دي.

قوله: اضغاث احلام: دادهذا یا هو مبتدأ محذوف خبر دي څنګه چه علامه محلی هو مقدر منلو سره اشاره کړې ده او بیا جمله د قالوا مفعول به کیدو دوجې نه محلا منصوب ده اضغاث په معنی داخلاط جمع ضغث هغه ګډ وډ خیالونه کوم چه انسان په خوب کښې وینی.

قوله: فلیأتنا بآیة: دادشرط محذوف جزاء ده کومه چه دسیاق اوسباق نه فهمیږی ای کانه قیل وان لم یکن کما قلنا بل کان رسولا من عندالله فلیأتنا بآیة.

قوله: کما ارسل الاولون: داد آیة صفت دي ای ائتنا بآیة کائنة مثل الآیة التی ارسل بها الاولون.

قوله: اهلکنها، دقریة صفت دي افهم یؤمنون نه پس نی لا مقدر منلو سره اشاره اوکړه چه په افهم کښې همزه داستفهام انکاری ده.

قوله: یوحی: بالیاء مبنی للمفعول الیهم نائب فاعل وفی قراءة نوحی بالنون وکسر الحاء په دې صورت کښې به مفعول محذوف وی ای نوحی الیهم الامر والنهی ان کنتم لا تعلمون دا جمله شرطیه ده ددې جزاء فاسئلوهم محذوف ده سابقه جمله دجزاء په حذف باندي دلالت کوی یعنی تاسو به د اهل کتابو دخبرې تصدیق ته غوره والې ورکړئ په خلاف دهغه خلقو دخبرې دتصدیق کوم چه په محمد ﷺ باندي ایما لری څکه چه اهل کتاب داسلام په دشمنې

کښې ستاسو سره شریک دی.

**قوله: اقرب من تصديق المؤمنين** اصل کښې من تصديقكم المؤمنين محمد ﷺ دی جسدا په معنی داجسادا دا اشاره ده چه جسدا مفرد په معنی داجسادا دی یا ددې نه مخکښې مضاف محذوف دی ای ذوی جسدًا یا خو ددې وجې نه منصوب دی چه دجعلنا مفعول ثانی دی که جعل په معنی دصیر وی اوکه جعل په معنی دخلق وی نو دجعلناهم د هم ضمیر نه حال واقع کیدو دوجې نه به منصوب وی.

**قوله: لا ياكلون الطعام:** ظاهره داده چه داجمله دجسدا صفت دی په اصل کښې داجمله دمشرکينو دهغه قول رد دی چه هغوی به وئیل مال هذا الرسول ياكل الطعام.

**قوله: لقد انزلنا:** لقد کښې لام قسميه دی ای والله لقد.

**[ایاتونه: ۱۱-۲۲]**

(وَكَمْ قَصَمْنَا) اهلكنا (مِنْ قَرْيَةٍ) اي اهلها (كَانَتْ ظَالِمَةً) كافرة (وَأَنْشَأْنَا بَعْدَهَا قَوْمًا آخَرِينَ) (فَلَمَّا أَحَسُّوا بَأْسَنَا) شعر اهل القرية بالإهلاك (إِذَا هُمْ مِنْهَا يَرْكُضُونَ) يهربون مسرعين فقالت لهم الملائكة استهزاء (لَا تَرْكُضُوا وَارْجِعُوا إِلَى مَا أُتْرِفْتُمْ) نعمتم (فِيهِ وَمَسَاكِنِكُمْ لَعَلَّكُمْ تُسْأَلُونَ) شيئا من دنياكم على العادة (قَالُوا يَا) للتنبيه (وَيْلَنَا) هلاكنا (إِنَّا كُنَّا ظَالِمِينَ) بالكفر (فَمَا زَالَتْ تِلْكَ) الكلمات (دَعْوَاهُمْ) يدعون بها ويرددونها (حَتَّى جَعَلْنَاهُمْ حَصِيدًا) كالزرع المحصود بالمناجل بان قتلوا بالسيف (خَامِدِينَ) ميتين كخمود النار اذ طفئت (وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاءَ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لَاعِبِينَ) عابثين بل دالين على قدرتنا ونافعين عبادنا (لَوْ أَرَدْنَا أَنْ نَتَّخِذَ لَهْوًا) ما يلهى به من زوجة او ولد (لَاتَّخَذْنَاهُ مِنْ لَدُنَّا) من عندنا من الحور العين والملائكة (إِنْ كُنَّا فَاعِلِينَ) ذلك لكنا لم نفعله فلم نرده (بَلْ نَقْذِفُ) نرمي (بِالْحَقِّ) الإيمان (عَلَى الْبَاطِلِ) الكفر (فَيَدْمَغُهُ) يذهبه (فَإِذَا هُوَ زَاهِقٌ) ذاهب ودمغه في الأصل اصاب دماغه بالضرب وهو مقتل (وَلَكُمُ) يا كفار مكة (الْوَيْلُ) العذاب الشديد (مِمَّا تَصِفُونَ) الله به من الزوجة او الولد (وَلَهُ) تعالى (مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ) ملكا (وَمَنْ عِنْدَهُ) اي الملائكة مبتدا خبره (لَا يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِهِ وَلَا يَسْتَحْسِرُونَ) لا يعيون (يُسَبِّحُونَ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ لَا يَفْتُرُونَ) عنه فهو كالنفس منا لا يشغلنا عنه شاغل (أَمِ) بمعنى بل للانتقال والهمزة للإنكار (اتَّخَذُوا آلِهَةً) كائنة (مِنَ الْأَرْضِ) كحجر وذهب وفضة (هُمْ) اي الآلهة (يُنْشِرُونَ) اي يحيون الموتى لا ولا يكون الها الا من يحيي الموتى (لَوْ كَانَ فِيهِمَا) اي السماوات والارض (آلِهَةٌ إِلَّا اللَّهُ) اي غيره (لَفَسَدَتَا) اي خرجتا عن نظامهما المشاهد لوجود التمانع بينهم على وفق العادة عند تعدد الحاكم من التمانع في الشيء وعدم الاتفاق عليه (فَسُبْحَانَ) تنزيه (اللَّهِ رَبِّ) خالق (الْعَرْشِ) الكرسي (عَمَّا يَصِفُونَ) الكفار الله به من الشريك له وغيره (لَا يُسْأَلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْأَلُونَ) عن افعالهم

ترجمه: او ډیر کلي یعنی د کلو والا چه ظالمان یعنی کافران وو مونږ تباه یعنی هلاک کړل او ددوی نه پس مو بل قوم پیدا کړو نو دې ظالمانو چه کله زمونږ عذاب راتلونکې اولیدو یعنی د کلو والا چه کله هلاکت محسوس کړو نو ددې کلی نه په تیزئ سره تښتیدل نو فرشتو دوی ته داستهزاء په طور سره اوئیل تښتئ مه او خپلو سامانونو په طرف کومو کښې چه تاسو ته خوشحالي (آسودګی) درکړې شوې وه او دخپلو کورونو په طرف راواپس شئ دې دپاره چه ددنیا ددستور مطابق ستاسو نه څه تپوسونه اوکړې شي نو هغوی اوئیل هائ زمونږ بدبختي (یادتنبیه دپاره ده) یعنی زمونږ هلاکت بیشک مونږ دکفر په ذریعه ظالمان وو بیا ئې هم ددغې کلماتو رټ لګولو اودغه کلمات ئې بیا بیا وئیل تردې چه مونږ دوی حصید کړل یعنی په لور باندې کټ کړې شوی پټی پشان مو کړل څکه چه هغوی ټول په توره سره وهلې شوی وو اود مړ کړی شوی او ر پشان مو مړه کړل لکه څنګه چه اور مړ کیږی کله چه هغه مړ کړې شي اومونږ اسمان اوزمکه اوهغه څه چه ددې په مینځ کښې دی لوبې کونکې نه دې پیدا کړی یعنی دبې فائدې کار کونکې په شان مونه دی جوړ کړی دی بلکه په دې انداز مو جوړ کړی چه زمونږ په قدرت باندې دلالت اوکړی او زمونږ دبندګانو دپاره نافع شی او که زمونږ د لوبې تماشې په طور جوړول مقصود وې یعنی (کهلونا) چه په هغې سره دطبیعت تفریح مقصود وې مثلا بی بی اوبچی نودابه مو دخپل طرف نه جوړ کړی وې یعنی (ددې مقصد دپاره) به مو دخپل طرف نه دحورو او ملائکو انتخاب کړې وې، که مونږ ته داسې کول وې خو مونږ داسې اونه کړل نو ددې مو اراده هم اونه کړه بلکه مونږ حق ایمان په باطل یعنی په کفرباندې غورزوو نوهغه ددې سر ماتوی یعنی نیست اونابود کوی بیئ نو هغه په یو دم ختم شی زاهق په معنی دذاهب دې او ددمغه معنی په اصل کښې په دماغو باندې ضرب لګولو ده (یعنی دسر ماتولو) حال دادې چه هغه ضرب مهلک وی اوستاسو دپاره اې دمکې کافرانو هلاکت یعنی سخت عذاب دې د هغه خبرو دوجې نه چه په هغې سره تاسو الله متصف کوئ یعنی بی بی یا بچې او په زمکه اواسمان کښې چه څه دی هم دهغه ملک دې او کومې فرشتې چه دهغه سره دی هغوی د هغه دعبادت نه سرکشی نه کوی من عنده مبتدأ ده او لایستکبرون ددې خبردې اونه هغوی ستړې کیږی بلکه شپه اوورځ دالله پاک تسبیح کوی اود تسبیح نه (لږ هم) سستی نه کوی پس هغه تسبیح هغوی دپاره زمونږ دپاره دساه په شان ده چه مونږ ددې ساه نه یو عمل هم نه بندوی آیا دې خلقو دزمکې مخلوق مثلا کانړو، سرۀ زرو، چاندئ نه معبودان جوړ کړی دی آیا هغه یعنی باطل معبودان مړی ژوندی کولې شی ؟ نه، او معبود هغه کیدې شی کوم چه مړی ژوندې کولې شی که په دې دوارو یعنی زمکه اواسمان کښې دالله نه سوا بل معبود وې نو دا دواړه به فاسد شوی وې یعنی خپل نظام مشاهد نه به وتلې وې (یعنی درهم برهم شوی به وې) ددوی په مینځ کښې د ټکراؤ دوجې نه

دعادت مطابق د ډېرو حاكمانو په وخت په يوشي كښې تكراؤ او د عدم اتفاق دروجې نه (يعني په دنيوى بادشاهانو كښې هم دا عادت او دستوردې چه كله دبرابر حثيت والا څو حاكمان يوځائ شي نو ددوى په مينځ كښې په يونه يوخبره كښې ضرور اختلاف وى كوم چه دتكراؤ شكل اختياروى او چونكه يو دبل نه كم نه وى نو هغه شئ درهم برهم شى) بس الله دعرش كرسئ رب خالق دې دهر هغه څيز نه پاک دې كوم چه دا كافران بيانوى، يعني كافران، د شرک وغيره صفاتو نه كوم سره چه هغه متصف كوى (پاک دې هغه دخپلو كارونو دپاره جواب ده نه دې اوهغوى دخپلو افعالو په باره كښې جواب ده دى.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** **كم**: خبريه دې اوقصمنا مفعول مقدم دې من قرية دكم خبريه تميز دې **قصمنا** (ض) ماضى جمع متكلم معروف قصما ماتول، ريزه ريزه كول، مات ګډ كول، هلاكول قريه نه ديمن يو قريه مراد ده دكوم نوم "چه حضوراء" وو الله پاک دې كلى والو ته حضرت موسى بن ميشا بن يوسف بن يعقوب نبى ليږلې وو او ځنې حضراتو امم سابقه مثلا قوم نوح او لوط او صالح وغيره هم مراد اخستى دى خواول قول راجح دې.

**قوله:** **كانت ظالمة**، دادقرية صفت دې.

**قوله:** **احسوا**: اى ادركوا بالحواس.

**قوله:** **اذا هم يركضون**: اذا مفاجاتيه دې هم مبتدا يركضون ددې خبردې الركض ضرب الدابة بالرجل (پونده وركول) دلته مراد په تيزئ سره تښتيدل دى اذا ديركضون ظرف دې

**قوله:** **استهزاء**: په دې لفظ سره ئې ديو سوال مقدر جواب وركړې دې.

**سوال:** سوال دادې چه ملائكه دكذب وغيره نه معصوم دى نوهغوى بيا دواقعې نه خلاف خبره ولې اوكړه ؟چه تاسو دخپلو سامان د خوشحالئ او كورونوته واپس راشئ حالانكه ملائكو ته معلومه وه چه په دوى كښې يو هم دبچ كيدو والا نشته؟

**جواب:** دجواب خلاصه داده چه هغوى دا استهزاء اوئيل لكه په بل ځائ كښې فرمائيلې شوى دى ذق انك انت العزيز الكريم.

**قوله:** **مساكنكم**: ددې عطف په ما باندې دې تلک الكلمات نه ددوى قول مراد دې ياويلنا انا كنا ظالمين

**قوله:** **لاعبين**: دا دخلقنا دضمير فاعل نه حال دې.

**قوله:** **دعواهم**: اى دعاؤهم ونداؤهم، مناجل جمع دمنجل د فصل د ريبلو آله (لور) حصيدا مصدر په معنى دمحصود كټ كړې شوې فصل، مصدر چونكه په واحد تثنيه اوجمع ټولو د پاره استعماليږى په دې وجه ئې حصيدا جمع رانه وړولو.

قوله: خامدين: دجعلناهم دضمير هم نه حال دې حصيدا خامدين ددوارو مجموعه په منزله د مفعول واحد ده نو دااعتراض ختم شو چه جعل درې مفعولو ته نه متعدى كيږى او دلته درې مفعولوته شوې دې خامدين دخمدت النار نه مشتق دې كله چه داور شغلې مړې شى ددې نه خمدت الحمى مشتق دې كله چه دتبې تيزوالې كم شى او همدت النار په هغه وخت وئيلې شى كله چه اور بالكل مړشى اوايره شى.

قوله: لاعبين: په ماخلقنا كښې مقصد نفى دلاعبين ده ځكه چه نفى كله په مقيد داخله شى نودقيد نفى مراد وى نو په ماخلقنا كښې دتخليق نفى مقصود نه ده بلكه دلاعبين نفى مقصودده.

قوله: لو اردنا ان نتخذ لهوا: دلاتخذناه من لدنا جواب دې، دتالى دنقيض استثناء دمقدم دنقيض نتيجه وركوى نو عبارت به دارنګه شى لوتعلقت ارادتنا باتخاذ اللهو لاتخذناه من عندنا لكنا لم نتخذه فلم تتعلق به ارادتنا.

قوله: ان كنا فاعلين: ان شرطيه دې او جواب دشرط محذوف دې تقدير دعبارت دادې ان كنا فاعلين اردناه مفسر علام دخپل قول لكنا لم نفعله سره دنقيض تالى ته اشاره كړې ده، او فلم نرده اضافې سره ئې دې خبرې ته اشاره اوكړه چه ان شرطيه دې، په ان كنا فاعلين كښې ان نافيه هم كيدې شى، اى ماكنا فاعلين.

قوله: مما تصفون: مفسر علام دبه اضافه كولو سره اشاره كړې ده چه په مما كښې ما موصوله ده او تصفون جمله ددې صله ده او عائد به محذوف دې، ما مصدريه هم كيدې شى تقدير دعبارت به داشى ولكم الويل من اجل وصفكم اياه عما لا يليق مما تصفون داستقرمتعلق دې اى استقرلكم الويل من اجل ما تصفون الله به مما لا يليق بعزته.

قوله: مَن عنده: اى مكرم عنده.

قوله: لايستحسرون: (استفعال) جمع مذكر غائب منفى هغوى نه ستړې كيږى.

قوله: لايفترون: (ن) جمع مذكر غائب منفى سستى نه كوى.

قوله: اتخذوا آلهة: كائنة من الارض مفسر علام كائنة مقدر منلو سره اشاره اوكړه چه من الارض دكائنة متعلق شو دآلهة صفت دې او داتخذوا مفعول ثانى هم كيدې شى او من الارض د اتخذوا فعل متعلق هم كيدې شى.

قوله: لو كان فيهما آلهة الا الله لفسدتا: لو حرف شرط دې او كان تامه شرط دې آلهة ددې فاعل دې او فيهما دكان متعلق دې او الا په معنى د غير دآلهة صفت دې ددې اعراب په مابعد كښې ظاهر شوې دې.

قوله لفسدتا جواب دشرط دي

فعلِ شرط ته مقدم او جوابِ شرط ته تالي وائي دتالي دنقيض استثناء دمقدم دنقيض نتيجه ورکوي مطلب داشو لکنهما لم تفسدا فلم يکن فيهما آلهة غير الله.

[اياتونه: ۲۴-۲۹]

{أم اتخذوا من دونه} تعالى أي سواه {آلهة} فِيهِ اسْتِفْهَام تَوْبِيخ {قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ} عَلَى ذلك ولا سبيل إلَيْهِ {هَذَا ذِكْرُ مَنْ مَعِيَ} أُمَّتِي وَهُوَ الْقُرْآن {وَذِكْرُ مَنْ قَبْلِي} مِنْ الْأُمَم وَهُوَ التَّوْرَاة وَالْإِنْجِيل وَغَيْرهمَا مِنْ كُتُب اللَّه لَيْسَ فِي وَاحِد مِنْهَا أَنَّ مَعَ اللَّه إلَهًا مِمَّا قَالُوا تَعَالَى عَنْ ذَلِكَ {بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ الْحَقَّ} تَوْحِيد اللَّه {فَهُمْ مُعْرِضُونَ} عَنْ النَّظَر الْمُوصِل إلَيْهِ {وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَسُولٍ إِلَّا نُوحِي} وَفِي قِرَاءَة بِالْيَاءِ وَفَتْح الْحَاء {إلَيْهِ أنه لا إله إلا أنا فاعبدون} أي وحدوني {وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمَنُ وَلَدًا} مِنْ الْمَلَائِكَة {سُبْحَانَهُ بَلْ} هُمْ {عِبَادٌ مُكْرَمُونَ} عِنْده وَالْعُبُودِيَّة تُنَافِي الولادة {لَا يَسْبِقُونَهُ بِالْقَوْلِ} لَا يَأْتُونَ بِقَوْلِهِمْ إلَّا بَعْد قَوْله {وَهُمْ بِأَمْرِهِ يَعْمَلُونَ} أَيْ بَعْده {يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ} مَا عَمِلُوا وَمَا هُمْ عَامِلُونَ {وَلَا يَشْفَعُونَ إِلَّا لِمَنِ ارْتَضَى} تَعَالَى أَنْ يَشْفَع لَهُ {وَهُمْ مِنْ خَشْيَتِهِ} تَعَالَى {مُشْفِقُونَ} خَائِفُونَ {وَمَنْ يَقُلْ مِنْهُمْ إِنِّي إِلَهٌ مِنْ دُونِهِ} أَيْ اللَّه أَيْ غَيْره وَهُوَ إبْلِيس دَعَا إلَى عِبَادَة نَفْسه وَأَمَرَ بِطَاعَتِهَا {فَذَلِكَ نَجْزِيهِ جَهَنَّمَ كَذَلِكَ} كَمَا نَجْزِيه {نَجْزِي الظَّالِمِينَ} الْمُشْرِكِينَ

ترجمه: آيا دې خلقو دالله پاک نه سوا نور معبودان جوړکړي دي؟ په دې کښې استفهام توبيخي دې دوی ته اوايه چه راوړئ په دې خبره (يعنی په اتخاذ اله باندې) خپل دليل پيش کړئ ددوی سره هيڅ دليل نشته دې (نه عقلي او نه نقلي) دازما دملګرو کتاب موجود دې يعنی زما دامت او هغه قرآن دې او زما نه دمخکينو امتونو (کتابونه) موجود دی او هغه تورات او انجيل وغيره دی دالله پاک دکتابونونه، په هغې کښې په يو کښې هم دانشته چه دالله پاک نه سوا بل معبود شته څنګه چه دا خلق وائي، الله پاک خو د دې نه وراء الوراء (پاک) دې خبره داده چه په دوی کښې اکثر خلق حق نه پيژني يعنی دالله پاک توحيد هم په دې وجه حق ته درسونکی دليل نه اعراض کوی ستا نه مخکښې چه مونږ کوم رسولان ليږلي وو هغوی ته هم مونږ داوحي ليږلې وه چه زما نه سوا هيڅ يو معبود نشته نو زما بندګي کوئ يعنی زما دتوحيد اقرار کوئ په يو قراءت کښې ديوحی په څای نوحی دې په نون اودحاء په کسرې سره دامشرکان وائي چه رحمن دفرشتو نه اولاد نيولې دې دهغه ذات پاک دې بلکه هغوی خو دهغه عزتمند بندګان دي او عبوديت د ولادت منافي دې هغوی د هغه نه په خبره کښې نه مخکښې کيږي يعنی هغوی پخپله څه خبره نه کوی خو داجازت نه پس او هغوی دهغه دحکم نه پس دهغه دحکم مطابق عمل کوی هغه د هغوی دمخکښې اوروستو ټولو امورو نه خبردې يعنی چه څه ئې کړي دي او څه به چه په آئنده کښې کوی اوهغوی دچا سفارش نه کوی سوا دهغه چا نه چه

الله پاک دهغه دپاره راضي وي چه دده دې سفارش اوکړې شي اوهغوی دخدائ پاک دهيبت نه لړزيږي يعنی ويريږي که په هغوی کښې کوم يو اووائي چه زه دالله پاک نه سوا معبود يم هغه ابليس دې چه هغه دخپلې بندګئ دعوت ورکړو او دخپل طاعت دعوت ئې ورکړو نوموږ به هغه ته دجهنم سزا ورکړو موږ داسې لکه څنګه به چه ده ته سزا ورکړو ظالمانو يعنی مشرکانو ته به هم سزا ورکړو.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله: امر اتخذوا من دونه:** امر استفهام توبيخی په معنی دبل دې او ديو مضمون نه دبل مضمون په طرف دانتقال کولو دپاره دې، يعنی دتعدد اله دبطلان ثابتولو نه پس د اتخاذ اله متعدده بطلان ظاهروی.

**قوله: هذاذکرمن معی وذکرمن قبلی:** هذا اسم اشاره مبتدأ ده مشار اليه کتب سماويه دی، دهذا مبتدأ دوه خبر دی، خبرونه اول نه قرآن مراد دې اود خبر ثانی نه دقرآن نه علاوه نور اسمانی کتابونه مراد دی، لکه چه مفسر علام اشاره کړې ده.

**قوله: وما ارسلنا من قبلك:** داد ماقبل دمضمون تاکيد دې.

**قوله: قالوا:** ضمير فاعلی دعربو دځنو قبيلو په طرف راجع دې کوم چه دملائکو په باره کښې دالله پاک دلوڼړو کيدو قائل وو. په دوی کښې مشهور دادی، (۱) خذاعه (۲) جهينه (۳) بنو سلمه (۴) بنو مليح.

**قوله: يعلم ما بين ايديهم:** الخ دا جمله مستانفه ده دماقبل علت اودمابعد تمهيد دې.

**قوله: ومن يقل منهم:** دملائکو دا قول بالفرض والتقدير دې ګنی په فرشتو کښې دمعصيت صلاحيت نشته دې. اوکه ديقل فاعل ابليس اوګرځولې شي نو دآخرابی به لازمه شي چه هغه په حقيقت کښې دملائکو نه نه دې اودويمه خرابی به دالازمه شي چه ابليس کله دالوهيت دعوی نه ده کړې بلکه هغه خو اعبد الملائکه وو خو د رحمت خداوندی نه مايوس شوې دې وامر بطاعتها مطلب دادې چه هغه دخلقو په زړونو کښې وسوسه واچوله چه هغه دده خبره اومنی او توحيد پريږدی او بت پرستی اختيار کړی هم دا دخپلې بندګئ او اطاعت په طرف رابلل دی.

**قوله: فذالك نجزيه:** ذالک د مبتدأ کيدو په وجه مرفوع محلا ده او نجزيه ددې خبر دې او پوره جمله دجواب شرط کيدو په وجه محلا مجزوم دې.

.......

[ایاتوله:۳۰-۴۱]

(أولم) بواو وتركها (یر) یعلم (الذين كفروا أن السماوات والأرض كانتا رتقا) سدا بمعنى مسدودة (ففتقناهما) جعلنا السماء سبعا والأرض سبعا أو فتق السماء أن كانت لا تمطر فأمطرت وفتق الأرض أن كانت لا تنبت فأنبتت (وجعلنا من الماء) النازل من السماء والنابع من الأرض (كل شيء حي) من نبات وغيره أي فالماء سبب لحياته (أفلا يؤمنون) بتوحيدي (وجعلنا في الأرض رواسي) جبالا ثوابت ل (أن) لا (تميد) تتحرك (بهم وجعلنا فيها) الرواسي (فجاجا) مسالك (سبلا) بدل طرقا نافذة واسعة (لعلهم يهتدون) إلى مقاصدهم في الأسفار (وجعلنا السماء سقفا) للأرض كالسقف للبيت (محفوظا) عن الوقوع (وهم عن آياتها) من الشمس والقمر والنجوم (معرضون) لا يتفكرون فيها فيعلمون أن خالقها لا شريك له (وهو الذي خلق الليل والنهار والشمس والقمر كل) تنوينه عوض عن المضاف إليه من الشمس والقمر وتابعه وهو النجوم (في فلك) مستدير كالطاحونة في السماء (يسبحون) يسيرون بسرعة كالسابح في الماء وللتشبيه به أتى بضمير جمع من يعقل ونزل لما قال الكفار إن محمدا سيموت (وما جعلنا لبشر من قبلك الخلد) البقاء في الدنيا (أفإن مت فهم الخالدون) فيها لا فالجملة الأخيرة محل الاستفهام الإنكاري (كل نفس ذائقة الموت) في الدنيا (ونبلوكم) نختبركم (بالشر والخير) كفقر وغنى وسقم وصحة (فتنة) مفعول له أي لننظر أتصبرون وتشكرون ام لا (وإلينا ترجعون) فنجازيكم (وإذا رآك الذين كفروا إن) ما (يتخذونك إلا هزوا) أي مهزوءا به يقولون (أهذا الذي يذكر آلهتكم) أي يعيبها (وهم بذكر الرحمن) لهم (هم) تاكيد (كافرون) به إذ قالوا ما نعرفه ونزل في استعجالهم العذاب (خلق الإنسان من عجل) أي أنه لكثرة عجله في أحواله كأنه خلق منه (سأريكم آياتي) مواعيدي بالعذاب (فلا تستعجلون) فيه فأراهم القتل ببدر (ويقولون متى هذا الوعد) بالقيامة (إن كنتم صادقين) فيه قال تعالى (لو يعلم الذين كفروا حين لا يكفون) يدفعون (عن وجوههم النار ولا عن ظهورهم ولا هم ينصرون) يمنعون منها في القيامة وجواب لو ما قالوا ذلك (بل تأتيهم) القيامة (بغتة فتبهتهم) تحيرهم (فلا يستطيعون ردها ولا هم ينظرون) يمهلون لتوبة أو معذرة (ولقد استهزئ برسل من قبلك) فيه تسلية للنبي صلى الله عليه وسلم (فحاق) نزل (بالذين سخروا منهم ما كانوا به يستهزئون) وهو العذاب فكذا يحيق بمن استهزأ بك

**ترجمه:** آیاکافران دانه پیژنی چه اسمان او زمکه (خله) بند وو؟ په اولم واؤ او ترک واؤ دواړه دی رتقًا په معنی د سدًا دي او سدًا په معنی دمسدودا دي بیا مونږ هغه کهلاؤ کړل یعنی اووه اسمانونه او اووه زمکې جوړې کړې یاد فتق سماء مطلب دادي چه داسمان نه باران نه وریدو، بیا باران وریدل شروع شو، اود فتق ارض مطلب دادي چه زمکې زرغونه نه کوله بیا ئی زرغونه شروع کړه اومونږ د اسمان نه وریدونکی باران او دزمکې دچینو نه دراوتونکی اوبو نه هر قسم جاندار جوړ کړل وابنه وغیره نو اوبهٔ دهر جاندار دپاره سبب

دزوند دي يا هم زما په توحيد باندې ايمان نه راوړي او په زمکه باندې ثابت پاتې کېدونکي غرونه جوړ کړل دې دپاره چه په خلقو باندې اضطرابي حرکت اونه کړي اومونږ په دې کښې يعنى په غرونو کښې کهلاو لارې جوړې کړې سبلا. دفجاجا نه بدل دې يعنى په دوارو طرفونو کهلاو لارې دې دپاره چه خلق دسفر په دوران خپل منزل مقصود ته رسيدل حاصل کړې شى او مونږ اسمان دزمکې دپاره دغورزيدو نه محفوظ چهت جوړ کړو خنکه چه دکور چهت وى او دې خلقو په اسمان کښې موجود) دنمر اوسپوږمې دنښو نه اعراض کړې دې يعنى داسمان په نښو کښې غور او فکر نه کوى دې دپاره چه دوى ته ددې خبرې علم اوشى چه ددې خالق هغه دې چه دهغه څوک شريک نشته اوهغه هغه ذات دې چه هغه شپه اوورځ او نمر سپوږمې جوړ کړى دى دکل تنوين د مضاف اليه يعنى شمس اوقمر په عوض کښې دى او دمضاف اليه د تابع په عوض کښې دې او هغه نجوم دى په دې هر يو فلک کښې يعنى د پل په شان په خپل اسمانى مدار کښې لامبو وهى يعنى په تيزئ سره ځى لکه لامبو وهونکې په اوبو کښې په تيزئ سره ځى اود لامبو وهونکى سره تشبيه ورکولو دوجې نه ئې يسبحون په واؤ اونون سره جمع راوړې دې کوم چه دذوى العقول دپاره دې او کله چه کافرانو دااوئيل چه محمد زر مړ شى نو وماجعلنا لبشر من قبلک الخلد نازل شو يعنى مونږ ستا نه مخکښې هم هيڅ يو بشر ته هميشه والى يعنى په دنيا کښې دائمى بقا نه ده ورکړې، پس که ستا انتقال اوشى نو آيا داخلق په دنيا کښې هميشه هميشه اوسيږى ؟ نه ، جمله اخيره (يعنى فان مت) د همزهٔ استفهام انکارى په محل کښې ده هر ساه لرونکى ته په دنيا کښې دمرگ مزه څکل دى اومونږ به تاسو امتحان دپاره بد اوښه حالت مثلا فقر او غنا مرض اوصحت سره ازمايو فتنة مفعول له دې يعنى دې دپاره چه مونږ اوگورو چه تاسو صبرا و شکرکوئ يا نه کوئ، او تاسو زمونږ نه راواپس کولې شې نو مونږ به تاسو ته بدله درکړو اودا کافران چه کله تا وينى نو بس په تاپورې توقې کوى يعنى په تاپورې خندا کوى اوپه خپل مينځ کښې وائى چه آيا داصاحب دې هغه چه ستاسو دمعبودانو ذکر په بدئ سره کوى ؟ اوداخلق درحمان دذکر نه منکر دى کله چه دې خلقو اوئيل چه مونږ رحمان نه پيژنو او ددوى دعذاب په زر غوښتلو باره کښې آيت وخلق الانسان من عجل نازل شو يعنى انسان دخپلو احوالو په باره کښې جلتى خوښولو دوجې نه لکه چه دجلتى (د مادې) نه جوړ شوې دې څه به دير زر تاسو ته خپلې نښې يعنى زما دعذاب وعدې او ښايم نو زمانه ددې په باره کښې جلتى مه کوئ پس ګوى ته په ئې بدر کښې دقتل عذاب اوښودو اوداخلق دا وائى چه هغه دقيامت وعده به کله راځى، که تاسو دعذاب په وعده کښې رښتونى يئ، کاش چه کافرانو ته دهغه وخت خبر وې چه کله به دا کافران اور نه دخپل مخکښې نه بندولې شى دفع کولې شى اونه دشاه نه اونه به ددوى مدد کولې شى يعنى دوى به دقيامت په ورځ دعذاب نه نشى بچ کولې او دلو

جواب ماقالوا ذلک دي بلکه قيامت به دوی ته ناڅاپه راشي پس دوی به بدحواس حيران کړی
بيا به ئې نه ددې دلرې کولو قدرت وی او نه به دوی ته مهلت ورکولې شي يعنی د توبې يا د عذر
کولو مهلت به نه شی ورکولې سبًا نه مخکښې چه کوم پيغمبران تير شوی دی په هغوی پورې هم
توقې کړې شوې وې په دې کښې دحضورﷺ دپاره تسلی ده، نو خندا کونکی هغه څيز
ګهيرکړل (نازل شو) چه هغوی ورپورې خندا کوله او هغه عذاب دې نو په دې طريقه به (عذاب)
داخلق هم راګهير کړی کوم چه په تاپورې خندا کوی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله: اولم ير** : همزه په فعل محذوف باندې داخله ده او واو عاطفه په ذريعه دير په
محذوف باندې عطف دې، تقدير دعبارت دادې اولم يتفكروا ولم يعلموا ان السموات والارض
كانتا رتقا،كانتا د تثنيه صيغه ده حالانکه ددې ضمير دسموات او ارض په طرف راجع دې
کوم چه جمع دې نو په مرجع او ضمير کښې مطابقت نشته؟

**جواب:** دوه نوعې يا دوه جنسونه مراد دی، ځکه چه اسمان يو نوع ده او زمکه بله نوعه ده
او درؤيت نه رؤيت قلبی مراددې، په واؤ سره اوپه ترک دواؤ سره دواړه قراء تونه دی.

**قوله: رتقاً** : دکانتاخبر دې دمصدر کيدو په وجه سره مفرد استعمال شوې دې، مبالغة
حمل ئی هم صحيح دې او مضاف محذوف سره حمل هم صحيح دې ای ذو رتق ای كانتا
شيئا واحدا مفسر علام بمعنی د مسدودة مقدر منلو سره اشاره اوکړه چه مصدر په
معنی داسم مفعول دې رتقًا (ن) مصدر دې . خله بند، ملاو شوې، نختی، دلته مصدر د
اسم مفعول يا د اسم فاعل په معنی دې فتقا (ن، ض) شلول، کهلاول، بيلول.

**قوله: وجعلنا من الماء كل شئ حي** : که جعل په معنی دصير وی نو متعدی دوؤ مفعولونه
به وی،او جار مجرور دخپل متعلق محذوف ناشيا يا متسببا سره متعلق مفعول مقدم
شو او كل شئ مفعول اول مؤخرشو تقدير دعبارت داشو وجعلنا ناشيا من الماء كل شئ حي او
که جعل په معنی دخلق وی نو متعدی په يو مفعول به وی اوهغه كل شئ حی دې او من
الما ء جار مجرور سره يوځائ کيدو سره دجعلنا متعلق دې.

**قوله: رواسی** : رواسی جمع دراسية او راسی په معنی دراسخ او ثابت او مختار کښې دی
چه مضبوطوغرونوته هم راسية وائی، درساالشئ نه ماخوذ دې کله چه شئ ثابت او
مستقر شی، مفسر علام لا مقدر منلې دې دپاره چه دان تميدبهم علت جوريدل صحيح
شی، ځکه چه دغرونو قيام دعدم تحرک دپاره دې نه چه دتحرک دپاره. فجاجا د دوؤ
غرونو په مينځ کښې کهلاو لاره دفجاج واحد فج دې لکه چه دسهام واحد سهم دې.

**قوله: وللتشبيه به الي بضمير جمع من يعقل** : ددې قول عبارت داضافه کولو مقصد ديو سوال

مقدر جواب دی.

**سوال**: دیسبحون فاعل شمس وقمر اونجوم دی چه غیر ذوالعقول دی ددوی دپاره دجمع مؤنث غائب صیغه پکار وه نه دجمع مذکر غائب او په واو اونون سره جمع خود ذوی العقول د پاره راوړلې شی نه دغیر ذوی العقول دپاره.

**جواب**: دجواب خلاصه داده چه شمس او قمر ته دیسبحون نسبت شوې دې او سبح یعنی لامبو وهل دذوی العقول فعل دې نوپه دې مناسبت سره یسبحون په واو اونون سره راوړې شوې دې، عدم الخلود ئې دبشر سره خاص کړې دې حالانکه نور ذی روح بلکه د کائناتو د هیڅ یوشی دپاره خلود فی الدنیا نشته دې؟ جواب دادې چه ددوی سوال هم دحضور ﷺ دپاره دمرګ توقع د بشر حیثیت په وجه سره وو.

**قوله**: فالجملة الاخيرة محل الاستفهام الانكاري: ددې عبارت مقصد هم دیو شبهې ازاله ده، شبه داده چه همزه داستفهام انکاری فان مت باندې داخله ده چه مطلب ئې دادې چه ستا دمرګ هم انکار دې او ددوی دخلود هم، حالانکه مقصد ددوی دخلود انکار دې؟ دجواب حاصل دادې چه همزه په اصل کښې په جمله اخیره باندې داخله ده خو چونکه همزه صدارت دکلام غواړی ددې وجې نه ئې دا دجملې په سر کښې راوړې ده ګنی اصل تقدیر دعبارت دارنګې دې افهم الخلدون ان مت. كل نفس ذائقة الموت دنفس نه مراد نفس ناطقه دې او دموت نه مراد د قوت حیوانیه زوال او دروح دجسد نه انفصال دې او د ذائقه نه مراد دلته ادراک بالقوة الذائقة نه دې ځکه چه مرګ د مطعوماتو دقبیلې نه نه دې بلکه مطلقاً ادراک مراد دې، او ادراک نه هم دمرګ د مبادیاتو مثلاً آلام وغیره ادراک مراد دې ځکه چه دمرګ ادراک دخول فی الجسد نه مخکښې ممکن نه دې او دخول نه پس انسان مړې (لاش) شی په هغه وخت کښې ادراک ممکن نه وی.

**قوله**: فتنة: ددې دمنصوب کیدو درې وجې کیدې شی ① دنبلوکم دمفعول له کیدو دوجې نه ②مصدریه موضع دحال کښې واقع کیدو دوجې نه ای نبلوکم فاتنین ③دنبلوکم دمفعول مطلق بغیر دلفظه کیدو دوجې نه دې دپاره چه نبلو او فتنة دواړه متحدالمعنی دی واذاراك الذين كفروا ددې جملې عطف په ماسبق کښې واسروا النجوى باندې دې، او شرط دې، اهذا الذي يذكر آلهتكم ددې جزاء ده دجزاء نه مخکښې یقولون مقدر دې او ان يتخذونك الا هزوا شرط او د جزاء په مینځ کښې جمله معترضه ده او هزوا مصدر د مفعول په معنی کښې دې. وهم بذكر الرحمن هم كافرون اول هم مبتدأ ده دویم هم ددې تاکید دې کافرون ددې خبردې او بذکر الرحمن د کافرون سره متعلق دې تقدیر دعبارت دادې هم كافرون بذكر الرحمن او وهم بذكر الرحمن الخ جمله حالیه کیدو دوجې نه محلا منصوب ده،

مفسر رحمه الله دلهم اضافه کولو سره دې طرف ته اشاره اوکړه چه دذکر مصدر اضافت درحمن په طرف دا اضافت دمصدر الی الفاعل دې، او ځنو حضراتو اضافت دمصدر الی المفعول هم وئیلې دې په دې وخت تقدیر دعبارت وذکرهم الرحمن بالتوحید وی.

قوله. خلق الانسان من عجل داسې ده لکه او چه وئیلی شی خلق من طین هرانسان چونکه فطرة په هره معامله کښې جلد باز واقع شوې دې لکه چه دده پیدائش دجلتی دخمیر نه شوې دې په دې وجه مبالغة خلق من عجل وئیلې شوی دی.

قوله: لویعلم الذین کفروا حین لایکفون: الآیة لو شرطیه دې او جواب محذوف دې څنګه چه مفسر علام ظاهر کړی دی ای لو یعلم ماقالوا ذلک (ای متی هذا الوعد) او حین دیعلم مفعول به دې نه ظرف،ترجمه به داشی که داکافران هغه وخت اوپیژنی کله چه به دوی اعذاب نه شی دفع کولې.

قوله: ماکانوابه: دحاق فاعل دې او هوالعذاب کښې دهو مرجع ما دې.

**[ایاتونه:۴۲-۵۰]**

(قُلْ) لَهُمْ (مَنْ يَكْلَؤُكُمْ) يَحْفَظُكُمْ (بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ مِنَ الرَّحْمٰنِ) مِنْ عَذَابِهِ إِنْ نَزَلَ بِكُمْ أَيْ لَا أَحَدَ يَفْعَلُ ذٰلِكَ وَالْمُخَاطَبُونَ لَا يَخَافُونَ عَذَابَ اللهِ لِإِنْكَارِهِمْ لَهُ (بَلْ هُمْ عَنْ ذِكْرِ رَبِّهِمْ) أَيِ الْقُرْآنِ (مُعْرِضُونَ) لَا يتفكرون فيه (أم) فيها معنى الهمزة للإنكار اي أ (لهم آلهة تمنعهم) مما يسوؤهم (مِنْ دُونِنَا) أَيْ أَلَهُمْ مَنْ يَمْنَعُهُمْ مِنْهُ غَيْرُنَا لَا (لَا يَسْتَطِيعُونَ) أَيِ الْآلِهَةُ (نَصْرَ أَنْفُسِهِمْ) فَلَا يَنْصُرُونَهُمْ (وَلَا هُمْ) أَيِ الْكُفَّارُ (مِنَّا) مِنْ عَذَابِنَا (يُصْحَبُونَ) يُجَارُونَ يُقَالُ صَحِبَكَ اللهُ أَيْ حَفِظَكَ وَأَجَارَكَ (بَلْ مَتَّعْنَا هٰؤُلَاءِ وَآبَاءَهُمْ) بِمَا أَنْعَمْنَا عَلَيْهِمْ (حَتّٰى طَالَ عَلَيْهِمُ الْعُمُرُ) فَاغْتَرُّوا بِذٰلِكَ (أَفَلَا يَرَوْنَ أَنَّا نَأْتِي الْأَرْضَ) نَقْصِدُ أَرْضَهُمْ (نَنْقُصُهَا مِنْ أَطْرَافِهَا) بِالْفَتْحِ عَلَى النَّبِيِّ (أَفَهُمُ الْغَالِبُونَ) لَا بَلِ النَّبِيُّ وَأَصْحَابُهُ (قُلْ) لَهُمْ (إِنَّمَا أُنْذِرُكُمْ بِالْوَحْيِ) مِنَ اللهِ لَا مِنْ قِبَلِ نَفْسِي (وَلَا يَسْمَعُ الصُّمُّ الدُّعَاءَ إِذَا) بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَتَسْهِيلِ الثَّانِيَةِ بَيْنَهَا وَبَيْنَ الْيَاءِ (مَا يُنْذَرُونَ) هُمْ لِتَرْكِهِمُ الْعَمَلَ بِمَا سَمِعُوهُ مِنَ الْإِنْذَارِ كَالصُّمِّ (وَلَئِنْ مَسَّتْهُمْ نَفْحَةٌ) وَقْعَةٌ خَفِيفَةٌ (مِنْ عَذَابِ رَبِّكَ لَيَقُولُنَّ يَا) لِلتَّنْبِيهِ (وَيْلَنَا) هَلَاكَنَا (إِنَّا كُنَّا ظَالِمِينَ) بِالْإِشْرَاكِ وَتَكْذِيبِ مُحَمَّدٍ (وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ) ذَوَاتَ الْعَدْلِ (لِيَوْمِ الْقِيَامَةِ) أَيْ فِيهِ (فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا) مِنْ نَقْصِ حَسَنَةٍ أَوْ زِيَادَةِ سَيِّئَةٍ (وَإِنْ كَانَ) الْعَمَلُ (مِثْقَالَ) زِنَةَ (حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ أَتَيْنَا بِهَا) بِمَوْزُونِهَا (وَكَفٰى بِنَا حَاسِبِينَ) مُحْصِينَ كُلَّ شَيْءٍ (وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسٰى وَهَارُونَ الْفُرْقَانَ) أَيِ التَّوْرَاةَ الْفَارِقَةَ بَيْنَ الْحَقِّ وَالْبَاطِلِ وَالْحَلَالِ وَالْحَرَامِ (وَضِيَاءً) بِهَا (وَذِكْرًا) عظة بها (للمتقين) (الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَيْبِ) عَنِ النَّاسِ أَيْ فِي الْخَلَاءِ عَنْهُمْ (وَهُمْ مِنَ السَّاعَةِ) أَيْ أَهْوَالِهَا (مُشْفِقُونَ) خَائِفُونَ (وَهٰذَا) أَيِ الْقُرْآنُ (ذِكْرٌ مُبَارَكٌ أَنْزَلْنَاهُ أَفَأَنْتُمْ لَهُ مُنْكِرُونَ) الِاسْتِفْهَامُ فِيهِ لِلتَّوْبِيخِ

ترجمه: اې محمد ﷺ دې مسخرې کونکو ته اوایه درحمان دعذاب نه دشپې او ورځې څوک دی چه ستاسو نګرانی حفاظت کوی که په تاسو باندې عذاب نازل شو «دالله نه سوا» داسې څوک نشته، او دامخاطبین دالله پاک دعذاب نه نه ویرېږی ددې عذاب نه دمنکرکیدو په وجه بلکه داخلق دخپل رب دذکر یعنی قرآن نه اعراض کوی یعنی په دې کښې غور اوفکر نه کوی ام په دې کښې همزه دمعنی انکاری دپاره ده آیا ددوی سره زمونږ نه علاوه داسې معبودان دی کوم چه دوی «ددوی د تکلیف» عذاب نه بچ کولې شی ؟ یعنی آیاددوی سره زمونږ نه علاوه داسې ذات دې کوم چه دوی دعذاب نه بچ کولې شی هیڅوک نشته هغه معبودان «باطله» خپل حفاظت نه شی کولې نو هغوی به ددوی څه حفاظت اوکړی او نه هغوی کافران زمونږ دعذاب نه بچ کولې شی صحبک الله وئیلې شی یعنی الله پاک دې ستاحفاظت اوکړی او تا دې د(آفاتو) نه بچ کړی مونږ دوی ته او ددوی پلار نیکه ته په دوی دخپلو نعمتونو په ذریعه ډیر ساز اوسامان ورکړه تردې چه «په دې حالت» کښې په دوی باندې اوږده زمانه تیره شوه پس ددې وجې نه هغوی په دهوکه کښې پریوتل آیا داخلق نه ګوری چه مونږ ددوی دزمکې قصد کوؤ یعنی «ددوی» زمکه دڅلورو طرفونونه کموؤ حضور ﷺ ته غلبه ورکولو سره نو آیا داخلق به غالب راشی نه بلکه حضور ﷺ اوده ملګری «به غالب راځی» ته دوی ته اوایه زه خو تاسو دالله پاک دطرف نه نه چه دخپل طرف نه دوحی په ذریعه خبروم او داکانړه خبره نه اوری کله چه دوی خبرولې شی دواړه همزې محقق کولو سره اودثانی همزې دتسهیل سره د همزه او د ی په مینځ کښې یعنی د کنړو په شان په اوریدلې شوې تنبیه باندې د عمل نه کولو په وجه «لکه چه په حقیقت کښې دا کانړه دی» که دوی ته ستا درب دعذاب یوه سپکه شان جټکه اولګی نو چغې به وهی هائی زمونږ کمبختی یعنی زمونږ هلاکت واقعی مونږ دشرک او د محمد ﷺ دتکذیب په وجه خطاکار وو او مونږ به دقیامت په ورځ صحیح تله دعدل قائم کړو نو په چاباندې به بالکل ظلم نه شی کولې په نیکو کښې کمې یا په ګناهونو کښې زیاتوالې کولو سره او که عمل د خشخش (اوری) د دانې برابر هم وی نو هم مونږ به هغه یعنی وزن ته حاضر کړو او مونږ دهر څیز حساب اخستونکی کافی یو اوداخبره بالکل رښتیا ده چه مونږ موسی اوهارون ته فرقان یعنی تورات دحق اوباطل او د حلال او حرام په مینځ کښې فرق کونکې او هغه پرهیزګارو دپاره دنصیحت کتاب ورکړې وو چه دخپل رب نه ویرېږی اوهغه خلق دقیامت یعنی دهغې دسختو نه هم یرېږی او داقرآن هم دډیرې فائدې نصیحت دې کوم چه مونږ نازل کړې دې بیا هم تاسو دهغې منکر یئ ؟ په دې کښې استفهام دتوبیخ دپاره دې.

........

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله: يكلئكم**: (ف، س) مضارع واحد مذكر غائب مصدر كَلْأً كلأً كلاءة حفاظت كول.

**قوله: آلهة تمنعهم من دوننا**: من دوننا، دآلهة صفت دې په كلام كښې تقديم اوتاخير دې، تقدير دعبارت دادې آلهة من دوننا تمنعهم.

**قوله: مما يسوء هم**: دهغه څیزونونه کوم چه دوی ته تکلیف رسوی **لايصحبون** (س) جمع مذكر غائب منفي مجهول، ددوی ملګرتیا به نه شي کولې، هغوی به بچ نه کړې شي.

**قوله: الموازين القسط**: موازين ئې جمع، دبيان عظمت دپاره راوړې ده ګنې ميزان به يووی يا د مايوزون په اعتبار سره ئې جمع راوړې ده يعنې چونكه ډيراعمال اوداعمالو انواع كثيره به تللې شی ددې وجې نه ئې جمع راوړې ده قسط ئې مفرد راوړې دې حالانكه دموازين صفت دې ددې وجه داده چه القسط مصدردې او دمصدر اطلاق په واحد اوجمع يو شان كيږي، مفسر علام د ليوم القيامة تفسير په فيه سره كولو كښې اشاره اوكړه چه لام په معنى دفيه دې.

**قوله: شيئاً**: يا مفعول ثانى دې يا دتظلم دمفعول مطلق صفت دې اى لا تظلم ظلما شيئا.

**قوله: وان كان**: نه پس العمل مقدر منلو سره ئې اشاره اوكړه چه كان ناقصه دې په دې كښې ضمير دې چه دكان اسم دې او هغه عمل دې او مثقال دهغې خبر دې او نافع مثقال په رفع سره وئيلې دی په دې صورت كښې به كان تامه وی.

**قوله: بالغيب**: ديخشون دضمير نه حال دې اى يخشون ربهم غائبين عن الناس يعنى چه كله هغوى په تنهائى كښې وى نوپه هغه وخت هم دالله پاک نه ويرېږي من الساعة نه پس اهوالها مقدر منلو سره ئې اشاره اوكړه چه مضاف محذوف دې اودقيامت نه دويرېدو مطلب دهغې دسختو نه ويرېدل دی.

**[ایاتوله:٥١-٦٧]**

(وَلَقَدْ آتَيْنَا إِبْرَاهِيمَ رُشْدَهُ مِنْ قَبْلُ) أي هُدَاهُ قَبْلَ بُلُوغِهِ (وَكُنَّا بِهِ عَالِمِينَ) بِأَنَّهُ أهلٌ لِذَلِكَ (إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِ مَا هَذِهِ التَّمَاثِيلُ) الأصنام (الَّتِي أَنْتُمْ لَهَا عَاكِفُونَ) أي عَلَى عِبَادَتِهَا مُقِيمُونَ (قَالُوا وَجَدْنَا آبَاءَنَا لَهَا عَابِدِينَ) فَاقْتَدَيْنَا بِهِمْ (قَالَ) لَهُمْ (لَقَدْ كُنْتُمْ أَنْتُمْ وَآبَاؤُكُمْ) بِعِبَادَتِهَا (فِي ضَلَالٍ مُبِينٍ) بَيِّنٍ (قَالُوا أَجِئْتَنَا بِالْحَقِّ) فِي قَوْلِكَ هَذَا (أَمْ أَنْتَ مِنَ اللَّاعِبِينَ) فِيهِ (قَالَ بَلْ رَبُّكُمْ) المُسْتَحِقُّ لِلْعِبَادَةِ (رَبُّ) مَالِكُ (السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ الَّذِي فَطَرَهُنَّ) خَلَقَهُنَّ عَلَى غَيْرِ مِثَالٍ سَبَقَ (وَأَنَا عَلَى ذَلِكُمْ) الَّذِي قُلْتُهُ (مِنَ الشَّاهِدِينَ) بِهِ (وَتَاللهِ لَأَكِيدَنَّ أَصْنَامَكُمْ بَعْدَ أَنْ تُوَلُّوا مُدْبِرِينَ) (فَجَعَلَهُمْ) بَعْدَ ذَهَابِهِمْ إِلَى مُجْتَمَعِهِمْ فِي يَوْمِ عِيدٍ لَهُمْ (جُذَاذًا) بِضَمِّ الْجِيمِ وَكَسْرِهَا فُتَاتًا بِفَأْسٍ (إِلَّا كَبِيرًا لَهُمْ) عَلَّقَ الْفَأْسَ فِي عُنُقِهِ (لَعَلَّهُمْ إِلَيْهِ)

اي الى الكبير ﴿يَرْجِعُونَ﴾ فيرون ما فعل بغيره ﴿قَالُوا﴾ بعد رجوعهم ورؤيتهم ما فعل ﴿مَنْ فَعَلَ هَٰذَا بِآلِهَتِنَا إِنَّهُ لَمِنَ الظَّالِمِينَ﴾ فيه ﴿قَالُوا﴾ اي بعضهم لبعض ﴿سَمِعْنَا فَتًى يَذْكُرُهُمْ﴾ اي يعيبهم ﴿يُقَالُ لَهُ إِبْرَاهِيمُ﴾ ﴿قَالُوا فَأْتُوا بِهِ عَلَىٰ أَعْيُنِ النَّاسِ﴾ اي ظاهرا ﴿لَعَلَّهُمْ يَشْهَدُونَ﴾ عليه انه الفاعل ﴿قَالُوا﴾ له بعد اتيانه ﴿أَأَنتَ﴾ بتحقيق الهمزتين وابدال الثانية الفا وتسهيلها وادخال الف بين المسهلة والاخرى وتركه ﴿فَعَلْتَ هَٰذَا بِآلِهَتِنَا يَا إِبْرَاهِيمُ﴾ ﴿قَالَ﴾ ساكتا عن فعله ﴿بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ هَٰذَا فَاسْأَلُوهُمْ﴾ عن فاعله ﴿إِن كَانُوا يَنطِقُونَ﴾ فيه تقديم جواب الشرط وفيما قبله تعريض لهم بان الصنم المعلوم عجزه عن الفعل لا يكون الها ﴿فَرَجَعُوا إِلَىٰ أَنفُسِهِمْ﴾ بالتفكر ﴿فَقَالُوا﴾ لانفسهم ﴿إِنَّكُمْ أَنتُمُ الظَّالِمُونَ﴾ بعبادتكم من لا ينطق ﴿ثُمَّ نُكِسُوا﴾ من الله ﴿عَلَىٰ رُءُوسِهِمْ﴾ اي ردوا الى كفرهم وقالوا والله ﴿لَقَدْ عَلِمْتَ مَا هَٰؤُلَاءِ يَنطِقُونَ﴾ اي فكيف تأمرنا بسؤالهم ﴿قَالَ أَفَتَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ﴾ اي بدله ﴿مَا لَا يَنفَعُكُمْ شَيْئًا﴾ من رزق وغيره ﴿وَلَا يَضُرُّكُمْ﴾ شيئا اذا لم تعبدوه ﴿أُفٍّ﴾ بكسر الفاء وفتحها بمعنى مصدر اي نتنا وقبحا ﴿لَّكُمْ وَلِمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ﴾ اي غيره ﴿أَفَلَا تَعْقِلُونَ﴾ ان هذه الاصنام لا تستحق العبادة ولا تصلح لها وانما يستحقها الله تعالى

**ترجمه:** او مونږ مخکښې ابراهیم ته یعنی بلوغ ته درسیدو نه مخکښې پوهه ورکړې وه او مونږ ددې خبرې نه ښه خبر وو چه هغه ددې لائق دې کله چه ده خپل پلار او خپل قوم ته اوئیل دابتان دکومو چه تاسو منجوران جوړ شوی یئی څه دی؟ یعنی ددې په بندګئ کښې لګیدلی یئ نو تولو جواب ورکړو مونږ خپل پلار نیکه د دې په عبادت کولو موندلی دی نو مونږ دهغوی اقتداء اختیار کړې ده نو ابراهیم علیه السلام هغوی ته اوئیل بیا خو تاسو او ستاسو پلاران ددې دبندګئ کولو په وجه په ښکاره ګمراهۍ کښې یئ،نو وې وئیل آیا تاسو په دې خپل قول کښې مونږ ته رښتیا خبره کوئ ؟یا په دې خبره کښې (هسې) مذاق کوئ ؟ ابراهیم علیه السلام اوفرمائیل نه ، بلکه ستاسو رب چه مستحق دعبادت دې هغه رب دې چه مالک دزمکې اواسمانونو چه هغه دا بغیر دمخکښې نمونې نه پیدا کړل او زه په هغه خبره باندې کومه چه ما وئیلې ده ګواه یم (قائل یم) او په خدائ قسم زه به ستاسو د بتانو سره ستاسو دتلو نه پس ضرور یو چال چلوم نو ددوی دخپل اختر په ورځ خپلې میلې ته دتلو نه پس دغه بتان ئې ټکړې ټکړې کړل جذاذا دجیم په ضمې او کسرې سره، په تبر سره ئې ټکړې ټکړې کړل خو یو دوی کښې غټ ئې (پرېخودو) او تبر ئې دده په څټ کښې زوړند کړو دې دپاره چه هغوی دده په طرف رجوع اوکړی ددوی دمیلې نه راواپس کیدو اودوی سره چه کوم حرکت شوې وو هغه لیدو نه پس ئې اوئیل زمونږ دمعبودانو سره داحرکت چا کړې دې په دې کښې هیڅ شک نشته چه هغه په دې معامله کښې دظالمانو نه دې نو دې خلقو په خپل مینځ کښې اوئیل مونږ یو ځوان چه ابراهیم ورته وائی ددې بتانو په تنقیص (بدئ) کولو اوریدلی دی نو هغه خلقو اوئیل نو ښه هغه دټولو خلقو په مخکښې ښکاره حاضر کړئ دې دپاره چه خلق دده په خلاف ددې خبرې ګواهی ورکړی چه هم

دا دي «دغه حرکت» کونکي نو دده دراتلو نه پس خلقو دده نه تپوس اوکړه چه آیا تا زمونږ دمعبودانو سره داحرکت کړې دې اې ابراهیمه؟ دخپل فعل نه سکوت اختیارولو سره نې اوئیل نه. بلکه ددوی دې غټ «ګرو» کړې دې ددې حرکت کونکې په باره کښې هم د دوی نه معلومات اوکړئ که دوی خبرې کولې شی؟ په دې کښې جواب دشرط مقدم دې او په ماقبل کښې دمشرکینو دپاره ددې خبرې په طرف اشاره ده چه بت دکوم چه عاجز عن الفعل کیدل معلوم اومتعین دی هغه معبود نه شی کیدې، پس داخلق «دحضرت ابراهیم علیه السلام تقریر اوریدو سره» په سوچ کښې پریوتل او په خپلو زړونو کښې نې اوئیل تاسو په حقیقت کښې ظالمان یئ دداسې خیز بندګی کوئ چه هغه خبرې هم نه شی کولې بیا ددوی کهوپړئ اولټه شوې «یعنی خپل جهل اوعناد په طرف واوختل» یعنی دخپل کفر په طرف واوختل او وې وئیل والله «اې ابراهیم» ته خو پوهیږې چه دا په خبرو کولو قادر نه دی یعنی ته بیا مونږ نه ددوی نه دسوال کولو دپاره ولې وایئ؟ نو حضرت ابراهیم علیه السلام جواب ورکړو چه آیا تاسو خدائ پریښو سره یعنی د هغه په عوض دداسې خیز عبادت کوئ چه کوم تاسو ته رزق وغیره هیڅ فائده نه شی رسولې او که تاسو د هغې عبادت اونه کړئ نو تاسو ته هیڅ نقصان نه شی رسولې هلاکت دې په تاسو باندې، دفا په فتحه اوکسره سره دمصدر په معنی کښې یعنی دتبا و قبحا «په معنی» او په هغوی باندې هم د چا چه تاسو دالله پاک نه بغیر عبادت کوئ آیا په تاسو کښې دومره عقل هم نشته؟ یعنی دابتان دعبادت مستحق نه دی او نه دمعبود جوړیدو په دوی کښې صلاحیت شته دعبادت مستحق خو الله پاک دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله: ولقد اتینا ابراهیم:** واؤ قسمیه دې ای وعزتنا وجلالنا اتینا ابراهیم رشده رشد صلاحیت، پوهه، هدایت، حسن تدبیر، من قبل مضاف الیه محذوف دې ای قبل بلوغه، د قبله ضمیر حضرت موسی علیه السلام عیسی علیه السلام، اوحضرت محمد ﷺ په طرف هم راجع کیدې شی، التماثیل جمع دتمثال دکانړی وغیره نه جوړشوې بت عاکفون جمع دعاکف ملازم، معتکف، منجور.

**قوله: لها عاکفون:** دعاکف صله علی راځی خو دلته لام استعمال شوې دې مفسر علام اشاره کړې ده چه لام په معنی دعلی دې او که عاکف متضمن په معنی دعابد واغستلې شی نو په هغه وخت به لام صله راوړل صحیح وی او که لام دتعدیه په ځائ داختصاص دپاره واخستلې شی نو دعاکف صله لام راوړل به هم صحیح وی لکه چه قالوا وجدنا آباءنا لها عابدین کښې دعابدین صله لام استعمال شوې ده.

**قوله: لعلهم:** کښې هم ضمیر دذوی العقول دپاره دمشرکانو دګمان په اعتبار سره استعمال شوې دې.

قوله: جذاذا: دمصدر كيدو په وجه ئې جمع رانه ورو او ځنې حضراتو جذاذ دجذاذة جمع ونيلې ده لكه زجاج چه دزجاجة جمع ده او ځنې حضراتو جذاذ مصدر په معنى دمجذوذ اخستې دې.

قوله: من فعل هذا: من مبتدأ ده او فَعَلَ هذا ددې خبردې او انه لمن الظلمين جمله مستانفه ده او داهم كيدې شي چه من موصوله دخپلې صلې سره مبتدأ او انه لمن الظلمين ددې خبر.

قوله: سمعنا فتى يذكر: سمعنا، چونكه په داسې شئ داخل دې كوم چه اوريدې نه شى (مسموع نه دې) اوهغه فتًى دې ځكه چه فتًى دليدو ځيز دې نه داوريدو په داسې صورت كښې سمع متعدى دوو مفعولو ته وى، نو دلته سمعنا متعدى دوو مفعولو ته دې مفعول اول فتًى دې او يذكرهم جمله مفعول ثانى دې، او كه سمع په شئ مسموع باندې داخل وى نو متعدى يو مفعول ته وى لكه چه ته اوئې سمعت كلام زيد.

قوله: يقال له ابراهيم: دا دفتًى صفت ثانى دې دابرهيم دمرفوع كيدو څو وجې كيدې شى اول، ديقال دنائب فاعل كيدو دوجې نه يقال له ابراهيم اى يسمى له ابراهيم په دې صورت كښې به د ابراهيم نه مراد لفظ ابراهيم وى نه مسمى ابراهيم، دويمه وجه داده چه ابراهيم دمبتدأ محذوف خبر وى اى يقال له هذا ابراهيم، يا ابراهيم مبتدأ وى اوددې خبر محذوف وى اى يقال له ابراهيم فاعل ذالك.

قوله: كبيرهم هذا: هذا د كبيرهم نه بدل دې يا صفت دې.

قوله: نكسوا على رؤسهم: دجمهورو په قراءت كښې نكسوا مبنى للمفعول دې يعنى ددوى كهوپړئ اولټه كړې شوې او داولټه كولو والا الله پاک دې، مطلب دادې چه دحضرت ابراهيم عليه السلام په تقرير سره دبتانو عاجز او بې بس كيدل په پوهه كښې راغلى وو او نزدې وه چه دحق ته رجوع اوكړى خوددوى كهوپړې تاؤ شوې چه دهغې په وجه دكفر په طرف واوختل، مفسر علام د من الله اضافه كولو سره دې قراءت ته ئې اشاره اوكړه اوپه شاذ قراءت كښې نكسوا دنون په فتحې اودكاف په تشديد سره مبنى للفاعل هم دې په دې صورت كښې به نكسوا فاعل به خپله مشركين شى او مطلب به داشى چه مشركانو دحضرت ابراهيم عليه السلام مدلل تقرير وريدو سره دشرمندګئ او د ندامت دوجې نه سرونه ښكته كړل خو دځه وخت تيريدو نه پس دكفر طرف ته واپس شول.

قوله: تالله: دا اشاره ده دې خبرې ته چه لقد علمت دقسم محذوف جواب دې.

قوله: افلا تعقلون: فا عاطفه ده معطوف عليه فعل محذوف دې په كوم باندې چه همزه داخله ده تقدير دعبارت دادې جهلتم فلا تعقلون.

[ايا تونه: ٦٨-٧٥]

﴿قَالُوا حَرِّقُوهُ﴾ أي إبراهيم ﴿وَانصُرُوا آلِهَتَكُمْ﴾ أي بتحريقه ﴿إِن كُنتُمْ فَاعِلِينَ﴾ نصرتها فجمعوا له الحطب الكثير وأضرموا النار في جميعه وأوثقوا إبراهيم وجعلوه في منجنيق ورموه في النار قال تعالى ﴿قُلْنَا يَا نَارُ كُونِي بَرْدًا وَسَلَامًا عَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ﴾ فلم تحرق منه غير وثاقه وذهبت حرارتها وبقيت إضاءتها وبقوله ﴿وَسَلَامًا﴾ سلم من الموت ببردها ﴿وَأَرَادُوا بِهِ كَيْدًا﴾ وهو التحريق ﴿فَجَعَلْنَاهُمُ الْأَخْسَرِينَ﴾ في مرادهم ﴿وَنَجَّيْنَاهُ وَلُوطًا﴾ ابن أخيه هاران من العراق ﴿إِلَى الْأَرْضِ الَّتِي بَارَكْنَا فِيهَا لِلْعَالَمِينَ﴾ بكثرة الأنهار والأشجار وهي الشام نزل إبراهيم بفلسطين ولوط بالمؤتفكة وبينهما يوم ﴿وَوَهَبْنَا لَهُ﴾ أي لإبراهيم وكان سأل ولدا كما ذكر في الصافات ﴿إِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ نَافِلَةً﴾ اي زيادة على المسؤول أو هو ولد الولد ﴿وَكُلًّا﴾ أي هو وولداه ﴿جَعَلْنَا صَالِحِينَ﴾ أنبياء ﴿وَجَعَلْنَاهُمْ أَئِمَّةً﴾ بتحقيق الهمزتين وإبدال الثانية ياء يقتدى بهم في الخير ﴿يَهْدُونَ﴾ الناس ﴿بِأَمْرِنَا﴾ إلى ديننا ﴿وَأَوْحَيْنَا إِلَيْهِمْ فِعْلَ الْخَيْرَاتِ وَإِقَامَ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءَ الزَّكَاةِ﴾ أي أن تفعل وتقام وتؤتى منهم ومن أتباعهم وحذف هاء إقامة تخفيف ﴿وَكَانُوا لَنَا عَابِدِينَ﴾ ﴿وَلُوطًا آتَيْنَاهُ حُكْمًا﴾ فصلا بين الخصوم ﴿وَعِلْمًا وَنَجَّيْنَاهُ مِنَ الْقَرْيَةِ الَّتِي كَانَت تَّعْمَلُ﴾ أي أهلها الأعمال ﴿الْخَبَائِثَ﴾ من اللواط والرمي بالبندق واللعب بالطيور وغير ذلك ﴿إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمَ سَوْءٍ﴾ مصدر ساءه نقيض سره ﴿فَاسِقِينَ﴾ ﴿وَأَدْخَلْنَاهُ فِي رَحْمَتِنَا﴾ بأن أنجيناه من قومه ﴿إِنَّهُ مِنَ الصَّالِحِينَ﴾

ترجمه: وې ويئيل دې يعنى ابراهيم اوسوزوئ او دې سوزولو سره د خپلو معبودانو مدداوکړئ که تاسو ددوى مدد کويئ پس هغه خلقو دابرهيم عليه السلام دسوزولو دپاره ډير لرګى راجمع کړل اوپه دې تولو لرګو ئى اور بل کړو او ابراهيم عليه السلام ئى په رسو باندې مضبوط اوتړلو او هغه ئى په يو تال يا مجونغره کښې کښيولو اوپه اورکښې ئى اوغورزولو مونږ اورته حکم اوکړو اې اوره يخ شه اودابراهيم دپاره دسلامتئ والاشيز جورشه پس اور دبراهيم عليه السلام د رسو نه علاوه هيڅ څيزاونه سوزولو او داور ګرم والې ختم شو صرف دهغې رڼا پاتې شوه، اودالله پاک دسلامًا ونيلودوجې نه حضرت ابراهيم عليه السلام ديخنئ د وجې نه دمرکيدو نه محفوظ شو اوهغه خلقود ابراهيم عليه السلام سره دبدخواهئ اراده کړې وه اوهغه سوزول وو پس مونږ هغوى په خپل مقصد کښې ناکام کړل اومونږ ابراهيم اولوط کوم چه دده درور هاران خوئ وودعراق دزمکې نه داسې زمکې (ملک) په طرف اوخکل بچ کړل چه په هغې کښې مونږ د دنيا والو د پاره برکتونه ايخى دى داونو اونهرونو ددير والې په ذريعه او هغه زمکه دشام ده، حضرت ابراهيم عليه السلام په فلسطين کښې استوګن (ديره) شو او لوط عليه السلام په مؤتفکه کښې اوددې دوارو ځايونو په مينځ کښې ديوې ورځې مسافت وو اومونږ ده ته يعنى ابراهيم عليه السلام ته حال دادې چه هغه ديو هلک دعا کړې وه، لکه چه په سورت صافات کښې ذکر شوى دى، اسحق ورکړو اويعقوب زياتى په هغه باندې يعنى دمطلوب نه زياتى يا د نافلة نه

مراد ولد الولد (نمسی) دي اومونږ دې ټولو(لره یعني) ابراهیم؟ او دده خوي او نمسی په صالحینو یعنی په انبیاؤ کښې شامل کړل اومونږدا ټول پیشوایان جوړ کړل ائمة ددوارو همزو دتحقیق سره او دویمه همزه په یا سره بدلولو سره، چه ددوی په خیر کښې اقتداء اوکړې شي. دې دپاره چه زمونږ په حکم سره دخلقو زمونږ ددین په طرف رهنمائی اوکړی اومونږ ددوی په طرف دنیکو کارونو د کولواو دمونځ قائم ساتلو او زکوة د ادا کولو وحی اولیږله یعنی دادرې واړه اعمال عمل دخیر، عمل دصلوة، عمل دزکوة دا حضرات هم سر ته اورسوی اوددوی متبعین ئی هم سر ته اورسوی اوداقامة هاء تخفیفًا حذف کړې شوې ده اوهغه ټول زمونږ عبادت کونکی بندګان ووا و مونږ لوط ته (هم) د جهګړه کونکو په مینځ کښې دفیصلې کولو دپاره حکم ورکړو او علم مو ورکړو، اومونږ هغه د هغه کلی یعنی د هغه کلی والو نه ئې چه ګنده کارونه به ئې کولو یعنی لواطت او (مسافر) په کانړو ویشتل او چرګان جنګول وغیره وغیره اووهغه بد فاسق خلق سوء مصدر دې دساء د سره نقیض دې اومونږ لوط په خپل رحمت کښې داخل کړو په دې طریقې سره چه مونږ ده ته دده د قوم نه نجات ورکړو بیشکه هغه دنیکانو خلقو نه وو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** ان کنتم غافلین: دنصرتها اضافه کولو سره ئې اشاره اوکړه چه دغافلین مفعول محذوف دې، ان کنتم داشرط دې کوم چه دجزا نه مستغنی دې په ماقبل باندې اعتماد کولو د وجې کوني بردا ای ذات برد سلاما دفعل مقدرمفعول مطلق دې ای سلمنا سلاما او سلاما نه مخکښې هم مضاف محذوف کیدې شی ای ذات سلام، بردا وسلاما کښې ئې مضاف حذف کړو او مضاف الیه ئی ددې قائم مقام کړو.

**قوله:** من العراق: آخرج د فعل محذوف سره متعلق دې نافلة په وزن د عافیة مصدر دې دا دیعقوب نه حال دې او د وهبنا دفعل مفعول مطلق بغیر دلفظه هم کیدې شی دائمة په دویمه همزه کښې دجمهورو په نزد تسهیل دې اګرچه ابدال هم جائزدې، مفسر علام دفعل الخیرات تفسیر په ان تفعل وغیره سره کولو کښې اشاره اوکړه چه اصل ترکیب ان تفعل الخیرات وان تقام الصلوة وان تؤتی الزکوة دې ځکه چه موحی (ما امربه) صیغه دامر په ذریعه وی نه دمصدر په ذریعه اقام الصلوة د اقامة الصلوة په ځای ئې اقام الصلوة اوفرمائیلو تاء مدوره ئی تخفیفًا حذف کړه.

**قوله:** لوطاً: دفعل محذوف دوجې نه منصوب دې او دمااضمره عامله علی شریطة التفسیر دقبیلې نه دې تقدیر د عبارت دادې آتینا لوطا آتیناه. من القریة ددې ښار نوم سدوم وو کوم چه په موتفکه کښې لویه آبادی وه.

[ایاتو له: ۷۶-۸۲]

(وَ) اذْكُرْ (نُوحًا) وَمَا بَعْده بَدَل مِنْهُ (إِذْ نَادَى) دَعَا عَلَى قَوْمه بِقَوْلِهِ (رَبِّ لَا تَذَرْ) اِلَخْ (مِنْ قَبْلُ) أَيْ قَبْل إِبْرَاهِيم وَلُوط (فَاسْتَجَبْنَا لَهُ فَنَجَّيْنَاهُ وَأَهْلَهُ) الَّذِينَ فِي سَفِينَته (مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيمِ) أَيْ الْغَرَق وَتَكْذِيب قَوْمه لَهُ (وَنَصَرْنَاهُ) مَنَعْنَاهُ (مِنَ الْقَوْمِ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا) الدَّالَّة عَلَى رِسَالَته أَنْ لَا يَصِلُوا إِلَيْهِ بِسُوء (إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمَ سَوْءٍ فَأَغْرَقْنَاهُمْ أَجْمَعِينَ) (وَ) اذْكُرْ (دَاوُدَ وَسُلَيْمَانَ) أَيْ قِصَّتهمَا وَيُبْدَل مِنْهُمَا (إِذْ يَحْكُمَانِ فِي الْحَرْثِ) هُوَ زَرْع أَوْ كَرْم (إِذْ نَفَشَتْ فِيهِ غَنَمُ الْقَوْمِ) أَيْ رَعَتْهُ لَيْلًا بِلَا رَاعٍ بِأَنْ انْفَلَتَتْ (وَكُنَّا لِحُكْمِهِمْ شَاهِدِينَ) فِيهِ اسْتِعْمَال ضَمِير الْجَمْع لِاثْنَيْنِ قَالَ دَاوُد لِصَاحِبِ الْحَرْث رِقَاب الْغَنَم وَقَالَ سُلَيْمَان يَنْتَفِع بِدَرِّهَا وَنَسْلهَا وَصُوفهَا إِلَى أَنْ يَعُود الْحَرْث كَمَا كَانَ بِإِصْلَاحِ صَاحِبهَا فَيَرُدّهَا إِلَيْهِ (فَفَهَّمْنَاهَا) أَيْ الْحُكُومَة (سُلَيْمَانَ) وَحُكْمهمَا بِاجْتِهَادٍ وَرَجَعَ دَاوُد إِلَى سُلَيْمَان وَقِيلَ بِوَحْيٍ وَالثَّانِي نَاسِخ لِلْأَوَّلِ (وَكُلًّا) مِنْهُمَا (آتَيْنَا) هُ (حُكْمًا) نُبُوَّة (وَعِلْمًا) بِأُمُورِ الدِّين (وَسَخَّرْنَا مَعَ دَاوُدَ الْجِبَالَ يُسَبِّحْنَ وَالطَّيْرَ) كَذَلِكَ سُخِّرَا لِلتَّسْبِيحِ مَعَهُ لِأَمْرِهِ بِهِ إِذَا وَجَدَ فَتْرَة لِيَنْشَط لَهُ (وَكُنَّا فَاعِلِينَ) تَسْخِير تَسْبِيحهمَا مَعَهُ وَإِنْ كَانَ عَجَبًا عِنْدكُمْ أَيْ مُجَاوَبَته لِلسَّيِّد دَاوُد (وَعَلَّمْنَاهُ صَنْعَةَ لَبُوسٍ) وَهِيَ الدِّرْع لِأَنَّهَا تُلْبَس وَهُوَ أَوَّل مَنْ صَنَعَهَا وَكَانَ قَبْلهَا صَفَائِح (لَكُمْ) فِي جُمْلَة النَّاس (لِتُحْصِنَكُمْ) بِالنُّونِ لِلَّهِ وَبِالتَّحْتَانِيَّةِ لِدَاوُد وَبِالْفَوْقَانِيَّةِ لِلَّبُوسِ (مِنْ بَأْسِكُمْ) حَرْبكُمْ مَعَ أَعْدَائِكُمْ (فَهَلْ أَنْتُمْ) يَا أَهْل مَكَّة (شَاكِرُونَ) نِعَمِي بِتَصْدِيقِ الرَّسُول أَيْ اشْكُرُونِي بِذَلِكَ (وَ) سَخَّرْنَا (لِسُلَيْمَانَ الرِّيحَ عَاصِفَةً) وَفِي آيَة أُخْرَى رُخَاء أَيْ شَدِيدَة الْهُبُوب وَخَفِيفَته حَسَب إِرَادَته (تَجْرِي بِأَمْرِهِ إِلَى الْأَرْضِ الَّتِي بَارَكْنَا فِيهَا) وَهِيَ الشَّام (وَكُنَّا بِكُلِّ شَيْءٍ عَالِمِينَ) مِنْ ذَلِكَ عَلِمَ اللّٰه تَعَالَى بِأَنَّ مَا يُعْطِيهِ سُلَيْمَان يَدْعُوهُ إِلَى الْخُضُوع لِرَبِّهِ فَفَعَلَهُ تَعَالَى عَلَى مُقْتَضَى عِلْمه (وَ) سَخَّرْنَا (مِنَ الشَّيَاطِينِ مَنْ يَغُوصُونَ لَهُ) يَدْخُلُونَ فِي الْبَحْر فَيُخْرِجُونَ مِنْهُ الْجَوَاهِر لِسُلَيْمَان (وَيَعْمَلُونَ عَمَلًا دُونَ ذَلِكَ) أَيْ سِوَى الْغَوْص مِنَ الْبِنَاء وَغَيْره (وَكُنَّا لَهُمْ حَافِظِينَ) مِنْ أَنْ يُفْسِدُوا مَا عَمِلُوا لِأَنَّهُمْ كَانُوا إِذَا فَرَغُوا مِنْ عَمَل قَبْل اللَّيْل أَفْسَدُوهُ إِنْ لَمْ يَشْتَغِلُوا بِغَيْرِه

ترجمه: اوياد كړه دنوح ؟ هغه وخت كله چه هغه خپل قوم ته دابراهيم ؟ او لوط ؟ نه مخكښې د خپل قول رب لاتذرالخ په ذريعه بد دعا اوكړه نو مونږ دهغه دعا قبوله كړه نومونږ هغه اودهغه اهل كوم چه د هغه سره په كشتئ كښې(سواره) شول دكرب عظيم يعنى دغرقيدلو نه اودهغه دقوم د هغه دتكذيب كولو نه نجات وركړو اومونږ دهغه مدد اوكړو يعنى دهغه حفاظت مو اوكړو دهغه قوم نه چه زمونږ دآيتونو تكذيب ئې اوكړو كومو چه دهغه په رسالت باندې دلالت كولو دې دپاره چه هغه ته تكليف اونه رسوى يقينا هغه بد خلق وو بس مونږ هغه ټول غرق كړل اود داؤد اوسليمان يعنى دهغوى دقصې ذكر اوكړه او وذاكر داؤد وسليمان نه اذيحكمان فى الحرث بدل دې كله چه هغه دپټى په باره كښې فيصله كوله هغه پټى خو يا

دغلې وو اويا دانگورو کله چه ديو قوم چيلې په هغې کښې ګډې شوې يعنى د شپونکى نه بغير دشپې خريدلې وې په داسې طريقه چه په دې کښې خورې شوې اومونږ دهغه فيصله کله په دې کښې ددوو دپاره دجمعې ضمير استعمال شوې دې داؤد ؟ دپټى والا دپاره دنقصان په عوض دچيلو فيصله اوکړه، اوحضرت سليمان ؟ اوفرمائيل چه دپټې والا دې دچيلو پئ اوددې نسل او ددې وړئ نه فائده اخلى ترهغې چه پټى دچيلووالا په اصلاح سره خپل مخکينې حالت ته واپس شى نو دپټې مالک دې چيلې دچيلو مالک ته واپس کړى، نومونږ سليمان ؟ ته دفيصلې پوهه ورکړه او ددوارو فيصله په اجتهاد سره وه او حضرت داؤد ؟ دحضرت سليمان ؟ دفيصلې په طرف رجوع اوفرمائيله او وئيلې شوى دى چه ددوارو فيصلې دوحى په ذريعه وې خو دويمه فيصله داولې دپاره ناسخه ده، اومونږ دوارو ته حکم يعنى نبوت او دامورو ددين علم ورکړې ووا و مونږ غرونه د داؤد ؟ تابع کړى وو چه هغې به تسبيح کوله او دارنګې مارغان هم د داؤد ؟ تابع کړى وو يعنى دهغه دحکم تابع کړى مو وو چه کله به هغوى سستى محسوس کړه نو هغوى ته به ئې دتسبيح حکم کولودداؤد ؟ سره د دواړه دتسبيح کولو مسخر کونکى مونږ وو اګر که د داؤد ؟ په حکم باندې (ددې دوارو) ليبک وئيل ستاسو په نزد عجيبه ووا و مونږ ستاسو دنفع دپاره په نورو خلقو کښې داؤد ؟ ته دمخصوص لباس جوړولو هنر اوخودو اوهغه زغره وه (هغې ته لبوس وئيل کيږى) څکه چه هغه اغوستلې کيږى، حضرت داؤد ؟ اول سړې دې چه چازغره جوړه کړې ده اوددې نه مخکښې داوسپينى دپليټونو رواج وو دې دپاره چه مونږ تاسو ددشمن سره په جنګ کښې ديوبل د زد نه بچ کړو لنحصنکم که په نون سره وى نو د لنحصنکم ضمير دالله پاک په طرف راجع دې او که په ياې تختانيه سره وى نو ضمير دحضرت داؤد ؟ په طرف راجع دې او که په تاې فوقانيه سره وى نو ضمير دلبوس په طرف راجع دې،نو اې اهل مکه آيا تاسو زما دنعمتونو ،رسولانو تصديق کوئ شکر ګذار جوړيږئ يعنى درسولانو تصديق اوکړئ اوزما شکر ادا کړئ او مونږ تابع کړه د سليمان ؟ تيزه هوا او په بل آيت کښې رخاء دې يعنى نرمه هوا يعنى تيز رفتاره او په مزه تلووالا (دواړه قسمه تابع کړې) دده دارادې مطابق هغه دده مونږ حکم سره دهغې زمکې په طرف تله چه په هغې کښې مونږ برکت ايښې وو اوهغه شام دې اودهر څيز نه خبريو اواې اهل مکه ! په دې تولو څيزونو کښې دالله پاک دا هم علم دې چه هغه سليمان ؟ ته کوم څه ورکوى هغه به سليمان ؟ ته دخپل رب په حضور کښې دخشوع اوحضوع دعوت ورکوى نو الله پاک دخپل علم مقتضا مطابق عمل اوکړو او مونږ څنې داسې شيطانان تابع کړى ووچه سليمان دپاره به ئې په درياب کښې غوپې وهلې اوددرياب نه به ئې حضرت سليمان ؟ د پاره جواهرات راوخکل اوددې يعنى غوطه خورې نه علاوه دتعمير وغيره کار ئې هم کولو او

ددې نگرانی کونکی مونږوو ددې خبزې نه چه کوم څه هغوی تیار کړی هغه خراب نه کړی، څکه چه دهغوی دامعمول ووچه کله به هغوی دشپې دکار کولو نه فارغ شول نو که په نورو کارونو کښې به مشغول نه کړې شو نو چه کوم به کړې شوې کار وو هغه به ئې خرابولو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** نوحاً: ددې د منصوب کیدو دوه وجې کیدې شی ① ددې عطف په لوطا باندې وی په دې صورت کښې به ددې عامل ناصب هم هغه وی کوم چه دلوطا دې اوهغه آتینا محذوف دې چه دهغه تفسیر آتیناه مذکور کوی اودارنګې به داؤدوسلمان کښې هم وی او تقدیر دعبارت به داشی ونوحاآتیناه حکماوداؤدوسلمان آتیناهماحکما په دې صورت کښې اذ نادی نوحا نه بدل الاشتما ل وی ② اذکر فعل محذوف ددې ناصب وی، لکه چه صاحب دجلالین اشاره کړې ده نوحا نه مخکښې مضاف محذوف دې ای اذکر قصته په دې صورت کښې به اذنادی د مضاف محذوف دوجې نه منصوب وی ای خبرهم الواقع فی وقت کان کیت وکیت.

**قوله:** من قبل: ای من قبل هؤلاء المذکورین،حضرت نوح ؟ دڅلویښتو کالو په عمر کښې مبعوث شوې ووا و تر نهه نیم سوو کالو پورې ئې قوم ته تبلیغ اوکړو او دطوفان نه پس شپیته (۶۰) کالوپورې ژوندې وو،په دې حساب سره د هغوی عمر مبارک یو زر پنځوس کاله (۱۰۵۰) شو اذنادی د نوحا نه بدل الاشتمال دې دنادی تفسیرئی په دعاعلی قوم سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چه نادی په معنیٰ د دعاعلیه دې چه دبدعا دپاره مستعمل دې.

**قوله:** ونصرناه: د دې تفسیرئی په منعناه سره کولو کښې اشاره اوکړه چه نصر ،دمنع معنی ته متضمن دې چه دهغې دوجې نه ددې په صله کښې من راوړل صحیح دی ګنی دنصر صله علی راځی.

**قوله:** ان لا یصل الیه: ای لئلا یصل الیه بسوء دا دمنعناه علت دې و اذکر داؤد وسلیمان حضرت داؤد ؟ سل ۱۰۰ کاله ژوندې وو، دحضرت داؤد اوموسی ؟ په مینځ کښې پنځه سوه یو کم اویا (۵۶۹) کاله وقفه وه، اوحضرت سلیمان ؟ پنځه سوه یو کم شپیته (۵۵۹) ژوندې ووا و دحضرت سلیمان اوحضرت محمد ؟ په مینځ کښې یو زر اووه سوه (۱۷۰۰) کاله فاصله ده . (جمل)

**قوله:** زرع: دغلې پټې کرم دانګور پټې.

**قوله:** نفشت: النفش الرعی باللیل بلا راع بغیر دشپونکی نه دچیلو په پټی کښې په څریدو فصل خرابول بابه (ض، ن، س) او همل وتیلې شی دورځې بغیر دشپونکی په پټی کښې څریدل او فصل خرابول، لحکمهم کښې دتثینې په ځای دجمعې ضمیر یا خو مجازا

استعمال شوې دې یا اقل د جمعې په طور باندې رقاب الغنم ای عوضا عما فات من حرثه

قوله: یسبحن. دالجبال نه حال دې ای مسبحة او ځنې حضراتو جمله مستانفه هم وئیلې ده لکه چه یو سائل سوال اوکړو کیف سخرهن؟ فقال یسبحن.

قوله: والطیر. الجبال باندې دعطف کیدو دوجې نه هم منصوب کیدې شي او دمفعول معه دوجې نه هم، ځنې قرآء تونو کښې والطیر مرفوع هم دې، په دې صورت کښې به یا خو دا مبتدا وی اوددې خبر به محذوف وی ای والطیر مسخرات ایضایا به دیسبحن په ضمیر باندې عطف وی خو په دې صورت کښې به دضمیر منفصل په ذریعه تاکید یا فصل ضروری وی خوداد بصرینو په نزد دی دکوفینو په نزد باندې ضروری نه دی

قوله: لامره به: مصدر دخپل فاعل په طرف مضاف دې او مفعول محذوف دې ای لامرداؤد لهما به ای بالتسبیح اذا وجد داؤد فترة یعنی داؤد به چه کله په ذکر اوتسبیح کښې سستی محسوس کړه نو غرونو اومارغانو ته به ئې دتسبیح کولو حکم فرمایلو دې دپاره چه دذکر او تسبیح فضا قائمه شي چستي پیدا شي او سستي ختمه شي صفائح جمع دصفیحة هر پلن څیز د کاڼړی وی یاداوسپینې لکم دعلمنا متعلق دې اودکائن محذوف سره متعلق دلبوس صفت هم کیدې شي ای لبوس کائن لکم په اول صورت کښې به لام دتعلیل دپاره شي ای علمناه لاجلکم او لیحصنکم به په اعاده دجار سره بدل وی ای لکم لا حصانکم او په دویم صورت کښې به دعلمنا سره متعلق وی.

قوله: فی جملة الناس أی مع جملة الناس : په من جملة الناس سره ددې شبهې جواب دې چه د لکم مخاطب اهل مکه دی حالانکه اهل مکه دحضرت داؤد علیه السلام په زمانه کښې موجود هم نه وو؟ ددې جواب دادې چه دا داسې نعمت دې چه دا د نورو خلقو سره سره دهغوی نه روسته اهل مکه ته هم اورسیدلو.

قوله: بحسب ارادته : ددې عبارت داضافې مقصد دیو سوال جواب دې سوال دادې چه دلته دریح صفت عاصفة راوړلې شوې دې چه معنی ئې ده تیزه هوااوپه بل آیت کښې درخاء لفظ دې، چه معنی ئې ده نرمه هوا، په دواړو کښې تنافی اوتضاد معلومیږی؟ دجواب خلاصه داده چه دهوا سختوالې اونرموالې به دحضرت سلیمان د ارادې مطابق ووځنګه به چه هغوی حکم کولو هغسې به چلیده. .

قوله: من ذالك علیه تعالی: دا خبر مقدم دې اوعلمه بان مایعطیه الخ مبتدا مؤخر ده.

قوله: من یغوصون له: من موصوله اوموصوفه دواړه کیدې شی او الریح باندې دعطف دوجې نه به جمله محلا منصوب وی ای سخرناله الریح عاصفة ومن یغوصون له اویغوصون جمع راوړل دمن دمعنی درعایت دوجې نه دی.

[آيات قوله: ٨٣-٩٣]

(و) اذكر (أيوب) ويبدل منه (إذ نادى ربه) لما ابتلي بفقد جميع ماله وولده وتمزيق جسده وهجر جميع الناس له إلا زوجته سنين ثلاثا أو سبعا أو ثماني عشرة وضيق عيشه (أني) بفتح الهمزة بتقدير الباء (مسني الضر) أي الشدة (وأنت أرحم الراحمين) (فاستجبنا له) نداءه (فكشفنا ما به من ضر وآتيناه أهله) أولاده الذكور والإناث بأن أحيوا له وكل من الصنفين ثلاث أو سبع (ومثلهم معهم) من زوجته وزيد في شبابها وكان له أندر للقمح وأندر للشعير فبعث الله سحابتين أفرغت إحداهما على أندر القمح الذهب وأفرغت الأخرى على أندر الشعير الورق حتى فاض (رحمة) مفعول له (من عندنا) صفة (وذكرى للعابدين) ليصبروا فيثابوا (و) اذكر (إسماعيل وإدريس وذا الكفل كل من الصابرين) على طاعة الله وعن معاصيه (وأدخلناهم في رحمتنا) من النبوة (إنهم من الصالحين) لها وسمي ذا الكفل لأنه تكفل بصيام جميع نهاره وقيام جميع ليله وأن يقضي بين الناس ولا يغضب فوفى بذلك وقيل لم يكن نبيا (و) اذكر (ذا النون) صاحب الحوت وهو يونس بن متى ويبدل منه (إذ ذهب مغاضبا) لقومه أي غضبان عليهم مما قاسى منهم ولم يؤذن له في ذلك (فظن أن لن نقدر عليه) أي نقضي عليه بما قضيناه من حبسه في بطن الحوت أو نضيق عليه بذلك (فنادى في الظلمات) ظلمة الليل وظلمة البحر وظلمة بطن الحوت (أن) أي بأن (لا إله إلا أنت سبحانك إني كنت من الظالمين) في ذهابي من بين قومي بلا إذن (فاستجبنا له ونجيناه من الغم) بتلك الكلمات (وكذلك) كما نجيناه (ننجي المؤمنين) من كربهم إذا استغاثوا بنا داعين (و) اذكر (زكريا) ويبدل منه (إذ نادى ربه) بقوله (رب لا تذرني فردا) أي بلا ولد يرثني (وأنت خير الوارثين) الباقي بعد فناء خلقك (فاستجبنا له) نداءه (ووهبنا له يحيى) ولدا (وأصلحنا له زوجه) فأتت بالولد بعد عقمها (إنهم) أي من ذكر من الأنبياء (كانوا يسارعون) يبادرون (في الخيرات) الطاعات (ويدعوننا رغبا) في رحمتنا (ورهبا) من عذابنا (وكانوا لنا خاشعين) متواضعين في عبادتهم (و) اذكر مريم (التي أحصنت فرجها) حفظته من أن ينال (فنفخنا فيها من روحنا) أي جبريل حيث نفخ في جيب درعها فحملت بعيسى (وجعلناها وابنها آية للعالمين) الإنس والجن والملائكة حيث ولدته من غير فحل (إن هذه) أي ملة الإسلام (أمتكم) دينكم أيها المخاطبون أي يجب أن تكونوا عليها (أمة واحدة) حال لازمة (وأنا ربكم فاعبدون) وحدون (وتقطعوا) أي بعض المخاطبين (أمرهم بينهم) أي تفرقوا أمر دينهم متخالفين فيه وهم طوائف اليهود والنصارى قال تعالى (كل إلينا راجعون) أي فنجازيه بعمله

ترجمه: اوياد كړه دايوب ؟ حالت اذ نادى ربه، دايوب نه بدل دي. كله چه هغه د هغه ټول مال او اولاد هلاكولو او د هغه بدن چور چور كولواو دبي بي نه علاوه ټول خلقو هغه درې يا اووه يا اتلس كاله پورې پريخودلو او د تنګې زندګۍ په ذريعه اوازمولې شو انى دهمزې په فتحې او دبا په تقدير سره دي، يعنى هغه وخت ياد كړه كله چه ايوب ؟ خپل پروردګار ته

آواز اوکړو چه ما ته تکلیف رسیدلې دې او ته دټولو مهربانونه زیات مهربان ئې مونږ دهغه دعا قبوله کړه او هغه ته چه کوم تکلیف وو هغه مو لرې کړو او مونږ هغه ته د هغه داهل یعنی اولاد مذکر اومؤنث (نارینه او زنانه) ورکړل په داسې طریقه چه هغوی راژوندی کړې شو (مذکر اومؤنث) درې درې وو یا اووه اووه، اوهغوی سره هغومره نورهم، د هغه د بی بی نه او دهغه په بی بی باندې مو خوانی راواپس کړه، او دهغه یو درمن (کندو) دغنمو وو او یو د وربشو، نو الله پاک دوه وریځې اولیږلې یو وریځې دغنمو په کندو باندې سره زر او ورول او بلې وریځې د وربشو په کندو باندې چاندې اووروله، تردې پورې چه اوبهیدل، دخپل خصوصی رحمت په وجه رحمة دآتینه مفعول له دې او من عندنا (کائنة) سره متعلق د رحمة صفت دې اودبندګی کونکو دنصیحت دپاره دې دپاره چه صبر اوکړی نو هغوی ته به ثواب ورکړې شی، او د اسماعیل او د ادریس او د ذوالکفل علیهم السلام تذکره اوکړه داټول د صابرینو نه وو دالله پاک په اطاعت باندې اودهغه دمعصیت نه په منع کیدو باندې او مونږ دې ټولو حضراتو لره په خپل رحمت یعنی نبوت کښې داخل کړی وو اوپه دوی کښې (دنبوت) صلاحیت وو اود ذوالکفل، ذوالکفل ددې وجې نه نوم کیخودې شو چه هغه د ورځې روژه نیول اوټوله شپه مونځ کول او چه دخلقو په مینځ کښې فیصلې کول او غصه نه کول په ځان لازم کړې وو پس هغه خپله ذمه داری په ښه طریقه پوره کړه، وئیل شوی دی چه ذوالکفل نبی نه وو او د ذوالنون یعنی دمهی والا تذکره اوکړه اوهغه یونس بن متی دې او اذ ذهب مغاضبا دذاالنون نه بدل دې یعنی هغه وخت یاد کړه چه دکله دمهی والا دخپل قوم نه ددوی دطرف نه دتکلیف اوچتولو په وجه ناراض شو اولاړو حالانکه ده ته دتلو اجازت نه وو ورکړې شوې نو هغه دا اوګنړل چه مونږ به په بغیر د اجازت تلوباندې څه ګرفتاری اونه کړو یعنی دمهی په خیټه کښې دقید کولو چه مونږ کومه فیصله کړې وه هغه به اونه کړو، یاددې په وجه به مونږ په ده باندې تنګی اونه کړو آخر کار هغه په تیارو کښې آواز اوکړو یعنی دشپې تیارهٔ د اوبو تیارهٔ اودمهی د خیټې تیارهٔ چې اې الهی ستا نه سوا څوک معبود نشته ته پاک ئې بیشکه زه دظالمانو نه شوم بغیر داجازت دقوم دمینځ نه دتلوپه وجه نومونږ دهغه دعا واوریده اودذکر شوو کلماتو ددعا په وجه مونږ ده ته دغم نه نجات ورکړو او څنګه مو چه دې بچ کړو دارنګې مونږ دایمان والا ددوی دغم نه بچ کوو کله چه هغوی مونږ ته په دعا کولو سره فریاد کوی اودزکریا تذکره اوکړه اذنادی دزکریا نه بدل واقع دې، کله چه هغه خپل رب ته په ربّ لاتذرنی فردا الفاظو سره فریاد اوکړو یعنی اې زما پرودګار ته مایوانې یعنی بلا ولده کوم چه زما وارث وی مه پریږده او ته دټولو نه ښه وارث ئې یعنی ستادټول مخلوق دفنا کیدو نه پس ته باقی پاتې کیدونکې ئې نومونږ دهغه دعا قبوله کړه او مونږ هغه ته یحیی هلک ورکړو اومونږ دهغه دپاره دهغه بی بی صحیح کړه

ونه شو کیـږو نه بـس هغې بچې اوزیږولو اوپیشک دغه خلقو یعنی هغه انبیاؤ چه ذکرمو ذکر وشو په نیک کارونو یعنی په ضغ نو کښې جلتی سبقت کولو اومونږ به ئې دامید اوویرې یعنی زمونږ درحمت د امید او دعذاب نه یرې سره رابللو او زمونږ په مخکښې عاجزې کونکی وو یعنی په خپل عبادت کښې خشوع اوخضوع کونکی وو او دبی بی مریم هم ذکره اوکره چه هغې دخپل ناموس حفاظت کړې وویعنی هغې ته د چا د رسیدو نه ئې دهغې حفاظت وکړو اومونږ دهغې دته خپل روح پوک کړو یعنی جبرئیل؟ په داسې طریقې سره چه دهغې په گریوان کښې ئې پوکې اوکړو پس بی بی مریم دعیسی ؟ سره حامله شوه اومونږ پخپله هغې لره اودهغې ځوئ لره دعالم والو یعنی دانسانانو اوپیریانو او ملائکو دپاره نښه جوړه کړه څکه چه هغې بغیر دسړی نه بچې اوزیږولو پیشکه دا یعنی ملت اسلامیه اې مخاطبو! ستاسو یو ملت دې تاسو دپاره ضروری دی چه په دې باندې قائم پاتې شئ امة واحدة حال لازمه دې اوزه ستاسو د ټولو رب یم نو خاص زما عبادت کوئ یعنی زما دتوحید قائل شئ خو څنې مخاطبینو په خپل دین کښې فرقه بندئ اوکړې یعنی په خپل دینی معامله کښې داختلاف کولو دوجې نه متفرق شول اوهغه دیهودواو نصاری دلې وې، الله پاک اوفرمائیل ټول په ټول زمونږ په طرف راواپس کیدونکی دی یعنی مونږ به په دوی کښې دهر یو دعمل بدله ورکړو

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** واذکر ایوب: ویبدل منه اذنادی ربه اذنادی ربه ایوب یعنی ددې دمضاف محذوف نه بدل دې ای خبرایوب نه

**قوله:** لماابتلی: د نادی سره متعلق دې

**قوله:** وضیق عیشه: ضیق مبنی للمفعول اونیلې شی نو ابتلی باندې به عطف وی، او ضیق مصدراونیلې شی نوبه فقد باندې به عطف وی اودباء لاندې به وی ای ابتلی بضیق عیشه

**قوله:** سنین ثلاثا: دا دابتلی ظرف دې

**قوله:** اندر: په وزن د بندر کندو (درمن)ج) انادر داهل شام په ژبه کښې ورته بیدر په وزن د خیبر ونیلې شی موضع الذی یداس فیه الطعام

**قوله:** رحمة: داداتیناه مفعول له دې، اودفعل مقدر مفعول مطلق هم کیدې شی ای رحمناه رحمة (والاول اظهر)

**قوله:** من عندنا: درحمة صفت دې ای رحمة کائنة من عندنا او ذکری للعابدین کښې دعابدین تخصیص ددې دپاره دې چه داسې قسم واقعاتو نه عابدین منتفع کیږی.

قوله: ليصبروا: اى كما صبر ايوب فاثيب.

قوله: وادخلنهم: ددې عطف په فعل مقدر باندې دې اى فاعطيناهم ثواب الصابرين وادخلنهم في رحمتنا.

قوله: وذاالكفل: د دوى نوم بشر بن ايوب ؟ دې اوذوالكفل د دوى لقب دې

قوله: ذالنون: دا لقب دې اصل نوم يونس بن متى په وزن دشتى دې چونكه يونس خو ورځې دمهى په خيټه كښې پاتې شوې وو ددې وجې نه دده نوم ذوالنون شو

قوله: مغاضبا: دادذهب دضمير نه حال او دباب مفاعله نه دې چه اكثر دمشاركت دپاره راځى خو دلته دمشاركت دپاره نه دې بلكه عاقبت اللص دقبيلې نه دې يعنى هغه دقوم نه ناراضه شو او لاړو مفسر علام داى عضبان اضافې سره دې طرف ته اشاره كړې ده او داهم ممكن دې چه دمشاركت دپاره وى يعنى هغوى د خپل قوم نه ناراض شو او قوم د هغوى نه ناراض وو ځكه چه په ابتداء دامر كښې قوم ايمان نه وو راوړې

قوله: نقضى عليه: الخ ددې داضافې مقصد دا ښودل دى چه لن نقدر عليه دقدر نه مشتق دې نه دقدرة نه دقدر معنى فيصله كولو يا تنگى كولو ده، نو لن نقدر عليه په معنى يا خو لن نقضى عليه كښې ده يعنى كومه فيصله چه مونږ كړې دۀ ددې نفاذ به اونه كړو، يا معنى داشوه چه په ده باندې تنگى اونه كړو، اوكه دقدرة نه مشتق اومنلې شى نو مطلب به داوى چه مونږ په ده باندې قدرت نه لرلو دا كفريه عقيده ده يو عام مسلمان هم داسې عقيده نه لرى بيا لا نبى به ځنگه دا عقيده اولرى.

قوله: ان لااله الاانت: ددې دوه تركيبونه كيدې شى ① أن مخففه عن المثقله وى اودده اسم محذوف وى اى أنّه او دې نه پس واقع كيدونكې جمله منفيه ددې خبر وى ②ان تفسريه وى ځكه چه ان تفسريه قول يا دقول هم معنى نه پس واقع وى اوددې نه اول نادى واقع دې كوم چه دقول هم معنى دې نو دان تفسريه كيدل صحيح دى

قوله: يرثنى: اى ارث نبوة وعلم وحكمة.

قوله: وانت خيرالوارثين: دا په مقدر باندې معطوف دې تقدير دعبارت دادې فارزقنى وارثا وانت خيرالوارثين.

قوله: عقيم: اى السداد الرحم عن الولادة بالعقمة والفاعلة عقيم شنله چه په كښې داولاد پيدا كيدو صلاحيت نه وى.

قوله: انهم كانوا يسارعون فى الخيرات: دادمحذوف علت دې اى نالوامانالوا لانهم كانوا يسارعون فى الخيرات يعنى دغه حضراتو ته چه كوم فضائل اومراتب حاصل شو ددې علت تولو وجوه دنيكو په طرف سبقت كول وو په اصل خيرات كښې ثبات او استقرار

سره سره، دیسارعون صله الی په ځای دفی راوړلو کښې ددې په طرف اشاره ده.

**قوله: رغبا ورهبا**: دیدعون دمفعول له کیدو دوجې نه منصوب کیدې شی اودمصدر په موقع دحال کښې دواقع کیدودوجې نه هم منصوب کیدې شی ای یدعون راغبین وراهبین.

**قوله: احصنت فرجها**: دا د موصوف محذوف صفت دې چه دفعل محذف (اذکر) د معمول دې لکه چې مفسر علام وضاحت کړې دې ای اذکر مریم التی الخ.

**قوله: آیة**: په ظاهره معلومیږی چه آیتین وئیل پکار وو خو والده او ولد دواړه یوځای آیت وو په دې وجه ایة واحد راوړلې شوې دې او داهم ممکن دی چه په یو باندې قیاس کولو سره دویم حذف کړې شوې وی په اصل کښې وجعلنا آیة وابنها آیة وو. اول آیة په دویم باندې قیاس کولو سره حذف کړو.

**قوله: امتکم**: که په رفع سره وی نود ان خبردې اوکه په نصب سره وی نو بدل یا عطف بیان.

**قوله: امة واحدة**: دادامتکم نه حال لازمه دوجې نه منصوب دې ځکه چه په امت کښې خپله وحدت اودجمعیت معنی موجوده ده اودامة واحدة نه هم داپه پوهه کښې راځی لکه چه امة واحدة، د امتکم دپاره دمعنی په اعتبارسره لازم دې.

**قوله: وهم طوائف الیهود والنصاری**: ددې دتخصیص ضرورت نشته دې ځکه چه په مسلمانانو کښې به هم درې اویا فرقې جوړیږی.

**قوله: وتقطعوا امرهم**: تقطعوا دقطعوا په معنی دې او امرهم ددې مفعول به دې او امرهم په معنی دفی امرهم دې.

**[ایاتونه: ۹۴-۱۱۲]**

(فَمَنْ يَعْمَلْ مِنَ الصَّالِحَاتِ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَا كُفْرَانَ) اي لا جحود (لِسَعْيِهِ وَإِنَّا لَهُ كَاتِبُونَ) بان نأمر الحفظة بكتبه فنجازيه عليه (وَحَرَامٌ عَلَى قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَاهَا) اريد اهلها (أَنَّهُمْ لَا) زائدة (يَرْجِعُونَ) اي ممتنع رجوعهم إلى الدنيا (حَتَّى) غاية لامتناع رجوعهم (إِذَا فُتِحَتْ) بالتخفيف والتشديد (يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ) بالهمز وتركه اسمان أعجميان لقبيلتين ويقدر قبله مضاف اي سدهما وذلك قرب القيامة (وَهُمْ مِنْ كُلِّ حَدَبٍ) مرتفع من الأرض (يَنْسِلُونَ) يسرعون (وَاقْتَرَبَ الْوَعْدُ الْحَقُّ) اي يوم القيامة (فَإِذَا هِيَ) اي القصة (شَاخِصَةٌ أَبْصَارُ الَّذِينَ كَفَرُوا) في ذلك اليوم لشدته يقولون (يَا) للتنبيه (وَيْلَنَا) هلاكنا (قَدْ كُنَّا) في الدنيا (فِي غَفْلَةٍ مِنْ هَذَا) اليوم (بَلْ كُنَّا ظَالِمِينَ) انفسنا بتكذيبنا للرسل (إِنَّكُمْ) يا اهل مكة (وَمَا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ) اي غيره من الأوثان (حَصَبُ جَهَنَّمَ) وقودها (أَنْتُمْ لَهَا وَارِدُونَ) داخلون فيها (لَوْ كَانَ هَؤُلَاءِ) الأوثان (آلِهَةً) كما زعمتم (مَا وَرَدُوهَا) دخلوها (وَكُلٌّ) من العابدين والمعبودين (فِيهَا خَالِدُونَ) (لَهُمْ) للعابدين (فِيهَا زَفِيرٌ وَهُمْ فِيهَا لَا يَسْمَعُونَ) شيئا لشدة غليانها ونزل لما قال ابن الزبعرى عبد عزير والمسيح والملائكة فهم

في النار على المعنى ما تقدم (إِنَّ الَّذِينَ سَبَقَتْ لَهُم مِّنَّا) المنزلة (الْحُسْنَىٰ) ومنهم من ذكر (أُولَٰئِكَ عَنْهَا مُبْعَدُونَ)، (لَا يَسْمَعُونَ حَسِيسَهَا) صوتها (وَهُمْ فِي مَا اشْتَهَتْ أَنفُسُهُمْ) من النعيم (خَالِدُونَ)، (لَا يَحْزُنُهُمُ الْفَزَعُ الْأَكْبَرُ) وهو ان يؤمر بالعبد إلى النار (وَتَتَلَقَّاهُمُ) تستقبلهم (الْمَلَائِكَةُ) عند خروجهم من القبور يقولون لهم (هَٰذَا يَوْمُكُمُ الَّذِي كُنتُمْ تُوعَدُونَ) في الدنيا (يوم) منصوب باذكر مقدرًا قبله (نَطْوِي السَّمَاءَ كَطَيِّ السِّجِلِّ) اسم ملك (لِلْكُتُبِ) صحيفة بن آدم عند موته واللام زائدة أو السجل الصحيفة والكتاب بمعنى المكتوب واللام بمعنى على وفي قراءة للكتب جمعًا (كَمَا بَدَأْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ) من عدم (نُّعِيدُهُ) بعد إفنائه فالكاف متعلقة بنعيد وضميره عائد إلى أول وما مصدرية (وَعْدًا عَلَيْنَا) منصوب بوعدنا مقدرًا قبله وهو مؤكد لمضمون ما قبله (إِنَّا كُنَّا فَاعِلِينَ) ما وعدناه (وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزَّبُورِ) بمعنى الكتاب أي كتب الله المنزلة (مِن بَعْدِ الذِّكْرِ) بمعنى أم الكتاب الذي عند الله (أَنَّ الْأَرْضَ) أرض الجنة (يَرِثُهَا عِبَادِيَ الصَّالِحُونَ) عام في كل صالح (إِنَّ فِي هَٰذَا) القرآن (لَبَلَاغًا) كفاية في دخول الجنة (لِّقَوْمٍ عَابِدِينَ) عاملين به (وَمَا أَرْسَلْنَاكَ) يا محمد (إِلَّا رَحْمَةً) أي للرحمة (لِّلْعَالَمِينَ) الإنس والجن بك (قُلْ إِنَّمَا يُوحَىٰ إِلَيَّ أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ) أي ما يوحى إلي في أمر الإله إلا وحدانيته (فَهَلْ أَنتُم مُّسْلِمُونَ) منقادون لما يوحى إلي من وحدانية الإله والاستفهام بمعنى الأمر (فَإِن تَوَلَّوْا) عن ذلك (فَقُلْ آذَنتُكُمْ) أعلمتكم بالحرب (عَلَىٰ سَوَاءٍ) حال من الفاعل والمفعول أي مستوين في علمه لا أستبد به دونكم لتتأهبوا (وَإِنْ) ما (أَدْرِي أَقَرِيبٌ أَم بَعِيدٌ مَّا تُوعَدُونَ) من العذاب أو القيامة المشتملة عليه وإنما يعلمه الله (إِنَّهُ) تعالى (يَعْلَمُ الْجَهْرَ مِنَ الْقَوْلِ) والفعل منكم ومن غيركم (وَيَعْلَمُ مَا تَكْتُمُونَ) أنتم وغيركم من السر (وَإِنْ) ما (أَدْرِي لَعَلَّهُ) أي ما أعلمتكم به ولم يعلم وقته (فِتْنَةٌ) اختبار (لَّكُمْ) ليرى كيف صنعكم (وَمَتَاعٌ) تمتع (إِلَىٰ حِينٍ) أي انقضاء آجالكم وهذا مقابل للأول المترجى بلعل وليس الثاني محلًا للترجي (قُل) وفي قراءة قال (رَبِّ احْكُم) بيني وبين مكذبي (بِالْحَقِّ) بالعذاب لهم أو النصر عليهم فعذبوا ببدر وأحد وحنين والأحزاب والخندق ونصر عليهم (وَرَبُّنَا الرَّحْمَٰنُ الْمُسْتَعَانُ عَلَىٰ مَا تَصِفُونَ) من كذبكم على الله في قولكم اتخذ ولدًا وعليّ في قولكم ساحر وعلى القرآن في قولكم شعر

ترجمه: نو کوم کس چه نیک عمل اوکړی او مؤمن هم وی نو دهغه دکوشش ناقدري به نشی کولې یعنی انکار به نشی کولې اومونږ دهغه سعی لیکویعنی مونږ فرشتو ته دهغې لیکلو حکم ورکوونو مونږ به دهغه ته دهغه دسعی بدله ورکړو اوحرام دي په هغه کلی باندې یعنی په کلی والو و باندې کوم چه مونږ هلاک کړی دی دا چه هغه واپس راشی یعنی ددوی ددنیا په طرف راتلل ممتنع دی اوپه لایرجعون کښې لا زائد دې، تردې چه دا د امتناع رجوع غایت دې کهلاو به کړې شی یاجوج او ماجوج فتحت په تشدید او تخفیف سره دې، یاجوج ماجوج په همزې سره او په ترک دهمزې سره ددوو قبیلو دوه عجمی نومونه دی اوددې نه

مخکښې مضاف محذوف دې ای سدهما او دا به قیامت ته نزدې وی اوهغوی به دهرې
بلندئ یعنی دلورځائ نه به په تیزئ سره په منډه راځی او ربنتیا وعده یعنی دقیامت ورځ
نزدې راغلې ده شان دادې چې دغه وخت به د کافرانو سترګې کهلاؤ وازې پاتې شی او په
سخته ورځ کښې به وائی هائې افساس (زمونږ هلاکته) مونږ خو په دنیا کښې ددې ورځې نه
په غفلت کښې وو بلکه د رسولانو په تکذیب کولو سره مونږ ظالمان وو اې دمکې خلقو تاسو
او د خدائې نه علاوه بتان وغیره دچا چه تاسو عبادت کوئ د جهنم خشاک به جوړیږئ او تاسو
ټول به په دې جهنم کښې داخلیږئ که دا بتان (حقیقی) معبودان وې لکه څرنګه چه ستاسو
دعوی ده نوپه دې کښې به نه داخلیدئ او معبودان او چاچه ددوی عبادت کړې دې ټول به په
جهنم کښې همیشه اوسیږی او ددې عبادت کونکو دپاره به په جهنم کښې چغې سورې وی
اودوی به په جهنم کښې ددې د سخت والی د جوش په وجه هیڅ نه شی اوریدلې او نازل شو
(وریسې) آیت کله چه ابن زبعرٰی وئیلی وو چه عزیر اومسیح اود ملائکو علیهم السلام
(هم) عبادت کړې شوې دې لهذا د تیرشوی بیان مطابق به هغوی هم په جهنم کښې
اوسیږی البته هغه خلق دچا دپاره چه زمونږ دطرفه اوچتې مرتبې مقرر شوی دی اودهغوی
څخه هغه خلق هم دی دچا ذکر چه اوکړې شو هغوی به دجهنم نه لرې اوساتلې شی هغوی خوبه
د جهنم آواز (شور) هم نه شی اوریدلې اوهغوی به همیشه په خپل دخوښې په نعمتونو کښې
اوسیږی اوهغوی لره به لویه ویره هم په غم کښې نه شی اچولې اودا به هغه وخت وی کله چه د
بنده ګان جهنم ته دتلو حکم اوشی او فرشتې به دهغوی سره ملاقات کوی یعنی د قبرونو نه د
وتلو په وخت به دهغوی استقبال کوی اوهغوی ته به وائی هم دا ده ستاسو هغه ورځ دکومې
چه تاسو سره په دنیا کښې وعده کړې شوې وه د یَوم نه مخکښې د اذکر مقدر په وجه یوم
منصوب دې، اوهغه ورځ هم د یادولو قابله ده چه په کومه ورځ مونږ آسمان داسې راؤنغاړو
څرنګه چه سجل نومې فرشته د انسان د مرګ نه پس دهغه اعمال نامه راونغاړی په للکتاب
کښې لام زائده دې یا د سجل نه مراد صحیفه ده اوکتاب د مکتوب به په معنی کښې دې
اولام په معنی د علی دې یعنی څرنګه چه کاغذ د مکتوب د طرفه رانغختلې کیږی اوپه
یو قرأت کښې الکتب دې په جمع سره، لکه څرنګه چه مونږ په اول ځل د عدم نه وجود کښې
راوستلو ددې دعدم کولو نه پس به ددې اعاده کوو کاف د نعبد سره متعلق دې او ددې
ضمیر اول طرف ته راجع دې او ما مصدریه ده (دا) زمونږ په ذمه وعده ده مونږ به خپله وعده
ضرور (پوره) کوو وعدًا دخپل ماقبل وعدنا محذوف په وجه منصوب دې اودا دخپل ماقبل
د مضمون تاکید کونکې دې او موږ په زبور (یعنی) مطلق په آسمانی کتابونو کښې ذکر
یعنی په لوح محفوظ کښې د لیکلو نه پس چه د الله تعالی سره دې لیکلی دی چه په دې

زمکه دجنت وارثان به زما نیک بندګان وی اودا خوشخبری دهر نیک بنده په باره کښې بې شکه په دې قرآن کښې جنت ته د داخلیدو دپاره کافی نصیحت دې عبادت کونکو یعنی په دې باندې دعمل کونکو دپاره او اې محمد (ص) مونږ ته دټولو جهانونو والو دپاره یعنی دجن اوانس دپاره رحمت جوړکړې یعنی درحمت دپاره مو لیږلې ئې تاسو اووایئ ماته خو دا وحی کولې شی چه ستاسو معبود صرف یومعبود دې یعنی د الوهیت په معامله کښې خو ماته دالله تعالی د وحدانیت وحی رالیږلې شی نوآیا تاسو منونکی یئ یعنی ددې وحدانیت د وحی کومه چه ما طرف ته کولې شی آیا تاسو ددې تابعداری کوئ؟ استفهام په معنی د امردې یا هم که داخلق ددې نه مخ اوګرځوی نو تاسو اوفرمایئ چه ما تاسوپه واضحه طریقه سره د عذاب نه خبر کړی یئ علی.. اود فاعل او مفعول دواړو نه حال دې یعنی ددې دعلم په باره کښې دواړه برابر دی نه داچه یواځې زه خبر یم اوتاسو نه یئ، دې دپاره چه تاسو تیاری اوکړئ او زه خبر نه یم چه د کوم عذاب یا قیامت کوم چه به عذاب باندې مشتمل وی تاسو سره ئې وعده کړې شوې ده هغه نزدې راغلې دې یا اوس لا لرې دې په دې خبره خو الله ښه پوهیږی او الله تعالی خو ستاسو او دنورو د ښکاره اود قول اوفعل نه خبردې او دهغه رازونو نه هم خبردې کوم چه تاسو او نورخلق پټوی او ماته ددې خبرې هم علم نشته یعنی دکومې خبرې چه ما تاسو ته خبر درکړې دې اودهغې وخت مې درته نه دې خودلې ممکن ده چه ستاسو دپاره ازمیښت وی چه هغه اوګوری چه ستاسو عملونه څنګه دی او یو محدود یعنی تر مرګه پورې فائده در رسول وی اودا (یعنی متاع الی حین) اول یعنی دکوم چه لعل سره ترجی کړې شوې ده (اوهغه د لعله فتنة) بالمقابل ده او دویم د ترجی محل نه دې قل اوپه یو قرأت کښې قال دې اووایه اې زما پروردګاره! زما او ماله د دروغ ګڼرونکو په مینځ کښې حق یعنی هغوی دهغوی دعذاب یا په هغوی باندې د غلبې فیصله اوکړې نوپه بدر او أحد او احزاب او حنین اوخندق کښې په عذاب کښې مبتلا کړې شو اوپه هغوی باندې درته غلبه ورکړې شوه او زمونږ رب ډیر مهربان دې چه دهغه نه مدد غوښتلې کیږی اودهغه خبرو په مقابله کښې کومې چه تاسو جوړوئ اوهغه په الله باندې ستاسو بهتان دې ستاسو په قول اتخذ ولدا کښې، اوپه ما باندې (بهتان) دې ستاسو په قول ساحر کښې، اوپه قرآن باندې بهتان دې ستاسو په قول شعر کښې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** فمن یعمل من الصلحت: من زائده یا تبعیضیه کیدې شی، کفران مصدردې په معنی د کفر.

**قوله:** له أی للسعی: د ه ضمیر مرجع سعی ده، اوبعضې خلقو وئیلی دی چه د له ضمیر مَن

طرف ته راجع دي.

قوله: حرام: خبر مقدم دي او انهم لا يرجعون مبتداء مؤخردي، مطلب دادي چه كوم كلي والا مونږ هلاک کړی دی دهغوی دپاره دوباره په دنيا كښې واپس راتلل منع دی او بعضې حضراتو دا مطلب هم بيان کړې دې چه دهغوی ايمان طرف ته رجوع کول ممتنع دی ځکه چه دهغوی دپاره دشقاوت فيصله کړې شوې ده لا زائده دې اوكه چرې حرام په معنى د واجبٌ واخستلې شی نومطلب به داشي چه دهغوی دنيا ته واپس نه راتلل واجب دې اوبعضې حضراتو وئيلی دی چه معنى د آيت داده مونږ طرف ته د جزاء دپاره عدم رجوع ممتنع ده.

قوله: حتّى: دا عدم رجوع يعنى د لايرجعون غايت يعنى ترقيامته پورې به دهغوی رجوع ممتنع وی او حتّى ابتدائيه هم كيدې شی په دې صورت كښې به جمله مستانفه وی فإذا هي، إذا د فُتِحتْ جزاء ده، په فتحت كښې اسناد مجازی دې ځک چه حقيقةً مفتوح سد ياجوج ماجوج دې نه چه ياجوج ماجوج.

قوله: ياجوج وماجوج: دا جدا دوه ډلې دی دا دواړه عجمی لفظونه دی دضحاک دقول مطابق دترکو دنسل څخه دی تول تاريخ دانان دوی لره د يافث بن نوح دنسل څخه منی، دبعضې خلقو خيال دې چه دا تاتاری ترک دی تورات کتاب پيدائش باب ۱۰: ۲ كښې د يافث د يوځوی نوم ماغوغ راغلې دې په عبری ژبه كښې د غين تلفظ گاف سره کوی په دې وجه د ماغوغ نه ماگوگ شو او په عربئ كښې گاف په جيم سره بدلوی لهذا دماگوگ نه ماجوج شو. (لغات القرآن)

د ياجوج ماجوج د کهلاويدلو نه مراد سد سکندری کهلاويدل دی.

قوله: حدبٌ: په معنى د غونډئ (ورو کی غر) ددې جمع احداب ده.

قوله: واقترب الوعد: ددې عطف په فتحت باندې دې د ياويلنا نه مخكښې يقولون محذوف منلوسره اشاره کړې شوې ده. حصب ما يحصب به أي يرمى به: خشاک.

قوله: انتم لها واردون: جمله مستانفه هم كيدې شی او حصب د جهنم نه بدل هم.

قوله: في الزبور: په في الزبور كښې الف لام جنسی دې أي كتب الله ليکلوسره همدې طرف ته اشاره کړې ده چه د زبور نه مراد مطلقًا آسمانی کتاب دې نه چه هغه کتاب كوم چه په حضرت داؤد عليه السلام باندې نازل شوې وو، د زبور جمع زُبُر للكتب دا يا د السجل نه حال دې أي السجل كائنًا للكتب يا صفت دې أي السجل الكائن للكتب.

قوله: كما بدأنا: تقدير د کلام دادې چه كما بدأنا كل شيئ في أول خلقه كذلك نعيد كل شيئ، د كل شيئ بدأنا مفعول مقدردې او أول خلق ظرف دې اود نعيد ضمير كل شيئ طرف ته راجع دي.

قوله: للرحمة ددې مقصد دې خبرې طرف ته اشاره کول دی چه رحمة مفعول له دې او رحمة مبالغة دحال کيدو په وجه منصوب هم کيدې شي.
قوله: والخندق خندق سهواً ليکلې شوې دې ځکه چه احزاب او خندق يو دې.

## [۲۲] سورة الحج

سُورَة الْحَجّ مَكِّيَّة إلَّا ﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَعْبُدُ اللَّهَ﴾ الْآيَتَيْنِ أَوْ إلَّا ﴿هَذَانِ خَصْمَانِ﴾ السِّتّ آيَات فَمَدَنِيَّات وَهِيَ أَرْبَع أَوْ خَمْس أَوْ سِتّ أَوْ سَبْع أَوْ ثَمَان وَسَبْعُونَ آيَة.
سوره حج مکی دې خو ﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَعْبُدُ اللَّهَ﴾ دوه آيتونه. يا ﴿هَذَانِ خَصْمَانِ﴾ شپږ آيتونه دا مدنی دی، اوټول آيتونه ۷۴ يا ۷۵ يا ۷۶ يا ۷۷ يا ۷۸ دی.

[اياتونه:۱-۱۰]

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ﴾ أَيْ أَهْل مَكَّة وَغَيْرهمْ ﴿اتَّقُوا رَبَّكُمْ﴾ أَيْ عِقَابه بِأَنْ تُطِيعُوهُ ﴿إِنَّ زَلْزَلَةَ السَّاعَةِ﴾ أَيْ الْحَرَكَة الشَّدِيدَة لِلْأَرْضِ الَّتِي يَكُون بَعْدهَا طُلُوع الشَّمْس مِنْ مَغْرِبهَا الَّذِي هُوَ قُرْب السَّاعَة ﴿شَيْءٌ عَظِيمٌ﴾ فِي إزْعَاج النَّاس الَّذِي هُوَ نَوْع مِنْ الْعِقَاب ﴿يَوْمَ تَرَوْنَهَا تَذْهَلُ﴾ بِسَبَبِهَا ﴿كُلُّ مُرْضِعَةٍ﴾ بِالْفِعْلِ ﴿عَمَّا أَرْضَعَتْ﴾ أَيْ تَنْسَاهُ ﴿وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ﴾ اي حبلى ﴿حَمْلَهَا وَتَرَى النَّاسَ سُكَارَى﴾ مِنْ شِدَّة الْخَوْف ﴿وَمَا هُمْ بِسُكَارَى﴾ مِنْ الشَّرَاب ﴿وَلَكِنَّ عَذَابَ اللَّهِ شَدِيدٌ﴾ فَهُمْ يَخَافُونَهُ وَنَزَلَ فِي النَّضْر بْن الْحَارِث وَجَمَاعَته ﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُجَادِلُ فِي اللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾ قَالُوا الْمَلَائِكَة بَنَات اللَّه وَالْقُرْآن أَسَاطِير الْأَوَّلِينَ وَأَنْكَرُوا الْبَعْث وَإِحْيَاء مَنْ صَارَ تُرَابًا ﴿وَيَتَّبِعُ﴾ فِي جِدَاله ﴿كُلَّ شَيْطَانٍ مَرِيدٍ﴾ أَيْ مُتَمَرِّد ﴿كُتِبَ عَلَيْهِ﴾ قُضِيَ عَلَى الشَّيْطَان ﴿أَنَّهُ مَنْ تَوَلَّاهُ﴾ أَيْ اتَّبَعَهُ ﴿فَأَنَّهُ يُضِلُّهُ وَيَهْدِيهِ﴾ يَدْعُوهُ ﴿إِلَى عَذَابِ السَّعِيرِ﴾ اي النار ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ﴾ أَيْ أَهْل مَكَّة ﴿إِنْ كُنْتُمْ فِي رَيْبٍ﴾ شَكّ ﴿مِنَ الْبَعْثِ فَإِنَّا خَلَقْنَاكُمْ﴾ أَيْ أَصْلكُمْ آدَم ﴿مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ﴾ خَلَقْنَا ذُرِّيَّته ﴿مِنْ نُطْفَةٍ﴾ مَنِيّ ﴿ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ﴾ وَهِيَ الدَّم الْجَامِد ﴿ثُمَّ مِنْ مُضْغَةٍ﴾ وَهِيَ لَحْمَة قَدْر مَا يُمْضَغ ﴿مُخَلَّقَةٍ﴾ مُصَوَّرَة تَامَّة الْخَلْق ﴿وَغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ﴾ أَيْ غَيْر تَامَّة الْخَلْق ﴿لِنُبَيِّنَ لَكُمْ﴾ كَمَال قُدْرَتنَا لِتَسْتَدِلُّوا بِهَا فِي ابْتِدَاء الْخَلْق عَلَى إعَادَته ﴿وَنُقِرُّ﴾ مُسْتَأْنَف ﴿فِي الْأَرْحَامِ مَا نَشَاءُ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى﴾ وَقْت خُرُوجه ﴿ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ﴾ مِنْ بُطُون أُمَّهَاتكُمْ ﴿طِفْلًا﴾ بِمَعْنَى أَطْفَالًا ﴿ثُمَّ﴾ نُعَمِّركُمْ ﴿لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ﴾ أَيْ الْكَمَال وَالْقُوَّة وَهُوَ مَا بَيْن الثَّلَاثِينَ إلَى الْأَرْبَعِينَ سَنَة ﴿وَمِنْكُمْ مَنْ يُتَوَفَّى﴾ يَمُوت قَبْل بُلُوغ الْأَشُدّ ﴿وَمِنْكُمْ مَنْ يُرَدُّ إِلَى أَرْذَلِ الْعُمُرِ﴾ أَخَسّه مِنْ الْهَرَم وَالْخَرَف ﴿لِكَيْلَا يَعْلَمَ مِنْ بَعْدِ عِلْمٍ شَيْئًا﴾ قَالَ عِكْرِمَة مَنْ قَرَأَ الْقُرْآن لَمْ يَصِرْ بِهَذِهِ الْحَالَة ﴿وَتَرَى الْأَرْضَ هَامِدَةً﴾ يَابِسَة ﴿فَإِذَا أَنْزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَاءَ اهْتَزَّتْ﴾ تَحَرَّكَتْ ﴿وَرَبَتْ﴾ ارْتَفَعَتْ وَزَادَتْ ﴿وَأَنْبَتَتْ مِنْ﴾ زَائِدَة ﴿كُلِّ زَوْجٍ﴾ صِنْف ﴿بَهِيجٍ﴾ حَسَن ﴿ذَلِكَ﴾ الْمَذْكُور مِنْ بَدْء خَلْق الْإِنْسَان إلَى آخِر إحْيَاء الْأَرْض ﴿بِأَنَّ﴾ بِسَبَبِ أَنَّ ﴿اللَّهَ هُوَ الْحَقُّ﴾ الثابت الدائم ﴿وَأَنَّهُ يُحْيِي الْمَوْتَى وَأَنَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ ﴿وَأَنَّ السَّاعَةَ آتِيَةٌ لَا رَيْبَ﴾ شَكّ ﴿فِيهَا وَأَنَّ اللَّهَ يَبْعَثُ مَنْ فِي الْقُبُورِ﴾ وَنَزَلَ فِي أَبِي جَهْل ﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُجَادِلُ

فِي اللّٰهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَّلَا هُدًى﴾ مَعَهُ ﴿وَّلَا كِتَابٍ مُّنِيْرٍ﴾ لَهُ نُور مَعَهُ ﴿ثَانِيَ عِطْفِهٖ﴾ حَال أَيْ لَاوِيَ عُنُقِه تَكَبُّرًا عَنْ الْإِيمَان وَالْعِطْف الْجَانِب عَنْ يَمِين أَوْ شِمَال ﴿لِيُضِلَّ﴾ بِفَتْحِ الْيَاء وَضَمِّهَا ﴿عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾ أَيْ دِينه ﴿لَهٗ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ﴾ عَذَاب فَقُتِلَ يَوْم بَدْر ﴿وَّنُذِيْقُهٗ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَذَابَ الْحَرِيْقِ﴾ أَيْ الْإِحْرَاق بِالنَّارِ وَيُقَال لَهُ ﴿ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ يَدَاكَ﴾ أَيْ قَدَّمْته عَبَّرَ عَنْهُ بِهِمَا دُون غَيْرهمَا لِأَنَّ أَكْثَر الْأَفْعَال تُزَاوَل بِهِمَا ﴿وَأَنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ﴾ أَيْ بِذِي ظُلْم ﴿لِّلْعَبِيْدِ﴾ فَيُعَذِّبهُمْ بِغَيْرِ ذَنْب

ترجمه: دټولو نه زيات ډير رحم کونکې د الله په نوم سره شروع کوم، اې دمکې وغيره خلقو دخپل رب يعنې دهغه دعذاب نه اويرېږئ په دې طريقه چه دهغه اطاعت اوکړئ بې شکه دقيامت زلزله يعنې د زمکې سخت حرکت کوم چه دمغرب دطرفه د نمر د راختلو نه مخکښې وی اودا به قيامت ته نزدې وی، دخلقو د بې قراره کيدو (ويرولو) کښې به ډير دروند څيز وی دا عذاب به يوقسم وی په کومه ورځ چه تاسو هغه اوګورئ ددې (زلزلې) په وجه به بالفعل هره يوه ورکونکې ښځه يوه څکونکې بچی نه بې پرواه شی يعنې هير به ئې کړی او هرحمل والا يعنې حامله ښځه به خپل حمل ساقط کړی (اوبه ئې غورځوی) او (اې مخاطبه) ته به خلق د سختې ويرې په وجه دنشې په شان حالت کښې وينئ حالانکه هغوی به دشراب په وجه په نشه کښې نه وی ليکن د الله عذاب به ډير سخت وی چه دهغې په وجه به خلق په ويره کښې وی اود نضربن حارث اود يو جماعت په باره کښې ورپسې آيت نازل شو اوبعضې خلق داسې دی چه هغوی دالله په باره کښې بې علمئ سره جهګړه کوی (او) وائی چه فرښتې دالله لونړه دی اوقرآن دپخوانو خلقو دخانه جوړې شوې قصې دی اودوی د بعث منکردی اود خاورې کيدو نه پس د ژوندی کيدلو منکردی اوپه دې جهګړه کښې دهر سرکش شيطان پسې روانيږی او دشيطان باره کښې دا خبره ليکلې شوې ده يعنې په دې باره کښې فيصله کړې شوې ده چه څوک هم دده ملګرتيا کوی يعنې دده تابعداری کوی نو هغه به ګمراه کوی اوهغه به د اور دعذاب طرف ته بوځی اې د مکې خلقو که چرې تاسو ددوباره ژوندی کيدو باره کښې په شک کښې يئ (نو لږ غور اوکړئ) مونږ تاسو يعنې ستاسو اصل آدم د خاورې نه پيدا کړو بيا د آدم اولاد نطفه مَنی او بيا د علقه نه او دا چکه وينه ده اوبيا د د بوټئ (تکړې) اودا د شخوند وهلو (دچيچلو) په مقدار د غوښې تکړه ده (بوټئ) چه دخلقت په اعتبار سره بوره هم وی او نيمګړې هم وی چه مونږ په تاسو باندې خپل کمال قدرت ظاهر کړو چه تاسو د ابتدائی تخليق د قدرت نه په اعاده د تخليق باندې استدلال اوکړئ ولقر جمله مستانفه ده او مونږ دمورد رحم نه چالره چه غواړو د يو معلومې مودې يعنې د پيدائش تر وخته پورې ايسار ساتو بيا مونږ تاسو لره ستاسو د مياندو د خيټو نه ماشوم جوړولو سره بهر راوباسو او طفلا د اطفالا په معنی کښې دې بيا تاسوته عمر درکوو چه تاسو پوره ځوانئ ته يعنې کمال او قوت ته

اورسیږي او دا د ديرش نه تر څلويښت کالو په مينځ کښې ده اوبعضې په تاسو کښې هغه خلق هم دي چه د بالغ کيدو نه مخکښې وفات شي اوبعضې په تاسو کښې هغه دي چه د رذالت عمر ته رسولې شي يعني د بوداتوپ په وجه دعمر ښکته مرحله اود فساد عقل منزل ته رسيږي (چه دهغې اثر داوي) چه ديوڅيز نه دخبريدو نه پس ناخبره کيږي (حضرت) عکرمه فرمائيلي دي چه کوم کس د قرآن لوستلو شوق لري هغه دغه عمر ته نه رسيږي او اې مخاطبه ته گورې زمکې ته چه اوچه ده اوکله چه مونږ په هغې باندې اوبه او ورؤو، نوهغه اوخوزيږي يعني حرکت کوي او راپرسيږي مرتفع نوره زياته شي او هرقسم ښائسته بوټي راخيجوي، دا څه چه ذکرشو د انسان د ابتدائي پيدائش نه واخله تر د زمکې ژوندي کولو پورې په دې وجه دي چه خاص الله ثابت او دائم دې اوخاص هغه مړي ژوندي کوي اوپه هر څيز باندې قادر دې او قيامت يقينا راتلونکې دې په دې کښې ذره برابرهم شک نشته او الله تعالی به قبرونو والا دوباره پيدا کوي او دا آيت د ابوجهل باره کښې نازل شوې دې او بعضې خلق داسې وي چه هغوي د الله په باره کښې بغير دعلم نه او بغير د دليل نه چه کوم دهغه سره وي اوبغير دڅه روښانه کتاب نه کوم چه دهغه دپاره وي اودهغه کتاب سره نور (وحي) وي ده کولو سره (دا د يجادل د ضميرنه) حال دې يعني دايمان نه دتکبر په انداز کښې څټ اړوي او عطف بني يا گس طرف ته وائي، ليضل د يا په فتحې اوضمې سره چه دالله د لارې يعني دهغه ددين نه ئې واړوي دداسې سړي دپاره په دنيا کښې د رسوايئ عذاب دې لکه څرنگه چه په د بدر په ورځ قتل کړې شو اود قيامت په ورځ به هم وريانديې د سوزيدو يعني په اور کښې د سوزيدو عذاب اوڅکوي، او دا ستاسو د لاسونو د کړې شوو کارونو بدله ده يعني دهغې عملونو کوم چه تاسو کړي دي سړې (ذات) په يد سره تعبير کړې دې نه چه په نورو اندامونوسره څکه چه د اکثرو عملونو کيدل په لاسونو سره کيږي او دا خبره يقيني ده چه الله تعالی په بندگانو باندې ظلم کونکې نه دې چه هغوي ته بغير دڅه جرم نه سزا ورکړي

**قوله:** زلزلة الساعة: دقيامت د ورځې زلزله په دې کښې اضافت الی الظرف طرف ته اشاره ده لکه چه په يا سارق الليل کښې، او دا اتساعًا دې.

**قوله:** التي يكون بعدها طلوع الشمس: د مفسرعلام مقصد ددې عبارت په اضافې سره دې خبرې طرف ته اشاره کول دي چه دا زلزله به په دنيا کښې وي او د مغرب د طرفه به د نمر د راختلو نه مخکښې وي اوهم ددې قول تائيد دالله تعالی د قول تذهل كل مرضعة عما أرضعت سره هم کيږي.

**قوله:** بالفعل: ددې مطلب دادې چه چه د پي ورکولو حالت کښې مور بچي طرف ته پوره متوجه وي په داسې حالت کښې هم دا سخته زلزله چه اوگوري نو دخپل بچي نه به غافله

شي، په عما أرضعت کښې ما مصدریه هم کیدې شی أی عن إرضاعها او موصوله هم کیدې شی أی عن الذی أرضعه.

قوله: یوم ترونها: د یوم په نصب کښې یو څو وجوه دی: ① د تذهل په وجه منصوب دې ② أذکر د فعل محذوف په وجه منصوب دې. ③ د الساعة نه بدل دې ④ د عظیم په وجه منصوب دې.

قوله: تذهل: د ترونها د ضمیرنه حال دې او رؤیت بصری مراد دې.

قوله: ولکن عذاب الله شدید: دا د محذوف نه استدراک دې فهذه الأحوال المذکورة لیست بشدیدة ولکن عذاب الله شدید، د لکن مابعد د ماقبل مخالف وی.

قوله: وجماعة: د جماعت نه مراد ابوجهل او ابی بن خلف وغیره دی.

قوله: کمال قدرتنا: ددې عبارت د مقدر منلو مقصد دې خبرې طرف ته اشارهٔ کول دی چه دا د لنبین لکم مفعول محذوف دې.

قوله: طفلا: دا د نخرجکم د کم ضمیرنه حال دې او طفلا چونکه مصدر دې چه ددې په وجه په معنی د جمع کښې دې لکه څرنګه چه مفسر علام اشاره کړې ده.

قوله: ارذل العمر: د کمزورئ بې کاره عمر خَرَف د دوارو په فتحې سره د زیات عمر (بوډاتوب) په وجه د عقل فساد یعنی چه عقل ئې ډیر زیات کمزورې شی.

قوله: لکیلا یعلم: ددې تعلق د یرد سره دې.

قوله: هامدة: د همدت النار نه مشتق دې، ددې معنی ده اور مړ کیدل.

قوله: ذلك بأن الله: په دې کښې درې قسمه اعراب کیدې شی: ① ذلك مبتداء او ورپسې ددې خبر او مشار الیه په ماقبل کښې تخلیق د بنی آدم وغیره دې. ② ذلك د مبتداء محذوف خبر دې، أی الأمر ذلك. ③ ذلك د فعل مقدر په وجه منصوب دې، أی فعلنا ذلك بسبب أن الله هو الحق.

قوله: یجادل فی الله.. الخ: یعنی دا سړې د الله په ذات او صفات کښې مجادله کوی حالانکه نه د هغه سره علم شته او نه دلیل، او نه د هغه سره څه روښانه کتاب دې، چه د هغې د وحی تائید ورته حاصل وی، یعنی د دلیل عقلی او نقلی نه بغیر د الله تعالی د ذات او صفاتو باره کښې جهګړه کوی، وأن الساعة اٰتیة وأنه یحی الموتی د پاره تاکید دې.

قوله: ونزول فی أبی جهل: ده نوم عمرو بن هشام دې او ابوجهل کنیت دې، د ده یو کنیت ابو الحکم هم دې، د ومن یجادل فی الله عطف په مخکښې من یجادل فی الله بغیر علم باندې دې

قوله نورمعه ددې تعلق د کتاب سره دې أی ملاوی کان معه.
قوله حال ثانی عطفه د مجادل د ضمير نه حال دې او د ليضل تعلق د مجادل سره دې
قوله عذاب الحريق دا اضافت د موصوف الى الصفت د قبيل څخه دې أی العذاب المحرق.
قوله أی بذی ظلم دا اشاره ده چه ظلام کومه چه د مبالغې صيغې ده. ذی ظلم، دا اسم فاعل په معنی کښې دې

**[ايالونه: ۱۱ - ۲۲]**

(وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَعْبُدُ اللّٰهَ عَلٰى حَرْفٍ) اي شك في عبادته شبه بالحال على حرف جبل في عدم ثباته (فَإِنْ أَصَابَهُ خَيْرٌ) صحة وسلامة في نفسه وماله (اطْمَأَنَّ بِهِ وَإِنْ أَصَابَتْهُ فِتْنَةٌ) محنة وسقم في نفسه وماله (انْقَلَبَ عَلٰى وَجْهِهِ) اي رجع إلى الكفر (خَسِرَ الدُّنْيَا) بفوات ما أمله منها (وَالْآخِرَةَ) بالكفر (ذٰلِكَ هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِينُ) البين (يَدْعُو) يعبد (مِنْ دُونِ اللّٰهِ) من الصنم (مَا لَا يَضُرُّهُ) إن لم يعبده (وَمَا لَا يَنْفَعُهُ) إن عبده (ذٰلِكَ) الدعاء (هُوَ الضَّلَالُ الْبَعِيدُ) عن الحق (يَدْعُو لَمَنْ) اللام زائدة (ضَرُّهُ) بعبادته (أَقْرَبُ مِنْ نَفْعِهِ) إن نفع بتخيله (لَبِئْسَ الْمَوْلٰى) هو اي الناصر (وَلَبِئْسَ الْعَشِيرُ) الصاحب هو وعقب ذكر الشاك بالخسران بذكر المؤمنين بالثواب في (إِنَّ اللّٰهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ) من الفروض والنوافل (جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ إِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيدُ) من إكرام من يطيعه وإهانة من يعصيه (مَنْ كَانَ يَظُنُّ أَنْ لَنْ يَنْصُرَهُ اللّٰهُ) اي محمدا نبيه (فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ فَلْيَمْدُدْ بِسَبَبٍ) بحبل (إِلَى السَّمَاءِ) اي سقف بيته يشده فيه وفي عنقه (ثُمَّ لْيَقْطَعْ) اي ليختنق به بأن يقطع نفسه من الأرض كما في الصحاح (فَلْيَنْظُرْ هَلْ يُذْهِبَنَّ كَيْدُهُ) في عدم نصرة النبي (مَا يَغِيظُ) منها المعنى فليختنق غيظا منها فلا بد منها (وَكَذٰلِكَ) اي مثل إنزالنا الآية السابقة (أَنْزَلْنَاهُ) اي القرآن الباقي (آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ) ظاهرات حال (وَأَنَّ اللّٰهَ يَهْدِي مَنْ يُرِيدُ) هدايته معطوف على هاء انزلناه (إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَادُوا) هم اليهود (وَالصَّابِئِينَ) طائفة منهم (وَالنَّصَارٰى وَالْمَجُوسَ وَالَّذِينَ أَشْرَكُوا إِنَّ اللّٰهَ يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ) بإدخال المؤمنين الجنة وإدخال غيرهم النار (إِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ) من عملهم (شَهِيدٌ) عالم به علم مشاهدة (أَلَمْ تَرَ) تعلم (أَنَّ اللّٰهَ يَسْجُدُ لَهُ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ وَالشَّمْسُ وَالْقَمَرُ وَالنُّجُومُ وَالْجِبَالُ وَالشَّجَرُ وَالدَّوَابُّ) اي يخضع له بما يراد منه (وَكَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ) وهم المؤمنون بزيادة على الخضوع في سجود الصلاة (وَكَثِيرٌ حَقَّ عَلَيْهِ الْعَذَابُ) وهم الكافرون لأنهم أبوا السجود المتوقف على الإيمان (وَمَنْ يُهِنِ اللّٰهُ) يشقه (فَمَا لَهُ مِنْ مُكْرِمٍ) مسعد (إِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يَشَاءُ) من الإهانة والإكرام (هٰذَانِ خَصْمَانِ) اي المؤمنون خصم والكفار الخمسة خصم وهو يطلق على الواحد والجماعة (اخْتَصَمُوا فِي رَبِّهِمْ) اي في دينه (فَالَّذِينَ كَفَرُوا قُطِّعَتْ لَهُمْ ثِيَابٌ مِنْ نَارٍ) يلبسونها يعني احيطت بهم النار (يُصَبُّ مِنْ فَوْقِ رُءُوسِهِمُ الْحَمِيمُ) الماء البالغ نهاية الحرارة (يُصْهَرُ) يذاب (بِهِ مَا فِي بُطُونِهِمْ) من شحوم وغيرها (وَ) تشوى به (الْجُلُودُ) (وَلَهُمْ مَقَامِعُ مِنْ

حدید، لضرب رؤوسهم ﴿كُلَّمَا أَرَادُوا أَنْ يَخْرُجُوا مِنْهَا﴾ أي النار ﴿مِنْ غَمٍّ﴾ يلحقهم بها ﴿أُعِيدُوا فِيهَا﴾ ردوا إليها بالمقامع ﴿وَ﴾ قيل لهم ﴿ذُوقُوا عَذَابَ الْحَرِيقِ﴾ أي البالغ نهاية الإحراق

ترجمه: او بعضې خلق داسې هم وی چه د الله بندګی په یوه غاړه باندې کیدو سره کوی یعنی دهغه عبادت به تذبذب (شک) سره کوی په شک سره دعبادت کونکی حالت لره په نه مضبوط کیدو کښې دهغه سړی دحالت سره تشبیه ورکړې شوې ده څوک چه د غر په غاړه ولاړ وی لهذا که هغه ته څه خیر اورسیدلو یعنی دهغه په ځان اومال کښې صحت او سلامتیا نو په دغه دین باندې مطمئن کیږی او که چرې څه آفت یعنی دهغه په ځان اومال کښې محنت او مرض اورسیدو نوهغه په مخه پاسیږی اوځی یعنی کفرطرف ته واپس کیږی، د کومې دنیا د ملاویدو چه امید وو د هغې د نه ملاویدو د وجې نه د دنیا نقصان اوشو، او د کفر په وجه نې د آخرت نقصان اوشو، او هم دا ښکاره نقصان دې، الله پاک لره پریخودلو سره د بتانو بندګی کوی، که د هغه بندګی اونکړې شی نو هغه ورته نقصان نه شی رسولې او که د هغه بندګی کوی نو هغه ته نفع نه شی رسولې دا بندګی انتهاء درجې د حق نه ګمراهی ده د داسې څیز بندګی کوی چه د هغې د عبادت نقصان د دې د نفع نه زیات قریب دې بالفرض که ددې د خیال مطابق نفع وی، په ﴿لمن﴾ کښې لام زائده دې، یقینا داسې مولی یعنی مددګار بد دې او هغه بد ملګرې دې، د شک کونکی د نقصان د ذکر کولو نه پس د مومنان د ثواب ذکر فرمائی بیشکه الله پاک به ایمان والو لره او هغه خلقو لره چا چه اعمال صالحه د فرائض او نوافل د قبیلې نه کړې وی په داسې باغونو کښې داخل کړی چه په هغې کښې به نهرونه جاری وی او الله پاک چه څه غواړی هغه کوی برابره خبره ده که د هغه د اطاعت کونکی اکرام وی یا د هغه د نافرمان اهانت وی او کوم سړې چه دا خیال کوی چه الله پاک به د خپل نبی محمد ﷺ په دنیا او آخرت کښې مدد اونه کړی نو داسې کس له پکار دی چه په لوړه باندې یوه رسۍ اوتړی، یعنی د خپل کور په چهت کښې دې د رسۍ یو سر اوتړی او دویم طرف دې په خپل ستې کښې واچوی، بیا دې په هغې سره خپل ځان پهانسی کولو سره خودکشی اوکړی په دې طریقه چه خپله ساه د دنیا نه منقطع کړی (په صحاح کښې هم داسې دی) بیا دې غور اوکړی چه ایا د هغه دا تدبیر خودکشی د رسول الله ﷺ د عدم نصرت په باره کښې هغه څیز ختمولې شی کوم چه هغه په غصه کښې اچولې دې، د آیت کریمه معنی دا ده چه د غصې په وجه دې خودکشی اوکړی، او د محمد ﷺ نصرت ضروری دې او هم دغه شان یعنی څنګه چه آیات سابقه مونږ نازل کړی دی باقی قرآن کریم هم مونږ نازل کړې دې حال دا دې چه واضح آیتونه دی ﴿آیات﴾ د ﴿انزلناه﴾ د ضمیر نه حال دې او بیشکه الله پاک چه د چا د هدایت اراده اوکړی نو هغه ته هدایت نصیب کوی او د ﴿ان الله یهدی الخ﴾ عطف د ﴿انزلناه﴾ په ﴿ه﴾ ضمیر باندې دې (تقدیر د عبارت

دا دي ﴿ انزلنا القرآن وانزلنا ان الله يهدي من يريد ﴾ په دې کښې هيڅ شک نشته چه مومنان او هغه خلق چا چه يهوديت اختيار کړو او دا يهود دی او صابئين کوم چه د يهودو يو جماعت دې او نصاری او مجوسيان او مشرکين الله پاک به د دې ټولو ترمينځه د قيامت په ورځ مومنانو لره جنت ته داخلولو او غير مومنين لره جهنم ته داخلولو سره فيصله اوکړی بيشکه الله پاک د هغوی په اعمالو کښې د هر څيز نه خبردار دې يعنی هغه ته علم مشاهده حاصل دې اې مخاطب آيا تاته دا خبره معلومه نه ده چه د الله پاک په وړاندې ټول عاجزی کوی کوم چه په اسمانونو کښې دی او په زمکو کښې دې او شمس او قمر او ستوری او غرونه او اونې او څاروی هم يعنی هر يو د هغه د حکم تابع دې په هغه خبره کښې کومه چه د هغه نه مطلوب ده او ډير انسانان هم (عاجزی کوی) او هغوی مومنان دی، په سجدهٔ صلاة کښې (عام) خضوع باندې زيادت سره او ډير داسې دی چه په هغوی باندې د عذاب استحقاق ثابت شوې دې او هغه کافر دی ځکه چه هغوی د هغه سجدې نه انکار کړې دې کومه چه په ايمان باندې موقوف ده، او څوک چه الله پاک ذليل کړی بدبخته ئې کړی هغه ته څوک عزت ورکونکې نشته يعنی هغه لره سعيد کونکې نشته، الله پاک د سپکاوی او اکرام نه چه څه غواړی ئې کوی دا دوه فريق دی مومنان يو فريق دې او کفار خمسه دويم فريق او د خصم اطلاق په واحد او جمع دواړو باندې کيږی، هغوی د خپل رب يعنی د هغه د دين په باره کښې جهګړه کړې ده نو د کفارو دپاره به د د اور جامې پرې کولې شی هغه به اغوندی يعنی اور به په هغوی باندې احاطه اوکړی او د هغوی په سرونو باندې به ماء حميم يعنی انتهائی سختې ګرمې اوبه پرې بهيولې شی چه په هغې سره به د هغوی د خيټې ټول څيزونه ويلی کړې شی وازګه غيره او څرمنې به د هغه ګرمو اوبو د وجې نه ورتې کړې شی، او د هغوی د سزا دپاره د اوسپنې ستکونه دی يعنی د هغوی په سرونو باندې د وهلو دپاره او چه کله هم په هغه اور سره هغوی ته د غم رسيدلو د وجې نه د تختيدلو اراده کوی د ستکونو په ذريعه به هغې ته بيرته واپس کولې شی او هغوی ته به وئيلې شی د سوزيدو عذاب اوڅکئ يعنی کوم به چه د سيزلو انتهائی حد ته رسيدلې وی

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** عَلَىٰ حَرْفٍ: دا د ﴿ يعبد ﴾ د ضمير فاعل نه حال دې ای يعبد متزلزلا.

**قوله:** شُبِّهَ بِالْحَالِ عَلَىٰ حَرْفِ جَبَلٍ فِي عَدَمِ ثَبَاتِهِ: په دې کښې دې طرف ته اشاره ده چه په آيت کريمه کښې استعاره تمثيليه دې او هغه دا ده چه په آيت کريمه کښې د هغه چا حالت لره کوم چه بغير د يقين او اعتقاد نه په اسلام کښې داخل شوې وی په تزلزل او عدم ثبات کښې د هغه سړی د حال سره تشبيه ورکړې شوې ده کوم چه د يو څيز په کناره باندې ولاړ وی هر وخت هغه د بې اطمينانئ په کيفيت کښې وی.

**قوله**: مَا أَمَلَهُ: ( ما امله )دا د ماضي صيغه هم كيدې شي او ( امل ) په معنى د اميد هم كيدې شي.

**قوله**: اللَّامُ زَائِدَةٌ لمن باندې لام زائده دې اود (من يدعوا) مفعول دې ( ضره )مبتدا ده او (اقرب)د خپل متعلق سره خبر دې او بيا جمله د ( من )موصوله صله ده او موصول صله د ( يدعوا)مفعول به دې.

**قوله**: بِعِبَادَتِهِ : اى بسبب عبادته.

**قوله**: لَبِئْسَ الْمَوْلَى ....هو.... مخصوص بالذم دې، ( الناصر)د مولى تفسير دې، هم دغه شان (الصاحب) د (العشير)تفسير دې، او ( هو)مخصوص بالذم دې قول المفسر بالخسران متلبسا ... محذوف سره متعلق كيدو سره د ( شاك )نه حال دې وكذا يقال ما بعده قول المفسر بذكر المومنين : عقب سره متعلق دې قوله تعالى ان الله يدخل الذين الخ د ذكر ثانى صفت دې اى الذكر الكائن فى هذه الاية، قول المفسر من اكرام من يطيعه الخ په دې كښې لف نشر غير مرتب دې بنصره كښې ضمير محمد ﷺ طرف ته راجع دې د معهود فى الذهن كيدو د وجې نه، ( السماء)چه د سر دپاسه كوم څيز وى هغې ته سماء وئيلې شي، مقوله ده چه ما هو على راسه فهو سماء.

**قوله**: فَلْيَمْدُدْ: كښې ( من )كه شرطيه وى نو ( فليمدد )به د هغې جزا وى او كه (من) موصوله وى نو فاء به ( فليمدد)كښې به د جزاء مشابه كيدو د وجې نه وى.

**قوله**: بِأَنْ يَقْطَعَ نَفَسَهُ: بان يقطع نفسه د ( نفسه ) اضافه كولو سره اشاره ئې اوكړه چه د ( ليقطع)مفعول محذوف دې ( من الارض )نه مراد حيات دنيوى دې چه كله ( نفسه)د فا په فتحې سره اولوستلې شي او كه نفسه د فاء په سكون سره وى نو په دې صورت كښې به دنفس نه مراد خپله د هغې ذات وى، او د ارض نه مراد به زمكه وى، مطلب به دا وى چه په چهت وغيره كښې دې د رسئ يو سر اوتړى او بل سر دې په خپل سټ كښې واچوى او په يو څيز باندې د اودريدلو سره دې د زمكې سره خپل تعلق ختم كړى چه په رسئ سره ئې ساه بنده شي او د هغه مرګ واقع شي، ( ما يغيظ منها)منها، د ( ما)بيان دې او د دې نه مراد نصرت دې، ( ما يغيظ )كښې ما موصوله په معنى د ( الذى )ده، ( يغيظ )دد دې صله ده عائد په دې كښې محذوف دې، او موصول او صله د ( يذهبن )مفعول دې تقدير د عبارت داسې دې ( هل يذهبن كيده الشئ الذى يغيظه وهو نصرة النبى صلى الله عليه وسلم) (يغيظه)كښې ضمير فاعل ( الذى )د اسم موصول طرف ته راجع دې، او ضمير د مفعول د (من كان يظن)طرف ته راجع دې.

قوله: غَيْظًا مِنْهَا... اى من اهلها
قوله: فَلَابُدَّ مِنْهَا اى من النصرة... تقدير د عبارت دا سې دي للتحقيق لانه لابد من النصرة.
قوله: حال: يعنى لفظ آيات د ﴿ انزلناه ﴾ د ضميرنه حال دي، او ﴿ بينات ﴾ د ﴿ آيات ﴾ صفت دي.
قوله: هُدَاهُ... د دي اضافه كولو اشاره ده د يريد مفعول محذوف طرف ته.
قوله: وَأَنَّ اللَّهَ يَهْدِي: د دې عطف د انزلناه په ضمير باندي دې، اى انزلناه وانزلنا ان الله يهدى من يريد.
قوله: وَكَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ، د دې عطف د ﴿ يسجد ﴾ په فاعل يعنى ﴿ من فى السموات ﴾ باندې دې، يعنى د تكوينى او اضطرارى خضوع نه علاوه بعض انسانان اختيارى يعنى دسجدې وغيره په ذريعه هم خضوع كوى.
قوله: هَذَانِ خَصْمَانِ: د شپږو ډلو ذكر شوې دې په هغې كښې يو فريق مومن دې او باقى پنځه كافر دى، په دې طريقې سره ټول دوه نوع شوې، يو فريق مومن او دويم كافر، هم په دې وجه خصمان په صيغه د تثنيه سره ذكر كړې شوې دې، د فريق مومن په مقابل كښې پنځو فريقو لره د خصم واحد په صيغې سره تعبير كړې شوې دې ځكه چه خصم مصدر دې او د مصدر اطلاق په واحد او جماعت دواړو باندې كيږى.
قوله: اخْتَصَمُوا: دلته د جمع صيغه استعمال كړې شوې ده ځكه چه فريق په خو افرادو باندې مشتمل وى، لهذا فريق د لفظ په اعتبار سره واحد او د معنى په اعتبار سره جمع دې، لكه ﴿ قوم ورهط ﴾
قوله: فِي دِينِهِ: دا اشاره ده چه مضاف محذوف دې.
قوله: تُشْوَي بِهِ الْجُلُود: په دې كښې اشاره ده چه جلود د فعل محذوف د وجې نه مرفوع دې، ځكه چه په ﴿ ما فى بطونهم ﴾ باندې ئې عطف درست نه دې ځكه چه څرمن د ويلې كيدو ځيز نه دې.
قوله: ولهم مقامع... د لهم په ضمير كښې دوه احتمالات دى اول دا چه الذين كفروا طرف ته راجع وى په دې صورت كښې به لام د استحقاق دپاره وى او دويم احتمال دا چه ﴿ هم ﴾ ضمير به د زبانيه (د دوزخ څوكيدارانو) طرف ته راجع وى اودا د سياق اوسباق نه معلوميږى.
قوله: المقامع: جمع د مقمعة ده ... يعنى ستک

[آيت نمبر: ۲۳ - ۲۵]

وَقَالَ فِي الْمُؤْمِنِينَ إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ وَلُؤْلُؤٍ بِالْجَرِّ أَيْ مِنْهُمَا بِأَنْ يُرَصَّعَ اللُّؤْلُؤُ بِالذَّهَبِ وَبِالنَّصْبِ عَطْفًا عَلَى مَحَلِّ مِنْ أَسَاوِرَ

﴿وَلِبَاسُهُمْ فِيهَا حَرِيرٌ﴾ هُوَ الْمُحَرَّمُ لُبْسُهُ عَلَى الرِّجَالِ فِي الدُّنْيَا ﴿وَهُدُوا﴾ فِي الدُّنْيَا ﴿إِلَى الطَّيِّبِ مِنَ الْقَوْلِ﴾ وَهُوَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ ﴿وَهُدُوا إِلَىٰ صِرَاطِ الْحَمِيدِ﴾ أَيْ طَرِيقِ اللّٰهِ الْمَحْمُودَةِ وَدِينِهِ ﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللّٰهِ﴾ طاعته ﴿وَ﴾عن ﴿الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ الَّذِي جَعَلْنَاهُ﴾ مَنْسَكًا وَمُتَعَبَّدًا ﴿لِلنَّاسِ سَوَاءً الْعَاكِفُ﴾ المقيم ﴿فِيهِ وَالْبَادِ﴾ الطارئ ﴿وَمَن يُرِدْ فِيهِ بِإِلْحَادٍ﴾ اَلْبَاءُ زَائِدَةٌ ﴿بِظُلْمٍ﴾ أَيْ بِسَبَبِهِ بِأَنْ ارْتَكَبَ مَنْهِيًّا وَلَوْ شَتْمَ الْخَادِمِ ﴿نُّذِقْهُ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ﴾ مُؤْلِمٍ أَيْ بَعْضِهِ وَمِنْ هٰذَا يُؤْخَذُ خَبَرُ إِنَّ أَيْ نُذِيقُهُمْ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ

ترجمه: الله پاک به هغه خلقو لره چه ایمان ئې راوړي دي او نیک اعمال ئې کړه دي داسې باغونو ته داخل کړي چه په هغې کښې به نهرونه جاري وي، هغوی ته به هلته د سرو زرو کړئ او ملغلرې واچولې شي، او په جنت کښې به د هغوی جامې د ریښمو وي چه د هغې اچول د سرو دپاره په دنیا کښې حرام دي، ﴿لؤلؤ﴾ په جر سره، یعنی کړئ به د سرو زرو او ملغلرو نه جوړې وي، په دې طریقې سره چه ملغلرې به سرو زرو لګیدلې وي او لؤلؤا په نصب سره هم دې د ﴿اساور﴾ په محل باندې د عطف کیدو د وجې نه او هغوی ته په دنیا کښې د کلمه طیبه طرف ته هدایت کړې شوې وو او هغه لا اله الا الله ده او هغوی ته د هغه ذات د لارې طرف ته هدایت کړې شوې کوم چه د تعریف لائق دې یعنی د الله پاک خوښه لاره او د هغه دین دې بیشکه کومو خلقو چه کفر اختیار کړو او د الله پاک د لارې نه یعنی د هغه د اطاعت نه او د مسجد حرام نه ئې خلق منع کړي کوم چه مونږ د قربانئ ځائې او عبادت ګاه جوړ کړې دې د ټولو خلقو دپاره په هغې کښې مقیم او مسافر ټول برابر دي، څوک هم چه هلته په ظلم سره کږه لاره اختیاروي نو مونږ به هغه کس ته دردونکې عذاب یعنی د هغې بعض حصه اوڅکوو، بالحاد... کښې باء زائده ده، بظلم ای بسبب ظلم.... په داسې طریقه چه د یو غیر مشروع کار ارتکاب اوکړي اګر چه خادم ته بدې ردې ولې نه وي، او هم د دې ﴿نذقه﴾ د لفظ نه به د ﴿ ان ﴾ خبر اخذ کولې شي ای نذقهم من عذاب الیم.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: مِنْ أَسَاوِرَ کښې من تبعیضیه دې ای بعض الاساور... من بیانیه هم کیدې شي او زائده هم. او من په من ذهب کښې د بیان دپاره دې.

قوله: الاساور د اسورة جمع ده، او اسورة د سوار جمع ده، په معنی د کړئ، سوار کښې ضمه او فتحه دواړه لغتونه دي، لؤلؤا په جر سره په اساور باندې عطف دې او لؤلؤا په نصب سره د اساور په محل باندې عطف دې ای یحلون لؤلؤا چونکه لؤلؤا په الف سره لیکلې شوې دې، لهذا نصب به د رسم الخط د مقتضی مطابق وي.

قوله: يَصُدُّونَ: د یصدون په اعراب کښې درې وجوه کیدې شي. ① د یصدون عطف په

(كفروا) باندې وي، په دې صورت كښې به دا اعتراض وي چه د مضارع عطف په ماضي باندې صحيح نه دې؟ د دې درې جوابونه دي ①اول جواب د مضارع نه بعض وخت د حال يا استقبال معنى مراد نه وي بلكه ددې نه استمرار مراد وي، چه په هغې كښې ماضي هم شامل ده، ②دويم جواب، مضارع د ماضي په تاويل كښې ده، ③دريم جواب: مضارع په خپل حال ده، البته ماضي په معنى د مستقبل ده، ④د يصدون د اعراب دويمه وجه يصدون دكفرواد ضميرِ فاعل نه حال دې، خو دا ظاهر البطلان دې، ځكه چه مضارع مثبت كه حال واقع شي نو په هغې باندې واو نه داخليږي، حال دا چه دلته واو موجود دې، ③ د ( يصدون ) په اعراب كښې دريمه وجه، په ويصدون كښې د ( ان ) په خبر باندې واو زائده دې، تقدير د عبارت داسې دې ( ان الذين كفروا يصدون ) او د واوْ زيادت د كوفيانو مذهب دې.

**قوله: منسكا:** دا د جعلناه د مفعول زماني طرف ته اشاره ده.

**قوله: سواء:** د جعلناه د مفعول ثاني كيدو د وجې نه منصوب دې او سواءبه په معنى د مستويا وي، او العاكف د دې په ذريعه مرفوع دې، او سواء د حال كيدو د وجې نه هم منصوب كيدې شي، جمهورو سواء لره د مبتدا كيدو د وجې نه مرفوع لوستلې دې، د دې خبر عاكف دې يا د دې عكس دې.

**قوله: وَمَنْ يُرِدْ فِيهِ بِإِلْحَادٍ بِظُلْمٍ نُذِقْهُ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ:** د يرد مفعول د تعميم په غرض سره محذوف دې، تقدير د عبارت داسې دې : ومن يرد فيه مرادا. الحاد په لغت كښې عدول او ميلان عن الحق ته وئيلې شي.

**قوله: من هذا اي نذقه:** يعني نذقه لفظ نه د ان خبر محذوف فهميږي شي، او هغه نذقهم من عذاب اليم دې.

**[ ايات توله: ۲٦ - ۳۲ ]**

(و) اذكر (إذ بوأنا) بينا (لإبراهيم مكان البيت) ليبنيه وكان قد رفع زمن الطوفان وأمرناه (أن لا تشرك بي شيئا وطهر بيتي) من الأوثان (للطائفين والقائمين) المقيمين به (والركع السجود) جمع راكع وساجد المصلين (وأذن) ناد (في الناس بالحج) فنادى على جبل أبي قبيس يايها الناس إن ربكم بنى بيتا وأوجب عليكم الحج إليه فأجيبوا ربكم والتفت بوجهه يمينا وشمالا وشرقا وغربا فأجابه كل من كتب له أن يحج من أصلاب الرجال وأرحام الأمهات لبيك اللهم لبيك وجواب الأمر (يأتوك رجالا) مشاة جمع راجل كقائم وقيام (و) ركبانا (على كل ضامر) أي بعير مهزول وهو يطلق على الذكر والأنثى (يأتين) أي الضوامر حملا على المعنى (من كل فج عميق) طريق بعيد (ليشهدوا) أي يحضروا (منافع لهم) في الدنيا

بالتجارة او في الآخرة فيهما اقوال ﴿وَيَذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ فِي أَيَّامٍ مَعْلُومَاتٍ﴾ اي عشر ذي الحجة أو يوم عرفة أو يوم النحر إلى آخر أيام التشريق أقوال ﴿عَلَى مَا رَزَقَهُمْ مِنْ بَهِيمَةِ الْأَنْعَامِ﴾ الإبل والبقر والغنم التي تنحر في يوم العيد وما بعده من الهدايا والضحايا ﴿فَكُلُوا مِنْهَا﴾ إذا كانت مستحبة ﴿وَأَطْعِمُوا الْبَائِسَ الْفَقِيرَ﴾ اي الشديد الفقر ﴿ثُمَّ لْيَقْضُوا تَفَثَهُمْ﴾ اي يزيلوا أوساخهم وشعثهم كطول الظفر ﴿وَلْيُوفُوا﴾ بالتخفيف والتشديد ﴿نُذُورَهُمْ﴾ من الهدايا والضحايا ﴿وَلْيَطَّوَّفُوا﴾ طواف الإفاضة ﴿بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ﴾ اي القديم لأنه أول بيت وضع للناس ﴿ذَلِكَ﴾ خبر مبتدأ مقدر اي الأمر أو الشأن ذلك المذكور ﴿وَمَنْ يُعَظِّمْ حُرُمَاتِ اللَّهِ﴾ هي ما لا يحل انتهاكه ﴿فَهُوَ﴾ اي تعظيمها ﴿خَيْرٌ لَهُ عِنْدَ رَبِّهِ﴾ في الآخرة ﴿وَأُحِلَّتْ لَكُمُ الْأَنْعَامُ﴾ أكلا بعد الذبح ﴿إِلَّا مَا يُتْلَى عَلَيْكُمْ﴾ تحريمه في ﴿حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ﴾ الآية فالاستثناء منقطع ويجوز أن يكون متصلا والتحريم لما عرض من الموت ونحوه ﴿فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ﴾ من للبيان اي الذي هو الأوثان ﴿وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّورِ﴾ اي الشرك بالله في تلبيتكم أو شهادة الزور ﴿حُنَفَاءَ لِلَّهِ﴾ مسلمين عادلين عن كل دين سوى دينه ﴿غَيْرَ مُشْرِكِينَ بِهِ﴾ تأكيد لما قبله وهما حالان من الواو ﴿وَمَنْ يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَكَأَنَّمَا خَرَّ﴾ سقط ﴿مِنَ السَّمَاءِ فَتَخْطَفُهُ الطَّيْرُ﴾ اي تأخذه بسرعة ﴿أَوْ تَهْوِي بِهِ الرِّيحُ﴾ اي تسقطه ﴿فِي مَكَانٍ سَحِيقٍ﴾ بعيد فهو لا يرجى خلاصه ﴿ذَلِكَ﴾ يقدر قبله الأمر مبتدأ ﴿وَمَنْ يُعَظِّمْ شَعَائِرَ اللَّهِ فَإِنَّهَا﴾ اي فإن تعظيمها وهي البدن التي تهدى للحرم بأن تستحسن وتستسمن ﴿مِنْ تَقْوَى الْقُلُوبِ﴾ منهم وسميت شعائر لإشعارها بما تعرف به أنها هدي كطعن حديد بسنامها ﴿لَكُمْ فِيهَا مَنَافِعُ﴾ كركوبها والحمل عليها ما لا يضرها ﴿إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى﴾ وقت نحرها ﴿ثُمَّ مَحِلُّهَا﴾ اي مكان حل نحرها ﴿إِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيقِ﴾ اي عنده والمراد الحرم جميعه

**ترجمه:** او د هغه واقعې ذکر اوکړه چه کله مونږ ابراهیم ته د خانه کعبې د ځائې ښودنه اوکړه چه د هغې تعمیر اوکړی او بیت الله د طوفان (نوح) په زمانه کښې اوچت کړې شوې وو، او مونږ هغه ته دا حکم ورکړې وو چه ما سره یو څیز هم مه شریکوه او زما کور د بتانو نه د طواف کونکو دپاره او د قیام او رکوع او سجده کونکو دپاره پاک ساته، ﴿ رکع ﴾ جمع د ﴿ راکع ﴾ ده او ﴿سجود﴾ جمع د ﴿ ساجد ﴾ ده او مراد ترې مونځ کونکی دی، او خلقو کښې د حج اعلان اوکړه پس سیدنا ابراهیم ﷺ په جبل ابی قبیس باندې ختلو سره اعلان اوفرمائیلو "اې خلقو ستاسو رب یو کور جوړ کړې دې او په تاسو باندې ئې د دې حج واجب کړې دې لهذا تاسو د خپل رب په اواز باندې لبیک اووائی او سیدنا ابراهیم ﷺ خپل مخ مبارک ښی او کس طرف ته شرقا او غربا تاو کړو، پس د سیدنا ابراهیم ﷺ په اواز باندې د سړو د شا نه او د زنانو د رحمونو نه هر هغه کس لبیک اوونیلو چه د هغه په قسمت کښې حج لیکلې شوې وو ﴿ لبیك اللهم لبیك ﴾ او جواب امر "یأتوك رجالا" دې د رجالا معنی ده پیاده راتلونکی او ﴿ رجال ﴾ جمع د ﴿ راجل ﴾ ده لکه د ﴿ قائم ﴾ جمع چه ﴿ قیام ﴾ ده، خلق به تاته

راځي پيدل او سواره په كمزورو اوښانو باندې، ضامر مانده اوښ ته ونيلې شي د دې اطلاق په نر او ښځه دواړو باندې كيږي هغه اوښې به راځي د لرې لرې لارو نه (يأتين) په صيغه د جمع سره د ضامر د معنى د رعايت د وجې نه راوړلې شوې دې د دې دپاره چه د تجارت په ذريعه د خپلو دنيوى فوائدو دپاره يا د آخروى فوائدو يا دواړو فوائدو دپاره د خپل منافع ځائې ته حاضر شى دا درې اقوال دى او (او د دې دپاره راشى) چه په ايام مقرره يعنى عشره ذى الحجه يا يوم عرفه يا يوم نحر كښ د ايام تشريق تر آخرى ورځو پورې، دا درې اقوال دى، په هغه څارو باندې د الله پاك نوم واخلى كوم چه الله پاك هغوى ته وركړې دى او هغه اوښان، غواګانې او بيزې دى كومې چه په يوم نحر كښ او د هغې نه روستو په هدايا او ضحايا كښ ذبح كولې شى پس تاسو ترې خپله هم خورئ كه هغه مستحب وى او فقير يعنى سخت حاجتمند باندې ترې هم خورئ بيا هغوى ته پكار دى چه خپل خيرى د ځان نه لرې كړى يعنى خيرى او ګندګى لكه غټ شوى نوكونه (وغيره) دې لرې كړى او هدى او د قربانئ څاروى ذبح كولو سره دې نذر پوره كړى (وليوفوا) د فاء په تخفيف او تشديد سره دې، او د بيت عتيق طواف افاضه (زيارت) دې اوكړى يعنى د پخوانى كور، څكه چه هغه اولنې كور دې چه جوړ كړې شوې دې ﴿ ذلك ﴾ د مبتدا محذوف خبر دې (د عبارت تقدير داسې دې) الامر ذلك المذكور يا الشأن ذلك المذكور يعنى ذكر شوې خبره خو پوره شوه او څوک چه د الله پاك د محترم څيزونو تعظيم اوكړى او دا هم هغه څيزونه دى د كومو چه بې حرمتى جائز نه ده نو د هغې تعظيم د هغه په حق كښ د هغه د رب په نزد په آخرت كښ غوره دې او ستاسو دپاره څاروى د ذبح كولو نه پس حلال كړې شوى دى د هغه څارو په استثناء سره چه د هغې حرمت تاسو ته په (حرمت عليكم الميتة) (الاية) كښ بيان كړې شوې دې نو دا مستثنى منقطع ده او د دې مستثنى متصل كيدل هم جائز دى او د حرمت د مرګ وغيره د لاحق كيدو د وجې نه دې پس تاسو د ګندګئ نه چه بتان دى ځان ساتئ من بيانيه دې يعنى رجس چه بتان دى او د دروغ خبرو نه ځان ساتئ يعنى د شرک فى التلبيه نه او د دروغو ګواهئ نه ځان ساتئ په داسې طريقه چه د الله پاك طرف ته ښكته شئ تابع فرمان اوسيږئ، د هغه د دين نه علاوه د هر يو څيز نه اعراض كوئ د هغه سره څوک مه شريكوئ دا د ماقبل تاكيد دې او دا دواړه (حنفاء او غير مشركين) د ﴿ اجتنبوا ﴾ د واؤ نه حال دې او كوم كس چه د الله پاك سره شرک اوكړو نو ګويا چه هغه د اسمان نه راپريوتلو بيا يا خو مارغان هغه اوتختوى يعنى زر ئې هغه اونيسى يا ئې هوا لرې ځائې ته اوغورځوى او مكان بعيد هغه دې چه د هغې د خلاصى توقع نه شى كيدې، دا مو واوريده د ﴿ ذلك ﴾ نه مخكښ ﴿ الامر ﴾ مبتدأ محذوف ده او واورئ كوم سړې چه د شعائر الله عزت او حرمت اوكړى بيشكه د هغې تعظيم د هغوى د پرهيزګارئ د وجې نه دې او

هغه، هغه اوښان دی کوم چه د حرم طرف ته په طور د هدی لیږلې شی، او د شعائر الله د تعظیم صورت دا دې چه د هغې ښه خیال اوساتی او هغې ته خوراک څکاک ورکړی او هغه خورب کړی، او دې د قربانئ څاروو ته شعائر په دې وجه وئیلې شی چه په هغې باندې یو داسې علامت لګولې شی چه د هغې په وجه هغه پیژندلې شی لکه د هغې په قب کښې په نیزې سره زخم لګول او ستاسو دپاره په هغې کښې د مقرر وخت یعنی د ذبح کیدو پورې څه منافع دی، مثلا په هغې باندې سوریدل او په هغې باندې د یو داسې څیز اوړل کوم چه هغې ته ضرر نه رسوی بیا د هغې مقام یعنی د هغې د قربانئ ځائې بیت الله ته نزدې دې او مراد ترې پوره حرم دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** بوأنا : بوأتبوئةنه د ماضی جمع متکلم دې، مونږ ځائې ورکړې دې، زجاج فرمائی د بوأنامعنی ده(بینا له مکان البیت لیبنیه ویکون مباءة له)مفسر علام د ﴿ بوانا﴾تفسیرپه ﴿ بینا﴾سره کولو کښې او دې خبرې طرف ته اشاره اوکړه چه ﴿لابراهیم﴾کښې لام زائده نه دې بلکه په طور د صله د تعدیه دپاره دې او که ﴿ بوانا﴾د ﴿انزلنا﴾په معنی کښې شی نو لام به زائده منل وی ځکه چه ﴿ بوانا﴾په دې وخت کښې متعدی بنفسه دې.

**قوله:** أَمَرْنَاهُ : په دې تقدیر سره ئې اشاره کړې ده چه ﴿ ان لاتشرك به﴾د محذوف معمول دې او د دې محذوف عطف په ﴿ بوانا﴾باندې دې، ﴿ وطهر بیتی﴾د دې نه مخکښې ﴿ امرنا﴾یا ﴿قلنا﴾محذوف دې.

**قوله:** ﴿یأتوك﴾ : د خطاب صیغه یا خو په دې وجه استعمال کړې شوه چه د حاجیانو بیت الله ته حاضری د سیدنا ابراهیم علیه السلام د اعلان په نتیجه کښې کیږی، یا مضاف محذوف دې ای یأتوا بیتك... او د بیت اضافت د کاف خطاب طرف ته د تعمیر د وجې نه دې.

**قوله:** ﴿ ضامر﴾ : نرې چه ملا ئې نرئ وی، دا د ﴿ ضمور﴾نه مشتق دې ﴿ تضمیر﴾وئیلې شی اس لره د خورب کولو نه پس زغلولو سره نرې کول چه هغه تیز رفتار شی.

**قوله:** ﴿ یَأْتِینَ ﴾دا د جمع صیغه ده د ضامر صفت دې حال دا چه ضامر مفرد دې، ﴿ کل ضامر﴾دجمع په معنی کښې دې د معنی د رعایت د وجې نه ﴿ یأتین ﴾د جمع په صیغه راوړلې شو ګنې ﴿یأتی﴾د واحد مذکر غائب صیغه راوړل پکار وو.

**قوله:** لِیَشْهَدُواد دې تعلق ﴿ اذن ﴾او ﴿ یأتوك﴾دواړو سره کیدې شی دویم ظاهر دې.

**قوله:** ﴿ إِذَاكَـانَتْ مُسْتَحَبَّةً﴾د امام شافعی رحمه الله په نزد دلته چونکه ضحایا واجبه نه د مالدار دپاره خوراک صحیح نه دې، په دې وجه مفسر علام د ﴿ اذا کانت مستحبة ﴾ اضافه

اوفرمائیله، د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد د دم جنایت نه سوا د مالدارو دپاره خوړل جائز دی، لکه دم تمتع او دم قرآن.

**قوله: طَوَافُ الْإِفَاضَةِ:** دا طواف رکن دې، هم دې ته طواف زیارت هم وئیلې شی دې ته افاضه په دې وجه وئیلې شی چه د دې وخت د عرفات نه د فارغیدو نه پس وی.

**قوله: الْبَيْتِ الْعَتِيقِ:** عتیق په دوؤ معنو کښې مستعمل دې اول په معنی د قدیم چونکه د عبادت خانې په طور بیت الله د ټولو نه اول جوړ کړې شوې دې، په دې وجه دې ته عتیق یعنی قدیم وئیل صحیح دی، او دویمه معنی، د ازاد ده یعنی عتیق په معنی د معتق، سیدنا ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه الله پاک چونکه دا د جبابره د تسلط نه ازاد کړې دې، په دې وجه ورته عتیق وئیلې شی، اوس پاتې شو د حجاج بن یوسف تسلط نو هغه سیدنا عبدالله بن زبیر رضی الله عنه لره د بیت الله نه ویستلو دپاره وو نه چه بیت الله لره د منهدم کولو په ارادې سره، او د مقصد پوره کیدو نه پس حجاج د بیت الله دوباره تعمیر کړې وو، او بعض حضرات د عتیق معنی د کریم هم بیان کړې ده، ای البیت الکریم. (جمل)

**قوله: تحریمه**... د تحریمه د اضافه کولو مقصد دې خبرې ته اشاره کول دی چه د ﴿یتلی﴾ نائب فاعل محذوف دې، مفسر علام که د تحریمه محذوف منلو په ځائې آیت التحریم محذوف منلې وې نو ډیره به بهتره وه ځکه چه متلو آیت تحریم دې نه چه تحریم.

**قوله: فَالِاسْتِثْنَاءُ مُنْقَطِعٌ:** الا ما یتلی علیکم دا مستثنی منقطع ده او مستثنی متصل هم کیدې شی په دې طریقه چه ﴿الا ما یتلی علیکم﴾ کښې ﴿ما﴾ نه مراد هغه مردار دې کوم چه د عارضِ موت د وجې نه مړ شوې وی یا غیر الله په نوم باندې ذبح کړې شوې وی، په دې صورت کښې چونکه مستثنی د مستثنی منه د جنس نه دې لهذا مستثنی به متصل وی.

**قوله: حُنَفَاءَ:** دا د ﴿اجتنبوا﴾ د ضمیر واؤ نه حال دې.

**قوله: شَعَائِرَ اللّٰهِ:** شعائر اعلام اعمال حج ته وئیلې شی، د دې واحد ﴿شعیرة﴾ یا ﴿شعارة﴾ دې او مشاعر د ﴿مواضع المناسك﴾ په معنی دې.

**قوله:** ﴿هی البدن﴾ په سیاق باندې حمل کولو سره د شعائر تفسیر ئې په ﴿بدن﴾ سره کړې دې، بهتره دا ده چه دا ئې عام ساتلې دې چه نورو شعائرو ته هم شامل شوې وې.

**قوله:** ﴿مِنْ تَقْوَى الْقُلُوبِ منهم﴾: د ﴿منهم﴾ اضافه کولو سره ئې اشاره اوکړه چه ﴿من یعظم﴾ کښې ﴿من﴾ موصوله دې او ﴿من تقوی القلوب﴾ جمله صله ده چه په هغې کښې د عائد کیدل ضروری دی او هغه ﴿منهم﴾ دې.

**قوله:** ﴿طَعْنٍ﴾ په نیزې سره زخم لګول ﴿سنام﴾ د اوښ قب ته وئیلې شی.

قوله: ﴿ كَرُكُوبِهَا ﴾ دا د امام شافعي رحمه الله په نزد دی د احنافو په نزد بغير د حالتِ اضطراري نه سوريدل صحيح نه دی.

قوله: ﴿ وَالْمُرَادُ الْحَرَمُ ﴾: قرب شئ ته د عين شئ حکم ورکړې شوې دې، ځکه چه هدی په بيت الله کښې نه شي ذبح کولې بلکه په حدود حرم کښې ذبح کول ضروري دی نه چه په بيت الله يا په مسجد حرام کښې، د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد په حدود حرم کښې د هدی ذبح کول ضروري دی.

قوله: ﴿ ثُمَّ مَحِلُّهَا إِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيقِ ﴾ يعنی د هدايا او ضحايا د ذبح کولو ځائې بيت الله ته نزدې دې يعنی په حدود حرم کښې که په مکه کښې وی او که په منی کښې وی.

**[اياتونه: ۳٤-۳۸]**

﴿وَلِكُلِّ أُمَّةٍ﴾ أَيْ جَمَاعَةٍ مُؤْمِنَةٍ سَلَفَتْ قَبْلَكُمْ ﴿جَعَلْنَا مَنسَكًا﴾ بِفَتْحِ السِّينِ مَصْدَرٌ وَبِكَسْرِهَا اسْمُ مَكَانٍ أَيْ ذَبْحًا قُرْبَانًا أَوْ مَكَانَهُ ﴿لِيَذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَى مَا رَزَقَهُمْ مِنْ بَهِيمَةِ الْأَنْعَامِ﴾ عِنْدَ ذَبْحِهَا ﴿فَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ فَلَهُ أَسْلِمُوا﴾ انْقَادُوا ﴿وَبَشِّرِ الْمُخْبِتِينَ﴾ الْمُطِيعِينَ الْمُتَوَاضِعِينَ ﴿الَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَجِلَتْ﴾ خَافَتْ ﴿قُلُوبُهُمْ وَالصَّابِرِينَ عَلَىٰ مَا أَصَابَهُمْ﴾ مِنَ الْبَلَايَا ﴿وَالْمُقِيمِي الصَّلَاةِ﴾ فِي أَوْقَاتِهَا ﴿وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ﴾ يَتَصَدَّقُونَ ﴿وَالْبُدْنَ﴾ جَمْعُ بَدَنَةٍ وَهِيَ الْإِبِلُ ﴿جَعَلْنَاهَا لَكُمْ مِنْ شَعَائِرِ اللَّهِ﴾ أَعْلَامِ دِينِهِ ﴿لَكُمْ فِيهَا خَيْرٌ﴾ نَفْعٌ فِي الدُّنْيَا كَمَا تَقَدَّمَ وَأَجْرٌ فِي الْعُقْبَى ﴿فَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهَا﴾ عِنْدَ نَحْرِهَا ﴿صَوَافَّ﴾ قَائِمَةً عَلَى ثَلَاثٍ مَعْقُولَةَ الْيَدِ الْيُسْرَى ﴿فَإِذَا وَجَبَتْ جُنُوبُهَا﴾ سَقَطَتْ إِلَى الْأَرْضِ بَعْدَ النَّحْرِ وَهُوَ وَقْتُ الْأَكْلِ مِنْهَا ﴿فَكُلُوا مِنْهَا﴾ إِنْ شِئْتُمْ ﴿وَأَطْعِمُوا الْقَانِعَ﴾ الَّذِي يَقْنَعُ بِمَا يُعْطَى وَلَا يَسْأَلُ وَلَا يَتَعَرَّضُ ﴿وَالْمُعْتَرَّ﴾ والسائل او المعترض ﴿كَذَٰلِكَ﴾ أَيْ مِثْلَ ذَٰلِكَ التَّسْخِيرِ ﴿سَخَّرْنَاهَا لَكُمْ﴾ بان تنحر وتركب والا فلم تطق ﴿لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾ إِنْعَامِي عَلَيْكُمْ ﴿لَنْ يَنَالَ اللَّهَ لُحُومُهَا وَلَا دِمَاؤُهَا﴾ أَيْ لَا يُرْفَعَانِ إِلَيْهِ ﴿وَلَٰكِنْ يَنَالُهُ التَّقْوَىٰ مِنْكُمْ﴾ أَيْ يُرْفَعُ إِلَيْهِ مِنْكُمُ الْعَمَلُ الصَّالِحُ الْخَالِصُ لَهُ مَعَ الْإِيمَانِ ﴿كَذَٰلِكَ سَخَّرَهَا لَكُمْ لِتُكَبِّرُوا اللَّهَ عَلَىٰ مَا هَدَاكُمْ﴾ أَرْشَدَكُمْ لِمَعَالِمِ دِينِهِ وَمَنَاسِكِ حَجِّهِ ﴿وَبَشِّرِ الْمُحْسِنِينَ﴾ أَيِ الْمُوَحِّدِينَ ﴿إِنَّ اللَّهَ يُدَافِعُ عَنِ الَّذِينَ آمَنُوا﴾ غَوَائِلَ الْمُشْرِكِينَ ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ خَوَّانٍ﴾ فِي أَمَانَتِهِ ﴿كَفُورٍ﴾ لِنِعْمَتِهِ وَهُمُ الْمُشْرِكُونَ الْمَعْنَى انه يعاقبهم.

ترجمه: او مونږ د هر امت دپاره يعنی د مومن جماعت دپاره کوم چه ستاسو نه مخکښې تير شوي دي قرباني کول په دې وجه مقرر کړې وو چه هغوی په دې مخصوص څاروو باندې د ذبح په وخت د الله پاک نوم واخلی کوم چه ئې هغوی ته ورکړې وو ﴿ منسکا ﴾ د سين په فتحې سره مصدر دې او د سين په کسرې سره اسم مکان دې، يعنی په طور د قربانئ ذبح کول، يا مقام د ذبح، نو ستا معبود يو دې پس هم د دې تابع فرمان اوسيږئ، او ته اطاعت کونکو يعنی تواضع اختيارونکو ته زيرې ورکړه کوم چه داسې دی چه کله د الله پاک ذکر کولې شي نو د هغوی

زړونه یریږي او کوم چه په هغه مصیبتونو باندې چه په هغوی باندې راځي صبر کوي، او څوک چه په خپل وخت کښې د مونځونو پابندي کوي او څه چه مونږ هغوی ته ورکړې دي د هغې نه خرچ خیرات کوي او (بدن) د (بدنة) جمع ده او هغه اوښ دې او (بدنة) مونږ ستاسو دپاره د الله پاک شعائر یعنې د هغه د دین علامت جوړ کړې دې او په دې څاروو کښې ستاسو دپاره خیر یعنې دنیوي نفع ده لکه چه مخکښې تیر شو او د آخرت اجر هم دې پس تاسو په دې باندې د نحر په وخت د الله پاک نوم اخلئ، حال دا چه هغه په دریو خپو باندې ولاړ وي او کس لاس ,خپه، ئې تړلې شوې وي پس کله چه هغه په یو اړخ باندې پریوځي یعنې کله چه هغه د نحر نه پس په زمکه باندې پریوځي راو د هغې ساه اوځي، نو هغه وخت د هغې نه د خوراک کولو دې د هغې نه خورئ او که خوښه مو وي نو داسې قانع ته هم ورکوئ چه که هغه ته څه ورکړې شي نو په هغې باندې صبر کوي او نه هغه سوال کوي او نه سوال ته تعرض کوي او معتر باندې هم یعنې چه سوال کوي یا تعرض کوي او هم دغه شان د دې مذکوره تسخیر په شان مونږ ستاسو دپاره دغه څاروي مسخر کړي دي په داسې طریقه چه راې مخاطبه، ته هغه ذبح کړې او په هغې باندې سورلي اوکړې کنې دا خو ستا د وس خبره نه وه د دې دپاره چه تاسو په خپل خان زما د انعام شکریه ادا کړئ، الله پاک ته نه خو د دې څاروو غوښه رسیږي او نه وینه رسیږي یعنې دا دواړه ځیزونه الله پاک ته نه رسولې کیږي آو البته ستاسو تقوی ورته رسیږي یعنې ایمان سره ستاسو نیک او د الله پاک دپاره خالص عمل هغه ته رسیږي او هم دغه شان ئې دغه څاروي ستاسو د حکم لاندې کړل دې دپاره چه تاسو د الله پاک لوئي بیان کړئ، په دې خبره چه تاسو ته ئې توفیق درکړو یعنې تاسو ته ئې د خپل دین د شعائرو د ادا کولو او د خپل حج مناسب ادا کولو توفیق درکړو او اې محمد ﷺ محسنینو یعنې موحدینو ته د دې خبرې زیرې ورکړه چه الله پاک به د ایمان والو دفاع کوي، د مشرکانو د مصیبت نه الله پاک هیڅ یو په امانت کښې خیانت کونکې او د هغه د نعمت ناشکري کونکې نه خوښوي او هغه مشرکان دي معنی دا ده چه هغوی ته به سزا ورکړي.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: (مَنْسَكًا) د سین په فتحې سره مصدر دې، قرباني کول، او د سین په کسرې سره اسم مکان دې یعنې د قربانۍ ځائې، (مَنْسَكًا) منسک په او نسک عربي ژبه کښې په څو استعمالیږي. ① د څاروي قرباني، ② ټول د حج افعال، ③ عبادت، دلته درې واړه معاني مراد کیدې شي. مجاهد وغیره دې ځائې کښې منسک د قربانۍ په معنی اخستلې دې، په دې صورت کښې به معنی دا وي د قربانۍ حکم کوم چه دې امت ته ورکړې شوې دې څه نوې حکم نه دې، اولنو امتونو ته هم دا حکم ورکړې شوې وو. قتاده دویمه معنی اخستلې ده په دې صورت کښې به د آیت کریمه مراد دا وي چه افعال حج چه څنګه په دې

امت باندې عائد کړې شوې دی په مخکښ امت باندې هم حج فرض وو، ابن عرفه دربعه معنی مراد کړې ده نو په دې صورت کښ به د ایت کریمه نه مراد دا وی چه مونږ د الله پاک عبادت په مخکښ تولو امتونو باندې فرض کړې وو.

**قوله:** ﴿ ذَبْحًا قُرْبَانًا ﴾: دا د معنی مصدری وضاحت دې او (قربانا) د (ذبحا) دپاره مفعول به دې او (مکانه) دا د دویمې معنی یعنی د اسم مکان وضاحت دې

**قوله:** ﴿ الْمُطِيعِينَ الْمُتَوَاضِعِينَ ﴾ مطیعین د مخبتین د لازم معنی بیان دې او متواضعین د اصل معنی بیان دې، ځکه چه اخبات ښکته (ژورې) زمکه کښ کوزیدو ته وائی

**قوله:** ﴿ وَهِيَ الْإِبِلُ ﴾ دا د امام شافعی رحمه الله قول دې، د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد په ابل او بقر دواړو باندې د بدنه اطلاق صحیح دې او هم دا قول د لغت او شرع موافق دې، په قاموس کښ دی ﴿ البدنة من الابل والبقر ﴾ په سنن ابی داؤد کښ د سیدنا جابر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه کله مونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د حج احرام اوتړلو او اوتلو نو هغه مونږ ته په ابل او بقر نه په هر یو بدنه کښ د اوؤ تنو د شرکت کولو حکم اوفرمائیلو او صحیح مسلم کښ د سیدنا جابر رضی الله عنه نه روایت دې چه مونږ به بدنه د اوؤ کسانو د طرف نه ذبح کوله، تپوس اوکړې شو او بقر (غوا) کښ؟ نو وې فرمائیل هغه هم بدنه ده. (حاشیه جلالین اختصارا)

**قوله:** ﴿ صَوَافَّ ﴾ جمع د ﴿ صاف ﴾ ده په معنی د قائمات، وجبت بمعنی سقطت، وجب الحائط نه مشتق دې، دیوال راپریوتلو مراد یخیدل دی.

**قوله:** ﴿ فَكُلُوا مِنْهَا إِنْ شِئْتُمْ ﴾ د ﴿ ان شئتم ﴾ اضافه دې خبرې ته اشاره کوی چه د ﴿ کلوا ﴾ امر د وجوب دپاره نه دې بلکه د اباحت او بیانِ جواز دپاره دې.

**قوله:** ﴿ غَوَائِلَ ﴾... غوائل محذوف منلو سره ئې اشاره اوکړه چه د ﴿ يدافع ﴾ مفعول محذوف دې

**قوله:** ﴿ عَلَى مَا هَدَاكُمْ ﴾ کښ ما مصدریه هم کیدې شی ای علی هدایته ایاکم او موصوله هم کیدې شی، ای علی ما هداکم الیه... د علی تعلق لتکبروا الله سره دې او تکبروا د تشکروا معنی لره متضمن دې چه د دې صله د ﴿ علی ﴾ سره صحیح شی

**[ایاتونه: ۳۹ - ۴۸]**

﴿أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ﴾ اي المؤمنين أن يقاتلوا وهذه اول آية نزلت في الجهاد ﴿بِأَنَّهُمْ﴾ اي بسبب أنهم ﴿ظُلِمُوا﴾ لظلم الكافرين إياهم ﴿وَإِنَّ اللَّهَ عَلَى نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ﴾ هم ﴿الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ بِغَيْرِ حَقٍّ﴾ في الاخراج وما اخرجوا ﴿إِلَّا أَنْ يَقُولُوا﴾ اي بقولهم ﴿رَبُّنَا اللَّهُ﴾ وحده وهذا القول حق فالاخراج به اخراج بغير

حق ﴿وَلَوْلَا دَفْعُ اللّٰهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ﴾ بدل بعض من الناس ﴿بِبَعْضٍ لَّهُدِّمَتْ﴾ بالتشديد للتكثير وبالتخفيف ﴿صَوَامِعُ﴾ للرهبان ﴿وَبِيَعٌ﴾ كنائس للنصارى ﴿وَصَلَوَاتٌ﴾ كنائس لليهود بالعبرانية ﴿وَمَسَاجِدُ﴾ للمسلمين ﴿يُذْكَرُ فِيهَا﴾ اي المواضع المذكورة ﴿اسْمُ اللّٰهِ كَثِيرًا﴾ وتنقطع العبادات بخرابها ﴿وَلَيَنصُرَنَّ اللّٰهُ مَن يَنصُرُهُ﴾ اي ينصر دينه ﴿إِنَّ اللّٰهَ لَقَوِيٌّ﴾ على خلقه ﴿عَزِيزٌ﴾ منيع في سلطانه وقدرته ﴿الَّذِينَ إِن مَّكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ﴾ بنصرهم على عدوهم ﴿أَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ وَأَمَرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنكَرِ﴾ جواب الشرط وهو وجوابه صلة الموصول ويقدر قبله هم مبتدا ﴿وَلِلّٰهِ عَاقِبَةُ الْأُمُورِ﴾ اي مرجعها اليه في الآخرة ﴿وَإِن يُكَذِّبُوكَ﴾ الى آخره فيه تسلية للنبي صلى الله عليه وسلم ﴿فَقَدْ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ﴾ تانيث قوم باعتبار المعنى ﴿وَعَادٌ﴾ قوم هود ﴿وَثَمُودُ﴾ قوم صالح ﴿وَقَوْمُ إِبْرَاهِيمَ وَقَوْمُ لُوطٍ﴾ ﴿وَأَصْحَابُ مَدْيَنَ﴾ قوم شعيب ﴿وَكُذِّبَ مُوسَىٰ﴾ كذبه القبط لا قومه بنو اسرائيل اي كذب هؤلاء رسلهم فلك اسوة بهم ﴿فَأَمْلَيْتُ لِلْكَافِرِينَ﴾ امهلتهم بتاخير العقاب لهم ﴿ثُمَّ أَخَذْتُهُمْ﴾ بالعذاب ﴿فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ﴾ اي انكاري عليهم بتكذيبهم باهلاكهم والاستفهام للتقرير اي هو واقع موقعه ﴿فَكَأَيِّن﴾ اي كم ﴿مِّن قَرْيَةٍ أَهْلَكْتُهَا﴾ وفي قراءة اهلكناها ﴿وَهِيَ ظَالِمَةٌ﴾ اي اهلها بكفرهم ﴿فَهِيَ خَاوِيَةٌ﴾ ساقطة ﴿عَلَىٰ عُرُوشِهَا﴾ سقوفها ﴿وَ﴾ كم من ﴿بِئْرٍ مُّعَطَّلَةٍ﴾ متروكة بموت اهلها ﴿وَقَصْرٍ مَّشِيدٍ﴾ رفيع خال بموت اهله ﴿أَفَلَمْ يَسِيرُوا﴾ اي كفار مكة ﴿فِي الْأَرْضِ فَتَكُونَ لَهُمْ قُلُوبٌ يَعْقِلُونَ بِهَا﴾ ما نزل بالمكذبين قبلهم ﴿أَوْ آذَانٌ يَسْمَعُونَ بِهَا﴾ اخبارهم بالاهلاك وخراب الديار فيعتبروا ﴿فَإِنَّهَا﴾ اي القصة ﴿لَا تَعْمَى الْأَبْصَارُ وَلَٰكِن تَعْمَى الْقُلُوبُ الَّتِي فِي الصُّدُورِ﴾ تاكيد ﴿وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ وَلَن يُخْلِفَ اللّٰهُ وَعْدَهُ﴾ بانزال العذاب فانزله يوم بدر ﴿وَإِنَّ يَوْمًا عِندَ رَبِّكَ﴾ من ايام الآخرة بسبب العذاب ﴿كَأَلْفِ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّونَ﴾ بالتاء والياء في الدنيا ﴿وَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ أَمْلَيْتُ لَهَا وَهِيَ ظَالِمَةٌ ثُمَّ أَخَذْتُهَا﴾ المراد اهلها ﴿وَإِلَيَّ الْمَصِيرُ﴾ المرجع

**ترجمه:** اجازت ورکړې شو هغه خلقو ته د چا سره چه جنګ کولې شي يعنی مومنانو ته، دا چه هغوی قتال اوکړی او دا اولنۍ آيت کريمه دې کوم چه (د قتال د اجازت) په باره کښې نازل شوې دې، په دې سبب سره چه هغوی مظلوم شو د کفارو په هغوی باندې د ظلم کولو د وجې نه بيشکه الله پاک د هغوی په مدد کولو باندې پوره قدرت لری کوم چه د خپلو کورنو نه بې قصوره ويستلې شو يعنی د هغوی د ويستلو څه وجه نه وه صرف په دومره خبره ويستلې شو چه د هغوی وينا وه چه زمونږ رب الله وحده لاشريك دې او دا قول حق دې او د دې په وجه باندې د هغوی ويستل ناحق دی، او که الله پاک بعض خلقو لره د بعض په ذريعه نه دفع کولې (بعضهم) د (الناس) نه بدل البعض دې نو د راهبانو خلوت خانې (لهدمت) په تشديد سره دې د کثرت د بيانولو دپاره او په تخفيف سره هم دې او د نصاراؤ عبادت خانې او د يهودو عبادت خانې په عبرانئ کښې صلوة عبادت خانې ته وئيلې شي او د مسلمانانو مسجدونه به وران کړې شوې

وي چه په هغې کښې يعنی ذکر شوې خايونو کښې د الله پاک په کثرت سره نوم اخستلې شي او د دې مقاماتو د ورانيدو په وجه باندې به عبادات منقطع شوی وې. او بيشکه الله پاک به د هغه چا مدد کوی څوک چه د هغه يعنی د هغه د دين مدد کوی بيشکه الله پاک په خپل مخلوق باندې قوی دې په خپل سلطنت او قدرت کښې غالب دې دا داسې خلق دی چه که مونږ هغوی ته په دنيا کښې حکومت ورکړو د هغوی دشمن ته په هغوی باندې غلبه ورکولو سره نو هغوی به پخپله هم د مونځ پابندی کوی او زکاة به ادا کوی او د نيکئ حکم به کوی او د بدئ نه به منع کوی او د ﴿ اقاموا الصلاة ﴾ نه تر آخره پورې جواب شرط دې او شرط سره د جواب شرط نه صله ده د ﴿ الذين ﴾ دپاره، او ﴿ الذين ﴾ موصول د خپلې صلې سره د ﴿ هم ﴾ مبتدأ محذوف خبر دې او د ټولو کارونو انجام خو د الله پاک په لاس کښې دې يعنی په آخرت کښې هغه د ټولو کارونو مرجع دې او که دا خلق ستا تکذيب کوی دا رسول الله ﷺ ته تسلی ورکول دی نو د دې خلقو نه مخکښې قوم نوح قوم د معنی په اعتبار سره مونث دې او عاد چه د هود ﷺ قوم وو او ثمود چه د صالح ﷺ قوم وو او قوم ابراهيم او قوم لوط او اصحاب مدين کوم چه قوم شعيب ﷺ وو (د خپلو خپلو پيغمبرانو) تکذيب کړې وو او موسی ﷺ ته هم دروغژن وئيلې شوی وو د موسی ﷺ تکذيب قبطيانو کړې وو نه چه د هغه قوم بنی اسرائيلو، يعنی دې خلقو د خپلو رسولانو تکذيب اوکړو، لهذا ستاسو دپاره د دې انبياؤ ﷺ په طريقه کښې نمونه ده نو ما دې کفارو ته مهلت ورکړو يعنی د هغوی عذاب موخر کولو سره مې هغوی ته مهلت ورکړو بيا ما هغوی په عذاب کښې اونيول نو زما عذاب په هغوی باندې څنګه شو د هغوی د تکذيب د وجې نه هغوی هلاکولو سره او استفهام د تقرير دپاره دې يعنی زما عذاب بالکل په ځائې باندې واقع شو، غرض دا چه څومره کلی دی کوم چه ما هلاک کړل او په يو قراءت کښې مونږ هغوی هلاک کړل (يعنی په يو قراءت کښې اهلکتها دې او په يو قراءت کښې اهلکناها دې، او حال دا دې چه هغه کلی ظالمان وو يعنی د هغه کلو اوسيدونکی د خپل کفر د وجې نه ظالمان وو، او اوس هغه کلی په خپلو چهتونو باندې پريوتلې دی او څومره بې کاره کوهيان دی يعنی د هغه کلو د خلقو د هلاکت د وجې نه متروک (شاړ) پراته دی او څومره عاليشان محلونه خالی پراته دی د هغه کلو د خلقو د هلاکت د وجې نه، ايا دا خلق يعنی د مکې کافر په ملک کښې ګرځی نه چه د هغوی زړونه داسې شی چه د هغې په ذريعه په هغه عذاب کوم چه د هغوی نه مخکښې تکذيب کونکو باندې نازل شوې دې پوهه شی يا د هغوی غوږونه داسې شی چه د هغې په ذريعه د هغوی هلاکت او د هغوی د کورونو د بربادئ خبرونو لره واوری د دې نه روستو عبرت حاصل کړی خبره دا ده چه زړونه نه ړنديږی بلکه هغه زړونه ړنديږی کوم چه په سينو کښې دی فی الصدور، د قلوب تاکيد دې، دا خلق ستا نه د عذاب په باره

کښې تندې کوی حال دا چه الله پاک د عذاب نازلولو د خپلې وعدې خلاف نه کوی، پس په یوم بدر کښې الله پاک خپله وعده پوره اوفرمائیله او ستا رب سره یوه ورځ د آخرت د ورځو نه د عذاب په وجه د زرو کالو برابر ده ستاسو د شمار په اعتبار سره په دنیا کښې ﴿ یعدون ﴾ په یاء او تاء سره دې او ډیر کلی دی چاته ما مهلت ورکړې وو حال دا دې چه هغه ظالمان وو بیا ما هغه کلی راونیول او مراد د کلو نه کلو والا دی او خاص زما طرف ته واپس کیدل دی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: ﴿ أذن للذين يقاتلون ﴾ ﴿ اذن ﴾ ﴿ ماذون فيه ﴾ محذوف وو مفسر علام ﴿ ان يقاتلوا ﴾ وئیلو سره هغه ظاهر کړو او په حذف باندې ﴿ يقاتلون ﴾ دلالت کوی، رسول الله ﷺ لره د اویاؤ نه زیاتو آیتونو کښې د جهاد نه د منع کولو نه پس د هجرت نه پس دا اولنې آیت دې چه په هغې کښې د جهاد اجازت ورکړې شوې دې، دا ورځ ګویا چه د صحابه کرامو ﷺ دپاره د اختر ورځ ده، په یو قراءت کښې ﴿ يقاتلون ﴾ مبنی للفاعل هم دې مومنانو ته قبل القتال، مقاتل یا خو د ماٰؤل په اعتبار سره وئیلې شوی دی یا په دې وجه چه د مومنانو د قتال اراده وه.

قوله: ﴿ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا ﴾ کښې باء سببیه ده ګویا په دې کښې دا بیانول مقصود دی چه مومنانو ته د قتال د اجازت وجه، په هغوی باندې ظلم کیدل دی، امام رازی ﷫ فرمائی د ﴿ ان يقاتلوا ﴾ مطلب ﴿ ان يقاتلوا في المستقبل ﴾ دې په دې صورت کښې به دا اعتراض ختم شی چه دا سورت مکی دې او د جهاد اجازت په مدینه منوره کښې کښې نازل شوې دې، ﴿ وإن الله على نصرهم لقدير ﴾ دا جمله مستانفه ده او په دې آیت کریمه د اشارې په طور د نصرت وعده ده.

قوله: ﴿ هم الذين أخرجوا ﴾ مفسر علام ﴿ هم ﴾ مقدر منلو سره دې خبرې ته اشاره اوکړه چه اسم موصول د مبتدأ محذوف صفت دې، د دې نه علاوه هم څو نور وجوه د اعراب کیدې شی. ① د موصول اول صفت یا بیان یا بدل کیدو د وجې نه محلا مجرور کیدې شی. ② اعنی یا امدح وغیره محذوف د وجې نه جمله کیدو سره منصوب کیدې شی.

قوله: ﴿ الا ان يقولوا الاية ﴾ مفسر علام ﴿ ما أخرجوا ﴾ محذوف منلو سره دې خبرې ته اشاره کړې ده چه دا مستثنی متصل ده، ﴿ اى ما أخرجوا بشئ من الاشياء الا بقولهم ربنا الله ﴾ یعنی د مکې نه د مومنانو د ویستلو بل څه سبب نه وو کوم د هغوی د ویستلو سبب شی سوا د دې نه چه هغوی ﴿ ربنا الله ﴾ اووئیلو، او دا سبب موجب آخراج نه دې بلکه دا خو سبب د استقرار او تمکین دې دا په اصل کښې د ﴿ مدح بما يشبه الذم ﴾ د قبیل نه دې یعنی کوم څیز چه سبب د مدح دې هغه د هغوی په نزد سبب د ذم دې، لکه چه د نابغه په قول کښې دی.

لا عيب فيهم غير ان سيوفهم : : بهن فلول من قراع الكتائب

مجھ میں ایک عیب ہے بڑا کہ وفادار ہوں میں

په ما کښې يو عيب دې هغه دا چه زه ډير وفادار يم

( الا ان يقولوا ) دا مستثنى منقطع هم کيدې شي ځکه چه مستثنى چه کومه ( الا ) ان يقولوا ده، د مستثنى منه کومه چه ( بغير حق ) ده د جنس نه نه ده، خو مستثنى منقطع منل صحيح نه دى ځکه چه که داسې اوئيلې شى ( الذين آخرجوا من ديارهم الا ان يقولوا ربنا الله ) نو دا صحيح نه ده هم په دې وجه مفسر علام عامل محذوف منلو سره مستثنى متصل جوړه کړې ده ( اى ما آخرجوا بشئ من الاشياء الا بقولهم ربنا الله ) او مضارع په معنى د ماضى ده مفسر علام د ( ان يقولوا ) تفسير په ( بقولهم ) سره کولو کښې اشاره کړې ده چه ( ان ) مصدريه دې او ( ان يقولوا ) د قول په معنى کښې دې او په ( بقولهم ) کښې ( با ) سببيه ده.

قوله: ( وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ ) کښې ( لولا ) امتناعيه ده او ( لهدمت ) جواب د ( لولا ) دې، ( دفع الله الناس بعضهم ببعض ) مبتدأ ده، ( موجود ) محذوف ئې خبر دې، او په ( دفع الله ) کښې اضافت الى الفاعل دې د عبارت تقدير داسې دې ( لولا دفع الله الناس بعضهم ببعض موجود لهدمت صوامع الاية )، ( صوامع ) د ( صومعة ) جمع ده، هغه خلوت خانې ته وائى چه په هغې کښې به راهبانو د خلقو نه ځانله رياضت او عبادت کولو، ( وبيع ) جمع د ( بيعة ) ده د نصارى جماعت خانې ته وائى چه په هغې کښې اجتماعى طور سره عبادت کولې شى، ( صلوات ) جمع د ( صلوة ) ده په عبرانئ ژبه کښې د يهودو عبادت خانو ته ( صلوتا ) وئيلې شى.

قوله: ( وَتَنْقَطِعُ الْعِبَادَاتُ ) د دې عطف په ( لهدمت ) باندې دې.

قوله: ( الَّذِينَ إِنْ مَكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ ) په دې کښې هم هغه ټول صورتونه ممکن دى کوم چه په سابق موصول کښې بيان کړې شوې دى د ذکر شوې صورتونو نه علاوه په دې کښې دا صورت هم صحيح دې چه د ( من ينصره ) نه بدل وى ( ان مكناهم فى الارض ) شرط دې او ( اقاموا الصلاة ) سره د خپلو معطوفاتو نه جزا ده، شرط د خپلې جزا سره د ( الذين ) صله ده، موصول سره د خپلې صلې نه د ( هم ) مبتدأ محذوف خبر دې او ( هم ) نه مراد ( ماذون لهم فى القتال ) دى او هغه مهاجرين دى او دا آيت کريمه د اخبار الغيب د قبيلې نه دې، ځکه چه په دې آيت کريمه کښې د مهاجرينو د هغه صفتونو خبر ورکړې شوې دې چه هغې باندې به هغوى په زمکه باندې د قدرت او حکومت نه پس متصف کيږى.

قوله: ( وَكُذِّبَ مُوسَىٰ ) دلته د ما سبق په خلاف د بيان طرز بدل کړې شوې دې په داسې طريقه چه د معروف د صيغې په ځائې ئې د مجهول صيغه اختيار اوفرمائيله ځکه چه د

سیدنا موسی علیه السلام تکذیب د هغه قوم نه وو کړې بلکه د فرعون قوم قبطیانو کړې وو. په خلاف د نورو انبیاء مذکورین د تکذیب چه د هغوی خپلو قومونو کړې وو.

قوله: ﴿ فَأَمْلَيْتُ لِلْكَافِرِينَ ﴾ په دې کښې ئې د ضمیر په ځائې اسم ظاهر اختیار فرمائیلې دې چه د هغوی په صفت کفر باندې صراحت اوشی ګنې (فاملیتهم) هم وئیلې کیدې شو.

(نکیر) په معنی د عذاب مصدر په معنی د انکار دې لکه (نذیر) چه په معنی د انذار دې

قوله: ﴿ بِتَكْذِيبِهِمْ ﴾ دا د (انکاری) مفعول دې او (باهلاکهم) د انکاری سره متعلق ذې، او د استفهام تقریری کیدو مطلب دا دې چه مخاطبینو لره زما د عذاب د برمحل کیدو اقرار کول پکار دی.

قوله: ﴿ فکأین ﴾ (این) په معنی د کم خبریه مبتدأ ده او (من قریة) تمیز دې او (اهلکتها) د دې خبر دې، (کاین) په اصل کښې (کای) وو په قرآنی رسم الخط کښې تنوین د نون په صورت کښې لیکلې شوې دې، (کاین) همیشه په خبری صورت کښې استعمالیږی دا لفظ په مبهم طور په کثرت باندې دلالت کولو دپاره راځی، د ابهام لرې کولو دپاره د دې نه پس د تمیز په طور یو لفظ ضرور مذکور وی عموما د دې تمیز په من سره راځی، لکه (کاین من قریة)... (کاین) همیشه د کلام په شروع کښې راځی د دې خبر همیشه مرکب وی، بعض وخت (کاین) د استفهام دپاره هم راځی، او په یو قراءت کښې (اهلکنا) دې او (کاین) په محل د نصب کښې هم کیدې شی د (اهلکنا) د دلالت د وجې نه، او (وهی ظالمة) جمله حالیه ده (ای اهلها) محذوف منلو سره ئې اشاره اوکړه چه مضاف محذوف دې.

قوله: ﴿ وَكَمْ مِنْ بِئْرٍ مُعَطَّلَةٍ ﴾ مفسر علام (کم) محذوف منلو سره اشاره اوکړه چه د (بئر) عطف په (قریة) باندې دې.

قوله: ﴿ افَلَمْ يَسِيرُوا ﴾ همزه په محذوف باندې داخله ده او فاء عاطفه ده، د عبارت تقدیر داسې دې (اغفلوا فلم یسیروا وکاین) دلته ئې د واؤ سره راوړې دې او ما قبل کښې (فکاین) فاء سره راوړې دې، ځکه چه په ماقبل کښې (فاء) راوړل مناسب دی ځکه چه ددې په ماقبل فکیف کان کښې فا ده، او دلته واؤ مناسب ده، ځکه چه د دې نه مخکښې واو دې (ولن یخلف الله وعده)

**[ایاتونه: ۴۹-۵۷]**

(قل یأیها الناس) ای اهل مکة (إِنَّمَا أَنَا لَكُمْ نَذِيرٌ مُبِينٌ) بین الإنذار وأنا بشیر للمؤمنین (فَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ مَغْفِرَةٌ) من الذنوب (وَرِزْقٌ كَرِيمٌ) هو الجنة (والذین سعوا فی آیاتنا) القرآن بإبطالها

{معجزين} من اتبع النبيّ أي ينسبونهم إلى العجز ويثبطونهم عن الإيمان أو مقدرين عجزنا عنهم وفي قراءة معاجزين مسابقين لنا أي يظنون أن يفوتونا بإنكارهم البعث والعقاب {أولئك أصحاب الجحيم} النار {وما أرسلنا من قبلك من رسول} هو نبيّ أمر بالتبليغ {ولا نبيّ} أي لم يؤمر بالتبليغ {إلا إذا تمنى} قرأ {ألقى الشيطان في أمنيته} قراءته ما ليس من القرآن مما يرضاه المرسل إليهم وقد قرأ النبيّ صلّى الله عليه وسلّم في سورة النجم بمجلس من قريش بعد {أفرأيتم اللات والعزى ومناة الثالثة الأخرى} بإلقاء الشيطان على لسانه من غير علمه صلّى الله عليه وسلم به تلك العرانيق العلا وإن شفاعتهن لترتجى ففرحوا بذلك ثم أخبره جبريل بما ألقاه الشيطان على لسانه من ذلك فحزن فسلّي بهذه الآية ليطمئن {فينسخ الله} يبطل {ما يلقي الشيطان ثم يحكم الله آياته} يثبتها {والله عليم} بإلقاء الشيطان ما ذكر {حكيم} في تمكينه منه يفعل ما يشاء {ليجعل ما يلقي الشيطان فتنة} محنة {للذين في قلوبهم مرض} شقاق ونفاق {والقاسية قلوبهم} أي المشركين عن قبول الحق {وإن الظالمين} الكافرين {لفي شقاق بعيد} خلاف طويل مع النبيّ صلّى الله عليه وسلّم والمؤمنين حيث جرى على لسانه ذكر آلهتهم بما يرضيهم ثم أبطل ذلك {وليعلم الذين أوتوا العلم} التوحيد والقرآن {أنه} أي القرآن {الحق من ربك فيؤمنوا به فتخبت} تطمئن {له قلوبهم وإن الله لهاد الذين آمنوا إلى صراط} طريق {مستقيم} أي دين الإسلام {ولا يزال الذين كفروا في مرية} شك {منه} أي القرآن بما ألقاه الشيطان على لسان النبيّ ثم أبطل {حتى تأتيهم الساعة بغتة} أي ساعة موتهم أو القيامة فجأة {أو يأتيهم عذاب يوم عقيم} هو يوم بدر لا خير فيه للكفار كالريح العقيم التي لا تأتي بخير أو هو يوم القيامة لا ليل بعده {الملك يومئذ} أي يوم القيامة {لله} وحده وما تضمنه من الاستقرار ناصب للظرف {يحكم بينهم} بين المؤمنين والكافرين بما بين بعده {فالذين آمنوا وعملوا الصالحات في جنات النعيم} فضلا من الله {والذين كفروا وكذبوا بآياتنا فأولئك لهم عذاب مهين} شديد بسبب كفرهم

**ترجمه:** ته اعلان اوکړه چه اې خلقو! یعنی مکې والو زه تاسو لره واضح ویرونکې یم یعنی ښکاره مو خبرداروم او زه مومنانو ته زیرې ورکونکې یم، پس کومو خلقو چه ایمان راوړې دې او نیک اعمال ئې کړی دی د هغوی دپاره د (سابقه) ګناهونو بخښنه ده او د عزت روزی ده چه هغه جنت دې، او هغه خلق کوم چه زمونږ د آیتونو یعنی قرآنی آیتونو په ابطال پسې لګیدلې دی د عاجز کولو دپاره هغه خلقو لره چا چه اتباع کړې ده د رسول الله ﷺ یعنی د هغوی طرف ته د عاجز کیدو د نسبت کولو دپاره، او منع کوی هغوی لره د ایمان نه یا مونږ لره عاجز ګمان کولو سره د هغوی د نیولو نه، او په یو قراءت کښې معاجزین په معنی د مسابقین دې یعنی زمونږ په باره کښې دا ګمان کولو سره چه هغوی به (زمونږ د نیولو نه) د بعث او د عقاب نه انکار کولو سره اوتختی (بچ به شی)، هم دا دوزخیان دی او مونږ ستا نه مخکښې یو

رسول رسول هغه نبي وي چه هغه ته د تبليغ حکم وي او هيڅ يو نبي يعنې چاته چه د تبليغ حکم نه وي کړې شوې داسې نه دې ليږلې چه چاته دا قصه نه وي پيښه شوې چه کله هم هغه څه لوستلي وي او شيطان د هغې په لوستلو کښې داسې څيز (شبه) نه وي اچولې چه کوم قرآن کريم نه دې او هغه داسې شبه وي چه د هغې نه مرسل اليهم خوشحاليږي، او رسول الله ﷺ په سورة نجم کښې د قريشو په مجلس کښې ﴿ افرايتم اللات والعزى ومنات الثالثة الآخرى ﴾ دلوستلو نه پس په لا علمۍ کښې د هغه په ژبه باندې القاء شيطاني د وجې نه ﴿ تلك الغرانيق العلى وان شفاعتهن لترتجى ﴾ اولوستلو (ترجمه) دا د اوچتې درجې بتان دي، د هغوی د شفاعت يقينا اميد کولې شي (مشرکين مکه) ډير خوشحاله شو، بيا سيدنا جبرائيل ﷺ نبي ﷺ ته د دې واقعې خبر ورکړو کومه چه شيطان د هغه په ژبه باندې القاء کړې وه، نو هغه خفه شو نو هغه ته د راتلونکی آيت کريمه په ذريعه تسلي ورکړې شوه د دې دپاره چه نبي ﷺ مطمئن شي الله پاک د شيطان اچولې شوې شبهاتو لره نيست نابود کوی بيا خپل آيتونو لره زيات مضبوطوی الله پاک د القاء شيطانی نه ښه واقف دې چه د هغې په ما سبق کښې ذکر شوې دې، او الله حکيم دې، د خپل طرف نه شيطان ته قدرت ورکولو کښې هغه چه څه غواړي کوی، د دې دپاره چه الله پاک القاء شيطاني لره د هغه خلقو دپاره د ازميښت ذريعه جوړه کړی چه د هغوی په زړونو کښې د شک او نفاق مرض او د هغوی زړونه سخت دي يعنې د مشرکينو قلوب د قبول حق په باره کښې سخت دي او واقعي دا ظالمان کافر خلق په لويه ګمراهۍ کښې دي يعنې د نبي او مومنانو سره په اوږده ګمراهۍ کښې دي څکه چه ستا په ژبه مبارکه باندې ږ هغوی د معبودانو داسې ذکر جاري شو کوم چه هغوی خوشحاله کړل، بيا ئې هغه ذکر باطل اوګرځولو، او د دې دپاره چه هغه خلق چاته چه د توحيد او د قرآن کريم علم ورکړې شوې دې پوهه شي چه هغه يعنې قرآن کريم ستا د رب د طرف نه حق دې نو په هغې باندې ايمان راوړی بيا د هغوی قلوب په هغې باندې مطمئن شي او واقعي ايمان والو ته الله پاک نيغې لارې طرف ته رهنمائی کوی يعنې د دين اسلام طرف ته او کافر خلق به د قرآن کريم په باره کښې هميشه په شک کښې اخته وي د هغه شبهې د وجې نه چه شيطان د رسول الله ﷺ په ژبه باندې القاء اوکړه بيا هغه الله پاک باطل کړه، تردې چه په هغوی باندې ناڅاپه قيامت راشي يعنې د مرګ ساعت يا (واقعي) قيامت ناڅاپه راشي، يا په هغوی باندې د يوې سپيره ورځې عذاب راشي او هغه د بدر ورځ وه چه په هغې کښې د کفارو دپاره خير نه وو، لکه چه ريح عقيم هيڅ خير نه راوړی يا د يوم عقيم نه مراد د قيامت ورځ ده چه د هغې دپاره به شپه نه وي او بادشاهي به په هغه ورځ يعنې د قيامت په ورځ صرف د الله پاک دپاره وي او کوم لفظ چه د ﴿ استقر ﴾ معنی لره متضمن دې هم هغه به د ظرف (يومئذ) ناصب وي او هغه به د دوی

يعني د مومنانو او د كافرانو ترمينځه د دې په ذريعه فيصله اوكړى كوم چه روستو بيان كړې شوې دې، پس كومو خلقو چه ايمان راوړې دې او نيک عمل ئې كړې دې نو هغوى به د الله پاک په فضل سره د نعمتونو په جنت كښې وى او كومو خلقو چه كفر كړې وى او زمونږ د آيتونو تكذيب ئې كړې وى نو د هغه خلقو دپاره بد هغوى د كفر په سبب د سخت ذلت عذاب وى.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** ﴿ قل يأيها النّاس ﴾ اې محمد ﷺ تاسو دې خلقو ته چه د عذاب په طلب كښې تندى كوى اوايئ چه زه خو صفا صفا ويرونكې يم او زيرې وركونكې يم په تعجيل يا په تاخير د عذاب كښې زما هيڅ دخل نشته.

**قوله:** ﴿ يأبطالها ﴾ د دې اضافې مقصد حذف د مضاف طرف ته اشاره ده ﴿ اى سعوا فى ابطال اياتنا ﴾ بابطالها ﴾ كښې با په معنى د فى ده، معجزين دا د سعواد ضمير نه حال دې او ﴿من اتبع النبى ﴾ د معجزين مفعول دې، يا د معجزين مفعول لفظ ﴿ الله ﴾ دې اى معجزين الله ... مطلب دا دې چه زمونږ د آيتونو په ابطال كښې كوشش كوى مونږ لره د هغوى د نيولو نه عاجز ګڼړلو سره، او په يو قراءت كښې ﴿ معاجزين ﴾ دې په معنى د ﴿ سابقين ﴾ (مفاعله) دا ګمان كولو سره چه هغوى به زمونږ د نيولو نه اوتختى (بچ به شى)، او د مسابقت مطلب دا دې چه كافر د الله پاک د عذاب نه د تيختې كوشش كوى او الله پاک په هغوى باندې عذاب نازلولو، او تيختې ته نه پريخودلو كښې مسابقت كوى.

**قوله:** ﴿ وَمَآ أَرْسَلْنَا مِنْ (الاية) ﴾ (وان يكذبوك) نه پس دا رسول الله ﷺ ته دويمه تسلى ده ﴿من قبلك ﴾ كښې ﴿ من ﴾ ابتداء غايت دپاره دې او ﴿ من رسول ﴾ كښې ﴿ من ﴾ زائده دې.

**قوله:** ﴿ اذا تمنى القى الشيطان ﴾ ﴿ اذا تمنى ﴾ شرط دې او ﴿ القى الشيطان فى امنيته ﴾ د دې جزاء ده او جمله شرطيه د نبى نه حال دې د عبارت تقدير داسې دې ﴿ وما ارسلنا نبيا الاحاله هذه ﴾ او د مستثنى منقطع كيدو د وجې نه هم منصوب كيدې شى.

**قوله:** ﴿ الغرانيق ﴾ د دې واحد ﴿ غرنوق ﴾ په وزن د ﴿ فردوس ﴾ دې، او بعض ﴿ غرنوق ﴾ په وزن د ﴿ عصفور ﴾ وئيلې دې، دينګانو ته وئيلې شى.

**قوله:** ﴿ فينسخ الله ﴾ د نسخ نه نسخ لغوى مراد ده نه اصطلاحى، د نسخ معنى د زائل كولو او ختمولو ده.

**قوله:** ﴿ لِيَجْعَلَ ﴾ په لام كښې ظاهره دا ده چه دا د ﴿ يحكم ﴾ سره متعلق دې اى ثم يحكم الله اياته ليجعل او والله عليم حكيم ... جمله معترضه ده، دا هم احتمال دې چه ﴿ ليجعل ﴾ د ﴿ينسخ﴾ سره متعلق وى.

**قوله:** ﴿وَالْقَاسِيَةِ﴾ په معنی د القسوة سخت زړه، القاسية كښې الف لام موصولی دې، او د دې عطف په ﴿الذين في قلوبهم﴾ باندې دې.

**قوله:** ﴿وان الظالمين﴾ اسم ظاهر دلته د قباحت د زيادت بيانولو دپاره د اسم ضمير په ځاى كيخودلې شوې دې په اصل كښې د ﴿انهم﴾ وو د ﴿يومئذ﴾ عامل ناصب ﴿استقر﴾ يا د هغې د معنى والا فعل محذوف دې.

**قوله:** ﴿يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ﴾ جمله مستانفه ده او د يو سوال مقدر جواب دې، سوال دا دې ﴿ماذا يصنع بهم؟ فقيل يحكم بينهم﴾ او جمله حاليه هم كيدې شي.

**قوله:** ﴿بِمَا بَيَّنَ بَعْدَهُ﴾ اى فالذين امنوا وعملوا الصالحات... مبتدأ ده فى ﴿جنات النعيم﴾ د دې خبر دې اى مستقرون فيها هم دغه شان والذين كفروا وكذبوا باياتنا مبتدأ دې او ﴿فاولئك لهم عذاب مهين﴾ جمله د دې خبر دې، په اول خبر باندې فاء نه داخلول او په ثانى خبر باندې ﴿فاء﴾ داخلول د دې بيانولو دپاره دى چه په جنت كښې داخله د اعمالو د وجې نه نه ده بلكه د الله پاک د فضل او كرم د وجې نه به وى، هم دې خبرې ته اشاره كولو دپاره مفسر علام فضلا من الله اضافه كړې ده، په خلاف د جهنم د عذاب د هغې ترتب به په اعمالو باندې وى هم په دې وجه ﴿فاولئك﴾ باندې به فا جزائيه داخل كړې شوې ده. (جمل)

**[اياتونه: ۵۸-۶۴]**

﴿وَالَّذِينَ هَاجَرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ أي طاعته مِنْ مَكَّة إلى المَدِينَة ﴿ثُمَّ قُتِلُوا أَوْ مَاتُوا لَيَرْزُقَنَّهُمُ اللَّهُ رِزْقًا حَسَنًا﴾ هُوَ رِزْق الجَنَّة ﴿وَإِنَّ اللَّهَ لَهُوَ خَيْرُ الرَّازِقِينَ﴾ أفضل المعطين ﴿لَيُدْخِلَنَّهُمْ مُدْخَلًا﴾ بِضَمِّ المِيم وَفَتْحهَا أي إدْخَالًا أوْ مَوْضِعًا ﴿يَرْضَوْنَهُ﴾ وَهُوَ الجَنَّة ﴿وَإِنَّ اللَّهَ لَعَلِيمٌ﴾ بِنِيَّاتِهِمْ ﴿حَلِيمٌ﴾ عَنْ عِقَابهمْ الأمْر ﴿ذَٰلِكَ﴾ الَّذِي قَصَصْنَاهُ عَلَيْك ﴿وَمَنْ عَاقَبَ﴾ جَازَى مِنَ المُؤْمِنِينَ ﴿بِمِثْلِ مَا عُوقِبَ بِهِ﴾ ظُلْمًا مِنَ المُشْرِكِينَ أي قَاتَلَهُمْ كَمَا قَاتَلُوهُ فِي الشَّهْر الحَرَام ﴿ثُمَّ بُغِيَ عَلَيْهِ﴾ مِنْهُمْ أي ظُلِمَ بِإِخْرَاجِهِ مِنْ مَنْزِله ﴿لَيَنْصُرَنَّهُ اللَّهُ إِنَّ اللَّهَ لَعَفُوٌّ﴾ عَنْ المُؤْمِنِينَ ﴿غَفُورٌ﴾ لَهُمْ عَنْ قِتَالهمْ فِي الشَّهْر الحَرَام ﴿ذَٰلِكَ﴾ النَّصْر ﴿بِأَنَّ اللَّهَ يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ﴾ أي يُدْخِل كُلًّا مِنْهُمَا فِي الآخَر بِأَنْ يَزِيد بِهِ وَذَلِكَ مِنْ أثَر قُدْرَته تَعَالَى الَّتِي بِهَا النَّصْر ﴿وَأَنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ﴾ دعاء للمؤمنين ﴿بَصِيرٌ﴾ بِهِمْ حَيْثُ جَعَلَ فِيهِمْ الإيمَان فَأَجَابَ دعاءهم ﴿ذَٰلِكَ﴾ النَّصْر أيْضًا ﴿بِأَنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَقُّ﴾ الثَّابِت ﴿وَأَنَّ مَا يَدْعُونَ﴾ بِالْيَاءِ وَالتَّاء يَعْبُدُونَ ﴿مِنْ دُونِهِ﴾ وَهُوَ الأصْنَام ﴿هُوَ الْبَاطِلُ﴾ الزَّائِل ﴿وَأَنَّ اللَّهَ هُوَ الْعَلِيُّ﴾ أي العَالِي عَلَى كُلّ شَيْء بِقُدْرَتِهِ ﴿الْكَبِيرُ﴾ الَّذِي يَصْغُر كُلّ شَيْء سِوَاهُ ﴿أَلَمْ تَرَ﴾ تَعْلَم ﴿أَنَّ اللَّهَ أَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً﴾ مَطَرًا ﴿فَتُصْبِحُ الْأَرْضُ مُخْضَرَّةً﴾ بِالنَّبَاتِ وَهَذَا مِنْ أثَر قُدْرَته ﴿إِنَّ اللَّهَ لَطِيفٌ﴾ بِعِبَادِهِ فِي إخْرَاج النَّبَات بِالمَاء ﴿خَبِيرٌ﴾ بِمَا فِي قُلُوبهمْ عِنْد تَأخِير المَطَر ﴿لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ﴾ عَلَى جِهَة المِلْك ﴿وَإِنَّ اللَّهَ لَهُوَ الْغَنِيُّ﴾ عَنْ عِبَاده ﴿الْحَمِيدُ﴾ لِأوْلِيَائِهِ

ترجمه: او کومو خلقو چه د الله پاک په لاره کښې خپل وطن پریخودلې دې یعنی د هغه په طاعت کښې ئې د مکې نه مدینې ته هجرت کړې دې بیا هغوی شهیدان کړې شو یا په خپل مرګ وفات شو الله پاک به هغوی ته بهترین رزق ورکړی هغه د جنت رزق دې بیشکه الله پاک د ټولو ورکړه کونکو نه غوره ورکونکې دې یعنی په ورکړه کونکو کښې غوره ورکونکې دې الله پاک به هغوی داسې ځائې ته داخل کړی چه هغوی به هغې لره خوښوی او هغه جنت دې (مدخلا) د میم په ضمې سره او د هغې په فتحې سره، داخلول یا د داخلولو ځائې او بیشکه الله پاک د هغوی د نیتونو نه خبر دې هغوی ته د سزا ورکولو په معامله کښې حلیم دې، خبره داسې ده څنګه چه مونږ تاسو ته واوروله، او کوم مومن چه بدله واخستله (د ظالم نه) هم د هغې برابر چه (کوم ظلم د مشرکانو د طرف نه) د ده سره کړې شوې وو، یعنی د هغوی سره ئې هم دغه شان قتال اوکړو څنګه چه هغوی د محرم په میاشت کښې د مومنانو سره قتال کړې وو، بیا د هغه سره زیاتې اوکړې شی د مشرکانو د طرف نه یعنی هغه لره د هغه د کور نه ویستلو سره په هغه باندې ظلم اوکړې شو نو یقینا الله پاک به د هغه مدد فرمائی، بیشکه الله پاک مومنانو لره ډیر معاف کونکې دې او بخښنه کونکې دې په شهر حرام کښې د هغوی قتال کونکو لره او دا مدد به د دې وجې نه وی چه بیشکه الله پاک شپې لره په ورځ کښې او ورځې لره په شپه کښې داخلوی یعنی یو لره په بل کښې داخلوی په داسې طریقه چه په هر یو کښې اضافه کوی او دا ایلاج د هغه قدرت دلیل دې چه د هغې په ذریعه نصرت کیږی او بیشکه الله پاک د مومنانو د دعا اوریدونکې دې او د هغوی احوالو لره لیدونکې دې په دې طریقه باندې چه هغوی ئې مومنان جوړ کړل بیا ئې د هغوی دعا ته شرف د قبولیت ورکړو او دا نصرت هم په دې سبب دې چه الله پاک معبود برحق دې او بیشکه چاته چه دا خلق یا تاسو خلق هغه لره پریخودلو سره اواز کوی او هغه بتان دې هغه باطل دې زائل کیدونکې دې او بیشکه الله پاک په هر یو څیز باندې عالی دې د خپل قدرت په اعتبار سره او داسې عظمت والا دې چه د هغه نه سوا د هغه د عظمت مخې ته هر یو څیز ذلیل دې ایا تاته پته نه لګی چه الله پاک د اسمان نه باران واورولو چه هغې سره زمکه د نباتاتو په ذریعه شنه شوه او دا د هغه د قدرت اثر دې بیشکه الله پاک د اوبو په ذریعه نباتات پیدا کولو کښې په خپلو بندګانو باندې ډیر مهربان دې او د باران د تاخیر په صورت کښې چه کوم خیالات د بندګانو په زړونو کښې راځی د هغې نه باخبر دې په اسمانونو او زمکه کښې چه څه دی هم د هغه ملک دی او بیشکه الله پاک دې کوم چه د خپلو بندګانو محتاج نه دې او د خپلو اولیاؤ د تعریف سزاوار (لائق) دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: ﴿ وَالَّذِينَ هَاجَرُوا ﴾ مبتدأ ده ﴿ ليرزقنهم الله ﴾ د دې خبر دې ﴿ والذين هاجروا ﴾ اګر چه ﴿ الذين امنوا ﴾ کښې داخل دی، خو د هغوی د عظمت شان د وجې نه خاص طور باندې د

هغوی ذکر کړې شوې دې ګویا دا د تخصیص بعد التعمیم د قبیل نه دې، ﴿ لیرزقنهم﴾ د قسم محذوف جواب دې، ای والله لیرزقنهم قسم او جواب قسم یو ځائې کیدو سره جمله د ﴿ والذین هاجروا﴾ خبر دې، د دې نه معلومیږی چه جمله قسمیه د مبتدأ خبر واقع کیدې شی ﴿ رزقا حسنا﴾ د لیرزقنهم مفعول ثانی دې او د ﴿ لیرزقنهم﴾ مفعول مطلق دپاره د تاکید هم کیدې شی.

قوله: ﴿ خَیْرُ الرّٰزِقِیْنَ ﴾ نه پس افضل المعطین اضافه کولو مقصد دې خبرې ته اشاره کول دی چه ﴿خیر﴾ اسم تفضیل، د اسم تفضیل په معنی کښې دې په قرآن کریم کښې عام طور باندې اسم تفضیل د اسم فاعل په معنی کښې وی خو دلته داسې نه ده، اول خو په دې وجه چه الله پاک سره داسې رزق مخصوص دې چه په هغې باندې بل څوک قادر نه دې، او په رزق کښې هم دا اصل دې، دویمه خبره دا ده چه په ظاهره کښې غیر الله چه کوم رزق ورکوی هغه د الله پاک د ورکړې شوی رزق نه ورکوی، دریمه خبره دا ده چه غیر الله چه کوم رزق ورکوی د هغې مقصد طلبِ عوض وی کم از کم اجر د آخرت سهی، او د الله پاک چه کوم رزق وی هغه به په طور د احسان وی.

قوله: ﴿ لَیُدْخِلَنَّهُمْ مُدْخَلًا﴾ دا ﴿ لیرزقنهم﴾ نه بدل هم کیدې شی او جمله مستانفه هم.

قوله: ﴿ مُدْخَلًا﴾ دا د باب افعال مصدر دې ﴿ ای ادخالا ومدخلا ﴾ په دې صورت کښې به دا د ﴿لیدخلنهم﴾ مفعول مطلق وی او د دې مفعول به به محذوف وی ﴿ ای لیدخلنهم الجنة ادخالا یرضونه﴾ او د میم په فتحې سره به ظرف مکان وی ای موضع دخول په دې صورت کښې به ﴿مدخلا﴾ به د ﴿ لیدخلنهم﴾ مفعول فیه وی ای لیدخلنهم مکاناً یرضونه.

قوله: ﴿ ذلك﴾ دا د مبتدأ محذوف خبر دې ﴿ ای الامر ذلك﴾ یعنی د مومنانو او کافرانو سره چه کومې وعدې شوې دی هغه په خپل ځائې صحیح او حقې دی، چه کله د یو کلام نه بل کلام ته انتقال مطلوب وی نو هغه وخت ﴿ الامر ذلك﴾ وئیلې شی.

قوله: ﴿ ومن عاقب﴾ دا د تعاقب نه اخستلې شوې دې چه د هغې معنی ده ﴿ مجی الشئ بعد الشئ ای جاز﴾

قوله: ﴿ أَیْ قَاتَلَهُمْ كَمَا قَاتَلُوْهُ فِی الشَّهْرِ الْحَرَامِ﴾ د مفسر په دې قول کښې د آیت کریمه د شان نزول طرف ته اشاره ده، مقاتل رحمه الله فرمائی چه ذکر شوې آیت کریمه په مشرکین مکه کښې د هغه خلقو په باره کښې نازل شوې دې چه د هغوی مقابله د مسلمانانو د یو جماعت سره شوې وه، حال دا چه لا د محرم د میاشتې په ختیمدو کښې دوه ورځې باقی دې، مشرکانو په دې خیال چه اصحاب محمد ﷺ د محرم په میاشت کښې قتال نه خوښوی حمله اوکړه، مسلمانانو په شهر حرام کښې د جنګ نه کولو دپاره مشرکانو ته قسم ورکړو

خو هغوی یوه خبره هم نه اوریدله، مجبورا مسلمانان هم د هغوی مقابلې ته اودریدل، الله پاک مسلمانانو ته په مشرکانو باندې غلبه ورکړه، په شهر حرام کښې د قتال کولو د وجې نه د مسلمانانو په زړه کښې یو قسم خفګان او وسوسه باقی وه، اګر چه مسلمانانو د مجبورئ په درجه په باندې په شهر حرام کښې قتال کړې وو، هم د دې وسوسې د ختمولو دپاره ذکر شوې آیت کریمه نازل شو، د ظلم د بدلې اخستلو نه په ﴿ عاقب ﴾لفظ سره تعبیر اوکړې شو، دا مجازا د مشاکلت په طور استعمال کړې شوې دې، لکه ﴿ جزاء سیئة سیئة ﴾کښې وئیلې شوې دی، یا دا د تسمية السبب باسم المسبب د قبیل نه دې، یعنی د مشرکانو ظلم د هغوی نه د انتقام اخستلو سبب جوړ شو.

قوله: ﴿ وَمَنْ عَاقَبَ ﴾مبتدأ ده ﴿ لينصرنه ﴾د دې خبر دې او دا په دې صورت کښې دې چه کله من موصوله وی او دا هم صحیح ده چه من شرطیه وی او لینصرنه د دې جزاء وی.

قوله: ﴿ ذَٰلِكَ النَّصْر ﴾مبتدأ ده او ﴿ بأن الله يولج الليل الاية ﴾د دې خبر دې.

قوله: ﴿ وَذَٰلِكَ مِنْ أَثَرِ قُدْرَته ﴾یعنی ورځې لره په شپه کښې او شپې لره په ورځ کښې داخلول دا د هغه د قدرت اثر دې، ځکه چه نصرت د قدرت نه بغیر نه شی کیدې.

قوله: ﴿ فَتُصْبِح ﴾په رفع سره د دې عطف په ﴿انزل ﴾دې، په دې صورت کښې به ﴿ به ﴾عائد محذوف وی ای فتصبح به... او دا هم کیدې شی چه فاء سببیه وی نه عاطفه په دې صورت کښې به د تقدیر عائد ضرورت نه وی.

سوال: ﴿ فَتُصْبِح ﴾جواب امر واقع دې لهذا دا منصوب کیدل پکار دی حال دا چه ﴿ فتصبح ﴾ مرفوع دې؟

جواب: دا استفهام تقریری په معنی د خبر دې یعنی ﴿ الم تر ﴾ د قد رایت په معنی دې او استفهام په معنی د خبر د امر جواب نه وی.

اوس دا سوال پیدا شو چه د ماضی د صیغې په ځائې د مضارع صیغه استعمالولو څه وجه ده؟ یعنی د ﴿ فتصبح ﴾په ځائې ئې ﴿ فاصبحت ﴾ولې نه دی وئیلې؟

جواب: دا دې چه د مضارع صیغه په بقاء اثرِ مطر باندې دلالت کوی کوم چه مطلوب او محمود دې په خلاف د ماضی د صیغې.

[ایاتو نه: ۶۵ - ۷۲]

﴿أَلَمْ تَرَ﴾ تعلم ﴿أَنَّ اللَّهَ سَخَّرَ لَكُم مَّا فِي الْأَرْضِ﴾ من البهائم ﴿وَالْفُلْكَ﴾ السفن ﴿تَجْرِي فِي الْبَحْرِ﴾ للركوب والحمل ﴿بِأَمْرِهِ﴾ باذنه ﴿وَيُمْسِكُ السَّمَاءَ﴾ من ﴿أَن﴾ او لئلا ﴿تَقَعَ عَلَى الْأَرْضِ إِلَّا بِإِذْنِهِ﴾ فتهلكوا ﴿إِنَّ اللَّهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ﴾ في التسخير والامساك ﴿وَهُوَ الَّذِي أَحْيَاكُمْ﴾ بالانشاء ﴿ثُمَّ يُمِيتُكُمْ﴾ عند انتهاء آجالكم ﴿ثُمَّ يُحْيِيكُمْ﴾ عند البعث ﴿إِنَّ الْإِنسَانَ﴾ اي المشرك ﴿لَكَفُورٌ﴾ لنعم الله بتركه توحيده

لِكُلِّ أُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنسَكًا) بِفَتْحِ السِّينِ وَكَسْرِهَا شَرِيعَةً (هُمْ نَاسِكُوهُ) عَامِلُونَ بِهِ (فَلَا يُنَازِعُنَّكَ) يُرَادُ بِهِ لَا تُنَازِعْهُمْ (فِي الْأَمْرِ) أَيْ أَمْرِ الذَّبِيحَةِ إِذْ قَالُوا مَا قَتَلَ اللهُ أَحَقُّ أَنْ تَأْكُلُوهُ مِمَّا قَتَلْتُمْ (وَادْعُ إِلَىٰ رَبِّكَ) إِلَى دِينِهِ (إِنَّكَ لَعَلَىٰ هُدًى) دِينٍ مُسْتَقِيمٍ (وَإِن جَادَلُوكَ) فِي أَمْرِ الدِّينِ (فَقُلِ اللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا تَعْمَلُونَ) فَيُجَازِيكُمْ عَلَيْهِ وَهَذَا قَبْلَ الْأَمْرِ بِالْقِتَالِ (اللَّهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ) أَيُّهَا الْمُؤْمِنُونَ وَالْكَافِرُونَ (يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ) بِأَنْ يَقُولَ كُلٌّ مِنَ الْفَرِيقَيْنِ خِلَافَ قَوْلِ الْآخَرِ (أَلَمْ تَعْلَمْ) الِاسْتِفْهَامُ فِيهِ لِلتَّقْرِيرِ (أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ إِنَّ ذَٰلِكَ) أَيْ مَا ذُكِرَ (فِي كِتَابٍ) هُوَ اللَّوْحُ الْمَحْفُوظُ (إِنَّ ذَٰلِكَ) أَيْ عِلْمَ مَا ذُكِرَ (عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ) سَهْلٌ (وَيَعْبُدُونَ) أَيِ الْمُشْرِكُونَ (مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ) هُوَ الْأَصْنَامُ (سُلْطَانًا) حُجَّةً (وَمَا لَيْسَ لَهُم بِهِ عِلْمٌ) أَنَّهَا آلِهَةٌ (وَمَا لِلظَّالِمِينَ) بِالْإِشْرَاكِ (مِن نَّصِيرٍ) يَمْنَعُ عَنْهُمْ عَذَابَ اللهِ (وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا) مِنَ الْقُرْآنِ (بَيِّنَاتٍ) ظَاهِرَاتٍ حَالٌ (تَعْرِفُ فِي وُجُوهِ الَّذِينَ كَفَرُوا الْمُنكَرَ) أَيِ الْإِنْكَارَ لَهَا أَيْ أَثَرَهُ مِنَ الْكَرَاهَةِ وَالْعُبُوسِ (يَكَادُونَ يَسْطُونَ بِالَّذِينَ يَتْلُونَ عَلَيْهِمْ آيَاتِنَا) أَيْ يَقَعُونَ فِيهِمْ بِالْبَطْشِ (قُلْ أَفَأُنَبِّئُكُم بِشَرٍّ مِّن ذَٰلِكُمُ) بِأَكْرَهَ إِلَيْكُمْ مِنَ الْقُرْآنِ الْمَتْلُوِّ عَلَيْكُمْ هُوَ (النَّارُ وَعَدَهَا اللَّهُ الَّذِينَ كَفَرُوا) بِأَنْ مَصِيرَهُمْ إِلَيْهَا (وَبِئْسَ الْمَصِيرُ) هِيَ

**ترجمه:** (اې مخاطبه) ایا تاته معلومه نه ده چه الله پاک ستاسو په کارونو کښې لګولې دی د زمکې ځیزونو لره د حیواناتو نه او کشتو لره چه هغه په دریاب کښې د بار او سورلو اوړلو دپاره د هغه په حکم باندې رواني وی، او هم هغه اسمانونو لره په زمکه باندې د راغورځیدلو نه ټینګ (منع) کړی دی (د دې دپاره چه په هغوی ور پرې نه اوځی او ټول هلاک نه شی) مګر دا چه د غورځیدلو حکم اوشی بیشکه الله پاک په خلقو باندې په تسخیر او امساک کښې ډیر شفقت کونکې او رحمت کونکې دې او هغه هم هغه الله دې چا چه تاسو ته ژوند ورکړو پیدا کولو سره بیا به تاسو ته مرګ درکړی ستاسو عمر د مودې پوره کیدو نه پس بیا به تاسو لره ژوندی کړی د بعثت په وخت واقعی مشرک انسان د الله پاک د نعمتونو او د هغه توحید ترک کولو سره ډیر ناشکره دې او مونږ د هر امت دپاره د بندګۍ یوه طریقه یعنی شریعت مقرر کړې دې هغه هم هغه (طریقه) شریعت باندې عمل کونکې وو منسکا د سین په فتحې او کسرې سره دې نو خلقو لره پکار دی چه د ذبح په معامله کښې تاسره نزاع اونکړی او فلا ینازعنك نه لا تنازعهم مراد دې (یعنی د مضارع منفی نه نهی) ځکه چه هغوی وئیلې وو چه کوم ځاروې الله پاک قتل کړې وی هغه د خوراک کولو زیات لائق دې د هغې نه کوم چه تا پخپله قتل کړې دې او ته خپل رب یعنی د هغه د دین طرف ته دعوت ورکوه، یقینا ته په صحیح دین باندې ئې او که دا خلق د دین په معامله کښې تاسره جهګړه کوی نو ته ورته اوایه چه الله پاک ستاسو د اعمالو نه ښه خبردار دې هغه به تاسو ته د دې سزا ضرور درکړی، (د عدم قتال دا هدایت نبی علیه السلام ته د جهاد د حکم ورکولو نه مخکښې دې، اې مومنانو او کافرو! د قیامت په ورځ

باندې به الله پاک ستاسو ترمينځه د هغه خبرې فيصله اوکړي په کومه کښې چه تاسو اختلاف کوئ په دې طريقه چه په دواړو ډلو کښې هره يوه ډله د بلې ډلې خلاف وائي (اې مخاطبه) ايا تاته پته نشته دا استفهام تقريري دې چه الله پاک په اسمان او زمکه کښې چه څه دي هغه هر څه پيژني يقينا دا څه چه مذکور شو په لوح محفوظ کښې محفوظ دي بيشکه دا يعنې د مذکور علم د الله پاک دپاره اسان دې او مشرکان د الله پاک نه علاوه د داسې څيزونو بندګي کوي چه د هغې په باره کښې هغه څه حجت نه دې نازل کړې هغه بتان دي او نه د هغوی سره د دې څه دليل شته چه دا معبود دې او د شرک په ذريعه د ظلم کونکو به څوک مددګار نه وي چه د هغوی نه عذاب منع کړي او کله چه هغوی ته زمونږ واضح قرآني آيتونه اورولې شي بينات د معنی ظاهرات حال دې نو ته د هغه کفارو په مخ باندې د ناخوښئ اثار ګورې يعنې د دې آيتونو د انکار (اثر لره) کوم چه کراهت او تر شروئي ده داسې معلوميږي چه په هغه خلقو باندې به حمله اوکړي کوم چه هغوی ته زمونږ آيتونه لوستلو سره اوروي يعنې نزدې ده چه په سختئ سره ئې اونيسي، ته اوايه ايا زه تاسو ته ددې نه هم زيات ناخوښه څيز اوښائم؟ يعنې تاسو ته د قرآن اورولو نه هم زيات ناخوښه څيز هغه دوزخ دې چه د هغې الله پاک د کفارو سره وعده کړې ده دا د هغوی ټهکانه ده او هغه بده ټهکانه ده.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: ﴿ أَلَمْ تَرَ تَعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ سَخَّرَ لَكُمْ ﴾ ﴿ تر ﴾ په اصل کښې ﴿ ترى ﴾ وو، دا د رويت نه مشتق دې، د ﴿ لم ﴾ داخليدو د وجې نه د آخر نه ﴿ ى ﴾ حرف علت ساقط شو د ﴿ تر ﴾ تفسير په ﴿ تعلم ﴾ سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چه د رؤيت نه مراد رؤيتِ قلبي دې، ﴿ سخر ﴾ دا د تسخير نه د ماضي صيغه ده په معنی د ﴿ ذلل ﴾ مسخر کول، په کار کښې لګول، قابو کول، زبردستئ سره په يو خاص کار کښې لګول.

**قوله**: ﴿ وَالْفُلْكَ ﴾ ما في الارض...باندې د عطف کيدو د وجې نه منصوب دې.

**قوله**: ﴿ من ﴾ (ان) ﴿ اولئلا تقع ﴾ په دې عبارت سره د مفسر علام مقصد د ﴿ ان تقع ﴾ اعراب ته اشاره کول مقصود دی، ﴿ ان تقع ﴾ يا په محل د جر کښې دې او حرف جر محذوف دې اى من ان تقع او تقع د ان مصدريه د وجې نه د وقوع په معنی کښې دې يا په محل د نصب کښې دې يا خو په دې وجه چه د السماء نه بدل دې بدل الاشتمال اى يمنع وقوعها او بعض حضراتو وئيلي دي چه د مفعول له کيدو د وجې نه منصوب دې، د بصريانو په نزد تقدير د عبارت داسې دې يمسك السماء كراهة ان تقع او د کوفيانو په نزد تقدير د عبارت دا دې يمسك السماء لئلا تقع مفسر علام احتمال اول او ثالث لره ذکر کړې دې.

قوله: ﴿ إِلَّا بِإِذْنِهِ﴾دا مستثنی مفرغ ده د عموم احوال نه خو دلته به دا شبه وی چه مستثنی مفرغ په کلام موجب کښې نه واقع کیږی او دلته مستثنی منه کومه چه ﴿ يمسك السماء﴾ ده کلام موجب دې؟ د دې شبهې جواب دا دې چه ﴿ يمسك السماء ان تقع على الارض﴾ په قوت د نفی کښې دې د عبارت تقدیر داسې دې ﴿ لا يتركها تقع فى حالة من الاحوال الا فى حالة كونها متلبسة بمشية الله تعالى﴾ باذنه کښې باء د ملابست دپاره ده.

قوله: لِكُلِّ أُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنسَكًا: دلته د امت نه هغه امت مراد دې چا سره چه اسمانی ملت او د یو نبی شریعت وی نه چه مشرکین اوکفار، په دې باندې لفظ جعلنا دلالت کوی مفسر علام د منسک تفسیر په شریعت سره کولو کښې دې خبرې طرف ته اشاره اوکړه چه (النسيكة) په معنی د عبادت نه ماخوذ دې لهذا ﴿ منسكا﴾ په موضع د عبادت یا په وقت د عبادت باندې محمول کولو څه وجه نشته او هم په دې معنی باندې ﴿ ناسكوه﴾ دلالت کوی که د موضع یا د وخت معنی مراد وې نو ﴿ ناسكون فيه﴾ به ئې وئیلې څکه چه عامل د ظرف د ضمیر طرف ته متعدی وی.

قوله: ﴿ لاينازعنك﴾ تفسیر ﴿ لاتنازعهم﴾ سره کولو کښې دې طرف ته اشاره ده چه مقصد رسول اللهﷺ نورو اهل ملل سره د منازعت نه منع کول دی او دا په طور د کنایه ده څکه چه منازعت د طرفین نه وی، رسول اللهﷺ ته دترک نزاع د حکم مقصد د هغوی د خبرو طرف ته د التفات د نه کولو حکم کول دی او چه کله رسول الله د هغوی د خبرو طرف ته التفات نه کوی نو جهګړه به پخپله ختمه شی، یو فریق لره منع کول، دا کنایة دویم فریق لره منع کول دی.

قوله: ﴿ فِي الْأَمْرِ﴾ مفسر علام د امر نه ذبیحه مراد کړې ده، خطیب وئیلې دی چه دا آیت کریمه بدیل بن ورقاء او بشر بن سفیان او یزید بن خنیس په باره کښې نازل شوې دې چه کله هغوی اصحاب رسولﷺ ته وئیلې وو ﴿ مالكم تاكلون مما تقتلون ولاتاكلون مما قتله الله﴾ یعنی تاسو د خپل لاس وژلې څه روتې خورئ او کوم څیز چه الله پاک قتل کړی (یعنی مردار) هغه نه خورئ. د مفسر علام د فی الامر تشریح په ذبح سره کول د مقام موافق نه ده بلکه دلته مطلقا احکام شریعت مراد دی، ګنې د دې نه به لازم شی چه په سابقه امتونو کښې مردار خوړل مشروع وو.

قوله: ﴿ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ﴾ ما موصوله ده او د ﴿ يعبدون﴾ مفعول به دې.

قوله: ﴿ يَكَادُونَ يَسْطُونَ﴾ دا جمله حالیه ده یا خو د ﴿ الذين﴾ نه خو په دې صورت کښې به دا اعتراض وی چه ﴿ الذين﴾ مضاف الیه دې او مقصود مضاف وی نو د مضاف الیه

نه حال واقع کيدل به څنګه صحيح وي؟ جواب دا دې چه مضاف چونکه د مضاف اليه جزء دې لهذا د مضاف اليه نه حال واقع کيدل صحيح دی يا د وجوه نه حال دې او د (وجه) نه صاحب وجه مراد دې، مفسر علام د (يسطون) تفسير (يبطش) سره کولو کښې دې خبرې طرف ته اشاره اوکړه چه (يسطون) د يبطشون معنی لره متضمن دې، هم دا وجه ده چه د (يسطون) صله (با) صحيح ده، ګنې د (يسطون) صله (على) راځي.

**قوله:** (هُوَ النَّارُ) النار د هومبتدأ محذوف خبر دې، په دې صورت کښې به وقف په (ذلکم) باندې وی او دا هم جائز ده چه (النار) مبتدأ او (وعدها الله) د دې خبر شی په دې صورت کښې به وقف په (الذين كفروا) باندې وی.

**[اياتونه: ۷۳-۷۸]**

﴿يٰأَيُّهَا النَّاسُ﴾ أَيْ أَهْلَ مَكَّةَ ﴿ضُرِبَ مَثَلٌ فَاسْتَمِعُوا لَهُ﴾ وَهُوَ ﴿إِنَّ الَّذِينَ تَدْعُونَ﴾ تَعْبُدُونَ ﴿مِنْ دُونِ اللَّهِ﴾ أَيْ غَيْرِهِ وَهُمُ الْأَصْنَامُ ﴿لَنْ يَخْلُقُوا ذُبَابًا﴾ اسْمُ جِنْسٍ وَاحِدُهُ ذُبَابَةٌ يَقَعُ عَلَى الْمُذَكَّرِ وَالْمُؤَنَّثِ ﴿وَلَوِ اجْتَمَعُوا لَهُ﴾ لِخَلْقِهِ ﴿وَإِنْ يَسْلُبْهُمُ الذُّبَابُ شَيْئًا﴾ مِمَّا عَلَيْهِمْ مِنَ الطِّيبِ وَالزَّعْفَرَانِ الْمُلَطَّخِينَ بِهِ ﴿لَا يَسْتَنْقِذُوهُ﴾ لَا يَسْتَرِدُّوهُ ﴿مِنْهُ﴾ لِعَجْزِهِمْ فَكَيْفَ يَعْبُدُونَ شُرَكَاءَ اللَّهِ تعالى هذا أَمْرٌ مُسْتَغْرَبٌ عَبَّرَ عَنْهُ بِضَرْبِ مَثَلٍ ﴿ضَعُفَ الطَّالِبُ﴾ الْعَابِدُ ﴿وَالْمَطْلُوبُ﴾ الْمَعْبُودُ ﴿مَا قَدَرُوا اللَّهَ﴾ عَظَّمُوهُ ﴿حَقَّ قَدْرِهِ﴾ عَظَمَتِهِ إِذْ أَشْرَكُوا بِهِ مَا لَمْ يَمْتَنِعْ مِنَ الذُّبَابِ وَلَا يَنْتَصِفُ مِنْهُ ﴿إِنَّ اللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ﴾ غالب ﴿اللَّهُ يَصْطَفِي مِنَ الْمَلَائِكَةِ رُسُلًا وَمِنَ النَّاسِ﴾ رسلا نزل لَمَّا قَالَ الْمُشْرِكُونَ ﴿أَأُنْزِلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ مِنْ بَيْنِنَا﴾ ﴿إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ﴾ لِمَقَالَتِهِمْ ﴿بَصِيرٌ﴾ بِمَنْ يَتَّخِذُهُ رَسُولًا كَجِبْرِيلَ وَمِيكَائِيلَ وَإِبْرَاهِيمَ وَمُحَمَّدٍ وَغَيْرِهِمْ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَسَلَّمَ ﴿يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ﴾ أَيْ مَا قَدَّمُوا وَمَا خَلَّفُوا وَمَا عَمِلُوا وَمَا هُمْ عاملون بعد ﴿وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ﴾ ﴿يٰأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا﴾ أَيْ صَلُّوا ﴿وَاعْبُدُوا رَبَّكُمْ﴾ وَحِّدُوهُ ﴿وَافْعَلُوا الْخَيْرَ﴾ كَصِلَةِ الرَّحِمِ وَمَكَارِمِ الْأَخْلَاقِ ﴿لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ تَفُوزُونَ بِالْبَقَاءِ فِي الْجَنَّةِ ﴿وَجَاهِدُوا فِي اللَّهِ﴾ لِإِقَامَةِ دِينِهِ ﴿حَقَّ جِهَادِهِ﴾ بِاسْتِفْرَاغِ الطَّاقَةِ فِيهِ وَنُصِبَ حَقَّ عَلَى الْمَصْدَرِ ﴿هُوَ اجْتَبَاكُمْ﴾ اخْتَارَكُمْ لِدِينِهِ ﴿وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ﴾ أَيْ ضِيقٍ بِأَنْ سَهَّلَهُ عِنْدَ الضَّرُورَاتِ كَالْقَصْرِ وَالتَّيَمُّمِ وَأَكْلِ الْمَيْتَةِ وَالْفِطْرِ لِلْمَرَضِ وَالسَّفَرِ ﴿مِلَّةَ أَبِيكُمْ﴾ مَنْصُوبٌ بِنَزْعِ الْخَافِضِ الْكَافِ ﴿إِبْرَاهِيمَ﴾ عَطْفُ بَيَانٍ ﴿هُوَ﴾ أَيِ اللَّهُ ﴿سَمَّاكُمُ الْمُسْلِمِينَ مِنْ قَبْلُ﴾ أَيْ قَبْلَ هَذَا الْكِتَابِ ﴿وَفِي هَذَا﴾ أَيِ الْقُرْآنِ ﴿لِيَكُونَ الرَّسُولُ شَهِيدًا عَلَيْكُمْ﴾ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَنَّهُ بَلَّغَكُمْ ﴿وَتَكُونُوا﴾ أَنْتُمْ ﴿شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ﴾ أَنَّ رُسُلَهُمْ بَلَّغُوهُمْ ﴿فَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ﴾ دَاوِمُوا عَلَيْهَا ﴿وَآتُوا الزَّكَاةَ وَاعْتَصِمُوا بِاللَّهِ﴾ ثِقُوا بِهِ ﴿هُوَ مَوْلَاكُمْ﴾ نَاصِرُكُمْ وَمُتَوَلِّي أُمُورِكُمْ ﴿فَنِعْمَ الْمَوْلَى﴾ هُوَ ﴿وَنِعْمَ النَّصِيرُ﴾ النَّاصِرُ لَكُمْ

**ترجمه:** اې خلقو! يعنی مکې والو! يوه عجيبه خبره بيانولې شی هغه په غور سره واورئ او هغه خبره دا ده چه په دې خبره کښې هيڅ شبهه نشته چه کوم څيزونه تاسو د الله پاک نه سوا رابلئ يعنی

بندګی کوئ د غیر الله هغه بتان دی هغوی خو یو مچ هم نه شی پیدا کولی ذباب اسم جنس دې د دې واحد ذبابة دې د دې اطلاق په مذکر او مونث دواړو باندې کیږی اګرکه د دې تخلیق دپاره ټول په ټول راجمع شی او که د هغوی نه مچ یو څیز اوتختوی د هغه نه چه په هغوی کومه خوشبوئی او زعفران لګیدلې وی (چه په هغې هغه ککړ شوی دی) نو هغې لره هغوی د هغه نه واپس نه شی اخستلې د هغوی د عاجز کیدو د وجې نه، بیا ولې بندګی کوئ (د هغوی) د الله پاک شریکان ګنړلو سره، دا خبره چونکه عجیب ده هم په دې وجه د دې نه په ضرب المثل سره تعبیر کړې شوې دې داسې طالب عابد هم ضعیف او مطلوب معبود هم ضعیف دې، دې خلقو څنګه چه د الله پاک تعظیم کول پکار وو هغه شان ئې اونکړو حال دا چه هغه سره ئې داسې څیز شریک کړې دې کوم چه د مچ نه خپل حفاظت نه شی کولې او نه د هغه نه خپل حق اغستلې شی بیشکه الله پاک لوئې طاقت والا او په ټولو باندې غالب دې الله پاک په فرشتو کښې او په انسانانو کښې چه څوک غواړی د پیغام رسولو دپاره منتخب کوی (دا آیت کریمه) هغه وخت نازل شو چه کله مشرکانو اووئیل چه آیا په مونږ کښې صرف ده باندې ذکر (قرآن) نازل کړې شوې دې بیشکه الله پاک د هغوی خبرو لره اوریدونکې او پیژوندکې دې په هغه چا لره چه څوک خپل استاذی ګرځوی لکه په فرشتو کښې سیدنا جبرائیل عليه السلام او سیدنا میکائیل عليه السلام او په انسانانو کښې سیدنا ابراهیم عليه السلام او سیدنا محمد صلى الله عليه وسلم لره هغه د هغوی په مخکښې او روستو ټولو حالاتو باندې خبر دې یعنی چه کوم اعمال ئې وړاندې لیږلی دی او کوم اعمال چه ئې شاته پریخودلی دی او کوم اعمال چه ئې کړی دی او کوم چه به راروان وخت کښې کوی او ټول امور به د الله پاک طرف ته واپس کولې شی اې خلقو رکوع کوئ او سجده کوئ یعنی مونځ کوئ او د خپل رب بندګی کوئ یعنی دهغه د وحدانیت عقیده ساتئ او نیک کار کوئ لکه صله رحمی او ښه اخلاق امید دې چه تاسو به کامیاب شئ یعنی په جنت کښې به د دائمی بقاء سره کامیاب شئ او د الله پاک په کار کښې د هغه د دین د قیام دپاره ښه کوشش کوئ خپل پوره کوشش په هغې کښې خرچ کولو سره او د حق د نصب مصدریهت د وجې نه دې هغه تاسو د خپل دین دپاره منتخب کړی یئ او په تاسو باندې ئې ستاسو د دین په معامله کښې هیڅ تنګسیا نه ده کیخودلې په دې طریقه چه د ضرورت په وخت ئې درته دین اسان کړې دې لکه قصر او تیمم او د مردارې خوړل او د مریض او مسافر دپاره د روژې نه ساتلو اجازت ستاسو د پلار ابراهیم عليه السلام د ملت په شان ملة حرف جر کاف لره د حذف کولو د وجې نه منصوب دې ابراهیم په اسم باندې عطف دې هغه یعنی الله پاک ستاسو نوم د مخکښې نه (یعنی د دې کتاب د نزول) نه مخکښې مسلمان کیخودلې دې او په دې کښې هم یعنی قرآن کښې هم د دې دپاره چه رسول صلى الله عليه وسلم ستاسو دپاره د قیامت په ورځ باندې ګواه شی چه هغه

تاسو ته پیغام در اورسولو او تاسو د خلقو په مقابله کښې ګواه شئ چه دهغوی رسولانو (پیغام) هغوی ته رسولي دي تاسو د مونځ پابندي کوئ او زکاة ورکوئ او الله له مضبوط اونیسئ یعنی په هغه باندې خان اوسپارئ هغه ستاسو مولی یعنی مددګار او ستاسو کارساز دی پس هغه څه بنه کارساز دی او ستاسو دپاره څه بنه مدد ګار دی.؟

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: ﴿ يأيها النَّاس ﴾ای اهل مکة د دې آیت کریمه تعلق د ماقبل آیت کریمه ﴿ ويعبدون من دون الله ﴾ (الاية) سره دې، په دې آیت کریمه کښې خطاب اګر چه اهل مکه ته دې خو مراد ترې هر هغه کس دې کوم چه د غیر الله بندګی کوی. ﴿ ضرب مثل ﴾، د مثل نه مراد امر عجیب دې او هغه امر عجیب د شرک او د بت پرستئ حماقت له په یو واضح مثال سره بیانول دی چه کوم بتان چه تاسو خپل کارساز ګنړئ داسې بې وسه او عاجزه دی چه ټول یوځائې کیدو سره هم د مچ په شان یو سپک څیز نه شی پیدا کولې او پیدا کول خو ډیر لوئې کار دې تاسو روزانه د هغې په وړاندې د خوږو او خوراکونو منختې کوئ او مچان هغه خوری د هغوی نه خو دومره هم نه کیږی چه د مچانو نه خپل څیز بچ کړی دا به تاسو د یو آفت نه څه بچ کړی په دې وجه ئې د آیت کریمه په آخر کښې د هغوی د جهالت او بې وقوفئ نه په دې الفاظو سره تعبیر فرمائیلې دې. ضعف الطالب والمطلوب.

قوله: ﴿ وَلَوِ اجْتَمَعُوا لَهُ ﴾ دا جمله د حال په محل کښې واقع ده، ای انتفی خلقهم الذباب علی کل حال ولو فی حال اجتماعهم.

قوله: ﴿ وَإِنْ يَسْلُبْهُمُ الذُّبَابُ شَيْئًا ﴾ ﴿ يسلب ﴾ متعدی دې دوؤ مفعولو ته، مفعول اول ﴿ هم ﴾ او ثانی ﴿ شيئا ﴾ دې ملطخون دا د لطخ نه مشتق دې، ککړ کول، ګنده کول، ملاویدل او خیرن کول، ﴿ ملطخون ﴾ په اصل کښې د طيب والزعفران صفت سببی دې لهذا ملطخون په ځائې ملطخين پکار دی لکه چه ظاهره ده. (جمل)

قوله: ﴿ عَبَّرَعَنْهُ بِضَرْبِ مَثَلٍ ﴾ دا د دې سوال جواب دې چه د ضرب مثل په نوم سره چه بیان کړې شوې دې هغه مثل نه دې نو بیا دې ته مثل ولې اوئیلې شو؟ د جواب خلاصه دا ده چه واقعه عجیبه او دغه شان غوره او عجیب وغریب مضمون نه هم په مثل سره تعبیر کولې شی.

قوله: ﴿ وَمِنَ النَّاسِ رسلا ﴾ رسلا: محذوف منلو سره ئې اشاره اوکړه چه په آیت کریمه کښې حذف دې ثانی له په اول باندې قیاس کولو سره ﴿ رسلا ﴾ حذف کړې شو.

قوله: ﴿ حَقَّ جِهَادِهِ ﴾ په اصل کښې جهادا حقا دې دا د اضافت الصفت الی الموصوف د قبیل نه دې.

قوله: ﴿ هو ﴾ اي الله سماكم المسلمين، د هو دمرجع كښې دوه احتمالات دي يو دا چه د دې مرجع ابراهيم وي او دويم دا چه د دې مرجع ﴿ الله ﴾ وي، مفسر علام د ﴿ هو ﴾ نه پس الله محذوف منلو سره ثاني احتمال راجح گرځولي دې او قرينه وفي هذا القرآن دې ځکه چه په قرآن کريم کښې مسلمان نوم کيخودل د الله پاک کار دې، نه د سيدنا ابراهيم عليه السلام.

## پاره نمبر ۱۸ [قد أفلح المؤمنون]

## [۲۳] سورة المؤمنون

سُوْرَةُ الْمُؤْمِنُونَ مَكِّيَّةٌ وهي مائة و ثمان او تسع عشرة آية.

سوره مومنون مکي دې، او (۱۱۸) يا (۱۲۹) آيتونه دي.

[اياتونه: ۱-۲۲]

بسم الله الرحمن الرحيم (قد) للتحقيق (أفلح) فاز (المؤمنون) (الَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ خَاشِعُونَ) متواضعون (وَالَّذِينَ هم عن اللغو) من الكلام وغيره (معرضون) (وَالَّذِينَ هُمْ لِلزَّكَاةِ فَاعِلُونَ) مؤدون (وَالَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حَافِظُونَ) عَنِ الْحَرَامِ (إِلَّا عَلَى أَزْوَاجِهِمْ) أَيْ مِنْ زَوْجَاتِهِمْ (أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ) أَيْ السَّرَارِي (فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ) في إتيانهن (فَمَنِ ابْتَغَى وَرَاءَ ذَلِكَ) مِنَ الزَّوْجَاتِ وَالسَّرَارِي كَالِاسْتِمْنَاءِ بِالْيَدِ فِي إِتْيَانِهِنَّ (فَأُولَئِكَ هُمُ الْعَادُونَ) الْمُتَجَاوِزُونَ إِلَى مَا لَا يَحِلُّ لَهُمْ (وَالَّذِينَ هُمْ لِأَمَانَاتِهِمْ) جَمْعًا وَمُفْرَدًا (وَعَهْدِهِمْ) فِيمَا بَيْنَهُمْ أَوْ فِيمَا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ اللَّهِ مِنْ صَلَاةٍ وَغَيْرِهَا (رَاعُونَ) حَافِظُونَ (وَالَّذِينَ هُمْ عَلَى صَلَوَاتِهِمْ) جَمْعًا وَمُفْرَدًا (يُحَافِظُونَ) يُقِيمُونَهَا فِي أَوْقَاتِهَا (أُولَئِكَ هُمُ الْوَارِثُونَ) لَا غَيْرُهُمْ (الَّذِينَ يَرِثُونَ الْفِرْدَوْسَ) هُوَ جَنَّةُ أَعْلَى الْجِنَانِ (هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ) فِي ذَلِكَ إِشَارَةٌ إِلَى الْمَعَادِ وَيُنَاسِبُهُ ذِكْرُ الْمَبْدَأِ بَعْدَهُ (وَ) اللَّهِ (لَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ) آدَمَ (مِنْ سُلَالَةٍ) هِيَ مِنْ سَلَلْتُ الشَّيْءَ مِنَ الشَّيْءِ أَيْ اسْتَخْرَجْتُهُ مِنْهُ وَهُوَ خُلَاصَتُهُ (مِنْ طِينٍ) متعلق بسلالة (ثُمَّ جَعَلْنَاهُ) أَيْ الْإِنْسَانَ نَسْلَ آدَمَ (نُطْفَةً) مَنِيًّا (فِي قَرَارٍ مَكِينٍ) هُوَ الرَّحِمُ (ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً) دَمًا جَامِدًا (فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً) لَحْمَةً قَدْرَ مَا يُمْضَغُ (فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظَامًا فَكَسَوْنَا الْعِظَامَ لَحْمًا) وَفِي قِرَاءَةٍ عَظْمًا فِي الْمَوْضِعَيْنِ وَخَلَقْنَا فِي الْمَوَاضِعِ الثَّلَاثِ بِمَعْنَى صَيَّرْنَا (ثُمَّ أَنْشَأْنَاهُ خَلْقًا آخَرَ) بِنَفْخِ الرُّوحِ فِيهِ (فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ) أَيْ الْمُقَدِّرِينَ وَمُمَيِّزُ أَحْسَنَ مَحْذُوفٌ لِلْعِلْمِ بِهِ أَيْ خلقا (ثم إنكم بعد ذلك لميتون) (ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ تُبْعَثُونَ) لِلْحِسَابِ وَالْجَزَاءِ (وَلَقَدْ خَلَقْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعَ طَرَائِقَ) أَيْ سَمَاوَاتٍ جَمْعُ طَرِيقَةٍ لِأَنَّهَا طُرُقُ الْمَلَائِكَةِ (وَمَا كُنَّا عَنِ الْخَلْقِ) الَّتِي تَحْتَهَا (غَافِلِينَ) أَنْ تَسْقُطَ عَلَيْهِمْ فَتُهْلِكَهُمْ بَلْ نُمْسِكُهَا كَآيَةِ (وَيُمْسِكُ السَّمَاءَ أَنْ تَقَعَ عَلَى الْأَرْضِ) (وَأَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً بِقَدَرٍ) مِنْ كِفَايَتِهِمْ (فَأَسْكَنَّاهُ فِي الْأَرْضِ وَإِنَّا عَلَى ذَهَابٍ بِهِ لَقَادِرُونَ) فَيَمُوتُونَ مَعَ دَوَابِّهِمْ عَطَشًا (فَأَنْشَأْنَا لَكُمْ بِهِ جَنَّاتٍ مِنْ نَخِيلٍ وَأَعْنَابٍ) هُمَا أَكْثَرُ فَوَاكِهِ الْعَرَبِ (لَكُمْ فِيهَا فَوَاكِهُ كَثِيرَةٌ وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ) صَيْفًا وَشِتَاءً (وَ) أَنْشَأْنَا (شَجَرَةً تَخْرُجُ مِنْ طُورِ سَيْنَاءَ) جَبَلٌ بِكَسْرِ السِّينِ وَفَتْحِهَا وَمَنْعُ الصَّرْفِ لِلْعَلَمِيَّةِ

وَالتَّأنِيث لِلْبُقْعَةِ (تَنْبُت) مِنَ الرُّبَاعِيِّ وَالثُّلَاثِيِّ (بِالدُّهْنِ) اَلْبَاء زَائِدَة عَلَى الْأَوَّل وَمُعَدِّيَة عَلَى الثَّانِي (وَمِنْ) شَجَرَة الزَّيْتُون (وَصِبْغٍ لِلْآكِلِينَ) عَطف عَلَى الدُّهْن أَيْ إِدَام يَصْبُغ اللُّقْمَة بِغَمْسِهَا فِيهِ وهو الزيت (وَإِنَّ لَكُمْ فِي الْأَنْعَامِ) الْإِبِل وَالْبَقَر وَالْغَنَم (لَعِبْرَةً) عِظَة تَعْتَبِرُونَ بِهَا (نُسْقِيكُمْ) بِفَتْحِ النُّون وَضَمِّهَا (مِمَّا فِي بُطُونِهَا) اللَّبَن (وَلَكُمْ فِيهَا مَنَافِعُ كَثِيرَةٌ) مِنَ الْأَصْوَاف وَالْأَوْبَار وَالْأَشْعَار وَغَيْر ذلك (ومنها) تاكلون (وعليها) الإبل (وعلى الفلك) السفن (تحملون)

ترجمه: يقينا هغه مومنان كامياب شو كوم چه په خپلو مونځونو كښې تواضع اختيارونكى دى قد د تحقيق دپاره دې (او دا هغه خلق دى) چه د لغو خبرو وغيره نه اعراض كونكى دى او كوم چه زكاة ادا كونكى دى (او هغه خلق دى) چه د حرام نه د خپلو شرمګاهونو حفاظت كونكى دى خو د خپلو بيبيانو نه يا د هغه زنانو نه د كومو چه هغوى مالكان دى يعنى وينزو نه ځكه چه هغوى نه په راتلو كښې (جماع كولو كښې) په هغوى باندې هيڅ الزام نشته او څوک چه د دې نه علاوه يعنى د بيبيانو او وينزو نه علاوه مثلا استمناء باليد وغيره طالب وى نو داسې خلق دحد نه اوړيدونكى دى يعنى داسې څيز طرف ته ورمخكښې كيدونكى دى چه هغه دهغوى دپاره حلال نه دې او څوک چه دخپلو امانتونو امانات جمع او مفرد دواړه قراءتونه دى خپل مينځ كښې (معاملات) او دخپل او الله په مينځ كښې وعده او لوظ (مثلا) دمونځ وغيره حفاظت كونكى دى او كوم چه د خپلو مونځونو صلوات جمع او مفرد دواړه قراءتونه دى، د هغې په وختونو كښې پابندۍ سره قائمونكى دى هم دغه شان خلق وارثان دى نه چه نور خلق كوم چه به د فردوس وارثان وى هغه د اعلى درجې جنت دې (او) هغوى به په هغې كښې هميشه اوسيږى، په دې (آيت) كښې د معاد (انجام) طرف ته اشاره ده ددې نه پس د مبدأ ذكر مناسب دې، قسم دې زما په ذات باندې چه مونږ انسان آدم عليه السلام لره د خاورې نه پيدا كړو او سلالة سللت الشئ من الشئ نه ماخوذ دې يعنى ما انسان لره د خاورې د جوهر نه پيدا كړې دې او هغه جوهر د خاورې خلاصه ده، د من الطين تعلق د سلالة سره دې، بيا مونږ انسان يعنى نسل آدم عليه السلام لره د منى د نطفې نه جوړ كړو كوم چه په يو محفوظ ځائې كښې پاتې شوې دې هغه رحم دې بيا مونږ هغه نطفه كلكه وينه جوړه كړه يعنى چكه وينه بيا مونږ دهغه چكه وينې ټكړه (بوټۍ) د شخوند وهلو چيچلو لائقه د غوښې بوټۍ جوړ كړو بيا مو هغه بوټۍ هډوكى جوړ كړل بيا مونږ هغه هډوكو باندې غوښه اوخيژوله او په يو قراءت كښې دواړو ځايونو كښې (د عظام په ځائې) عظم دې، او (خلقنا) په درې واړو ځايونو كښې د (صيرنا) په معنى كښې دې بيا مونږ هغه لره په هغې كښې روح پو كولو سره يو بل مخلوق جوړ كړو نو څنګه شان دې د الله پاک كوم چه د ټولو پيدا كونكو نه ښه پيدا كونكې دې او خالقين په معنى د مقدرين اندازه كونكى دې او د

احسن تميز خلقا د دې د معلوميدو (متعين کيدو) د وجې نه محذوف دې يا تاسو د دې نه روستو باليقين مره کيدونکی يئ يا به تاسو يقينا د دې نه روستو د قيامت په ورځ باندې د حساب او جزاء دپاره پاڅولې شئ او مونږ ستاسو دپاسه اووه اسمانونه جوړ کړل طرائق په معنى د اسمان دې او طرائق طريقة جمع ده څکه چه اسمان د فرشتو لاره ده او مونږ د اسمان د لاندې مخلوق نه بې خبره نه وو چه اسمان به د هغوی دپاسه راغورځيږی پس هغوی به هلاک شی بلکه مونږ اسمان راتينګ کړې دې لکه چه په يو آيت کريمه کښې دی يمسك السماء ان تقع على الارض او مونږ (مناسب) مقدار سره په قدر د کفايت اسمان (وريخ) نه اوبه راورولې، بيا مونږ هغه (اوبو) لره په
زمکه کښې پاتې کړې او مونږ د دغه (اوبو) په بوتلو (ختمولو) باندې هم قادر يو، پس تول په تول به سره د خپلو ځاروو د تندې نه مره شی يا مونږ د دې اوبو په ذريعه ستاسو دپاره د کهجورو او انګورو باغونه پيدا کړل ذکر شوی دواړه خيزونه په عربو کښې په کثرت سره پيدا کيدونکی ميوې دی چه په هغې ستاسو د پاره ډيرې ميوې او د دې نه تاسو خوراک هم کوئ په ګرمئ او يخنئ کښې او مونږ يوه اونه پيدا کړه کوم چه په سيناء غر کښې پيدا کيږی سيناء د سين په کسرې او فتحې دواړو سره دې او غير منصرف منلې شوې دې د علميت د وجې نه او د بقعه په معنى کښې د کيدو د وجې نه د تانيث د موندلې کيدو د سبب نه کوم راز راغونيږی د تيلو سره تنبت کښې رباعی او ثلاثی دواړه صحيح دی اولنی (يعنی د رباعی) صورت کښې باءزائده ده، او دويم (يعنی د ثلاثی) په صورت کښې باء د تعديه دپاره ده او هغه د زيتون اونه ده او د خوراک کونکو دپاره ترکاری سره د دې عطف په ﴿ الدهن ﴾ باندې يعنى ترکاری کوم چه رنګ ورکوی لقمې ته په هغې کښې د دوبيدو د وجې نه او هغه تيل دی او ستاسو دپاره په ځاروو کښې يعنى اوښ، غواګانو او بيزو کښې عبرت دې يعنى نصيحت دې چه د هغې نه تاسو عبرت حاصلولې شئ، چه مونږ تاسو د هغې د خيټې څيز نه يعنى پئ د څکلو دپاره درکوو نسقيکم د نون په ضمې او فتحې دواړو سره دې او ستاسو دپاره په دې کښې نورې هم ډيرې فائدې دی د وړئ نه او د اوښانو د ويښتو نه او غوا (وغيره) د ويښتو نه او په هغې کښې بعض تاسو خورئ او په اوښانو او په کشتو باندې تاسو سورلې شئ او ګرځئ.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله: ﴿ قد ﴾** د تحقيق دپاره دې يعنى قدچه کله په ماضى باندې داخل شی نو په اثبات باندې دلالت کوی هم په دې وجه ماضى لره حال ته نزدې کوی او متوقع لره ثابتوی مومنان چونکه د الله پاک د فضل اميدوار وو په دې وجه د هغوی بشارت ئې په ﴿ قد ﴾ سره شروع اوفرمائيلو، او چونکه د دې بشارت وقوع يقينى ده په دې وجه ئې د ماضى

په صيغې سره تعبير اوفرمائيلو.

قوله: ﴿ افلح ﴾فلاح په لغت کښې په مقصد کښې کاميابيدلو او د مکروهاتو نه بچ کيدلو ته وائي (کما في ابي سعود) او بعض حضرات فرمائي چه ﴿ فلاح بقاء في الخير ﴾ ته وائي.

قوله: ﴿ لِلزَّكَاةِ فَاعِلُونَ ﴾زکاة معنی مصدری یعنی زکاة ادا کولو او د زکاة مال ته وئيلې شی يعنی معنی مصدری مراد ده ځکه چه فاعل د معنی حدثی وی نه د محل فعل، يعنی هغه خلق کامياب شو کوم چه زکاة ادا کوی، اوس پاتې شوه دا سوال چه د اداء زکاة په سلسله کښې معروف تعبير مثلا ايتاء الزكاة يؤتون الزكاة يا اتوا الزكاة ... لره پريخودلو سره ئې د للزكاة فاعلون تعبير ولې اختيار فرمائيلې دې؟ جواب دا دې چه ﴿ للزكاة فاعلون ﴾هم په کلام عرب کښې مستعمل دې، اميه بن ابی صلت وائی ﴿ المطعمون الطعام في السنة اللازمة والفاعلون للزكاة ﴾(روح البيان) دويم جواب دا دې چه فواصل رعايت مقصود دې بعض حضراتو وئيلې دی چه دلته عين زکاة هم مراد کيدې شی خو مضاف به محذوف منل وی ای والذين هم لتادية الزكاة فاعلون.

قوله: ﴿ وَالَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حَافِظُونَ ﴾د دې آيت کريمه نه په حرمت متعه باندې استدلال کړې شوې دې، اخرج ابن ابی حاتم عن القاسم بن محمد انه سئل عن المتعة فقرا هذه الاية قال فمن ابتغى وراء ذلك فهو عاد، وروی عن ابن ابی مليكة قال سالت عائشة رضي الله عنها عن المتعة فقالت بيني وبينهم القرآن، ثم قرات الاية قالت فمن ابتغى وراء ذلك غير ما زوجه الله او ملكه يمينه فقد عدا.

قوله: ﴿ أَيْ مِنْ أَزْوَاجِهِمْ ﴾په دې کښې اشاره ده چه ﴿ على ﴾په معنی د ﴿ من ﴾دې.

قوله: ﴿ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ ﴾ نه مراد وينځې دی د ﴿ من ﴾په ځائې په ﴿ ما ﴾سره تعبير اوکړې شو د دې وجه دا کيدې شی چه زنانه ناقصات العقل وی او خاص طور سره چه کومې مملوکې هم وی لهذا د مشابه بالبهائم کيدو دوجې نه ئې په ﴿ ما ﴾سره تعبير اوکړو ﴿ ما ملکت ﴾ د خپل عموم د وجې نه اگرچه غلامانو او وينځو دواړو ته شامل دې خو دلته صرف وينځې مراد دی ځکه چه د مالکې د خپل غلام سره وطی کول بالاتفاق جائز نه دی ﴿ غير ملومين ﴾کښې دې طرف ته اشاره ده چه هم دا مقصد جوړول څه د تعريف خبره نه ده آو؛ د انسانی طبيعت د ضرورت پوره کولو د حده پورې اجازت دې.

قوله: ﴿ كَالِاسْتِمْنَاءِ بِالْيَدِ ﴾د ائمه ثلاثه په نزد استمناء باليد حرامه ده او د امام احمد رحمه الله په نزد په درې شرطونو سره جائز ده. ① په زنا کښې د اخته کيدو د ويرې نه، ② د مهر ادا کولو يا وينځې اخستلو د طاقت نه لرلو په صورت کښې، ③ دا په خپل لاس سره وی نه د پردی سړی يا پردئ زنانه په لاس. (حاشيه جلالين)

قوله: ﴿ تَرَاري ﴾ د ﴿ سرية ﴾ جمع ده په معنى د وينزې، دا د ﴿ سر ﴾ نه ماخوذ دې چه د هغې معنى يا د اخفاء ده څکه چه ډير کرته انسان د وينزې سره همبستري د خپلې ازادې زنانه نه پټه ساتي هم په دې وجه (سرية) وئيلې شي يا بيا د سرورنه مشتق دې چه د هغې معنى د خوشحالئ ده چونکه مالک د وينزې نه خوشحاله وي په دې وجه هغه ته (سرية) وئيلې شي.

قوله: ﴿ فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ ﴾ دا د استثناء علامت دې.

قوله: ﴿ أُولَٰئِكَ هُمُ الْوَارِثُونَ لَا غَيْرُهُمْ ﴾ د لاغيرهم اضافه جمله معرفة الطرفين نه حصر مستفاد لره ظاهرولو دپاره ده، جمله چه کله معرفة الطرفين وي لکه چه ذکر شوې جمله ده نو د دې نه حصر مستفاد کيږي، هم دغه شان د طرفين ترمينځه ضمير د ﴿ هم ﴾ دا هم په حصر باندې دلالت کوي، دلته د حصر نه مراد حصر اضافي دې نه حقيقي، څکه چه دا خبره ثابته ده چه د ذکر شوي اشخاص داخليږي اگر چه نورو جنتونو ته به نور اشخاص داخليږي.

قوله: ﴿ وَيُنَاسِبُهُ ذِكْرُ الْمَبْدَأِ بَعْدَهُ ﴾ د دې عبارت د اضافې مقصد په دې آيت او مخکنې آيت ترمينځه مناسبت او ربط لره بيانول دي.

قوله: ﴿ وَاللَّهِ لَقَدْ خَلَقْنَا ﴾ لفظ الله لره محذوف منلو سره ئې اشاره اوکړه چه واو قسميه دې او په ﴿ لقد ﴾ کښې لام په جواب قسم باندې داخل دې.

قوله: ﴿ جَعَلْنَاهُ أَيِ الْإِنْسَانَ نَسْلَ آدَمَ ﴾... ﴿ ه ﴾ ضمير په ماقبل کښې د مذکور انسان طرف ته راجع دې خو مراد ترې نسل ادم دې او د انسان نه کوم چه مرجع دې، آدم مراد دې غرض دا چه په کلام کښې صنعتِ استخدام دې، صنعت استخدام دې ته وئيلې شي چه د مرجع نه يوه معنى مراد وي او د مرجع طرف ته واپس کيدونکي ضمير نه بله معنى مراد وي.

قوله: ﴿ وَأَنْشَأْنَا شَجَرَةً ﴾ انشأنا محذوف منلو سره ئې اشاره اوکړه چه د شجرة عطف په جنات باندې دې.

قوله: ﴿ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ ﴾ اى المقدرين د المقدرين د اضافې مقصد دا شبه دفع کول دي چه اسم تفضيل د مشارکت تقاضه کوي حال دا چه د الله پاک نه سوا هيڅ څوک خالق نشته؟ نو جواب ئې ورکړو چه د خلق نه مراد تقدير او تصوير دې نه ايجاد او تخليق لهذا اوس هيڅ اعتراض نشته.

قوله: ﴿ تمييزه ﴾ چونکه لفظ د ﴿ خالقين ﴾ په خلقا باندې دلالت کوي لهذا د دې قرينې د وجې نه تمييز محذوف کړې شو.

قوله: ﴿ فَوْقَكُمْ سَبْعَ طَرَائِقَ ﴾ د فوق نه مراد مطلقا علو ده نه چه د انسانانو په سرونو

باندې ځکه چه کوم وخت اسمانونه پیدا کړې شوې وو هغه وخت انسان موجود نه وو بیا (فوقکم) ونیل به څنګه صحیح وی، معلومه شوه چه د (فوقکم) نه مطلقا علو مراد دی.

**[اياتونه: ۲۳ - ۳۲]**

(وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَى قَوْمِهِ فَقَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ) أطيعوا الله وَوَحِّدُوهُ (مَا لَكُمْ مِنْ إِلَهٍ غَيْرُهُ) وَهُوَ اسْم مَا وَمَا قبله الخبر وَمِنْ زَائِدَة (أَفَلَا تَتَّقُونَ) تخافون عقوبته بعبادتكم غيره (فَقَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ قَوْمِهِ) لِأَتْبَاعِهِمْ (مَا هَذَا إِلَّا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ يُرِيدُ أَنْ يَتَفَضَّلَ) يتشرف (عَلَيْكُمْ) بِأَنْ يَكُون متبوعًا وَأَنْتُمْ أتباعه (وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ) أَنْ لَا يُعْبَد غيره (لَأَنْزَلَ مَلَائِكَةً) بِذَلِكَ لَا بَشَرًا (مَا سَمِعْنَا بِهَذَا) الَّذِي دَعَا إِلَيْهِ نُوح مِنْ التَّوْحِيد (فِي آبَائِنَا الْأَوَّلِينَ) الْأُمَم الْمَاضِيَة (إِنْ هُوَ) مَا نُوح (إِلَّا رَجُلٌ بِهِ جِنَّةٌ) حَالَة جُنُون (فَتَرَبَّصُوا بِهِ) انْتَظِرُوهُ (حَتَّى حِينٍ) إِلَى زَمَن مَوْته (قَالَ) نُوح (رَبِّ انْصُرْنِي) عَلَيْهِمْ (بِمَا كَذَّبُونِ) بِسَبَبِ تَكْذِيبهمْ إِيَّايَ بِأَنْ تُهْلِكهُمْ قَالَ تَعَالَى مجيبا دعاءه (فَأَوْحَيْنَا إِلَيْهِ أَنِ اصْنَعِ الْفُلْكَ) السَّفِينَة (بِأَعْيُنِنَا) بِمَرْأَى مِنَّا وَحِفْظنَا (وَوَحْيِنَا) أَمْرنَا (فَإِذَا جَاءَ أَمْرُنَا) بِإِهْلَاكِهِمْ (وَفَارَ التَّنُّورُ) لِلْخَبَّازِ بِالْمَاءِ وَكَانَ ذَلِكَ عَلَامَة لِنُوحٍ (فَاسْلُكْ فِيهَا) أَيْ أَدْخِلْ فِي السَّفِينَة (مِنْ كُلٍّ زَوْجَيْنِ) ذَكَر وَأُنْثَى أَيْ مِنْ كُلّ أَنْوَاعهمَا (اثْنَيْنِ) ذَكَرًا وَأُنْثَى وَهُوَ مَفْعُول وَمِنْ مُتَعَلِّقَة بِاسْلُكْ وَفِي الْقِصَّة أَنَّ اللَّه تَعَالَى حَشَرَ لِنُوحٍ السِّبَاع وَالطَّيْر وَغَيْرهمَا فَجَعَلَ يَضْرِب بِيَدَيْهِ فِي كُلّ نَوْع فَتَقَع يَده الْيُمْنَى عَلَى الذَّكَر وَالْيُسْرَى عَلَى الْأُنْثَى فَيَحْمِلهُمَا فِي السَّفِينَة وَفِي قِرَاءَة كُلّ بِالتَّنْوِينِ فَزَوْجَيْنِ مَفْعُول وَاثْنَيْنِ تَأْكِيد لَهُ (وَأَهْلَكَ) زَوْجَته وَأَوْلَاده (إِلَّا مَنْ سَبَقَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ مِنْهُمْ) بِالْإِهْلَاكِ وَهُوَ زَوْجَته وَوَلَده كَنْعَان بِخِلَافِ سَام وَحَام وَيَافِث فَحَمَلَهُمْ وَزَوْجَاتهمْ ثَلَاثَة وَفِي سُورَة هُود (وَمَنْ آمَنَ وَمَا آمَنَ مَعَهُ إِلَّا قَلِيلٌ) قِيلَ كَانُوا سِتَّة رِجَال وَنِسَاؤُهُمْ وَقِيلَ جَمِيع مَنْ كَانَ فِي السَّفِينَة ثَمَانِيَة وَسَبْعُونَ نِصْفهمْ رِجَال وَنِصْفهمْ نِسَاء (وَلَا تُخَاطِبْنِي فِي الَّذِينَ ظَلَمُوا) كَفَرُوا بِتَرْكِ إهلاكهم (إِنَّهُمْ مُغْرَقُونَ) (فَإِذَا اسْتَوَيْتَ) اعْتَدَلْتَ (أَنْتَ وَمَنْ مَعَكَ عَلَى الْفُلْكِ فَقُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي نَجَّانَا مِنَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ) الْكَافِرِينَ وَإِهْلَاكهمْ (وَقُلْ) عند نزولك فِي الْفُلْك (رَبِّ أَنْزِلْنِي مُنْزَلًا) بِضَمِّ الْمِيم وَفَتْح الزَّاي مَصْدَرًا وَاسْم مَكَان وَبِفَتْحِ الْمِيم وَكَسْر الزَّاي مَكَان النُّزُول (مُبَارَكًا) ذَلِكَ الْإِنْزَال أَوْ الْمَكَان (وَأَنْتَ خَيْرُ الْمُنْزِلِينَ) مَا ذُكِرَ (إِنَّ فِي ذَلِكَ) الْمَذْكُور مِنْ أَمْر نُوح وَالسَّفِينَة وَإِهْلَاك الْكُفَّار (لَآيَاتٍ) دَلَالَات عَلَى قُدْرَة اللَّه تَعَالَى (وَإِنْ) مُخَفَّفَة مِنْ الثَّقِيلَة وَاسْمهَا ضَمِير الشَّأْن (كُنَّا لَمُبْتَلِينَ) مُخْتَبِرِينَ قَوْم نُوح بِإِرْسَالِهِ إِلَيْهِمْ وَوَعْظه (ثُمَّ أَنْشَأْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ قَرْنًا) قَوْمًا (آخَرِينَ) هم عاد (فَأَرْسَلْنَا فِيهِمْ رَسُولًا مِنْهُمْ) هُودًا (أَنْ) بِأَنْ (اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلَهٍ غَيْرُهُ أَفَلَا تَتَّقُونَ) عِقَابه فَتُؤْمِنُونَ

ترجمه: قسم دې زمونږ د عزت او جلال چه مونږ نوح علیه السلام د هغه د قوم طرف ته پیغمبر اولیږلو نو هغه اوفرمائیل اې زما قومه صرف د الله پاک بندګی کوئ یعنی هم د هغه اطاعت کوئ او د هغه د توحید عقیده ساتئ ستاسو دپاره د هغه نه سوا بل معبود نشته (اله) د ما اسم دې او د دې

ماقبل (لکم) د ما خبر دې او من زائده دې، نو بیا آیا تاسو ویریږئ نه؟ یعنی د هغه د غیر د عبادت کولو په صورت کښې آیا تاسو د هغه د عذاب نه ویریږئ نه؟ نو د هغه د قوم کافر سردارانو خپلو ماتحتو ته اووئیل چه دا سړې سوا د دې نه چه ستاسو په شان (معمولي) انسان دې بل هیڅ نه دې د ده مقصد دا دې چه په تاسو باندې فضیلت فوقیت حاصل کړي په دې طریقه چه هغه ستاسو حاکم او تاسو د هغه محکوم شئ او که الله پاک ته دا منظور وې چه د هغه نه علاوه د چا بندګی اونکړې شی نو په دې حکم سره به ئې څوک فرښته رالیږلې وې نه چه انسان لره، مونږ دا خبره یعنی توحید چه د هغې طرف ته نوح دعوت ورکوی، د خپلو مخکښې مشرانو نه یعنی تیرو امتونو نه نه دې اوریدلې پس دا نوح علیه السلام یو سړې دې چه لیونې شوې دې یعنی د لیونتوب کیفیت پرې راغلې دې نو د یو خاص وخت یعنی د مرګه پورې انتظار اوکړئ، نوح علیه السلام عرض اوکړو (دعا ئې اوکړه) اې زما ربه ته د هغوی په مقابله کښې هغوی هلاکولو سره او زما مدد اوکړه، په دې وجه چه هغوی زما تکذیب اوکړو، الله پاک د سیدنا نوح علیه السلام دعا قبوله کړه او وې فرمائیل پس مونږ نوح علیه السلام ته حکم اولیږلو چه ته زمونږ په نګرانئ او حفاظت کښې او زمونږ په حکم سره کشتئ جوړه کړه بیا چه کوم وخت د هغوی د هلاکت د پاره زمونږ حکم راشی او د نانبائی د تنور نه اوبه راوځی او دا د نوح علیه السلام د پاره په کشتئ کښې د سوریدو د پاره علامت وو نو په دې کشتئ کښې هر قسم نه نر او ماده نه یو یو جوړه یعنی د هر نوع نه دوه دوه مذکر او مونث کیږده، او ﴿اثنين﴾ د ﴿فاسلك﴾ د پاره مفعول به دې، او ﴿من كل﴾، د ﴿اسلك﴾ سره متعلق دې، او په واقعه کښې داسې مذکور دی چه الله پاک د نوح علیه السلام د پاره درندګان او مارغان راجمع کړل، نو نوح علیه السلام به په هر نوع کښې دواړه لاسونه اچول نو خپل ښې لاس به ئې په نر او ګس به ئې په ماده باندې لګیدلو نو هغه به ئې په کشتئ کښې سواره کړل، په یو قراءت کښې ﴿كل﴾ په تنوین سره دې په دې صورت کښې به ﴿زوجين﴾ مفعول وی او ﴿اثنين﴾ به د دې تاکید وی. او خپل اهل لره یعنی خپله مومنه بی بی او اولاد سور کړه سوا د هغې نه چه په هغوی باندې په هغوی کښې د هلاکت حکم نافذ شوې دې او هغه د نوح علیه السلام کافره بی بی او د هغه کافر ځوئی کنعان دې، په خلاف د سام، حام او یافث پس هغوی او د هغوی درې وارو اولاد ئې سواره کړل، او په سورة هود کښې دی ﴿ومن امن وما امن معه الا قليل﴾ او هغه خلق چه ایمان ئې راوړې دې او د هغه سره ډیرو کمو خلقو ایمان راوړې وو، وئیلې شوی دی چه شپږ سړی او د هغوی اولاد وو او دا هم وئیلې شوی دی چه د هغه ټولو تعداد کوم چه په کشتئ کښې وو اته اویا وو د هغوی نه نیم سړی او نیمې زنانه وې، او ته ما سره د کفارو د ترک هلاکت (یعنی نجات) په باره کښې خبرې مه کوه هغوی به یقینا غرقولې شی بیا چه کله تاسو او ستاسو

ملګرې په کشتئ کښې په اطمینان سره سواره شئ نو داسې وایئ چه ټول تعریفونه د الله پاک دپاره دی چا چه مونږ ته د ظالم یعنی کافر قوم نه خلاصې راکړو او هغوی ئې هلاک کړل او مونږ ئې ترې خلاص کړو (ای فلم یهلك معهم) او د کشتئ نه د کوزیدو په وخت داسې دعا کوئ ﴿ رب انزلنی منزلا ﴾ د میم په ضمې او د زاء په فتحې سره ﴿ ملزلا ﴾ مصدر دې یا اسم مکان دې او د میم په فتحې او د زاء په کسرې سره (ملزلا) په معنی د کوزیدو ځائې... اې زما ربه! ته ما کوز کړه په بابرکته کوزولو سره، د برکت په ځائې کښې کوزول، په دویم قراءت کښې به هم دا دواړه ترجمې وی، په اول قراءت کښې به د عبارت تقدیر داسې وی ﴿ رب انزلنی انزالا مبارکا ﴾ په دویم قراءت کښې به تقدیر د عبارت داسې وی ﴿ رب انزلنی نزلا مبارکا ﴾ (نزولا مبارکا) فرق به صرف دا وی چه په دویم قراءت کښې ﴿ انزلنی ﴾ د باب افعال نه دې او مصدر د نزلا یا نزولا ثلاثی مجرد نه لکه چه ﴿ انبت الله نباتا ﴾ کښې دې خو د مفسر علام د عبارت نه دا وهم پیدا کیږی چه په اول صورت کښې د مصدر او اسم مکان دواړو احتمال دی او په دویم صورت کښې صرف د مصدر احتمال دې حال دا چه په دواړو قراءتونو کښې دواړه احتمالونه دی، ﴿ مبارکا ﴾ اسم واحد مذکر غائب، ډیر برکت والا، ﴿ ذلك الانزال او المکان ﴾ مفسر علام د ﴿ ذلك ﴾ په ذریعه په ﴿ مبارکا ﴾ کښې دننه د ضمیر مستتر مرجع ظاهر فرمائیلې ده او ﴿ منزلا ﴾ کښې چونکه دوه احتمالونه دی په دې وجه ﴿ الانزال او المکان ﴾ وئیلو سره دواړو احتمالاتو ته اشاره اوکړه، او ته په دواړو مذکوره صورتونو کښې (یعنی که د معنی مصدری په صورت کښې وی یا د اسم مکان په معنی کښې) بهترین نازل کونکې یې (ضیافت کونکی یې) یقیناً په دې امر مذکور کښې کومه چه د نوح ﷺ او د کشتئ او کفارو لره د هلاکولو معامله ده د الله پاک د قدرت نخښې دی وان دا مخففه عن المثقلة دې او د دې اسم ضمیر شان محذوف او لام د نافیه او مخففه ترمینځه فارقه دې او مونږ د قوم نوح ﷺ نوح ﷺ د هغوی طرف ته لیږلو سره او د هغه د نصیحت په ذریعه ازمیښت کونکی یو بیا مونږ (قوم نوح) نه پس یو بل قوم لره چه هغه عاد دې پیدا کړو بیا مونږ په هغوی کښې یو رسول اولیږلو کوم چه د هغوی نه وو یعنی هود ﷺ (هغه پیغمبر اووئیل) چه تاسو د الله پاک بندګی کوئ د هغه نه علاوه ستاسو بل معبود نشته ایا تاسو ویریږئ نه؟ چه ایمان راوړئ.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** ﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا ﴾ (الایة) الله پاک د دې ځائې نه د پنځو قصو بیان فرمائی، د سیدنا ادم ﷺ قصه مختصرا پورته ذکر شوې ده په دې کښې ټولې شپږ قصې دی د دې قصو د بیانولو مقصد امت محمدیه ﷺ ته د سابقه امتونو د واقعاتو خبر ورکول دی چه

په غوره خصلتونو كښې د هغوى اقتداء اوكړى او د مذموم خصلتونو نه اجتناب اوكړى هم دغه شان په دې قصو كښې رسول الله ﷺ ته تسلى هم ده چه كوم حالات تاسو ته ستاسو د قوم طرف نه پيښيږى دغه شان حالات د سابقه انبياؤ عليهم السلام سره هم د هغوى د امتونو د طرف نه راغلى دى، تاسو ته په دې حالاتو او واقعاتو باندې د خفه كيدو ضرورت نشته هغه پنځه قصې كومې چه دلته بيان كړې شوې دى هغه دا دى.

①قصه د نوح ﷺ ② قصه د هود ﷺ ③قصه د قرون الآخرين ④قصه د موسى او هارون عليهما السلام ⑤قصه د سيدنا عيسى ﷺ او د هغې د مور بى بى، نوح ﷺ دا لقب دې او نوم ئې عبد الغفار يا عبد الله دى او بعض حضراتو (يشكر)هم بيان كړې دې، هغه يو زر او پنځوس كاله ژوندې وو، د څلويښتو كالو په عمر كښې ورته د نبوت منصب وركړې شو او نهه نيم سوه كاله هغه د دعوت او تبليغ فرائض پوره كړل او د طوفان نه پس هغه شپيته كاله ژوندې وو، په دې حساب سره يو زر او پنځوس كاله جوړيږى.

قوله: (مَا لَكُم مِّنْ إِلٰهٍ غَيْرُهُ) دا جمله د ماقبل دپاره په منزله د علت ده.

قوله: (هُوَاسْمُ مَا) مفسر علام د دې خائې نه د (مالكم من اله غيره) تركيب فرمائى (اله) د ما اسم موخر دې او (لكم) د كائنا متعلق كيدو سره د (ما) خبر دې، (غيره) باندې رفع هم صحيح ده دغه وخت به د الهٍ د محل تابع وى او جر هم جائز دې په دې صورت كښې به د (اله) دلفظ تابع وى د مفسر د قول ماقبله نه (لكم) جار مجرور مراد دې خو د جمهورو په نزد دا تركيب ضعيف دې (ما) چونكه عامل ضعيف دې ځكه چه د دې د اسم او خبر د ترتيب بدلولو په صورت كښې (ما) عمل نه كوى، لهذا مناسب دا وه چه (اله) لره مبتدأ مؤخر او (لكم) لره خبر مقدم اومنلې شى.

قوله: (أَنْ لَا يُعْبَدَ غَيْرُهُ) د دې عبارت د محذوف منلو مقصد دې خبرې ته اشاره ده چه د (مشيئة) مفعول محذوف دې.

قوله: (بِذٰلِكَ لَا بِشَرًا) دبذلك...تعلق د انزل سره دې، او د (ذلك) مشار اليه (ان لايعبد غيره) يعنى د غير الله د عبادت نه كولو حكم دې.

قوله: (أَنِ اصْنَعِ الْفُلْكَ) كښې ان تفسيريه دې ځكه چه د دې نه ماقبل (لوحينا) دې كوم چه د (قول) معنى باندې مشتمل دې.

قوله: (بِأَعْيُنِنَا) دا د (اصنع) خبر نه حال دې او (اعين) لره جمع راوړل د مبالغې په طور دى. قوله: (بِمَرْأًى مِّنَّا وَحِفْظِنَا) اضافه دې طرف ته اشاره ده چه په آيت كريمه كښې مجاز مرسل دې، ځكه چه د نظرونو په كتلو سره حفاظت لازم دې لهذا ملزوم وئيلو سره لازم

مراد کړې شوې دي.

**قوله:** ﴿وَفَارَ التَّنُّورُ﴾ دا د ﴿جاء امرنا﴾ عطف بیان دې او په تنور کښې د اوبه راخوټکیدل د عذاب د علامت په طور وو، ځکه چه روایت کړې شوې دې چه سیدنا نوح ﷺ ته د علامت په طور بیان کړې شو چه د تنور نه اوبه راوخوټکیږي نو پوهه چه چه اوس د عذاب وخت نزدې راغلې دې.

**قوله:** ﴿زَوْجَتَه﴾ د زوجه او اولاد نه زوجهٔ مومنه او اولاد مومن مراد دې، د سیدنا نوح ﷺ دوه بیبیانې وې یوه مومنه کومه چه ورسره په کشتۍ کښې وه او بله کافره بی بی نې چه نوم ئې داغله وو هغه او دهغې ځوې کنعان په کشتۍ کښې سواره نه شو، د نوح ﷺ خلور ځامن وو یو کافر وو چه دهغه نوم کنعان ووهغه په کشتۍ کښې سور نه شو، باقي درې ځامن چه هغوی مؤمنان وو دهغوی نومونه سام، حام او یافث وو. سام ابوالعرب دې، او حام ابوالسودان دې، او یافث ابوالترک دې.

**قوله:** ﴿فَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ دا د ﴿اذا﴾ جواب دې، په ظاهره معلومیږي چه د ﴿فقل﴾ په ځاې ﴿فقولوا﴾ فرمائیلې وې چه د کوزیدو په وخت ټول خلق په دعا کښې شریک شوی وو، مګر چونکه د نوح ﷺ دعا د ټولو د دعا قائم مقام وو په دې وجه صرف هغه ته حکم کړې شوې دې.

**[ایاتونه: ۲٤-۵۰]**

{وَقَالَ الْمَلَأُ مِنْ قَوْمِهِ الَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بلقاء الآخرة} بالمصير إليها {وأترفناهم} نعمناهم {في الحياة الدنيا ما هذا إلا بشر مثلكم يأكل مما تأكلون منه ويشرب مما تشربون} {و} الله {لئن أطعتم بشرا مثلكم} فيه قسم وشرط والجواب لأولهما وهو مغن عن جواب الثاني {إنكم إذا} أي إذا أطعتموه {لخاسرون} أي مغبونون {أيعدكم أنكم إذا متم وكنتم ترابا وعظاما أنكم مخرجون} هو خبر أنكم الأولى وأنكم الثانية تأكيد لها لما طال الفصل {هيهات هيهات} اسم فعل ماض بمعنى مصدر أي بعد بعد {لما توعدون} من الإخراج من القبور واللام زائدة للبيان {إن هي} أي ما الحياة {إلا حياتنا الدنيا نموت ونحيا} بحياة أبنائنا {وما نحن بمبعوثين} {إن هو} ما الرسول {إلا رجل افترى على الله كذبا وما نحن له بمؤمنين} مصدقين بالبعث بعد الموت {قال رب انصرني بما كذبون} {قال عما قليل} من الزمان وما زائدة {ليصبحن} ليصيرن {نادمين} على كفرهم وتكذيبهم {فأخذتهم الصيحة} صيحة العذاب والهلاك كائنة {بالحق} فماتوا {فجعلناهم غثاء} وهو نبت يبس أي صيرناهم مثله في اليبس {فبعدا} من الرحمة {للقوم الظالمين} المكذبين {ثم أنشأنا من بعدهم قرونا} أقواما {آخرين} {ما تسبق من أمة أجلها} بأن تموت قبله {وما يستأخرون} عنه ذكر الضمير بعد تأنيثه رعاية للمعنى {ثم أرسلنا رسلنا تترا} بالتنوين وعدمه متتابعين بين كل اثنين زمان طويل {كلما جاء أمة} بتحقيق الهمزتين وتسهيل الثانية بينها وبين الواو {رسولها كذبوه}

فَأَتْبَعْنَا بَعْضَهُمْ بَعْضًا) فِي الْهَلَاكِ (وَجَعَلْنَاهُمْ أَحَادِيثَ فَبُعْدًا لِقَوْمٍ لَا يُؤْمِنُونَ) (ثُمَّ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ وَأَخَاهُ هَارُونَ بِآيَاتِنَا وَسُلْطَانٍ مُبِينٍ) حُجَّةٍ بَيِّنَةٍ وَهِيَ الْيَدُ وَالْعَصَا وَغَيْرُهُمَا مِنَ الْآيَاتِ (إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَئِهِ فَاسْتَكْبَرُوا) عَنِ الْإِيمَانِ بِهَا وَبِاللَّهِ (وَكَانُوا قَوْمًا عَالِينَ) قَاهِرِينَ بَنِي إِسْرَائِيلَ بِالظُّلْمِ (فَقَالُوا أَنُؤْمِنُ لِبَشَرَيْنِ مِثْلِنَا وَقَوْمُهُمَا لَنَا عَابِدُونَ) مُطِيعُونَ خَاضِعُونَ (فَكَذَّبُوهُمَا فَكَانُوا مِنَ الْمُهْلَكِينَ) (وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ) التَّوْرَاةَ (لَعَلَّهُمْ) قَوْمَهُ بَنِي إِسْرَائِيلَ (يَهْتَدُونَ) بِهِ مِنَ الضَّلَالَةِ وَأُوتِيَهَا بَعْدَ هَلَاكِ فِرْعَوْنَ وَقَوْمِهِ جُمْلَةً وَاحِدَةً (وَجَعَلْنَا ابْنَ مَرْيَمَ) عِيسَىٰ (وَأُمَّهُ آيَةً) لَمْ يَقُلْ آيَتَيْنِ لِأَنَّ الْآيَةَ فِيهِمَا وَاحِدَةٌ وِلَادَتُهُ مِنْ غَيْرِ فَحْلٍ (وَآوَيْنَاهُمَا إِلَىٰ رَبْوَةٍ) مَكَانٍ مُرْتَفِعٍ وَهُوَ بَيْتُ الْمَقْدِسِ أَوْ دِمَشْقُ أَوْ فِلَسْطِينُ أَقْوَالٌ (ذَاتِ قَرَارٍ) أَيْ مُسْتَوِيَةٍ يَسْتَقِرُّ عَلَيْهَا سَاكِنُوهَا (وَمَعِينٍ) وَمَاءٍ جَارٍ ظَاهِرٍ تَرَاهُ الْعُيُونُ

ترجمه: او د هغه د قوم سردارانو چا چه کفر کړي وو او د آخرت ملاقات ئې دروغژن گڼرلې وو یعنی د هغه طرف ته رجوع کولو لره او مونږ هغوی ته په دنیوی ژوند کښې خوشحالي ورکړې وو یعنی انعامات مو ورکړې وو وې وئیل بس دا خو ستاسو په شان یو سړې دې هم هغه څه خوری څه چه تاسو خورئ او هم هغه څه څکی څه چه تاسو څکئ والله که تاسو د خپل ځان په شان د یو سړی په وینا پسې روان شوئ نو یقینا تاسو په لوئې تاوان کښې پریوتلئ. یعنی نقصان اوچتونکې ئې آیا دا سړې تاسو ته دا وائی چه کله تاسو مړه شئ او خاورې او هډوکې شئ نو آیا تاسو به دوباره راویستلې شئ (مخرجون) د (انکم) اولنی خبر دې او ثانی (انکم) د اولنی (انکم) دپاره تاکید دې د (ان) اسم او ود دې خبر ترمینځه د اوږد فصل کیدو د وجې نه ډیره لرې ده ډیره لرې ده هغه خبره کومه چه تاسو ته کولې شی (یعنی) د قبرونو نه د راویستلو او لام زائد دې د بیان دپاره زمونږ ژوند خو صرف دنیوی ژوند دې مونږ مرو او ژوندی کیږو د خپلو ځامنو په ژوند سره او مونږ دوباره راژوندی کیدونکی نه یو دا سړې رسول نه دې دا خو داسې سړې دې کوم چه په الله پاک باندې بهتان تړی مونږ هرگز په ده باندې ایمان راوړونکی نه یو یعنی د مرګ نه پس هغوی ژوندی کولو په باره کښې تصدیق کونکی نه یو، نبی ﷺ دعا اوکړه چه اې زما ربه زما بدله واخله په دې وجه چه هغوی زما تکذیب کړې دې، ارشاد اوشو چه دا خلق به عنقریب په خپل تکذیب او کفر باندې پښیمانه شی (عما قلیل) کښې ما زائده ده بالآخر د عدل د تقاضې مطابق هغوی چغې اونیول د چغې عذاب او هلاکت ئې حال دا اوکړو چه هغه د عدل د تقاضې مطابق وو پس ټول په ټول مړه شو بیا مونږ هغوی خس او خشاک کړل غثاء اوچې گیا ته وئیلې شی، یعنی مونږ هغوی د خس او خشاک په شان کړل په اوچیدو کښې پس د رحمت نه دې لرې والې وی ظالم یعنی تکذیب کونکو قومونو دپاره بیا د هغوی نه پس مو نور قومونه پیدا کړل او یو امت د خپل مقرره وخت نه نه خو وړاندې تلې شی او نه شاته تلې شی په داسې طریقه چه د خپل مقرر وخت نه مخکښې مړ شی یا د دې نه مؤخر مړ شی (یستأخرون) کښې ضمیر لره د

معنی د رعایت د وجې نه مذکر راوړې شوې دې، د مونث راوړلو نه پس بیا مونږ پرلپسې
خپل رسولان راولیږل تترا تنوین او بغیر د تنوین دواړه دی یعنی د یو نه پس بل د هر دور
ترمینځه اوږده زمانه وه چه کله هم یو امت ته د هغوی رسول راغلو هغوی د هغه رسول تکذیب
اوکړو نو مونږ په هلاکت کښې په یو بل پسې اولګول او مونږ ترې نه قصې جوړې کړې نو د الله
لعنت (هلاکت) دې وی په هغه قوم چه ایمان نه راوړی بیا مونږ موسی علیه السلام او د هغه رور هارون علیه السلام
ته احکامات او ښکاره دلیلونه ورکولو سره ښکاره دلیلونه یو خو ید بیضاء دې او بله همسا
ده او نورې نخښې دی فرعون او د هغه سردارانو اولیږلو نو هغوی په دې آیتونو او په الله پاک
باندې د ایمان راوړلو نه تکبر اوکړو او هغوی په بنی اسرائیل باندې د ظلم په ذریعه غلبه
حاصلونکی خلق وو پس هغوی اووئیل آیا مونږ دځان په شان دوه انسانانو باندې ایمان راوړو حال
دا چه د هغوی قوم زمونږ د حکم لاندې د فرمان لاندې او سرټیټې دی پس هغه خلقو د دې دواړو
تکذیب کولو پس آخر هلاک کړې شو او مونږ موسی علیه السلام ته کتاب تورات ورکړو د دې دپاره چه
هغوی یعنی د موسی علیه السلام قوم بنی اسرائیل د هغې په ذریعه د ګمراهئ د لارې نه د هدایت د
لارې طرف ته راشی او تورات د فرعون او د هغه د قوم د هلاکت نه روستو په یو کرت
ورکړې شوې وو او مونږ د مریم ځوئې عیسی علیه السلام او د هغه مور د خپل قدرت نخښه جوړه کړه
آیتین ئې او نه وئیلو، ځکه چه په دواړو کښې نخښه یوه ده او هغه بغیر د پلار نه د هغه
پیدائش دې او مونږ هغوی دواړو ته په یو لوړه زمکه باندې پناه ورکړه کوم چه د اوسیدو قابله وه
ربوة لوړ ځائې ته وئیلې شی او هغه بیت المقدس یا دمشق یا فلسطین دې دا (درې اقوال
دی، د ﴿ ذات قرار﴾ مطلب دې هوار، د ځکه چه په هغې باندې اوسیدونکی اوسیدلې شی
او چینې والا یعنی په ظاهری سطح باندې جاری اوبو والا کومې چه په سترګو لیدې شی

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** ﴿الملاء﴾ اسم جمع دې، ﴿ الاملاء﴾ جمع ده د سردارانو جماعت، د قوم شرفاؤ جماعت
**قوله:** ﴿ وَلَئِنْ أَطَعْتُمْ﴾ دلته د قسم او شرط اجتماع ده چرته چه دا دواړه جمع شی نو د
اول جواب راوړلې شی او د ثانی جواب لره د اول په جواب باندې قیاس کولو سره حذف
کولې شی ﴿ انکم اذا لخاسرون ﴾ جوابِ قسم دې نه چه جوابِ شرط، د جوابِ شرط نه کیدو
قرینه هم دا ده چه دلته ﴿ انکم اذا لخاسرون ﴾ جمله اسمیه ده که دا جوابِ شرط وې نو په دې
باندې فاء داخلیدل ضروری وو، د دې نه هم معلومه شوه چه دا جوابِ قسم دې جوابِ
شرط نه دې.
**قوله:** ﴿ إِنَّكُمْ إِذًا﴾ ای ان اطعتموه ﴿لَّخَاسِرُونَ ﴾ کم د ان اسم دې او خاسرون د دې خبر دې،
لام ابتدائیه دې او اذاد ان اسم او د هغې خبر ترمینځه د مضمونِ شرط دتاکید دپاره

دي، او د اذاتنوين د جملهٔ شرطيه محذوف په عوض كښې ده لكه ﴿ يومئذ ﴾ كښې، مفسر علام هم دې ته اشاره كولو دپاره اى ان اطعتموه اضافه كړې ده په دې وخت كښې دې ته د جواب ضرورت نه وى ځكه چه دا د ماقبل د تاكيد لفظي دپاره ذكر كړې شوې دې او د اعادة الشئ عرادفه د قبيل نه دې. (جمل)

قوله: ﴿ أَيَعِدُكُمْ ﴾ دا جمله مستانفه د ماقبل مضمون د تاكيد دپاره راوړلې شوې ده.

قوله: ﴿ مُخْرَجُونَ ﴾ د ﴿ ان ﴾ اولى خبر دې، اذامتم مخرجون ظرف دې او د انكم عمل نه دې ځكه چه هغه مخكښې د انكم تاكيد لفظي دې.

قوله: ﴿ هَيْهَاتَ هَيْهَاتَ ﴾ اسم فعل په معنى د ماضي، دا كلمه اكثر مكرر استعماليږي ثاني د اول تاكيد دې، چونكه په دې كښې اختلاف دې چه هيهات اسم فعل په معنى د ماضي دې يا په معنى د مصدر دې، هم دې اختلاف طرف ته اشاره كولو دپاره مفسر علام په (بعدا) باندې دوه اعرابونه لګولې دى.

سوال: هيهات ته اسم فعل ولې وئيلې شي؟ دا خو اجتماع بين الضدين معلوميږي ځكه چه كوم اسم وى هغه فعل نه وى، او كوم چه فعل وى هغه اسم نه وى؟

جواب: چونكه دا د لفظ په اعتبار سره اسم دې او هم دا وجه ده چه د دې ګردان نه راځى، په دې وجه ورته اسم وئيلې شى او د خپلې معنى او مدلول په اعتبار سره دا فعل دې په دې وجه ورته فعل وئيلې شى، د دواړو حيثيتونو رعايت كولو سره د دې نوم اسم فعل كيخودلې شوې دې، او چونكه هيهات په معنى د مصدر هم استعماليږي په دې وجه مفسر علام اسم فعل ماض وئيلو سره د اولنۍ معنى طرف ته اشاره كړې ده او بمعنى المصدر وئيلو سره ئې د دويمې معنى طرف ته اشاره كړې ده او هم د دې دواړو معنى د وضاحت دپاره ئې په بعدا باندې دواړه اعراب لګولى دى، د فعل ماضي اعراب ئې هم لګولې دې او د مصدر هم.

د كلام خلاصه : ﴿ هيهات ﴾ اسم فعل دې ﴿ بَعُدَ ﴾ د فعل ماضي په معنى كښې د دې په فاعل كښې دوه صورتونه دى ① اول دا چه د دې فاعل په دې كښې مضمر وى او تقدير د عبارت دا وى بَعُدَ التصديق او الصحة او الوقوع لماتوعدون نحو ذلك... ② او دويم صورت دا دې چه د دې فاعل ﴿ ما ﴾ وى او لام زائد وى د بيان د استبعاد دپاره.

ګويا چه وئيلې شو چه دا استبعاد د څه څيز دې؟

جواب: جواب ئې ورکړو ﴿ لماتوعدون ﴾ د كوم چه تاسو سره وعده كړې شوې ده يعنى د بعث بعد الموت او بعض حضراتو وئيلى دى چه ﴿ هيهات ﴾، ﴿ البعد ﴾ په معنى د مصدر

مبتدأ او ﴿ لماتوعدون ﴾ د دې خبر، خو بعض حضراتو دې ته ضعيف وئيلى دى. په اول صورت كښې د ﴿ هيهات ﴾ محل اعراب نشته.

قوله: ﴿ مِنَ الْاِخْرَاجِ مِنَ الْقُبُوْر ﴾ ماتوعدون كښې د ما بيان دې

قوله: ﴿ هيهات ابنائنا ﴾ دا د يوې شبهې جواب دې چه

شبهه: دا ده چه مشركانو خو ﴿ نموت ونحيا ﴾ اوئيل او دا خو د بعث بعد الموت اقرار دى حالانكه هغوى خو د بعث بعد الموت منكر دى؟

جواب: مفسر علام ﴿ بحياة أبنائنا ﴾ وئيلو سره جواب وركړو چه د مشركانو قول ﴿ نموت ونحيى ﴾ مطلب دا دې چه كله مونږ مړه شو نو زمونږ اولاد خو به ژوندي اوسيږي زمونږ د اولاد ژوند داسې دې لكه زمونږ ژوند، د دې نه علاوه خو بله هيڅ طريقه هم د بعث بعد الموت نشته، بعض حضراتو دا جواب هم وركړې دې چه په آيت كښې تقديم او تاخير دې اى نحيا ونموت.

قوله: ﴿ عَمَّا قَلِيْلٍ ﴾ بعض حضراتو وئيلې دى چه ﴿ ما ﴾ زائده ده اى عن قليل من الزمان او بعض حضراتو وئيلى دى چه ﴿ ما ﴾ په معنى د ﴿ شئ ﴾ يا په معنى د ﴿ زمان ﴾ دى اى عن شئ قليل اوعن زمان قليل، عما قليل..... كښې جار مجرور د څه سره متعلق دې؟ په دې كښې درې اقوال دى ①اول ﴿ لَيُصْبِحُنَّ ﴾ سره متعلق دې ②دويم نادمين سره متعلق دې ③دريمه محذوف سره متعلق دې اى عما قليل نصره چه هغه د ما قبل يعنى د انصرني دلالت د وجې نه حذف كړې شوې دې.

قوله: ﴿ صَيْحَةُ الْعَذَاب ﴾... كښې اضافت بيانيه دې اى صيحة العذاب والهلاك... د صيحه نه مراد عذاب دې نه چه د سيدنا جبرائيل عليه السلام چغه، ځكه چه قوم عاد د سيدنا جبرائيل عليه السلام په چغه سره نه وو هلاک شوى.

قوله: ﴿ كائنة ﴾ مفسر علام كائنة محذوف منلو سره اشاره اوكړه چه بالحق د كائنة متعلق كيدو سره د صيحة نه حال دې.

قوله: ﴿ فبعدا ﴾ د دې فعل حذف كولو سره مصدر د هغې قائم مقام كړې شوې دې د دې فعل ناصب لره حذف كول واجب دى اى فبعدوا بعدا دا كلمه د مشركانو دپاره د بد دعا قائم مقام ده.

قوله: ﴿ ذكر الضمير الخ ﴾ يعنى يستأخرون كښې ضمير مذكر راوړلې شو حال دا چه ﴿ اجلها ﴾ كښې د ضمير مونث راوړلې دې؟ د دې جواب دا دې چه هاضمير امة طرف ته راجع دې او د امة نه مراد قوم دې كوم چه مذكر دې هم په دې وجه په يستأخرون كښې ضمير مذكر راوړلې شوې دې.

قوله: ﴿ أحاديث ﴾ دا د احدوثة جمع ده ﴿ ما يحدثه الناس ﴾ يعنى هغه قصې كوم چه خلق وخت تيريدو او تفريح طبع د پاره اوري.

قوله: ﴿ من امة ﴾ كښې په فاعل باندې ﴿ من ﴾ زائده دې، امة دتسبق فاعل دې.

قوله: ﴿ بتحقيق الهمزتين ﴾ ①اول صورت، دواړې همزه محقق اولولې ②دويم صورت، اولنې همزه محقق او دويم مسهل اولولې، يعنى د همزه او واؤ ترمينځه ئې اولولې.

قوله: ﴿ جُمْلَةً وَاحِدَةً ﴾ د دې تعلق د ﴿ اوتيها ﴾ سره هم كيدې شى په دې وخت كښې به مطلب دا وى چه د فرعون د هلاكت نه روستو تورات په يو كرت وركړې شو او دا هم احتمال دې چه هلاكت فرعون او د هغه د قوم سره متعلق وى په دې صورت كښې به مطلب دا وى چه فرعون او د هغه قوم لره بالكليه د هلاكولو نه پس تورات وركړې شو.

**[اياتونه: ۵۱ - ۷۷]**

﴿يَاأَيُّهَا الرُّسُل كُلُوا مِنَ الطَّيِّبَات﴾ الْحَلَالَاتِ ﴿وَاعْمَلُوا صَالِحًا﴾ مِنْ فَرْض وَنَفْل ﴿إِنِّي بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيم﴾ فَأُجَازِيكُمْ عَلَيْهِ ﴿وَ﴾ اعْلَمُوا ﴿إِنَّ هَذِهِ﴾ أَيْ مِلَّة الْإِسْلَام ﴿أُمَّتكُمْ﴾ دِينكُمْ أَيّهَا الْمُخَاطَبُونَ أَيْ يَجِب أَنْ تَكُونُوا عَلَيْهَا ﴿أُمَّة وَاحِدَة﴾ حَال لَازِمَة وَفِي قِرَاءَة بِتَخْفِيفِ النُّون وَفِي آخرى بِكَسْرِهَا مُشَدَّدَة اسْتِئْنَافًا ﴿وَأَنَا رَبّكُمْ فَاتَّقُونِ﴾ فَاحْذَرُونِ ﴿فَتَقَطَّعُوا﴾ أَيْ الْأَتْبَاع ﴿أَمْرهمْ﴾ دِينهمْ ﴿بَيْنهمْ زُبُرًا﴾ حَال مِنْ فَاعِل تَقَطَّعُوا أَيْ أَحْزَابًا مُتَخَالِفِينَ كَالْيَهُودِ وَالنَّصَارَى وَغَيْرهمْ ﴿كُلّ حِزْب بِمَا لَدَيْهِمْ﴾ أَيْ عِنْدهمْ مِنْ الدِّين ﴿فَرِحُونَ﴾ مَسْرُورُونَ ﴿فَذَرْهُمْ﴾ اُتْرُكْ كُفَّار مَكَّة ﴿فِي غَمْرَتهمْ﴾ ضَلَالَتهمْ ﴿حَتَّى حِين﴾ إلَى حِين مَوْتهمْ ﴿أَيَحْسَبُونَ أَنَّمَا نُمِدّهُمْ بِهِ﴾ نُعْطِيهِمْ ﴿مِنْ مَال وَبَنِينَ﴾ فِي الدُّنْيَا ﴿نُسَارِع﴾ نُعَجِّل ﴿لَهُمْ فِي الْخَيْرَات﴾ لَا ﴿بَلْ لَا يَشْعُرُونَ﴾ أَنَّ ذَلِكَ اسْتِدْرَاج لَهُمْ ﴿إنَّ الَّذِينَ هُمْ مِنْ خَشْيَة رَبّهمْ﴾ خَوْفهمْ مِنْهُ ﴿مُشْفِقُونَ﴾ خَائِفُونَ مِنْ عَذَابه ﴿وَالَّذِينَ هُمْ بِآيَاتِ رَبّهمْ﴾ الْقُرْآن ﴿يُؤْمِنُونَ﴾ يُصَدِّقُونَ ﴿وَالَّذِينَ هُمْ بِرَبِّهِمْ لَا يُشْرِكُونَ﴾ مَعَهُ غَيْره ﴿وَالَّذِينَ يُؤْتُونَ﴾ يُعْطُونَ ﴿مَا آتَوْا﴾ أَعْطَوْا مِنْ الصَّدَقَة وَالْأَعْمَال الصَّالِحَة ﴿وَقُلُوبهمْ وَجِلَة﴾ خَائِفَة أَنْ لَا تُقْبَل مِنْهُمْ ﴿أَنَّهُمْ﴾ يُقَدَّر قَبْله لَام الْجَرّ ﴿إلَى رَبّهمْ رَاجِعُونَ﴾ ﴿أُولَئِكَ يُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَات وَهُمْ لَهَا سَابِقُونَ﴾ فِي عِلْم اللَّه ﴿وَلَا نُكَلِّف نَفْسًا إلَّا وُسْعهَا﴾ طَاقَتهَا فَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ أَنْ يُصَلِّيَ قَائِمًا فَلْيُصَلِّ جَالِسًا وَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ أَنْ يَصُوم فَلْيَأْكُلْ ﴿وَلَدَيْنَا﴾ عِنْدنَا ﴿كِتَاب يَنْطِق بِالْحَقِّ﴾ بِمَا عَمِلَته وَهُوَ اللَّوْح الْمَحْفُوظ تُسْطَر فِيهِ الْأَعْمَال ﴿وَهُمْ﴾ أَيْ النُّفُوس الْعَامِلَة ﴿لَا يُظْلَمُونَ﴾ شَيْئًا مِنْهَا فَلَا يُنْقَص مِنْ ثَوَاب أَعْمَال الْخَيْرَات وَلَا يُزَاد فِي السَّيِّئَات ﴿بَلْ قُلُوبهمْ﴾ أَيْ الْكُفَّار ﴿فِي غَمْرَة﴾ جَهَالَة ﴿مِنْ هَذَا﴾ الْقُرْآن ﴿وَلَهُمْ أَعْمَال مِنْ دُون ذَلِكَ﴾ الْمَذْكُور لِلْمُؤْمِنِينَ ﴿هُمْ لَهَا عَامِلُونَ﴾ فَيُعَذَّبُونَ عَلَيْهَا ﴿حَتَّى﴾ ابْتِدَائِيَّة ﴿إذَا أَخَذْنَا مُتْرَفِيهِمْ﴾ أَغْنِيَاءَهُمْ وَرُؤَسَاءَهُمْ ﴿بِالْعَذَابِ﴾ أَيْ السَّيْف يَوْم بَدْر ﴿إذَا هُمْ يَجْأَرُونَ﴾ يَضِجُّونَ يُقَال لَهُمْ ﴿لَا تَجْأَرُوا الْيَوْم إنَّكُمْ مِنَّا لَا تُنْصَرُونَ﴾ لَا تُمْنَعُونَ ﴿قَدْ كَانَتْ آيَاتِي﴾ مِنْ الْقُرْآن ﴿تُتْلَى عَلَيْكُمْ فَكُنْتُمْ عَلَى أَعْقَابكُمْ تَنْكِصُونَ﴾ تَرْجِعُونَ الْقَهْقَرَى ﴿مُسْتَكْبِرِينَ﴾ عَنْ

الإيمان ﴿بِهِ﴾ أي بالبيت أو الحرم بأنهم أهله في أمن بخلاف سائر الناس في مواطنهم ﴿سَامِرًا﴾ حال أي جماعة يتحدثون بالليل حول البيت ﴿تَهْجُرُونَ﴾ من الثلاثي تتركون القرآن ومن الرباعي أي تقولون غير الحق في النبي والقرآن قال تعالى ﴿أَفَلَمْ يَدَّبَّرُوا﴾ أصله يتدبروا فأدغمت التاء في الدال ﴿الْقَوْلَ﴾ أي القرآن الدال على صدق النبي ﴿أم جاءهم ما لم يأت آباءهم الأولين﴾ ﴿أم لم يعرفوا رسولهم فهم له منكرون﴾ ﴿أَمْ يَقُولُونَ بِهِ جِنَّةٌ﴾ الاستفهام للتقرير بالحق من صدق النبي ومجيء الرسل للأمم الماضية ومعرفة رسولهم بالصدق والأمانة وأن لا جنون به ﴿بَلْ﴾ للانتقال ﴿جَاءَهُمْ بِالْحَقِّ﴾ أي القرآن المشتمل على التوحيد وشرائع الإسلام ﴿وأكثرهم للحق كارهون﴾ ﴿وَلَوِ اتَّبَعَ الْحَقُّ﴾ أي القرآن ﴿أَهْوَاءَهُمْ﴾ بأن جاء بما يهوونه من الشريك والولد لله تعالى الله عن ذلك ﴿لَفَسَدَتِ السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ وَمَنْ فِيهِنَّ﴾ خرجت عن نظامها المشاهد لوجود التمانع في الشيء عادة عند تعدد الحاكم ﴿بَلْ أَتَيْنَاهُمْ بِذِكْرِهِمْ﴾ أي القرآن الذي فيه ذكرهم وشرفهم ﴿فهم عن ذكرهم معرضون﴾ ﴿أَمْ تَسْأَلُهُمْ خَرْجًا﴾ أجرا على ما جئتهم به من الإيمان ﴿فخراج ربك﴾ أجره وثوابه ورزقه ﴿خير﴾ وفي قراءة خرجا في الموضعين وفي قراءة أخرى خراجا فيهما ﴿وَهُوَ خَيْرُ الرَّازِقِينَ﴾ أفضل من أعطى وآجر ﴿وَإِنَّكَ لَتَدْعُوهُمْ إِلَى صِرَاطٍ﴾ طريق ﴿مُسْتَقِيمٍ﴾ أي دين الإسلام ﴿وَإِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ﴾ بالبعث والثواب والعقاب ﴿عَنِ الصِّرَاطِ﴾ أي الطريق ﴿لَنَاكِبُونَ﴾ عادلون ﴿وَلَوْ رَحِمْنَاهُمْ وَكَشَفْنَا مَا بِهِمْ مِنْ ضُرٍّ﴾ أي جوع أصابهم بمكة سبع سنين ﴿لَلَجُّوا﴾ تمادوا ﴿فِي طُغْيَانِهِمْ﴾ ضلالتهم ﴿يَعْمَهُونَ﴾ يترددون ﴿وَلَقَدْ أَخَذْنَاهُمْ بِالْعَذَابِ﴾ الجوع ﴿فَمَا اسْتَكَانُوا﴾ تواضعوا ﴿لِرَبِّهِمْ وَمَا يَتَضَرَّعُونَ﴾ يرغبون إلى الله بالدعاء ﴿حَتَّى﴾ ابتدائية ﴿إِذَا فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَابًا ذَا﴾ صاحب ﴿عَذَابٍ شَدِيدٍ﴾ هو يوم بدر بالقتل ﴿إِذَا هُمْ فِيهِ مُبْلِسُونَ﴾ آيسون من كل خير

ترجمه: اې پیغمبرانو! پاکیزه حلال خیزونه خورئ او نیک اعمال کوئ هغه فرض او نفل دی بیشکه زه ستاسو د کړې شوو کارونو نه خبردار یم نو زه به په هغه کارونو باندې تاسو ته جزا درکرم او دا خبره یاد ساتئ چه دا یعنی ملت اسلام اې مخاطبو ستاسو دین دې یعنی ستاسو دپاره واجب ده چه تاسو په دې باندې قائم پاتې شئ حال دا دې چه هغه یوه طریقه ده دا حال لازمه دې او په یو قراءت کښې ﴿ ان ﴾ د نون په تخفیف سره دې او په بل قراءت کښې د همزې په کسرې او د نون په تشدید سره دې او دا د استیناف په اعتبار سره دې زه ستاسو رب یم تاسو زما نه ویرېږئ بیا هغه متبعین په خپله دینی معامله کښې په خپل مینځ کښې مختلف شو ﴿ زبرا ﴾ د تقطعوا د فاعل نه حال دې یعنی خپل مینځ کښې اختلاف کونکې ډلې شوې، لکه یهود او نصارې وغیره پس د هرې ډلې سره چه څه دی په هغې باندې خوشحال دی یعنی کوم دین چه د هغوی سره دې (هم په هغې باندې خوشحاله دی) نو ته هغوی یعنی اهل مکه لره د هغوی په ضلالت کښې د یو خاص وخت پورې پرېږده یعنی د هغوی د مرګه پورې

آیا د هغوی دا خیال دی چه مونږ هغوی ته څه مال اولاد په دنیا کښې ورکوو نو مونږ هغوی ته په فائده ورکولو کښې تندی کوو نه، بلکه دا خلق نه پوهیږی چه د هغوی دپاره مهلت دی بیشکه هغه خلق کوم چه د خپل رب د هیبت نه ویریږی یعنی د هغه د عذاب نه ویریږی او هغه خلق چه د خپل رب په آیتونو یعنی په قرآن باندې ایمان لری، یعنی تصدیق کوی او هغه خلق کوم چه د خپل رب سره یعنی هغه سره غیر لره نه شریکوی او هغه خلق ئې ورکوی څه چه ورکوی د صدقاتو نه او کوی نیک اعمال چه کوی او د هغوی زړونه د دې خبرې نه په ویره کښې وی چه چرته د هغوی دا نیکی رد نه کړې شی ځکه چه هغوی د خپل رب طرف ته واپس کیدونکی دی د (انهم) نه به مخکښې لام جر مقدر منلې شی، هم دا هغه خلق دی کوم چه په نیکو کښې تندی کوی او هم دا خلق د الله پاک په علم کښې د نیکو طرف ته سبقت کونکی دی، او مونږ څوک د هغه دوست نه د زیات نه مکلف کوو یعنی د هغه د طاقت نه (زیات) لهذا کوم کس چه او دریدلو سره مونځ اونکړې شی نو په ناسته دې مونځ اوکړی او کوم کس چه روژه نه شی نیولې نو نه دې نیسی. او مونږ سره یو دفتر دې چه برابر (هر هغه) کار بیانوی کوم چه چا کړې وی او هغه لوح محفوظ دې چه په هغې کښې اعمال لیکلې شی او دغه عمل کونکو باندې به د هغوی د اعمالو په باره کښې ذره برابر ظلم نه شی کولې، لهذا نه خو به د هغوی د اعمالو اجر کمولې شی او نه به د هغوی په بدو اعمالو کښې اضافه کولې شی بلکه د هغه کفارو زړونه د دې قرآن په باره کښې جهالت کښې دی او د هغه کفارو د دې مومنانو د اعمالو مذکوره په خلاف نور اعمال هم دی کوم چه هغوی کوی نو هغه (کفارو) ته به په هغه اعمالو باندې عذاب ورکولې شی، تردې چه کله مونږ د هغوی خوشحاله مالداران او سرداران په عذاب کښې یعنی په یوم بدر د توری په عذاب کښې اونیسو نو هغوی به چغې وهی (نو) هغوی ته به اوئیلې شی، اوس چغې مه وهئ زمونږ د طرف نه به ستاسو مطلق مدد نه شی کولې، زما آیتونه به په تاسو باندې لوستلې شو نو تاسو به د ایمان نه تکبر کولو سره شاته تختیدلئ یعنی شاته به لاړئ د بیت الله یا د حرم د وجې نه ځکه چه هغوی اهل حرم وو او اهل حرم په امن کښې وو، په خلاف د نورو ټولو خلقو چه په خپلو مقاماتو کښې (غیر مامون وو) د شپې خبرې کولو سره بیهوده بکواس کونکی یعنی د جماعت په شکل کښې د بیت الله نه چاپیره جمع کیدو سره به ئې بیهوده خبرې جوړولې، (تهجرون) د ثلاثی نه د (تترکون القرآن) په معنی کښې دې او د رباعی نه (تهجرون) د (تقولون) په معنی کښې دی یعنی تاسو به د نبی او قرآن په باره کښې ناحقه خبرې کولې آیا دې خلقو دې کلام یعنی قرآن کریم کښې کوم چه د رسول الله ﷺ په صداقت باندې دلالت کوی غور نه دې کړې؟ (یدبروا) په اصل کښې (یتدبروا) وو تاء په دال کښې مدغم کړې شوه یا هغوی ته داسې یو څیز راغلې دې کوم چه د هغوی مخکښې پلار نیکه ته نه وو راغلې یا دا خلق د خپل رسول ﷺ نه خبر نه وو چه د هغې په وجه باندې د هغه منکر دی یا دا

خلق ستا په باره کښې د ليونتوب قائل دی؟ ﴿افلم يدبروا﴾ کښې استفهام په حق باندې د اقرار کولو د ترغيب دپاره دې او هغه حق د رسول الله ﷺ صداقت او په امم ماضيه کښې د رسولانو راتلل او د هغوی د خپلو رسولانو د صداقت او امانت معرفت او دا چه رسول الله ﷺ مجنون نه دې بلکه (اصلي وجه دا ده) چه دا رسول هغوی ته حق خبرې سره راغلې دې يعنی د قرآن سره کوم چه په توحيد او قانون اسلام باندې مشتمل دې او د هغوی اکثر خلق د حق خبرې نه نفرت کوی او که حق يعنی قرآن کريم د هغوی د خواهشاتو تابع شوې وې په داسې طريقه چه څه هغوی غوښتلې هم هغه ئې راوړلې (يعنی) د الله پاک دپاره شريک او اولاد، الله پاک د دې نه پاک دې نو اسمانونه او زمکه او څه چه په دې کښې دی دا ټول به تباه شوې وې يعنی د خپل نظام مشاهد (فطری انتظام چه په نظر راځی) نه به وتلې وې. د حکامو د تعدد په وخت کښې عادةً څيز کښې د اختلاف پيدا کيدو د وجې بلکه مونږ هغوی ته د نصيحت خبره يعنی قرآن کريم چه په هغې کښې د هغوی ذکر او شرف دې راوليږلو خو دا خلق د خپل نصيحت نه هم مخ اړوی آيا ته د هغوی نه په دې څه اجرت غواړې يعنی د ايمان په خبرو باندې کوم چه تا د دوی د پاره راوړی دی څه اجرت طلب کوې؟ نو اجرت خو ستا د رب يعنی د هغه اجر او ثواب او د هغه رزق غوره دې او په يو قراءت کښې په دواړو ځايونو کښې ﴿خرجا﴾ دې او په يو قراءت کښې په دواړو ځايونو کښې ﴿خراجا﴾ دې او هغه په ورکړه کونکو کښې د ټولو نه ښه ورکړه کونکې دې يعنی په ورکړه کونکو او اجر ورکونکو کښې د ټولو نه غوره دې ته خو هغوی نيغې لارې طرف ته يعنی دين اسلام طرف ته راغواړې او د هغه خلقو چه په آخرت باندې يعنی په بعث او ثواب او عقاب ايمان نه لری دا حالت دې چه (د نيغې) لارې نه اوړی او که مونږ په هغوی باندې مهربانی اوکړو او په هغوی چه کوم تکليف دې يعنی هغه قحط کوم چه اووه کاله په مکه مکرمه کښې په هغوی باندې راغلې وو لرې کړو نو دغه خلق به په خپله گمراهئ کښې سرگردانه اصرار کوی او مونږ هغوی د قحط په عذاب کښې گرفتار کړې هم دی خو دې خلقو نه د خپل رب مخکښې عاجزی تواضع اختيار کړه او نه ئې تضرع اوکړه، يعنی نه ئې په دعا کښې د الله پاک طرف ته رغبت اوکړه تر دې چه کله مونږ په هغوی باندې د قتل په ذريعه د عذاب شديد دروازه پرانستله نو ناڅاپه په هغه ورځ کښې د هر يو خير نه نااميده شو.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلرُّسُلُ كُلُواْ مِنَ ٱلطَّيِّبَٰتِ﴾ په دې آيت کريمه کښې اگرچه په ظاهره خطاب محمد ﷺ ته دې خو مراد ترې هر يو نبی دې، يعنی هر يو نبی ته د هغه په زمانه کښې هم دا حکم وو.

**قوله:** ﴿بَل لَّا يَشۡعُرُونَ﴾ دا د ﴿يحسبون﴾ نه اضراب دې يعنی د هغوی خيال غلط دې بلکه حقيقت دا دې چه هغوی نه پوهيږی.

قوله: ﴿ إِنَّ هَٰذِهِۦٓ أُمَّتُكُمۡ أُمَّةً وَٰحِدَةً ﴾ مفسر علام ﴿ اعلموا ﴾ مقدر منلو سره اشاره اوكړه چه ﴿ان﴾ د همزې په فتحې سره دې او ﴿ هذه ﴾ د ان اسم دې او امتكم ئې خبر دې او امة حال لازمه دې او واحدة ئې صفت لازمه دې او په يو قرا مت كښې په تخفيف د نون او فتحې د همزې سره دې يعنى مخففه عن المثقله دې د دې اسم ضمير شان محذوف دې، او په يو بل قرامت كښې ان نون مشدده او د همزې په كسرې سره دې په دې صورت كښې به دا جمله مستانفه وى په جمله مستانفه باندې د عطف د وجې نه. ځكه چه معطوف على المستانفه، مستانفه وى.

قوله: ﴿ أَمۡرَهُم ﴾ دا د تقطعوا په معنى د قطعوا مفعول دې، لكه تقدم چه په معنى د قدم راځى اى جعلوا دينهم اديانا مختلفة.

قوله: ﴿ زُبُرًا ﴾ دا د زبور جمع ده په معنى د فريق، د اوسپنې ټكړه د ﴿ تقطعوا ﴾ د فاعل نه حال دې يا د دې مفعول دې.

قوله: ﴿ فِي غَمۡرَتِهِمۡ ﴾ دا د فذرهم مفعول ثاني دې، اى اتركهم مستغرقين فى غمرتهم

قوله: ﴿ أَنَّمَا نُمِدُّهُم ﴾ ما موصوله ده ځكه چه من مال وبنين د دې بيان وړاندې راځى دا د ما د موصوله كيدو دليل دې لهذا مالره د ان نه جدا كولو سره ليكل پكار دى خو مصحف امام (مصحف عثمانى) د رسم الخط اتباع كولو سره ﴿ ان ﴾ لره د ما سره متصل كړې شو دا ﴿ ما ﴾ د ان اسم دې او ﴿ نسارع ﴾ جمله خبر دې او د رابطه ضمير محذوف دې. اى به

قوله: ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ هُم مِّنۡ خَشۡيَةِ رَبِّهِم مُّشۡفِقُونَ ﴾ الذين د ان اسم دې، هم مبتدأ ده، مشفقون د مبتدأ خبر دې، من خشية ربهم د مشفقون سره متعلق دې، هم مبتدأ د خپل خبر مشفقون سره صله شوه د موصول، موصول د خپلې صلې سره د ﴿ ان ﴾ اسم دې، هم دغه شان اننده راتلونكى څلور واړه موصول د ﴿ ان ﴾ اسم دى او ﴿ اولئك يسارعون فى الخيرات ﴾ جمله د ان خبر دې.

قوله: ﴿ وَٱلَّذِينَ يُؤۡتُونَ ﴾ ﴿ يعطون ما اعطوا ﴾ عام مفسرين دا رائې لرى چه ﴿ يؤتون ﴾ د ايتاء نه دې اى يعطون ما اعطوا، ابن عباس او عائشه ﷺ وغيره فرمائى چه يؤتون ما اتوا د اتيان نه دې اى يفعلون ما فعلوا من الاعمال الصالحات... مفسر علام د دواړو معنو رعايت كولو سره د ﴿ ما ﴾ په بيان كښې دووه الفاظ ذكر كړى دى، من الصدقة تعلق د عام مفسرينو د معنى په اعتبار سره او د اعمال صالحه تعلق د سيدنا ابن عباس ﷺ او د عائشې ﷺ د قرامت سره دې.

قوله: ﴿ وَجِلَةٌ ﴾ حال دې د ﴿ يؤتون ﴾ د ضمير نه.

قوله: ﴿ يُقْدَرُ قَبْلَه لام الجر ﴾ د ﴿ اجهم ﴾ نه مخکښ به لام جر مقدر منلې شي د څکه چه د ﴿ وجلة ﴾ علت شي يعنى د هغوى زړونه په دې وجه ويريږي چه هغوى به د خپل رب طرف ته واپس کيږي.

قوله: ﴿ وَهُمْ لَهَا سَابِقُونَ ﴾ دا په اصل کښې ﴿ وهم سابقون لها ﴾ وو د فواصل د رعايت دپاره ﴿ لها ﴾ مقدم کړې شو، دا جمله مبتدأ او خبر دى، ﴿ وهم لا يظلمون ﴾ هم ضمير د نفس طرف ته راجع دې کوم چه په ﴿ لانكلف نفسا ﴾ کښې دې نفس چونکه د نفى د لاندې واقع دې چه د هغې د وجې نه عموم مراد دې چه په هغې کښې دننه د جمع معنى ده، په دې وجه ﴿ وهم لا يظلمون ﴾ کښې د جمع صيغه راوړل صحيح دى.

قوله: ﴿ وَلَهُمْ ﴾ الغ اى للكفار اعمال خبيثة من دون ذلك الاعمال المذكورة للمومنين ... قتاده وئيلى دى چه د ﴿ لهم ﴾ ضمير مرجع مسلمانان دى يعنى د مومنانو دپاره د اعمال مذكوره نه علاوه نور هم نيک اعمال دى کوم چه هغوى کوى، بغوى وئيلې دى چه اوله معنى زياته ظاهره ده.

قوله: ﴿ حَتَّى ابْتِدَائِيَّة ﴾ يعنى د دې نه روستو د کلام ابتداء شوې ده.

قوله: ﴿ إِذَا أَخَذْنَا مُتْرَفِيهِمْ ﴾ شرط دې ﴿ اذهم يجارون ﴾ د دې جزاء اذا مفاجاتيه ده په معنى د فاء ده، تقدير د عبارت داسې دې : حتى اذا اخذنا مترفيهم بالعذاب فجاروا بالصراخ ... يجارون مضارع جمع مذكر غائب (فتح) جئرابې قراره کيدو سره فرياد کول، د غوا غوئى چغې وهل، ﴿ تنكصون ﴾ مضارع جمع مذكر حاضر دې ﴿ نكوص ﴾ گرځيدل، واپس کيدل.

قوله: ﴿ مُسْتَكْبِرِينَ بِهِ ﴾ جار مجرور د مستكبرين سره متعلق دې، باء سببيه ده يا سامرا سره متعلق دې، يا په معنى د فى ده د به مرجع يا قرآن کريم دې کوم چه د كانت آياتى نه مفهوم دې يا د دې مرجع بيت الله يا حرم دې، اگر چه د دې په سابق کښې ذکر نشته خو په بيت الله او حرم باندې د هغوى فخر او استكبار دومره مشهور وو چه د نه مذكور کيدو په صورت کښې به هم مذکور گنړلې کيدو.

قوله: ﴿ مُسْتَكْبِرِينَ سَامِرًا تَهْجُرُونَ ﴾ دا درې واړه د ﴿ تنكصون ﴾ د ضمير نه حال دې، د مفسر علام دپاره زياته غوره دا وه چه ﴿ حال ﴾ ئې د ﴿ تهجرون ﴾ نه روستو ذکر کړې وې او د ﴿ حال ﴾ په ځائې ئې احوال فرمائيلې وې.

قوله: ﴿ بِأَنَّهُمْ أَهْله ﴾ باء سببيه ده، د بيانِ علت دپاره يعنى د ايمان نه به ئې استكبار کولو دا علت او دليل بيانولو سره چه مونږ د بيت الله منتظمين او متوليان يو.

قوله: ﴿ أَفَلَمْ يَدَّبَّرُوا الْقَوْلَ ﴾ همزه په محذوف باندې داخله ده او فاء عاطفه ده تقدير د

عبارت دا دې ﴿ اعرضوا لم يدبروا ﴾ ايا دا خلق د قدرت د نخښو نه رانده شوی دی چه (په هغې کښې) غور او فکر نه کوی.

**قوله:** ﴿ عادة ﴾ دلته مناسب دا وه چه د ﴿ عادة ﴾ په ځائې ئې ﴿ عقلا ﴾ ونيلې وې، ځکه چه د مشرک وجود د عالم د فساد عقلا مقتضی دی نه عادة.

**قوله:** ﴿ لَلَجُّوا ﴾ دا د لوجواب دې.

**قوله:** ﴿ مُبْلِسُونَ ﴾ دا د ﴿ ابلاس ﴾ نه مشتق دې د دې ده معنی نا اميد کيدل، هم د دې نه ابليس دې چه هغه هم د الله پاک د رحمت نه نا اميده شوې دې.

**[ايا تونه: ۷۸ - ۹۲]**

(وَهُوَ الَّذِي أَنْشَأَ) خَلَقَ (لَكُمُ السَّمْعَ) بِمَعْنَى الْأَسْمَاعِ (وَالْأَبْصَارَ وَالْأَفْئِدَةَ) الْقُلُوبَ (قَلِيلًا مَّا) تَاكِيد لِلقِلَّةِ (تشكرون) (وَهُوَ الَّذِي ذَرَأَكُمْ) خَلَقَكُمْ (فِي الْأَرْضِ وَإِلَيْهِ تُحْشَرُونَ) تبعثون (وَهُوَ الَّذِي يُحْيِي) بِنَفْخِ الرُّوحِ فِي الْمُضْغَةِ (وَيُمِيتُ وَلَهُ اخْتِلَافُ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ) بِالسَّوَادِ وَالْبَيَاضِ وَالزِّيَادَةِ وَالنُّقْصَانِ (أَفَلَا تَعْقِلُونَ) صُنْعَهُ تَعَالَى فَتَعْتَبِرُونَ (بل قالوا مثل ما قال الأولون) (قالوا) اي الأولون (أئذا متنا وكنا ترابا وعظاما أئنا لمبعوثون) لا وَفِي الْهَمْزَتَيْنِ فِي الْمَوْضِعَيْنِ التَّحْقِيق وَتَسْهِيل الثَّانِيَة وَإِدْخَال أَلِف بَيْنَهُمَا عَلَى الْوَجْهَيْنِ (لَقَدْ وُعِدْنَا نَحْنُ وَآبَاؤُنَا هَذَا) أَيْ الْبَعْث بَعْد الْمَوْت (مِنْ قَبْلُ إِنْ) مَا (هَذَا إِلَّا أَسَاطِيرُ) أَكَاذِيب (الْأَوَّلِينَ) كَالْأَضَاحِيكِ وَالْأَعَاجِيب جَمْع اسطورة بالضم (قُلْ) لَهُمْ (لِمَنِ الْأَرْضُ وَمَنْ فِيهَا) مِنَ الْخَلْق (إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ) خَالِقهَا وَمَالِكهَا (سَيَقُولُونَ لِلَّهِ قُلْ) لَهُمْ (أَفَلَا تَذَكَّرُونَ) بِإِدْغَامِ التَّاء الثَّانِيَة فِي الذَّال تَتَّعِظُونَ فَتَعْلَمُونَ أَنَّ الْقَادِر عَلَى الْخَلْق ابْتِدَاء قَادِر عَلَى الْإِحْيَاء بعد الموت (قل من رب السماوات السبع ورب العرش العظيم) الكرسي (سيقولون الله قُلْ أَفَلَا تَتَّقُونَ) تحذرون عِبَادَة غَيْره (قل من بيده ملكوت) ملك (كل شيء) وَالتَّاء لِلْمُبَالَغَةِ (وَهُوَ يُجِيرُ وَلَا يُجَارُ عَلَيْهِ) يحمي ولا يحمى عليه (إن كنتم تعلمون) (سيقولون الله) وَفِي قِرَاءَة لِلَّهِ بِلَامِ الْجَرّ فِي الْمَوْضِعَيْنِ نَظَرًا إِلَى أَنَّ الْمَعْنَى مَنْ لَهُ مَا ذُكِرَ (قُلْ فَأَنَّى تُسْحَرُونَ) تُخْدَعُونَ وَتُصْرَفُونَ عَنْ الحق عبادة الله وَحْده أَيْ كَيْفَ تُخَيَّلُ لَكُمْ أَنَّهُ باطل (بَلْ أَتَيْنَاهُمْ بِالْحَقِّ) بِالصِّدْقِ (وَإِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ) فِي نفيه وهو (مَا اتَّخَذَ اللَّهُ مِنْ وَلَدٍ وَمَا كَانَ مَعَهُ مِنْ إِلَٰهٍ إِذًا) أَيْ لَوْ كَانَ مَعَهُ إِلَه (لَذَهَبَ كُلُّ إِلَٰهٍ بِمَا خَلَقَ) انْفَرَدَ بِهِ وَمَنَعَ الْآخَر مِنَ الِاسْتِيلَاء عَلَيْهِ (وَلَعَلَا بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ) مُغَالَبَةً كَفِعْلِ مُلُوك الدُّنْيَا (سُبْحَانَ اللَّهِ) تَنْزِيهًا لَهُ (عَمَّا يَصِفُونَ) هُ بِهِ مِمَّا ذُكِرَ (عَالِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ) مَا غَابَ وَمَا شُوهِدَ بِالْجَرِّ صِفَة وَالرَّفْع خَبَر هُوَ مُقَدَّرًا (فَتَعَالَىٰ) تَعَظَّمَ (عَمَّا يُشْرِكُونَ) مَعَهُ

**ترجمه:** هغه داسې ذات دې چا چه ستاسو غوږونه جوړ کړی دی سمع په معنی د اسماع او سترګې او زړونه ئې جوړ کړل تاسو ډير کم شکر کوئ ما د قلت د تاکيد دپاره ده او هغه ذات دې چه هغه تاسو د خاورې نه پيدا کړئ او هم د هغه طرف ته به تاسو جمع کولې شئ، يعنی د مرګ نه روستو

به ژوندی کولې شئ او هغه داسې ذات دې چه د غوبنې په ټکړه کښې روح پوکلو سره تاسو ته حيات درکوی او مرګ درکوی او د تور والی او سپين والی، زيادت او نقصان په ذريعه د شپې او ورځې بدلول هم دهغه په اختيار کښې دی نو آيا تاسو د الله پاک په صنعت باندې نه پوهيږئ؟ چه عبرت ترې حاصل کړئ. بلکه دوی هم هغه شان خبره کوی څنګه چه به وړاندې خلقو کوله اولنو خلقو داسې اووئيل آيا چه کله مونږ مړه شو او خاورې او هډوکی شو نو ايا مونږ به دوباره ژوندی کولې شو؟ نه، او همزه دواړو ځايونو کښې د تحقيق دپاره ده او د ثانی همزه تسهيل دې، او د دواړه همزو ترمينځه په دواړو صورتونو کښې الف داخلول دی د دې خو مونږ سره او زمونږ د مشرانو سره وعده کيږی يعنی د بعث بعد الموت دا هيڅ هم نه دی صرف بې سنده دروغ خبرې دی کومې چه د مخکښې خلقو نه منقول راروانې دی لکه د خندا او تعجب خبرې اساطيرد اسطورة جمع ده د همزې په ضمې سره،، ته د هغوی نه تپوس اوکړه چه دا زمکه او په دې کښې چه کوم مخلوق دې دا د چا ملک دې که تاسو د دې خالق او مالک پيژنئ نو هغوی به درته ضرور دا وائی چه د الله پاک په ملک کښې دی نو هغوی ته اوايئ چه بيا تاسو ولې غور نه کوئ ﴿ تذکرون ﴾ (په اصل کښې تتذکرون وو) تاء ثانيه ذال کړې شو او ذال په ذال کښې مدغم کړې شو ﴿ تذکرون ﴾شو، د دې دپاره چه تاسو پوهه شئ چه کوم ذات ابتداء په پيدا کولو باندې قادر دې هغه د مرګ نه پس په ژوندی کولو باندې قادر دې ته د هغوی نه دا تپوس هم اوکړه چه د دې اووۀ اسمانونو او عرش عظيم کرسئ مالک څوک دې؟ نو هغوی به ضرور دا جواب درکوی چه دا هم د الله پاک دی. (دغه وخت) اوايه چه بيا تاسو د غير الله د بندګئ نه ولې نه بچ کيږئ؟ ته هغوی ته دا هم اوايه چه هغه ذات څوک دې چه د هغه په لاس کښې د ټولو څيزونو اختيار دې ملکوت کښې تاء د مبالغې دپاره ده هغه پناه ورکوی او د هغه په مقابله کښې څوک هم چاته پناه نه شی ورکولې. يعنی هغه حمايت کوی د هغه په مقابله کښې حمايت نه شی کيدلې، که تاسو ته څه خبر وی؟نو هغوی به ضرور هم دا وائی (چه د دې صفاتو مالک) الله پاک دې او په يو قراءت کښې د الله په ځائې ﴿ لله ﴾دې د لام په جر سره په دواړو ځايونو کښې د دې خبرې طرف ته نظر کولو سره چه د ﴿ من بيده ﴾معنی د ﴿ من له ماذکر ﴾ده نو ته (هغه وخت) اوايه چه بيا په تاسو باندې څنګه جادو اوکړې شی؟ يعنی په دهوکه کښې پريوتلی يئ او حق يعنی د الله پاک د عبادت نه اوړئ يعنی تاسو دا تصور څنګه کوئ چه دا هر څه باطل دی بلکه مونږ هغوی ته رشتينی خبره رسولې ده او يقينا دا پخپله دروغژن دی د دې رشتينې خبرې په نفی کولو کښې او هغه رشتينې خبره کومه چه مونږ رسولې ده هغه دا ده چه الله پاک هيڅ څوک اولاد نه دې نيولې او نه دهغه سره څوک معبود شته ګنې که د هغه سره بل څوک معبود وې نو هر معبود به خپل مخلوق جدا کړې وې يعنی خپله

به یواځې د هغې مالک شوي وې او بل به ئې په هغې باندې د غلبې کولو نه منع کړلې، او په یو بل باندې به ئې حمله کړې وې د غلبې د حصول دپاره ځنګه چه د دنیا بادشاهان کوی الله پاک د دې ټولو ذکر شوې خبرو نه پاک دې کومې چه دوی بیانوی، د پټو او ښکاره څیزونو پیژندونکې دې کوم چه غائب دی او کوم چه ظاهر دی د ﴿ عالم ﴾ په جر سره د لفظ الله صفت دې او په رفع سره د هومبتدأ محذوف خبر دې غرضهدا چه د هغه څیزونو نه بالاتر دې کوم چه د دوی د هغه سره شریک کوی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** ﴿ قَلِیلًا مَّا تَشْكُرُونَ ﴾ د دوی د قلت د تاکید دپاره ده کوم چه د ﴿ قلیلا ﴾ د تنوین تنکیر نه مستفاد دې او ﴿ قلیلا ﴾ د مفعول مطلق صفت کیدو د وجې نه منصوب دې د دې د عبارت تقدیر دا دې ﴿ ای تشکرون شکرا قلیلا ﴾ او دا د عدم شکر نه کنایه ده ځکه چه قلت د عدم په معنی کښې هم مستعمل دې او هم دا معنی د کفارو د حال سره زیاته مناسب ده.

**قوله:** ﴿ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴾ همزه په محذوف باندې داخله ده، فاء عاطفه ده ﴿ ای اغفلتم فلا تعقلون ان القادر علی انشاء الخلق قادر علی اعادتهم بعد الموت ﴾

**قوله:** ﴿ بل قالوا ﴾ ای کفار مکة ... دا د محذوف نه اضراب انتقالی دې. د عبارت تقدیر داسې دې ﴿ فلم یعتبروا بل قالوا ﴾ ابو سعود وئیلې دی چه د بل قالوا عطف په مقدر دې ای فلم یعقلوا بل قالوا.

**قوله:** ﴿ لَقَدْ وُعِدْنَا نَحْنُ وَآبَاؤُنَا ﴾ د اباؤنا عطف د وعدنا په ضمیر متصل باندې دې او قاعده دا ده چه که په ضمیر مرفوع متصل باندې عطف کول وی نو د ضمیر منفصل په ذریعه باندې تاکید ضروری وی خو دلته چونکه د ﴿ نحن ﴾ فصل راغلې دې کوم چه د ضمیر منفصل قائم مقام دې لهذا عطف صحیح شو، ﴿ هذا ﴾ د ﴿ وعدنا ﴾ مفعول ثانی دې او ﴿ نا ﴾ ضمیر د هغې نائب فاعل دې د عبارت تقدیر داسې دې چه ﴿ وعدنا الان محمد صلی الله علیه وسلم بالبعث وعد غیره اباءنا من قبلنا به ﴾

**قوله:** ﴿ لا ﴾ دا دې خبرې ته اشاره ده چه ﴿ ءاذا متنا ﴾ کښې همزه د استفهام انکاری ده.

**قوله:** ﴿ ان کنتم تعلمون ﴾ شرط دې د دې جواب محذوف دې ای ان کنتم تعلمون فاخبرونی بخالقها.

**قوله:** ﴿ ملکوت ﴾ په دې کښې واو او تاء د مبالغې دپاره زیات کړې شوی دی لکه په ﴿ رحموت ﴾ کښې.

**قوله:** ﴿ وَلَا يُجَارُ عَلَيْهِ ﴾ په علی سره تعدیه د نصرت معنی لره د متضمن کیدو د وجې نه ده.

**قوله:** ﴿ نَظَرًا إِلَى أَنَّ الْمَعْنَى مَنْ لَهُ ﴾ لفظ د الله پورته په درې ځایونو کښې واقع شوې دې

اول ځائې کښې د لام جر سره متعين دې ځکه چه په سوال کښې لام ظاهر دې يعنې ﴿ قل لمن الارض ومن فيها ﴾ لهذا په جواب کښې يعنې ﴿ سيقولون لله ﴾ کښې هم لام لره ظاهرول متعين دی، په دويم مقام باندې د معنى د رعايت کولو د وجې لام ظاهروی او د لفظ د رعايت د وجې نه لام حذف کوی ځکه چه د سوال الفاظ دا دی ﴿ قل من رب السموات الاية ﴾ نو په دې وخت کښې به جواب ﴿ لله ﴾ واقع وی، هم دغه شان په دريم مقام باندې ﴿ قل من بيده ملكوت كل شئ ﴾ که د سوال د لفظ رعايت اوکړې شی نو لام به حذف وی او که د سوال د معنى رعايت اوکړې شی نو لام به ظاهر وی، ځکه چه معنى دا ده ﴿ لمن ملكوت كل شئ ﴾ خلاصه دا ده چه په دې درې واړو مقامونو کښې په اولنى مقام کښې د لام جر اظهار متعين دې او په روستو دواړو مقاماتو کښې به د سوال د لفظ د رعايت د وجې حذف د لام وی او د معنى د رعايت د وجې به اظهار د لام وی يعنى اظهار او حذف دواړه جائز دی.

قوله: ﴿ تُخْدَعُونَ ﴾ د ﴿ تسحرون ﴾ تفسير په ﴿ تخدعون ﴾ سره کولو کښې دې خبرې ته اشاره ده چه ﴿ تسحرون ﴾ مجازا د ﴿ تخدعون ﴾ په معنى کښې دې.

قوله: ﴿ وَتُصْرَفُونَ عَنِ الحق عبادة الله ﴾ عبادة الله د حق نه بدل دې هم په دې وجه عبادة الله مجرور دې.

قوله: ﴿ كَيْفَ تُخَيَّلَ لَكُمْ ﴾ په کښې دې خبرې ته اشاره ده چه ﴿ انى ﴾ د ﴿ كيف ﴾ په معنى ده او ﴿ تسحرون ﴾ د ﴿ تخيل ﴾ په معنى دې.

قوله: ﴿ مِنْ وَلَدٍ ﴾ کښې ﴿ من ﴾ په مفعول باندې زائد دې، او ﴿ من اله ﴾ کښې ﴿ من ﴾ د ﴿ كان ﴾ په اسم باندې زائد دې.

قوله: ﴿ إِذًا ﴾ اى لو كان معه اله لذهب (الاية) اذا نه پس د لو كان معه اضافه د يو سوال مقدر جواب دې، سوال دا دې چه ﴿ اذا ﴾ په داسې کلام باندې داخليږی چه کوم په شرط او جزا باندې مشتمل وی او دلته ﴿ لذهب ﴾ صرف جزا ده؟ جواب دا دې چه شرط محذوف دې چه د هغې طرف ته شارح په ﴿ لو كان معه اله ﴾ محذوف منلو سره اشاره کړې ده، ﴿ اذا ﴾ په معنى د ﴿ لو ﴾ امتناعيه دې.

قوله: ﴿ ما ذُكِرَ ﴾ اى من الاولاد والانداد.

قوله: ﴿ عَالِمِ الْغَيْبِ ﴾ په جر سره دې د لفظ الله نه بدل يا صفت واقع کيدو د وجې نه او که ﴿ عالم الغيب ﴾ په رفع سره اولوستلې شی نو د هومبتدأ محذوف خبر به وی.

قوله: ﴿ فتعالى ﴾ د دې عطف د ماقبل په معنى باندې دې، اى علم الغيب فتعالى عما يشركون.

............

(قُل رَّبِّ إِمَّا) فِيهِ إِدْغَامُ نُونِ إِنْ الشَّرْطِيَّةِ فِي مَا الزَّائِدَةِ (تُرِيَنِّي مَا يُوعَدُونَ) هـ مِنَ الْعَذَابِ هُوَ صَادِقٌ بِالْقَتْلِ بِبَدْرٍ (رَبِّ فَلَا تَجْعَلْنِي فِي الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ) فَأَهْلِكَ بِإِهْلَاكِهِمْ (وَإِنَّا عَلَىٰ أَن نُّرِيَكَ مَا نَعِدُهُمْ لَقَادِرُونَ) (ادْفَعْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ) أَيِ الْخَصْلَةِ مِنَ الصَّفْحِ وَالْإِعْرَاضِ عَنْهُمْ (السَّيِّئَةَ) أَذَاهُمْ إِيَّاكَ وَهَذَا قَبْلَ الْأَمْرِ بِالْقِتَالِ (نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَصِفُونَ) يَكْذِبُونَ وَيَقُولُونَ فَنُجَازِيهِمْ عَلَيْهِ (وَقُل رَّبِّ أَعُوذُ) أَعْتَصِمُ (بِكَ مِنْ هَمَزَاتِ الشَّيَاطِينِ) نَزَغَاتِهِمْ بِمَا يُوَسْوِسُونَ بِهِ (وَأَعُوذُ بِكَ رَبِّ أَن يَحْضُرُونِ) فِي أُمُورِي لِأَنَّهُمْ إِنَّمَا يَحْضُرُونَ بِسُوءٍ (حَتَّىٰ) ابْتِدَائِيَّةٌ (إِذَا جَاءَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ) وَرَأَى مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ وَمَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ لَوْ آمَنَ (قَالَ رَبِّ ارْجِعُونِ) الْجَمْعُ لِلتَّعْظِيمِ (لَعَلِّي أَعْمَلُ صَالِحًا) بِأَنْ أَشْهَدَ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ يَكُونُ (فِيمَا تَرَكْتُ) ضَيَّعْتُ مِنْ عُمْرِي أَيْ فِي مُقَابَلَتِهِ قَالَ تَعَالَى (كَلَّا) أَيْ لَا رُجُوعَ (إِنَّهَا) أَيْ رَبِّ ارْجِعُونِ (كَلِمَةٌ هُوَ قَائِلُهَا) وَلَا فَائِدَةَ لَهُ فِيهَا (وَمِن وَرَائِهِم) أَمَامَهُمْ (بَرْزَخٌ) حَاجِزٌ يَصُدُّهُمْ عَنِ الرُّجُوعِ (إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ) وَلَا رُجُوعَ بَعْدَهُ (فَإِذَا نُفِخَ فِي الصُّورِ) الْقَرْنِ النَّفْخَةُ الْأُولَى أَوِ الثَّانِيَةُ (فَلَا أَنسَابَ بَيْنَهُمْ يَوْمَئِذٍ) يَتَفَاخَرُونَ بِهَا (وَلَا يَتَسَاءَلُونَ) عَنْهَا خِلَافَ حَالِهِمْ فِي الدُّنْيَا لِمَا يَشْغَلُهُمْ مِنْ عِظَمِ الْأَمْرِ عَنْ ذَلِكَ فِي بَعْضِ مَوَاطِنِ الْقِيَامَةِ وَفِي بَعْضِهَا يُفِيقُونَ وَفِي آيَةٍ (فَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ) (فَمَن ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ) بِالْحَسَنَاتِ (فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ) الْفَائِزُونَ (وَمَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ) بِالسَّيِّئَاتِ (فَأُولَٰئِكَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ) فَهُمْ (فِي جَهَنَّمَ خَالِدُونَ) (تَلْفَحُ وُجُوهَهُمُ النَّارُ) تُحْرِقُهَا (وَهُمْ فِيهَا كَالِحُونَ) شَمَرَتْ شِفَاهُهُمُ الْعُلْيَا وَالسُّفْلَى عَنْ أَسْنَانِهِمْ وَيُقَالُ لَهُمْ (أَلَمْ تَكُنْ آيَاتِي) مِنَ الْقُرْآنِ (تُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ) تُخَوَّفُونَ بِهَا (فَكُنتُم بِهَا تُكَذِّبُونَ) (قَالُوا رَبَّنَا غَلَبَتْ عَلَيْنَا شِقْوَتُنَا) وَفِي قِرَاءَةٍ شَقَاوَتُنَا بِفَتْحِ أَوَّلِهِ وَأَلِفٍ وَهُمَا مَصْدَرَانِ بِمَعْنًى (وَكُنَّا قَوْمًا ضَالِّينَ) عَنِ الْهِدَايَةِ (رَبَّنَا أَخْرِجْنَا مِنْهَا فَإِنْ عُدْنَا) إِلَى الْمُخَالَفَةِ (فَإِنَّا ظَالِمُونَ) (قَالَ) لَهُمْ بِلِسَانِ مَالِكٍ بَعْدَ قَدْرِ الدُّنْيَا مَرَّتَيْنِ (اخْسَئُوا فِيهَا) ابْعُدُوا فِي النَّارِ أَذِلَّاءَ (وَلَا تُكَلِّمُونِ) فِي رَفْعِ الْعَذَابِ عَنْكُمْ فَيَنْقَطِعُ رَجَاؤُهُمْ (إِنَّهُ كَانَ فَرِيقٌ مِّنْ عِبَادِي) هُمُ الْمُهَاجِرُونَ (يَقُولُونَ رَبَّنَا آمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا وَأَنتَ خَيْرُ الرَّاحِمِينَ) (فَاتَّخَذْتُمُوهُمْ سِخْرِيًّا) بِضَمِّ السِّينِ وَكَسْرِهَا مَصْدَرٌ بِمَعْنَى الْهُزْءِ مِنْهُمْ بِلَالٌ وَصُهَيْبٌ وَعَمَّارٌ وَسَلْمَانُ (حَتَّىٰ أَنسَوْكُمْ ذِكْرِي) فَتَرَكْتُمُوهُ لِاشْتِغَالِكُمْ بِالِاسْتِهْزَاءِ بِهِمْ فَهُمْ سَبَبُ الْإِنْسَاءِ فَنُسِبَ إِلَيْهِمْ (وَكُنتُم مِّنْهُمْ تَضْحَكُونَ) (إِنِّي جَزَيْتُهُمُ الْيَوْمَ) النَّعِيمَ الْمُقِيمَ (بِمَا صَبَرُوا) عَلَى اسْتِهْزَائِكُمْ بِهِمْ وَأَذَاكُمْ إِيَّاهُمْ (أَنَّهُمْ) بِكَسْرِ الْهَمْزَةِ (هُمُ الْفَائِزُونَ) بِمَطْلُوبِهِمْ اسْتِئْنَافٌ وَبِفَتْحِهَا مَفْعُولٌ ثَانٍ لِجَزَيْتُهُمْ (قَالَ) تَعَالَى لَهُمْ بِلِسَانِ مَالِكٍ وَفِي قِرَاءَةٍ قُلْ (كَمْ لَبِثْتُمْ فِي الْأَرْضِ) فِي الدُّنْيَا وَفِي قُبُورِكُمْ (عَدَدَ سِنِينَ) تَمْيِيزٌ (قَالُوا لَبِثْنَا يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ) شَكُّوا فِي ذَلِكَ وَاسْتَقْصَرُوهُ لِعِظَمِ مَا هُمْ فِيهِ مِنَ الْعَذَابِ (فَاسْأَلِ الْعَادِّينَ) أَيِ الْمَلَائِكَةَ الْمُحْصِينَ أَعْمَالَ الْخَلْقِ (قَالَ) تَعَالَى بِلِسَانِ مَالِكٍ وَفِي قِرَاءَةٍ قُلْ (إِن) أَيْ مَا (لَّبِثْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا لَّوْ أَنَّكُمْ كُنتُمْ تَعْلَمُونَ) مِقْدَارَ لُبْثِكُمْ مِنَ الطُّولِ كَانَ قَلِيلًا بِالنِّسْبَةِ إِلَى لُبْثِكُمْ فِي النَّارِ (أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا خَلَقْنَاكُمْ عَبَثًا) لَا لِحِكْمَةٍ (وَأَنَّكُمْ إِلَيْنَا لَا

تُرْجَعُونَ﴾ بِالْبِنَاءِ لِلْفَاعِلِ وَلِلْمَفْعُولِ لا بل لنتعبدكم بالأمر والنهي ترجعوا إلينا ونجازي على ذلك ﴿وما خلقت الجن والإنس إلا ليعبدون﴾ ﴿فَتَعَالَى اللَّهُ﴾ عَنِ الْعَبَثِ وَغَيْرِهِ مِمَّا لا يَلِيقُ بِهِ ﴿الْمَلِكُ الْحَقُّ لا إِلَهَ إِلا هُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيمِ﴾ الكرسي هو السرير الحسن ﴿وَمَنْ يَدْعُ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ لا بُرْهَانَ لَهُ بِهِ﴾ صفة كاشفة لا مفهوم لها ﴿فَإِنَّمَا حِسَابُهُ﴾ جزاؤه ﴿عِنْدَ رَبِّهِ إِنَّهُ لا يُفْلِحُ الْكَافِرُونَ﴾ لا يسعدون ﴿وَقُلْ رَبِّ اغْفِرْ وَارْحَمْ﴾ الْمُؤْمِنِينَ فِي الرَّحْمَةِ زِيَادَةٌ عَنِ الْمَغْفِرَةِ ﴿وَأَنْتَ خَيْرُ الرَّاحِمِينَ﴾ أفضل راحم

**ترجمه:** ته دعا اوكړه چه اې زما ربه اما په اصل كښې ﴿ ان ما ﴾ وو د ﴿ ان ﴾ شرطيه نون په ما زائده كښې مدغم كړې شو د كوم عذاب چه د دې كفارو سره وعده كړې شوې ده كه هغه ته ماته اوښايئ نو اې زما ربه ما په دې ظالمانو خلقو كښې شامل نه كړې چه زه د هغوى سره هلاک كړې شم او هغه وعده (غزوۀ) بدر كښې د قتل په ذريعه صادقه شوه او مونږ په دې خبره باندې قادر يو چه كومه وعده د هغوى سره كوؤ هغه تاته اوښايو ته د هغوى د بدو يعنى د هغوى د ضرر دركولو دفعه په داسې طريقه كوه چه ډيره ښه وى يعنى د هغوى نه د عفو او معاف كولو د خصلت په ذريعه او دا د (عفو او بخښنې) حكم د جهاد د اجازت نه مخكښې دې مونږ ته ښه معلومه ده چه دوى څه وائى يعنى تكذيب كوى او خبرې جوړوى مونږ به هغوى ته سزا وركړو او ته داسې دعا كوه چه اې زما ربه زه ستا په پناه كښې راځم د هغه شيطانى خيالاتو نه چه د كومو په ذريعه هغوى وسوسه اچوى او اې زما ربه زه پناه غوارم د دې نه چه شيطانان ماته راشى يعنى زما په كارونو كښې دخل اوكړى څكه چه هغوى په بدئ سره راځى تردې چه كله په هغوى كښې د چا مرګ راشى حتى ابتدائيه ده او هغه د دوزخ خپله ټهكانه او د جنت خپله ټهكانه كه ايمان راوړلې وى اوينى نو (هغه وخت به) وائى اې زما ربه ته ما واپس كړه ارجعون د جمع صيغه د تعظيم دپاره ده د دې دپاره چه دنيا ما پريخودلې ده هغې ته واپس تلو سره نيكى اوكړم يعنى د لا اله الا الله شهادت وركړم چه زما دا شهادت د مافات كمې پوره كړى يعنى كوم عمر چه ما ضائع كړې دې د هغې عوض شى، الله پاک به اوفرمائى هرګز داسې نه شى كيدې يعنى واپسى نه شى كيدې بيشكه دا يعنى رب ارجعون يوه داسې كلمه ده كومه چه هغه وائى او د دې خبرې بار بار كولو كښې د هغه هيڅ فائده نشته او د دې خلقو مخې ته يوه پرده ده كومه چه د هغوى د واپسۍ نه مانع ده د قيامت د ورځې پورې. او د هغې نه روستو رجوع نشته بيا به په شپيلۍ كښې پوكې اوكړې شى يعنى ښكر (ښشان يو څيز كښې) اوله نفخه يا ثانيه نو په دغه ورځ باندې به د هغوى ترمينځه رشتې او تعلقات چه په هغې باندې به دې خلقو فخر كولو باقى پاتې نه شى او نه به د رشتو او تعلقاتو باره كښې تپوس كوى به خلاف د دنيا چه هلته د هغوى حالت بدل وو، څكه چه د يو امر عظيم به د قيامت به بعض مواقع كښې هغوى د دې تپوس پوښتنې نه غافله كړى، او د قيامت په بعض مواقع

کښې به ورته افاقه وی او په یو بل آیت کریمه کښې دی چه هغوی به خپل مینځ کښې د یو بل نه تپوس کوی پس د کوم کس د نیکو چاپړې چه دروند شو نو داسې خلق به کامیاب وی او د ګناهونو د وجې نه چه د چا چاپړې سپک شو نو دا هغه خلق دی چا چه خپل نقصان اوکړو پس هغوی به په جهنم کښې همیشه همیشه اوسیږی او اور به د هغوی مخونه اوسیزی یعنی او به ئې سیزی او هغوی به هلته بدشکله شوی وی او د هغوی پورته شونډې به پورته اینختلې وی او لاندې شونډې به ئې د غاښونو نه لاندې زوړندې وی، هغوی ته به اوفرمائیلې شی آیا تاسو ته د قرآن کریم نه زما آیتونه په لوستلو سره نه شو اوروليې کیدې یعنی د دې آیتونو په ذریعه به تاسو ته ویره نه شوه درکولې بیا هم تاسو د هغې تکذیب کولو هغوی به وائی چه اې زمونږ ربه زمونږ بدنصیبی په مونږ باندې غالبه شوې وه او په یو قراءت کښې ﴿ شقاوتنا ﴾ دې د اول په فتحې او الف سره او دا دواړه مصدرې دی دواړه په یو معنی کښې دی او بیشکه مونږ د هدایت نه بې لارې شوې وو اې زمونږ ربه مونږ د جهنم نه راویاسه پس که مونږ بیا مخالفت اوکړو نو یقینا مونږ به قصوروار یو د دنیا د دوچند مقدار نه پس، د مالک په ژبه به ورته ارشاد اوشی چه د ذلت سره هم په دې کښې پراته اوسیږئ یعنی ذلت سره په دوزخ کښې پراته اوسئ او ما سره د خپل عذاب د ختمولو په باره کښې خبرې مه کوئ پس هغه خلق به مایوس شی، زما د بندګانو یو جماعت وو چا چه به عرض کولو او هغه د مهاجرینو جماعت وو اې زمونږ ربه مونږ ایمان راوړې دې نو مونږ ته بخښنه اوکړه او په مونږ خپل رحمت اوکړه ته د ټولو رحم کونکو نه زیات رحم کونکې ئې نو تاسو به په هغوی پورې ټوقې کولې سخریا سین په ضمې او کسرې سره په معنی د تمسخر، په دې کښې سیدنا بلال، سیدنا صهیب، سیدنا عمار او سیدنا خباب ﷺ وو. تردې چه هغه خلقو تاسو نه زمونږ یاد هیر کړو پس تاسو د هغوی په استهزاء کښې د مشغولتیا د وجې نه هغه یاد ترک کړو پس ګویا هغه خلق د هیرولو سبب شو هم په دې وجه د هیرولو نسبت ئې د هغوی طرف ته اوکړو او تاسو په هغوی پورې ټوقې کولې، ما نن هغوی ته ستاسو په ټوقو او تکلیف باندې د صبر کولو په وجه د دائمی نعمتونو بدله ورکړه بیشکه هم دا خلق په خپل مقصد کښې کامیاب دی انهم په کسرې سره دې (په دې صورت کښې) به جمله مستانفه وی او د همزه په فتحې سره د جزیتهم مفعول ثانی وی الله پاک به ورته د مالک په ژبه فرمائی او په یو قراءت کښې قل دې چه ته په دنیا کښې اوپه خپلو قبرونو کښې د کلونو په حساب سره څومره موده اوسیدلې ئې عدد سنین د کم تمیز دې (تقدیر دعبارت دادې) لبثتم کم عددا من السنین هغوی به جواب ورکوی چه یوه ورځ یا د یوې ورځې نه هم کم پاتې شوی یو هغوی به دقیام په دې موده کښې شک کوی او په عظیم عذاب کښې د مبتلا کیدو په وجه سره به د دنیا قیام کم اوګڼړی نو د شمار کونکو یعنی د مخلوق اعمال

شمار کونکو فرشتونه معلوم کړئ الله تعالی به د مالک په ژبه اوفرمائی اوپه یو روایت کښې قل دې، تاسو ډیره لږه موده پاتې شوی یئ څه به ښه وې چه تاسو د خپل طول قیام موده باندې پوهه شوی وئ کوم چه ډیر کم وو ستاسو په جهنم کښې د قیام په نسبت آیا تاسو دا گمان کولو چه مونږ تاسو بیکاره بغیر د څه حکمت نه پیدا کړی یئ او دا چه تاسو به مونږ ته نه واپس کیږئ ( ترجعون ) په معروف او مجهول دواړه دې، نه! بلکه (مونږ تاسو په دې وجه پیدا کړی یئ) چه تاسو د امر او نهی مکلف کړو او تاسو به زمونږ طرف ته واپس کیږئ او مونږ په دې تکلیف تاسو ته جزا درکړو، او مونږ جن او انس صرف د خپلې بندگئ دپاره پیدا کړی دی پس الله پاک د عبث وغیره نه کوم چه د هغه د شان لائق نه دې پاک دې کوم چه حقیقی بادشاه دې د هغه نه سوا څوک هم د عبادت لائق نشته، هغه د عرش عظیم مالک دې یعنی د کرسئ کوم چه بهترین تخت دې او څوک چه د الله پاک سره د بل معبود بندگی کړی چه د هغه په معبود کیدو باندې هغه سره هیڅ دلیل نشته آخرد الها صفت کاشفه دې د دې د مفهوم مخالف اعتبار نشته، پس د ده حساب یعنی د ده جزاء د هغه د رب په نزد ده یقینا کفار به کامیاب نه شی یعنی هغوی ته به سعادت حاصل نه شی او ته داسې دعا کوه اې زما ربه بخښنه اوکړه او په مومنانو باندې رحم اوکړه په رحمت کښې د مغفرت په مقابله کښې زیادت دې او ته د ټولو رحم کونکو نه زیات رحم کونکې یې یعنی د رحمت په اعتبار سره افضل یې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: ﴿ تُرِيَنِّي ﴾ته ماته اوښائې .... د اراءة نه مضارع واحد مذکر حاضر بانون تاکید ثقیله مبنی دې په فتحې سره او متعدی دې دوؤ مفعولو ته په واسطې د همزې، ی ضمیر متکلم مفعول اول ماموصوفه مفعول ثانی.

قوله: ﴿ فَلَا تَجْعَلْنِي ﴾ جواب شرط ﴿ فِي ﴾ په معنی د ﴿ مع ﴾ د لفظ ﴿رب﴾ اعاده په تضرع او عاجزئ کښې د مبالغې کولو دپاره کړې شوې ده. ﴿ فَأَهْلِكْ بِإِهْلَاكِهِمْ ﴾ د نهی جواب دې.

قوله: ﴿ وَإِنَّا عَلَىٰ أَن نُّرِيَكَ مَا نَعِدُهُمْ لَقَادِرُونَ ﴾ ان حرف مشبه بالفعل ناصب، نا ضمیر ئې اسم، علی حرف جار نری فعل سره د فاعل ك مفعول اول ماموصوله نعدهم جمله صله شو، د موصول دپاره موصول سره د صله نه په تاویل د مصدر مفعول ثانی، نری فعل د خپل فاعل او دواړو مفعولونو سره مجرور شو د پاره د علی جار، جار مجرور متعلق مقدم شو، د قادرون، قادرون د خپل متعلق سره د ان خبر شو.

قوله: ﴿ أَيِ الْخَصْلَةِ ﴾ په معنی د خصلت مفسر علام ﴿ خصلة ﴾ مقدر منلو سره اشاره اوکړه چه ﴿ التی ﴾ د خصلة موصوف مقدر صفت دې او السیئة د ادفع مفعول به دې، د عبارت تقدیر داسې دې: ادفع السیئة بالخصلة التی هی احسن.

قوله: ﴿ مِنَ الصَّفْحِ وَالْإِعْرَاضِ عَنْهُمْ ﴾ کښې من بیانیه دې او الصفح الخ د خصلة بیان دې.

قوله: أَذَاهُمْ إِيَّاكَ.......د السيئة تفسير دې.

قوله: ﴿ هَمَزَاتِ ﴾ دا د همز جمع ده، شيطاني وسوسې، نفساني خطرات.

قوله: ﴿ حَتَّى ﴾ ابتدائيه ده يعنى كلام مابعد د كلام ماقبل نه جدا دې، د دې كلام مقصد د مرګ نه روستو د كفارو حال بيانول دي.

قوله: ﴿ الْجَمْعِ لِلتَّعْظِيمِ ﴾ مفسر علام په دې عبارت سره د يوسوال مقدر جواب وركول غواړي، سوال دا دې چه الله پاك كوم چه مخاطب دې واحد دې لهذا رب ارجعني سره خطاب كول پكار وو؟ جواب دا دې چه تعظيما د جمع صيغه راوړلې شوې ده، دويم جواب دا دې چه ﴿ ارجعون ﴾ كښې واو په تكرار باندې دلالت كولو دپاره راوړلې شوې دې، اى ارجعنى ارجعنى لكه چه د الله پاك په قول ﴿ القيا في جهنم ﴾ كښې الف د تكرار دپاره دې يعنى د الق الق په معنى دې، دريم جواب دا دې چه د جمع صيغه د ملائكو په اعتبار سره ده

قوله: ﴿ وَرَائِهِمْ ﴾ هم د لاحدهم طرف ته راجع دې د جمع ضمير په اعتبار د معنى دې ځكه چه (احدهم) په معنى د ﴿ كلهم ﴾ چه په ماقبل كښې د واحد ضميرونه په اعتبار د لفظ دي

قوله: ﴿ فَلَا أَنْسَابَ بَيْنَهُمْ ﴾ انساب د نسب جمع ده په معنى د خپلولئ، رشته دارئ، دلته يو سوال پيدا كيږي چه د هغوى ترمينځه خو نسب او خپلولي يو ثابت شوې امر دې د هغې نفى څنګه صحيح ده؟ مفسر علام د ﴿ يتفاخرون ﴾ اضافه كولو سره د دې سوال جواب وركړو چه د نسب نفى كول مقصود نه دى بلكه د دې صفت كوم چه محذوف دې د هغې نفى مقصود ده، او هغه ﴿ يتفاخرون ﴾ دې، يعنى په دنيا كښې چه ئې په كوم نسب او خپلولئ باندې فخر كولو هغه ټول به ختم شى، ځكه چه د ميدان محشر د سختې او دهشت د وجې نه به په يو بل رحم او تعلقات ختم شى، هم د دې سختې منظر كشى كولو سره په بل آيت كريمه كښې فرمائى : ﴿ يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ مِنْ أَخِيهِ وَأُمِّهِ وَأَبِيهِ وَصَاحِبَتِهِ وَبَنِيهِ ﴾

قوله: ﴿ وَلَا يَتَسَاءَلُونَ عَنْهَا ﴾ اى الانساب خلاف حالهم فى الدنيا اى ذلك خلاف حالهم.

قوله: ﴿ لِمَا يَشْغَلُهُمْ ﴾ دا د ولا يتسائلون دپاره علت دې، يعنى دا عدم تساؤل به د هغوى په خپلو حالاتو كښې د مشغوليدو د وجې نه وى.

قوله: ﴿ فِي بَعْضِ مَوَاطِنِ الْقِيَامَةِ الخ ﴾ مفسر علام په دې عبارت سره د يو اعتراض جواب وركړې دې، اعتراض دا دې چه د دې آيت كريمه نه معلوميږى چه د قيامت په ورځ باندې به خپل مينځ كښې هيڅ تپوس نه شى كولې، او په يو بل آيت كريمه كښې دى ﴿ وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ ﴾ ؟ د جواب خلاصه دا ده چه د قيامت په ورځ كښې به

اوقات او حالات مختلف وی، بعض حالاتو کښې چه کله ویره او دهشت غالب وی نو څوک به هم د چا تپوس نه کوی او چه کله لږ سهولت پیدا شی نو خپل مینځ کښې به خیر خیریت تپوسی او د طبیعت تپوس به کوی، مطلب دا دې چه د نفخهٔ اولی په وخت به دهشت غالب وی نو څوک به د چا تپوس نه کوی، او د نفخهٔ ثانیه نه پس چه کله یو قسم سهولت راشی نو خپل مینځ کښې به یو بل اوپیژنی او تپوس پوښتنه به هم کوی.

**قوله:** ﴿مَوَازِين﴾ یا خو د عظمت د وجې نه جمع راوړلې شوې ده یا د موزون د مختلف النوع کیدو د وجې نه جمع راوړلې شوې ده یعنی د هر قسم عمل وزن کولو دپاره به جدا جدا قسم تله وی لکه چه په دنیا کښې مختلف قسمونو لره تللو دپاره مختلف قسم تلې وی، ﴿بالحسنات﴾ کښې باء سببیه ده یعنی د حسنات د ثقیل او دروند والی د وجې نه

**قوله:** ﴿فهم﴾ دا اشاره ده چه ﴿فی جهنم﴾، د ﴿هم﴾ مبتدأ محذوف خبر دې، امام زمخشری وئیلې دی چه ﴿فی جهنم خالدون﴾ د ﴿الذین خسروا انفسهم﴾ نه بدل دې.

**قوله:** ﴿تَلْفَح﴾ جمله مستانفه ده.

**قوله:** ﴿شَمَّرَتْ﴾ د شمر معنی ده لستونړی وغیره اینغښتل.

**قوله:** ﴿وَالسُّفْلَى عَنْ أَسْنَانِهِمْ﴾ نه مخکښې فعل محذوف دې، ای استرخت السفلی.

**قوله:** ﴿قَالَ تعالی: لَهُمْ بِلِسَانِ مَالِكٍ﴾ ... مفسر علام په دې عبارت سره د یو سوال جواب ورکړې دې، سوال دا دې چه د الله پاک د ﴿قال کم لبثتم﴾ په ذریعه سره کفارو ته خطاب کول دا د هغوی سره د کلام کولو متقاضی دې، حال دا چه په بل آیت کریمه کښې دی ﴿ولا یکلمهم الله﴾ دا د کلام نه کولو متقاضی دې په دواړو کښې تعارض معلومیږی؟ جواب دا دې چه د کوم آیت کریمه نه کلام نه کول معلومیږی د هغې مطلب دې چه براه راست او بغیر د واسطې نه به د هغوی سره کلام نه فرمائی، او کوم آیت نه چه د کفارو سره کلام فهمیږی هلته د مالک په واسطې سره کلام کول مقصود دی.

**قوله:** ﴿لَوْ أَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ مِقْدَارَ لُبْثِكُمْ﴾ دلته ﴿لو﴾ امتناعیه دې او د ﴿تعلمون﴾ مفعول محذوف دې، مفسر علام ﴿مقدار لبثکم﴾ مقدر منلو سره د حذف مفعول طرف ته اشاره اوکړه، د ﴿لو﴾ جواب هم محذوف دې چه د هغې طرف ته مفسر علام په ﴿کان قلیلا﴾ وئیلو سره د حذف جواب طرف ته اشاره اوکړه: ای کان قلیلا فی علمکم

**قوله:** ﴿أَفَحَسِبْتُمْ﴾ کښې همزه په محذوف باندې داخل ده او فا عاطفه ده، د عبارت تقدیر داسې دې چه ﴿اجهلتم فحسبتم﴾ استفهام د توبیخ دپاره دې.

**قوله:** ﴿عبثا﴾ یا خو مصدر په معنی د اسم فاعل د حال په موقع کښې واقع کیدو د وجې نه منصوب دې. ای عابثین یا بیا خلقنا دپاره مفعول له دې.

قوله: ﴿لاَلِحِكْمَةٍ﴾ دا د عبث تفسير دي.
قوله: ﴿أَنَّكُمْ إِلَيْنَا لَا تُرْجَعُونَ﴾ عطف په ﴿انما خلقناکم﴾ باندې دې.
قوله: ﴿لابل﴾ دا يې د جواب استفهام په طور مقدر منلي دی.
قوله: ﴿هوالسرير الحسن﴾ په بعض نسخو کښې دا عبارت نشته.
قوله: ﴿صِفَةٌ كَاشِفَةٌ لَا مَفْهُومَ لَهَا﴾ د مفسر علام مقصد په دې عبارت سره يو اعتراض دفع کول دی، د اعتراض خلاصه داده چه ﴿وَمَنْ يَدْعُ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ لَا بُرْهَانَ لَهُ بِهِ﴾ نه معلوميږی چه کوم کس د الله پاک سره په عبادت کښې غير الله لره شريک کړی نو هغه بغير برهان او بغير سند نه دې، د دې نه د مفهوم مخالف په طور معلوميږی چه څوک صرف د غير الله عبادت کوی نو هغه سره برهان او سند دې حال دا چه دا خبره غلط ده؟
جواب: د جواب خلاصه دا ده چه ﴿آخر﴾ د ﴿الها﴾ صفت کاشفه دې کوم چه صرف د وضاحت دپاره وی د هغې د مفهوم مخالف اعتبار نه وی، البته د صفت مخصصه د مفهوم مخالف اعتبار وی، صفت کاشفه خو صرف د تاکيد دپاره وی لکه چه د الله پاک قول ﴿طائر يطير بجناحيه﴾ کښې يطير بجناحيه د طائرصفت کاشفه دې کوم چه صرف د تاکيد دپاره دې څکه چه هر يو مارغه په وزرو الوځی، بيا دا وينا چه هغه مارغه چه په وزرو الوځی څه معنی؟ لهذا ﴿وَمَنْ يَدْعُ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ لَا بُرْهَانَ لَهُ بِهِ﴾ نه د مفهوم مخالف په طور دا استدلال کول چه که يو کس د غير الله بندګی اشتراکا اوکړی نو هغه به بې سنده او بې برهانه وی او که افرادا د غير الله بندګی اوکړی نو هغه به باسند او برهان والا وی صحيح نه ده؟
قوله: ﴿فَإِنَّمَا حِسَابُهُ عِنْدَ رَبِّهِ﴾ دا جواب شرط دې.
قوله: ﴿إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الْكَافِرُونَ﴾ د جمهورو په نزد د همزه په کسرې سره جمله مستانفه ده او په دې کښې د علت معنی ده.

## [۲٤] سورة النور

سُوْرَةُ النُّوْرِ مَدَنِيَّةٌ وَهِيَ اثْنَتَانِ أَوْ اربع وستون آية

سورۃ نور مدنی دې، او په دې کښې ۶۲ يا ۶۴ آيتونه دی.

[اياتونه: ۱-۱۰]

بسم الله الرحمن الرحيم هَذِهِ ﴿سُورَةٌ أَنْزَلْنَاهَا وَفَرَضْنَاهَا﴾ مُخَفَّفَة وَمُشَدَّدَة لِكَثْرَةِ الْمَفْرُوض فِيهَا ﴿وَأَنْزَلْنَا فِيهَا آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ﴾ وَاضِحَات الدَّلَالَات ﴿لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ﴾ بِإِدْغَام التَّاء الثَّانِيَة فِي الذال تتعظون ﴿الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي﴾ أَيْ غَيْر الْمُحْصَنَيْنِ لِرَجْمِهِمَا بِالسُّنَّةِ وَأَلْ فِيمَا ذُكِرَ مَوْصُولَة وَهُوَ مُبْتَدَأ وَلِشَبَهِهِ بِالشَّرْطِ دَخَلَتْ الْفَاء فِي خَبَره وَهُوَ ﴿فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ﴾ ضَرْبَة يُقَال جَلَدَهُ ضَرَبَ جِلْده وَيُزَاد عَلَى ذَلِكَ بِالسُّنَّةِ

تغريب عام وَالرَّقِيق عَلَى النِّصف مِمَّا ذُكِرَ (وَلَا تَأْخُذْكُم بِهِمَا رَأْفَةٌ فِي دِينِ اللَّهِ) أيْ حُكْمه بِأَنْ تتركوا شيئا مِنْ حَدِّهِمَا (إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ) أيْ يَوْم الْبَعْث فِي هَذَا تَحْرِيض عَلَى مَا قَبْل الشَّرْط وهو جَوَابه أَوْ دَالّ عَلَى جَوَابه (وَلْيَشْهَدْ عَذَابَهُمَا) الْجَلْد (طَائِفَةٌ مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ) قيل ثلاثة وقيل أربعة عدد شهود الزنى (الزَّانِي لَا يَنكِحُ) يَتَزَوَّج (إِلَّا زَانِيَةً أَوْ مُشْرِكَةً وَالزَّانِيَةُ لَا يَنكِحُهَا إِلَّا زَانٍ أَوْ مُشْرِكٌ) أيْ الْمُنَاسِب لِكُلٍّ مِنْهُمَا مَا ذُكِرَ (وَحُرِّمَ ذَٰلِكَ) أيْ نِكَاح الزَّوَانِي (عَلَى الْمُؤْمِنِينَ) الأخيار نزل ذَلِكَ لَمَّا هَمَّ فُقَرَاء الْمُهَاجِرِينَ أَنْ يَتَزَوَّجُوا بَغَايَا الْمُشْرِكِينَ وَهُنَّ مُوسِرَات لِيُنْفِقْنَ عَلَيْهِمْ فَقِيلَ التَّحْرِيم خَاصّ بِهِمْ وَقِيلَ عَامّ وَنُسِخَ بِقَوْلِهِ تَعَالَى (وَأَنكِحُوا الْأَيَامَىٰ مِنكُمْ) (والذين يرمون المحصنات) العفيفات بالزنى (ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ) عَلَى زِنَاهُنَّ بِرُؤْيَتِهِمْ (فَاجْلِدُوهُمْ) أيْ كُلّ وَاحِد مِنْهُمْ (ثَمَانِينَ جَلْدَةً وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً) فِي شَيْء (أَبَدًا وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ) لإتيانهم كَبِيرَة (إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِن بَعْدِ ذَٰلِكَ وَأَصْلَحُوا) عملهم (فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ) لَهُمْ قَذْفهمْ (رَّحِيمٌ) بهم بإلهامه التَّوْبَة فِيهَا يَنْتَهِي فِسْقهمْ وَتُقْبَل شَهَادَتهمْ وَقِيلَ لَا تُقْبَل رُجُوعًا بِالِاسْتِثْنَاءِ إلَى الْجُمْلَة الْأَخِيرَة (والذين يرمون أزواجهم) بالزنى (وَلَمْ يَكُن لَّهُمْ شُهَدَاءُ) عَلَيْهِ (إِلَّا أَنفُسُهُمْ) وَقَعَ ذَلِكَ لِجَمَاعَةٍ مِنْ الصَّحَابَة (فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ) مُبْتَدَأ (أَرْبَعُ شَهَادَاتٍ) نُصِبَ عَلَى الْمَصْدَر (بِاللَّهِ إِنَّهُ لَمِنَ الصَّادِقِينَ) فِيمَا رَمَى بِهِ زَوْجَته من الزنى (وَالْخَامِسَةُ أَنَّ لَعْنَتَ اللَّهِ عَلَيْهِ إِن كَانَ مِنَ الْكَاذِبِينَ) في ذلك وَخَبَر الْمُبْتَدَأ تَدْفَع عَنْهُ حَدّ الْقَذْف (ويدرأ) اي يدفع (عنها العذاب) حد الزنى الذي ثبت بشهادته (أَن تَشْهَدَ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ بِاللَّهِ إِنَّهُ لَمِنَ الْكَاذِبِينَ) فيما رماها به من الزنى (وَالْخَامِسَةَ أَنَّ غَضَبَ اللَّهِ عَلَيْهَا إِن كَانَ مِنَ الصَّادِقِينَ) فِي ذَلِكَ (وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ) بِالسَّتْرِ فِي ذَلِكَ (وَأَنَّ اللَّهَ تَوَّابٌ) بِقَبُولِهِ التَّوْبَة فِي ذَلِكَ وَغَيْره (حَكِيمٌ) فِيمَا حَكَمَ بِهِ فِي ذَلِكَ وَغَيْره لَبَيَّنَ الْحَقّ فِي ذَلِكَ وَعَاجَلَ بالعقوبة من يستحقها

**ترجمه:** دا يو سورة دې چه مونږ نازل كړې دې او (د دې احكام) مو فرض كړى دى په تخفيف او تشديد سره (مشدد سره اشاره كثرتِ احكام طرف ته ده)، ځكه چه په دې صورت كښ احكام په كثرت سره دى او مونږ په دې سورت كښ صفا صفا احكام نازل كړى دى كوم چه واضح الدلالت دى د دې دپاره چه تاسو ئې ياد اوساتئ تاء ثانيه لره په ذال كښ مدغم كولو سره، د دې دپاره چه تاسو نصيحت حاصل كړئ، زناكاره زنانه او زناكار سړې كوم چه واده كړې نه وى، ځكه چه د واده كړى سړى او ښځې دپاره رجم ثابت دې، او الف لام (الزانية او الزانى) كښ موصوله (په معنى د الذى) دې، او هغه مبتدأ ده او د دې د مشابه بالشرط كيدو د وجې نه په دې په خبر باندې فاء داخله ده او هغه (خبر) (فاجلدوا) دې هريو د دوى نه سل كوړې اووهئ يعنى د كوړې په وهلو سره ئې اووهئ جلده ضرب جلده او زياتولې به كولې شى په دې باندې د يو كال جلا وطن كولو د حديث د وجې نه او غلام ته به د دې ذكر شوې سزا نيمه سزا وركولې شى. او تاسو ته دې په دې دواړو باندې د الله پاک په معامله

کښې لږ رحم هم نه دی راتلل پکار په داسې طریقه چه د هغوی په سزا کښې څه پریږدئ که تاسو په الله پاک او د قیامت په ورځ باندې ایمان لرئ یعنی په یوم بعث باندې، په دې کښې ترغیب ورکول دی ماقبل شرط باندې او هغه جواب شرط دې یا دال علی جواب الشرط دې او د دې دواړو د سزا په وخت دې د کوړو ورکولو په وخت دې د مسلمانانو یو جماعت حاضر شی وئیلې شوی دی چه درې دې وی او وئیلې شوې دی چه څلور دې وی کوم چه د زنا د ګواهانو تعداد دې، زانی سړې سوا د زناکارې یا مشرکې زنانه د بل چا سره عقد نکاح نه کوی او زناکاره زنانه هم سوا د زناکار یا مشرک سړی نه بل چا سره نکاح نه کوی یعنی په دواړو کښې د هر یو سره مناسب هم هغه دې کوم چه ذکر شو او دا یعنی د زناکارو نکاح په نیکانو مومنانو باندې حرام کړې شوې ده دا (حکم) هغه وخت نازل شو چه کله فقراء مهاجرینو اراده اوکړه چه د زوانی مشرکاتو سره نکاح اوکړی حال دا چه هغه مالدارې وې د دې دپاره چه په هغوی باندې خرچ اوکړی، وئیلې شوی دی چه تحریم هم د دوی سره خاص دې او وئیلې شوی دی چه عام دې (مګر) د الله پاک په دې قول ﴿ وانکحوا الایامی منکم ﴾ سره منسوخ کړې شو او کوم خلق چه تهمت لګوی په پاکو زنانو باندې د زنا کولو، او د هغوی په زنا باندې په خپلو سترګو سره لیدلې څلور ګواهان پیش نکړی نو اووهئ د هغوی نه هر یو لره اتیا کوړې او د هغوی شهادت کله هم مه قبلوئ په هیڅ معامله کښې او دا خلق فاسقان دی، خو کوم خلق چه د دې نه روستو توبه اوکړی، او د خپلو اعمالو اصلاح اوکړی، نو الله پاک ورته ضرور مغفرت کوی د هغوی د بهتان لګولو او د هغوی په زړونو کښې د توبې الهام کولو سره رحمت کولو والا دې نو د دې توبې په ذریعه د هغوی فسق ختم شی او د هغوی شهادت به قبلولې شی او وئیلې شوی دی چه نه به شی قبلولې، استثناء لره جمله اخیره (یعنی اولئك هم الفاسقون) طرف ته راجع کولو سره او هغه خلق کوم چه په خپلو بیبیانو باندې د زنا تهمت اولګوی او د هغوی سره په زنا باندې د خپل ځان نه سوا ګواهان نه وی نو د داسې سړی د ګواهئ دا صورت دې چه څلور کرته په الله پاک باندې قسم اوکړی او ګواهی ورکړی چه یقینا زه رشتینې یم او د قذف معامله د صحابه کرامو یو جماعت ته راپیښه شوې وه ﴿ شهادة احدهم ﴾ مبتدأ ده (اربع شهادات) د مصدریت په وجه باندې (یعنی د مفعول کیدو) د وجې نه منصوب دې، د زنا په هغه تهمت کښې کوم چه ما په خپله ښځه لګولې دې او په پنځم کرت دا اوائی چه په ما دې د الله پاک لعنت وی که زه په دې تهمت کښې دروغژن یم او د مبتدأ خبر ﴿یدفع عنه حد القذف﴾ (محذوف دې) او د دې زنانه نه سزا داسې لرې کیدې شی یعنی هغه د زنا حد کوم چه د هغې د خاوند په شهادت سره ثابت شوې دې چه هغه څلور کرته قسم خوړلو سره اوائی چه بیشکه دا سړې د دې زنا په تهمت کښې کوم چه هغه لګولې دې دروغژن دې او په پنځم کرت دا اوائی چه

په ما دې د الله پاک غضب وی که دا سرې په دې تهمت لګولو کښې رشتينې وی او که دا خبره نه وې چه په تاسو د الله پاک فضل او د هغه کرم دې په دې معامله کښې پرده ساتلو سره او دا چه الله پاک په دې معامله کښې او په نورو معاملو کښې توبه قبلولو سره ډیر زیات توبه قبلونکې دې (کنې تاسو به په ډیرو ضررونو کښې اخته شوی وئ) او حکمت والا دې په هغه حکم کښې کوم چه هم هغه په دې معامله کښې او په نورو معاملاتو کښې صادر کړې دې په دې معامله کښې ئې حق بیان اوفرمائیلو او د سزا مستحق ته ئې په سزا کښې تندی اوکړه.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** ﴿ هَٰذِهِ سُورَةٌ أَنزَلْنَاهَا وَفَرَضْنَاهَا ﴾ د هذه په تقدیر سره ئې اشاره اوکړه چه سورة د مبتدأ محذوف خبر دې، د هذه مرجع اګرچه په سابق کښې مذکور نه دې خو چونکه ذکر ته نزدې دې کوم چه د حاضر په حکم کښې دې لهذا د اضمار قبل الذکر شبه نه لازمیږی. (جمل) او دا هم صحیح ده چه سورة مبتدأ وی او جمله انزلناها د دې صفت او هم د دې صفت د وجې نه د نکره مبتدأ جوړیدل صحیح دی، ددې په خبر کښې دوه صورتونه دی اول دا چه ﴿ الزانیة والزانی ﴾ جمله خبر وی، لکه چه د ابن عطیه هم دا خیال دې او دویم صورت دا دې چه خبر محذوف وی ای فما یتلی علیکم بعد سورة، د انزلنا تکرار د کمالِ اهتمام او غایتِ اعتناء د وجې نه دې.

**قوله:** ﴿ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ ﴾ نه مراد د وحدانیت دلائل دی، د دې سورة په شروع کښې ئې د څو حدودو او احکامو ذکر اوفرمائیلو اود سورة په آخر کښې ئې د توحید دلائل ذکر کړی دی.

**قوله:** ﴿ فَرَضْنَاهَا ﴾ سره د احکاماتو طرف ته اشاره ده او.

**قوله:** ﴿ وَأَنزَلْنَا فِيهَا آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ ﴾ سره دلائلو طرف ته اشاره ده.

**قوله:** ﴿ یتذکرون ﴾ اول تا د قریب المخرج کیدو د وجې نه په دال سره بدله شوه بیا دال په ذال سره بدل شو او ذال په ذال کښې مدغم کړې شو، یذکرون شو.

**قوله:** ﴿ الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي ﴾ مبتدأ ده او د دې خبر محذوف دې، ای فما یتلی علیکم بعد یا فاجلدوا خبر دې او د مبتدأ متضمن په معنی د شرط کیدو د وجې نه خبر باندې فا داخل ده، الزانیة والزانی کښې الف لام چونکه په معنی د الذی اسم موصول دې چه د هغې د وجې نه مبتدأ متضمن معنی د شرط لره دې چه کله مبتدأ متضمن معنی د شرط لره وی نو خبر متضمن معنی د جزا لره وی چه د هغې د وجې نه په خبر باندې فاء داخلیږی.

**قوله:** ﴿ فِي هَٰذَا تَعْرِيضٌ عَلَىٰ مَا قَبْلَ الشَّرْطِ الخ ﴾ د الله پاک قول ﴿ ان کنتم تؤمنون بالله ﴾ په دې آیت کریمه کښې ماقبل شرط یعنی ﴿ ولا تأخذکم بهما رافة ﴾ باندې تیارول او آماده کول دی یعنی که په تاسو کښې ایمان شته نو د الله پاک د احکامو په پاره کښې د چا رعایت مه

کوئ او نه په چا باندې رحم او ترس کوئ، اهل کوفه ولاتأخذکم بهما رافة(الاية)لره جزا مقدم منی او اهل بصره جزا محذوف منی او ذکر شوې آیت په جزاء باندې دال منی، کوم الفاظ چه په جزاء باندې دال دی هم هغه به جزاء محذوف وی.

قوله: ﴿وَلْيَشْهَدْ﴾امر د استحباب دپاره دې.

قوله: ﴿ قيل ثلاثة وقيل أربعة ﴾ذکر شوی دواړه اقوال د امام شافعی رحمه الله دی، یعنی د کوړو ورکولو په وخت دې درې یا څلور کسان موجود وی، امام مالک رحمه الله فرمائی چه څلور یا ددې نه زیات کیدل پکار دی، امام نخعی او مجاهد او امام حمد رحمهم الله هم دغه شان فرمائی چه کم از کم دوه کسان کیدل پکار دی.

قوله: ﴿ الْمُنَاسِبَ لِكُلٍّ مِنْهُمَا ﴾دا د هغه خلقو دپاره زجر او توبیخ ده کوم چه د زناکارو سره د نکاح اراده لری.

قوله: ﴿ الْأَيَامَىٰ ﴾د ﴿ ايم ﴾جمع ده، نا واده کړې زنانه ته وائی که باکره وی اوکه ثیبه وی او بغیر ښځې خاوند ته هم وئیلې شی.

قوله: ﴿ والذين يرمون المحصنات ﴾مبتدأ ده، ددې درې خبرونه دی، ①فاجلدوهم ثمانين جلدة ②ولا تقبلوا لهم شهادة ابدا، ③واولئك هم الفاسقون.

قوله: ﴿ إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا ﴾د امام شافعی رحمه الله په نزد دا استثناء د ماقبل دواړو جملو یعنی ﴿لا تقبلوا لهم شهادة ﴾او ﴿ اولئك هم الفاسقون ﴾نه ده لهذا که يو عفيف يا عفيفه باندې د زنا تهمت لګونکې په رشتینې زړه سره توبه اوکړی او د بیا دپاره د خپلو اعمالو اصلاح اوکړی نو د دې حضراتو په نزد به د هغه سړی ائینده شهادت هم قبلولې شی او فسق به ئې هم ختم شی، د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد استثناء د آخری جملې یعنی اولئك هم الفاسقون طرف ته راجع ده، لهذا د زنا د تهمت لګونکی فسق خو به ختم شی خو د هغه شهادت به نه قبلیږی.

قوله: ﴿ وَقَعَ ذَٰلِكَ لِجَمَاعَةٍ مِنَ الصَّحَابَةِ ﴾یعنی په ښځه باندې د زنا د تهمت لګولو معامله د درېو صحابه کرامو سره راپیښه شوې ده. ① هلال بن امیه، ② عویمر العجلانی، ③ عاصم بن عدی. (جمل)

قوله: ﴿ فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ ﴾د دې د مرفوع کیدو درې صورتونه کیدې شی. ①دا چه مبتدأ وی او خبر ئې محذوف وی اګر چه مقدم وی لکه ﴿ فعليهم شهادة احدهم ﴾یا موخر وی لکه ﴿ فشهادة احدهم كائنة ﴾... ②د مبتدأ محذوف خبر وی ای فالواجب شهادة احدهم. ③د فعل مقدر د فاعل کیدو د وجې نه به مرفوع وی، ای فليكفى شهادة احدهم، ④ څلورم ترکیب د

مبتدأ خبر کیدو هغه هم دي کوم چه علامه محلي اختيار کړي دي يعنی فشهادة احدهم اربع شهادات مبتدأ، تدفع حد القذف ددې خبر دې، خو قاضي ثناء الله دا صورت په قيل سره ذکر کړي دي کوم چه د ضعف طرف ته اشاره ده، جمهورو ﴿ اربع ﴾لره مصدريت يعنی د مفعول کيدو د وجې نه منصوب لوستلي دي او عامل د مصدر شهادة دې، او ﴿ اربع ﴾د موصوف محذوف صفت دي ای فشهادة احدهم شهادة اربعة شهادات بالله.

**خلاصه** فشهادة احدهم.... مصدر د خپل فاعل طرف ته مضاف دي د عبارت تقدير به داسې وی ای يشهد احدهم د دې د مرفوع کيدو دوه صوترونه دی. ①د مبتدأ محذوف خبر وی. د عبارت تقدير به داسې وی ﴿ فالواجب شهادة احدهم ﴾ ②فشهادة احدهم... مبتدأ او د دې خبر محذوف، د عبارت تقدير به داسې وی. ﴿ فعليهم شهادة احدهم ﴾

**قوله** اربع د مبتدأ د خبر کيدو د وجې نه په رفع سره هم لوستلې شوې دي فشهادة احدهم مبتدأ اربع شهادات بالله د دې خبر، په دې صورت کښې د حذف ضرورت نشته.

د جمهورو په نزد اربع نصب سره هم لوستلې شوې دې، ای ان يشهد احدهم اربع شهادات.

**قوله** ﴿بالله﴾د بصريانو په نزد شهادات سره متعلق دي د قرب د وجې نه او د کوفيانو به نزد شهادة سره متعلق ځکه چه هغه مقدم دې.

**قوله**: ﴿ انه ﴾دا د شهادة يا شهادات معمول دې ای يشهد علی انه صادق علی لره حذف کړې شو د ﴿ان ﴾فتحه په کسرې سره بدل کړې شو، او عامل د لام تاکيد د وجې نه د عمل نه منع کړې شو.

**قوله**: ﴿ والخامسة ﴾مبتدأ ده او ﴿ ان لعنة الله عليه ﴾ددې خبر دې، د عبارت تقدير دا دې ﴿والشهادة الخامسة ان لعنة الله عليه﴾

**قوله**: ﴿ان تشهد﴾دا د ﴿ يدرء ﴾فاعل دې

**قوله**: ﴿ وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ ﴾دا د ﴿ لولا ﴾جواب محذوف دې، ای ﴿لولا فضل الله لفضحكم او هلكتم﴾

**[ايا تونه: ۱۱ - ۲۰]**

﴿إِنَّ الَّذِينَ جَاءُوا بِالْإِفْكِ﴾ اَسْوَأ الْكَذِب عَلَى عَائِشَة رَضِيَ اللّٰه عَنْهَا أُمّ الْمُؤْمِنِينَ بِقَذْفِهَا ﴿عُصْبَةٌ مِّنكُمْ﴾ جَمَاعَة مِنَ الْمُؤْمِنِينَ قَالَتْ حَسَّان بْن ثَابِت وَعَبْد اللّٰه بن ابي ومسطح وحمنة بِنْت جَحْش ﴿لَا تَحْسَبُوهُ﴾ أَيُّهَا الْمُؤْمِنُونَ غَيْر الْعُصْبَة ﴿شَرًّا لَّكُم بَلْ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ﴾ يَأْجُرُكُمْ اللّٰه بِهِ وَيُظْهِر بَرَاءَة عَائِشَة وَمَنْ جَاءَ مَعَهَا مِنْهُ وَهُوَ صَفْوَان فَإِنَّهَا قَالَتْ كُنْت مَعَ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَة بَعْد مَا أُنْزِلَ الْحِجَاب فَفَرَغَ مِنْهَا وَرَجَعَ وَدَنَا مِنَ الْمَدِينَة وَآذَنَ بِالرَّحِيلِ لَيْلَة فَمَشَيْت وَقَضَيْت شَأْنِي وَأَقْبَلْت إِلَى الرَّحْل فَإِذَا عِقْدِي انْقَطَعَ هُوَ بِكَسْرِ الْمُهْمَلَة الْقِلَادَة فَرَجَعْت أَلْتَمِسهُ وَحَمَلُوا هَوْدَجِي هُوَ مَا يُرْكَب فِيهِ عَلَى بَعِيرِي يَحْسَبُونَنِي فِيهِ وَكَانَتْ

النساء خفافًا إنّما يَأكُلْنَ العُلْقَة هُوَ بِضَمِّ المُهْمَلَة وَسُكُون اللّام مِن الطَّعَام اي القليل ووجدت عقدي وجئت بعد ما سَارُوا فجَلَسْت فِي المَنْزِل الّذِي كُنْت فِيهِ وَظَنَنْت أَنّ القَوْم سَيَفْقِدُونِي فَيَرْجِعُون إلَيَّ فغَلَبَتْنِي عَيْنَايَ فنِمْت وَكَانَ صَفْوَان قد عَرَّسَ مِن وَرَاء الجَيْش فادّلَجَ هُمَا بِتَشْدِيدِ الرَّاء وَالدَّال أيْ نَزَلَ مِن آخر اللّيْل لِلاسْتِرَاحَةِ فَسَارَ مِنْهُ فَأَصْبَحَ فِي مَنْزِله فرَأَى سَوَاد إنْسَان نائِم أيْ شَخْصه فعَرَفَنِي حِين رآنِي وَكَانَ يَرَانِي قَبْل الحِجَاب فاسْتَيْقَظْت بِاسْتِرْجَاعِهِ حِين عَرَفَنِي أيْ قَوْله إنَّا لِلّهِ وَإِنَّا إلَيْهِ رَاجِعُون فخَمَّرْت وَجْهِي بِجِلْبَابِي أيْ غَطَّيْته بِالمُلاءَةِ وَاَللّهِ مَا كَلَّمَنِي بِكَلِمَةٍ وَلا سَمِعْت مِنْهُ كَلِمَة غَيْر اسْتِرْجَاعه حِين أَنَاخَ رَاحِلَته وَوَطِئَ عَلَى يَدهَا فرَكِبْتهَا فانطَلَقَ يَقُود بِي الرَّاحِلَة حَتّى اتينا الجيش بعد ما نَزَلُوا مُوغِرِينَ فِي نَحْر الظَّهِيرَة أيْ مِن أوْغَرَ وَاقِفِينَ فِي مَكَان وَغْر مِن شِدَّة الحَرّ فهَلَكَ مَنْ هَلَكَ وَكَانَ الّذِي تَوَلَّى كِبْره مِنْهُمْ عَبْد الله بن أُبَيّ بن سلول اه قولها رواه الشيخان قال تعالى ﴿لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُم﴾ أيْ عَلَيْهِ ﴿مَّا اكْتَسَبَ مِنَ الْإِثْمِ﴾ فِي ذَلِكَ ﴿وَالَّذِي تَوَلَّىٰ كِبْرَهُ مِنْهُمْ﴾ أيْ تَحَمَّلَ مُعْظَمه فبَدَأَ بِالخَوْضِ فِيهِ وَأَشَاعَهُ وَهُوَ عَبْد الله بن أُبَيّ ﴿لَهُ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ هُوَ النَّار فِي الآخرة ﴿لَّوْلَا﴾ هَلّا ﴿إِذْ﴾ حِين ﴿سَمِعْتُمُوهُ ظَنَّ الْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بِأَنفُسِهِمْ﴾ أيْ ظَنَّ بَعْضهمْ بِبَعْضٍ ﴿خَيْرًا وَقَالُوا هَٰذَا إِفْكٌ مُّبِينٌ﴾ كَذِب بَيِّن فِيهِ اِلْتِفَات عَن الخِطَاب أيْ ظَنَنْتُمْ أيّهَا العُصْبَة وقلتم ﴿لولا﴾ هلا ﴿جاءُوا﴾ أيْ العُصْبَة ﴿عَلَيْهِ بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ﴾ شَاهَدُوهُ ﴿فَإِذْ لَمْ يَأْتُوا بِالشُّهَدَاءِ فَأُولَٰئِكَ عِندَ اللَّهِ﴾ أيْ فِي حُكْمه ﴿هُمُ الْكَاذِبُونَ﴾ فِيهِ ﴿وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ فِي الدُّنْيَا﴾ والآخرة ﴿لَمَسَّكُمْ فِيمَا أَفَضْتُمْ﴾ أيّهَا العُصْبَة أيْ خُضْتُمْ ﴿فِيهِ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ فِي الآخرة ﴿إِذْ تَلَقَّوْنَهُ بِأَلْسِنَتِكُمْ﴾ أيْ يَرْوِيه بَعْضكُمْ عَن بَعْض وَحُذِفَ مِن الفِعْل إحْدَى التَّاءَيْنِ وَإِذْ مَنْصُوب بِمَسَّكُمْ أوْ بِأَفَضْتُمْ ﴿وَتَقُولُونَ بِأَفْوَاهِكُم مَّا لَيْسَ لَكُم بِهِ عِلْمٌ وَتَحْسَبُونَهُ هَيِّنًا﴾ لا إثْم فِيهِ ﴿وَهُوَ عِندَ اللَّهِ عَظِيمٌ﴾ فِي الإثم ﴿وَلَوْلَا﴾ هَلّا ﴿إِذْ﴾ حِين ﴿سَمِعْتُمُوهُ قُلْتُم مَّا يَكُونُ﴾ ما ينبغي ﴿لَنَا أَن نَّتَكَلَّمَ بِهَٰذَا سُبْحَانَكَ﴾ هو للتعجب هنا ﴿هَٰذَا بُهْتَانٌ﴾ كذب ﴿عَظِيمٌ﴾ ﴿يَعِظُكُمُ اللَّهُ﴾ يَنْهَاكُمْ ﴿أَن تَعُودُوا لِمِثْلِهِ أَبَدًا إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ﴾ تَتَّعِظُونَ بِذَلِكَ ﴿وَيُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ﴾ فِي الأمْر وَالنَّهْي ﴿وَاللَّهُ عَلِيمٌ﴾ بِمَا يَأْمُر بِهِ وَيَنْهَى عَنْهُ ﴿حَكِيمٌ﴾ فيه ﴿إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَن تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ﴾ بِاللِّسَانِ ﴿فِي الَّذِينَ آمَنُوا﴾ بِنِسْبَتِهَا إلَيْهِمْ وَهُمْ العُصْبَة ﴿لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا﴾ بِحَدّ القَذْف ﴿وَالْآخِرَةِ﴾ بِالنَّار لِحَقّ الله ﴿وَاللَّهُ يَعْلَمُ﴾ انْتِفَاءَهَا عَنْهُمْ ﴿وَأَنتُمْ﴾ أيّهَا العُصْبَة بِمَا قُلْتُمْ مِن الإفْك ﴿لَا تَعْلَمُونَ﴾ وُجُودهَا فِيهِمْ ﴿وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ﴾ أيّهَا العُصْبَة ﴿وَرَحْمَتُهُ وَأَنَّ اللَّهَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ﴾ بِكُمْ لَعَاجَلَكُمْ بِالعُقُوبَةِ

ترجمه: بې شکه هغه خلق چا چې دا ډير غټ بهتان تړلې دې يعنی په ام المؤمنين حضرت عائشه رضی الله عنها باندې بهتان لګولو سره ئې بدترين دروغ وئيلی دی هغه په تاسو کښې يو جماعت دې يعنی د مومنانو يو جماعت دې (د اهل افک په تعيين کښې) سيدنا عائشه رضی الله عنها فرمائی هغه حسان بن ثابت او عبدالله بن ابی او مسطح او حمنه بنت جحش دی، د بهتان لګونکو د جماعت نه علاوه اې مومنانو! تاسو دا بهتان په خپل حق کښې بد مه ګڼړئ بلکه

هغه ستاسو په حق کښې غوره دي الله پاک به تاسو ته د دې په عوض کښې اجر درکړی او د سيده عائشه رضي الله عنها او د هغې سره د يوځائې راتلونکی يعنی د صفوان (ابن معطل) به د تهمت نه براءت ظاهر کړی، سيده عائشه رضي الله عنها (واقعه بيانولو سره) اوفرمائيل چه زه په يوه غزوه کښې د نزول حجاب نه پس د رسول الله ﷺ سره اوم، پس کله چه نبی عليه السلام د غزوه نه فارغ شو او واپس شو او مدينې ته نزدې اورسيدو او د شپې ئې د سفر اعلان اوکړو نو زه د قضاء حاجت دپاره لاړم او د حاجت نه د فراغت نه پس د کجاوې طرف ته متوجه شوم نو ناڅاپه ماته معلومه شوه چه زما اميل شليدو سره چرته غورځيدلې دې ﴿ عقد ﴾ د عين مهمله په کسرې سره اميل ته وئيلې شی نو زه د اميل د لټون دپاره واپس لاړم، حال دا دې چه خلقو زما هودج (ډولئ) په دې خيال چه زه پکښې موجود يم زما په اوښ باندې کيخودله، هودج هغه کجاوې او ډولئ ته وئيلې شی چه په هغې کښې سوريدلې شی او زنانه چونکه سپکې وې ځکه چه خوراک به ئې کم کولو.

﴿علقة﴾ د عين مهمله په ضمې او د لام په سکون سره لږ خوراک ته وئيلې شی (دلته داسې اوشوه) چه زما اميل ملاوشو، او د اهل قافله د روانيدو نه پس زه (خپل ځائې) ته واپس راغلم، پس زه هم هغه ځائې ته واپس راتلو سره کيناستم او زما غالب گمان وو چه کله خلق ما بيا نه مومی نو زما طرف ته به واپس راځی، پس ما باندې د خوب غلبه راغله چه د هغې د وجې نه اوده شوم، او صفوان بن معطل به په لښکر پسې شاته د شپې په آخر کښې قيام کولو پس صفوان د شپې په آخری حصه کښې روان شو نو د سحر په وخت کښې زما منزل ته راورسيدلو.

**قوله:** ﴿ عَرَّسَ ﴾ او ﴿ادَّلَجَ﴾ د را او دال په تشديد سره (عرس معنی په آخر شپه کښې د استراحت دپاره قيام کول ادلج په معنی د روانيدلو) نو هغه د يو اوده انسان بدن اوليدو پس زه چه ئې اوليدم نو وې پيژندلم ځکه چه هغه د حجاب د حکم نازليدو نه مخکښې ليدلې اوم، پس زما د پيژندگلو په وخت د هغه د استرجاع يعنی ﴿ انا لله وانا اليه راجعون ﴾ لوستلو د وجې نه زه بيداره شوم نو ما په خپل څادر سره خپل مخ پټ کړو، والله نه خو هغه ما سره څه خبرې اوکړې او نه ما د هغه نه سوا د استرجاع نه څه خبره واوريدله، هغه خپله اوښه کينوله، او د هغې په لاس ئې زور کړو (چه زر او نه دريږی) چه کله پرې زه سوره شوم نو هغې زما د اوښې واړې اونيولې او روان شو تردې چه مونږ لښکر ته اورسيدو، پس ددې نه چه هغه خلقو د غرمې په وخت په سخته گرمئ کښې په گرم ځائې کښې ايسار شوې وو، موغرين د اوغرنه مشتق دې يعنی د سختې گرمئ په وخت په گرم ځائې کښې ايساريدونکی وو، پس زما په باره کښې چه څوک هلاکيدل هغه هلاک شو او چا چه په دې معامله کښې ډيره حصه واخستله هغه عبدالله بن ابی بن سلول وو، د سيده

عائشه ﷺ کلام پوره شو ، دا روایت شیخینو نقل کړې دې. قال الله تعالیٰ په دوی کښې په هریو سړی باندې دومره گناه ده څومره چه هغه په دې معامله کښې کړی دی او د هغه سړی دپاره چا چه په دوی کښې (په دې معامله کښې) د ټولو نه زیاته حصه اخستلې ده یعنی ډیر په شوق نې حصه واخستله په داسې طریقه چه په دې معامله کښې نې لټول اوکړل او دې ته نې شهرت ورکړو، هغه عبد الله بن ابی دې د هغه دپاره لوئې عذاب دې او هغه په آخرت کښې اور دې چه کله خلقو دا بهتان واوریدلو نو مسلمانانو سړو او زنانوځپل مینځ کښې د یو بل دپاره ښه گمان ولې اونکړو؟ او ولې ئې او نه وئیل چه دا ښکاره دروغ دی؟ په دې کښې د خطاب نه (د غیبت طرف ته) التفات دې (ظن المومنون الخ) ظننتم وقلتم ایها العصبة ... په معنی کښې دې او دې خلقو په دې بهتان باندې څلور عینی گواهان پیش ولې نه کړل؟ چه کله دې خلقو گواهان پیش نه کړل نو دا خلق د الله پاک په نزد یعنی د هغه په حکم کښې په دې معامله کښې دروغژن دی او که په تاسو باندې په دنیا او آخرت کښې د الله پاک فضل او کرم نه وې نو په کوم شغل کښې چه تاسو نتوتی وئ یعنی دا خبرې مو رااتولې د هغې وجې نه به تاسو ته آخرت کښې سخت عذاب در رسیدلې وې چه کله تاسو دا بهتان په خپلو ژبو باندې اړولو راړولو یعنی یو بل ته مو بیانولو. فعل (یعنی تلقونه) کښې د دوؤ تاءگانو نه یوه تاء حذف کړې شوې ده او ﴿اذ﴾ د ﴿مسکم﴾ یا د ﴿افضتم﴾ د وجې نه منصوب دې او تاسو د خپلې خُلې نه داسې خبره راوېستله چه د هغې په باره کښې تاسو ته مطلق علم نه وو او تاسو دا یوه معمولی خبره گنړله چه په دې کښې به هیڅ گناه نه وی حال دا چه هغه د الله پاک په نزد د گناه په اعتباره سره ډیره لویه خبره وه او کله چه تاسو دا خبره اوریدلې وه نو داسې مو ولې او نه وئیل چه مونږ دپاره مناسب نه دی چه داسې خبره د خُلې نه راوباسو معاذ الله دا خو ډیر لوئې بهتان دې سبحانك د تعجب دپاره دې، الله پاک تاسو ته نصیحت کوی یعنی منع کوی مو چه بیا داسې حرکت اونه کړئ که تاسو مومنان یئ نو دا نصیحت قبول کړئ او الله پاک ستاسو دپاره د امر او نهی صفا صفا احکام بیانوی او الله پاک چه د څه حکم کوی او د څه نه چه منع کوی د هغې په باره کښې ډیر پوهیدلو والا او ډیر حکمت والا دې کوم خلق چه دا غواړی چه په مسلمانانو کښې بې حیائی خوره شی دغه بې حیائی د هغوی طرف ته منسوب کولو سره (او د هغې د چرچا کولو) یو وړوکې شان جماعت دې د هغه خلقو دپاره په دنیا کښې دردناک عذاب دې د قذف د وجې نه د حد په صورت کښې او په آخرت کښې د اور عذاب د الله حق د وجې نه الله پاک د هغوی نه د بې حیائۍ انتفاء لره ښه پیژنی او (اې تهمت لگونکی جماعته تاسو ددې بې حیائۍ وجود په هغوی کښې نه پیژنئ او که اې خلقو په تاسو باندې د الله پاک فضل او کرم نه وې او هغه دا چه الله پاک ډیر شفقت کونکې او ډیر رحم کونکې دې نو هغه به ستاسو فورا مواخذه کړې وې.

..................

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: ﴿ إِنَّ الَّذِينَ جَاءُوا بِالْإِفْكِ ﴾ د دې ځائي نه د افک متعلق د اتلسو آیتونو تذکره شروع کیږي ﴿ افك ﴾ په لغت کښ واپس کولو او بدلولو ته وئیلې شي، بدترین دروغ کوم چه حق لره د باطل سره او باطل لره په حق سره بدل کړي، پاک متقي لره فاسق او فاسق لره متقي جوړ کړي هم دې دروغو ته افک وئیلې شي ﴿ عصبة ﴾ مختصر جماعت ته وئیلې شي، د تعداد په باره کښ مختلف اقوال دي.

قوله: ﴿ لَا تَحْسَبُوهُ ﴾ د دې مخاطب رسول الله ﷺ، ابوبکر، عائشه او صفوان رضي الله عنهم دي، او مقصود هغوی ته تسلي ورکول دي.

قوله: ﴿ وَمَنْ جَاءَ مَعَهَا مِنْهُ ﴾ نه صفوان بن معطل السلمي رضي الله عنه مراد دې او د ﴿ منه ﴾ ضمير مرجع افک دې او جار مجرور د براءت سره متعلق دی.

قوله: ﴿ في غزوة ﴾ مراد غزوهٔ بني مصطلق ده کومې ته چه مریسیع هم وئیلې شي د صحیح او راجح قول مطابق ۵ هجري کښ راپیښه شوې وه.

قوله: ﴿ بعد ما انزل الحجاب ﴾ د حجاب نه مراد آیت حجاب یعنی ﴿ واذا سالتموهن متاعا فاسئلوهن من وراء حجاب ﴾ مراد دې.

قوله: ﴿ قد عرس ﴾ تعريس، النزول في آخر الليل للاستراحة.

قوله: ﴿ ادلج ﴾ او ادلاج د شپې په آخري حصه کښ سفر کول.

قوله: ﴿ هما بتشديد الراء والدال ﴾ عرس وادلج په باره کښ ئې د لف نشر په طور اشاره اوکړه چه په عرس کښ را او ادلج کښ دال دواړه مشدد دي.

قوله: ﴿ نَزَلَ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ لِلِاسْتِرَاحَةِ ﴾ دا د ﴿ عرس ﴾ تفسير دې او.

قوله: ﴿ فَسَارَ مِنْهُ ﴾ دا د ﴿ ادَّلَجَ ﴾ تفسير دې منه اي آخر الليل... د سيده عائشه رضي الله عنها د الفاظو د تشريح دپاره مفسر علام په مينځ کښ د تشريحي الفاظو اضافه فرمائيلې ده کنې اصل عبارت داسې دې ﴿ كان صفوان قد عرس من وراء الجيش فادلج منه فاصبح في منزلي ﴾

قوله: ﴿ مُوغِرِينَ ﴾ دا د ﴿ وغر ﴾ نه مشتق دې ﴿ وغر ﴾ سختې ګرمۍ ته وئيلې شي.

قوله: ﴿ بِالْمُلَاءَةِ ﴾ هغه څادر کوم چه بدن لره پټ کړي ﴿ موغرين ﴾ اي داخلين في شدة الحر.

قوله: ﴿ فِي نَحْرِ الظَّهِيرَةِ ﴾ د غرمې وخت.

قوله: ﴿ ابن سلول ﴾ دا عبدالله بن ابي د مور نوم دې.

قوله: ﴿ لِكُلِّ امْرِئٍ ﴾ مفسر علام په ﴿ عليه ﴾ سره تفسير کولو کښې اشاره اوکړه چه لام په معنی د ﴿ على ﴾ دې.

قوله: ﴿ لَوْلَآ ﴾ ﴿ هَلَّا إِذْ سَمِعْتُمُوهُ ﴾: دا ﴿ لولا ﴾ توبيخيه دې ځکه چه په ماضی باندې داخل دې، (لولا) په درې قسمه دې. ① چه کله په ماضی باندې داخل وی نو دا توبيخيه دې ② او چه کله په مضارع باندې داخل وی نو تحضيضيه وی ③ او چه کله په جمله اسميه باندې داخل وی نو امتناعيه وی، دلته ﴿ لولا ﴾ شپږ ځايه استعمال شوې دې اول، ثانی او رابع توبيخيه دی په دې وجه د جواب ضرورت نشته او دريم او پنځم او شپږم شرطيه (امتناعيه) دې (جواب ته ئې ضرورت شته) خو په دريم او شپږم مقام باندې جواب مذکور دې او په پنځم مقام باندې جواب محذوف دې. (صاوی)

قوله: ﴿ بِأَنفُسِهِمْ ﴾ ای ابناء جنسهم فی الایمان... يعنی د خپل ايمانی رونړو په باره کښ مو ښه گمان ولې اونکړو؟ ﴿ فيه التفات عن الخطاب الی الغيبة اذ سمعتموه ﴾ مطابق ﴿ ظن المومنون ﴾ او ﴿ قالوا ﴾ په ځائې ﴿ ظننتم ﴾ او ﴿ قلتم ﴾ پکار وو، په ذکر شوې دواړو صيغو کښ دوه قسم التفات شوې دې ① اول خو د حاضر نه د غائب طرف ته ② او دويم د ضمير نه د اسم ظاهر طرف ته، د دې التفات مقصد په توبيخ کښ مبالغه کول دی، په دې طريقه چه د ايمان تقاضه دا ده چه ته د خپلو رونړو په باره کښ حسن ظن لرلې، پاتې لا دا چه تاسو تهمت او عيب لگول شروع کړل تاسو له خو د خپلو رونړو داسې دفاع کول پکار وو ځنگه چه تاسو خپله دفاع کوئ، د عبارت تقدير دا دې ﴿ لولا اذ سمعتموه ظننتم ايها المومنون والمومنات باخوانهم خيرا وهلا قلتم هذا افك مبين ﴾

قوله: ﴿ لولا جاءُوا عَلَيْهِ ﴾ دا د کلام سابق تتمه هم کيدې شی يعنی مومنانو سړو او مومنانو ښځو د افتراء کونکو نه په افتراء باندې څلور گواهان ولې طلب نه کړل؟ يعنی د بهتان د اوريدلو نه پس چه ځنگه خپل مينځ کښ حسن ظن ضروری وو هم دغه شان د افتراء کونکو نه د څلورو گواهانو مطالبه ضروری وه، ای وقالوا هلا جاء الخائضون باربعة شهداء علی ماقالوا...بل صورت دا هم کيدې شی چه لولا جاءوا الاية جمله استينافيه وی، په دې صورت کښ به د ﴿ قالوا ﴾ محذوف منلو ضرورت نه وی.

قوله: ای فی حکمه: د دې عبارت د اضافې مقصد د يوې شبهې جواب دې، شبهه دا ده چه افتراء کونکو ته د الله پاک په نزد کاذب په دې وجه اوئيلې شو چه هغوی څلور عينی گواهان پيش نه کړې شو حال دا چه که هغوی څلور عينی گواهان هم پيش کړې وې نو بيا به هم دروغژن وې؟ جواب دا دې چه د گواهان د نه پيش کولو په صورت کښ د شريعت په حکم سره دروغژن وو او که هغوی څلور گواهان پيش کړې وې نو په دې وخت کښ به په حکم شرعی کښ په ظاهره باندې صادق وې، الله پاک ته چونکه ظاهرا او باطنا د هغوی تکذيب منظور وو په دې وجه ئې ترې د څلورو گواهانو مطالبه اوکړه چه د هغوی

دروغ ښه ښکاره شي.
**قوله:** ﴿ وَلَوۡلَا فَضۡلُ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡ ﴾ کښې ﴿ لولا ﴾ امتناعيه دې د دې جواب ﴿ لمسكم ﴾ دې.
**قوله:** ﴿ فيما أَفَضۡتُمۡ ﴾ في په معنى د سبب دې اى بسبب ما افضتم او ما موصوله ده مراد ترې حديث د افک دې اى لمسكم بسبب الذى خضتم فيه وهو الافك... او ما مصدريه هم کيدې شي اى لمسكم بسبب خوضكم فيه اى في الافك.
**قوله:** ﴿ ولا اذ سمعتموه قلتم ﴾ د إذ قلتم ظرف مقدم دې يعنى ستاسو دپاره دا مناسب وو چه په بهتان اوريدلو سره مو وئيلى وو چه داسې خبرې کول زمونږ دپاره بالکل مناسب نه دى.
**قوله:** ﴿ ينهاكم أن تعودوا..الخ ﴾ ددې عبارت د اضافې مقصد دې خبرې طرف ته اشاره کول دى چه يعظكم فعل متعدى په عن سره معنى لره متضمن دې، بيا عن حذف کړې شوې دې أى ينهاكم عن العود أن مصدريه دې چه ددې په وجه تعودوا په معنى د عودٌ دې.
**قوله:** ﴿ تتعظون بذلك ﴾ دا جمله د مؤمنون صفت دې يعنى که چرې تاسو نصيحت قبلونکى مؤمنان يئ نو داسې حرکت به بيا نه کوئ، جواب دشرط محذوف دې أى كنتم مؤمنين فلا تعودوا لمثله.
**قوله:** ﴿ بألسنة ﴾ ددې اضافه کولو مقصد دادې چه افتراء کونکو ته دا خبره خوښه وه چه فحش خبرې په ژبه باندې جارى وى دا نه چه په حقيقت کښې اشاعت وى.
**قوله:** ﴿ بنسبتها إليهم ﴾ دإليهم نه مراد حضرت عائشه او حضرت صفوان دى او وهم عصبة نه مراد هغه خلق دې چاچه د فحش خبرو اشاعت خوښولو.
**قوله:** ﴿ لَهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ د ﴿ ان ﴾ خبر دې.
**قوله:** ﴿ وَأَنَّ ٱللَّهَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴾ عطف په ﴿ فضل الله ﴾ باندې دې او ﴿ لعاجلكم ﴾ د ﴿ لولا ﴾ جواب دې، معطوف د معطوف عليه سره مبتدأ ده او ددې خبر محذوف دې چه هغه موجودان دې.
**قوله:** ﴿ لِكُلِّ ٱمۡرِيٕ مِّنۡهُم ﴾ اى عليه... په لكل لكنى لام په معنى د على دې لكه چه مفسر علام اشاره کړې ده يعنى د تهمت لګونکى جماعت هر يو فرد ته د هغه د جرم مقدار سزا ملاويږى په پورته آيت کريمه کښې د ﴿ خائضين في الافك ﴾ بيان وو، په دې آيت کريمه کښې هغوى ته نهو طريقو سره تعيير او توبيخ کړې شوې دې، په دې کښې اولنۍ په ﴿ لولا اذ سمعتموه ﴾ دې او نهم ﴿ يا ايها الذين آمنوا لا تتبعوا خطوات الشيطان الخ ﴾ دې، لولا توبيخيه دې او د اذ ظن ظرف دې.
**قوله:** ﴿ أي ظننتم أيها العصبة وقلتم ﴾ د دې عبارت مقصد دا بيانول وو چه په آيت کريمه کښې د خطاب نه د غيبت طرف ته التفات کړې شوې دې او ﴿ ظن ﴾ په معنى د ظننتم او

تاواپه معنی د قلتمردي.

**قوله:** (لولا) هلاجاءوا: په دې کښې دوه احتمالات دی ① اول دا چه دا جمله مستانفه ده نو د ماقبل سره به ئې هیڅ تعلق نه وی او ② که دا کلام د ماقبل تتمه ده نو د (لولا) د لاندې به داخل وی او مطلب به دا وی چه د دې افتراء او بهتان په اوریدلو سره غوره ګمان کول پکار وو او په دې افتراء باندې د څلور عینی ګواهانو مطالبه کول پکار وو.

**قوله:** (وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ) یعنی دا طوفان خو داسې اوچت شوې وو چه معلومه نه وه چه څوک به په دې طوفان کښې ګیریدل خو الله پاک صرف په خپل فضل او کرم سره په تاسو کښې د توبه کونکو توبه قبوله کړه او بعض ئې په شرعی حد جاری کولو سره پاک کړل او کوم چه زیات خبیث وو هغوی ته ئې یو قسم مهلت ورکړو، د هغوی دپاره په آخرت کښې سخت عذاب دې.

**[ایاتونه:۲۱-۲۶]**

(يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّبِعُوا خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ) أَيْ طُرُقَ تَزْيِينِه (وَمَنْ يَتَّبِعْ خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ فَإِنَّهُ) أَيِ الْمُتَّبَعَ (يَأْمُرُ بِالْفَحْشَاءِ) أَيِ الْقَبِيحِ (وَالْمُنْكَرِ) شَرْعًا بِاتِّبَاعِهَا (وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُه مَا زَكٰى مِنْكُمْ) أَيُّهَا الْعُصْبَةُ بِمَا قُلْتُمْ مِنَ الْإِفْكِ (مِنْ أَحَدٍ أَبَدًا) أَيْ مَا صَلُحَ وَطَهُرَ مِنْ هٰذَا الذَّنْبِ بِالتَّوْبَةِ مِنْهُ (وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يُزَكِّي) يُطَهِّرُ (مَنْ يَشَاءُ) مِنَ الذَّنْبِ بِقَبُولِ تَوْبَتِه مِنْهُ (وَاللّٰهُ سَمِيعٌ) بِمَا قُلْتُمْ (عَلِيمٌ) بِمَا قَصَدْتُمْ (ولا يأتل) يحلف (أولو الْفَضْلِ) أَصْحَابُ الْغِنَى (مِنْكُمْ وَالسَّعَةِ أَنْ) لَا (يُؤْتُوا أُولِي الْقُرْبٰى وَالْمَسَاكِينَ وَالْمُهَاجِرِينَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ) نَزَلَتْ فِي أَبِي بَكْرٍ حَلَفَ أَنْ لَا ينفق على مسطح وهو بن خالته مِسْكِينٌ مُهَاجِرٌ بَدْرِيٌّ لَمَّا خَاضَ فِي الْإِفْكِ بَعْدَ أَنْ كَانَ يُنْفِقُ عَلَيْهِ وَنَاسٌ مِنَ الصَّحَابَةِ أَقْسَمُوا أَنْ لَا يَتَصَدَّقُوا عَلٰى مَنْ تَكَلَّمَ بِشَيْءٍ مِنَ الْإِفْكِ (وَلْيَعْفُوا وَلْيَصْفَحُوا) عَنْهُمْ فِي ذٰلِكَ (أَلَا تُحِبُّونَ أَنْ يَغْفِرَ اللّٰهُ لَكُمْ وَاللّٰهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ) لِلْمُؤْمِنِينَ قَالَ أَبُو بَكْرٍ بَلٰى أَنَا أُحِبُّ أَنْ يَغْفِرَ اللّٰهُ لِي وَرَجَعَ إِلٰى مِسْطَحٍ مَا كَانَ ينفقه عليه (إن الذين يرمون) بالزنى (الْمُحْصَنَاتِ) العفائف (الْغَافِلَاتِ) عَنِ الْفَوَاحِشِ بِأَنْ لَا يَقَعَ فِي قُلُوبِهِنَّ فِعْلُهَا (الْمُؤْمِنَاتِ) بِاللّٰهِ وَرَسُولِه (لعنوا في الدنيا والآخرة ولهم عذاب عظيم) (يَوْمَ) نَاصِبُه الِاسْتِقْرَارُ الَّذِي تَعَلَّقَ بِه لَهُمْ (تَشْهَدُ) بِالْفَوْقَانِيَّةِ وَالتَّحْتَانِيَّةِ (عَلَيْهِمْ أَلْسِنَتُهُمْ وَأَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُمْ بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ) مِنْ قَوْلٍ وَفِعْلٍ وَهُوَ يوم القيامة (يَوْمَئِذٍ يُوَفِّيهِمُ اللّٰهُ دِينَهُمُ الْحَقَّ) يُجَازِيهِمْ جَزَاءَهُ الْوَاجِبَ عَلَيْهِمْ (وَيَعْلَمُونَ أَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ الْمُبِينُ) حَيْثُ حَقَّقَ لَهُمْ جَزَاءَهُ الَّذِي كَانُوا يَشُكُّونَ فِيهِ وَمِنْهُمْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أُبَيٍّ وَالْمُحْصَنَاتُ هُنَا أَزْوَاجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يُذْكَرْ فِي قَذْفِهِنَّ تَوْبَةٌ وَمَنْ ذُكِرَ فِي قَذْفِهِنَّ أَوَّلَ سُورَةِ التَّوْبَةِ غَيْرُهُنَّ (الْخَبِيثَاتُ) مِنَ النِّسَاءِ وَمِنَ الْكَلِمَاتِ (لِلْخَبِيثِينَ) مِنَ النَّاسِ (وَالْخَبِيثُونَ) مِنَ النَّاسِ (لِلْخَبِيثَاتِ) مِمَّا ذُكِرَ (وَالطَّيِّبَاتُ) مِمَّا ذُكِرَ (لِلطَّيِّبِينَ) مِنَ النَّاسِ (وَالطَّيِّبُونَ) مِنْهُمْ (لِلطَّيِّبَاتِ) مِمَّا ذُكِرَ أَيِ اللَّائِقُ

بالخبيث مثله وبالطيب مثله ﴿أُولَٰئِكَ الطَّيِّبُونَ وَالطَّيِّبَاتُ مِنَ النِّسَاءِ وَمِنْهُمْ عَائِشَةُ وَصَفْوَانُ ﴿مُبَرَّءُونَ مِمَّا يَقُولُونَ﴾ أي الخبيثون والخبيثات من الرجال والنساء فيهم ﴿لَهُم﴾ للطيبين والطيبات ﴿مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ﴾ في الجنة وقد افتخرت عائشة بأشياء منها أنها خلقت طيبة ووعدت مغفرة ورزقا كريما

ترجمه: اې ايمان والو د شيطان په قدمونو باندې مه ځئ يعنى د شيطان په لارو باندې مه ځئ يعنى د هغه په تلبيس او دهوكه كښې مه راځئ، او كوم كس چه د شيطان په نقش قدم باندې ځى نو هغه يعنى په شيطانى لارو باندې تلونكې د شيطان په نقش قدم باندې د تلو د وجې نه د فحش يعنى د بې حيائى او شرعا نامعقول كارونو حكم كوى، كه په تاسو باندې د الله پاک فضل او د هغه كرم نه وې نو اې خلقو په تاسو كښې به كله هم څوک پاک صفا شوې نه وې په دې وجه چه تاسو بهتان اوترلو، يعنى د توبې په ذريعه به نه د دې ګناه نه صحيح شوې وې او نه به پاک شوې وې، خو الله پاک چه چا لره غواړى پاک صفا كوى ئې د ګناه نه د هغه توبې لره قبلولو سره او الله پاک ستاسو خبرو لره اوريدونكې او ستاسو په ارادو باندې پوهه دې او قسم دې نه كوى په تاسو كښې فضل والا يعنى مالدار او وسعت لرونكى چه هغوى به خپلوانو او مسكينانو او د الله پاک په لاره كښې هجرت كونكو ته نه وركوى دا آيت كريمه د سيدنا ابوبكر صديق ﷺ په باره كښې نازل شوې وو هغه قسم خورلې وو چه د خپل ترور خوئى مسكين، مهاجر، بدرى سيدنا مسطح ﷺ باندې به خرچ نه كوى ځكه چه هغه په دې افتراء كښې حصه اخستلې وه حال دا چه ابوبكر ﷺ به په هغه باندې خرچ كولو (يعنى د هغه كفالت به ئې كولو) او به صحابه كرامو كښې بعض نورو خلقو هم قسم كړې وو چه هغوى به په داسې خلقو باندې هيڅ قسم صدقه نه كوى چا چه لره هم د افک په معامله كښې په ژبې سره حصه اخستلې وه هغوى له پكار دى چه په دې معامله كښې هغوى معاف كړى او بخښنه اوكړى آيا تاسو دا خبره نه خوښوئ چه الله پاک ستاسو قصور معاف كړى او الله پاک د مومنانو دپاره بخښونكې او مهربانه دې سيدنا ابوبكر صديق ﷺ اوفرمائيل بيشكه زه دا خبره خوښوم چه الله پاک ما معاف كړى پس په مسطح چه ئې كوم خرچ كولو هغه ئې بيا جارى كړو او كوم كسان چه په داسې زنانو باندې د زنا تهمت اولګوى كومې چه پاكې دى او د فحش خبرو نه بې خبر دى په داسې طريقه چه د هغوى په زړونو كښې كله د بې حيائئ كولو خيال هم نه راځى او الله پاک او د هغه په رسول ﷺ باندې ايمان لرونكې دى نو په داسې خلقو باندې په دنيا او آخرت كښې لعنت كولې شى او د هغه خلقو دپاره به په هغه ورځ باندې لوئې عذاب وى، په كومه ورځ به چه د هغوى ژبې او د هغوى لاسونه او د هغوى خپې د هغوى د اعمالو ګواهى وركوى كه اعمال قولى وى يا فعلى او هغه به د قيامت ورځ وى د (يوم) ناصب (استقر) (محذوف) دې چه د هغې سره (لهم) متعلق دې (يشهد) تاء او ياء دواړو سره دى هغه ورځ به الله پاک هغوى ته پوره پوره واجبى بدله وركړى يعنى چه كومه جزاء په هغوى

باندې واجب ده هغه به ورته پوره پوره ورکړی او هغوی ته به معلومه شی چه الله پاک صحیح فیصله کونکې (خبرې لره) ښکاره کونکې دې په داسې طریقې سره چه د هغوی په وړاندې به د هر هغه عمل جزا متحقق شی چه په هغې کښې هغوی شک کولو (هغه شک کونکو)، کښې عبدالله بن ابی هم دې، او د (محصنات) نه دلته د رسول الله ﷺ ازواج مطهرات دی، د ازواج مطهرات د قذف په سلسله کښې ئې د توبې ذکر نه دې فرمائیلې. او د سورت په ابتداء کښې چه د چا د قذف په سلسله کښې د توبې ذکر کړې شوې دې هغه د ازواج مطهرات نه علاوه دی، گنده زنانه او گنده خبرې د گنده خلقو سره لائق دی او گنده سړی د گنده زنانو سره لائق دی.

قوله: (مما ذکر) ای للنساء او کلمات ... او په مذکورین کښې پاکې زنانه د پاکو سړو لائق دی او په مذکورین کښې پاک سړی د پاکو زنانو لائق دی یعنی د خبیث لائق خبیث دې او د پاک لائق پاک دې او دا پاک سړې او پاکې زنانه او هم په دوی کښې سیده عائشه او سیدنا صفوان رضی الله عنهما دی. د هغه خبرو نه پاک دی کومې خبرې چه دوی کوی یعنی دا خبیث سړې او زنانه د دې حضراتو په باره کښې کوم بکواس کوی د هغوی د پاره یعنی د دې پاکو سړو او زنانو د پاره مغفرت او جنت کښې د عزت روزی ده او سیده عائشه رضی الله عنها به په څو خیزونو باندې فخر کولو یو په هغې کښې دا هم ده چه هغه پاکه پیدا کړې شوې ده او هغې سره د مغفرت او د عزت والا روزئ وعده کړې شوې ده.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّبِعُوا خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ) (خطوة) د طاء په ضمې او سکون سره په معنی د قدم.

قوله: (وَمَنْ يَتَّبِعْ خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ) شرط دې او جواب محذوف دې د عبارت تقدیر داسې دې. (من يتبع خطوات الشيطان فلا يفلح)

قوله: (فانه) د جواب شرط علت دې.

قوله: (أي الْمُتَّبِع) د دې عبارت د اضافې مقصد دا بیانول دی چه د (ه) ضمیر مرجع (من) دې مراد هغه کس دې کوم چه د شیطان اتباع کوی بعض حضراتو (انه) ضمیر شیطان طرف هم راجع کړې دې هم دا ظاهره ده او ضمیر شان هم کیدې شی.

قوله: (باتباعهما) د یامر سره متعلق دې (ما زکی منکم) د لولا جواب دې (من الافك) کښې (من) بیانیه دې او (من احد) کښې (من) زائده دې او (احد) بمحل د فاعل کښې دې.

قوله: (ولا یأتل) ابتلاء (افتعال) نه نهی مضارع واحد مذکر غائب قسم دې نه خوری په اصل کښې (یأتلی) وو د (لا) ناهیه د وجې نه (ی) اوغورځیدله، (یأتل) شو، ماده د

(الي) په معنى د قسم.

قوله: ﴿ أُصْحَابِ الْفِقْىِ ﴾ دا د اولوالفضل تفسير دي مفسر علام دا تفسير د تفسير بغوى په اتباع كښې كړي دي كه د فضل تفسير ئي فضل فى الدين سره كړې وې نو زياته به غوره وه ځكه چه د سيدنا ابوبكرصديق ﷺ په فضيلت باندې استدلال كيدې شو، د اولوالفضل تفسير په اصحاب الغنى سره ه كولو كښې بغير د وجې نه تكرار هم لازميږي ځكه چه والسعة هم خوشحالى او مالي وسعت مراد دې.

قوله: ﴿ أَنْ لَا يُؤْتُوا ﴾ ... ﴿ لا ﴾ سره د دلالت د مقام د وجې نه حذف كړې شوې ده، لكه چه (تفتؤاتذكريوسف) كښې ﴿ لا ﴾ مقدر دې او دا د حرف جر په تقدير سره دې اى على ان لايؤتوا.

قوله: ﴿ وناس ﴾ د دې عطف په ابى بكرباندې دې اى نزلت فى ابى بكروناس من الصحابة ... د يوم ناصب محذوف دې، تقدير د عبارت داسې دې وعذاب عظيم كائن لهم يوم تشهد الخ.

سوال: ﴿ عذاب ﴾ د مصدر په ذريعه منصوب ولې نه دې؟

جواب: د مصدر د عمل د بصريانو په نزد شرط دا دې چه مصدر موصوف واقع نه وى او دلته د ﴿ عظيم ﴾ موصوف واقع دې لهذا عذاب مصدر ناصب نه شى كيدې.

قوله: ﴿ الْخَبِيثَاتُ لِلْخَبِيثِينَ ﴾ (الاية) جمله مستانفه ده.

قوله: ﴿ مِنَ النِّسَاءِ وَمِنَ الْكَلِمَاتِ ﴾ د مفسر علام مقصد په دې عبارت سره دا بيانول دى چه د ﴿ الخبيثات ﴾ دوه تفسيرونه منقول دى يو ﴿ النساء ﴾ او دويم ﴿ الكلمات ﴾ او واو په معنى د ﴿ او ﴾ دې.

قوله: ﴿ لَهُمْ مَغْفِرَةٌ ﴾ دا جمله مستانفه هم كيدې شى او دا هم كيدې شى چه د ﴿ اولئك ﴾ د خبر ثانى كيدو د وجې نه په محل د رفع كښې وى او خبر اول ﴿ مبرءون ﴾ وى.

**[اياتونه: ۲۷ - ۳۴]**

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّى تَسْتَأْنِسُوا﴾ أَيْ تَسْتَأْذِنُوا ﴿وَتُسَلِّمُوا عَلَى أَهْلِهَا﴾ فَيَقُول الْوَاحِد السَّلَام عَلَيْكُمْ أَأَدْخُلُ كَمَا وَرَدَ فِي حَدِيث ﴿ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ﴾ مِنْ الدُّخُول بِغَيْرِ اسْتِئْذَان ﴿لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ﴾ بِإِدْغَامِ التَّاء الثَّانِيَة فِي الذَّال خَيْرِيَّته فَتَعْمَلُونَ بِهِ ﴿فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا فِيهَا أَحَدًا﴾ يَأْذَن لَكُمْ ﴿فَلَا تَدْخُلُوهَا حَتَّى يُؤْذَنَ لَكُمْ وَإِنْ قِيلَ لَكُمُ﴾ بَعْد الِاسْتِئْذَان ﴿ارْجِعُوا فَارْجِعُوا هُوَ﴾ أَيْ الرُّجُوع ﴿أَزْكَى﴾ أَيْ خَيْر ﴿لَكُمْ﴾ مِنْ الْقُعُود عَلَى الْبَاب ﴿وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ﴾ مِنْ الدُّخُول بِإِذْنٍ وَغَيْر إِذْن ﴿عَلِيمٌ﴾ فَيُجَازِيكُمْ عَلَيْهِ ﴿لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ مَسْكُونَةٍ فِيهَا مَتَاعٌ﴾ أَيْ مَنْفَعَة ﴿لَكُمْ﴾ بِاسْتِكْنَانٍ وَغَيْره كَبُيُوتِ الرُّبُط وَالْخَانَات الْمُسَبَّلَة ﴿وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ﴾ تُظْهِرُونَ ﴿وَمَا تَكْتُمُونَ﴾ تُخْفُونَ فِي دُخُول غَيْر بُيُوتكُمْ مِنْ قَصْد صَلَاح أَوْ غَيْره وَسَيَأْتِي أَنَّهُمْ إِذَا دَخَلُوا بُيُوتهمْ يُسَلِّمُونَ على انفسهم ﴿قُلْ لِلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ

أَبْصَارِهِمْ﴾ عَمَّا لَا يَحِلُّ لَهُمْ نَظَرُه وَمِنْ زَائِدَة ﴿وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ﴾ عَمَّا لَا يَحِلُّ لَهُمْ فِعْلُه بِهَا ﴿ذَٰلِكَ أَزْكَىٰ﴾ أي خيرٌ ﴿لَهُمْ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا يَصْنَعُونَ﴾ بالأبصار والفروج فيجازيهم عليه ﴿وَقُل لِّلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ﴾ عَمَّا لا يحل لهن نظره ﴿وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ﴾ عَمَّا لا يحل لهن فعله بها ﴿وَلَا يُبْدِينَ﴾ يُظْهِرْنَ ﴿زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا﴾ وهو الوجه والكفان فيجوز نظره لأجنبيٍّ إن لم يخف فتنة في أحد وجهين والثاني يحرم لأنه مظنة الفتنة ورُجِّح حسمًا للباب ﴿وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ﴾ أي يسترن الرؤوس والأعناق والصدور بالمقانع ﴿وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ﴾ الخفية وهي ما عدا الوجه والكفين ﴿إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ﴾ جمع بعل أي زوج ﴿أَوْ آبَائِهِنَّ أَوْ آبَاءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ أَبْنَائِهِنَّ أَوْ أَبْنَاءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي أَخَوَاتِهِنَّ أَوْ نِسَائِهِنَّ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ﴾ فيجوز لهم نظره إلا ما بين السرة والركبة فيحرم نظره لغير الأزواج وخرج بنسائهن الكافرات فلا يجوز للمسلمات الكشف لهن وشمل ما ملكت أيمانهن العبيد ﴿أَوِ التَّابِعِينَ﴾ في فضول الطعام ﴿غَيْرِ﴾ بالجر صفة والنصب استثناء ﴿أُولِي الْإِرْبَةِ﴾ أصحاب الحاجة إلى النساء ﴿مِنَ الرِّجَالِ﴾ بأن لم ينتشر ذكر كل ﴿أَوِ الطِّفْلِ﴾ بمعنى الأطفال ﴿الَّذِينَ لَمْ يَظْهَرُوا﴾ يطلعوا ﴿عَلَىٰ عَوْرَاتِ النِّسَاءِ﴾ للجماع فيجوز أن يبدين لهم ما عدا ما بين السرة والركبة ﴿وَلَا يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِينَ مِن زِينَتِهِنَّ﴾ من خلخال يتقعقع ﴿وَتُوبُوا إِلَى اللَّهِ جَمِيعًا أَيُّهَ الْمُؤْمِنُونَ﴾ مما وقع لكم من النظر الممنوع منه ومن غيره ﴿لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ تنجون من ذلك لقبول التوبة منه وفي الآية تغليب الذكور على الإناث ﴿وَأَنكِحُوا الْأَيَامَىٰ مِنكُمْ﴾ جمع أَيِّم وهي من ليس لها زوج بكرًا كانت أو ثيبًا ومن ليس له زوج وهذا في الأحرار والحرائر ﴿وَالصَّالِحِينَ﴾ المؤمنين ﴿مِنْ عِبَادِكُمْ وَإِمَائِكُمْ﴾ وعباد من جموع عبد ﴿إِن يَكُونُوا﴾ أي الأحرار ﴿فُقَرَاءَ يُغْنِهِمُ اللَّهُ﴾ بالتزوج ﴿مِن فَضْلِهِ وَاللَّهُ وَاسِعٌ﴾ لخلقه ﴿عَلِيمٌ﴾ بهم ﴿وَلْيَسْتَعْفِفِ الَّذِينَ لَا يَجِدُونَ نِكَاحًا﴾ ما ينكحون به من مهر ونفقة عن الزنى ﴿حَتَّىٰ يُغْنِيَهُمُ اللَّهُ﴾ يوسع عليهم ﴿مِن فَضْلِهِ﴾ فينكحون ﴿وَالَّذِينَ يَبْتَغُونَ الْكِتَابَ﴾ بمعنى المكاتبة ﴿مِمَّا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾ من العبيد والإماء ﴿فَكَاتِبُوهُمْ إِنْ عَلِمْتُمْ فِيهِمْ خَيْرًا﴾ أي أمانة وقدرة على الكسب لأداء مال الكتابة وصيغتها مثلًا كاتبتك على ألفين في شهرين كل شهر ألف فإذا أديتها فأنت حر فيقول قبلت ﴿وَآتُوهُم﴾ أمر للسادة ﴿مِّن مَّالِ اللَّهِ الَّذِي آتَاكُمْ﴾ ما يستعينون به في أداء ما التزموه لكم وفي معنى الإيتاء حط شيء مما التزموه ﴿وَلَا تُكْرِهُوا فَتَيَاتِكُمْ﴾ إماءكم ﴿عَلَى الْبِغَاءِ﴾ الزنى ﴿إِنْ أَرَدْنَ تَحَصُّنًا﴾ تعففًا عنه وهذه الإرادة محل الإكراه فلا مفهوم للشرط ﴿لِّتَبْتَغُوا﴾ بالإكراه ﴿عَرَضَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾ نزلت في عبد الله بن أبي كان يكره جواريه على الكسب بالزنى ﴿وَمَن يُكْرِههُّنَّ فَإِنَّ اللَّهَ مِن بَعْدِ إِكْرَاهِهِنَّ غَفُورٌ﴾ لهن ﴿رَّحِيمٌ﴾ بهن ﴿وَلَقَدْ أَنزَلْنَا إِلَيْكُمْ آيَاتٍ مُّبَيِّنَاتٍ﴾ بفتح الياء وكسرها في هذه السورة بُيِّن فيها ما ذكر أو بيِّنة ﴿وَمَثَلًا﴾ خبرًا عجيبًا وهو خبر عائشة ﴿مِّنَ الَّذِينَ خَلَوْا مِن قَبْلِكُمْ﴾ أي من جنس أمثالهم أي أخبارهم العجيبة كخبر يوسف ومريم ﴿وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِينَ﴾ في قوله تعالى ﴿وَلَا تَأْخُذْكُم بِهِمَا رَأْفَةٌ فِي دِينِ اللَّهِ﴾ ﴿لَّوْلَا إِذْ سَمِعْتُمُوهُ ظَنَّ الْمُؤْمِنُونَ﴾ الخ ﴿وَلَوْلَا إِذْ سَمِعْتُمُوهُ قُلْتُم﴾

إلخ (يَعِظُكُمُ اللّٰهُ أَنْ تَعُودُوا) إلخ وَتَخصِيصهَا بِالْمُتَّقِينَ لِأَنَّهُمُ الْمُنتَفِعُونَ بها

ترجمه: اې ایمان والو تاسو د خپلو کورونو نه سوا د نورو خلقو کورونو کښې تر هغه وخته پورې په داخلیږئ ترڅو پورې چه اجازت حاصل نه کړئ او د کور خلقو ته سلام اونکړئ پس هر اجازت اخستونکی له پکار دی چه اوائی (السلام علیکم ادخل) آیا زه داخلیدې شم؟ لکه چه په حدیث کښې راغلی دی. هم دا ستاسو دپاره غوره ده بغیر اجازت نه د داخلیدو نه د دې دپاره چه تاسو خیال اوساتئ د اجازت د خیر کیدو بیا تاسو په دې باندې عمل اوکړئ دویمه تا، په ذال کښې مدغم کولو سره پس که تاسو په کورونو کښې څوک بیا نه مومئ چه تاسو ته اجازت درکړی نو هغې ته مه داخلیږئ ترڅو چه تاسو ته اجازت درنکړې شی او که د اجازت طلب کولو نه پس تاسو ته اوئیلې شی چه واپس شئ نو واپس کیږئ هم دا واپس کیدل ستاسو په دروازه باندې د کیناستلو نه غوره دی الله پاک ته ستاسو اعمالو دخول بالاذن او دخول بغیر الاذن د ټولو خبر دې لهذا په دې اعمالو به درته جزا درکوی په تاسو باندې داسې کورونو ته (بغیر داجازت نه) داخلیدو کښې هیڅ گناه نشته کوم چه رهائشی نه وی او د کومو سره چه ستاسو هم څه منفعت تړلې وی (مثلا) د گرمئ یخنئ نه د بچ کیدو وغیره منفعت لکه د عام سرائې په طور استعمالیدونکی کورونه او دکان او څه چه تاسو اعلانیه کوئ او څه چه پټ کوئ د نورو کورونو ته د اصلاح یا غیر اصلاح په اراده باندې داخلیدل الله پاک ته ټول معلوم دی او دا مضمون نزدې راروان دې چه خلق کله خپلو کورونو ته داخلیږی نو پخپله دې سلام کوی ته مسلمانانو ته اوایه چه خپلې سترگې دې د هغه څیزونو نه ښکته ساتی چه د هغې کتل د هغوی دپاره حلال نه دی، او (من) زائده دې او د خپلو شرمگاهونو حفاظت دې کوی د هغه افعالو چه د هغې ارتکاب د هغوی دپاره حلال نه دې، دا د هغوی دپاره ډیره د پاکیزگئ خبره ده یعنی غوره ده الله پاک ته هر څه معلوم دی څه چه هغوی په خپلو سترگو او شرمگاهونو سره کوی او مسلمانانو زنانو ته اوایه چه خپلې سترگې دې ښکته ساتی د هغه څیزونو نه چه کومو ته کتل جائز نه دی او د خپلو شرمگاهونه دې د هغه کارونو نه محفوظ ساتئ چه د هغې ارتکاب د هغوی دپاره حلال نه دې او خپل زینت دې نه ښکاره کوی سوا د هغې نه چه کوم ظاهر دې او هغه مخونه او تلی دی د پردی سړی دپاره په یو قول کښې د دې اندامونو کتل جائز دی که د فتنې ویره نه وی او په دویم قول کښې حرام دی، ځکه چه دا محل د فتنې دې او (دویم قول) سدا للباب راجح کړې شوې دې او خپلې لوپټې دې په خپلو سینو باندې اچوی یعنی سرونه، ستونه او سینې دې په لوپټو سره پټوی او خپل بت دول دې نه ښکاره کوی او هغه د مخ او لاسونو نه علاوه دې خو په خپلو خاوندانو باندې (بعل) جمع د بعل ده په معنی د خاوند او په خپل پلار یا د خپل خاوند په پلار باندې یا په خپلو خامنو باندې یا د خپلو

خاوند په خامنو باندې يا په خپلو رونړو باندې يا په خپلو وريرونو باندې يا په خپلو خورينو باندې يا په خپلو زنانو باندې (يعنې په مسلمانانو زنانو باندې) يا په خپلو وينزو باندې د دې خلقو دپاره د نوم او كونډئ ترمينځه نه علاوه كتل جائز دی لهذا د نوم او كونډو ترمينځه حصه د خاوندانو نه علاوه د نورو دپاره كتل حرام دی، اود ﴿نسائهن﴾د قيد نه كافرې زنانه خارجې شوې، لهذا د مسلمانانو زنانو دپاره د كفارو په وړاندې بې پردې كيدل جائز نه دی او ﴿ماملكت ايمانهن﴾لفظ (د خپل عموم د وجې نه) غلامانو ته هم شامل دې يا په هغه سړو باندې كوم چه طفيلي وی يعنې داسې خلق كوم چه د بچ شوی خوراک لټونكي وی د هغوی بل څه غرض نه وی غيربه‌جر سره به د ﴿التابعين﴾صفت وی او نصب به د استثناء د وجې نه وی﴿ اولى الاربة﴾هغه سړی چه د خوراک وغيره دپاره په زنانو پسې اولكی (د هغوی بل څه مقصد نه وی) هر داسې سړې چه د هغه په عضو تناسل كښې انتشاره نه وی يا په داسې هلكان باندې چه هغوی لا تر اوسه د پردې يعنې د جماع وغيره د خبرو نه خبر نه دی او طفل په معنى د اطفال دې، نو د داسې خلقو دپاره (مابين السرة والركبة) نه علاوه ظاهرول جائز دی او خپلې خپې دې په زوره نه وهی چه پټ كالې ئې ښكاره شی چه هغه اواز كونكې پازيب دې او اې مومنانو! تاسو ټول الله پاک ته توبه اوباسئ د ممنوع نظر وغيره نه كوم چه ستاسو نه واقع شوې دې د دې دپاره چه تاسو كامياب شئ يعنې چه تاسو د دې نه (د ممنوع نظر د ګناه نه) خلاص شئ، د الله پاک د توبې قبلولو په ذريعه، او په آيت كريمه كښې د مذكر په مونث باندې غلبه ده او په تاسو كښې چه څوک بغير د نكاح نه وی د هغوی نكاح كوئ ايامى د ﴿ايم﴾جمع ده هغه زنانه ده چه د هغې خاوند نه وی برابره خبره ده كه باكره وی كه ثيبه او هغه سړې چه د هغه ښځه نه وی او دا (حكم) د ازادو سړو او زنانو دې او تاسو د خپلو مومن غلامانو او وينزو هم نكاح كوئ او عباد د عبد جمع ده كه هغوی غريبانان وی نو الله پاک به ئې په خپل فضل سره د دې نكاح په بركت سره مالدار كړی او الله پاک د خپل مخلوق دپاره وسعت والا دې او (د هغوی د حالاتو) نه خبردار دې او داسې خلق كوم چه په نكاح باندې د مهر او د نفقې د نشتوالی د وجې نه قادر نه وی نو هغوی لره پكار دی چه زنانه په صبر كار واخلی تردې چه الله پاک ئې په خپل فضل سره مالدار كړی يعنې هغوی ته فراخی وركړی بيا دې هغوی نكاح اوكړی او ستاسو په غلامانو كښې چه كوم د مكاتبت خواهشمند وی د غلامانو او وينزو نه نو هغوی مكاتب جوړ كړئ كه تاسو ته پكښې بهتری ښكاری يعنې د امانت او بدل كتابت ادا كولو دپاره د ګټې قدرت او (پاتې شوه) د مكاتبت صيغه نو مثلا داسې اوائی چه ته ما په دوه مياشتو كښې په دوه زره باندې مكاتب جوړ كړې په هره مياشت كښې په زر باندې چه كله ته دا ادا كړې نو ته ازاد ئې نو غلام اوائی چه ما ته

منظوره ده او د الله پاک د هغه مال نه کوم چه هغه تاسو ته درکړې دې هغوی ته هم ورکړئ چه په هغې سره هغوی د هغه بدل کتابت په ادا کولو کښ مدد حاصل کړی کوم چه هغوی ستاسو دپاره (په خپل ځان باندې) لازم کړې دې، دا سردارانو ته حکم دې او کوم چه هغوی په خپل ځان باندې لازم کړې دې د هغې نه څه کمول دا هم د ورکړې په حکم کښ دې او خپلو وينزو لره په زنا باندې مه مجبوروئ که هغوی پاکې اوسيدل غواړی يعنی د زنا نه ځان ساتل غواړی او دا يعنی ارادهٔ تحصن د اکراه محل دې، لهذا د شرط د مفهوم مخالف هيڅ اعتبار نشته د دې دپاره چه تاسو د اکراه په ذريعه څه دنياوی فائده حاصله کړئ دا آيت کريمه د عبدالله بن ابی په باره کښ نازل شوې دې چا چه به خپلې وينزې د زنا په ذريعه کسب کولو باندې مجبوره کولې او کوم سړې چه هغوی مجبوره کړی نو الله پاک د هغوی د مجبوره کيدو نه پس هغوی لره بخښونکې مهربانه دې او بيشکه مونږ تاسو ته په دې سورت کښ ښکاره احکامات نازل کړې دی (مبينات) کښ د ياء په فتحې او کسرې سره دې په دې (سورت) کښ هغه احکامات بيان کړی شوې دی کوم چه ذکر شوې دی يا (احکام لره) واضح کونکی آيتونه ئې نازل کړی دی او عجيب خبر نازل کړی دې او هغه د سيده عائشه رضی الله عنها واقعه ده کومه چه ستاسو نه مخکښ تيرو شوو خلقو د خبر د جنس نه ده (په عجيبه کيدو کښ) يعنی د هغه خلقو د اخبار عجيبه د جنس نه ده، لکه د سيدنا يوسف عليه السلام او سيده مريم عليها السلام خبر. او د ويريدونکو دپاره د نصيحت خبرې ئې (نازلې کړې) د الله پاک په قول ولا تأخذكم بهما رافة فى دين الله (الاية) کښ (او) لولا اذ سمعتموه ظن المومنون (الاية) کښ او ولولا اذ سمعتموه قلتم (الاية) کښ او يعظكم الله ان تعودوا (الاية) کښ د متقيانو تخصيص ځکه شوې دې چه هم دا خلق د نصيحت نه فائده اوچتوی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** ﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّى تَسْتَأْنِسُوا ﴾ اى تستاذنوا په مخکښ آيتونو کښ الله پاک د ستر او حجاب، عفت او پاک اوسيدو احکام بيان اوفرمائيل، بعض د دې احکاماتو نه د چا کور ته بغير د اجازت نه نه داخليدل لهذا دی د ستر او حجاب د احکاماتو نه پس ئې د استيذان مسئله بيان کړه، د ټولو نه اول الله پاک کورونو ته د داخليدو اداب بيان کړل ځکه چه د پردو سړو او زنانو اختلاط بعض وخت د فتنې سبب جوړيږی.

**قوله:** ﴿ تَسْتَأْنِسُوا ﴾ په معنی د تستاذنوا دې ... دا د استيذان نه مشتق دې د دې معنی ده اجازت اخستل، انسيت پيدا کول.

**قوله:** ﴿ لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ ﴾ دا د لاتدخلوا بيوتا نه په منزله د استثناء دې.

قوله: استکنان دا د کن (کاف مکسور ونون مشدد) نه مشتق دې د دې معنی د پټیدو ده یعنی یخنی، گرمی یا باران وغیره نه پټیدو سره ارام حاصلول.

قوله: ﴿ ربط ﴾ د رباط جمع ده د دې اصل معنی خو د اصطبل یا بیرک (غوجل) ده خو دلته هغه عام سرائې او مسافر خانې مراد دی چه په هغې کښې د ټولو راتلو عام اجازت وی او کومې چه د منفعت عامه دپاره جوړولې شی ﴿ المسبلة ﴾ هغه لارې ته وئیلې شی چه په هغې باندې خلق څی راځی هم په دې مناسبت سره هغه کور ته هم وئیلې شی چه په هغې کښې د ټولو راتلو اجازت وی مسبلة په اصل کښې د ربط صفت دې لهذا که دا ئې د ربط سره متصل ذکر کړې وې نو دا به زیاته واضحه وې د خطیب عبارت داسې دې ﴿ کبیوت الحانات والربط المسبلة ﴾ (جمل) حانات د حانة جمع ده دکان ته وئیلې شی چه هلته د اخستلو او خرڅولو دپاره عام اجازت وی، المسبلة د ربط او حانات دواړو د صفت جوړیدو صلاحیت لری.

قوله: ﴿ بِالْمَقَانِعِ ﴾ دا د مقنع یا مقنعة جمع ده، لوپټې او پړونی ته وائی.

قوله: ﴿ أَوِ التَّابِعِينَ ﴾ ای التابعین للنساء هغه خفیف العقل او نیم پاګل خلق کوم چه د خوراک وغیره په لټون کښې د زنانو سره شی خلخال پازیب (ج) خلاخل، تقعقع یتقعقع په حرکت سره اواز ویستل.

قوله: ﴿ وَالصَّالِحِينَ ﴾ ای المومنین دلته د صالحین نه مراد هغه مومنین دی کوم چه د نکاح د حقوقو ادا کولو صلاحیت لری.

قوله: ﴿ وَالَّذِينَ يَبْتَغُونَ الْكِتَابَ ﴾ ﴿ والذین ﴾ موصول او صله مبتدأ متضمن په معنی د شرط کیدو د وجې نه محلا مرفوع دې، په دې صورت کښې ﴿ فکاتبوهم ﴾ د دې خبر دې او ﴿ مما ملکت ایمانکم ﴾ د یبتغون د ضمیر نه حال دې او د فعل مقدر د وجې نه ئې نصب هم جائز دې نو په دې صورت کښې به محلا منصوب وی او د باب اشتغال نه به وی.

قوله: ﴿ وَمَعْنَى الْإِرَادَةِ مَحَلُّ الْإِكْرَاهِ فَلَا مَفْهُومَ لِلشَّرْطِ ﴾ دا د یو اعتراض جواب دې، اعتراض دا دې چه ﴿ ان اردن تحصنا ﴾ حرف شرط نه معلومیږی چه که وینزې پاکې اوسیدل غواړی نو هغوی دې په زنا باندې مجبورې نه کړې شی او که پاکې اوسیدل نه غواړی نو بیا مجبوره کولې شی؟ جواب دا دې چه د اجبار ضرورت هله راځی چه کله هغوی پاکې اوسیدل غواړی او که هغوی خپله پاکې اوسیدل نه غواړی نو د اجبار ضرورت به نه پیښیږی، هغوی به خپله مرضئ سره د زنا فعل اوکړی.

قوله: ﴿ أَو بَيِّنَةٍ ﴾ په معنی د ﴿ مبینة ﴾ اسم فاعل دې یعنی احکاماتو لره واضح کونکی آیتونه.

قوله: ﴿ مثلا ﴾ یعنی په دې سورت کښې یا په دې قرآن کښې مونږ ستاسو دپاره واضح

احکامات نازل کړی دی او د عائشې ﷞ عجیبه واقعه مو نازل کړې ده کومه چه په عجیبه کیدو کښ د تیرو خلقو مثلا سیدنا یوسف او مریم ﷩ د واقعې سره مشابه دی ځکه چه په دې دواړو حضراتو باندې هم تهمت لګیدلې وو او الله پاک د دې حضراتو براءت هم ظاهر کړې وو.

**[ایاتونه:۳۵-۴۰]**

﴿اللّٰه نُور السَّمَاوَات وَالْأَرْض﴾ أَيْ مُنَوِّرهمَا بِالشَّمْسِ وَالْقَمَر ﴿مَثَل نُوره﴾ أَيْ صِفَته فِي قَلْب الْمُؤْمِن ﴿كَمِشْكَاةٍ فِيهَا مِصْبَاحٌ الْمِصْبَاحُ فِي زُجَاجَةٍ﴾ هِيَ الْقِنْدِيل وَالْمِصْبَاح السِّرَاج أَيْ الْفَتِيلَة الْمَوْقُودَة وَالْمِشْكَاة الطَّاقَة غَيْر النَّافِذَة أَيْ الْأُنْبُوبَة فِي الْقِنْدِيل ﴿الزُّجَاجَةُ كَأَنَّهَا﴾ وَالنُّور فِيهَا ﴿كَوْكَبٌ دُرِّيٌّ﴾ أَيْ مُضِيء بِكَسْرِ الدَّال وَضَمّهَا مِنْ الدَّرْء بِمَعْنَى الدَّفْع لِدَفْعِهَا الظَّلَام وَبِضَمِّهَا وَتَشْدِيد الْيَاء مَنْسُوب إِلَى الدُّرّ اللُّؤْلُؤ ﴿تَوَقَّدَ﴾ الْمِصْبَاح بِالْمَاضِي وفي قراءة بمضارع او قد مَبْنِيًّا لِلْمَفْعُولِ بِالتَّحْتَانِيَّةِ وَفِي آخرى تُوقَد بِالْفَوْقَانِيَّةِ أَيْ الزُّجَاجَة ﴿مِنْ﴾ زَيْت ﴿شَجَرَةٍ مُبَارَكَةٍ زَيْتُونَةٍ لَا شَرْقِيَّةٍ وَلَا غَرْبِيَّةٍ﴾ بَلْ بَيْنهمَا فَلَا يَتَمَكَّن مِنْهَا حَرّ وَلَا بَرْد مُضِرَّانِ ﴿يَكَادُ زَيْتُهَا يُضِيءُ وَلَوْ لَمْ تَمْسَسْهُ نَارٌ﴾ لِصَفَائِهِ ﴿نُور﴾ بِهِ ﴿عَلَى نُورٍ﴾ بِالنَّارِ وَنُور اللّٰه أَيْ هُدَاهُ لِلْمُؤْمِنِ نُور عَلَى نُور الْإِيمَان ﴿يَهْدِي اللّٰهُ لِنُورِهِ﴾ أَيْ دِين الْإِسْلَام ﴿مَنْ يَشَاءُ وَيَضْرِبُ﴾ يُبَيِّن ﴿اللّٰهُ الْأَمْثَالَ لِلنَّاسِ﴾ تَقْرِيبًا لِأَفْهَامِهِمْ لِيَعْتَبِرُوا فَيُؤْمِنُوا ﴿وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾ وَمِنْهُ ضَرْب الْأَمْثَال ﴿فِي بُيُوتٍ﴾ مُتَعَلِّق بِيُسَبِّح الْآتِي ﴿أَذِنَ اللّٰهُ أَنْ تُرْفَعَ﴾ تُعَظَّم ﴿وَيُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ﴾ بِتَوْحِيدِهِ ﴿يُسَبِّحُ﴾ بِفَتْحِ الْمُوَحَّدَة وَكَسْرهَا أَيْ يُصَلِّي ﴿لَهُ فِيهَا بِالْغُدُوِّ﴾ مَصْدَر بِمَعْنَى الْغَدَوَات أَيْ الْبُكَر ﴿وَالْآصَالِ﴾ الْعَشَايَا مِنْ بَعْد الزَّوَال ﴿رِجَالٌ﴾ فَاعِل يُسَبِّح بِكَسْرِ الْبَاء وَعَلَى فَتْحهَا نَائِب الْفَاعِل لَهُ وَرِجَال فَاعِل فِعْل مُقَدَّر جَوَاب سُؤَال مُقَدَّر كَأَنَّهُ قِيلَ مَنْ يُسَبِّحهُ ﴿لَا تُلْهِيهِمْ تِجَارَةٌ﴾ شِرَاء ﴿وَلَا بَيْعٌ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَإِقَامِ الصَّلَاةِ﴾ حَذْف هَاء إِقَامَة تَخْفِيف ﴿وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ يَخَافُونَ يَوْمًا تَتَقَلَّبُ﴾ تَضْطَرِب ﴿فِيهِ الْقُلُوبُ وَالْأَبْصَارُ﴾ مِنْ الْخَوْف الْقُلُوب بَيْن النَّجَاة وَالْهَلَاك وَالْأَبْصَار بَيْن نَاحِيَتَيْ الْيَمِين وَالشِّمَال هُوَ يَوْم الْقِيَامَة ﴿لِيَجْزِيَهُمُ اللّٰهُ أَحْسَنَ مَا عَمِلُوا﴾ أَيْ ثَوَابه وَأَحْسَن بِمَعْنَى حَسَن ﴿وَيَزِيدَهُمْ مِنْ فَضْلِهِ وَاللّٰهُ يَرْزُقُ مَنْ يَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾ يُقَال فُلَان يُنْفِق بِغَيْرِ حِسَاب أَيْ يُوَسِّع كَأَنَّهُ لَا يَحْسِب مَا يُنْفِقهُ ﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا أَعْمَالُهُمْ كَسَرَابٍ بِقِيعَةٍ﴾ جَمْع قَاع أَيْ فِي فَلَاة وَهُوَ شُعَاع يُرَى فِيهَا نِصْف النَّهَار فِي شِدَّة الْحَرّ يُشْبِه الْمَاء الْجَارِي ﴿يَحْسَبُهُ﴾ يَظُنّهُ ﴿الظَّمْآنُ﴾ أَيْ الْعَطْشَان ﴿مَاءً حَتَّى إِذَا جَاءَهُ لَمْ يَجِدْهُ شَيْئًا﴾ مِمَّا حَسِبَهُ كَذَلِكَ الْكَافِر يَحْسَب أَنَّ عَمَله كَصَدَقَةٍ يَنْفَعهُ حَتَّى إِذَا مَاتَ وَقَدِمَ عَلَى رَبّه لَمْ يَجِد عَمَله أَيْ لَمْ يَنْفَعهُ ﴿وَوَجَدَ اللّٰهَ عِنْدَهُ﴾ أَيْ عِنْد عَمَله ﴿فَوَفَّاهُ حِسَابَهُ﴾ أَيْ جَازَاهُ عَلَيْهِ فِي الدُّنْيَا ﴿وَاللّٰهُ سَرِيعُ الْحِسَابِ﴾ أَيْ الْمُجَازَاة ﴿أَوْ﴾ الَّذِينَ كَفَرُوا أَعْمَالهمْ السَّيِّئَة ﴿كَظُلُمَاتٍ فِي بَحْرٍ لُجِّيٍّ﴾ عَمِيق ﴿يَغْشَاهُ مَوْجٌ مِنْ فَوْقِهِ﴾ أَيْ الْمَوْج ﴿مَوْجٌ مِنْ فَوْقِهِ﴾ أَيْ الْمَوْج الثَّانِي ﴿سَحَابٌ﴾ أَيْ غَيْم هَذِهِ ﴿ظُلُمَاتٌ بَعْضُهَا فَوْقَ بَعْضٍ﴾ ظُلْمَة الْبَحْر وَظُلْمَة الْمَوْج الْأَوَّل وَظُلْمَة الثَّانِي وَظُلْمَة السَّحَاب ﴿إِذَا أَخْرَجَ﴾ النَّاظِر ﴿يَدَهُ﴾ فِي هَذِهِ الظُّلُمَات ﴿لَمْ

يَكَادُ زَيْتُهَا) أي لم يقرب من زلئتها (وَمَنْ لَّمْ يَجْعَلِ اللّٰهُ لَهٗ نُوْرًا فَمَا لَهٗ مِنْ نُّوْرٍ) أي من لم يهده الله لم يهتد

ترجمه: الله پاک د اسمانانو او زمکې نور دې يعنې دي دوارو لره په شمس او قمر سره روښانه کونکې دې او د هغه د نور مثال يعنې د هغې صفت د مومن په زړه کښې داسې دې لکه چه يو طاقچه ده او په هغې کښې يو ډيوه ده او هغه ډيوه په يو شيشه کښې ده (زجاجة) په معنى د شيشې او المصباح په معنى د ډيوې يعنې بليدونکې باتۍ (شعله) او المشكاة په معنى د طاقچې کوم چه آرپار نه وی يعنې د شيشې نلکه (پانپ) او هغه شيشه حال دا چه په هغې کښې نور وی داسې دې لکه يو روښانه ستورې د دال په کسرې سره او د دال په ضمې سره (په دې صورت کښې به) درءنه مشتق وی او معنى به ئې د دفع کولو وی د هغې تياره دفع کولو د وجې نه، او د دال په ضمې او د ياء په تشديد سره (درى) د درطرف ته منسوب دې او معنى به ئې وی ملغلره توقدماضی (تفعل) ای توقد المصباح او په يو قراءت کښې د اوقدنه مضارع مجهول ده يوقد (په دې صورت کښې به نائب فاعل المصباح وی) او په دريم قراءت کښې په تاء سره دې ای توقد په دې صورت کښې به نائب فاعل (الزجاجة) وی، روښانه کولې شی هغه ډيوه د يوې مبارکې اونې په تيلو سره کومه چه د زيتون ده او هغه اونه نه په مشرقی طرف کښې ده او نه په مغربی کښې بلکه د هغې ترمينځه واقع ده پس گرمی او يخنی په هغې (اونې) باندې مضر کيدو سره نه واقع کيږی، داسې معلوميږی چه د هغې تيل به د خپلې صفائی د وجې نه پخپله بل شی اگرچه اور ورته او نه رسيږی هغه تيل د اور د وجې نه نور على نور دې الله پاک چه چاته غواړی خپل نور ته يعنې دين اسلام ته ئې رهنمائی کوی او الله پاک د خلقو دپاره مثال بيان فرمائی د هغوی عقلونو ته د نزدې کولو دپاره د دې دپاره چه هغوی عبرت حاصل کړی او ايمان راوړی او الله پاک د هر يو څيز نه خبردار دې او هم په دې علم کښې مثالونه بيانول هم دی او په هغه کورونو کښې د هغه تسبيح بيانولې شی چه د هغې متعلق الله پاک حکم کړې دې چه د هغې دې تعظيم اوکړې شی او په هغې کښې دې د هغه د توحيد سره د هغه نوم واخستلې شی (في بيوت) د راتلونکې (يسبح) سره متعلق دې د (يسبح) ياء په فتحې او کسرې سره او (يسبح) (بضم الباء) په معنى د (يصلى) دې د سحر په وخت (الغدو) مصدر په معنى د (غداوة) دې په معنى د صبا او د ماښام په وخت د زوال نه پس (رجال) ديسبح فاعل دې د باء د کسرې په صورت کښې او که د باء په فتحې سره وی نو په (له) کښې (ه) ضمير به د دې نائب فاعل وی، او (رجال) به د فعل مقدر فاعل وی، او د سوال مقدر جواب به وی، گويا تپوس اوکړې شو چه څوک تسبيح بيان کړی؟ نو جواب ورکړې شو (رجال) هغه داسې خلق دی چه هغوی لره د الله پاک د ذکر نه او د مونځ قائمولو او د زکاة د

ورکولو نه نه اخستل په غفلت کښې اچوي او نه خرڅول د ﴿ اقام﴾ په آخر کښې ﴿ ة﴾ لره تخفيفا حذف کړې شوې ده (په اصل کښې اقامة وو) هغوي د داسې ورځې نه ويرېږي چه په هغې کښې به دير زړونه او ديرې سترګې د ويرې د وجې نه مضطرب شي، زړونه به د نجات او هلاکت ترمينځه مضطرب وي او سترګې به ښي او ګس طرف ته مضطرب وي او هغه به د قيامت ورځ وي (او هغوي به) داسې ښکه کوي چه الله پاک د هغوي د اعمالو ښه بدله ورکړي يعنې د اعمالو ثواب او ﴿ احسن﴾ په معنى د ﴿ حسن﴾ دې او هغوي ته د خپل فضل او کرم نه نور هم زيات ورکړي او الله پاک چه چاته غواړي بې حسابه رزق ورکوي وئيلې شي چه فلانې سړې بې حسابه خرچ کوي يعنې په خرچ کښې دومره فراخي کوي ګويا چه هغه څه خرچ کوي د هغې حساب نه کوي او کوم خلق چه کافر دي د هغوي اعمال داسې دي لکه صفا ميدان کښې پرقيدونکې شړې قيعة جمع ئې قاع، بقيعة په معنى د فى فلاة، فلاة په معنى د صحرا، هوار ميدان، سراب هغه رڼاګانو (شعاع ګانو) ته وئيلې شي کومې چه د غرمې په وخت کښې په سخته ګرمئ کښې د بهيدلو اوبو په شان ښکاره کيږي او دې شړو لره تږې انسان اوبه ګڼړي تردې چه کله د هغې خواته راشي نو هغه هيڅ نه مومي چه په څه ئې د اوبو ګمان کړې وو، هم دغه شان کافر خيال کوي چه د هغه عمل مثلا صدقه به هغه ته نفع اورسوي تردې چه کله هغه مړ شي او خپل رب ته لاړ شي نو خپل عمل به بيا نه مومي يعنې د هغه عمل به هغه ته هيڅ نفع ورنکړي، او الله پاک ئې د خپل عمل خوا کښې بيا مونډلو چه هغه د هغه پوره پوره حساب ورکړو يعنې الله پاک د هغه کافر د عمل جزا په دنيا کښې پوره پوره ورکړه او الله پاک دير زر حساب کونکې دې يعنې زر جزا ورکونکې دې يا د کفارو د بدو عملونو مثال داسې دې لکه د ژور سمندر تياره چه يوې لوئې چپې پټ کړې وي او د هغه چپې دپاسه يوه بله چپه وي او د هغې چپې دپاسه وريځ وي دا تيارې ديو بل دپاسه تيارې دي د سمندر تياره، د رومبئ چپې تياره، د دويمې چپې تياره او د وريځ تياره که کتونکې په دې تيارو کښې خپل لاس راوباسي نو هغه به هم اونه ويني يعنې د هغه د لاس د ليدو هډو امکان نشته او چاته چه الله پاک رڼا ورنکړي د هغه دپاره هيڅ رڼا نشته چاته چه الله پاک هدايت ورنکړو د هغه دپاره هيڅ هدايت نشته.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** ﴿ اللَّهُ نُورُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ دا جمله مستانفه د ماقبل د تاکيد دپاره ده ﴿ الله﴾ مبتدا ﴿ نور السماوات والارض﴾ د دې خبر دې، د ﴿ نور﴾ حمل د الله پاک په ذات باندې يا خو مبالغة دې، لکه په زيد عدل کښې يا مضاف محذوف دې اى الله ذو نور السماوات والارض يا نور مصدر د اسم فاعل منور په معنى دې لکه چه علامه محلى دا معنى اختيار کړې ده.

قوله: ﴿ مَثَلُ نُورِهٖ ﴾ په ترکیب اضافی سره مبتدا ﴿ کمشکاة فیها مصباح ﴾ د دې خبر. د مشکاة نه مخکښې نور مضاف محذوف دې ای صفة نوره تعالی فی قلب المومن کنور مشکاة فیها مصباح.

قوله: ﴿ زُجَاجَةٍ ﴾ بالتثلیث شیشه، د شیشې لوښې. قندیل هم چونکه د شیشې وی لهذا قندیل ورته هم وئیلې کیدې شی.

قوله: ﴿ الْمَوْقُودَةُ ﴾ صحیح الموقدة دې.

قوله: ﴿ الْأُنْبُوبَة ﴾ هغه نلکه چه په کومې کښې باتۍ وی دا د مشکاة دویم تفسیر دې مناسبه وه چه مفسر علام ﴿ اوالأنبوبة ﴾ فرمائیلې دی.

قوله: ﴿ تَوَقَّدَ المصباح ﴾: توقد کښې درې قراءتونه دی. ① فعل ماضی توقد په وزن د تفعل، المصباح د دې فاعل دې. ② یوقد د اوقد نه مضارع مجهول واحد مذکر غائب المصباح نائب فاعل، ③ توقد ... بالتاء د اوقد نه مضارع مجهول، نائب فاعل الزجاجة د مضاف په حذف سره ای فتیلة الزجاجة.

قوله: ﴿ زَيْتُونَةٍ ﴾ دا د شجرة نه بدل دې، هم دا ظاهره ده یا عطف بیان دې د کوفیانو په نزد خکه چه په نکرات کښې کوفیان عطف بیان ته جائز وائی، شجرة موصوف مبارکة نې صفت، موصوف سره د صفت نه مبدل منه، ﴿ زیتونة ﴾ بدل، بدل سره د مبدل منه نه مضاف الیه دپاره د زیت مضاف محذوف، مضاف او مضاف الیه مجرور شو د جار دپاره، او جار مجرور متعلق شو د ﴿ توقد ﴾ سره.

قوله: ﴿ لَا شَرْقِيَّةٍ وَلَا غَرْبِيَّةٍ ﴾ دا د ﴿ شجرة ﴾ صفت دې.

قوله: ﴿ مُطِيْرِيْن ﴾ دا د حرولا یردنه حال دې.

قوله: ﴿ وَلَوْلَمْ تَمْسَسْهُ نَارٌ ﴾ شرط دې د دې جواب محذوف دې ای لاضاء نوربه ای بالزیت.

قوله: ﴿ عَلٰى نُوْرٍ ﴾ ای مع نور... ایمان پخپله یو نور دې، د ایمان سره سره د نورو اعمال صالحه توفیق او هدایت دا نور علی نور دې، الله پاک د تقریب الی الفهم دپاره معقولاتو لره د محسوساتو په ذریعه مثال ورکولو سره پوهوی چه خلق عبرت حاصل کړی او ایمان راوړی.

تنبیه: په آیت کریمه کښې مثل نوره کمشکاة الایة.... په دې کښې تشبیه د معقول بالمحسوس ده، د نورالله نه مراد دلائل یا قرآن کریم دې، یا توحید والشرائع، یا هدایت مراد دې او دا مشبه ده او نور مشکاة سره د خپلو صفاتو نه مشبه به ده، د تشبیه دپاره د مشبه به اشهر کیدل کافی دی، اقوی کیدل ضروری نه دی لهذا ذکر شوې تشبیه صحیح ده، په مشبه به کښې چونکه اجزاء نشته چه د هغې نه وجه د شبه منتزع کړې شی او د هغې په وجه تشبیه لره مرکب یا مفرق (مفرد) اوئیلې شی. (روح المعانی)

دغه شان بعض حضراتو دا هم وئیلې دی چه که نورپه معنی د هدایت وی چه په هغې باندې ایات بینات دلالت کوی نو په دې صورت کښې به تشبیه مرکب عقلی وی ځکه چه په دې صورت کښې مشبه سره د هیئت منتزعه تشبیه د هغه هیئت منتزعه سره ده کوم چه د مشبه به نه انتزاع کړې شوې دې ځکه چه لفظ نور اګر چه مفرد دې خو دال علی المتعدد دې ځکه چه نور نه مراد متعدد څیزونه دی مثلا ادله، قرآن، توحید او شرائع، هدایت وغیره، هم دغه شان مشبه به هم ډیر څیزونه دی، مشبه به قلب مومن دې کوم چه الله پاک په نورِ هدایت سره منور کړې دې کوم چه علوم او معارف دی. (روح المعانی)

قوله: ﴿ بَلْ بَيْنَهُمَا ﴾...دا دې خبرې ته اشاره ده چه هغه اونه نه په انتهائی مشرق کښې ده او نه په مغرب کښې بلکه په مینځ کښې ده، کومې ته چه مشرق وسطی وئیلې شی، ملک شام هم په دې علاقه کښې واقع دې د مشرق وسطی آب وهوا چونکه معتدل ده نه زیاته ګرمه ده او نه ډیره یخه، په دې وجه د هغه ځائې د زیتون تیل انتهائی صفا وی په خلاف د انتهائی مشرق او مغرب چه په هغې کښې ګرمی او یخنی زیاته وی کوم چه مضر دی

قوله: ﴿ فِي بُيُوتٍ ﴾د دې تعلق د آئنده راتلونکی ﴿ يسبح ﴾سره دې په دې صورت کښې ظرف یعنی ﴿ فيها ﴾د تاکید دپاره مکرر وی، مفسر علام هم دا غوره کړې ده، او د محذوف هم متعلق کیدې شی د عبارت تقدیر به داسې وی، ﴿ سبحوا ربكم في بيوت ﴾په دې صورت کښې به په ﴿ عليم ﴾باندې وقف وی، او دا هم صحیح ده چه ﴿ في بيوت ﴾د كائن وغیره محذوف سره متعلق کیدو سره د مشکاة یا د مصباح یا د زجاجة صفت وی، یا د توقد سره متعلق وی، په دې خلورواړه صورتونو کښې به په عليم باندې وقف نه وی.

قوله: ﴿ أَذِنَ اللَّهُ أَنْ تُرْفَعَ ﴾ دا جمله د بيوت صفت دې ﴿ ان ترفع الخ ﴾په تاویل د مصدر سره د باء حرف جار مقدر مجرور دې، د عبارت تقدیر دا دې ﴿ امر الله برفعها ﴾، يسبح که د باء په فتحې سره اولوستلې شی نو ﴿ له ﴾به نائب فاعل وی، او ﴿ رجال ﴾به دفعل محذوف فاعل وی او هغه فعل محذوف به د سوال مقدر جواب وی چه کله اوئیلې شو ﴿ يسبح له ﴾ نو سوال پیدا شو ﴿ من يسبح؟ قال رجال لاتلهيهم تجارة ﴾

قوله: ﴿ لِيَجْزِيَهُمُ ﴾ کښې لام د عاقبت دې ای عاقبة امرهم الجزاء الحسن د يسبح سره هم متعلق کیدې شی ای يسبحون لاجل الجزاء.... او د محذوف سره متعلق کیدې هم شی د عبارت تقدیر به داسې وی. فعلوا ذلك ليجزيهم الله.

قوله: ﴿ وَالَّذِينَ كَفَرُوا أَعْمَالُهُمْ كَسَرَابٍ بِقِيعَةٍ ﴾ والذين كفروا موصول او صله مبتدأ، اول ده، ﴿ اعمالهم ﴾مبتدأ ثانی ده، ﴿ كسراب ﴾د كائن سره متعلق شو او د مبتدأ ثانی خبر دې، مبتدأ

ثاني د خپل خبر سره د مبتدا اول (والذين) خبر دي، او دا هم صحيح ده چه (اعمالهم) د (والذين كفروا) نه بدل الاشتمال وي او كسراب، د الذين خبر وي.

قوله: (بِقِيعَةٍ) با جاره ده او قيعه د قاع جمع ده، هموار ميدان ته وئيلې شي

قوله: (الظَّمْآن) د ظمآن د شدت حاجت د وجې نه تخصيص كړې شوې دې، گني ظمآن او غير ظمآن ټولو ته د غرمې په وخت كښې شړه د نمر په دهوپ (تپش) كښې سراب يعنى رواني اوبه ښكاري.

قوله: (أَوْ كَظُلُمَاتٍ) (او) د تقسيم دپاره دې يعنى د كافر اعمال په دوه قسمه دي يو هغه كوم چه د سراب په شان وي دا به هغه اعمال صالحه وي كوم چه هغوى په دنيا كښې د صدقې او خيرات يا د صله رحمئ په شكل كښې كړي وي دا په ظاهره كښې اعمال صالحه دي خو په آخرت كښې چونكه د دې هيڅ صله نشته په دې وجه د دې هيڅ حيثيت نشته. دويم به د هغوى اعمال سيئه وي د هغې مثال د ظلمات په شان دې، د ظلمات عطف په كسرابٍ باندې دې. د مضاف په حذف سره د عبارت تقدير داسې دې او كذى ظلمات.

تنبيه: أَوْ كَظُلُمَاتٍ الخ... كښې تشبيه مركب بالمركب ده په آيت كريمه كښې د درې قسمه تيارو د درې قسمه تيارو سره تشبيه وركړې شوې ده، د عقيدې تياره، د قول تياره، د فعل تياره د دې ټولو تشبيه د سمندر تيارې، د چپو تيارې او د وريځې د تيارې سره تشبيه وركړې شوې ده.

**[اياتونه: ٤١ - ٥٠]**

(المْ ترَ أنَّ اللَّهَ يُسَبِّحُ لَهُ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ) وَمِنَ التَّسْبِيحِ صَلَاةٌ (وَالطَّيْرُ) جَمْعُ طَائِرٍ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ (صَافَّاتٍ) حَالٌ بَاسِطَاتٍ أَجْنِحَتَهُنَّ (كُلٌّ قَدْ عَلِمَ) اللَّهُ (صَلَاتَهُ وَتَسْبِيحَهُ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِمَا يَفْعَلُونَ) فِيهِ تَغْلِيبُ الْعَاقِلِ (وَلِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ) خَزَائِنُ الْمَطَرِ وَالرِّزْقِ وَالنَّبَاتِ (وَإِلَى اللَّهِ الْمَصِيرُ) الْمَرْجِعُ (أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ يُزْجِي سَحَابًا) يَسُوقُهُ بِرِفْقٍ (ثُمَّ يُؤَلِّفُ بَيْنَهُ) يَضُمُّ بَعْضَهُ إِلَى بَعْضٍ فَيَجْعَلُ الْقِطَعَ الْمُتَفَرِّقَةَ قِطْعَةً وَاحِدَةً (ثُمَّ يَجْعَلُهُ رُكَامًا) بَعْضُهُ فَوْقَ بَعْضٍ (فَتَرَى الْوَدْقَ) الْمَطَرَ (يَخْرُجُ مِنْ خِلَالِهِ) مَخَارِجِهِ (وَيُنَزِّلُ مِنَ السَّمَاءِ مِنْ) زَائِدَةٌ (جِبَالٍ فِيهَا) فِي السَّمَاءِ بَدَلٌ بِإِعَادَةِ الْجَارِّ (مِنْ بَرَدٍ) أَيْ بَعْضَهُ ( ) يَقْرُبُ (سَنَا بَرْقِهِ) لَمَعَانُهُ (يَذْهَبُ بِالْأَبْصَارِ) النَّاظِرَةِ لَهُ أَيْ يَخْطَفُهَا (يُقَلِّبُ اللَّهُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ) أَيْ يَأْتِي بِكُلٍّ مِنْهُمَا بَدَلَ الْآخَرِ (إِنَّ فِي ذَٰلِكَ) التَّقْلِيبِ (لَعِبْرَةً) دَلَالَةً (لِأُولِي الْأَبْصَارِ) لِأَصْحَابِ الْبَصَائِرِ عَلَى قُدْرَةِ اللَّهِ تَعَالَى (وَاللَّهُ خَلَقَ كُلَّ دَابَّةٍ) أَيْ حَيَوَانٍ (مِنْ مَاءٍ) نُطْفَةٍ (فَمِنْهُمْ مَنْ يَمْشِي عَلَىٰ بَطْنِهِ) كَالْحَيَّاتِ وَالْهَوَامِّ (وَمِنْهُمْ مَنْ يَمْشِي عَلَىٰ رِجْلَيْنِ) كَالْإِنْسَانِ وَالطَّيْرِ (وَمِنْهُمْ مَنْ يَمْشِي عَلَىٰ أَرْبَعٍ) كَالبهائم والأنعام (يخلق الله ما يشاء إن الله على كل شيء قدير) (لَقَدْ أَنْزَلْنَا آيَاتٍ مُبَيِّنَاتٍ) أَيْ بَيِّنَاتٍ هِيَ الْقُرْآنُ (وَاللَّهُ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ إِلَىٰ

صِرَاطٍ طَرِيقٍ (مُّسْتَقِيمٍ) أي دِينِ الْإِسْلَام (وَيَقُولُونَ) الْمُنَافِقُونَ (آمَنَّا) صَدَقْنَا (بِاللَّهِ) بِتَوْحِيدِهِ (وَبِالرَّسُولِ) محمد (وَأَطَعْنَا) هما فِيمَا حَكَمَا بِهِ (ثُمَّ يَتَوَلَّى) يُعْرِضُ (فَرِيقٌ مِّنْهُم مِّن بَعْدِ ذَٰلِكَ) عَنْهُ (وَمَا أُولَٰئِكَ) الْمُعْرِضُونَ (بِالْمُؤْمِنِينَ) الْمَعْهُودِينَ الْمُوَافِقِ قُلُوبُهُمْ لِأَلْسِنَتِهِمْ (وَإِذَا دُعُوا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ) الْمُبَلِّغِ عَنْهُ (لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ إِذَا فَرِيقٌ مِّنْهُم مُّعْرِضُونَ) عَنِ الْمَجِيءِ إِلَيْهِ (وَإِن يَكُن لَّهُمُ الْحَقُّ يَأْتُوا إِلَيْهِ مُذْعِنِينَ) مُسْرِعِينَ طَائِعِينَ (أَفِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ) كُفْرٌ (أَمِ ارْتَابُوا) أي شَكُّوا فِي نُبُوَّتِهِ (أَمْ يَخَافُونَ أَن يَحِيفَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَرَسُولُهُ) فِي الْحُكْمِ أي فَيُظْلَمُوا فِيهِ لَا (بَلْ أُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ) بِالْإِعْرَاضِ عَنْهُ

**ترجمه:** آيا تاسو ته معلومه نه ده چه ټول د الله پاک پاکي بيانوي څه چه په اسمانونو او په زمکه کښې دی او په تسبيح (پاکی) کښې مونځ هم داخل دې او مارغان (هم) د اسمان او زمکې ترمينځه حال دا چه وزرې ئې خورې کړی دی طيرد طائرجمع ده، صافات حال دې يعنی حال دا چه خپلې وزرې ئې خورې کړی وی ټولو ته خپله دعا او تسبيح معلومه ده او الله پاک ته د دې خلقو د ټولو افعالو پوره پوره علم دې په دې کښې ذوی العقول ته په غير ذوی العقول باندې غلبه ده او د الله پاک حکومت دې په اسمانونو او زمکه کښې او خاص د الله پاک ملک دې: باران، د رزق او د نباتاتو خزانې او د الله پاک طرف مرجع ده، آيا تا ته معلومه نه ده چه الله پاک وريځې روانوی (يوځی) يعنی په نرمئ سره ئې روانې کړې وی بيا هغه وريځې خپل مينځ کښې يوځائې کړی يعنی بعض د بعض سره ملاؤ کړی پس متفرق ټکړې را يوځائې کړی او يو ټکړه ترې جوړه کړی بيا هغه د يو بل دپاسه کړی نو بيا ته باران ته ګورې چه د هغې د مينځ سورو نه راوځی او د وريځ نه يعنی د وريځې د غر په شان لويو لويو ټکړو نه ګلئ ورروی فيه ای فی السماء فيها، د جار په اعادې سره د السماء نه بدل دې او من السماء کښې من زائده دې بيا چه هغه په چا غواړی دا (ګلئ) ورروی او د چا نه چه ئې غواړی لرې کوی، د دې وريځې د بجلئ د چمک نه داسې معلوميږی چه اوس به ختم کړی چمک د کتونکی د سترګو رڼا يعنی رندې به ئې کړی او الله پاک شپه او ورځ بدلوی يعنی په هغې کښې هر يو لره د بل په بدل کښې راولی بيشکه په دې بدلولو کښې د علم او پوهې والو دپاره د الله پاک دقدرت باندې دلالت دې او الله پاک هر ګرځيدونکې يعنی ساه لرونکې د اوبو يعنی د نطفې نه پيدا کړې دې نو په هغوی کښې بعض داسې دی کوم چه په خيټه باندې خوځيږی لکه مار او حشرات الارض او بعض په هغوی کښې هغه دی کوم چه په دوؤ خپو باندې ګرځی لکه انسان او مارغان او بعض د هغوی نه په څلورو خپو باندې ګرځی لکه څاروی الله پاک چه څه غواړی هغه پيدا کوی بيشکه الله پاک په هر يو څيز باندې قادر دې او بيشکه مونږ واضح کونکی آيتونه نازل کړی دی هغه قرآن دې او الله پاک چه چا ته غواړی د مستقيم لارې يعنی د دين اسلام طرف ته هدايت فرمائی او دا منافقان دعوی خو کوی چه مونږ په الله پاک يعنی د هغه توحيد او د هغه رسول محمد ﷺ باندې ايمان راوړو يعنی

د زړه نه مو تصديق اوکړو او هغوی دوا ړو چه کوم حکم اوکړو د هغې مونږ اطاعت اوکړو بيا ددې نه روستو په دې کښې يو جماعت د دې حکم نه اعراض کوی او دا اعراض کونکی بالکل مومنان نه دی يعنی داسې عهد کونکی نه دی چه په هغې کښې د هغوی په زړه او ژبه کښې مطابقت وی او چه کله هغوی د الله پاک او د هغه د رسول ﷺ طرف ته رابللې شی هغه رسول کوم چه د الله پاک د طرف نه مبلغ دې د دې دپاره چه هغه په دوی کښې فيصله اوکړی نو د هغوی يوه ډله نبی عليه السلام ته د راتلو نه اعراض کوی او که د هغوی (په چا باندې) حق وی نو فورا سر ښکته کړی (تابعدار) را روان وی آيا د هغوی په زړونو کښې مرض کفر دې؟ يا هغوی ستا د نبوت په باره کښې په شک کښې پريوتلې دی، يا د هغوی دا ويره ده چه الله پاک او د هغه رسول به په فيصلې کښې په هغوی باندې ظلم اوکړی؟ يعنی په هغوی باندې به په فيصله کښې ظلم اوکړې شی؟ نه! دا خبره نه ده بلکه هم دا ظالمان دی د حکم نه اعراض کولو سره.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** ﴿ الم تر أَنَّ اللَّهَ يُسَبِّحُ لَهُ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ همزه د تقرير دپاره دې او د رؤيت نه مراد رؤيت قلبی دې، ځکه چه د تسبيح تعلق د بصر او نظر سره نه دې بلکه د قلب او بصيرت سره دې، مطلب دا دې اې محمد ﷺ تاته ښه معلومه ده چه د اسمانونو او زمکې مخلوق د الله پاک تسبيح او تقديس بيانوی او مارغان هم په فضاء کښې وزرې خورې کړې د الله پاک تسبيح کوی، د ﴿ من ﴾ استعمال ذوی العقول ته په غير ذوی العقول باندې غلبه ورکولو په اعتبار سره دې ګنې په مخلوق کښې خو په لس حصو کښې يوه حصه ذوی العقول دی چه په هغې کښې انسان، جن او ملائک هر څه داخل دی او باقی غير ذوی العقول دی.

**قوله:** ﴿ وَمِنَ التَّسْبِيحِ صَلَاةٍ ﴾ د دې اضافې مقصد دا دې چه د تسبيح نه مراد انقياد او خضوع ده او صلاة هم د انقياد او خضوع د افرادو نه يو فرد دې، د دې نه علاوه د الله پاک قول ﴿ كل قد علم صلاته وتسبيحه ﴾ دپاره توطيه او تمهيد هم دې، ﴿ طير ﴾ د ﴿ طائر ﴾ جمع ده، لکه چه رکب جمع د راکب ده، د ﴿ طير ﴾ عطف په ﴿ من فی السماوات ومن فی الارض ﴾ باندې دې.

**سوال:** د دې عطف نه عطف الشئ علی نفسه لازميږی، ځکه چه په ﴿ من فی السموات ومن فی الارض ﴾ کښې ﴿ طير ﴾ هم داخل دی، لهذا معطوف او معطوف عليه يو شو؟ ﴿ بين السماء والارض ﴾ سره د ذکر شوی اعتراض جواب ورکول مقصود دی.

**جواب:** د جواب خلاصه دا ده چه معطوف او معطوف عليه يو نه دی بلکه په دوی کښې مغايرت دې ځکه چه د معطوف عليه نه د اسمانونو او زمکې مخلوق مراد دې او مارغان چه کله وزرې خورې کړی نو هغه وخت هغوی نه په زمکه وی او نه په اسمان، لهذا د

عطف الشئ علی نفسه شبه ختم شوه.

**قوله:** ﴿صَآفَّات﴾ د ﴿طير﴾ نه حال دي، ﴿الطير﴾ په ﴿من﴾ باندې د عطف د وجې نه مرفوع دې او ﴿صافات﴾ د حال كيدو د وجې نه منصوب دې (په دې كښې نور تركيبونه هم كيدې شي خو آسان او راجح قول هم دا دې) كل قد علم صلاته وتسبيحه، علم صلاته ... او تسبيحه ... په درې وارو ضميرونو كښې اقوال مختلف دي، يو قول دا دې چه د درې وارو ضميرونو مرجع ﴿كل﴾ دې اى كل علم صلاته وتسبيحه ... دا صورت د ضمائرو د توافق د وجې نه د ټولو نه غوره دې، دويم قول دا دې چه د علم ضمير د الله پاک طرف ته راجع وى او د صلاته وتسبيحه ضميرونه د ﴿كل﴾ طرف ته راجع وى. (جمل)

**قوله:** ﴿ثُمَّ يُؤَلِّفُ بَيْنَه﴾ دلته دا اعتراض كيدلې شى چه ﴿بين﴾ د متعدد ترمينځه استعماليږى، او دلته دسحاب دپاره استعمال شوې دې، حال دا چه سحاب واحد دې؟ مفسر علام په خپل قول بضم بعضه الى بعض اضافه كولو سره د ذكر شوى اعتراض د جواب طرف ته اشاره اوكړه، اى قطع سحاب يعنى مضاف محذوف دې (قطع جمع قطيعة) خيال دې وى چه د ذكر شوى جواب ضرورت په هغه وخت راپيښيږى چه كله سحاب مفرد اومنلې شى او كه سحاب د سحابة جمع يا اسم جنس اومنلې شى نو نه به اعتراض واقع كيږى او نه به د جواب ضرورت راځى.

**قوله:** ﴿يُزْجِى﴾ د ازجاء نه مضارع واحد مذكر غائب دې هغه په نرمئ سره روانوى (بوځى).

**قوله:** ﴿رُكَامًا﴾ دا اسم دې يعنى د يو بل دپاسه ... يخرج من خلاله دا جمله د ﴿الودق﴾ نه حال دې.

**قوله:** ﴿خِلَال﴾ ته بعض حضراتو مفرد وئيلې دې په وزن د حجاب او بعض حضراتو ورته جمع وئيلې دې خلال جمع د خلل په وزن د جبال جمع د جبل په معنى د سورى.

**قوله:** ﴿يُنَزِّلُ مِنَ السَّمَاءِ مِنْ جِبَالٍ فِيهَا مِنْ بَرَدٍ﴾ من السماء كښې من ابتدائيه دې اى مبتدأ من السحاب فان كل ما علاك فهو سماء.

**قوله:** ﴿مِنْ جِبَالٍ﴾ اى قطع عظام تشبه الجبال فى العظم.

**قوله:** ﴿فِيهَا اى فِى السَّمَاءِ﴾ والجار والمجرور فى موضع الصفة.

**قوله:** ﴿مِنْ بَرَدٍ﴾ كښې من تبعيضيه دې، اى ينزل مبتدأ من السحاب من جبال كائنة فيها بعض برد (او) بردا.

**ترجمه:** د غرونو په شان د لويو لويو ټكرو نه ګلئ راوروى كومه چه په وريځ كښې وى اى ينزل من السحاب الذى هو كامثال الجبال بردا ... په ذكر شوى آيت كريمه كښې من درې

کړنه استعمال شوې دې، اولنۍ یعنی من السماء کښې دا په اتفاق د مفسرینو ابتدائیه دې، او دویم ﴿ من جبال ﴾ کښې وئیلې شوې دی چه زائده دې، او تبعیضیه هم وئیلې شوې دې او ابتدائیه هم وئیلې شوې او جبال د من السماء نه په اعاده د جار سره بدل دې، او دریم ﴿ من برد ﴾ کښې ذکر شوی درې واړه اقوالو نه علاوه یو څلورم قول هم دې او هغه دا دې چه ﴿ من بیانیه ﴾ دې، یعنی د بیانِ جنس دپاره دې، ای من جنس البرد کما یقال هذا خاتم فی یدی من حدید....ای خاتم حدید فی یدی...

قوله: ﴿ وَمِنْهُمْ مَنْ يَمْشِي ﴾ ﴿ هم ﴾ ضمیر د ﴿ کل ﴾ طرف ته راجع دې په اعتبار د معنی سره، په خیټې باندې خوئیدونکی نه د مشاکلت په طور د ماشی سره تعبیر کړې شوې دې ځکه چه حقیقتا د ماشی ذکر روستو راروان دې، ګنې په خیټه باندې تلونکی ته خو زاحف وئیلې شی.

قوله: ﴿ لَقَدْ أَنْزَلْنَا آيَاتٍ مُبَيِّنَاتٍ ﴾ کښې لام قسمیه دې، قسم محذوف دې ای والله لقد انزلنا اطعنانه پس بعدهما ضمیر اضافه دې خبرې ته اشاره ده چه د ﴿ اطعنا ﴾ مفعول محذوف دې.

قوله: ﴿عنه﴾ ای عن القول...

قوله: ﴿ الْمُبَلِّغِ عَنْهُ ﴾ دا د دې سوال مقدر جواب دې چه ﴿ ليحكم ﴾ کښې ضمیرِ مفرد ولې راوړې شوې دې؟ حالانکه په ماقبل کښې د الله پاک او رسول ﷺ یعنی د دوؤ ذکر دې؟.

: جواب خلاصه دا ده چه حکم اګرچه حقیقت کښې د الله پاک دې خو مباشر بالحکم او مبلغ بالحکم رسول دې. د الله پاک ذکر خو تفخیما او تعظیما دې.

قوله ﴿فَرِيقٌ مِنْهُمْ مُعْرِضُونَ﴾ ﴿ اذا ﴾ مفاجاتیه قائم مقام د فاء دې کوم چه جواب شرط لره شرط سره د ربط ورکولو دپاره دې، یعنی ﴿ اذادعوا ﴾ شرط دې او ﴿ اذافریق منهم ﴾ جزاء.

قوله: ﴿ الیه ﴾ ای المبلغ　یعنی که د غیر حق په هغوی باندې وې نو د رسول الله ﷺ خواته د راتلو نه اعراض کوی، دا آیت کریمه د بشر نومې یو منافق په باره کښې نازل شوې دې او حال دا چه د هغه د یو یهودی سره د زمکې په معامله کښې اختلاف راغلې وو. یهودی غوښتله چه فیصله نبی علیه السلام ته یوسی او منافق غوښتله چه کعب بن اشرف ته ئې یوسی ځکه د منافق دا خیال وو چه محمد ﷺ په مونږ باندې ظلم کوی.

قوله: ﴿ أَفِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ ﴾(الایة) په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چه د اعراض منشاء په ذکر شوې درې څیزونو کښې یو دې.

**[اياتونه: ۵۱ - ۵۷]**

{إِنَّمَا كَانَ قَوْلَ الْمُؤْمِنِينَ إِذَا دُعُوا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ} فالقول اللائق بهم {أَنْ يَقُولُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا} بالإجابة {وَأُولَٰئِكَ} حينئذٍ {هُمُ الْمُفْلِحُونَ} الناجون {وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيَخْشَ اللَّهَ} يخافه {وَيَتَّقْهِ} بسكون الهاء وكسرها بأن يطيعه {فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَائِزُونَ} بالجنة {وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ} غايتها {لَئِنْ أَمَرْتَهُمْ} بالجهاد {لَيَخْرُجُنَّ قُلْ} لهم {لَا تُقْسِمُوا طَاعَةٌ مَعْرُوفَةٌ} للنبي خير من قسمكم الذي لا تصدقون فيه {إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ} من طاعتكم بالقول ومخالفتكم بالفعل {قُلْ أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ فَإِنْ تَوَلَّوْا} عن طاعته بحذف إحدى التاءين خطاب لهم {فَإِنَّمَا عَلَيْهِ مَا حُمِّلَ} من التبليغ {وَعَلَيْكُمْ مَا حُمِّلْتُمْ} من طاعته {وَإِنْ تُطِيعُوهُ تَهْتَدُوا وَمَا عَلَى الرَّسُولِ إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ} أي التبليغ البين {وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنْكُمْ وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْأَرْضِ} بدلاً عن الكفار {كَمَا اسْتَخْلَفَ} بالبناء للفاعل والمفعول {الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ} من بني إسرائيل بدلاً عن الجبابرة {وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمْ دِينَهُمُ الَّذِي ارْتَضَىٰ لَهُمْ} وهو الإسلام بأن يظهره على جميع الأديان ويوسع لهم في البلاد فيملكوها {وَلَيُبَدِّلَنَّهُمْ} بالتخفيف والتشديد {مِنْ بَعْدِ خَوْفِهِمْ} من الكفار {أَمْنًا} وقد أنجز الله وعده لهم بما ذكر وأثنى عليهم بقوله {يَعْبُدُونَنِي لَا يُشْرِكُونَ بِي شَيْئًا} هو مستأنف في حكم التعليل {وَمَنْ كَفَرَ بَعْدَ ذَٰلِكَ} الإنعام منهم به {فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ} وأول من كفر به قتلة عثمان رضي الله عنه فصاروا يقتتلون بعد أن كانوا إخوانا {وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ} أي رجاء الرحمة {لَا تَحْسَبَنَّ} بالفوقانية والتحتانية والفاعل الرسول {الَّذِينَ كَفَرُوا مُعْجِزِينَ} لنا {فِي الْأَرْضِ} بأن يفوتونا {وَمَأْوَاهُمُ} مرجعهم {النَّارُ وَلَبِئْسَ الْمَصِيرُ} المرجع هي

**ترجمه:** د ايمان والو قول خو دا دې چه کله هغوی راوغوښتلې شي چه الله او د هغه رسول په هغوی کښې فيصله اوکړي نو هغوی وائي چه مونږ واوريدله او اومومنله (عملاً) منلو سره يعني داسې وينا د مومنانو د شان سره لائق ده او هم داسې خلق د دې قول په وجه باندې فلاح بيا موندونکی دی او کوم کس چه د الله پاک او د هغه د رسول اطاعت اوکړي او د الله پاک نه ويره ساتي او د هغه (عذاب) نه ويريږي يتقه د ها په سکون او کسرې سره دې يعنی د هغه اطاعت اوکړي پس هم داسې خلق به جنت موندلو سره بامراده وی او هغوی نهايت پوخ والی سره د الله پاک قسمونه خوړلو سره وائي چه که ته هغوی ته د جهاد حکم اوکړي نو هغوی به ضرور اوځي، ته اوايه چه قسمونه مه خورئ په معروف طريقې سره د نبی طاعت غوره دې ستاسو د داسې قسمونو نه چه په هغې کښې تاسو رشتينی نه يئ الله پاک ستاسو د عمل نه کوم چه قولا اطاعت او عملا مخالفت دې ښه خبر دې ته اوايه چه د الله پاک او د هغه د رسول اطاعت کوئ بيا هم که تاسو د دې طاعت نه مخ واړوئ تولوا کښې د يو تاء په حذف سره هغوی ته خطاب دې (نو د دې هيڅ نقصان نشته) (دا جواب شرط محذوف دې) ځکه چه د رسول الله ﷺ په ذمه باندې هم

هغه د تبليغ کار دې کوم چه د هغه په ذمه لګولې شوې دې او ستاسو په ذمه هغه طاعت دې کوم چه ستاسو په ذمه لګولې شوې دې او که تاسو د هغه اطاعت اوکړو نو هدايت به بيا مومئ او د رسول ﷺ په ذمه خو صفا صفا رسول دى، الله پاک په تاسو کښې هغه خلقو سره وعده کړې ده چا چه ايمان راوړې دې او نيک عمل ئې کړې دې چه يقينا هغوى لره به د هغه کفارو په ځائې د زمکې خليفه ګان جوړکړى کوم چه د هغوى نه مخکښې وو بنى اسرائيلو کښې د ظالمانو په ځائې استخلف معروف او مجهول (دواړه دى) او کوم دين چه ئې د هغوى دپاره خوښ کړې دې يقينا د هغوى دپاره به هغې ته قوت ورکړى او هغه اسلام دې (داسې قوت به ورکړى) چه هغه به په ټولو دينونو باندې غالب کړى، او د هغوى دپاره به په ملکونو کښې وسعت ورکړى نو هغوى به د دې مالکان شى او د کفارو نه د هغوى د ويرې نه پس دا ويره به په امن باندې بدله کړى ليبدلنهم په تخفيف او تشديد سره دې او الله پاک د هغوى سره خپله ذکر شوې وعده پوره کړه او د هغوى ئې په خپل قول يعبدوننى لايشرکون بى شيئا سره تعريف اوفرمائيلو او دا جمله مستانفه ده د علت په حکم کښې ده. او په هغوى کښې چه کوم کس د دې انعام نه پس ناشکرى اوکړى نو داسې خلق فاسقان دى او د ټولو نه اول چه چا د دې انعام ناشکرى اوکړه هغه قاتلين عثمان ﷺ دى، پس سره د دې چه خپل مينځ کښې رونړه رونړه وو قتل وقتال ئې شروع کړو او د مونځ پابندى کوئ او زکاة ورکوئ او د رسول اطاعت کوئ چه په تاسو باندې رحم اوکړې شى يعنى د رحمت اميد لرلو سره تاسو د کفارو متعلق دا خيال هرګز مه کوئ چه په زمکه باندې به زمونږ نه بچ کيدو سره مونږ ته شکست راکړى (تحسبن) په تاء فوقانيه او تاء تحتانيه سره دې او فاعل رسول الله ﷺ دې او د هغوى استوګنه مرجع دوزخ دې او هغه ډير بد ځائې دې د ورګرځيدو.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** ﴿ إِنَّمَا كَانَ قَوْلَ الْمُؤْمِنِينَ ﴾ جمهورو په قول باندې، د کان د خبر کيدو د وجې نه نصب لوستلې دې او ان يقولوا الخ ئې په تاويل د مصدر د کان اسم منلې دې، او على او حسن او ابن اسحاق قول لره د کان اسم منلو سره مرفوع لوستلې دې او ﴿ ان يقولوا ﴾ ئې په تاويل د مصدر د ﴿ کان ﴾ خبر منلې دې، اول قراءت جمهورو راجع ګرځولې دې.

**قوله:** ﴿ أَنْ يَقُولُوا ﴾ دا اګر چه جمله خبريه ده خو په دې سره د ادب شرعى تعليم مقصود دې په دې وجه د جمله انشائيه په حکم کښې ده.

**قوله:** ﴿ وَيَتَّقْهِ ﴾ په اصل کښې ﴿ يتقيه ﴾ وو، د جزم د وجې نه ياء حذف شوه او د قاف کسره باقى پاتې شوه، بيا د قاف کسره تخفيفا خلاف قياس حذف کړې شوه ځکه چه کومه صيغه د فَعِلَ په وزن باندې وى د هغې عين کلمه ساکن کولې شى لکه په ﴿ کتف ﴾ (بسکون

التاء) او ﴿كتف﴾ (بكسر التاء) كښې.

**قوله:** ﴿جهد ايمانهم﴾ د فعل محذوف مفعول مطلق كيدو د وجې نه منصوب دې، ﴿غايتها﴾ محذوف سره هم دې طرف ته اشاره ده، د عبارت تقدير دا دې ﴿يجهدون ايمانهم جهدا﴾ بعض حضراتو د حال كيدو د وجې نه منصوب منلې دې اى مجتهدين فى ايمانهم.

**قوله:** ﴿لَيَخْرُجُنَّ﴾ جواب قسم دې.

**قوله:** ﴿طَاعَةٌ مَعْرُوفَةٌ﴾ په تركيب توصيفى سره مبتدأ ده او ﴿خيرالخ﴾ د دې خبر دې مفسر علام ﴿خير﴾ مقدر منلو سره هم دې طرف ته اشاره كړې ده، ﴿طاعة معروفة﴾ د مبتدا محذوف خبر كيديو دوجې نه هم مرفوع كيدې شى اى طاعتهم طاعة معروفة.

**قوله:** ﴿إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ﴾ دا د ماقبل جملې علت دې.

**قوله:** ﴿فَإِنْ تَوَلَّوْا﴾ كښې مامورينو ته خطاب دې يعنى ﴿اطيعوا الله واطيعوا الرسول﴾ كښې چه كوم خلق مخاطب دى هم هغوى د ﴿تولوا﴾ مخاطب دى، ﴿قل اطيعوا الله الخ﴾ كښې رسول الله ﷺ ته خطاب وو په ﴿فان تولوا﴾ كښې مامورينو ته خطاب دې.

**قوله:** ﴿فَإِنَّمَا عَلَيْهِ مَا حُمِّلَ﴾ دا جواب شرط دې او په يو قول كښې جواب محذوف دې او ﴿فانما عليه ما حمل﴾ د دې جواب علت دې لكه چه د ترجمې د عنوان لاندې بيان كړې شوى دى.

**قوله:** ﴿وَمَا عَلَى الرَّسُولِ﴾ دا د ماقبل جملې تاكيد دې.

**قوله:** ﴿وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنْكُمْ﴾ ... الذين امنو منكم .... د وَعَدَ مفعول اول دې او مفعول ثانى محذوف دې او هغه الاستخلاف فى الارض وتمكين دينهم وتبديل خوفهم بالامن دا ټول معطوفات د ﴿وعد﴾ مفعول ثانى دې او ﴿ليستخلفنهم﴾ قسم مقدر جواب دې، تقدير دا دې والله ليستخلفنهم او دا جواب قسم د مفعول ثانى په حذف باندې دلالت كوى.

**قوله:** ﴿كَمَا اسْتَخْلَفَ﴾ كښې ما مصدريه ده اى استخلافا كاستخلاف الذين من قبلهم.

**قوله:** ﴿بما ذكر﴾ د دې تعلق د وعده سره دې او ماذكرنه امور ثلاثه مذكوره مراد دى

**قوله:** ﴿يَعْبُدُونَنِي﴾ دا جمله مستانفه ده مفسر علام په هومستانف وئيلو سره هم دې طرف ته اشاره كړې ده، په دې كښې مختلف تركيبونه كيدې شى خو مفسر علام هم دې ته راجح وئيلې دې، دا جمله گويا د يو سوال مقدر جواب دې، اوئيلې شو ما بالهم يستخلفون ويؤمنون فاجيب بعبدوننى مذكوره جمله د مبتدأ محذوف خبر هم كيدې شى په دې صورت كښې به هم دا جمله مستانفه وى، تقدير به داسې وى هم يعبدوننى.

**قوله:** ﴿لَا يُشْرِكُونَ بِي شَيْئًا﴾ دا جمله مستانفه هم كيدې شى او د ﴿يعبدوننى﴾ د ضمير

فاعل نه حال هم کیدې شی ای یعبدوننی موحدین.

قوله: ﴿منهم﴾دا د ﴿من﴾نه حال دې او هم ضمیر د للذین امنوا طرف ته راجع دې.

قوله: ﴿به﴾ضمیر د انعام طرف ته راجع دې، ای الانعام بما ذکر من الامور الثلاثة ...او د کفر نه مراد کفرانِ نعمت دې نه چه د ایمان ضد، هم په دې وجه باندې ئې ﴿اولئك هم الفاسقون﴾ ویلې دې، ﴿اولئك هم الکافرون﴾ئې نه دې ویلې.

قوله: ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ﴾دا جمله په مقدر باندې عطف ده چه د هغې سیاق تقاضه کوی ای فامنوا واقیموا الصلاة الخ.

قوله: ﴿لَا تَحْسَبَنَّ﴾ د دې فاعل ﴿الرسول﴾ دې او ﴿الذین کفروا﴾ مفعول اول دې او ﴿معجزین﴾ مفعول ثانی دې او ﴿یحسبن﴾بالیاء په صورت کښې به مفعول اول محذوف وی ای لا یحسبن الذین کفروا انفسهم او معجزین به مفعول ثانی وی، او الذین کفروا به د لا یحسبن دپاره فاعل وی.

قوله: ﴿مُعْجِزِينَ﴾ای فائتین یعنی بچ وتل.

[ایاتونه:۵۸ - ۶۱]

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لِيَسْتَأْذِنكُمُ الَّذِينَ مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾ مِنَ الْعَبِيدِ وَالْإِمَاءِ ﴿وَالَّذِينَ لَمْ يَبْلُغُوا الْحُلُمَ مِنكُمْ﴾ مِنَ الْأَحْرَارِ وَعَرَفُوا أَمْرَ النِّسَاءِ ﴿ثَلَاثَ مَرَّاتٍ﴾ فِي ثَلَاثَةِ أَوْقَاتٍ ﴿مِّن قَبْلِ صَلَاةِ الْفَجْرِ وَحِينَ تَضَعُونَ ثِيَابَكُم مِّنَ الظَّهِيرَةِ﴾ أَيْ وَقْتَ الظُّهْرِ ﴿وَمِن بَعْدِ صَلَاةِ الْعِشَاءِ ثَلَاثُ عَوْرَاتٍ لَّكُمْ﴾ بِالرَّفْعِ خَبَرُ مُبْتَدَإٍ مُقَدَّرٍ بَعْدَهُ مُضَافٌ وَقَامَ الْمُضَافُ إِلَيْهِ مَقَامَهُ أَيْ هِيَ أَوْقَاتٌ وَبِالنَّصْبِ بِتَقْدِيرِ أَوْقَاتٍ مَنْصُوبًا بَدَلًا مِنْ مَحَلِّ مَا قَبْلَهُ قَامَ الْمُضَافُ إِلَيْهِ مَقَامَهُ وَهِيَ لِإِلْقَاءِ الثِّيَابِ تَبْدُو فِيهَا الْعَوْرَاتُ ﴿لَيْسَ عَلَيْكُمْ وَلَا عَلَيْهِمْ﴾ أَيِ الْمَمَالِيكِ وَالصِّبْيَانِ ﴿جُنَاحٌ﴾ فِي الدُّخُولِ عَلَيْكُمْ بِغَيْرِ اسْتِئْذَانٍ ﴿بَعْدَهُنَّ﴾ أَيْ بَعْدَ الْأَوْقَاتِ الثَّلَاثَةِ هُمْ ﴿طَوَّافُونَ عَلَيْكُم﴾ لِلْخِدْمَةِ ﴿بَعْضُكُمْ﴾ طَائِفٌ ﴿عَلَىٰ بَعْضٍ﴾ وَالْجُمْلَةُ مُؤَكِّدَةٌ لِمَا قَبْلَهَا ﴿كَذَٰلِكَ﴾ كَمَا بَيَّنَ مَا ذُكِرَ ﴿يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ﴾ أَيِ الْأَحْكَامَ ﴿وَاللَّهُ عَلِيمٌ﴾ بِأُمُورِ خَلْقِهِ ﴿حَكِيمٌ﴾ بِمَا دَبَّرَهُ لَهُمْ وَآيَةُ الْاِسْتِئْذَانِ قِيلَ مَنْسُوخَةٌ وَقِيلَ لَا وَلَكِنْ تَهَاوَنَ النَّاسُ فِي تَرْكِ الْاِسْتِئْذَانِ ﴿وَإِذَا بَلَغَ الْأَطْفَالُ مِنكُمُ﴾ أَيُّهَا الْأَحْرَارُ ﴿الْحُلُمَ فَلْيَسْتَأْذِنُوا﴾ فِي جَمِيعِ الْأَوْقَاتِ ﴿كَمَا اسْتَأْذَنَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ﴾ اي الاحرار الكبار ﴿كذلك يبين الله لكم آياته والله عليم حكيم﴾ ﴿وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَاءِ﴾ قَعَدْنَ عَنِ الْحَيْضِ وَالْوَلَدِ لِكِبَرِهِنَّ ﴿اللَّاتِي لَا يَرْجُونَ نِكَاحًا﴾ لِذَلِكَ ﴿فَلَيْسَ عَلَيْهِنَّ جُنَاحٌ أَن يَضَعْنَ ثِيَابَهُنَّ﴾ مِنَ الْجِلْبَابِ وَالرِّدَاءِ وَالْقِنَاعِ فَوْقَ الْخِمَارِ ﴿غَيْرَ مُتَبَرِّجَاتٍ﴾ مُظْهِرَاتٍ ﴿بِزِينَةٍ﴾ خَفِيَّةٍ كَقِلَادَةٍ وَسِوَارٍ وَخَلْخَالٍ ﴿وَأَن يَسْتَعْفِفْنَ﴾ بِأَنْ لَا يَضَعْنَهَا ﴿خَيْرٌ لَّهُنَّ وَاللَّهُ سَمِيعٌ﴾ لِقَوْلِكُمْ ﴿عَلِيمٌ﴾ بِمَا فِي قُلُوبِكُمْ ﴿لَّيْسَ عَلَى الْأَعْمَىٰ حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْأَعْرَجِ حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْمَرِيضِ حَرَجٌ﴾ فِي مُؤَاكَلَةِ مُقَابِلِيهِمْ ﴿وَلَا﴾ حَرَجَ ﴿عَلَىٰ أَنفُسِكُمْ أَن تَأْكُلُوا مِن بُيُوتِكُمْ﴾ بُيُوتِ أَوْلَادِكُمْ ﴿أَوْ بُيُوتِ آبَائِكُمْ أَوْ بُيُوتِ

أُمَّهَاتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ إِخْوَانِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَخَوَاتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَعْمَامِكُمْ أَوْ بُيُوتِ عَمَّاتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَخْوَالِكُمْ أَوْ بُيُوتِ خَالَاتِكُمْ أَوْ مَا مَلَكْتُمْ مَفَاتِحَهُ، خَزَنْتُمُوهُ لِغَيْرِكُمْ (أَوْ صَدِيقِكُمْ) وَهُوَ مَنْ صَدَقَكُمْ فِي مَوَدَّتِهِ الْمَعْنَى يَجُوزُ الاكل من بيوت او ذُكِرَ وَإِنْ لَمْ يَحْضُرُوا إِذَا عَلِمَ رِضَاهُمْ بِهِ (لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَأْكُلُوا جَمِيعًا) مُجْتَمِعِينَ (أَوْ أَشْتَاتًا) مُتَفَرِّقِينَ جَمْعُ شَتَّ نَزَلَ فِيمَنْ تَحَرَّجَ أَنْ يَأْكُلَ وَحْدَه وَإِذَا لَمْ يَجِدْ مَنْ يُؤَاكِلُهُ يَتْرُكُ الْأَكْلَ (فَإِذَا دَخَلْتُمْ بُيُوتًا) لَكُمْ لَا أَهْلَ بِهَا (فَسَلِّمُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ) قُولُوا السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللَّهِ الصَّالِحِينَ فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ تَرُدُّ عَلَيْكُمْ وَإِنْ كَانَ بِهَا أَهْلٌ فَسَلِّمُوا عَلَيْهِمْ (تَحِيَّةً) مَصْدَرُ حَيَّا (مِنْ عِنْدِ اللَّهِ مُبَارَكَةً طَيِّبَةً) يُثَابُ عَلَيْهَا (كَذَلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ) أَيْ يُفَصِّلُ لَكُمْ مَعَالِمَ دِينِكُمْ (لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ) لِكَيْ تَفْهَمُوا ذَلِكَ

**ترجمه:** اې ایمان والو ستاسو غلامانو یعنی غلام او وینزو لره او هغه چا لره کوم چه په تاسو کښې د بلوغ حد ته نه دی رسیدلی د آزادو نه، خو د زنانۀ د معاملې نه خبر شوې دی درې کرته یعنی درې وختونو کښې ورله اجازت اخستل پکار دی، سحر د مانځه نه مخکښې او د غرمې یعنی د غرمې په وخت چه کله تاسو خپلې کپړې کوزې کړئ او د ماسخوتن د مانځه نه روستو دا درې وختونه ستاسو د پردې دی (ثلاث) په رفع سره څکه چه د مبتدا محذوف خبر دې او د مبتدأ نه پس مضاف محذوف دې، او مضاف الیه د مضاف قائم مقام شوې دې، ای هی اوقات ثلاث عورات لکم او (ثلاث) په نصب سره، ددې نه مخکښې اوقات مقدر منلو سره، حال دا دې چه د خپل ماقبل (یعنی من قبل صلاة الفجر) د محل نه د بدل د وجې نه منصوب وی او (اوقات) مضاف حذف کولو سره مضاف الیه (یعنی عورات) لره د مضاف قائم مقام کړې شو، او دا درې اوقات (داسې دی چه) په دې کښې کپړې لرې کولو د وجې نه ستر پرانستلې شی د دې درې وارو اوقاتو نه علاوه کښې نه په تاسو باندې څه الزام شته او نه په هغوی باندې یعنی مملوک او ماشومانو باندې، چه بغیر د اجازت نه تاسو ته راځی، هغوی په کثرت سره په تاسو د خدمت دپاره چکر لګوی بعض بعضو ته ځی راځی او (دا) جمله د ماقبل جملې تاکید دې، هم دغه شان لکه چه مذکوره احکام بیان کړې شو الله پاک ستاسو دپاره احکام ښکاره بیانوی او الله پاک د خپل مخلوق د حالاتو نه خبردار دې او څه چه د دې دپاره تدبیر کوی په هغې کښې حکمت والا دې، د آیت استیذان په باره کښې وئیلې شوی دی چه منسوخ دې او وئیلې شوې دی چه منسوخ نه دې خو خلق په استیذان کښې سستی کوی (د ترک لفظ غالبا سهو ده)، کنې مطلب به دا وی چه په استیذان کښې ئې سستی ترک کړې ده. تنبیه: حال دا چه دا خلاف مقصود ده.

او چه کله ستاسو هلکان اې آزادو خلقو حد بلوغ ته اورسیږی نو په ټولو اوقاتو کښې هغوی لره هم دغه شان اجازت اخستل پکار دی لکه چه د هغوی ماقبل ذکر شوی خلق اجازت اخلی یعنی بالغ

آزاد، الله پاک ستاسو دپاره هم دغه شان احکامات بیانوي او الله پاک علم والا (او) حکمت والا دي، او مشرانې زنانه کومې چه د خپل بوډاتوب د وجې نه د اولاد او حیض نا امیده شوې وي اوهم د دې (بوډاتوب د وجې نه) د نکاح امید (خواهش) نه لري نو په هغوی باندې خپلې زائد کپړې لرې کولو کښې هیڅ گناه نشته مثلا برقع، لوپټه کومه چه د سرپیچک دپاسه وي په دې شرط چه پټ ډول ښکاره نه کړي لکه گلوبند (گریوان)، بنگړي (کړې) او پازیب او که د دې نه هم احتیاط اوکړي نو د هغوی دپاره نوره هم زیاته غوره ده او الله پاک د هغوی خبرو لره اوریدونکې دې او د قلوب خطراتو لره پیژندونکې دې نه خو په نابینا سړي باندې څه باک شته اونه په گډ باندې څه حرج دې او نه په مریض باندې څه گناه شته د خپل مقابل (غیر معذورو) سره په خوراک کښې او نه خپله ستاسو دپاره څه باک شته په دې خبره کښې چه تاسو د خپلو کورونو نه خوراک اوکړئ یا د خپل اولاد د کورونو نه یا د خپلو پلارانو د کورونو نه یا د خپلو میندو د کورونو نه یا د خپلو رونړو د کورونو نه یا د خپلو خویندو د کورونو نه یا د خپلو ترونو د کور نه یا د خپلو تروریانو (د پلار خویندې) د کورونو نه، یا د خپلو ماماگانو د کورونو نه یا د خپلو تروریانو (د مور خویندې) د کورونو نه یا د هغه کورونو نه چه د هغې چابیانې ستاسو په اختیار کښې دي یعنی د هغې نه چه د هغې تاسو د غیر د پاره حفاظت کوئ، یا د خپلو دوستانو د کورونو نه او دوست هغه دې کوم چه تا سره دوستئ کښې مخلص وي، د آیت کریمه معنی دا ده چه د مذکورینو د کورونو (اموال) نه د هغوی په غیر موجودگئ کښې خوراک جائز دې، یعنی چه کله د خوراک دپاره د هغوی د رضا علم اوشي، او ستاسو دپاره (په دې خبره کښې) هیڅ باک نشته چه ټول په یوځائې خوراک اوکړئ یا جدا جدا یعنی متفرق طریقې سره اشتاتا د شت جمع ده دا آیت کریمه د هغه سړي په باره کښې نازل شوې وو چه هغه به یواځې خوراک بد گڼرلو، او که څوک ملگرې به ئې بیا نه موندلو نو خوراک به ئې نه کولو او کله چه تاسو خپلو داسې کورونو ته داخلیږئ چه په هغې کښې څوک نشته نو خپل ځان ته سلام کوئ یعنی داسې وایئ چه السلام علینا وعلی عباد الله الصالحین ځکه چه فرشتې به تاسو ته د دې جواب درکوي او که په هغې کښې د کور خلق موجود وي نو هغوی ته د دعا په طور سلام کوئ، تحیة د حي مصدر کوم چه د الله پاک د طرف نه مقرر دې برکت والا غوره څیز دې، په دې باندې اجر درکولې شي هم دغه شان الله پاک ستاسو دپاره خپل احکامات بیانوي یعنی ستاسو د دین احکامات په واضح طریقه باندې بیانوي د دې دپاره چه تاسو په دې احکاماتو باندې پوهه شئ.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: ﴿ثَلٰثَ مَرّٰتٍ﴾ د ثلاث د منصوب کیدو دوه وجې دي اول دا چه د لیستاذنکم مفعول فیه دې ای لیستاذنوا فی ثلاثة اوقات فی الیوم واللیلة ... مفسر علام فی ثلاث اوقات اضافه کولو سره

اشاره اوکړه چه ثلاث مرات ظرف دې او مرات په معنی د اوقات دې، ای لیستأذنکم ثلاثة اوقات د دې نه پس من قبل صلاة الفجر نه من بعد صلاة العشاء پورې د ثلاث اوقات تفسیر دې.
د ثلاث مرات د منصوب کیدو بله وجه دا ده چه د لیستأذنکم مفعول مطلق دې ای لستاذنوا ثلاث استیذانات.

**قوله:** ﴿ ثَلَاثُ عَوْرَاتٍ لَكُمْ ﴾ ثلاث مبتدأ محذوف د خبر د وجې نه مرفوع دې د مبتدأ محذوف نه پس اوقات مضاف محذوف دې، مضاف لره حذف کولو سره مضاف الیه یعنی عورات لره د هغې قائم مقام کړې شوې دې، په دې صورت کښې به وقف په العشاء باندې وی، ای هی ثلاثة اوقات کائنة لکم... اوقات مذکوره ته عورات ونیلې شوی دی حال دا چه اوقات ثلاثة عورات نه دی خو چونکه مذکوره درې واړه اوقات د عدم تستر (خلل) عورات دی، مظروف ونیلو سره ظرف مراد اخستلې شوې دې (تسمیة الشئ باسم ما یقع فیه) او ثلاث عورات منصوب کیدو په صورت کښې ثلاث عورات د خپل ماقبل یعنی من قبل صلاة الفجر د محل نه بدل دې او مضاف الیه د مضاف قائم مقام دې چونکه ذکر شوې درې واړو اوقاتو کښې د (زائد) کپړو ویستلو د وجې نه پټه حصه ظاهریږی، هم د دې وجې نه دې اوقاتو ته عورات ونیلې شوی دی.

**قوله:** هی مبتدأ ده تبدو فیها العورات خبر دې لالقاء الثیاب الخ د تبدو علت مقدمه دې او د وختونو عورات نوم کیخودلو علت طرف ته اشاره اوکړې شوه.

**قوله:** ﴿ بعضکم علی بعض ﴾ دا جمله د سابق جمله طوافون علیکم تاکید دې.

**قوله:** ﴿ مُتَبَرِّجَاتٍ ﴾ د دې تفسیر په مظهرات سره کولو کښې اشاره اوکړې شوه چه ﴿ بزینة ﴾ کښې با د تعدیه دپاره ده بعض حضراتو ونیلې دی چه په ﴿ بزینة ﴾ کښې باء په معنی د لام دې ای مظهرات لزینة.

**قوله:** ﴿ الجلباب ﴾ لوئې څادر برقعه وغیره چه په هغې کښې پوره بدن پټ شی (جمع) ئې جلابیب راځی.

**قوله:** ﴿ فَوْقَ الخِمَار ﴾ د دې تعلق د ﴿ قناع ﴾ سره دې لوپټې وغیره ته ونیلې شی.

**قوله:** ﴿ فِي مُؤَاكَلَةِ مُقَابِلِيهِمْ ﴾ مواکلة... مصدر دې د خپل مفعول طرف ته مضاف دې ای فی اکلهم مع مقابلیهم.... (ای السالمین من هذه النقائص الثلاثة)

**قوله:** ﴿ وَلَا عَلَىٰ أَنفُسِكُمْ ﴾ دا جمله مستانفه ده.

**قوله:** ﴿ صَدِيقِكُمْ ﴾ د صدیق اطلاق په واحد او جمع دواړو باندې کیږی.

**قوله:** ﴿ من بیوت من ذُکِرَ ﴾ ماقبل کښې د یولسو بیوتو ذکر کړې شوې دې دا تعداد د

عادت او عرف په اعتبار سره دي.

**قوله:** (اى إِذَا عَلِمَ رِضَاهُمْ بِهِ) دا رضامندي صراحة وي يا د داسې قرينې د وجې نه وي کوم چه په رضامندئ باندې دلالت کوي، او ذکر شوې اجازت د عام خوراک څکاک په څيزونو کښې دې لکه ډوډئ او ترکارۍ وغيره دا اجازت په هغه څيزونو کښې نه دې کوم چه په مخصوص طريقه باندې اهتمام سره جوړولې شي هم دغه شان د اجازت خوړلو د حده پورې دې د ځان سره د اوړلو اجازت نشته، هم دغه شان په غير ماکول څيزونو کښې هم د تصرف اجازت نشته چه ترڅو پورې صريح اجازت نه وي.

**قوله:** (تَحِيَّةً) دا د فعل مقدر مفعول مطلق دې اى لحيوا تحية د فسلموا... معمول هم جوړيدې شي ځکه چه سلموا او تحية معنى نژدې نژدې دې، په دې صورت کښې به د قعدت جلوساً قبيل نه وي.

**قوله:** (مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ) د دې تعلق د (تحية) د محذوف صفت سره هم کيدې شي د عبارت تقدير به داسې وي، تحية صادرة من عند الله. او خپله د تحية سره هم متعلق کيدې شي.

**قوله:** (يثاب عليها) دا د مبارکة تفسير دې.

**[اياتونه: ۶۲-۶۴]**

(إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ آمَنُوا بِاللّٰهِ وَرَسُولِهِ وَإِذَا كَانُوا مَعَهُ) اَيْ الرَّسُول (عَلَى أَمْرٍ جَامِعٍ) كَخُطْبَةِ الْجُمُعَة (لَمْ يَذْهَبُوا) لِعُرُوضِ عُذْرٍ لَهُمْ (حَتَّى يَسْتَأْذِنُوهُ إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَأْذِنُونَكَ أُولَئِكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِاللّٰهِ وَرَسُولِهِ فَإِذَا اسْتَأْذَنُوكَ لِبَعْضِ شَأْنِهِمْ) امرهم (فأذن لمن شئت منهم) بالانصراف (واستغفر لهم الله إن الله غفور رحيم) (لَا تَجْعَلُوا دُعَاءَ الرَّسُولِ بَيْنَكُمْ كَدُعَاءِ بَعْضِكُمْ بَعْضًا) بِاَنْ تَقُولُوا يَا مُحَمَّد بَلْ قُولُوا يَا نَبِيَّ اللّٰه يَا رَسُولَ اللّٰه فِي لِين وَتَوَاضُع وَخَفْض صَوْت (قَدْ يَعْلَمُ اللّٰهُ الَّذِينَ يَتَسَلَّلُونَ مِنْكُمْ لِوَاذًا) اَيْ يَخْرُجُونَ مِنَ الْمَسْجِد فِي الْخُطْبَة مِنْ غَيْر اسْتِئْذَان خُفْيَة مُسْتَتِرِينَ بِشَيْءٍ وَقَدْ لِلتَّحْقِيق (فَلْيَحْذَرِ الَّذِينَ يُخَالِفُونَ عَنْ أَمْرِهِ) اَيْ اللّٰه وَرَسُوله (أَنْ تُصِيبَهُمْ فِتْنَةٌ) بَلَاء (أَوْ يُصِيبَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ) فِي الآخرة (أَلَا إِنَّ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ) مُلْكًا وَخَلْقًا وَعَبِيدًا (قَدْ يَعْلَمُ مَا أَنْتُمْ) اَيُّهَا الْمُكَلَّفُونَ (عَلَيْهِ) مِنَ الْإِيمَان وَالنِّفَاق (وَ) يَعْلَم (يَوْمَ يُرْجَعُونَ إِلَيْهِ) فِيهِ الْتِفَات عَنِ الْخِطَاب اَيْ مَتَى يَكُون (فَيُنَبِّئُهُمْ) فِيهِ (بِمَا عَمِلُوا) مِنَ الْخَيْر وَالشَّر (وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ) من اعمالهم وغيرها (عليم)

**ترجمه:** بس مومنان خو هغه کسان دي کوم چه په الله پاک او د هغه په رسول باندې ايمان لري، او چه کله هغوی د هغه سره يعنی د رسول عليه السلام سره په څه اهم معامله کښې جمع کيږي لکه چه د جمعې خطبه شوه نو د عذر پيښيدو په صورت کښې هم هغه وخته پورې نه ځي ترڅو پورې چه ستا نه اجازت وانخلي، کوم خلق چه ستا نه اجازت طلب کوي بس هغوی په الله باندې او د هغه په

رسول باندې ایمان لری نو کله چه دا خلق د خپل څه کار د پاره ستاسو نه اجازت او غواړی نو په هغوی کښې چه ته چاته غواړې د تللو اجازت ورکړه او ته د هغوی د پاره د الله پاک نه د مغفرت دعا اوکړه بیشکه الله پاک بخښنه کونکې او مهربانه دې تاسو د رسول ﷺ رابلل داسې مه ګڼئ لکه په تاسو کښې چه څوک یو بل لره رابلئ په دې طریقې سره چه وایئ اې محمد! بلکه یا نبی الله! یا رسول الله! په نرمئ سره او تواضع او ښکته اواز سره وایئ الله پاک هغه خلق پیژنی کوم چه په تاسو کښې پټیدو سره خوئیږی یعنی مسجد نه د خطبې په حالت کښې پټ د یو څیز نه پناه کیدو سره اوځی، او ﴿ قد ﴾ د تحقیق د پاره دې پس کوم خلق چه د الله پاک او د هغه د رسول د حکم مخالفت کوی هغوی لره د دې نه ویریدل پکار دی چه په هغوی باندې څه آفت راشی یا په هغوی باندې په آخرت کښې څه دردناک عذاب رانشی، یاد ساتئ چه څه په اسمانونو کښې دی او څه په زمکه کښې دی د ملکیت په اعتبار سره د تخلیق په اعتبار سره د مملوک کیدو په اعتبار سره ټول د الله پاک دی، الله پاک ته هغه حالت هم معلوم دې اې مکلفو (مخاطبو) چه په کوم حالت باندې تاسو یئ یعنی د ایمان او نفاق حالت او په هغه ورځ باندې هم عالم دې په کومه کښې چه به ټول هغه ته راوستلې شی په دې کښې د خطاب نه د غیبت طرف ته التفات دې، یعنی پوهیږی چه د رجوع ورځ به کله وی (ای یعلم متی یکون یوم الرجوع) پس هغه به هغوی ته په دغه ورځ باندې هر هغه څه بیان کړی چه څه هغوی خیر او شر کړی وی او الله پاک د هغوی د اعمالو وغیره نه واقف دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: ﴿ إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ ﴾ مبتدأ ده الذین اسم موصول آمنوا الخ معطوف علیه ﴿ واذا کانوا معه الخ ﴾ معطوف، معطوف سره د معطوف علیه نه صله شوه د ﴿ الذین ﴾ اسم موصول د پاره، اسم موصول او صله خبر شو د مبتدأ د پاره.

قوله: ﴿ عَلَىٰ أَمْرٍ جَامِعٍ ﴾ کښې اسناد مجازی دې، ځکه چه امر سبب جمع دې او جمع مسبب دې ګویا د سبب نسبت د مسبب طرف ته شوې دې

قوله: ﴿ لَا تَجْعَلُوا دُعَاءَ الرَّسُولِ ﴾ ای لاتنادوه باسمه فتقولوا یا محمد ﷺ ولا بکنیته فتقولوا یا ابا القاسم، بل نادوه بالتعظیم بان تقولوا یا رسول الله یا نبی الله د رسول الله ﷺ نوم مبارک چه څنګه د هغوی په ژوند مبارک کښې تعظیم سره اخستل ضروری وو د وفات نه پس هم ضروری دی د هغوی په شان مبارک کښې تخفیف کونکې کافر او ملعون دې.

قوله: ﴿ لواذا ﴾ د (مفاعله) مصدر دې د یو بل نه شاته کیدل، ﴿ لواذا ﴾ یا خو ﴿ یتسللون ﴾ د هم معنې کیدو د وجې نه مصدر دې ای یتسللون لواذا یا د فعل محذوف مصدر دې ای یلاوذون لواذا هم دغه شان مصدر په موضع د حال کښې واقع کیدو د وجې نه هم منصوب

کیدي شی ای یتسللون متلاوذین.

قوله: ( أَنْ تُصِيبَهُمْ فِتْنَةٌ )په تاویل د مصدر د ( فلیحذر )مفعول دي، ای اصابة فتنة.

قوله: ( وَيَوْمَ يُرْجَعُونَ ) د ( یعلم ) په معمول یعنی په ( ما انتم ) باندې عطف دي لکه چه مفسر علام یعلم مقدر منلو سره اشاره کړې ده.

## [۲۵] سورة الفرقان

سُورَة الْفُرْقَان مَكِّيَّة إلَّا الْآيَات ٦٨ و ٦٩ و ٧ فَمَدَنِيَّة وَآيَاتهَا ٧٧ نزلت بعد يس

سوره فرقان مکی دې سوا د "الذین لایدعون مع الله الٰها" نه تر آخر د "رحیما" پورې، دا مدنی دې، ټول ۷۷ آیتونه دی.

### [ایاتونه: ۱-۹]

بسم الله الرحمن الرحيم (تَبَارَكَ) تَعَالَى (الَّذِي نَزَّلَ الْفُرْقَانَ) الْقرآن لِأَنَّهُ فَرَّقَ بَيْن الْحَقّ وَالْبَاطِل (عَلَى عَبْدِهِ) مُحَمَّد (لِيَكُونَ لِلْعَالَمِينَ) الْإِنْس وَالْجِنّ دُون الْمَلَائِكَة (نَذِيرًا) مُخَوِّفًا مِنْ عَذَاب اللَّه (الَّذِي لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَلَمْ يَتَّخِذْ ولدا ولم يكن له شريك في الملك وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ) مِنْ شَأْنه أَنْ يَخْلُق (فَقَدَّرَهُ تَقْدِيرًا) سَوَّاهُ تَسْوِيَة (وَاتَّخَذُوا) أَيْ الْكُفَّار (مِنْ دُونِهِ) أَيْ اللَّه أَيْ غَيْره (آلِهَةً) هِيَ الْأَصْنَام (لَا يَخْلُقُونَ شَيْئًا وَهُمْ يُخْلَقُونَ وَلَا يَمْلِكُونَ لِأَنْفُسِهِمْ ضَرًّا) أَيْ دَفْعه (وَلَا نَفْعًا) أَيْ جَرّه (وَلَا يَمْلِكُونَ مَوْتًا وَلَا حَيَاةً) أَيْ إمَاتَة لِأَحَدٍ وَإِحْيَاء لِأَحَدٍ (وَلَا نُشُورًا) أَيْ بَعْثًا لِلْأَمْوَاتِ (وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ هَذَا) أَيْ مَا الْقُرْآن (إِلَّا إِفْكٌ) كَذِب (افْتَرَاهُ) مُحَمَّد (وَأَعَانَهُ عَلَيْهِ قَوْمٌ آخَرُونَ) وَهُمْ مِنْ أَهْل الْكِتَاب قال تعالى (فَقَدْ جَاءُوا ظُلْمًا وَزُورًا) كُفْرًا وَكَذِبًا أَيْ بِهِمَا (وَقَالُوا) أَيْضًا هُوَ (أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ) أَكَاذِيبهمْ جَمْع أُسْطُورَة بِالضَّمِّ (اكْتَتَبَهَا) انْتَسَخَهَا مِنْ ذَلِكَ الْقَوْم بِغَيْرِهِ (فَهِيَ تُمْلَى) تُقْرَأ (عَلَيْهِ) لِيَحْفَظهَا (بُكْرَةً وَأَصِيلًا) غُدْوَة وَعَشِيًّا قَالَ تَعَالَى رَدًّا عَلَيْهِمْ (قُلْ أَنْزَلَهُ الَّذِي يَعْلَمُ السِّرَّ) الْغَيْب (فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ إِنَّهُ كَانَ غَفُورًا) لِلْمُؤْمِنِينَ (رَحِيمًا) بهم (وَقَالُوا مَالِ هَذَا الرَّسُولِ يَأْكُلُ الطَّعَامَ وَيَمْشِي فِي الْأَسْوَاقِ لَوْلَا) هَلَّا (أُنْزِلَ إِلَيْهِ مَلَكٌ فَيَكُونَ مَعَهُ نَذِيرًا) يُصَدِّقهُ (أَوْ يُلْقَى إِلَيْهِ كَنْزٌ) مِنْ السَّمَاء يُنْفِقهُ وَلَا يَحْتَاج إلَى الْمَشْي فِي الْأَسْوَاق لِطَلَبِ الْمَعَاش (أَوْ تَكُونُ لَهُ جَنَّةٌ) بُسْتَان (يَأْكُلُ مِنْهَا) أَيْ مِنْ ثِمَارهَا فَيَكْتَفِي بِهَا وَفِي قِرَاءَة نَأْكُل بِالنُّونِ أَيْ نَحْنُ فَيَكُون لَهُ مَزِيَّة عَلَيْنَا بِهَا (وَقَالَ الظَّالِمُونَ) أَيْ الْكَافِرُونَ لِلْمُؤْمِنِينَ (إِنْ) مَا (تَتَّبِعُونَ إِلَّا رَجُلًا مَسْحُورًا) مخدوعا مغلوبا على عقله قال تعالى (انْظُرْ كَيْفَ ضَرَبُوا لَكَ الْأَمْثَالَ) بِالْمَسْحُورِ وَالْمُحْتَاج إلَى مَا يُنْفِقهُ وَإِلَى مَلَك يَقُوم مَعَهُ بِالْأَمْرِ (فَضَلُّوا) بِذَلِكَ عَنْ الْهُدَى (فَلَا يَسْتَطِيعُونَ سَبِيلًا) طَرِيقًا إلَيْهِ

ترجمه: شروع کوم په نوم د الله چه بیحده مهربان او رحم کونکي دې برکت والا برتر دې هغه ذات چا چه فرقان یعنی قرآن په خپل بنده محمد ﷺ باندې نازل کړې دې قرآن کریم ته فرقان په دې وجه وئیلي شوې دې چه هغه د حق او باطل ترمینځه فرق کړې دې د دې دپاره چه عالم والو

ته یعنی د انسانانو او جناتو دپاره نه د فرشتو دپاره ویرونکې وی یعنی د الله پاک دعذاب نه ویرونکې وی داسې ذات چه د هغه دپاره د اسمانونو او زمکې حکومت دې او هغه څوک اولاد نه دې نیولې او نه په ملک کښې د هغه څوک شریک دې او هغه هر یو څیز پیدا کړې دې چه د هغې شان مخلوق کیدل دی بیا ئې هغه په ښه طریقې سره برابر کړو او کفارو الله پاک لره پریخودلو سره دهغه غیر لره معبود جوړ کړو هغه بتان دی هغوی د یو څیز هم خالق نه دې بلکه هغوی خپله مخلوق دی او خپله د ځان دپاره نه د څه قسم نقصان یعنی د هغې د دفع کولو اختیار لری او نه د څه نفع یعنی هغې لره د حاصلولو او نه د چا د مرګ اختیار لری او نه د ژوند یعنی نه د چا د وژلو او نه د چا د ژوندی کولو او نه د دوباره ژوندی کولو یعنی نه مړو لره د ژوندی کولو او کافر خلق د قرآن کریم په باره کښې داسې وائی چه دا قرآن هیڅ هم نه دی صرف دروغ دی کوم چه دې سړی محمد ﷺ جوړ کړی دی او نورو خلقو په دې جوړولو کښې دهغه مدد کړې دې او هغه په اهل کتابو کښې بعض خلق دی پس دا خلق د ډیر ظلم او دروغو مرتکب شو د کفر او کذب. یعنی د دواړو ارتکاب ئې اوکړو او دا خلق دا هم وائی چه قرآن کریم د مخکښې خلقو دروغ قصې دی یعنی د دروغو افسانې دی (اساطیر) د اسطورة بالضم جمع ده دې خرافاتی قصو لره د دې قوم (یهود) نه د بل چا په ذریعه نقل کوی بیا هم هغه خرافاتی قصې هغه ته سحر او ماښام لوستلې شی چه هغه محفوظ کړی، په دوی باندې رد کولو سره الله پاک اوفرمائیل ته اوایه دا قرآن کریم خو هغه ذات نازل کړې دې چاته چه د زمکې او اسمانونو د غائب څیزونو علم دې واقعی الله پاک د مومنانو دپاره غفور او د هغوی دپاره رحیم دې او دا کافر خلق داسې وائی چه په دې رسول باندې څه شوی دی چه دې خوراک کوی او په بازارونو کښې ګرځی ده ته یوه فرشته ولې نه ده رالیږلې شوې؟ چه هغې د ده سره (خلق) ویرولې د هغه د نبوت تصدیق ئې کولې یا د اسمان نه هغه ته یوه خزانه راغلې وې چه هغې سره هغه ته فائده حاصله شوې وې او د طلب معاش دپاره په بازارونو کښې نه ګرځیدې یا هغه سره یو باغ وې چه د هغې نه یعنی د هغې میوې ئې خوړلې او په هغې باندې ئې اکتفاء کړې وې، او په یو قراءت کښې (ماکل) په ځائې نأکل په نون سره دې یعنی مونږ خوړلې، چه د هغې د وجې نه په مونږ باندې هغه ته فوقیت حاصل شوې وې او دا ظالمان کافران مومنانو ته داسې وائی چه تاسو د یو جادو زپلی دهوکه کړې شوی مغلوب العقل سړی پسې روان ئې الله پاک فرمائی اوګوره دا خلق ستا متعلق څنګه عجیب عجیب خبرې کوی د جادو زپلې، د خرچې د محتاج کیدو او د فرشتې د محتاج کیدو چه د هغه سره ذمه داری کښې شریک وی، هم په دې وجه (ضرب الامثال په وجه) د هدایت د لارې نه ګمراه شو او په هیڅ طریقې سره په حق لاره باندې نه نشی راتلې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

سورة فرقان مکی دې خو درې آیتونه (دا سورة) د هجرت نه مخکښې نازل شوې وو د

تولو سورتونو نوم او د هغې ترتيب او آياتونو ترتيب توقيفي دې البته د آيتونو تعداد توقيفي نه دې، دا سورة د توحيد او د احوالِ معاد په مضامين باندې مشتمل دې. (جمل)

قوله. ﴿ الى رَحِيمًا ﴾ دا تول درې آيتونه دی.

قوله: ﴿ تَعَالَىٰ ﴾ دا د تبارك تفسير دې يعني الله خپل ذات او صفات او افعالو كښ د خپل ما سوا نه برتر دې تبارك (تفاعل) ماضي ده د دې مضارع اسم فاعل او مصدر مستعمل نه دی او نه د الله پاک نه علاوه د بل چا دپاره مستعمل دې، برکت په معنی د نمو او زيادت دې كه حسا وی كه معنی وی (جمل)

قوله: ﴿ لِأَنَّهُ فَرَّقَ بَيْنَ الْحَقِّ وَالْبَاطِلِ ﴾ دا قرآن كريم ته د فرقان وئيلو علت دې قرآن چونكه د حق او باطل ترمينځه فرق كړې دې په دې وجه د دې نوم فرقان كيخودلې شوې دې، بعض حضراتو وئيلى دى چه فرقان په دې وجه وئيلې شى چه فران كريم متفرق طور د دربوشتو كلونو په موده كښ نازل شوې دې هم په دې وجه د قرآن كريم په باره كښ (نزل) وئيلې شوې دى كوم چه په تكثير تفريق باندې دلالت كوى. (جمل)

قوله: ﴿ لِيَكُونَ ﴾ دا د نزول علت دې په دې كښ ضمير مستتر دې هغه د ﴿ عبد ﴾ طرف ته راجع دې ځكه چه هغه نزدې دې، د فرقان طرف ته هم راجع كيدې شى او ﴿ منزل ﴾ يعنى د الله پاک طرف ته هم راجع كيدې شى.

قوله: ﴿ لِلْعَالَمِينَ ﴾ د ﴿ نذيرا ﴾ سره متعلق دې د فواصل د رعايت د وجې نه مقدم كړې شوې دې.

قوله: ﴿ مِنْ شَأْنِهِ أَنْ يَخْلُقَ ﴾ د دې عبارت د اضافې مقصد د الله پاک ذات لره د مخلوق نه خارج كول دی ځكه چه د الله پاک ذات شئ دې ځكه چه كه شئ او نه منلې شى نو بيا به لا شئ منل وى گنې نو ارتفاع د نقيضينو به لازم شى لهذا شئ منل ضرورى دى چه هر كله د الله پاک ﴿ شئ ﴾ كيدل ثابت شو .نو په خلق كل شئ كښې داخل شو اوهر كله چه په خلق كل شئ كښې داخل شو نود ذات بارى تعالى مخلوق كيدل ثابت شو ،او دا محال دی، هم د دې اعتراض د دفع كولو دپاره مفسر علام د ﴿ من شانه ان يخلق ﴾ اضافه اوفرمائيله.

جواب: د جواب خلاصه دا ده چه تخليق وئيلې شى د عدم نه وجود ته راوستلو ته او د عدم نه وجود ته هغه شئ راتلې شى كوم چه معدوم وى او د الله پاک شان معدوم كيدل نه دی، ځكه چه د الله پاک په ذات باندې كله هم عدم نه دې راغلې، لهذا د الله پاک ذات د مخلوق كيدو نه خارج شو.

قوله: ﴿ سَوَّاهُ تَسْوِيَةً ﴾ د دې عبارت د اضافې مقصد هم د يو اعتراض دفع كول دی، اعتراض

دا دې چه ( وخلق كل شئ فقدره تقديرا ) كښې قلب دې ځكه چه په اصل كښې ( وقدره تقديرا الخلق كل شئ ) پكار وو، ځكه چه تقدير ازلي او تخليق حادث دې، ځكه چه د تقدير معنى ده مقدر كول، پلاننگ كول او د خلق معنى ده جوړول، ظاهره ده چه تقدير او پلاننگ اول وى او دهغې مطابق تخليق روستو وى لكه چه د كور نقشه اول جوړيږى او د هغې مطابق روستو تخليق كيږى لكه چه د كور نقشه اول جوړيږى او كور روستو جوړيږى، نه دا چه كور اول جوړيږى او نقشه روستو، نو معلومه شوه چه په آيت كريمه كښې د رعايت فواصل دپاره قلب شوې دې؟

**جواب**: د جواب خلاصه دا ده چه په آيت كريمه كښې قلب نشته بلكه ( قدره تقديرا ) د ( سوّاه تسوية ) په معنى دې او تسوية وئيلې شى د يو څيز د جوړولو نه پس هغه برابرول كمى او كوتاهى لرې كول، مضبوطول، يعنى نقصان ترې ويستل، او دا د تخليق نه روستو وى، لهذا اوس هيڅ اعتراض نشته.

**قوله**: ( بهما ) په دې سره اشاره ده چه ( ظلما وزورا ) بنزع الخافض منصوب دې، د عبارت تقدير داسې وو ( جاءوا بظلم وزور ) حرف جار حذف كړې شو چه د هغې د وجې نه منصوب شو، شارح ﷫ هم دا خبره اختيار كړې ده او د بعض حضراتو په نزد جاءوا تى متعدى بنفسه هم دى، په دې صورت كښې به ( ظلما وزورا ) د مفعول به كيدو د وجې نه منصوب وى.

**قوله**: ( هُوَ أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ) اساطير الاولين، د هومبتدأ محذوف خبر دې لكه چه شارح اختيار كړې دې او ( اكتتبها ) په محل د حال كښې دې، او دا هم صحيح ده چه ( اساطير الاولين ) مبتدأ وى او ( اكتتبها ) ئې خبر وى.

**قوله**: ( مَالِ هَٰذَا الرَّسُولِ ) د ( لهذا ) لام جدا ليكلې شوې دې كوم چه د عام عربى رسم الخط خلاف دې؟ د دې وجه دا ده چه د قرآن كريم رسم الخط د مصحف عثمانى مطابق دې لهذا په دې كښې تغيير نه شى كيدې

**قوله**: ( فَيَكُونَ ) دا چونكه د ( لولا ) په معنى د ( هلا ) ده چه د هغې حكم د استفهام دې جواب دې په دې وجه منصوب دې.

**قوله**: ( وَقَالَ الظَّالِمُونَ ) د اسم ضمير په ځائې اسم ظاهر لره د هغوى د صفت ظلم د ښكاره كولو دپاره راوړلې شوې دې كنې ( قالوا ) وئيل هم كافى وو.

**[ايات نمبر: ۱۰-۲۰]**

( تَبَارَكَ ) تكاثر خير ( الَّذِي إِنْ شَاءَ جَعَلَ لَكَ خَيْرًا مِنْ ذَٰلِكَ ) الذي قالوه من الكنز والبستان ( جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ) اي في الدنيا لانه شاء ان يعطيه اياها في الآخرة ( وَيَجْعَلْ ) بالجزم ( لَكَ قُصُورًا ) ايضا

وفي قراءة بالرفع استئنافا (بَلْ كَذَّبُوا بِالسَّاعَةِ) القيامة (وَأَعْتَدْنَا لِمَنْ كَذَّبَ بِالسَّاعَةِ سَعِيرًا) نارًا مسعرة أي مشتدة (إِذَا رَأَتْهُمْ مِنْ مَكَانٍ بَعِيدٍ سَمِعُوا لَهَا تَغَيُّظًا) غليانًا كالغضبان إذا غلى صدره من الغضب (وَزَفِيرًا) صوتًا شديدًا أو سماع التغيظ رؤيته وعلمه (وَإِذَا أُلْقُوا مِنْهَا مَكَانًا ضَيِّقًا) بالتشديد والتخفيف بأن يضيق عليهم ومنها حال من مكانا لأنه في الأصل صفة له (مُقَرَّنِينَ) مصفدين قد قرنت أي جمعت أيديهم إلى أعناقهم في الأغلال والتشديد للتكثير (دَعَوْا هُنَالِكَ ثُبُورًا) هلاكا فيقال لهم (لَا تَدْعُوا الْيَوْمَ ثُبُورًا وَاحِدًا وَادْعُوا ثُبُورًا كَثِيرًا) كعذابكم (قُلْ أَذَٰلِكَ) المذكور من الوعيد وصفة النار (خَيْرٌ أَمْ جَنَّةُ الْخُلْدِ الَّتِي وُعِدَ) ها (الْمُتَّقُونَ كَانَتْ لَهُمْ) في علمه تعالى (جَزَاءً) ثوابا (وَمَصِيرًا) مرجعا (لَهُمْ فِيهَا مَا يَشَاءُونَ خَالِدِينَ) حال لازمة (كَانَ) وعدهم ما ذكر (عَلَىٰ رَبِّكَ وَعْدًا مَسْئُولًا) يسأله من وعد به (رَبَّنَا وَآتِنَا مَا وَعَدْتَنَا عَلَىٰ رُسُلِكَ) أو تسأله لهم الملائكة (رَبَّنَا وَأَدْخِلْهُمْ جَنَّاتِ عَدْنٍ الَّتِي وَعَدْتَهُمْ) (وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ) بالنون والتحتانية (وَمَا يَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ) أي غيره من الملائكة وعيسى وعزير والجن (فَيَقُولُ) تعالى بالتحتانية والنون للمعبودين إثباتا للحجة على العابدين (أَأَنْتُمْ) بتحقيق الهمزتين وإبدال الثانية ألفا وتسهيلها وإدخال ألف بين المسهلة والأخرى وتركه (أَضْلَلْتُمْ عِبَادِي هَٰؤُلَاءِ) أوقعتموهم في الضلال بأمركم إياهم بعبادتكم (أَمْ هُمْ ضَلُّوا السَّبِيلَ) طريق الحق بأنفسهم (قَالُوا سُبْحَانَكَ) تنزيها لك عما لا يليق بك (مَا كَانَ يَنْبَغِي) يستقيم (لَنَا أَنْ نَتَّخِذَ مِنْ دُونِكَ) أي غيرك (مِنْ أَوْلِيَاءَ) مفعول أول ومن زائدة لتأكيد النفي وما قبله الثاني فكيف نأمر بعبادتنا (وَلَٰكِنْ مَتَّعْتَهُمْ وَآبَاءَهُمْ) من قبلهم بإطالة العمر وسعة الرزق (حَتَّىٰ نَسُوا الذِّكْرَ) تركوا الموعظة والإيمان بالقرآن (وَكَانُوا قَوْمًا بُورًا) هلكى قال تعالى (فَقَدْ كَذَّبُوكُمْ) أي كذب المعبودون العابدين (بِمَا تَقُولُونَ) بالفوقانية أنهم آلهة (فَمَا يَسْتَطِيعُونَ) بالتحتانية والفوقانية أي لا هم ولا أنتم (صَرْفًا) دفعا للعذاب عنكم (وَلَا نَصْرًا) منعا لكم منه (وَمَنْ يَظْلِمْ) يشرك (مِنْكُمْ نُذِقْهُ عَذَابًا كَبِيرًا) شديدا في الآخرة (وَمَا أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنَ الْمُرْسَلِينَ إِلَّا إِنَّهُمْ لَيَأْكُلُونَ الطَّعَامَ وَيَمْشُونَ فِي الْأَسْوَاقِ) فأنت مثلهم في ذلك وقد قيل لهم مثل ما قيل لك (وَجَعَلْنَا بَعْضَكُمْ لِبَعْضٍ فِتْنَةً) بلية ابتلي الغني بالفقير والصحيح بالمريض والشريف بالوضيع يقول الثاني في كل ما لي لا أكون كالأول في كل (أَتَصْبِرُونَ) على ما تسمعون ممن ابتليتم بهم استفهام بمعنى الأمر أي اصبروا (وَكَانَ رَبُّكَ بَصِيرًا) بمن يصبر وبمن يجزع

ترجمه: د الله پاک ذات خو ډیر عالي شان دې یعنی خیر کثیر والا دې که هغه اوغواړي نو تا ته د هغوی بیان کړې شوې ښیرونو باغ او خزانې نه به غوره باغات درکړی چه د هغې نه لاندې نهرونه جاري وی یعنی په دنیا کښې به ئې درکړی څکه چه په آخرت کښې داسې باغونه نبی علیه السلام ته ورکول خو د هغه په اراده کښې دی، او تا ته به ډیر محلونه هم درکړی یجعل د لام په جزم سره او په یو قراءت کښې (یجعل) په رفعې سره دې، جمله مستانفه کیدو وجې نه بلکه دا خلق قیامت دروغ گڼړی او قیامت لره دروغ گڼړنکو دپاره مونږ سخت گرم شدید اور تیار کړې

دي چه کله هغه اور هغوی د لرې نه وینی نو هغه خلق به د هغې جوش خروش اوری یعنی د غصه
سوی په شان به د هغې جوش وی چه د غضب د وجې نه ئې سینه جوش وهی زفیراسخت
آواز ته وئیلې شی یا څغلاره د اوریدو مطلب د هغې لیدل او پیژندل دی او چه کله هغوی
جهنم کښې په یو تنګ ځائې کښې خپې لاس ترلو سره اوغورځولې شی ضیقاً د یاء په تشدید او
تخفیف سره دې په داسې طریقې سره چه هغه مکان به په هغوی باندې راتنګ شی او
(منها) د (مکانا) نه حال دې ځکه چه (منها) په اصل کښې د (مکانا) صفت دې، مقرنین په
معنی د مصفدین داسې ترلی شوی چه د هغوی لاسونه د هغوی د سټ سره په طوق باندې
اوترلې شی او تشدید د معنی کثرت لره د بیانولو دپاره دې، نو هلته به مرګ ته آواز اوکړی
نو هغوی ته به اوئیلې شی یو مرګ مه رابلئ د عذاب د وجې نه ډیر مرګونه راوبلئ ته اوایه چه
دا وعید او د صفت نار حالت چه د هغې ذکر اوشو ښه دې؟ یا د همیشوالی هغه جنت چه د هغې
د متقیانو سره وعده کړې شوې ده چه هغه جنة الخلد د هغوی دپاره د الله پاک په علم کښې جزاء
ثواب (بدله) ده او د هغوی ټهکانه ده، او هغوی ته به هلته هغه ټول څیزونه ملاویږی کوم چه هغوی
غواړی او په هغې کښې به همیشه اوسیږی (خالدین) حال لازمه دې، هغوی سره کړې شوې
مذکوره وعده ستا د رب په ذمه ده لهذا چا سره چه وعده کړې شوې ده هغه د هغه نه مطالبه
کولې شی (یعنی سائل په خپل سوال کښې وئیلې شی) (ربنا وآتنا ما وعدتنا علی رسلك) اې
زمونږ ربه مونږ ته هغه څیز راکړه د کوم چه تا مونږ سره د خپلو رسولانو په ذریعه وعده
کړې ده، یا: هغه وعدې د پوره کولو، د هغوی دپاره به فرشتې داسې سوال کوی (ربنا
وادخلهم جنات عدن التی وعدتهم) اې زمونږ ربه هغوی د قیام قابل هغه جنت ته داخل کړه،
چه د هغې تا هغوی سره وعده کړې ده او په کومه ورځ چه الله پاک هغوی (نحشرهم) په نون او
یاء سره دې او د چا چه ئې د الله پاک نه سوا بندګی کوله راجمع کړی د غیر الله نه مراد ملائک
او عیسی او عزیر علیهما السلام او جنات دی بیا به د معبودینو نه په عابدینو باندې د حجت
تمام کولو دپاره تپوس اوکړی چه آیا تاسو زما دا بندګان ګمراه کړې وو؟ هغوی ته د خپل
عبادت حکم ورکولو سره تاسو هغوی په ګمراهئ کښې اچولی وو؟ یا که هغوی پخپله د حق
نه بې لارې شوی وو؟ فیقول په یاء او نون سره دې ءانتم د دواړه همزو تحقیق او ثانی لره په
الف سره بدلولو او ثانی لره تسهیل او مسهله او د دویمې ترمینځه الف داخلولو سره او
ترک ادخال الف کولو سره نو هغوی به عرض اوکړی معاذالله ستا دپاره د هر هغه څیز نه پاکی ده
کوم چه ستا د شان لائق نه دې زمونږ دپاره بالکل صحیح نه وه چه مونږ ستا نه علاوه څوک
کارساز نیولې وې من اولیاء مفعول اول دې او (من) زائده د نفی د تاکید دپاره دې او د
دې نه ماقبل مفعول ثانی دې نو بیا مونږ څنګه د خپل عبادت حکم کولې شو؟ خو تا

هغوی ته او د هغوی پلار نیکه ته کوم چه د دوی نه مخکښ تیر شوی دی د عمر د زیادت او د رزق د فراخوالی په ذریعه فراخی (فائده) ورکړه تردې چه ذکر (یاد) ئې هیر کړو یعنی نصیحت او په قرآن کریم باندې ایمان ئې ترک کړو دا خلق وو هلاکیدونکی الله پاک به ورته فرمائی اوګورئ هغوی خو ستاسو د ټولو خبرو تکذیب اوکړو یعنی ستاسو معبودانو ستاسو تکذیب اوکړو، تقولون د تاء فوقانیه سره (یعنی) ستاسو په دې قول کښې چه هغوی معبودان دی اوس نه خو په تاسو کښې او نه په هغوی کښې د عذاب د دفع کولو طاقت شته او نه د مدد کولو یعنی د دې عذاب نه د خپل مدد کولو په تاسو کښې چه چا ظلم یعنی شرک کړې دې مونږ به هغوی ته دیر لوئې عذاب یعنی په آخرت کښې سخت عذاب وروڅکوو او مونږ چه ستا نه مخکښې څومره رسولان رالیږلی دی ټولو به خوراک هم کولو او په بازارونو کښې به ګرځیدل هم لهذا ته هم د هغوی په شان ئې په دې خبرو کښې. او تاته هم هغه خبرې کولې شی کومې چه هغوی ته کړې شوې وې او مونږ په تاسو کښې هر یو د بل د ازمیښت ذریعه جوړ کړې دی مالدار د غریب په ذریعه ازمیښت کړې شو او صحت مند د مریض په ذریعه او شریف د رذیل په ذریعه، ثانی په هره خبره کښې وائی چه څه وجه ده چه څه په هره معامله کښې د اول په شان نه یم؟ آیا تاسو په دې خبرو باندې صبر کوئ کومې چه تاسو د خلقو نه اورئ د کومو په ذریعه چه په تاسو باندې ازمیښت کولې شی استفهام په معنی د امر دې یعنی صبر اوکړئ ستا رب هر څه وینی چه څوک صبر کوی؟ او څوک بې صبری کوی؟

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: ﴿ تَبَارَكَ ﴾ ﴿ تبارك ﴾ داسې وصف دې کوم چه د کمال ټولو اوصافو لره جامع او د نقص د ټولو صفاتو نفی لره مستلزم دې هم په دې وجه باندې د موقع د مناسبت د وجې نه د دې تفسیر مختلف کړې شوې دې، د سورت په شروع کښې چونکه مقام تنزیه وو لهذا هلته په ﴿ تعالى ﴾ سره تفسیر اوکړې شو او دلته چونکه مقام عطاء دې په دې وجه په ﴿ کثرت خیر ﴾ سره تفسیر کړې شوې دې او د سورت په آخر کښې چونکه مقام د عظمت او کبریاء دې لهذا په ﴿ تعاظم ﴾ سره تفسیر کړې شوې دې.

قوله: ﴿ تَبَارَكَ ﴾ فعل ماضی ﴿ الذی ﴾ حذف د مضاف سره د ﴿ تَبَارَكَ ﴾ فاعل، ای تبارك خیر الذی.

قوله: ﴿ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ﴾ د خیرانه بدل دې، او د خیر او بهتر کیدو وجه ظاهره ده ځکه چه مشرکانو چه د کوم باغ په باره کښې وئیلې وو هغه مطلق هغې په دې کښې د تعدد او جریان انهار هیڅ قید نه وو، او د بعض حضراتو په نزد د خیرانه عطف بیان هم کیدې شی، او بعض حضراتو د ﴿ اعنی ﴾ مقدر د وجې نه ﴿ جنات ﴾ لره منصوب ګرځولې

دي او ﴿ تجری من تحتها الانهار ﴾ ئې د جنت صفت گرځولې دي.

**قوله:** ﴿ لانه ﴾ الخ مفسر علام لانه سره فی الدنیا د قید سره د مقید کولو علت بیانوی، د علت خلاصه دا ده چه ﴿ ان شاء جعل لك خیرا ﴾ کښې خیریت لره په مشیئت باندې معلق کول د دنیا په اعتبار سره صحیح دی، ګنې په آخرت کښې خو محقق دی.

**قوله:** ﴿ یَجْعَل ﴾ په جزم سره د ﴿ جعل ﴾ په محل باندې عطف دې کوم چه د شرط جزاء واقع دې لهذا په مجزوم باندې چه د څه عطف وی هغه به هم مجزوم وی. ﴿ وَفِی قِرَاءَةٍ بِالرَّفْعِ ﴾ په جواب شرط باندې عطف کولو سره جواب شرط لره د استیناف د وجې نه مرفوع منلو سره شرط چه کله ماضی وی نو په جزاء کښې رفع او جزم دواړه جائز وی، لهذا کوم چه په جزاء باندې معطوف وی په هغې کښې به هم دواړه اعراب جائز وی ځکه چه شرط چه کله ماضی وی نو صرف د شرط تاثیر په جزاء کښې کمزورې شی چه د هغې د وجې نه په جزاء کښې جزم او رفع دواړه جائز وی، ابن مالک وئیلی دی وبعد ماض رفعك الجزاء احسن... د جزم او رفع دواړه قراءتونه سبعیه دی.

**قوله:** ﴿ غَلَيَانًا ﴾ د ﴿ تغیظا ﴾ تفسیر په غلیانا سره د کولو مقصد د یو اعتراض جواب ورکول دی، اعتراض دا دې چه غیظ د اوریدلو څیز نه دې هغه خو د کتلو څیز دې؟ جواب ورکړې شو چه دلته د ﴿ غیظ ﴾ نه مراد ﴿ غلیان ﴾ (جوش وهل) دی کوم چه اوریدلې شی، لهذا اعتراض ختم شو.

**قوله:** ﴿ أَوْسَمَاعِ التَّغَيُّظِ رؤيته وعلمه ﴾ د ذکر شوی اعتراض دا دویم جواب دې، د دې جواب خلاصه دا ده چه د سماع تغیظ نه مراد رویت او علم دې کوم چه په تغیظ کښې ممکن دې، بعض حضراتو دا جواب ورکړې دې چه د عبارت تقدیر داسې دې ﴿ سمعوا ورأوا تغیظا وزفیرا ﴾ لهذا د راؤا تعلق د تغیظ سره او د سمعوا تعلق د زفیرا سره دې، بعض حضراتو سماع مطلقا د ادراک په معنی کښې اخستلې ده په دې صورت کښې به د سمعوا تعلق د تغیظ او زفیر دواړو سره صحیح وی. (جمل)

**قوله:** ﴿ أُلْقُوا مِنْهَا مَكَانًا ﴾ منها د مکانا صفت دې او د نکرې صفت چه کله مقدم کړې شی نو هغه حال شی.

**قوله:** ﴿ مُقَرَّنِينَ ﴾ د ﴿ القوا ﴾ د ضمیر نه حال دې، مصفدین (بتشدید الفاء) او مُصْفَدِين (ض) دواړه صحیح دی د دې معنی د ترلو صفادبیړئ ته وئیلې شی.

**قوله:** ﴿ دَعَوْا هُنَالِكَ ﴾ دا د ﴿ اذا القوا ﴾ جزاء ده، د ﴿ هنالك ﴾ نه مراد مقام ضیق دې.

**قوله:** ﴿ ثُبُورًا ﴾ د فعل محذوف مفعول مطلق دې ای ثبرنا ثبورا... بعض حضراتو وئیلی دی چه

د (دعوا) مفعول له دي.

**قوله:** ﴿ لعذابكم ﴾ اى لاجل دوام عذابكم وكثرته ينبغي ان يكون دعائكم على حسبه ... يعنى څنګه چه ستاسو عذاب دائمي او متعدد قسم دې هم په دې حساب سره تاسو خپل هلاکت لره رابلئ، او په بعض نسخو کښې ﴿ كعذابكم ﴾ دي، دا په کثرت کښې تشبيه ده، او د دعاء ثبور نه مراد د مرګ غوښتل دي.

**قوله:** ﴿ ما ﴾ صله چونکه جمله ده په دې وجه مفسر علام ﴿ ما ﴾ ضمير مقدر منلو سره د رابط طرف ته اشاره اوکړه.

**قوله:** ﴿ أَذَٰلِكَ خير أم جنة الخلد ﴾ وعيد او نار زيات غوره دې يا جنة الخلد، د دې نه معلوميږي چه په نار کښې هم خير دې حال دا چه په هغې کښې هيڅ خير نشته؟

**جواب:** ① په قرآن کريم کښې خير اسم تفضيل اکثر د اسم فاعل په معنى کښې مستعمل دې لهذا هيڅ شبه نشته، ② دويم جواب دا ده چه دا داسې دې لکه سيد چه خپل غلام ته څه رقم ورکړې او د هغې په وجه باندې غلام سرکشي شروع کړي، نو د هغې په نتيجه کښې سيد غلام لره اووهي او ورته اوائي چه ﴿ هذا خير ام ذاك ﴾

**سوال:** ﴿ جنة ﴾ خپله ﴿ دار الخلد ﴾ ته وئيلې شي نو بيا د ﴿ خلد ﴾ د قيد څه فائده ده؟

**جواب:** اضافت کله خو د تبيين دپاره وي، او کله د صفات کمال د بيان دپاره وي لکه د الله پاک قول ﴿ الخالق البارء ﴾ هم د دې قبيل نه دي.

**قوله:** ﴿ فِى عِلْمِهِ تَعَالَىٰ ﴾ په دې عبارت سره د دې شبهې جواب مقصود دى چه جزاء او مصير به د حشر او نشر نه پس وي نو بيا ئې د دې نه د ماضى په صيغې سره ولې تعبير کړې دې؟ ① د دې جواب مفسر په ﴿ فى علمه تعالى ﴾ سره ورکړې دې چه د الله پاک علم کښې چونکه مقدر شوې دې په دې وجه د ماضى په صيغې سره ترې تعبير اوکړې شو، ② دويم جواب دا دې چه د کوم څيز کيدل يقيني وي د هغې نه په ماضى سره تعبير کولې شي.

**قوله:** ﴿ حَالٌ لَازِمَةٌ ﴾ ... ﴿ خالدين ﴾ د ﴿ لهم ﴾ د ضمير نه يا د ﴿ يشاءون ﴾ د واؤ نه حال دې، د حال لازمه مطلب دا دې چه کومه معنى د ما سبق نه فهميږي هم د هغې تاکيد دې.

**قوله:** ﴿ وَعْدُهُمْ ﴾ د دې اضافې مقصد د ﴿ كان ﴾ اسم ظاهرول دى يعنى ﴿ وعد المتقون ﴾ نه چه کوم ﴿ وعد ﴾ فهميږي، ﴿ وهى ﴾ د ﴿ كان ﴾ اسم دې، بعض حضراتو په ﴿ ما يشاءون ﴾ کښې کومه ﴿ ما ﴾ ده هغه ئې د ﴿ كان ﴾ اسم منلې دې.

**قوله:** ﴿ ويوم يحشرهم ﴾ دا د ﴿ اذكر ﴾ فعل محذوف دپاره ظرف دې او په ﴿ قل ﴾ باندې عطف دې، د ﴿ يحشرهم ﴾ د مفعولى ضمير نه د غير الله عبادت کونکى مراد دى او د ﴿ وما

يعبدون ﴾عطف په هوضمير باندې دې.

قوله: ﴿ إِلْبَاتًا لِلْحُجَّةِ عَلَى الْعَابِدِينَ ﴾دا د يو سوال مقدر جواب دې، سوال دا دې چه الله پاک خو ﴿ علام الغيوب ﴾ دې، ماضي او مستقبل ټول د هغه دپاره حال دې نو بيا معبودين نه د ﴿ ءاضللتم؟ ﴾په ذريعه د تپوس کولو مقصد څه دې؟

جواب: دا تپوس د استفهام د پاره نه دې بلکه د لا جواب کولو او خاموش کولو دپاره دې لکه چه د سيدنا عيسى عليه السلام نه به تپوس اوکړې شي، ﴿ ءانت قلت للناس اتخذوني وامي الهين من دون الله ﴾ دغه شان ﴿واذا الموءودة سئلت بأى ذنب قتلت ﴾ لهذا هم سوال د تبکيت او لا جواب کولو دپاره دې.

قوله: ﴿ بورا ﴾دا جمع د بائرده په معنى د ﴿ هَلكَى ﴾د ﴿ هلك ﴾جمع ده.

قوله: ﴿ أَنَّهُمْ آلِهَةً ﴾ دا د ﴿ تقولون ﴾ مقوله ده او د ﴿ ما ﴾ نه بدل هم کيدې شي ﴿ فما يستطيعون ﴾کښې چونکه حاضر او غائب دواړه قراءتونه دی په دې وجه مفسر علام ﴿ لاهم ولاانتم ﴾ اوفرمائيل چه د دواړو قراءتونو رعايت اوشي.

قوله: ﴿ إِلَّا إِنَّهُمْ ﴾ په قول د ابن الانبارى رحمه الله دا جمله د حال کيدو د وجې نه په محل د نصب کښې ده او تقدير د عبارت داسې دې ﴿ الا وانهم ﴾ د هغه په نزد واو محذوف دې، جمهورو ﴿ الا انهم ﴾د همزې په کسرې سره لوستلې دې، د ﴿ ان ﴾ په خبر باندې د لام د داخليدو د وجې نه که د ﴿ ان ﴾خبر باندې لام داخل شي نو د جمهورو په نزد ﴿ ان ﴾بکسر الهمزة متعين دې، اګرچه بعض حضراتو ﴿ ان ﴾هم جائز وئيلې دې، خو دا صحيح نه ده.
(فتح القدير، شوكانى)

## پاره نمبر ۱۹ [وَقَالَ الَّذِينَ]

### [اياتونه: ۲۱-۲٤]

{وَقَالَ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا} لَا يَخَافُونَ الْبَعْثَ {لَوْلَا} هَلَّا {أُنْزِلَ عَلَيْنَا الْمَلَائِكَةُ} فَكَانُوا رُسُلًا إِلَيْنَا {أَوْ نَرَى رَبَّنَا} فَنُخْبَر بِأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُه قَالَ تَعَالَى {لَقَدِ اسْتَكْبَرُوا} تَكَبَّرُوا {فِي} شَأْنِ {أَنْفُسِهِمْ وَعَتَوْا} طَغَوْا {عُتُوًّا كَبِيرًا} بِطَلَبِهِمْ رُؤْيَةَ اللهِ تَعَالَى فِي الدُّنْيَا وَعَتَوْا بِالْوَاوِ عَلَى أَصْلِهِ بِخِلَافِ عَتِيَ بِالْإِبْدَالِ فِي مَرْيَم {يَوْمَ يَرَوْنَ الْمَلَائِكَةَ} فِي جُمْلَةِ الْخَلَائِقِ هُوَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ وَنَصْبُه بِاذْكُرْ مُقَدَّرًا {لَا بُشْرَى يَوْمَئِذٍ لِلْمُجْرِمِينَ} أَيِ الْكَافِرِينَ بِخِلَافِ الْمُؤْمِنِينَ فَلَهُمُ الْبُشْرَى بِالْجَنَّةِ {وَيَقُولُونَ حِجْرًا مَحْجُورًا} عَلَى عَادَتِهِمْ فِي الدُّنْيَا إِذَا نَزَلَتْ بِهِمْ شِدَّةٌ أَيْ عَوْذًا مَعَاذًا يَستعيذون من الملائكة قال تعالى {وَقَدِمْنَا} عَمَدْنَا {إِلَى مَا عَمِلُوا مِنْ عَمَلٍ} مِنَ الْخَيْرِ كَصَدَقَةٍ وَصِلَةِ رَحِمٍ وَقِرَى ضَيْفٍ وَإِغَاثَةِ مَلْهُوفٍ فِي الدُّنْيَا {فَجَعَلْنَاهُ هَبَاءً مَنْثُورًا} هُوَ مَا يُرَى فِي الْكُوَى الَّتِي عَلَيْهَا الشَّمْسُ كَالْغُبَارِ الْمُفَرَّقِ أَيْ مِثْلَه فِي عَدَمِ النَّفْعِ بِهِ إِذْ لَا ثَوَابَ فِيهِ لِعَدَمِ شَرْطِه وَيُجَازَوْنَ

عَلَيْهِ فِي الدُّنْيَا (أَصْحَابُ الْجَنَّةِ يَوْمَئِذٍ) يَوْمَ الْقِيَامَةِ (خَيْرٌ مُّسْتَقَرًّا) مِنَ الْكَافِرِيْنَ فِي الدُّنْيَا (وَأَحْسَنُ مَقِيلًا) مِنْهُمْ أَيْ مَوْضِعَ قَائِلَةٍ فِيهَا وَهِيَ الْاِسْتِرَاحَةُ بِنِصْفِ النَّهَارِ فِي الْحَرِّ وَأُخِذَ مِنْ ذٰلِكَ انْقِضَاءُ الْحِسَابِ فِي نِصْفِ نَهَارٍ كَمَا وَرَدَ فِي حَدِيثٍ (وَيَوْمَ تَشَقَّقُ السَّمَاءُ) أَيْ كُلُّ سَمَاءٍ (بِالْغَمَامِ) أَيْ مَعَهُ وَهُوَ غَيْمٌ أَبْيَضُ (وَنُزِّلَ الْمَلَائِكَةُ) مِنْ كُلِّ سَمَاءٍ (تَنْزِيلًا) هُوَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ وَنَصْبُهُ بِاذْكُرْ مُقَدَّرًا وَفِي قِرَاءَةٍ بِتَشْدِيدِ شِيْنِ تَشَقَّقُ بِإِدْغَامِ التَّاءِ الثَّانِيَةِ فِي الْأَصْلِ فِيهَا وَفِي أُخْرَى نُنْزِلُ بِنُوْنَيْنِ الثَّانِيَةُ سَاكِنَةٌ وَضَمِّ اللَّامِ وَنَصْبِ الْمَلَائِكَةِ (الْمُلْكُ يَوْمَئِذٍ الْحَقُّ لِلرَّحْمٰنِ) لَا يُشْرِكُهُ فِيهِ أَحَدٌ (وَكَانَ) الْيَوْمُ (يَوْمًا عَلَى الْكَافِرِيْنَ عَسِيْرًا) بِخِلَافِ الْمُؤْمِنِيْنَ (وَيَوْمَ يَعَضُّ الظَّالِمُ) الْمُشْرِكُ عُقْبَةُ بْنُ أَبِي مُعَيْطٍ كَانَ نَطَقَ بِالشَّهَادَتَيْنِ ثُمَّ رَجَعَ إِرْضَاءً لِأُبَيِّ بْنِ خَلَفٍ (عَلَى يَدَيْهِ) نَدَمًا وَتَحَسُّرًا فِي يَوْمِ الْقِيَامَةِ (يَقُوْلُ يَا) لِلتَّنْبِيْهِ (لَيْتَنِي اتَّخَذْتُ مَعَ الرَّسُوْلِ) مُحَمَّدٍ (سَبِيْلًا) طَرِيقًا إِلَى الْهُدٰى (يَا وَيْلَتٰى) أَلِفُهُ عِوَضٌ عَنْ يَاءِ الْإِضَافَةِ أَيْ وَيْلَتِي وَمَعْنَاهُ هَلَكَتِي (لَيْتَنِي لَمْ أَتَّخِذْ فُلَانًا) أَيْ أُبَيًّا (خَلِيلًا) (لَقَدْ أَضَلَّنِي عَنِ الذِّكْرِ) أَيِ الْقُرْآنِ (بَعْدَ إِذْ جَاءَنِي) بِأَنْ رَدَّنِي عَنِ الْإِيْمَانِ بِهِ قَالَ تَعَالٰى (وَكَانَ الشَّيْطَانُ لِلْإِنْسَانِ) الْكَافِرِ (خَذُوْلًا) بِأَنْ يَتْرُكَهُ وَيَتَبَرَّأَ مِنْهُ عِنْدَ الْبَلَاءِ (وَقَالَ الرَّسُوْلُ) مُحَمَّدٌ (يَا رَبِّ إِنَّ قَوْمِي) قُرَيْشًا (اتَّخَذُوْا هٰذَا الْقُرْآنَ مَهْجُوْرًا) مَتْرُوْكًا قَالَ تَعَالٰى (وَكَذٰلِكَ) كَمَا جَعَلْنَا لَكَ عَدُوًّا مِنْ مُشْرِكِي قَوْمِكَ (جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ) قَبْلَكَ (عَدُوًّا مِّنَ الْمُجْرِمِيْنَ) الْمُشْرِكِيْنَ فَاصْبِرْ كَمَا صَبَرُوْا (وَكَفٰى بِرَبِّكَ هَادِيًا) لَكَ (وَنَصِيْرًا) نَاصِرًا لَكَ عَلَى أَعْدَائِكَ (وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْلَا) هَلَّا (نُزِّلَ عَلَيْهِ الْقُرْآنُ جُمْلَةً وَاحِدَةً) كَالتَّوْرَاةِ وَالْإِنْجِيْلِ وَالزَّبُوْرِ قَالَ تَعَالٰى نَزَّلْنَاهُ (كَذٰلِكَ) مُتَفَرِّقًا (لِنُثَبِّتَ بِهِ فُؤَادَكَ) نُقَوِّيَ قَلْبَكَ (وَرَتَّلْنَاهُ تَرْتِيْلًا) أَيْ أَتَيْنَا بِهِ شَيْئًا بَعْدَ شَيْءٍ بِتَمَهُّلٍ وَتُؤَدَةٍ لِتَيْسِيْرِ فَهْمِهِ وَحِفْظِهِ (وَلَا يَأْتُوْنَكَ بِمَثَلٍ) فِي إِبْطَالِ أَمْرِكَ (إِلَّا جِئْنَاكَ بِالْحَقِّ) الدَّافِعِ لَهُ (وَأَحْسَنَ تَفْسِيْرًا) بَيَانًا هُمْ (الَّذِيْنَ يُحْشَرُوْنَ عَلَى وُجُوْهِهِمْ) أَيْ يُسَاقُوْنَ (إِلَى جَهَنَّمَ أُولٰئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا) هُوَ جَهَنَّمُ (وَأَضَلُّ سَبِيْلًا) أَخْطَأُ طَرِيقًا مِنْ غَيْرِهِمْ وَهُوَ كُفْرُهُم

ترجمه: کوم خلق چه زمونږ مخې ته د پیش کیدو ویره نه لری یعني د بعث (بعد الموت) ویره نه لری هغوی داسې وائی چه مونږ ته فرشتې ولې نه راځی؟ چه زمونږ طرف ته رسولان وی یا مونږ خپل رب لیدلې وې بیا به ئې مونږ ته دا خبره بیان کړې وې چه محمد د الله رسول دې، الله پاک وائی دې خلقو خپلو زړونو کښې خپل ځان لره ډیر لوئې ګڼړلې دې او په دنیا کښې د الله پاک د رؤیت مطالبه کولو سره ئې ډیره لویه سرکشی کړې ده او ﴿عتوا﴾ په واؤ سره په خپل اصل باندې دې په خلاف د ﴿عتی﴾ په ابدال سره په سورة مریم کښې په کومه ورځ چه د ټولو مخلوقاتو نه فرشتو لره وینی او د (یوم) نصب د (اذکر) فعل مقدر د وجې نه دې، په هغه ورځ به د مجرمانو یعني د کفارو دپاره هیڅ خوشخبری نه وی، په خلاف د مومنانو، د هغوی دپاره به د جنت زیرې وی او وائی به چه پناه ده پناه ده (بچ مو کړه بچ مو کړه) د خپل عادت مطابق په دنیا کښې چه کله به په هغوی باندې څه مصیبت راتلو، یعني پناه پناه چغې به

وهي او د ملائکو نه به پناه غواړي، الله پاک به وائي، او مونږ به د هغوی د ښه کارونو طرف ته کوم چه ئې په دنيا کښې کړې دی متوجه شو، مثلاً صدقه او صله رحمي، ميلمستيا او د مظلوم فرياد اوريدل نو مونږ به دا اعمال د منتشر ذراتو په شان کړو هباءً منثوراً هغه ذراتو ته وئيلې شی کوم چه په هغه سوری کښې په نظر راځی چه په هغې باندې د نمر رڼا پريوځی لکه منتشر غبار يعنی «د هغوی اعمالو لره» به په بې فائدې کيدو کښې د منتشر غبار په شان کړو، ځکه چه د هغې اعمالو به هيڅ قسم اجر نه وی، د اجر د شرط مفقود کيدو د وجې نه او د هغې جزاء به ورته په دنيا کښې ورکړې شی، اهل جنت به دغه ورځ يعنی د قيامت په ورځ په قيام گاه کښې هم په دنيا کښې د کفارو نه ښه وی او په آرام گاه کښې به هم د هغوی نه ښه وی يعنی په جنت کښې د قيلوله «د آرام» کولو ځائې او قيلوله د غرمې په وخت په گرمئ کښې آرام کولو ته وئيلې شی او هم د دې (احسن مقيلا) نه اخستلې شوې دی چه حساب به د غرمې پورې پوره شی لکه چه په حديث شريف کښې راغلی دی او په کومه ورځ به چه اسمان يعنی هر اسمان سره د وريځ نه اوچوی او هغه سپينه وريځ ده، او د هر اسمان نه به فرشتې په کثرت سره راکوزې کړې شی او هغه ورځ به د قيامت وی او يوم (اذکر) محذوف د وجې نه منصوب دې، او په يو قراءت کښې (تشقق) د شين په تشديد سره دې، په اصل کښې «يعنی تا لره په شين سره بدلولو او شين لره په شين کښې مدغم کولو نه مخکښې» تاء ثانيه په شين کښې ادغام کړې شوه، او په بل قراءت کښې (ننزل) په دوه نونانو سره، دويم نون ساکن او د لام په ضمې سره او د ملائکه په نصب سره په دغه ورځ به حقيقی حکومت د رحمن وی په دغه ورځ به د هغه خوک شريک نه وی او هغه ورځ به د کافرو دپاره ډيره سخته وی په خلاف د مومنانو او په کومه ورځ چه ظالم مشرک عقبه بن ابی معيط چا چه د شهادتين اقرار کړې وو او بيا د ابی بن خلف د خوشحالولو دپاره مرتد شو، په خپلو لاسونو د پښيمانتيا او ارمان سره د قيامت په ورځ باندې چکونه لگوی او وائی به چه ارمان ما د رسول محمد ﷺ سره د هدايت لاره نيولې وې افسوس زما کمبختی د ويلتا الف د ياء اضافت په عوض کښې دې «په اصل کښې (ويلتی) وو او د دې معنی ده زما هلاکت ارمان چه ما فلانې يعنی ابی بن خلف دوست نه وې جوړ کړې هغه زه د نصيحت يعنی قرآن نه چه هغه ماته راغلو د هغې نه پس گمراه کړم يا په داسې طريقه چه ما ايمان راوړلو او زه ئې مرتد کړم او شيطان خو کافر انسان ته په وخت باندې دهوکه ورکونکې دې په داسې طريقه چه د مصيبت په وخت هغه پريږدی او د هغه نه د بيزارئ اظهار اوکړی او رسول يعنی محمد ﷺ به وائی اې زما ربه زما قوم قريشو دا قرآن متروک کړې وو الله پاک اوفرمائيل او هم دغه شان چه څنگه مونږ ستا د قوم مشرکان ستا دشمنان جوړ کړی دی ستا نه مخکښې هم د

هر يو نبي بعض مجرمين مشركين دشمنان جوړ کړي وو لهذا څنګه چه هغوی صبر کړې وو دغه شان تاسو هم صبر کوئ ستا د رهنمايئ او مدد کولو دپاره ستا رب کافي دې يعنی ستا د دشمنانو خلاف ستا د مدد کولو دپاره کافي دې او کافر وائی چه په هغه باندې پوره قرآن کريم په يو کرت ولې نه دې نازل کړې شوې؟ څنګه چه تورات، انجيل او زبور نازل کړې شوی وو او هم دغه شان يعنی متفرق نزول په دې وجه دې چه مونږ د دې په ذريعه ستا زړه قوی کړو او مونږ دا قرآن کريم ډير په قلاره قلاره نازل کړې دې يعنی مونږ هغه لږ لږ په وقفې او اندازې سره نازل کړې دې چه په دې پوهيدل او يادول اسان وی او دا خلق چه څرنګه عجيبه تپوس ستا معاملې لره د باطل کولو دپاره ستا مخې ته پيش کړی مګر مونږ صحيح جواب کوم چه هغه سوال لره دفع کونکې وی او د بيان په اعتبار سره ښه واضح وی عنايت کوو دا هغه خلق دی کوم چه به په خپلو مخونو باندې په جهنم کښې راښکلې شی دا خلق د مکان په اعتبار سره هم بدترين دی او هغه مکان دوزخ دې او په طريقه کښې هم د ټولو نه زيات ګمراهان دی يعنی د نورو نه زيات ګمراهان دی او هغه طريقه د هغوی کفر دې.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** ﴿ لَا يَخَافُونَ ﴾ دا د تهامه په لغت کښې د ﴿ لا يرجون ﴾ تفسير دې، ﴿ لا يرجون ﴾ په خپله حقيقی معنی کښې استعمالول اولی دی، په دې صورت کښې به ترجمه دا وی ﴿ لا يأملون لقاء ما وعدنا على الطاعة من الثواب ﴾ او دا خبره ظاهره ده چه څوک د ثواب اميد نه لری هغه د عذاب نه نه ويريږی ﴿ لقد استكبروا ﴾ کښې لام قسميه دې.

**قوله:** ﴿ وعتو علىٰ ﴾ أصله عتوا په خپل اصل باندې دې، واؤ په يا سره د بدلولو نه بغير، په خلاف د سوره مريم، چه هلته د فواصل د رعايت په وجه واؤ په يا سره بدل کړې شوې دې (زياتی تحقيق په سوره مريم کښې اوګورئ).

**قوله:** ﴿ لَا بُشْرَىٰ ﴾ دا جمله د قول مضمر معمول دې، ای يرون الملائكة يقولون لا بشرى.

**قوله:** ﴿ حِجْرًا ﴾ مصدر په معنی د استعاذه دې او ﴿ محجورا ﴾ د دې تاکيد دې لکه چه عرب وائی ﴿ حرام محرم ﴾ يا ونيلې شی ﴿ المحرم الحرام ﴾

**قوله:** ﴿ قَدِمْنَا ﴾ د قدمنا تفسير په ﴿ عمدنا ﴾ سره کولو کښې مقصد دا دې چه د قدوم اطلاق په الله پاک باندې صحيح نه دې څکه چه قدوم د جسمانيت صفت دې.

**قوله:** ﴿ ملهوف ﴾ مظلوم فرياد کونکی ته ونيلې شی.

**قوله:** ﴿ كوى ﴾ د کاف په فتحې او ضمې سره، هغه سوری ته ونيلې شی چه د هغې نه د نمر رڼا داخليږی.

**قوله:** ﴿ هباء ﴾ هغه ذراتو ته ونيلې شی کوم چه په سوری کښې راننوتونکی رڼا کښې په

الوتلو په نظر راځي که څوک هغه په لاس کښې نیول غواړي نو دا ممکن نه ده.

**قوله:** ﴿ خَيْرٌ مُّسْتَقَرًّا مِنَ الْكَافِرِينَ ﴾ یعنې د مومنانو مستقر په جنت کښې په دنیا کښې د کفارو د مستقر نه غوره دې، دلته اسم تفضیل خیر په خپله معنی دې ﴿ من الکافرین فی الدنیا ﴾ وئیلو سره مفسر رحمه الله هم دې طرف ته اشاره اوکړه ګویا چه دا د یوې شبهې جواب دې چه د اهل نار مستقر (جهنم) کښې هیڅ خیر نشته خو خیر د اسم تفضیل نه معلومیږي چه د کفارو په مستقر کښې هم خیر دې خو د اهل جنت د مستقر نه کم خیر دې او دا مطلب هم صحیح دې چه د مستقر نه د دواړو فریقو په آخرت کښې مستقر مراد وي په دې صورت کښې به د ﴿ خیر ﴾ نه د اسم تفضیل معنی مراد نه وي بلکه د کفارو به صرف تقریع او توبیخ مراد وي او دا به د عربو د قول ﴿ العسل احلی من الخل ﴾ د قبیل نه وي حال دا چه په ﴿ خل ﴾ کښې هیڅ خوږوالي نشته، د دې نه معلومیږي چه د اسم تفضیل دپاره د مفضل منه همیشه کیدل ضروري نه دي، لهذا اعتراض دفع شو.

**قوله:** ﴿ وَأَخْذِ مِنْ ذَلِكَ ﴾ یعنې د ﴿ احسن مقیلا ﴾ نه دا خبره فهم ته راځي چه په میدان محشر کښې حساب کتاب دنصف النهار نه مخکښې ختمیږي ځکه چه دجنت د آرام دپاره د ﴿ مقیلا ﴾ لفظ استعمال فرمائیلې شوې دې چه د هغې معنی د غرمې په وخت کښې د قیلولې کولو ده، ددې نه معلومیږي چه حساب کتاب نه فراغت به د غرمې نه مخکښې مخکښې اوشي، سیدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روایت دې چه د قیامت په ورځ به اهل جنت جنت ته او اهل دوزخ دوزخ کښې قیلوله کوي، ګویا دا نیمه ورځ به په مومنانو باندې د یو مونځ په قدر وي او په کفارو باندې به ډیره اوږده وي.

**قوله:** ﴿ وَيَوْمَ تَشَقَّقُ السَّمَاءُ ﴾ ﴿ یوم ﴾ د ﴿ اذکر ﴾ محذوف د وجې نه منصوب دې ﴿ کل سماء ﴾ سره اشاره ده دې طرف ته چه په ﴿ السماء ﴾ الف لام داستغراق دی او په ﴿ معه ﴾ سره اشاره اوشوه چه باء په معنی د معه او په معنی د عن هم کیدې شي.

**قوله:** ﴿ الْمُلْكُ يَوْمَئِذٍ الْحَقُّ لِلرَّحْمَنِ ﴾ الملك مبتدا ده، الحق د هغې صفت او للرحمان خبر دې، ای الملك الثابت الذی لایزول للرحمن یومئذ.

**قوله:** ﴿ الظَّالِمُ الْمُشْرِك ﴾ مفسر علام د ظالم تفسیر په مشرک سره اوکړو او د عقبه بن ابی معیط سره ئې اشاره اوکړه چه دا آیت کریمه د یو خاص مشرک په باره کښې نازل شوې دې چه د هغه نوم عقبه بن ابی معیط وو.

**قوله:** ﴿ يَقُولُ يَالَيْتَنِي ﴾ دا جمله د ﴿ بعض ﴾ د ضمیر نه حال دې په ﴿ یالیتنی ﴾ کښې یا دپاره د تنبیه ده، نه د ندا دپاره، ځکه چه د منادی دپاره اسم کیدل شرط دې او که یا د ندا دپاره اومنلې شي نو منادی به محذوف منل وي. ای یاقوم

قوله: ﴿ لَقَدْ أَضَلَّنِي ﴾ کښې لام قسمیه دې ﴿ اي والله لقد اضلني ﴾

قوله: ﴿ قال تعالى ﴾ سره اشاره ده چه دا جمله مستانفه ده د ﴿ ظالم ﴾ کلام په ﴿ ادجاملي ﴾ باندې پوره شو.

قوله: ﴿ لَوْلَا هَلَّا نُزِّلَ عَلَيْهِ الْقُرْآنُ جُمْلَةً وَاحِدَةً ﴾ دلته ﴿ نزل ﴾ په معنی د ﴿ انزل ﴾ دې ځکه چه د ﴿ نزل ﴾ معنی ده لږ لږ نازلول او د ﴿ انزل ﴾ معنی ده په یو ځائې نازلول لهذا ﴿ نزل ﴾ او ﴿ جملة واحدة ﴾ کښې به تعارض وی په دې وجه به وئیلې شي چه ﴿ نزل ﴾ په معنی د ﴿ انزل ﴾ دې ﴿ نزلنا ﴾ ... ﴿كذلك نزلنا ﴾ محذوف منلو سره ئې اشاره اوکړه چه ﴿ كذلك ﴾ د فعل محذوف مفعول دې او ﴿لنثبت به ﴾ نه قرآن کریم لره متفرق طور نازلولو دریو حکمتونو بیان دې.

قوله: ﴿ وَأَحْسَنَ تَفْسِيرًا ﴾ عطف ئې په ﴿ الحق ﴾ باندې دې، ﴿ احسن ﴾ محلا مجرور دې.

قوله: ﴿ الَّذِينَ يُحْشَرُونَ ﴾ د ﴿ هم ﴾ مبتدأ محذوف خبر دې لکه چه مفسر رحمه الله ظاهره کړه.

[اياتونه: ۳۵ - ٤٤]

﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ﴾ التوراة ﴿وَجَعَلْنَا مَعَهُ أَخَاهُ هَارُونَ وَزِيرًا﴾ معينا ﴿فَقُلْنَا اذْهَبَا إِلَى الْقَوْمِ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا﴾ اي القبط فرعون وقومه فذهبا اليهم بالرسالة فكذبوهما ﴿فَدَمَّرْنَاهُمْ تَدْمِيرًا﴾ اهلكناهم اهلاكا ﴿وَ﴾ اذكر ﴿قَوْمَ نُوحٍ لَمَّا كَذَّبُوا الرُّسُلَ﴾ بتكذيبهم نوحا لطول لبثه فيهم فكانه رسل او لان تكذيبه تكذيب لباقي الرسل لاشتراكهم في المجيء بالتوحيد ﴿أَغْرَقْنَاهُمْ﴾ جواب لما ﴿وَجَعَلْنَاهُمْ لِلنَّاسِ﴾ بعدهم ﴿آيَةً﴾ عبرة ﴿وَأَعْتَدْنَا﴾ في الآخرة ﴿لِلظَّالِمِينَ﴾ الكافرين ﴿عَذَابًا أَلِيمًا﴾ مؤلما سوى ما يحل بهم في الدنيا ﴿وَ﴾ اذكر ﴿عَادًا﴾ قوم هود ﴿وَثَمُودَ﴾ قوم صالح ﴿وَأَصْحَابَ الرَّسِّ﴾ اسم بئر ونبيهم قيل شعيب وقيل غيره كانوا قعودا حولها فانهارت بهم وبمنازلهم ﴿وَقُرُونًا﴾ اقواما ﴿بَيْنَ ذَٰلِكَ كَثِيرًا﴾ اي بين عاد واصحاب الرس ﴿وَكُلًّا ضَرَبْنَا لَهُ الْأَمْثَالَ﴾ في اقامة الحجة عليهم فلا نهلكهم الا بعد الانذار ﴿وَكُلًّا تَبَّرْنَا تَتْبِيرًا﴾ اهلكنا اهلاكا بتكذيبهم انبياءهم ﴿وَلَقَدْ أَتَوْا﴾ اي مر كفار مكة ﴿عَلَى الْقَرْيَةِ الَّتِي أُمْطِرَتْ مَطَرَ السَّوْءِ﴾ مصدر ساء اي بالحجارة وهي عظمى قرى قوم لوط فاهلك الله اهلها لفعلهم الفاحشة ﴿أَفَلَمْ يَكُونُوا يَرَوْنَهَا﴾ في سفرهم الى الشام فيعتبرون والاستفهام للتقرير ﴿بَلْ كَانُوا لَا يَرْجُونَ﴾ يخافون ﴿نُشُورًا﴾ بعثا فلا يؤمنون ﴿وَإِذَا رَأَوْكَ إِنْ﴾ ما ﴿يَتَّخِذُونَكَ إِلَّا هُزُوًا﴾ مهزوءا به يقولون ﴿أَهَٰذَا الَّذِي بَعَثَ اللَّهُ رَسُولًا﴾ في دعواه محتقرين له عن الرسالة ﴿إِنْ﴾ مخففة من الثقيلة واسمها محذوف اي انه ﴿كَادَ لَيُضِلُّنَا﴾ يصرفنا ﴿عَنْ آلِهَتِنَا لَوْلَا أَنْ صَبَرْنَا عَلَيْهَا﴾ لصرفنا عنها قال تعالى ﴿وَسَوْفَ يَعْلَمُونَ حِينَ يَرَوْنَ الْعَذَابَ﴾ عيانا في الآخرة ﴿مَنْ أَضَلُّ سَبِيلًا﴾ اخطأ طريقا اهم ام المؤمنون ﴿أَرَأَيْتَ﴾ اخبرني ﴿مَنِ اتَّخَذَ إِلَٰهَهُ هَوَاهُ﴾ اي مهويه قدم المفعول الثاني لانه اهم وجملة من اتخذ مفعول اول لرايت والثاني ﴿أَفَأَنْتَ تَكُونُ عَلَيْهِ وَكِيلًا﴾ حافظا تحفظه عن اتباع هواه لا ﴿أَمْ

تَحْسَبُ أَنَّ أَكْثَرَهُمْ يَسْمَعُونَ، سَمَاع تَفَهُّم ﴿أَوْ يَعْقِلُونَ﴾ مَا تَقُول لَهُمْ ﴿إِنْ﴾ مَا ﴿هُمْ إِلَّا كَالْأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ سَبِيلًا﴾ أَخْطَأ طَرِيقًا مِنْهَا لِأَنَّهَا تَنْقَاد لِمَنْ يَتَعَهَّدهَا وَهُمْ لَا يُطِيعُونَ مَوْلَاهُمْ الْمُنْعِم عَلَيْهِمْ

ترجمه: او بیشکه مونږ موسی علیه السلام ته کتاب تورات ورکړو او هغه سره مو د هغه رور هارون علیه السلام وزیر (یعنی) معین جوړ کړو او مونږ دواړو ته حکم ورکړو چه هغه خلقو ته لاړ شئ چا چه زمونږ دلائلو تکذیب کړې دې یعنی د قبطیانو طرف ته کوم چه فرعون او د هغه قوم دې پس (دا دواړه) پیغام اخستلو سره هغوی ته لاړل خو هغوی د دواړو تکذیب اوکړو نو مونږ هغوی تس نس کړل یعنی پوره طریقې سره مو هلاک کړل او د قوم نوح تذکره اوکړئ چه کله هغوی د تولو رسولانو تکذیب اوکړو د نوح علیه السلام تکذیب کولو سره، د نوح علیه السلام د هغوی ترمینځه اوږدې مودې پورې د قیام کولو د وجې نه، ګویا سیدنا نوح علیه السلام ډیر رسولان وو (یعنی په منزله د ډیرو رسولانو وو) یا په دې وجه چه (رسل د جمع صیغه استعمال کړې شوه) چه د سیدنا نوح علیه السلام تکذیب ګویا د باقی رسولانو تکذیب دې ځکه چه د توحید په راوړلو کښې ټول مشترک دی نو مونږ هغوی غرق کړل او د روستنو خلقو دپاره مو نشان عبرت جوړ کړل او مونږ په آخرت کښې د ظالمانو کفارو دپاره دردونکې عذاب تیار کړې دې یعنی تکلیف ورکونکې، د هغه عذاب نه علاوه کوم چه به په دنیا کښې په هغوی باندې نازلیږی او د هود علیه السلام د قوم عاد او د صالح علیه السلام د قوم ثمودیانو او اصحاب الرس تذکره اوکړئ، رس د یو کوهی نوم دې او د هغوی د نبی په باره کښې ونیلې شوې دی چه شعیب علیه السلام وو او ونیلې شوی دی چه د هغه نه علاوه وو، د کوهی په اطرافو کښې ئې استوګنه وه هغه کوهې د هغوی او د هغوی د کورونو سره ښخ شو او د هغوی په مینځ مینځ کښې د ډیرو قومونو یعنی عاد او اصحاب الراس ترمینځه او مونږ د هریو دپاره ښه ښه مضامین بیان کړل په هغوی باندې د حجت قائمولو دپاره مونږ هغوی ته د تنبیه (خبردار) کولو نه پس هلاک کړل یا مونږ هریو پوره هلاک کړو د هغوی د خپلو انبیاؤ تکذیب کولو د وجې نه او هغوی یعنی کفار مکه په هغه کلی تیریږی چه په هغې باندې بد ترین باران کړې شوې وو ﴿ السوء ﴾ د ﴿ ساء ﴾ مصدر دې یعنی د کاڼړو باران پرې کړې شوې وو او هغه کلې د قوم لوط په کلو کښې د ټولو نه لوئې کلې (سدوم) وو پس الله پاک هغه کلی والو لره د هغوی د بدفعلئ د وجې نه هلاک کړل نو آیا دا خلق د خپل شام په سفر کښې هغه کلی ته نه ګوری چه عبرت حاصل کړی او استفهام تقریری دې، بلکه خبره دا ده چه دا خلق د مرګ نه پس د ژوندی کیدو عقیده (امید) نه لری هم دا وجه ده چه ایمان نه راوړی او چه کله دا خلق تا لره وینی نو بس تا پورې توقې کوی یعنی تا پورې خندنئ کوی، وائی چه آیا هم دا دې هغه صاحب کوم چه الله پاک د هغه په ګمان رسول رالیږلې دې د (مرتبه) رسالت نه نبی علیه السلام لره کم ګڼړلو سره ﴿ ان ﴾ ثقیله

نه مخففه دي او د دې اسم محذوف دي ای انه‌دې سرې خو به مونږ زمونږ د معبودانو نه اړولي وې که مونږ پرې کلک نه وې پاتې شوې نو یقینا مونږ به ترې اوړیدلي وې، الله پاک اوفرمائیل او زر ده چه دوی ته به معلومه شي چه کله هغوی عذاب لره په آخرت کښې په غړیدلو سترګو سره وینې چه څوک ګمراه وو؟ یعنی په غلطه لاره باندې وو هغوی یا مومنان؟ آیا تا هغه سړې د هغه حالت لیدلې دې چا چه د خپل خواهش نفساني یعنی د خوښې خیزونو نه خپل معبود جوړ کړې دې؟ مفعول ثاني د اهم کیدو دوجې نه مقدم کړې شو او (من اتخذ الهه هواه) جمله د (رایت) مفعول اول دې او (افانت تکون علیه وکیلا) مفعول ثاني دې، آیا ته د داسې سړې ضامن کیدې شې؟ یعنی ته د داسې خواهش پرست د خواهشاتو د اتباع نه حفاظت زمواري اغستلې شې؟ نه آیا ته دا خیال کوې چه په دوی کښې اکثر د پوهیدلو د پاره اوري یا ته چه هغوی ته څه وائي په هغې باندې پوهیږی دا خو صرف د څاروو په شان دی بلکه د هغوی نه هم زیات بې لارې دی یعنی د څارو نه هم د هغوی بد حال دې ځکه چه کوم کس د هغه (څارو) خیال ساتي د هغه فرمانبرداري کوي او دوی د خپل محسن مولی اطاعت نه کوی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** (وَلَقَدْ آتَیْنَا) ای والله لقد اتینا وزیراد وزرنه صفت مشبه، مددګار، ناصر، معین

**قوله:** (أَيِ الْقِبْطِ) القبط د القوم نه د بدل کیدو د وجې نه مجرور دې، (فرعون وقومه) د قبط بیان دې.

**قوله:** (فَدَمَّرْنَاهُمْ) د دې عطف په فذهبا الیهم محذوف باندې دې، لکه چه مفسر علام اشاره کړې ده، شارح ﷫ قوم نوح ﷺ لره د اذکر فعل محذوف مفعول منلې دې، او لما لره شرطیه منلو سره ئې (اغرقناهم) لره جواب شرط منلې دې، او که (لما) ظرفیه اومنلې شي نو دا د (ما اضمر عامله علی شریطة التفسیر) د قبیلې نه هم کیدې شي، د عبارت تقدیر به داسې وی (اغرقنا قوم نوح لما کذبوا الرسل اغرقناهم) که (لما) شرطیه اومنلې شي نو د ما اضمر د قبیل نه به نه وی ځکه چه د لما جواب د چا د پاره مفسر نه شي کیدې (جمل)

**قوله:** (لِطُولِ لُبْثِه فِيهِمْ) دا د یو سوال مقدر جواب دې، سوال دا دې چه (کذبوا الرسل) کښې (رسل) ولې جمع راوړلې شو حال دا چه نوح ﷺ خو یو (واحد) دې؟ شارح د دې دوه جوابونه ورکړی دی اول دا چه د سیدنا نوح ﷺ د نبوت او د رسالت زمانه دومره اوږده ده چه په دومره موده کښې ډیر انبیاء او رسولان تله نو ګویا سیدنا نوح ﷺ د زمانې په اعتبار سره د ډیرو نبیانو قائم مقام دې، او بل جواب ئې دا ورکړو چه ټول انبیاء د توحید په مسئله کښې متفق دی او توحید د ټولو انبیاء اجماعي مسئله ده، لهذا د یو تکذیب کول د ټولو تکذیب دې.

قوله: ﴿ وَجَعَلْنَاهُمْ ﴾ اى اغراقاهم اوقصتهم

قوله: ﴿ لِلظَّالِمِينَ ﴾ وضع الظاهر موضع المضمر، تسجيلا عليهم بوصف الظلم كنې نو عبارت به داسې وې. واعتدنالهم.

قوله: ﴿ وكلا ﴾ دا د عامل مقدر د وجې نه منصوب دې او د ﴿ ما اهم ﴾ د قبيل نه دې او د ﴿ ضربنا ﴾ سره يو شان معنې والا فعل د ﴿ كلا ﴾ نه مخكښې محذوف دې، مثلا ﴿ انذرنا كلا ضربنا له الامثال ﴾ امثال هغه قصصِ عجيبه او عمده مضامينو ته وئيلې شي كوم چه په غرابت كښې د مثالونو په شان وي.

قوله: ﴿ مروا ﴾ د شارح مقصد په دې اضافې سره د يو اعتراض دفع كول دي، اعتراض دا دې چه ﴿ اتوا ﴾ متعدى بنفسه وى يا د دې صله الى راځى او دلته د دې صله ﴿ على ﴾ استعمال شوې ده د دې څه وجه ده؟

جواب: جواب دا دې چه ﴿ اتوا ﴾ د ﴿ مروا ﴾ معنى باندې مشتمل دې لهذا د دې صله ﴿ على ﴾ راوړل صحيح دى، كما اشار اليه الشارح.

قوله: ﴿ مطر السوء ﴾ د امطرت مفعول مطلق دې، په معنى د ﴿ الامطار ﴾ دې، اصل عبارت داسې دې ﴿ امطرت القوم مطر السوء ﴾ ... والسوء په معنى د حجارة دې اى رميت بالحجارة.

قوله: ﴿ مهزوابه ﴾ دا اشاره ده چه ﴿ هزوا ﴾ مصدر په معنى د اسم مفعول دې.

قوله: ﴿ لصرفنا عنها ﴾ دا د لولاجواب دې كوم چه محذوف دې.

قوله: ﴿ مَنْ أَضَلُّ سَبِيلًا ﴾ ﴿ من ﴾ استفهاميه مبتدأ، ﴿ اضل ﴾ د دې خبر او ﴿ سبيلا ﴾ د هغې تميز، دا ټول جمله قائم مقام د ﴿ يعلمون ﴾ د دوؤ مفعولونو دې ﴿ يعلمون ﴾ د عمل معلق كړې شوې دې چه د ﴿ من ﴾ استفهاميه صدارت باطل نه شي.

قوله: ﴿ أَرَأَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ إِلَٰهَهُ هَوَاهُ ﴾ د اهميت په وجه مفعول ثانى مقدم كړې شوې دې، اصل عبارت داسې دې ﴿ اتخذ هواه الها كما تقول علمت منطلقا زيدا ﴾ په اصل كښې وو علمت زيدا منطلقا.

**[اياتوله: ۴۴-۶۰]**

﴿أَلَمْ تَرَ﴾ تنظر ﴿إِلَىٰ﴾ فعل ﴿رَبِّكَ كَيْفَ مَدَّ الظِّلَّ﴾ مِن وَقتِ الإسفار إلى وقت طلوع الشمس ﴿وَلَوْ شَاءَ﴾ رَبُّكَ ﴿لَجَعَلَهُ سَاكِنًا﴾ مُقِيمًا لا يزول بطلوع الشمس ﴿ثُمَّ جَعَلْنَا الشَّمْسَ عَلَيْهِ﴾ أي الظل ﴿دَلِيلًا﴾ فلولا الشمس ما عُرِفَ الظل ﴿ثُمَّ قَبَضْنَاهُ﴾ أي الظل الممدود ﴿إِلَيْنَا قَبْضًا يَسِيرًا﴾ خفيًا بطلوع الشمس ﴿وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ لِبَاسًا﴾ ساترًا كاللباس ﴿وَالنَّوْمَ سُبَاتًا﴾ راحة للأبدان بقطع الأعمال ﴿وَجَعَلَ النَّهَارَ نُشُورًا﴾ منشورًا فيه لابتغاء الرزق وغيره ﴿وَهُوَ الَّذِي أَرْسَلَ الرِّيَاحَ﴾ وفي قراءة الريح ﴿نُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهِ﴾ متفرقة قدام المطر وفي قراءة بسكون الشين تخفيفا وفي أخرى بسكونها وفتح النون مصدر وفي أخرى بسكونها وضم

المُوَحَّدَة بَدَل النُّون أيْ مُبَشِّرَات وَمُفْرَد الأولَى نَشُور كَرَسُول وَالأخِيرَة بَشِير ﴿وَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً طَهُورًا﴾ مُطَهِّرًا ﴿لِنُحْيِيَ بِهِ بَلْدَةً مَيْتًا﴾ بِالتَّخْفِيف يَسْتَوِي فِيهِ المُذَكَّر وَالمُؤَنَّث ذَكَّرَهُ بِاعْتِبَار المَكَان ﴿وَنُسْقِيَهُ﴾ أيْ المَاء ﴿مِمَّا خَلَقْنَا أَنْعَامًا﴾ إبِلًا وَبَقَرًا وَغَنَمًا ﴿وَأَنَاسِيَّ كَثِيرًا﴾ جَمْع إنْسَان وَأَصْله أَنَاسِين فَأُبْدِلَتْ النُّون يَاء وَأُدْغِمَتْ فِيهَا اليَاء أوْ جَمْع إنْسِي ﴿وَلَقَدْ صَرَّفْنَاهُ﴾ أيْ المَاء ﴿بَيْنَهُمْ لِيَذَّكَّرُوا﴾ أصْله يَتَذَكَّرُوا أُدْغِمَتْ التَّاء فِي الذَّال وَفِي قِرَاءَة لِيَذْكُرُوا بِسُكُونِ الذَّال وَضَمّ الكَاف أيْ نِعْمَة اللّٰه بِهِ ﴿فَأَبَىٰ أَكْثَرُ النَّاسِ إِلَّا كُفُورًا﴾ جُحُودًا لِلنِّعْمَةِ حَيْثُ قَالُوا مُطِرْنَا بِنَوْءِ كَذَا ﴿وَلَوْ شِئْنَا لَبَعَثْنَا فِي كُلِّ قَرْيَةٍ نَذِيرًا﴾ يُخَوِّف أهْلهَا وَلَكِنْ بَعَثْنَاك إلَى أهْل القُرَى كُلّهَا نَذِيرًا لِيَعْظُم أجْرك ﴿فَلَا تُطِعِ الْكَافِرِينَ﴾ فِي هَوَاهُمْ ﴿وَجَاهِدْهُم بِهِ﴾ اي القرآن ﴿جِهَادًا كَبِيرًا وَهُوَ الَّذِي مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ﴾ أرْسَلَهُمَا مُتَجَاوِرَيْنِ ﴿هَٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ﴾ شَدِيد العُذُوبَة ﴿وَهَٰذَا مِلْحٌ أُجَاجٌ﴾ شَدِيد المُلُوحَة ﴿وَجَعَلَ بَيْنَهُمَا بَرْزَخًا﴾ حَاجِزًا لَا يَخْتَلِط أحَدهمَا بِالآخَر ﴿وَحِجْرًا مَّحْجُورًا﴾ سِتْرًا مَمْنُوعًا بِهِ اختلاطهما ﴿وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ مِنَ الْمَاءِ بَشَرًا﴾ مِنَ المَنِيّ إنْسَانًا ﴿فَجَعَلَهُ نَسَبًا﴾ ذَا نَسَب ﴿وَصِهْرًا﴾ ذَا صِهْر بِأنْ يَتَزَوَّج ذَكَرًا كَانَ أوْ أُنْثَى طَلَبًا لِلتَّنَاسُلِ ﴿وَكَانَ رَبُّكَ قَدِيرًا﴾ قَادِرًا عَلَى مَا يَشَاء ﴿وَيَعْبُدُونَ﴾ أيْ الكُفَّار ﴿مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَنفَعُهُمْ﴾ بِعِبَادَتِهِ ﴿وَلَا يَضُرُّهُمْ﴾ بِتَرْكِهَا وَهُوَ الأصْنَام ﴿وَكَانَ الْكَافِرُ عَلَىٰ رَبِّهِ ظَهِيرًا﴾ مُعِينًا لِلشيطان بطاعته ﴿وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا مُبَشِّرًا﴾ بِالجَنَّةِ ﴿وَنَذِيرًا﴾ مُخَوِّفًا من النار ﴿قُلْ مَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ﴾ أيْ عَلَى تَبْلِيغ مَا أُرْسِلْتُ بِهِ ﴿مِنْ أَجْرٍ إِلَّا﴾ لَكِنْ ﴿مَن شَاءَ أَن يَتَّخِذَ إِلَىٰ رَبِّهِ سَبِيلًا﴾ طَرِيقًا بِإنْفَاقِ مَاله فِي مَرْضَاته تَعَالَى فَلَا أَمْنَعهُ مِنْ ذَلِكَ ﴿وَتَوَكَّلْ عَلَى الْحَيِّ الَّذِي لَا يَمُوتُ وَسَبِّحْ﴾ مُتَلَبِّسًا ﴿بِحَمْدِهِ﴾ أيْ قُلْ سُبْحَان اللّٰه وَالحَمْد لِلّٰهِ ﴿وَكَفَىٰ بِهِ بِذُنُوبِ عِبَادِهِ خَبِيرًا﴾ عَالِمًا تَعَلَّقَ بِهِ بِذُنُوبِ هُوَ ﴿الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ﴾ مِنْ أيَّام الدُّنْيَا أيْ فِي قَدْرهَا لِأنَّهُ لَمْ يَكُنْ ثَمَّ شَمْس وَلَوْ شَاءَ لَخَلَقَهُنَّ فِي لَمْحَة وَالعُدُول عَنْهُ لِتَعْلِيمِ خَلْقه التَّثَبُّت ﴿ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ﴾ هُوَ فِي اللُّغَة سَرِير المُلْك ﴿الرَّحْمَٰنُ﴾ بَدَل مِنْ ضَمِير اسْتَوَى أيْ اسْتِوَاء يَلِيق بِهِ ﴿فَاسْأَلْ﴾ أيُّهَا الإنْسَان ﴿بِهِ﴾ بِالرَّحْمَنِ ﴿خَبِيرًا﴾ يُخْبِرك بِصِفَاته ﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ﴾ لِكُفَّار مَكَّة ﴿اسْجُدُوا لِلرَّحْمَٰنِ قَالُوا وَمَا الرَّحْمَٰنُ أَنَسْجُدُ لِمَا تَأْمُرُنَا﴾ بِالفَوْقَانِيَّةِ وَالتَّحْتَانِيَّة وَالآمِر مُحَمَّد وَلَا نَعْرِفهُ لَا ﴿وَزَادَهُمْ﴾ هذا القول لهم ﴿نُفُورًا﴾ عن الإيمان

ترجمه: آيا ته د خپل رب صنعت ته نه گورې چه څنګه ئې خور کړې دی سورې د رڼا خوریدو (اسفار) نه تر د نمر ختلو پورې که هغه غوښتلې نو دا به ئې په يو حالت باندې ولاړ پريخودلې وې يعنی ساکن به ئې پريخودلې وې چه د نمر په راختلو سره به نه زائل کيدلو بيا مونږ نمر لره په دې سورې باندې دليل جوړ کړو که نمر نه وې نو د سورې پيژندګلو به نه شوه کيدې بيا مونږ دا يعنی خور شوې سورې خپل طرف ته په قلاره قلاره رانښکلو يعنی د طلوع شمس د وجې نه شنا فشنا او هغه داسې دې چه هغه ستاسو دپاره شپه جامه يعنی د جامې په شان پټونکې جوړه کړه او خوب ئې قطع کونکې يعنی د بدنونو دپاره اعمالو لره موقوف کولو

سره د آرام ځیز جوړکړو ورځ ئې د منتشر کیدو وخت جوړ کړو په دې کښ د رزق وغیره د حاصلولو دپاره او هغه داسې دې چه د خپل رحمت باران نه اول هواګانې رالیږی چه هغه خلق خوشحاله کړی او په یو قراءت کښ (الریاح) په ځائې ﴿ الریح ﴾ دې یعنی د باران نه وړاندې خورې شوې هواګانې او په یو قراءت کښ ﴿ نشرا ﴾ د شین په سکون سره دې د تخفیف دپاره او په یو قراءت کښ د شین په سکون او د نون په فتحې سره (نشرا) مصدر دې او په بل قراءت کښ د شین په سکون او د نون په ځائې د باء په ضمې سره (یعنی بشرا) دې زیرې ورکونکې، (اول قراءت یعنی نشرا) مفرد نشوردې، لکه چه د ﴿ رسل ﴾ واحد رسول دې (او هم دغه شان دویم قراءت یعنی نشرا) مفرد دې، او آخری قراءت یعنی د ﴿ بشرا ﴾ واحد (بشیر) دې او مونږ د اسمان نه پاکې یعنی پاکې او پاکونکې اوبه نازلوو د دې دپاره چه مونږ د هغې په ذریعه اوچه زمکه شنه او شاداب کړو میتا په تخفیف سره دې، په ﴿ بلدة ﴾ کښ مذکر او مونث دواړه برابر دی، یا د ﴿ بلدة ﴾ صفت ﴿ میتا ﴾ په دې وجه مذکر راوړلې شوې دې چه ﴿ بلدة ﴾ ئې د مکان په تاویل کښ کړې دې او مونږ هغه اوبه په خپل مخلوق کښ په ډیرو څارو مثلا اوښانو، غواګانو او ګډو بیزو او ډیرو انسانانو باندې څکوو ﴿ اناسی ﴾ د انسان جمع ده د اناسی اصل اناسین وو، نون په یاء سره بدل شو اود یا په یا کښې ادغام اوشو اناسیّ شو بیا اناسیّ د ﴿ انسی ﴾ ده او مونږ دا اوبه د مخلوق ترمینځه تقسیموو دې دپاره چه خلق غور او فکر اوکړی د ﴿ یذکروا ﴾ اصل (یتذکروا) وو تا په ذال کښ ادغام کړې شوه او په یو قراءت کښ ﴿ لیذکروا ﴾ د ذال په سکون او د کاف په ضمې سره دې یعنی د دې دپاره چه باران (د اوبو) په سبب د الله پاک نعمتونه یاد کړی بیا اکثر خلق ناشکری کوی یعنی د نعمت منکر وی، په داسې طریقه چه هغوی وائی چه د فلانی ستوری په راختلو (یا د غروب) کیدو د وجې نه مونږ ته باران راکړې شو او که مونږ غوښتلې نو هر یو کلی ته به مو ویرونکې پیغمبر رالیږلې وې چه هغه به دا کلی والا ویرول خو مونږ ته د ټول عالم طرف ته نذیر اولیږلې د دې دپاره چه ستا اجر زیات شی لهذا ته د کافرانو د هغوی په خواهشاتو کښ اتباع مه کوه او ته هغوی سره د قرآن کریم په ذریعه پوره طاقت سره جهاد کوه او هغه داسې ذات دې چا چه دوه دریابونه یو ځائې کولو سره جاری کړی دی چه په هغې کښ یو خوږ مزیدار یعنی انتهائی خوږ دې او دویم مالګین او تریو یعنی انتهائی تریو دې او د هغې دواړو ترمینځه ئې یو پرده د دې دپاره چه د یو بل سره ملاؤ نه شی او قوی مانع کیخودلې دې یعنی داسې مانع چه دهغې د وجې نه د هغه دواړو دریابونو یو ځائې کیدل ممنوع شو هغه داسې ذات دې چا چه انسان د اوبو یعنی د منی نه پیدا کړو بیا ئې هغه د نسب خاوند (د وینې رشتې والا)، او سخرګنۍ والا کړو په داسې طریقه چه هغه د نسل د زیات والی دپاره نکاح کوی که مذکر وی که مونث وی او ستا رب

ډیر د قدرت والا دې چه هغه څه غواړي په هغې باندې قادر دې او دا خلق یعنی کافران الله پاک لره پریخودلو سره د داسې څیزونو بندګی کوی کوم چه د هغوی د بندګئ د وجې نه نه هغوی ته په نفع رسولو باندې قادر دی او نه په ترک د بندګئ باندې نقصان رسولو باندې قادر دی او هغه بتان دی او کفار خو د خپل رب په مخالفت کښې د شیطان مددګار دی د شیطان اطاعت کولو سره او مونږ ته صرف د دې دپاره لیږلې ئې چه ته خلقو ته د جنت زیرې ورکړې او د جهنم د اور نه خلق اوېروې تاسو اووایئ چه زه ستاسو نه د دې څیز په تبلیغ باندې کوم چې ماته راکولو سره رالیږلې شوې یم هیڅ معاوضه نه غواړم خو دا چې څوک غواړي دخپل رب په مرضیاتو کښې دې مال خرچ کولو سره خپل رب ته (د رسیدلو) لاره اختیار کړی نو زه هغه ددې نه نه منع کوم او تاسو په دغه حیّ لا یموت باندې توکل ساتئ او دهغه د حمد سره تسبیح بیانوئ یعنی سبحان الله وبحمده وایئ او هغه دخپلو بندګانو د ګناهونو نه ښه خبر دې، بذنوب د خبیرا سره متعلق دې او هغه داسې ذات دې چه هغه اسمانونه او زمکه او کوم څه چه ددې په مینځ کښې دی به شپږو ورځو کښې پیدا کړل د دنیا د ورځو په حساب سره یعنی ددې په مقدار کښې ځکه چه هغه وخت نمر نه وو، اوکه هغه غوښتلې نو دا به ئې په یوه لمحه (ساعت) کښې پیدا کړی وې، اوس پاتې شو دهغه دخپل قدرت نه عدول نو دا خپل مخلوق ته د جلتې نه کولو (اود نرمۍ) د تعلیم دپاره دی بیا هغه په عرش باندې برابر شو عرش په لغت کښې تخت شاهی ته وائی هغه رحمن دې رحمٰن د استوٰی د ضمیر نه بدل دې، اود استوٰی نه هغه استوٰی مراد ده کوم چه دهغه د شان سره لائق ده ته د رحمن د شان باره کښې د یو خبر لرونکی نه معلومات اوکړه هغه به تاته دهغه د صفاتو باره کښې بیان اوکړی او کله چه د مکې کافرانو ته اووئیلې شی چې رحمن ته سجده اوکړئ نو وائی رحمن څه څیز دې؟ آیا مونږ هغه چاته سجده اوکړو چاته چې ته د سجدې کولو حکم ورکوې تأمرنا په تاء او یاء دواړو سره دې او فاعل محمد دې، حال دا دې چې مونږ دغه (رحمٰن) نه پیژنو، مونږ داسې نه کوو. دې قول دوی لره د ایمان نه نور هم زیات نفرت کوونکی جوړ کړل۔

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** {أَلَمْ تَرَ} تَنْظُر: تنظر سره رؤیت بصری طرف ته اشاره ده او ددې تائید د الی نه هم کیږی ځکه چه د رؤیت بصری صله الی راځی

**قوله:** {إِلَىٰ رَبِّكَ}: کښې مضاف محذوف دې ځکه چه د ذات باری رؤیت په دنیا کښې ممکن نه دې لهذا تقدیر د عبارت به دا وی المرتر الی صنع ربك او بعضې حضراتو د رؤیت نه رؤیت قلبی هم مراد اخستې دې او المرتَرَ په معنی د الم تعلم اخستې دې او مخاطب نبی کریم ﷺ او هر هغه کس دې چې هغه په عالم کائنات کښې د غور اوفکر صلاحیت لری، الله تبارک وتعالی په دې آیاتونو کښې منفرد بالالوهیة کیدو باندې پنځه دلیلونه د

قبيلې دمحسوساتو نه بيان کړی دی ① أَلَمْ تَرَ إِلَىٰ رَبِّكَ كَيْفَ مَدَّ الظِّلَّ ② هُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ لِبَاسًا ③ هُوَ الَّذِي أَرْسَلَ الرِّيَاحَ ④ هُوَ الَّذِي مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ ⑤ هُوَ الَّذِي خَلَقَ مِنَ الْمَاءِ بَشَرًا.

**قوله: مِنْ وَقْتِ الْإِسْفَارِ إِلَىٰ وَقْتِ طُلُوعِ الشَّمْسِ:** مفسّر رحمه الله دپاره زيات مناسب وو چې اې من طلوع الفجر الى طلوع الشمس ئې وئيلې وو، که مطلق ئې پريخودې وې او هيڅ يو قيد سره ئې مقيّد کړې نه وې نو نوره به هم زياته غوره وه ځکه چې په شپه کې خو د زمکې ظل (سورې) وی او په ورځ کښې د ونو سورې وی. اسفار ئې شايد د بنه وخت کيدو په وجه خاص کړې دې دَ كيف مد الظل په تفسير کښې د مفسرينو درې اقوال دی ① من الفجر الى الشمس ② من المغرب الى طلوع الشمس ③ من طلوع الشمس الى زوال الشمس. صاحب د بحر رومبې قول د جمهورو قول نقل کړې دې او مفسّر علام چې کوم تفسير کړې دې هغه د نورو مفسّرينو موافق نه دې (صاوی وجمل)

**قوله: جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ لِبَاسًا:** په دې کښې ئې ليل لره د لباس سره تشبيه ورکړې ده وجه د شبه ساتر کيدل دی، حرف تشبيه او وجه د شبه ئې حذف کړې ده، دې ته تشبيه بليغ وائی لکه په زيدٌ اسدٌ کې چې تشبيه بليغ ده.

**قوله: بُشْرًا}:** په دې کښې يو څو قراءتونه دی دمفسّر علام مخې ته د قرآن کريم هغه نسخه ده چې په هغې کښې د بُشرًا په ځائې نُشرًا دې په دې کښې څلور قراءتونه دی ① نُشُرًا ② نُشْرًا ③ نَشْرًا ④ بُشْرًا. رومبې او دويم د نُشورٌ جمع دی لکه د رسولٌ جمع چې رسُلٌ او رُسْلٌ راځی، او دريم يعنی نَشْرًا دا مصدر دې چې په دې کښې واحد او جمع برابر دی او څلورم يعنی بُشْرًا د بَشيرٌ جمع ده خوشخبری ورکونکې.

**قوله: مُفْرَدُ الْأُولَىٰ وَالثَّانِيَةِ:** يعنی مفسّر علام له د اولٰی سره والثانية هم وئيل پکار وو ځکه چه د اول او دويم قراءت واحد يودې او هغه دې نَشورٌ او د څلورم قراءت يعنې د بُشْرًا واحد بشيرٌ دې

**قوله: مَيْتًا:** په مَيْت او مَيِّتْ کې فرق دادې چه مَيْت هغې ته وائی چې مړشوې وی او مَيِّتْ هغې ته وائی چه هغه مړکيدونکې وی يا مرګ ته نزدې وی.

**قوله: يَسْتَوِي فِيهِ الْمُذَكَّرُ وَالْمُؤَنَّثُ:** دا ددې اعتراض جواب دې چې بَلْدَةً موصوف او مَيْتًا ددې صفت دې د مَيْتًا په ځائې مَيْتَةً پکار وو چې په موصوف او صفت کې مطابقت راغلې وې؟ ددې يو جواب خونې دا ورکړو چې د مَيْت اطلاق په مذکر اومؤنث دواړو باندې کيږی، دويم جواب وذكرهُ باعتبار المكان. مفسّر علام له د واؤ په ځائې لَوْ وئيل پکار وو چې دويم جواب طرف ته اشاره شوی وې، د دويم جواب خلاصه دا ده چې بلدةً د مکان په تاويل کښې دې لهذا ميتًا اورل صحيح دی.

قوله: وَنُسْقِيَهُ: ددې عطف په نُحيِيَ باندې دې.

قوله: أَنْعَامًا: دا د نُسقِيه مفعول ثاني دې او خَلَقنا په أنعامًا باندې د مقدم کیدو په وجه حال دې ګینې نو خلقنا د أنعامًا صفت دې، قاعده ده چه موصوف که نکره وي او ددې موصوف مقدم کړې شوې وي نو دا حال جوړیږي.

قوله: أَنَاسِيَّ: دا د انسانٌ جمع ده داد سیبویه مذهب دې او هم دا راجح دی او بعضو وئیلي دي چه د إنسِيٌّ جمع ده دا د فراء مذهب دې اودا د اعتراض نه خالي نه دې ځکه چه په انسيٌّ کښې يَا نسبتي ده.اوپه کوم کښې چې يَا نسبتي وي دهغې جمع د فعالِيٌّ په وزن باندې نه راځي لکه چې ابن مالک فرمائيلي دي: وَاجعَل فَعَالِيَّ لغير ذي نَسَب.

قوله: وَلَقَدْ صَرَّفْنَاهُ: اى والله لقد صرّفناه اى الماء مفسّر علام د صرّفناه د هُ ضمیر مرجع ماءَ ګرځولې دې. مطلب دادې چه مونږ باران په مختلفو ښارونو او علاقو کښې د مقدار په اعتبار سره تقسیم کړې دې، دغسې د صفت په اعتبار سره هم تقسیم کړې دې چې باران یو ځائې کښې په شیبو شیبو وریږي نو بل ځائې کښې په مزه مزه، دغسې مو په مختلفو وختونو تقسیم کړو.د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه هم دا تفسیر نقل دې، بعضې حضراتو د صرّفناه د هُ ضمیر مرجع قرآن ګرځولې دې او ددې قرینه ئې جاهِدهُم به ګرځولې ده.او بعضې حضراتو المَطَر مرجع ګرځولې دې، صاحب د جلالین هم دا اختیار کړې ده قرآن لره د مرجع ګرځولو په صورت کښې به مطلب دا وي چه مونږ په دې قرآن کښې مختلف مثالونو او عنواناتو سره ښه ښه مضامین بیان کړي دي او په مختلفو دلائلو او حُجتونو سره مو خلق پوهه کړي دي چه هغوی غور او فکر اوکړي. (صفوة التفاسیر ملخصًا)

قوله: النَّوءُ: ددې جمع أنواء راځي ددې معنی مائل کیدل او ساقط کیدل دي یقال نَاءَ به الحملُ اى أثقلَه وأمالَه) بوج ده لره درونډ کړو او ټيټ ئې کړو د جاهلیت په زمانه کښې به عربو کواکب (ستورو) لره مؤثر حقیقي منل، او د یخنۍ اوګرمۍ او د باران وغیره نسبت به ئې د بعضې نجوم طلوع یا غروب طرف ته کولو، دهغوی عقیده وه چې په آخره شپه کښې چې کله یو مخصوص ستورې د مغرب په طرف غورځیږي او ددې په مقابل مشرق کښې ددې حریف (مقابل) طلوع کیږي نو باران کیږي. دې خلقو الله تعالی لره مؤثر حقیقي نه منلو او نجوم او کواکب (ستوري) به ئې مؤثر حقیقي ګڼړل په دې وجه دې لره په کفران سره تعبیر کړې شولې. (روح البیان ملخصًا)

قوله: مَرَجَ: (ماضي باب نصر) مُرُوج: آزاد پریښودل، جاري کول، فُرات: ډیر خوږ، ښائسته ذائقې والا چې زړه ته تسلي ورکوي (ک) الرحمٰن: د رحمٰن د مرفوع کیدو درې وجې کیدې شي: ① د اَلّذِیْ خلقَ...الخ مبتدأ خبر وي ② د هُو مبتدأ محذوف خبر وي ③ د إِستوٰی د

ضمير نه بدل وی مفسر رحمه الله هم دا اختيار کړي دي

قوله فَاسْأَلْ بِهِ خَبِيرًا: به د خبيرًا سره متعلق دي، د فواصل د رعايت په وجه مقدم کړي شوي دي اى فسأل خبيرًا به يا د اسئل سره متعلق دي اى اسئل عنه خبيرًا يعنى د رحمن د صفاتو باره کښې د عالم نه معلومات اوکړئ

قوله يُخْبِرك بصفاته: دا جواب امر دي

**[اياتونه: ۶۱-۷۷]**

قال تعالى {تَبَارَكَ} تَعَاظَمَ {الَّذِي جَعَلَ فِي السَّمَاءِ بُرُوجًا} اثْنَيْ عَشَرَ الْحَمَل وَالثَّوْر وَالْجَوْزَاء وَالسَّرَطَان وَالأَسَد وَالسُّنْبُلَة وَالْمِيزَان وَالْعَقْرَب وَالْقَوْس وَالْجَدْي وَالدَّلْو وَالْحُوت وَهِيَ مَنَازِل الْكَوَاكِب السَّبْعَة السَّيَّارَة الْمِرِّيخ وَلَهُ الْحَمَل وَالْعَقْرَب وَالزُّهَرَة وَلَهَا الثَّوْر وَالْمِيزَان وَعُطَارِد وَلَهُ الْجَوْزَاء وَالسُّنْبُلَة وَالْقَمَر وَلَهُ السَّرَطَان وَالشَّمْس وَلَهَا الأَسَد وَالْمُشْتَرِى وَلَهُ الْقَوْس وَالْحُوت وَزُحَل وَلَهُ الْجَدْي وَالدَّلْو {وَجَعَلَ فِيهَا} أَيْضًا {سِرَاجًا} هُوَ الشَّمْس {وَقَمَرًا مُنِيرًا} وَفِي قِرَاءَة سُرُجًا بِالْجَمْعِ أَيْ نَيِّرَات وَخُصَّ الْقَمَر مِنْهَا بِالذِّكْرِ لنوع فضيلة {وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ خِلْفَةً} أَيْ يَخْلُف كُلّ مِنْهُمَا الآخر {لِمَنْ أَرَادَ أَنْ يَذَّكَّرَ} بِالتَّشْدِيدِ وَالتَّخْفِيف كَمَا تَقَدَّمَ مَا فَاتَهُ فِي أَحَدهمَا مِنْ خَيْر فَيَفْعَلهُ فِي الآخر {أَوْ أَرَادَ شُكُورًا} أَيْ شُكْرًا لِنِعْمَةِ ربه عليه فيهما {وَعِبَادُ الرَّحْمَٰنِ} مُبْتَدَأ وَمَا بَعْده صِفَات لَهُ إِلَى أُولَئِكَ يُجْزَوْنَ غَيْر الْمُعْتَرِض فِيهِ {الَّذِينَ يَمْشُونَ عَلَى الْأَرْضِ هَوْنًا} أَيْ بِسَكِينَةٍ وَتَوَاضُع {وَإِذَا خَاطَبَهُمُ الْجَاهِلُونَ} بِمَا يَكْرَهُونَهُ {قَالُوا سَلَامًا} أَيْ قَوْلًا يَسْلَمُونَ فِيهِ مِنَ الإِثْم {وَالَّذِينَ يَبِيتُونَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا} جَمْع سَاجِد {وَقِيَامًا} بِمَعْنَى قَائِمِينَ يُصَلُّونَ بِاللَّيْلِ {وَالَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا اصْرِفْ عَنَّا عَذَابَ جَهَنَّمَ إِنَّ عَذَابَهَا كَانَ غَرَامًا} أَيْ لَازِمًا {إِنَّهَا سَاءَتْ} بِئْسَتْ {مُسْتَقَرًّا وَمُقَامًا} هِيَ أَيْ مَوْضِع اسْتِقْرَار وَإِقَامَة {وَالَّذِينَ إِذَا أَنْفَقُوا} عَلَى عِيَالهمْ {لَمْ يُسْرِفُوا وَلَمْ يَقْتُرُوا} بِفَتْحِ أَوَّله وَضَمّه أَيْ يُضَيِّقُوا {وَكَانَ} إِنْفَاقهمْ {بَيْنَ ذَٰلِكَ} الإِسْرَاف وَالإِقْتَار {قَوَامًا} وسطا {وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ} قَتْلهَا {إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُونَ وَمَنْ يَفْعَلْ ذَٰلِكَ} أَيْ وَاحِدًا مِنَ الثَّلَاثَة {يَلْقَ أَثَامًا} أَيْ عقوبة {يُضَاعَفْ} وَفِي قِرَاءَة يُضَعَّف بِالتَّشْدِيدِ {لَهُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَيَخْلُدْ فِيهِ} بِجَزْمِ الْفِعْلَيْنِ بَدَلًا وَبِرَفْعِهِمَا اسْتِئْنَافًا {مُهَانًا} حَال {إِلَّا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا} مِنْهُمْ {فَأُولَٰئِكَ يُبَدِّلُ اللَّهُ سَيِّئَاتِهِمْ} الْمَذْكُورَة {حَسَنَاتٍ} فِي الآخرة {وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا} أَيْ لَمْ يَزَلْ مُتَّصِفًا بِذَلِكَ {وَمَنْ تَابَ} مِنْ ذُنُوبه غَيْر مَنْ ذُكِرَ {وَعَمِلَ صَالِحًا فَإِنَّهُ يَتُوبُ إِلَى اللَّهِ مَتَابًا} أَيْ يَرْجِع إِلَيْهِ رُجُوعًا فَيُجَازِيه خَيْرًا {وَالَّذِينَ لَا يَشْهَدُونَ الزُّورَ} أَيْ الْكَذِب وَالْبَاطِل {وَإِذَا مَرُّوا بِاللَّغْوِ} مِنَ الْكَلَام الْقَبِيح وَغَيْره {مَرُّوا كِرَامًا} مُعْرِضِينَ عَنْهُ {وَالَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا} وُعِظُوا {بِآيَاتِ رَبِّهِمْ} أَيْ الْقُرْآن {لَمْ يَخِرُّوا} يَسْقُطُوا {عَلَيْهَا صُمًّا وَعُمْيَانًا} بَلْ خَرُّوا سَامِعِينَ نَاظِرِينَ مُنْتَفِعِينَ {وَالَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ أَزْوَاجِنَا وَذُرِّيَّاتِنَا} بِالْجَمْعِ وَالإِفْرَاد {قُرَّةَ أَعْيُنٍ} لَنَا بِأَنْ نَرَاهُمْ مُطِيعِينَ لَك {وَاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِينَ إِمَامًا} فِي

الحير {أُولَٰئِكَ يُجْزَوْنَ الْغُرْفَةَ} الدرجة العُلْيا في الجنّة {بِمَا صَبَرُوا} عَلى طاعة الله {وَيُلَقَّوْنَ} بالتشديد والتخفيف مَعَ فتح الياء {فِيهَا} في الغرفة {تَحِيَّةً وَسَلَامًا} مِن الملائكة {خَالِدِينَ فِيهَا حَسُنَتْ مُسْتَقَرًّا وَمُقَامًا} موضع إقامة لَهُمْ وأولئكَ وَمَا بَعْده خبر عِبَاد الرّحمٰن المبتدأ {قُلْ} يَا مُحمّد لأهلِ مَكّة {مَا} نَافِيَة {يَعْبَأُ} يَكترث {بِكُمْ رَبِّي لَوْلَا دُعَاؤُكُمْ} إيّاهُ في الشّدائد فيكشفها {فَقَدْ} أيْ فَكَيْفَ يَعْبأ بِكُمْ وَقَدْ {كَذَّبْتُمْ} الرّسُول وَالقرآن {فَسَوْفَ يَكُونُ} العَذاب {لِزَامًا} مُلازمًا لَكُمْ في الآخرة بَعْد مَا يَحِلّ بِكُمْ في الدُّنيا فَقُتِلَ مِنهُمْ يَوْم بَدر سَبْعُونَ وَجَواب لَوْلَا دَلَّ عَلَيْهِ مَا قَبْلَها

**ترجمه:** هغه ذات ډير لوئي شان والا دې چې هغه په اسمان کې دولس برجونه جوړ کړل ① حمل ② ثور ③ الجوزاء ④ السرطان ⑤ الاسد ⑥ السنبلة ⑦ الميزان ⑧ العقرب ⑨ القوس ⑩ الجدی ⑪ الدلو ⑫ الحوت، دا د سبع سيارو (اووه ستورو) منزلونه دی (اوهغه سبع سياره دا دی ① المريخ: ددې منزل حمل اوعقرب دې. ② زهره: ددې منزل ثور اوميزان دې ③ عطارد: ددې منزل جوزاء او سنبله دې ④ القمر: ددې منزل سرطان دې. ⑤ الشمس ددې منزل اسد دې. ⑥ المشتری: ددې منزل قوس او حوت دې. ⑦ زحل ددې منزل جدی او دلو دې) اوهغه په اسمان کښې ډيوه هم جوړه کړه اودا نمر دې او نوراني سپوږمۍ ئې جوړه کړه اوپه يو قرأت کښې سُرُجًا دجمع صيغې سره دې يعنی روښانه کواکب (ستوری) ئې جوړکړل اوپه ستورو کښې ئې خاص کرد قمر (سپوږمۍ) ذکر د يو قسم د فضيلت په وجه دې اوهغه داسې ذات دې چه هغه شپه او ورځ په يوبل پسې تلونکې راتلونکې جوړ کړل يعنی په دې دواړو کښې هر يو بل پسې راځي دهغه کس دپاره څوک چه ځان پوهول غواړی دا (دخير) کارکوم چه ددې نه په دغه دواړو (شپه اوورځ) کښې پاتې شو نو دا د خير کار دې په بله کښې اوکړی.او شکر کول غواړی يذکر تشديد او تخفيف دواړو سره دې لکه وراندې چې تيرشوی دی يعنی خپل ځان باندې په شپه ورځ کښې دخپل رب د نعمتونو شکر کول پکار دی عبادالرحمٰن مبتدأ دې او ددې نه روستو د جمله معترضه نه علاوه ددې صفات دی أُولَٰئِكَ يُجْزَوْنَ پورې (يعنی د يجزون دماقبل پورې اود رحمٰن بندګان هغه دی چې هغوې په زمکه باندې عاجزی يعنی سکون او تواضع سره ګرځی او کله چه جاهلان دهغوی سره داسې خبرې سره مخاطب کيږی چې هغې لره هغوی ناخوښه ګنړی نودا صاحب ورته سلام وائې يعنی داسې خبره ورته کوی چې په هغې کښې هغوی د ګناه نه محفوظ کيږی او څوک چه د شپې دخپل رب په وړاندې په سجده او قيام کښې لګيا وی سُجَّدًا د ساجد جمع ده او قيامًا د قائمين په معنی دې يعنی د شپې مونځ کوی او څوک چه د خپل رب نه دا دعا غواړی چې اې زمونږ پروردګار ته زمونږ نه د جهنم عذاب لرې کړې ځکه چه دهغې عذاب اينښتيدونکې دې يعنی لازميدونکې دې بيشکه هغه د پاتې کيدو او اوسيدلو په لحاظ سره بد

ترین ځائې دې يعنی د استقرار او اقامت دپاره ډير بد ځائې دې اوکله چه هغوی په خپل عيال باندې خرچ کوی نو اسراف نه کوی اونه تنگی کوی يقتروا د يا په فتحې سره (سره د تاء په کسرې سره) او په ضمې د تاء سره (سره د کسرې د تاء) لم يقتروا ای لم يضيقوا او ددوی خرچ کول د اسراف او تنگئ په مينځ کښې په اعتدال سره وی او څوک چې د الله سره د بل معبود بندگی نه کوی اوکوم نفس لره چې الله حرام گرځولې دې هغې لره نه قتلوی خو په حقه سره، او هغوی زنا نه کوی اوڅوک چې (په ذکر شوی دريو واړو کارونو کښې يو کار هم اوکړی) نوهغه به سزا ته ورمخامخ کيږی اٰثَامًا ای عقوبةً اوهغه ته به د قيامت په ورځ دوچند عذاب ورکولې شی اوهغه به ذلت او خوارئ سره هميشه په دې کښې اوسيږی اوپه يو قراءت کښې يُضعّف په تشديد سره دې دواړه فعلونه (يعنی يُضٰعَفُ او يَخۡلُدۡ) مجزوم دی (يَلۡقَ نه د بدل الاشتمال) واقع کيدو په وجه او (ذکر شوی دواړه فعلونه) په رفع سره هم دی د استيناف په وجه سره. مُهَانًا د يَخۡلُدۡ د ضمير نه حال دې خو په دوی کښې چې څوک توبه اوباسی او ايمان راوړی او نيک عمل کوی نو الله تعالی به د داسې خلقو ذکرشوی گناهونه په آخرت کښې په نيکو سره بدل کړی او الله تعالی غفور او رحيم دې يعنی دې صفت سره هميشه متصف دې او کوم کس دا کس د هغې نه علاوه دې دکوم ذکر چې په اَمَّا مَنۡ تَابَ وَاٰمَنَ کښې شوې دې توبه کوی او نيک عمل کوی نو داسې کس (په حقيقت کښې) الله طرف ته رشتونې رجوع کوی يعنی په صحيح معنی کښې رجوع کوی نو داسې کس ته به (الله تعالی) غوره بدله ورکړی اوهغوی په عبث خبرو کښې به شامليږی (دويمه ترجمه) او هغوی دروغ او باطله گواهی نه ورکوی او کله چې په لغو څيزونو يعنی عبث (فضول) خبرو وغيره باندې ددوی تيريدل کيږی نو په شرافت سره تيريږی يعنی (توجه نه ورکوی) ددې نه اعراض کولو سره تيريږی اوهغوی داسې دی چې کله هغوی ته د الله په آيتونو يعنی د قرآن په ذريعه نصيحت کولې شی نوپه هغې باندې د کڼرو او ړندو په شان نه تيريږی بلکه د قبلولو په غوږونو ئې اوری اود عبرت په سترگو ورته کتلو سره استفاده کونکی تيريږی، او هغوی داسې دی چه دعا کوی چې اې پروردگار مونږ ته زمونږ د بيبيانو او زمونږ د اولاد د طرف نه د سترگو يخ والې راکړې ذُرِّيّٰتِنَا جمع او افراد سره دې په دې طور چې مونږ دوی ستا فرمانبردار اووينو او مونږ د متقيانو په خير کښې پيشوايان جوړکړې هم دغسې خلقو ته به جنت کښې اوچتې بالاخانې ورکړې شی د هغوی د الله تعالی په اطاعت باندې د ثابت قدم اوسيدو په وجه هلته به هغوی ته د ملائکو د طرفه (دهميشه) بقا (خوشخبری) اود سلامتيا دعا کولې شی هغوی به په دې کښې هميشه اوسيږی دا ډير ښه ځائې او ډير ښه مقام دې يعنی د دوی د اوسيدو ځائې دې او أُولٰئِكَ او ددې ما بعد د عِبَادُ الرَّحۡمٰنِ مبتدأ خبر دې، اې محمد ﷺ تاسو مکې والو ته اووايئ زما رب به ستاسو هيڅ پرواه اونه کړی که تاسو

هغه په مصيبتونو کښې نه راغوارئ چې هغه دې لره زائل (ختم) کړي يعنی څنګه به تاسو پرواه اوکړي تاسو خو رسول او قرآن دروغ ګڼړلی دی دير زر به عذاب ستاسو پورې جُخت اونغلی (يعنی) په دنيا کښې به په تاسو باندې د عذاب نازليدو نه علاوه په آخرت کښې تاسو باندې عذاب خامخا لازم شی، چنانچه په هغوی کښې د بدر په ورځ اويا (۷۰) کسان قتل کړې شو، د لولاجواب (محذوف دی) چې په دې باندې د لولاماقبل (يعنی مايَعبَؤُ بِكُم) دلالت کوی (تقدير د عبارت به داسې وی لَولادعاءُكُم مايَعبَؤُبكُم رَبّی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله: بُرُوجًا:** دا د برج جمع ده منزل ته وائی، د اووۀ سيارو دولس منزلونه دی، په اووۀ سيارو کښې د پنځو دوه دوه منزلونه دی دغسې پنځو سيارو لس منزله واخستل باقی سيارو يعنی نمر او سپوږمۍ يو يو منزل واخستلو دغه شان په اووه سيارو باندې دولس منزله تقسيم شو، زحل په اووم اسمان باندې دې او مشتري په شپږم اسمان باندې، او مريخ په پنځم اسمان باندې او شمس په څلورم اسمان باندې، او زهره په دريم اسمان باندې، او عطارد په دويم اسمان باندې، او قمر په رومبی اسمان باندې دې. مفسّر علام چې د اووۀ سياراتو کوم ترتيب بيان کړې دې د قديم علم هيئت اول معلّم ارسطو په نزد د عالم مرکز زمکه ده، سيارات اوثوابت بلکه ټول جهان ددې ګيرچاپيره تاويږی، اکثر قدماؤ دهغه تقليد کړې دې، بطليموس هم ددوی مبثر دې دا رائې تقريبًا يونيم زر کاله پورې منلې شوې راروانه وه.

د جديد علم هيئت بانی مشهور فلکی کوپرنيکس پولنډی م ۱۴۷۲، و ۱۵۴۳ء ګڼړلې کيږی، مشهوره ده چې دا رومبې سړې دې چې ده د نمر د مرکزيت نظريه پيش کړه.

**د کوپرنيکس د نظريې بنيادی اصول دوه دی:**

**اول:** د کواکب عالم د روزانه ګردش اصلی وجه د خپل محور نه ګيرچاپيره د زمکې روزانه ګردش کول دی.

**دوم:** ټول سيارې د نمر نه ګيرچاپيره تاويږی، زمکه هم دهغې نه يوه سياره ده، په نظام پرنيکی کښې د سيارو ترتيب د مرکز (نمر) نه شروع کيږی چې داسې دې:

① عطارد ② زهره ③ ارض ④ مريخ ⑤ مشتری ⑥ زحل ⑦ يورينس ⑧ نيپچون ⑨ پلوټو (بحواله فلکيات جديده، ص۲۶)

**قوله: وَجَعَلَ فِيهَا:** ای فی السَّماء، د سماء نه اصطلاحی سماء مراد نه دې بلکه فوق (بره طرف) مراد دې، (کل ما هو فوق رأسك فهو السّماء) سيارات په فضاء کښې رازورند دی په اسمان کښې پيوست نه دی، د اووه سياراتو چې په اووه اسمانونو کښې کيدل ښودلی شوی

دي دا ددوی د دوری حرکت منزلونه دی هم دې ته بروج وئیلې شی، مثلا د قمر باره کښې وئیلې شی چې په رومبی اسمان کښې دې او عطارد په دویم اسمان کښې او زهره په دریم اسمان کښې او نمر په څلورم اسمان کښې علی هذا القیاس. په جَعَلَ فِیۡهَا کښې د فیها ضمیر که بروج طرف ته اوګرځولې شی نو خبره بالکل واضحه کیږی لکه چې د محشی هم دا رائې ده، که د سماء نه سماء اصطلاحی حقیقی مراد واخستلې شی نو ډیر اعتراضونه پیدا کیدلې شی، بیا ئې ددې نه پس قمرًا په سُرُجًا باندې عطف کړو، دا به د عطف الشئ علی نفسه د قبیل نه وئیلې شی اودا درست نه دې. په وخَصَّ القمر..الخ سره ددې اعتراض جواب دې د عربو په نزد چونکه د قمر یو اهمیت او فضیلت په دې وجه دې چه دهغوی په نزد د کال حساب په قمری میاشتو سره کیږی او ددې نه علاوه د بعضې عبادتونو دارومدار هم په قمری میاشتو باندې دې، په دې وجه د تخصیص بعد التعمیم د قبیل نه ئې د قمر خاص طور باندې ذکرکړې دې لکه څنګه چې په حافظوا علی الصلوات والصّلوٰة الوسطی کښې دی.

**قوله:** وَهُوَ الَّذِیۡ جَعَلَ الَّیۡلَ وَالنَّهَارَ خِلۡفَةً: خِلۡفَةً مصدر دې، د بیان نوع دپاره لکه چې جِلۡسَةً یعنی په خاص نوعیت سره یوبل پسې راتلل په داسې طریقه چه د یوبل قائم مقام شی. خلفةً نه خو د جَعَلَ مفعول ثانی کیدې شی که جَعَلَ په معنی د صَیَّرَ واخستلې شی، اونه د جَعَلَ دمفعول نه حال واقع کیدې شی که جَعَلَ په معنی د خَلَقَ واخستلې شی، حالانکه د خِلۡفة مفعول یا حال کیدل ضروری دی ګنی نو معنی به درست نه وی. لهذا د خلفة نه مخکې به مضاف محذوف منل ضروری وی ای ذوخلفة په دې صورت کښې به مصدر په معنی د اسم فاعل شی، خِلفة به په معنی د خلیفة سره شی نو معنی به صحیح شی، یو جواب دا هم ورکړې شوې دې چې په قاموس کښې دی چه خلفة په معنی د مختلفة دې په دې صورت کښې به د مضاف محذوف منلو ضرورت نه وی او معنی به ئې داشی چې جعلهما مختلفین. اوس پاتې شو دا سوال چې خلفة هرکله د مختلفین تثنیه په معنی کښې دې نو خلفة واحد ولې راوړلې شوې دې؟ نو ددې جواب به دا وی چه خلفة چونکه د مصدر هم وزن دې اوپه مصدر کښې واحد تثنیه جمع ټول برابر وی په دې وجه خلفة واحد راوړلې شوې دې، هم دې جواب طرف ته مفسّر علام په یخلف کلّ منهما الآخر سره اشاره کړې ده.

**قوله:** مَا فَاتَهٗ: د یَذَّکَّرَ مفعول محذوف دې کوم چه مفسر رحمه الله ظاهر کړې دې.

**قوله:** اَوۡ اَرَادَ شُکُوۡرًا: په دې کښې أو د تقسیم او د تنویع دپاره دې د تخییر دپاره نه دې یعنی مانعة الخلو مراد دې چې په دې کښې دواړه جمع کیدې هم شی. شکورًا مصدر دې په

معنی شکرًا.
قوله: وَعِبَادُ الرَّحْمٰنِ: دا جمله مستانفه ده دمخلص او دیندارہ بندگانو اوصاف بیانولو دپاره راورلې شوې ده. عباد الرحمٰن مبتدأ موصوف دې او موصولات ثمانیه چه په هغې کښې رومبې الذین یمشون دې او آخری والذین یقولون دې، دا ټول موصولات دخپلو صلو سره د مبتدأ موصوف دپاره صفت دې، او اولئك یجزون ..الخ د مبتدأ خبردې، د مبتدأ اوخبر په مینځ کښې درې آیتونه جملې معترضه دی. ومن یفعل ذلك یلق اثامًا نه مقامًا پورې هَوْنًا، دا د هَانَ مصدر دې نرمی کول، په سکون او وقار سره تلل.
قوله: سُجَّدًا: د یبیتون د ضمیر نه حال دې اود لربهم سجدًا متعلق دې، سُجّدًا په قیامًا باندې د فواصل د رعایت په وجه مقدم کړې شوې دې.
قوله: وَالَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا اصْرِفْ عَنَّا (الآية): یعنی خالق او مخلوق سره د ښه معامله کولو باوجود دالله تعالی د عذاب نه ویرېږی، په خپلو اعمالو باندې اعتماد او بهروسه کولو سره بې ویرې نه اوسیږی او داسې دعا کوی چې ربنا اصرف عنا.(الآية)
قوله: إِنَّ عَذَابَهَا كَانَ غَرَامًا: او ساءت مستقرًا ومقامًا دا دواړه د ربنا اصرف عنا.(الآية) علت دی
قوله: سَاءَت: بئست، د ساءت تفسیر په بئست سره د کولو مقصد دې خبرې طرف ته اشاره ده چه ساءت دافعال ذم نه دې، ددې فاعل په دې کښې ضمیر مستتر مبهم دې او مستقرًا ددې تمیز دې چې دا د ضمیر مبهم تفسیرکوی او مخصوص بالذم محذوف دې اوهغه هی دې کوم چې شارح ظاهر کړې دې، بعضې حضراتو ساءت په معنی د أحزنت اخستې دې. دغه وخت به دا د افعال متصرفه نه وی اومفعول ته به نصب ورکوی کوم چې دلته محذوف دې اوهغه أصحابها یا داخلیها دې او تقدیر د عبارت به داسې وی چې إنها (ای جهنم) أحزنت أصحابها وداخلیها،، او مستقرًا تمیز یا حال واقع کیدې شی، اول قول ته ترجیح ورکولو دپاره مفسّر علام د ساءت تفسیر په بئست سره اوکړو چې اشاره اوشی چه ساءت د أحزنت په معنی نه دې، د مفسّر علام په نزد مستقر او مقام دواړه یو څیز دې، بعضې مفسّرینو په دواړو کښې فرق کړې دې، مستقر د عصاة المؤمنین دپاره دې یعنی دائمی نه دې او مقامًا دکافرانو دپاره دې چې دائمی دې.
قوله: يَقْتُرُوا: د یا په فتحې او په کسرې د تا سره ای یقتِروا،او په ضمې د یا اوپه کسرې د تاء سره ای یُقتِروا،اوپه فتحې د یا اوپه ضمې د تا سره د کوفیینو په نزد ای یَقتُروا یقال قتّر علی عیاله ای ضَیَّق علیهم فی النفقة. (بابه ضرب ونصر)
قوله: وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلٰهًا آخَرَ: د اطاعت د بیان نه پس ئې اجتناب عن المعصیة بیان

او فرمائیلو يُضْعَفْ او يَخْلُدْ دواړه د يَلْقَ فعل نه بدل اشتمال واقع کیدو په وجه مجزوم دی، اود جمله مستانفه کیدو په وجه دې لره مرفوع هم وئیلې شوې دې.

**قوله:** إِلَّا مَنْ تَابَ: د يَلْقَ د ضمير مستتر نه مستثنى متصل د اى إلا من تاب فلا يلق آثاما، بعضې حضراتو مستثنى متصل هم ګرځولې دې، خوابوحیان وئیلی دی چه مستثنى متصل صحيح نه د، ځکه چه په مستثنى منه باندې مضاعف حکم لګولې شوې دې نو په دې صورت کښې به تقدير داسې وی: إلا من تاب وآمن وعمل عملا صالحا فلا يضاعف له العذاب، اود عذاب مضاعف د انتفاء نه د عذاب غير مضاعف انتفاء نه لازميږی لهذا مستثنى منقطع اولی د او إلا په معنی د لكن د. (فتح القدير)

**قوله:** مَتَابًا: د يخلد د ضمير نه حال دې بعضې حضراتو د ومن تاب وآمن وعمل صالحا فإنه يتوب إلى الله متابا، د شرط اود جزاء د اتحاد شبه کړې د کوم چه جائزنه دې ځکه چې من تاب فإنه يتوب نه شی وئيلې کيدې؟ بعضې حضراتو ددې دا جواب ورکړې دې چه د شرط نه ذاتی توبه مراد د او جزاء د عمل سره مؤكد توبه مراد د، په دې وجه ئې جزاء په مصدر متابا سره مؤكد کړې د او د آيت معنی ئې دا ښودلې د چې من أراد التوبة وعزم عليها فليتب إلى الله خبر په معنی د امر دې.(فتح القدير، شوكانى)

**قوله:** غير من ذكر: سره اشاره د چه عطف د مغايرت دپاره ذې يعنی په ړومبي آيت کښې د من تاب نه مراد کافردې اوپه دويم ايت کښې مؤمن دې، او بعضې حضراتو د تخصيص بعد التميم د قبيل نه ګرځولې دې.

**قوله:** لَا يَشْهَدُونَ الزُّورَ: که لا يشهدون د لا يحضرون په معنی کښې وی لکه څنګه چې مفسر علام په دې معنی اخستې دې نو زور به مفعول به وی اوکه يشهدون د شهادت په معنی وی نو زور به بنزع الخافض منصوب وی، اى لا يشهدون بالزور.

**قوله:** قُرَّةَ أَعْيُنٍ: قرة العين سرورها، د قرة العين نه مراد د اهل وعيال نيکی او فرمانبرداری ليدلو سره د خوشحالئ اومسرت حاصليدل دی، هم دې لره ئې د سترګو يخوالی سره تعبير کړې دې.

**قوله:** وَاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِينَ إِمَامًا: امام مفرد اوجمع تولو دپاره وئيلې شی په دې وجه د إجعلنا جمع متكلم ضمير دپاره إماما مفرد راوړل صحيح دی.

**قوله:** أُولَٰئِكَ يُجْزَوْنَ: د أولئك سره هغه عباد الرحمن طرف ته اشاره د کوم چه د موصولات ثمانيه لاندې راتلونکو صفاتو باندې متصف وی، الغرفة اسم جنس دې ددې نه مراد غرفات دی

قوله: أُولَٰئِكَ يُجْزَوْنَ: او ددې مابعد د عباد الرحمن مبتدأ خبر دې.

قوله: لَوْلَا دُعَاؤُكُمْ: د لولا جواب محذوف دې او ماقبل د لولا په محذوف جواب باندې دلالت کوي أي لولا دعاؤكم ما يعبؤبكم.

## [٢٦] سورة الشعراء

سورة الشعراء مكية الا والشعراء، الى آخرها فمدني وهي مائتان وسبع وعشرون آية.

سورة شعراء مکی دې خو د الشعراء نه آخره پورې مدنی دې، او دا دوه سوه اوویشت آیاتونه دی.

### [آیاتونه: ١-٩]

بسم الله الرحمن الرحيم (طسم) الله أعلم بمراد بذلك (تِلْكَ) أي هذه الآيات (آيَاتُ الْكِتَابِ) القرآن والإضافة بمعنى من (الْمُبِينِ) المظهر الحق من الباطل (لَعَلَّكَ) يا محمد (بَاخِعٌ نَّفْسَكَ) قاتلها غمًا من أجل (أَلَّا يَكُونُوا) أي أهل مكة (مُؤْمِنِينَ) ولعل هنا للإشفاق أي أشفق عليها بتخفيف هذا الغم (إِن نَّشَأْ نُنَزِّلْ عَلَيْهِم مِّنَ السَّمَاءِ آيَةً فَظَلَّتْ) بمعنى المضارع أي تظل أي تدوم (أَعْنَاقُهُمْ لَهَا خَاضِعِينَ) فيؤمنون ولما وصفت الأعناق بالخضوع الذي هو لأربابها جمعت الصفة منه جمع العقلاء (وَمَا يَأْتِيهِم مِّن ذِكْرٍ) قرآن (مِّنَ الرَّحْمَٰنِ مُحْدَثٍ) صفة كاشفة (إِلَّا كَانُوا عَنْهُ مُعْرِضِينَ) (فَقَدْ كَذَّبُوا) به (فَسَيَأْتِيهِمْ أَنبَاءُ) عواقب (مَا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ) (أَوَلَمْ يَرَوْا) ينظروا (إِلَى الْأَرْضِ كَمْ أَنبَتْنَا فِيهَا) أي كثيرًا (مِن كُلِّ زَوْجٍ كَرِيمٍ) نوع حسن (إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً) دلالة على كمال قدرته تعالى (وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ) في علم الله وكان قال سيبويه زائدة (وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ) ذو العزة ينتقم من الكافرين (الرَّحِيمُ) يرحم المؤمنين

ترجمه: شروع کوم د الله په نوم چې عام مهربان او ډیر رحم کونکې دې. طسم ددې په مراد الله ښه پوهیږي دا یعنی آیاتونه د کتاب مبین یعنی د قرآن آیاتونه دی چې حق لره د باطل نه جدا کونکی دی او په آیات الکتاب کښې اضافت په معنی د مِن دې شاید اې محمد تاسو خو ددې غم په وجه چې مکې والا ایمان نه راوړی خپل ځان مرکړی او لعلّ دلته د اِشفاق په معنی دې یعنی په دې غم کښې تخفیف کولو سره په خپل ځان باندې رحم اوکړئ. که چرې مونږ غوښتلې نو په دوی باندې به مو د اسمان نه څه داسې نښه رالیږلې وې چه دغې مخکې به ددوی ستونه ټیټ شی ظلّت په معنی دمضارع دې اې تدوم یا دوی ایمان راوړی خو د (وصف) خضوع نسبت اعناق طرف ته اوکړې شو چې دا (په حقیقت کښې) د ارباب اعناق وصف دې، نو وصف خضوع د ذوی العقول دجمع په طور راوړلې شو او هغوی ته د رحمٰن د طرف نه څه داسې تازه نصیحت رانغلو چې دغې نه دوی مخ نه اړوی، مُحدث د ذکرصفت کاشفه دې نو دغې خلقو دا نصیحت دروغ اوګڼرلو نو ډیر زر به هغوی ته ددې خبرې انجام راشی په کوم پورې

چې به دوی تو قې کولې آیا دا خلق زمکې ته نه گوری چه مونږ په دې کښې څومره په کثرت سره هر قسمه ښه گلونه بوټي راټوکولي دي؟ بې شکه په دې کښې د الله تعالی د قدرت د کمال نښې دي او په دوی کښې اکثر خلق مؤمنان نه دي د الله تعالی په علم کښې او سیبویه وئیلي دي چې کان زائد دې بې شکه ستا رب غالب دې یعنی داسې غلبې والا دې چې د کافرانو نه به انتقام واخلي رحیم دې یعنی مومنانو باندې رحم کونکې دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** طٰسٓمٓ: د عبدالله بن مسعود ﷺ په قرأت کښې ط، س، م، جدا جدا دي.

**قوله:** بَاخِعٌ: اسم فاعل (ف) دغم یا د غصې په وجه خپل ځان په هلاکت کښې اچوونکې، بَخعًا: حرام مغز پورې کټ کول، بَخْعٌ: حرام مغز، لَعَلَّكَ کښې لَعَلَّ حرف ترجّی دې خو چونکه دلته نه د ترجی معنی اخستل درست دي اونه مراد، لهذا لَعَلَّ ئې د اشفاق په معنې کښې واخستلو چې ددې معنی ویره د، او الله تعالی چونکه د ویرې نه پاک دې په دې وجه د مخاطب ویره مراد د، ترجی د امر یعنی لَشفق أی ارحم په معنی دې څکه چه دلته د ویرې هیڅ خبره نشته، إشفاق (إفعال) چې کله متعدی شی په مِن سره نود ویرې په معنی وی او کله چې متعدی شی په علٰی سره نو ددې معنی رحمت او شفقت وی.

**قوله:** نُنَزِّل: إن حرف شرط دې او نشأ فعل شرط دې او نُنَزِّل جواب شرط دې.

**قوله:** فَظَلَّت: د فا په ذریعه په جواب شرط ننزل باندې د عطف په وجه مجزوم دې، حالانکه په ذریعه د فا د ماضی (یعنی د ظلّت) ترتب په مضارع یعنی په ننزّل باندې درست نه دې په دې وجه ماضی د مضارع په تاویل کښې کړې شو چې عطف صحیح شی.

**قوله:** وَلَمَّا وَصَفَتْ الْأَعْنَاقَ الخ: د یوسوال مقدر جواب دې، سوال دادې چې أعناق د غیر ذوی العقول جمع د چې د واحد مؤنث په حکم کښې دې لهذا ددې صفت خاضعة راتلل پکاردی خاضعین راتلل نه دی پکار کوم چې دجمع مذکر صفت دې؟ د جواب خلاصه داد چې خضوع د ذوی العقول صفت دې کله چې ددې نسبت غیر ذوی العقول طرف ته اوکړې شو نو غیر ذوی العقول ته د ذوی العقول درجه ورکولو سره ددې صفت د جمع مذکر صیغه یعنی واؤ نون سره راوړل درست شو لکه د الله تعالی قول رأیتهم لی ساجدین، یو جواب ئې داهم ورکړې دې چې ظلت أعناقهم په معنی د ظلت أصحابُ أعناقهم دې یعنی مضاف محذوف دې بیا مضاف لره حذف کولو سره ئې خبر ددې قائم مقام کړو.

**قوله:** مِن ذِكرٍ: کښې مِنْ زائد دې او په مِن الرحمٰن کښې مِنْ ابتدائیه دې.

**قوله:** مُحدَثٍ: دا د ذکر صفت کاشفه دې څکه چې ما یأتیهم من ذکر نه چې کومه معنی حدثی

بوهه کښې راغلی هم دغې معنی ته محدث سره تاکید کړې دې

قوله إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً: لَآيَةً د إِنَّ اسم مؤخر دې او په دې کښې لام زائد دې، دا آيت په دې سورت کښې اته (۸) ځله ذکرشوې دې

قوله وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ: ددې تفسير په فِي علم الله سره کولو کښې نې د يوې شبهې جواب ورکړې دې، شبه داد چې د آيت مقصد د کافرانو په آئند کښې د ايمان نه راوړلو خبرورکول دی، نو کان ماضی سره تعبير کول څنګه صحيح کيږي؟ ددې يو جواب نې فِي علم الله سره ورکړې دې چه د الله تعالی په علم ازلی کښې دا خبره ثابته شوې د چه دوی به ايمان نه راوړی هم دا نې ماضی سره تعبير کړې دې دا جواب کان لره اصلی منلوسره دې، دويم جواب نې قال سيبويه سره ورکړې دې ددې مطلب دادې چې کان زائد دې لهذا اوس د آيت مطلب داشو چه دوی ايمان راوړونکی نه دی.

تنبيه: وكان قال سيبويه زائدة: کښې إيهام دې صحيح تعبير داسې پکار دی قال سيبويه كان زائدة.

[اياتونه: ۱۰ - ۳۲]

(وَ) اذكر يا محمد لقومك (إِذْ نَادَىٰ رَبُّكَ مُوسَىٰ) لَيْلَةَ رَأَى النَّار وَالشَّجَرَة (أَنِ) أَيْ بِأَنْ (ائْتِ الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ) رسولا (قَوْمَ فِرْعَوْنَ) مَعَهُ ظَلَمُوا أَنْفُسهمْ بِالْكُفْرِ بِاللّٰهِ وَبَنِي إِسْرَائِيل بِاسْتِعْبَادِهِمْ (أَلَا) الْهَمْزَة لِلِاسْتِفْهَامِ الْإِنْكَارِيّ (يَتَّقُونَ) الله بطاعته فيوحدونه (قَالَ) موسى (رَبِّ إِنِّي أَخَافُ أَن يُكَذِّبُونِ) (وَيَضِيقُ صَدْرِي) مِنْ تَكْذِيبهمْ لِي (وَلَا يَنطَلِقُ لِسَانِي) بِأَدَاءِ الرِّسَالَة لِلْعُقْدَةِ الَّتِي فِيهِ (فَأَرْسِلْ إِلَىٰ) أَخِي (هَارُونَ) معي (وَلَهُمْ عَلَيَّ ذَنبٌ) بِقَتْلِ الْقِبْطِيّ مِنْهُمْ (فَأَخَافُ أَن يَقْتُلُونِ) به (قَالَ) تَعَالَى (كَلَّا) لَا يَقْتُلُونَك (فَاذْهَبَا) أَيْ أَنْتَ وَأَخُوك فَفِيهِ تَغْلِيب الْحَاضِر عَلَى الْغَائِب (بِآيَاتِنَا إِنَّا مَعَكُم مُّسْتَمِعُونَ) مَا تَقُولُونَ وَمَا يُقَال لَكُمْ أُجْرِيَا مَجْرَى الْجَمَاعَة (فَأْتِيَا فِرْعَوْنَ فَقُولَا إِنَّا) كُلًّا مِنَّا (رَسُولُ رَبِّ الْعَالَمِينَ) إِلَيْك (أَنْ) أَيْ بِأَنْ (أَرْسِلْ مَعَنَا) إِلَى الشَّام (بَنِي إِسْرَائِيلَ) فَأَتَيَاهُ فَقَالَا لَهُ مَا ذُكِرَ (قَالَ) فِرْعَوْن لِمُوسَى (أَلَمْ نُرَبِّكَ فِينَا) فِي مَنَازِلنَا (وَلِيدًا) صَغِيرًا قَرِيبًا مِنَ الْوِلَادَة بَعْد فِطَامه (وَلَبِثْتَ فِينَا مِنْ عُمُرِكَ سِنِينَ) ثَلَاثِينَ سَنَة يَلْبَس مِنْ مَلَابِس فِرْعَوْن وَيَرْكَب مِنْ مَرَاكِبه وَكَانَ يُسَمَّى ابنه (وَفَعَلْتَ فَعْلَتَكَ الَّتِي فَعَلْتَ) هِيَ قَتْله الْقِبْطِيّ (وَأَنتَ مِنَ الْكَافِرِينَ) الْجَاحِدِينَ لِنِعْمَتِي عَلَيْك بِالتَّرْبِيَةِ وعدم الاستعباد (قَالَ) مُوسَى (فَعَلْتُهَا إِذًا) أَيْ حِينَئِذٍ (وَأَنَا مِنَ الضَّالِّينَ) عَمَّا آتَانِي اللّٰه بَعْدهَا مِنَ العلم والرسالة (فَفَرَرْتُ مِنكُمْ لَمَّا خِفْتُكُمْ فَوَهَبَ لِي رَبِّي حُكْمًا) علما (وجعلني من المرسلين) (وَتِلْكَ نِعْمَةٌ تَمُنُّهَا عَلَيَّ) أَصْله تَمُنّ بِهَا عَلَيَّ (أَنْ عَبَّدتَّ بَنِي إِسْرَائِيلَ) بَيَان لِتِلْكَ أَيْ اتَّخَذْتهمْ عَبِيدًا وَلَمْ تَسْتَعْبِدنِي لَا نِعْمَة لَك بِذَلِكَ لِظُلْمِك بِاسْتِعْبَادِهِمْ وَقَدَّرَ بَعْضهمْ أَوَّل الْكَلَام هَمْزَة اسْتِفْهَام لِلْإِنْكَارِ (قَالَ فِرْعَوْنُ) لِمُوسَى (وَمَا رَبُّ الْعَالَمِينَ) الَّذِي قُلْت إِنَّك رَسُوله أَيْ أَيّ شَيْء هُوَ وَلَمَّا لَمْ

يَكُنْ سَبِيل لِلْخَلْقِ إِلَى مَعْرِفَة حَقِيقَته تَعَالَى وَإِنَّمَا يَعْرِفُونَهُ بِصِفَاتِهِ أَجَابَهُ مُوسَى عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام بِبَعْضِهَا (قَالَ رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا) أَيْ خَالِق ذَلِكَ (إِنْ كُنْتُمْ مُوقِنِينَ) بِأَنَّهُ تَعَالَى خَالِقه فَآمِنُوا بِهِ وَحْده (قَالَ) فِرْعَوْن (لِمَنْ حَوْلَهُ) مِنْ أَشْرَاف قَوْمه (أَلَا تَسْتَمِعُونَ) جَوَابه الَّذِي لَمْ يُطَابِق السُّؤَال (قَالَ) مُوسَى (رَبُّكُمْ وَرَبُّ آبَائِكُمُ الْأَوَّلِينَ) وَهَذَا وَإِنْ كَانَ دَاخِلًا فِيمَا قَبْله يَغِيظ فِرْعَوْن وَلِذَلِكَ (قَالَ إِنَّ رَسُولَكُمُ الَّذِي أُرْسِلَ إِلَيْكُمْ لَمَجْنُونٌ) (قَالَ) مُوسَى (رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَمَا بَيْنَهُمَا إِنْ كُنْتُمْ تَعْقِلُونَ) أَنَّهُ كَذَلِكَ فَآمِنُوا بِهِ وَحْده (قَالَ) فِرْعَوْن لِمُوسَى (لَئِنِ اتَّخَذْتَ إِلَهًا غَيْرِي لَأَجْعَلَنَّكَ مِنَ الْمَسْجُونِينَ) كَانَ سِجْنه شَدِيدًا يَحْبِس الشَّخْص فِي مَكَان تَحْت الْأَرْض وَحْده لَا يُبْصِر وَلَا يَسْمَع فِيهِ أَحَدًا (قَالَ) لَهُ مُوسَى (أَوَلَوْ) أَيْ أَتَفْعَلُ ذَلِكَ وَلَوْ (جِئْتُكَ بِشَيْءٍ مُبِينٍ) بُرْهَان بَيِّن عَلَى رِسَالَتِي (قَالَ) فِرْعَوْن لَهُ (فَأْتِ بِهِ إِنْ كُنْتَ مِنَ الصَّادِقِينَ) فِيهِ (فَأَلْقَى عَصَاهُ فَإِذَا هِيَ ثُعْبَانٌ مُبِينٌ) حَيَّة عَظِيمَة (وَنَزَعَ يَدَهُ) أَخْرَجَهَا مِنْ جَيْبه (فَإِذَا هِيَ بَيْضَاءُ) ذَات شُعَاع (لِلنَّاظِرِينَ) خِلَاف مَا كَانَتْ عَلَيْهِ مِنَ الْأُدْمَة

**ترجمه:** او اې محمد ﷺ خپل قوم ته دغه وخت واقعه وریاد کړه چې کله ستا رب موسىٰ ﷺ ته حکم اوکړو په هغه شپه کله چې موسىٰ ﷺ اور او اُونه اولیدله چې ته ظالم قوم ته رسول جوړشوې لاړشه د فرعون قوم ته سره د فرعون هغوی الله تعالى سره کفر کړلو او بنی اسرائیل لره غلامان جوړولو سره په خپلو ځانونو ظلم کړې دې په اَلَا یَتَّقُون کښې همزه د استفهام انکاری دپاره د آیا هغوی د الله نه یریږي، چه دغه اطاعت اختیارولو سره دغه د توحید منونکی شی نو موسىٰ ﷺ عرض اوکړواې زما پروردګاره زه یریږم چه دا خلق به زما تکذیب اوکړی او هغوی چې زما تکذیب اوکړی نوپه دې سره به زما زړه تنګ شی او د رسالت اداکولو دپاره زما ژبه دغه تتوالی په وجه نه چلیږی کوم چې په دې کښې دې لهذا ما سره سره زما رور هارون ته هم جبرائیل ﷺ اولیږه او زما په ذمه دغې خلقو یو جرم هم دې دغوی نه زما د یو قبطی قتلولو په وجه لهذا زه یریږم چې ددې په بدله کښې به ما قتل کړی ارشاد اوشو هیڅ کله نه یعنی هغوی تا نه شی قتلولې نو تاسو دواړه زما آیتونه واخلئ لاړ شئ یعنی ته او ستا رور، په دې کښې غائب باندې حاضر ته غلبه د مونږ تاسو سره یو اوځه چه تاسو وایئ او څه چې به هغوی تاسو ته وائی مونږ هغې لره آورو دوه ئې د جماعت قائم مقام کړی دی نو اوس دواړه فرعون ته لاړ شئ او هغه ته اووایئ چې مونږ دواړه یعنی مونږ کښې هر یو د پروردګار عالم نه ستا په طرف رسول دې چې ته بنی اسرائیل مونږ سره شام په طرف اولیږه نو دوی دواړه حضرات فرعون ته راغلل او څه چې مخکښې ذکر شو هغه ته ئې اووئیل فرعون موسىٰ ﷺ ته اووئیل مونږ ستا په ماشوموالی کښې په خپلو کورونو کښې پرورش نه وو کړې؟ یعنی په ماشوموالی کښې پیدائش ته نزدې د پیو پریښودلو نه روستو او ته د خپل عمر دیر کلونه مونږ سره پاتې شوې ئې یعنی دیرش کاله (په دې مود کښې) به ئې د

فرعون کېرې اغوستلې، او هم دد په سورلو باندې به سوريدلو او دې (موسیٰ ﷺ) ته به ابن فرعون ونيلې کيدلو اوتا خپل هغه حرکت هم کړې ووکوم چې تا کړې وو اوهغه د قبطي قتلول وو او ته دير د ناشکرونه ئې يعنی په خپل خان باندې زما د تربيت او د غلام نه جوړولو انعام (احسان) ناشکری کونکو نه ئې موسیٰ ﷺ جواب ورکړو کوم وخت چې ما دا حرکت کړې وو زه هغه وخت (يعنی تاسره د قيام په وخت کښې) ددې خيز نه ناخبره ووم بيا روسته الله تعالی ماته (ددې علم) رانصيب کړو يعنی علم او رسالت (ئې راکړو) کله چې ماته ستا نه ويره شوه نو ستا دخوانه اوتختيدم، بيا ماته زما رب حکم يعنی علم راکړو او زه ئې په پيغمبرانو کښې شامل کړوم دا هغه نعمت دې چې ددې ته په ما باندې احسان زياتته کوې د (تمنّها) اصل تمنّ بِهاَ وو چې تا بنی اسرائيل غلامان جوړکړی دی دا د تلك النعمة بيان دې يعنی تا بنی اسرائيل غلامان جوړکړی دی او زه دې آزاد پريښودې يم دا ستا هيڅ احسان نه دې ددې ظلم په وجه چې دوی تا غلامان جوړکړی دی او بعضې حضراتو د کلام په شروع کښې همزه د استفهام انکاری مقدر منلې د فرعون د موسیٰ ﷺ نه تپوس اوکړو چې رب العالمين څه خيز دې؟ دکوم باره کښې چې ته وائې چې زه دغه رسول يم، يعنی دغه څه حقيقت دې؟ هرکله چه مخلوق دپاره د باری تعالی دحقيقت د پيژندلو هيڅ صورت نه وو، هغه لره خو صرف دغه د صفاتو په ذريعه سره پيژندلې کيدې شی، نو موسیٰ ﷺ د باری تعالی بعضې صفات بيان کړل او جواب ورکولو سره ئې اوفرمائيل هغه د اسمانونو او زمکې او ددې په مينځ کښې دټولو خيزونو رب يعنی خالق دې که تاسوته يقين وی چې الله تعالی ددې (کائنات) خالق دې نو په دغه وحد (لاشريک) باندې ايمان راوړئ، نو فرعون خپل گير چاپيره خلقو يعنی دخپل قوم سردارانوته ئې اووئيل آيا تاسو دد دا جواب چې دسوال مطابق نه دې نه آورئ؟ حضرت موسیٰ ﷺ اوفرمائيل چې هغه ستاسو او ستاسو د مخکينو پلار نيکه رب دې دا تعريف اگرچه په ما قبل (تعريف) کښې داخل دې (خودا تعريف) فرعون ته غصه راوستونکې دې اوهم په دې وجه (فرعون) په (غصه کښې) اووئيل بې شکه ستاسو رسول کوم چې تاسو ته رااليږلې شوې دې يقينًا پاگل دې موسیٰ ﷺ اوفرمائيل دمشرق او مغرب اوکوم څه چې ددې په مينځ کښې دې دغې (هم) رب دې که ستاسو په اسبابو باندې يقين وی چه هغه همدغسې دې نو په هغه وحدلاشريك باندې ايمان راوړئ، فرعون موسیٰ ﷺ ته اووئيل که ته زما نه علاوه بل معبود جوړ کړې نو څه تا به يقينًا په سولئ کړم، دغه جيل خانه ډيره سخته وه هغه به انسان په تاخانه کښې يواځې قيد کولو چې نه چالره اووينی اونه دچا (خبره) واوري، موسیٰ ﷺ فرعون ته اووئيل که زه يو صريح دليل پيش کړم نو بيا به هم ته دغسې کوې يعنی که په خپل رسالت باندې يو واضحه دليل پيش کړم (بيا به هم)؟ فرعون موسیٰ ﷺ ته اووئيل که ته د رسالت په دعوی کښې رشتونې ئې نو دليل پيش کړه نو

هم دغه وخت (موسیٰ ﷺ) خپله همسا اوغورځوله نو هغه ناځاپه واضحه اژدا جوړه شوه او خپل لاس ئې راویستلو یعنی لاس ئې دخپل ګریوان نه راویستلو نوهغه هم دغه وخت کتونکو ته سپین ځلید ونکې په نظر راتلو یعنی دمخکینی غنم رنګې نه خلاف په نظر راتلو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** أَنْ أي بأَنْ: په دې تفسیر کښې دې طرف ته اشاره د چه أن مصدریه دې او ددې نه مخکښې با حرف جر مقدّر دې اوبعضې حضراتو أن ته تفسیریه هم وئیلی دی ځکه چه نادٰی د قَال په معنی کښې دې.

**قوله:** رَسُولاً: دا د ائتِ د ضمیرنه حال دې په قوم د فرعون کښې فرعون په طریق اولی شامل دې، او قوم فرعون ته ورلیږل فرعون ته په طریق اولی لیږل دی ځکه چه اصل د سرکشئ اود فساد جرړه خو فرعون وو.

**قوله:** وبني إسرائيل: ددې عطف په أنفسهم باندې دې، د استعباد مطلب دې دغلامانو په شان معامله کول یعنی دغوی نه د ذلت سخت کارونه اخستل، په حقیقت کښې غلام جوړول نه دی.

**قوله:** ألا الهمزة للاستفهام الإنكاري، صحیح داد چې همزه د تعجب دپاره د د انکار دپاره نه د ،لکه څنګه چه مفسّرعلام صراحت کړې دې ځکه چه لاتتّقون د حرف نفی په وجه منفی دې اوکله چه په دې باندې همزه انکاری داخله شی نو نفي النفي إثباتٌ قاعدې سره به اثبات شی او دا فاسد د، ځکه چه په دې صورت کښې به معنی دا شی چې: اې موسیٰ ته د فرعون قوم ته لاړشه ځکه چه هغه د الله تعالی نه ویریږی،، اودامعنی سراسر د واقعې خلاف ده.

**قوله:** قَالَ موسىٰ إنّي أخاف (الآية): موسیٰ ﷺ د الله تعالی دحکم په جواب کښې درې عذرونه پیش کړل ① ماته د تکذیب ویره د ② تکذیب سره به زما زړه کښې تنګی راشی ③ زما په ژبه کښې روانګی نشته. دا درې واړه عذرونه ئې د حکم منلو نه د منع کیدو دپاره نه دی فرمائیلی بلکه د رسالت د دروند بوج نه د عاجزئ اظهار او د حقیقت بیان او د مدد د طلب په طور وو.

**قوله:** وَيَضِيقُ صَدْرِي: دا خو یا د جمله مستانفه کیدو په وجه مرفوع دې یعنی ددې ماقبل سره تعلق نشته دې بلکه د الله تعالی په مخکښې دخپل حالت بیان دې، یا په إنّي أخاف کښې د إنّ خبر أخاف باندې دعطف کیدو په وجه مرفوع دې.

**قوله:** أجرنا مجرى الجماعة: دا ددې سوال جواب دې چه حضرت موسیٰ اوهارون دوؤ

ووددې دپاره د تثنيه صيغه راوړل پکاروو اى إِنَّا معكما حالانکه معکم د جمعې صيغه راوړلې شوې د؟ جواب دادې چه تثنيه تعظيمًا د جماعت قائم مقام کړې شوې دې.

**قوله:** اى كُلَّا مِنَّا: دې عبارت سره هم د يو سوال جواب مقصود دې. سوال دادې چه د إِنَّا په اسم اوخبر کښې مطابقت نشته ځکه چه رسول خبردې او دا مفرد دې او مخبرعنه د إِنَّا ضمير دې اودا جمع د؟ د جواب خلاصه داد چې إِنَّا د كُلًّا مِّنَّا په معنى دې چې دمفرد په حکم کښې دې لهذا د إِنّ په اسم اوخبر کښې مطابقت موجود دې.

**قوله:** فَأتياه: ددې عبارت د مقدر منلو مقصد دا ښودل دی چې د قالَ فرعون ترتب په نعل محذوف باندې دې.

**قوله:** قَرِيبًا مِنَ الْوِلَادَةِ بَعْدَ فِطَامه: ددې عبارت د اضافې مقصد هم د يوسوال جواب دې، سوال دادې چې وَلِيدًا نومولود (نوى پيدا شوى) ماشوم ته وائى، حضرت موسىٰ عليه السلام دخپل پئ رودلو (ماشوموالى) په زمانه کښې خو دخپلې مور سره وو، نوبيا د فرعون د تربيت څه مطلب دې؟ د جواب خلاصه داد چه د ماشوم د پيو پرېښودلو نه فوراً پس زمانه مراد د، خو زياته غوره داد چه آيت په خپل ظاهر باندې پرېخودلې شى د تاويل کولو ضرورت نشته، ځکه چه حضرت موسىٰ عليه السلام د پيو رودلو په زمانه کښې اګرچه خپلې مور سره وو خو نګرانى او نفقه د فرعون وه، لهذا د فرعون نُرَبِّكَ فِينَا وَلِيدًا وئيل صحيح دى.

**قوله:** مِنْ عُمُرِكَ سِنِينَ: مِنْ تبعيضيه دې مِنْ عُمُرِكَ د سِنِينَ صفت دې چې د مقدم کيدو په وجه حال کيدو سره محلا منصوب دې، ځکه چه د نکره صفت چې کله مقدم کړې شى نودا حال جوړيږى.

**قوله:** فَفَرَرْتُ مِنْكُمْ لَمَّا خِفْتُكُمْ: يعنى کله چې ماته ستا د طرفه د تکليف رارسولو ويره پيدا شوه نو زه اوتختيدم، او حضرت موسىٰ عليه السلام ته د تکليف رسولو علم هغه وخت اوشو چې کله هغوى ته دا اووئيلې شو إِنَّ الملأ يأتمرون بك ليقتلوك (سورة قصص آيت ۲۰) په مِنكُم کښې ضمير دجمعې راوړلو وجه ددې نه معلوميږى ګنى نو د فَفَرَرْتُ منكَ موقع وه ځکه چې خبرې د فرعون سره شروع دى دټولو سره نه.

**قوله:** تِلْكَ نِعْمَةٌ تَمُنُّهَا عَلَيَّ (الآية): د تلك مشارٌ اليه تربيت دې کوم چه د أَلَمْ نُرَبِّكَ نه مفهوم دې، تِلْكَ مبتدأ موصوف تَمُنُّهَا جمله صفت شو، موصوف سره د صفت نه خبر د مبتدأ شو، مبتدأ سره د خبرنه مُبَيَّن أَن عَبَّدتَّ عطف بيان، تَمُنُّهَا په اصل کښې تَمُنُّ بها ووحرف جر حذف کولوسره ضمير دفعل سره متصل کړې شو، ګويا چې دا د حذف او اتصال دباب نه دې، مطلب دادې چې ستا مالره غلام نه جوړول په ما باندې څه احسان نه دې ځکه چه زما د قوم نور افراد تا غلامان جوړ کړى دى اودا ظلم دې، لهذا ته زيات نه زيات دا

ونيلې شې چه ما تا لره غلام جوړلو سره په تا باندې ظلم نه دې کړې، اوظلم نه کول داځه د احسان خبره نه د ، بلکه د ظلم نه په امن کښې اوسيدل خو د هر کس بنيادي حق دې اوبعضې حضراتو د وَتِلْكَ نه مخکې همزه مقدر منلې د اواصل عبارت ئې داسې ښودلې دې، اَوَتِلْكَ آيا دې ته نعمت وئيلې شي دکوم چې ته په ما باندې احسان ضباتنه کوې چې زه دې آزاد پريښودم او زما ټول قوم دې غلام جوړکړې دې چې دغوی نه د ذلت نه ډک او سخت کارونه اخلې او د توهين نه ډک سلوک ورسره کوې؟

**قوله**: فَآمِنُوا بِهٖ: شارح دا عبارت مقدّر منلو سره اشاره کړې د چې د اِنْ كُنْتُمْ مُوْقِنِيْنَ جزاء محذوف د قَالَ فِرْعَوْنُ وَمَا رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ فرعون د رب العالمين باره کښې د مَا په ذريعه سوال اوکړو کوم چه د شیٔ د حقيقت معلومولو دپاره راځی په دې وجه د اَیٌّ په ذريعه سوال کول پکار وو کوم چه د صفاتو باره کښې د سوال کولو دپاره راځی خو فرعون د خپلې بې وقوفئ په وجه په مَاهُوَ سره سوال اوکړو ، حضرت موسیٰ عليه السلام دغه په بې وقوفئ باندې د تنبيه کولو دپاره په جواب کښې صفات بيان کړل، په دې کښې دې طرف ته اشاره د چې تا لره د مَا په ذريعه د رب العالمين د حقيقت سوال کولو په ځائې په اَیُّ شیٔ سره دغه د صفاتو باره کښې سوال کول پکار وو، ځکه چه د رب العالمين کُنهه اوحقيقت په دې دنيا کښې نه شی معلوميدلې.

**قوله**: وَمَا بَيْنَهُمَا: په دې کښې د هُمَا تثنيه نه سمٰوات او ارض مراد دی، حالانکه سمٰوات جمع د په دې وجه بَيْنَهُنَّ راوړل پکاروو؟ جواب دادې چې سمٰوات يو جنس دې اور ارض بل جنس دې لهذا د دواړو جنسونو دپاره د تثنيې صيغه راوړلې شوې د .

**قوله**: قَالَ فِرْعَوْنُ لِمَنْ حَوْلَهٗٓ اَلَا تَسْتَمِعُوْنَ: فرعون په خپل دې قول سره دخپل قوم مشرانو ته دا تأثر ورکولو کوشش اوکړو چه د پيغمبرئ دعوه کونکی کښې خو په سوال د پوهيدلو صلاحت هم نشته لهذا دد د نبوت دعوی صحيح نه د ، ما په مَاهُوَ سره د ربّ العالمين دحقيقت سوال اوکړو اودې په جواب کښې د حقيقت بيانولو په ځائې صفات بيانوی، خو موسیٰ عليه السلام د مَاهُوَ په جواب کښې صفات بيان کړل دې طرف ته ئې تعريض اوکړو چې کوم سړې د سوال په مطلب نه پوهيږی نودغه د ربوبيت په دعوی کښې څه صداقت کيدې شی؟

**قوله**: قَالَ رَبُّكُمْ وَرَبُّ اٰبَآئِكُمُ الْاَوَّلِيْنَ: دا دويم جواب اګرچې په رومبي جواب ربّ السمٰوات والأرض وما بينهما کښې داخل دې خوفرعون ته د غصې راوستلو دپاره ئې دويم جواب ورکړو چه هغه صرف د اسمانونو او زمکې اود ما بينهما خالق نه دې بلکه ستا او ستا د پلار نيکه هم خالق دې نو فرعون غضبناک شو او وې وئيل: ان رسولكم الذي أرسل إليكم

لمجنون،، مفسّرعلام هم دغه مطلب بیان کړي دي خوپه تفسیرکبیر کښې علامه فخرالدین رازی فرمائیلی دی چې د خالقیت سمٰوات والأرض په ذریعه د تعریف نه د عدول دا وجه وه چې کیدې شی چې فرعون دا ونیلې وې چې زمکه او اسمان واجب لذاته دی لهٰذا دا دخالق اومؤثر نه مستغنی دی، دا خبره د یو عاقل دپاره ممکنه نه د چه هغه دخان او دخپل پلار نیکونو باره کښې دا اووائی چې دا واجب لذاته دی ځکه چه مشاهد ددې خبرې ګواه د چې د عدم نه پس ددوی وجود شوې دې اوبیا به عدم شی اوپه کوم څیز باندې چې عدم راځی هغه حادث وی دغې دپاره د مؤثرکیدل ضروری دی، دویم تعریف د رومبی تعریف نه واضح دې.

**قوله: رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ:** موسیٰ علیه السلام فوراً دریم تعریف طرف ته عدول اوکړو چې داد دویم نه هم واضح دې د مشرق نه دنمر راختل ا د مغرب نه دنمر پریوتل مراد دی، درې ورځې مشرق او مغرب مختلف وی اودا طلوع او غروب د کرورونو کلونو نه د وینسته قدرې د تبدیلئ یا خلل نه بغیر بنه پوره په اطمینان سره رابنکاره کیږی، دا د یو مؤثر نه بغیر ممکن نه دی اوهغه مؤثر ربّ العالمین دې.

**قوله: اَلْأَدَمَةُ:** غنم رنګې.

**[ایاتونه: ۳٤ - ٥١]**

﴿قَالَ﴾ فِرْعَوْن ﴿لِلْمَلَاِ حَوْلَهٗۤ اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ عَلِيْمٌ﴾ فَائِق فِي عِلْم السحر ﴿يريد أن يخرجكم من أرضكم بسحره فماذا تأمرون﴾ ﴿قَالُوْۤا اَرْجِهْ وَاَخَاهُ﴾ آخر أمرهما ﴿وَابْعَثْ فِي الْمَدَآئِنِ حٰشِرِيْنَ﴾ جَامِعِين ﴿يَاْتُوْكَ بِكُلِّ سَحَّارٍ عَلِيْمٍ﴾ يَفْضُل مُوسَى فِي عِلْم السِّحْر ﴿فَجُمِعَ السَّحَرَةُ لِمِيْقَاتِ يَوْمٍ مَّعْلُوْمٍ﴾ وَهُوَ وَقْت الضُّحَى مِنْ يَوْم الزِّينَة ﴿وقيل للناس هل أنتم مجتمعون﴾ ﴿لعلنا نتبع السحرة إن كانوا هم الغالبين﴾ الِاسْتِفْهَام لِلْحَثِّ عَلَى الِاجْتِمَاع وَالتَّرَجِّي عَلَى تَقْدِير غَلَبَتهمْ لِيَسْتَمِرُّوا عَلَى دِينهمْ فَلَا يَتَّبِعُوا مُوسَى ﴿فلما جاء السحرة قالوا لفرعون أئن﴾ بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَتَسْهِيل الثَّانِيَة وَإِدْخَال أَلِف بَيْنهمَا عَلَى الوجهين ﴿لنا لأجرا إن كنا نحن الغالبين﴾ ﴿قال نعم وإنكم إذا﴾ اي حينئذ ﴿لمن المقربين﴾ ﴿قَالَ لَهُمْ مُّوْسٰى﴾ بَعْد مَا قَالُوا لَهُ ﴿إِمَّا أَنْ تُلْقِيَ وَإِمَّا أَنْ نَكُونَ نَحْنُ الْمُلْقِينَ﴾ ﴿اَلْقُوْا مَاۤ اَنْتُمْ مُّلْقُوْنَ﴾ فالأمر فيه للإذن بتقديم إلقائهم إلى إظهار الحق ﴿فألقوا حبالهم وعصيهم وقالوا بعزة فرعون إنا لنحن الغالبون﴾ ﴿فَاَلْقٰى مُوْسٰى عَصَاهُ فَاِذَا هِيَ تَلْقَفُ﴾ بِحَذْفِ إِحْدَى التَّاءَيْنِ مِنْ الْأَصْل تَبْتَلِع ﴿مَا يَاْفِكُوْنَ﴾ يَقْلِبُونَهُ بِتَمْوِيهِهِمْ فَيُخَيِّلُونَ حِبَالهمْ وَعِصِيّهمْ أَنَّهَا حَيَّات تَسْعَى ﴿فألقي السحرة ساجدين﴾ ﴿قالوا آمنا برب العالمين﴾ ﴿رَبِّ مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ﴾ لِعِلْمِهِمْ بِأَنَّ مَا شَاهَدُوهُ مِنْ الْعَصَا لَا يَتَأَتَّى بِالسِّحْرِ ﴿قال﴾ فرعون ﴿آأمنتم﴾ بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَإِبْدَال الثَّانِيَة أَلِفًا ﴿لَهٗ﴾ لِمُوسَى ﴿قَبْلَ اَنْ اٰذَنَ﴾ انا ﴿لَكُمْ اِنَّهٗ لَكَبِيْرُكُمُ الَّذِيْ عَلَّمَكُمُ السِّحْرَ﴾ فَعَلَّمَكُمْ شَيْئًا مِنْهُ وَغَلَبَكُمْ بِآخَر ﴿فَلَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ﴾ ما

يَنَالكُمْ مِنِّي ﴿لَأُقَطِّعَنَّ أَيْدِيَكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ مِنْ خِلَافٍ﴾ أيْ يَدَ كُلِّ وَاحِدٍ الْيُمْنَى ورجله اليسرى ﴿ولأصلبنكم أجمعين﴾ ﴿قَالُوا لَا ضَيْرَ﴾ لا ضَرَرَ عَلَيْنَا فِي ذَلِكَ ﴿إِنَّا إِلَى رَبِّنَا﴾ بَعْدَ مَوْتِنَا بِأَيِّ وَجْهٍ كَانَ ﴿مُنْقَلِبُونَ﴾ رَاجِعُونَ فِي الآخرة ﴿إِنَّا نَطْمَعُ﴾ نَرْجو ﴿أَنْ يَغْفِرَ لَنَا رَبُّنَا خَطَايَانَا أَنْ﴾ أيْ بِأَنْ ﴿كُنَّا أَوَّلَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ في زماننا

**ترجمه:** فرعون خپلو گيرچاپيره موجود ناستو درباري سردارانو ته اووئيل داخو دير پوهه جادوگر دې يعنى د جادو په علم كښې دير اوچت دې دې دا خو غواړي چه د خپل جادو په ذريعه تاسو لره ستاسو د زمكې نه اوباسي نو تاسو څه مشوره راكوئ؟ درباريانو ورته اووئيل تاسو دې او د ورور ته (څه) مهلت وركړئ يعنى ددوى معامله فى الحال مؤخر كړئ او په ښارونو كښې (دجادوگرانو) راجمع كونكى اوليږه چې هغوى تاسو ته هر علم لرونكې ماهر جادوگر راولي كوم چې په موسىٰ عليه السلام باندې د جادو په علم كښې اوچت وي بيا د يو معين (معلوم) ورځې په مقرر وخت باندې جادوگران راجمع كړې شو اودا داختر په ورځ د ساختى وخت وو (يعنى: عاشورې د ورځې) اوخلقو ته اووئيلې شو چې آيا تاسو به راجمع شئ؟ چې مونږ د جادوگرو اتباع اوكړو كه چرته هغوى غالب شو، استفهام په اجتماع باندې د آماده كولو دپاره دې، او ترجى د جادوگرو د غلبې په صورت كښې دغوى په دين باندې د قائم پاتې كيدو دپاره د چې د موسىٰ عليه السلام اتباع اونه كړى. نو كله چې جادوگر راغلل نو فرعون نه ئې اووئيل كه چرته مونږ غالب راغلو نو آيا مونږ ته به څه لوئې انعام ملاويږى؟ أئِنَّ كښې د دواړو همزو تحقيق او د دويمې تسهيل او په دواړو صورتونو كښې د دواړو همزو په مينځ كښې الف داخلولو سره، فرعون اووئيل ضرور، اوتاسو به په دې صورت كښې په مقربينو كښې داخل شئ موسىٰ عليه السلام روسته ددې نه چې جادوگرانو موسىٰ عليه السلام ته اووئيل آيا ته به مخكښې وار كوې يا مونږ رومبې وار اوكړو هغوى ته اووئيل څه چې تاسو غورځوئ اوغورځوئ د موسىٰ عليه السلام د طرف نه (د: إلقاء) حكم دغوى دمخكښې غورځولو اجازت دپاره دې چې اجازت د حق د اظهار ذريعه شي نو جادوگرانو خپلې رسئ او لرگى اوغورځول او وې وئيل د فرعون د عزت قسم يقيناً هم مونږ به غالب راځو بيا موسىٰ عليه السلام خپله همسا اوغورځوله نود غورځولو سره دې دغوى جوړكړى كرتب تيرول شروع كړل په تَلَقَّف كښې د اصل نه په دوؤ تاگانو كښې يوه تاء حذف كړې شوې د اوهغوى دغه څيزونه دخپلې نظربندئ په ذريعه بدلول او خلقو به دغوى رسئ او لرگى منډې وهونكى ماران محسوس كول په دې كتلو سره جادوگران بې اختياره په سجده كښې پريوتل (جادوگرو صفا) اووئيل چه مونږ په رب العالمين باندې ايمان راوړو (يعنى) دموسىٰ اودهارون په رب باندې ددوى ددې خبرې نه دخبريدلو په وجه چې هغوى د همسا نه كومه مشاهده كړې وه دا دجادو په ذريعه نه شي كيدې، فرعون اووئيل آيا تاسو زما د اجازت نه بغير په د باندې يعنى به موسىٰ باندې ايمان راوړو؟ په آمَنتُمْ كښې د دواړو

معزو تحقيق اودويم په الف سره بدلولو سره يقيناً هم دا ستاسو دټولو مشر دې چې د تاسو ته جادو ښودلې دې نو تاسو ته ئې دجادو څه حصه ښودلې د او د نورې په ذريعه (چه هغه ئې ستاسو نه پټ اوساتلو) په تاسو باندې غالب راغې، اوس به تاسو ته معلومه شي چې زما د طرفه تاسو ته څه پيښيږي زه به ستاسو د يو طرف لاس اود بل طرف خپه کټ کړم يعنې د هر يو ښي لاس او ګسه خپه او تاسو ټول به په سولئ (پهانسئ) رازوړند کړم ټولو جواب ورکړو هيڅ باک نشته زمونږ په دې کښې هيڅ نقصان نشته مونږ خوبه د مرګ نه پس چې څنګه هم راله مرګ راشي خپل پروردګار ته به آخرت کښې اورسيږو مونږ اميد ساتو چې زمونږ پروردګار به زمونږ خطاګانې معاف کړی څکه چې مونږ په خپله زمانه کښې دټولو نه مخکښې ايمان راوړو.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** الْمَلَأ: اسم جنس دې د سردارانو جماعت (جمع) أملاءُ، أرجِهْ د إرجَاءٌ نه امر واحد مذکر حاضر دې، هضمير مفعولي دې وخت ورکړه، مهلت ورکړه.

**قوله:** تَأْمُرُونَ: دا په اصل کښې تَأْمُرُونَنِيْ وو.

**قوله:** وَإِدْخَالُ أَلِفٍ بَيْنَهُمَا عَلَى الْوَجْهَيْنِ: دلته مناسب وو چه وَعَلٰى تَرْكِ الْإِدْخَالِ عَلَى الْوَجْهَيْنِ ئې هم فرمائيلې وې چې څلور قراءتونه شوی وې.

**قوله:** فَالْأَمْرُ فِيهِ..الخ: دا ددې اعتراض جواب دې چې موسٰى عليه السلام (أَلْقُوا مَا أَنْتُمْ مُلْقُونَ) ونيلو سره دجادو يعنى د يو ناروا او کفريه عمل حکم اوفرمائيلو څکه چه جادو کفر او ناروا عمل دې او نبی دپاره دا بالکل مناسب نه دی چې چاته د کفريه عمل کولو حکم ورکړی؟ د جواب خلاصه داد چه دا حکم نه وو بلکه د امر په صورت کښې اجازت وو څکه چه جادوګرو ونيلی وو چې اول ته وار اوکړه يا مونږ ته اجازت راکړه چې مونږ وار اوکړو موسٰى عليه السلام هغوی ته د اول وار کولو (أَلْقُوا مَا أَنْتُمْ مُلْقُونَ) ونيلوسره اجازت ورکړو، لهذا د اعتراض هيڅ خبره نشته، خوپه دې جواب باندې دا اعتراض کيدې شي چې د کفريه عمل اجازت هم په رضا باندې دلالت کوی او رضا بالکفر کفردې،لهذا اجازت ورکول هم مناسب نه وو؟ ددې شبهې جواب هم په دې عبارت کښې موجود دې چې د حق د اظهار دپاره ضروری وو چې جادوګرو ته اجازت ورکړې شي چې هغوی خپل کرتب اوښائی او دمسا نه دمعجزې په ذريعه اژدا (ښامار) جوړشي او دغوی باطل او جوړشوی کرتب د حاضرينو په مخامخ تيرکړی اوپه خلقو باندې په حق اوباطل کښې فرق واضح شی لکه چې حق ښکاره شو. دا داسې د لکه جومات ورانول اګرچې ناروا دی خود نوی تعمير دپاره ئې ورانول ناروا نه دی بلکه مستحسن (ښه) کار دې لهذا دا تخريب د تعمير دپاره وو داسې نه چې تخريب برائے تخريب

قوله: وَإِبْدَالِ الثَّانِيَةِ أَلِفًا والصحيح إبدال الثانية ألفا خکه چې دریمه همزه په الف سره بدل شوې ده.

قوله: رَبِّ مُوسَىٰ وَهَارُونَ: دا د رب العالمين نه بدل دې.

قوله: يأفكون: إفكٌ (ض) نه جمع مذکر غائب واپس کيدل. فألقى السحرة يعنی بې اختياره په سجد کښې پريوتل.

**[ايا تونه: ۵۲-۶۸]**

(وَأَوْحَيْنَا إِلَىٰ مُوسَىٰ) بَعْد سِنِين أَقَامَهَا بَيْنهمْ يَدْعُوهُمْ بِآيَاتِ اللّٰه إِلَى الْحَقّ فَلَمْ يَزِيدُوا إِلَّا عُتُوًّا (أَنْ أَسْرِ بِعِبَادِي) بَنِي إِسْرَائِيل وَفِي قِرَاءَة بِكَسْرِ النُّون وَوَصْل هَمْزَة أَسْرِ مِنْ سَرَى لُغَة فِي أَسْرَى أَيْ سِرْ بِهِمْ لَيْلًا إِلَى الْبَحْر (إِنَّكُم مُّتَّبَعُونَ) يَتْبَعكُمْ فِرْعَوْن وَجُنُود فَيَلِجُونَ وَرَاءَكُمْ الْبَحْر فَأُنْجِيكُمْ وَأُغْرِقهُمْ (فَأَرْسَلَ فِرْعَوْن) حِين أُخْبِرَ بِسَيْرِهِمْ (فِي الْمَدَائِن) قِيلَ كَانَ لَهُ أَلْف مَدِينَة وَاثْنَا عَشَر أَلْف قَرْيَة (حَاشِرِينَ) جَامِعِينَ الْجَيْش قَائِلًا (إِنَّ هَٰؤُلَاءِ لَشِرْذِمَةٌ) طَائِفَة (قَلِيلُونَ) قِيلَ كَانُوا سِتّمِائَةِ أَلْف وَسَبْعِينَ أَلْفًا وَمُقَدِّمَة جَيْشه سَبْعمِائَةِ أَلْف فَقَلَّلَهُمْ بِالنَّظَرِ إِلَى كَثْرَة جَيْشه (وَإِنَّهُمْ لَنَا لَغَائِظُونَ) فَاعِلُونَ مَا يَغِيظنَا (وَإِنَّا لَجَمِيعٌ حَذِرُونَ) مُسْتَعِدُّونَ وَفِي قِرَاءَة حَاذِرُونَ مُتَيَقِّظُونَ قَالَ تَعَالَى (فَأَخْرَجْنَاهُم) أَيْ فِرْعَوْن وَقَوْمه مِنْ مِصْر لِيَلْحَقُوا مُوسَى وَقَوْمه (مِّن جَنَّاتٍ) بَسَاتِين كَانَتْ عَلَى جَانِبَيْ النِّيل (وَعُيُونٍ) أَنْهَار جَارِيَة فِي الدُّور مِنَ النِّيل (وَكُنُوزٍ) أَمْوَال ظَاهِرَة مِنْ الذَّهَب وَالْفِضَّة وَسُمِّيَتْ كُنُوزًا لِأَنَّهُ لَمْ يُعْطِ حَقّ اللّٰه تَعَالَى مِنْهَا (وَمَقَامٍ كَرِيمٍ) مَجْلِس حَسَن لِلْأُمَرَاءِ وَالْوُزَرَاء يَحفه اتباعهم (كَذَٰلِكَ) أَيْ آخراجنا كَمَا وَصَفْنَا (وَأَوْرَثْنَاهَا بَنِي إِسْرَائِيلَ) بَعْد إِغْرَاق فِرْعَوْن وَقَوْمه (فَأَتْبَعُوهُم) لَحِقُوهُمْ (مُّشْرِقِينَ) وَقْت شُرُوق الشَّمْس (فَلَمَّا تَرَاءَى الْجَمْعَانِ) رَأَى كُلّ مِنْهُمَا الْآخَر (قَالَ أَصْحَابُ مُوسَىٰ إِنَّا لَمُدْرَكُونَ) يُدْرِكنَا جَمْع فِرْعَوْن وَلَا طَاقَة لَنَا بِهِ (قَالَ) مُوسَى (كَلَّا) أَيْ لَنْ يُدْرِكُونَا (إِنَّ مَعِيَ رَبِّي) بِنَصْرِهِ (سَيَهْدِينِ) طَرِيق النَّجَاة قَالَ تَعَالَى (فَأَوْحَيْنَا إِلَىٰ مُوسَىٰ أَنِ اضْرِب بِّعَصَاكَ الْبَحْرَ) فَضَرَبَهُ (فَانفَلَقَ) فَانْشَقَّ اثْنَيْ عَشَر فِرْقًا (فَكَانَ كُلُّ فِرْقٍ كَالطَّوْدِ الْعَظِيمِ) الْجَبَل الضَّخْم بَيْنهمَا مَسَالِك سَلَكُوهَا لَمْ يَبْتَلّ مِنْهَا سَرْج الرَّاكِب وَلَا لبد (وَأَزْلَفْنَا) قَرَّبْنَا (ثَمَّ) هُنَاكَ (الْآخَرِينَ) فِرْعَوْن وَقَوْمه حَتَّى سَلَكُوا مَسَالِكهمْ (وَأَنجَيْنَا مُوسَىٰ وَمَن مَّعَهُ أَجْمَعِينَ) بِإِخْرَاجِهِمْ مِنْ الْبَحْر عَلَى هَيْئَته الْمَذْكُورَة (ثُمَّ أَغْرَقْنَا الْآخَرِينَ) فِرْعَوْن وَقَوْمه بِإِطْبَاقِ الْبَحْر عَلَيْهِمْ لَمَّا تَمَّ دُخُولهمْ فِي الْبَحْر وَخُرُوج بَنِي إِسْرَائِيل مِنْهُ (إِنَّ فِي ذَٰلِكَ) إِغْرَاق فِرْعَوْن وَقَوْمه (لَآيَةً) عِبْرَة لِمَنْ بَعْدهمْ (وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ) بِاللّٰهِ لَمْ يُؤْمِن مِنْهُمْ غَيْر آسِيَة امْرَأَة فِرْعَوْن وحزقيل مُؤْمِن آل فِرْعَوْن وَمَرْيَم بِنْت ناموسي الَّتِي دَلَّتْ عَلَى عِظَام يُوسُف عَلَيْهِ السَّلَام (وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ) فَانْتَقَمَ مِنْ الْكَافِرِينَ بِإِغْرَاقِهِمْ (الرَّحِيمُ) بِالْمُؤْمِنِينَ فَأَنْجَاهُمْ مِنْ الْغَرَق

ترجمه: او مونږ موسیٰ علیه السلام ته حکم ورکړو روستو ددې نه چې موسیٰ علیه السلام دغوی په مینځ

کښې په کلونو مقيم پاتې شوې وو(او) د الله د آياتونو په ذريعه ئې دحق دعوت ورکولوخودغوی په سرکشئ کښې اضافه کيدله. چې زما بندګان بنی اسرائيل د شپې شپې اوباسه. اوپه يو قراءت کښې د نون په کسرې سره دې او د لمړۍ په همزه وصل سره دې په نوی کښې يو لغت مړۍ هم دې، يعنی د شپې شپې دوی بحر (قلزم) طرف ته بوځه. يقيناً تاسو پسې به دوی درځي يعنی فرعون اودغه لښکر به ستاسو پسې کيږی نوهغوی به تاسو پسې شاته په درياب کښې داخليږی نو زه به تاسو ته نجات درکوم اوهغوی به غرق کوم. کوم وخت چې فرعون ته د بنی اسرائيلو د شپې د وتلو خبر ورکړې شو نو فرعون په ښار کښې لښکرې جمع کونکی اوليږل بيان کړې شوی دی چه دد د قبضې لاندې يو زر ښارونه او دولس زره کلی وو، دا وئيلو سره چې ددې خلقو يو وړوکې شان جماعت دې وئيلې شوی دی چه دغوی تعداد شپږ لاکه او اويا زره وو، اودغوی د مقدمة الجيش تعداد اووه لاکه وودخپل لښکر د زياتوالی په وجه ئې بنی اسرائيلو ته قليل اووئيل (کنی نوهغوی هم فی نفسه کثيروو) او دا چې دې خلقو مونږ ته غصه راوستې د يعنی داسې حرکت ئې کړې دې چې مونږ ته ئې غصه راوستې د بې شکه مونږ ټول بيداريو يعنی دماغ مو بيدار دی (غافل نه يو) اوپه يو قراءت کښې حاذرون دې يعنی مستعد (تيار) يو الله تعالی فرمائي چنانچه دوی يعنی فرعون او دغه لښکر د مصر د باغونونه چې د (دريائي) نيل په دواړو غاړو باندې وواود چينو نه يعنی دغه نهرونو نه کوم چې د دريائي نيل نه دغوی کورونو کښې جاری وو، اود خزانونه يعنی د سرو او سپينو زرو د ښکاره مالونو نه او کنز (خزانې) ته کنز ځکه وائی چې ددې نه د الله تعالی حق ادانه کړې شو اود حاکمانو او وزيرانو د ښو مجلسونو نه چې په کوم مجلسونه به ددوی خادمانو ګيره اچولې وه راوويستل، د بيان کړې شوی طريقې مطابق مونږ ويستل اوشو، د فرعون اودغه دقوم د غرق کيدو نه پس مونږ بنی اسرائيل دغه ټولو څيزونو وارثان جوړ کړل نو قبطيان د نمر ختلو په وخت د اسرائيليانو سره ملاؤ شو، پس کله چې دواړو ډلو يو بل اوليدلو نو د موسیٰ علیہ السلام ملګرو اووئيل مونږ خو اونيولې شو يعنی د فرعون لښکر مونږ اونيولو او په مونږ کښې دغوی د مقابلې طاقت نشته. حضرت موسیٰ علیہ السلام اوفرمائيل هيڅ کله نه يعنی هغوی مونږ بالکل نه شی نيولې (ځکه) چې يقين اوکړئ زما د رب مدد ماسره دې، هغه به ډير زر ماته د نجات لاره اوښائی الله تعالی ورته اوفرمائي مونږ موسیٰ علیہ السلام ته حکم اوکړو چه خپله همسا په درياب باندې اووهه نو موسیٰ علیہ السلام همسا اووهله، همدغه وخت درياب په دولسو حصو کښې تقسيم شو هره حصه د لوئې غر په شان وه او د دغه دولسو حصو په مينځ کښې لارې وې چې په هغې کښې به هغوی تلل او په دولسو قبيلو کښې نه خو د يو سور کس د اس زين لوند شو اونه لمسې او مونږ نور يعنی فرعون او دغه قوم دې موقعې ته نژدې اورسول تردې چې دوی هم دغوی په لارو

کښې داخل شو او موږ موسیٰ علیه السلام او دغه ټول ملګرو نه په ذکر شوی هیئت سره د دریاب نه اوویستلو سره نجات ورکړو، ددې نه پس مو نور خلق غرق کړل یعنی فرعون او دغه قوم کله چې په دریاب کښې دغوی داخلیدل او د اسرائیلیانو د دریاب نه وتل مکمل شو نو په هغوی مو دریاب ملاؤ کړو او غرق مو کړل بې شکه په دې کښې یعنی د فرعون او دغه د قوم په غرق کولو کښې د روستنو دپاره د عبرت نخښه ده او په دوی کښې اکثر خلق (په الله باندې) ایمان نه راوړی یعنی د فرعون ښځه آسیه او د آل فرعون یو کس حزقیل او مریم بنت ناموسیٰ چا چې د حضرت یوسف علیه السلام د هډوکو نشاندی کړې وه، د دوی نه علاوه هیچا ایمان رانه وړلو، او بې شکه ستا رب غالب دې چې کافرانو نه ئې دغوی په غرق کولو سره انتقام واخستلو او په مؤمنانو باندې ډیر مهربان دې چې دوی ئې د غرق کولو نه بچ او ساتل.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** لَشِرْذِمَةٌ: وړو کښې جماعت (جمع) شِرَاذِم (لَشِرْذِمَةٌ قَلِيلُونَ) د قیاس تقاضه دا وه چې لَشِرْذِمَةٌ قليلة وې، ځکه چه قليلة د لَشِرْذِمَةٌ صفت دې خو شِرذمة په أسباط باندې مشتمل وو او هر سبط په هغوی کښې قلیل وو په دې وجه ئې جمع مذکر راوړله (روح المعاني) او قليلون د إِنَّ خبر ثاني هم کیدې شي.

**قوله:** لَجميعٌ: په معنی د جمعٌ أي جماعة، دا کلمه د تاکید د الفاظو نه نه د چې دا اعتراض او کړې شي چې حرف د تاکید تابع په طور استعمالیږی او دلته د تابع په طور استعمال نه شو؟ د جواب حاصل دادې چه دا د کلماتِ تاکید نه نه دې بلکه د جماعت په معنی کښې دې نو هیڅ اعتراض نشته دې.

**قوله:** وفي قراءة حاذرون: ابوعبید وئیلی دی د حذِرون او حاذِرُون دواړو یوه معنی د هوښیار، حاضر دماغ، بیدار، بعضې حضراتو دا فرق بیان کړې دې چې د حَذِرٌ معنی متيقظ داود حاذر معنی خائف ده، او بعضې حضراتو دا فرق بیان کړې دې چه حَذِرون هغه مخلوق ته وائی چې هغه پیدائشی طور باندې بیدار وی لکه کارغه، او حاذر هغې ته وائی چې هغه پیدائشی طور باندې بیدار خو نه وی خو روسته چالاکه او هوښیار شوې وی.

**قوله:** مقام كريم: نه څه مراد دې، په دې باره کښې د مفسرینو مختلف اقوال دی، بعضې حضراتو ښه مکانات (کورونه) مراد اخستی دی او بعضو د حاکمانو او سردارانو مجالس مراد اخستی دی، لکه چې علامه محلی هم دا قول اختیار کړې دې.

**قوله:** كَذٰلِكَ: دا په محل د نصب کښې هم کیدې شی تقدیر به داسې وی: أخرجناهم مثل ذالك الآخراج الذي وصفنا، او د مقام کریم د صفت په وجه په محل د جر کښې هم کیدې شی أي مقام كريم مثل ذلك المقام الذي كان لهم، او د مبتدأ محذوف د خبر کیدو په وجه محلا

مرفوع هم کیدې شي أي الأمر کذلك.

**قوله:** وأورثناها: دا عطف په فأخرجنا باندې دې

**قوله:** (وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُمْ مُؤْمِنِينَ): د اکثرهم نه دغه خلقو اکثر مراد نه دې کوم چې حضرت موسیٰ ﷺ پسې ورغلي ووځکه چې هغوی خو ټول په ټوله غرق کړې شو بلکه د اکثر نه هغه خلق مراد دی کوم چه د فرعون په مسلک اودغه په عقید باندې وو او فرعون طرف ته منسوب وو. دغوی نه بعضې خلقو ایمان هم راوړې وو. لکه حزقیل او د فرعون لور. او دغه ښځه آسیه او مریم بنت ناموسیٰ چاچې د حضرت یوسف علیه السلام د قبر نشاندې کړې وه او سیبویه کانَ ته زائد وئیلی دی.

**[ایاتونه: ۶۹-۱۰۴]**

(وَاتْلُ عَلَيْهِمْ) أَيْ كُفَّار مَكَّة (نَبَأَ) خَبَر (إبراهيم) ويبدل منه (إذ قال لأبيه وقومه ما تعبدون) (قَالُوا نَعْبُدُ أَصْنَامًا) صَرَّحُوا بِالْفِعْلِ لِيَعْطِفُوا عَلَيْهِ (فَنَظَلُّ لَهَا عَاكِفِينَ) نُقِيم نَهَارًا عَلَى عِبَادَتهَا زَادُوهُ فِي الْجَوَاب افْتِخَارًا بِهِ (قال هل يسمعونكم إذ) حين (تدعون) (أَوْ يَنْفَعُونَكُمْ) إنْ عَبَدْتُمُوهُمْ (أَوْ يَضُرُّونَ) كُمْ إنْ لَمْ تَعْبُدُوهُمْ (قَالُوا بَلْ وَجَدْنَا آبَاءَنَا كَذَلِكَ يَفْعَلُونَ) أَيْ مِثْل فِعْلنَا (قال أفرأيتم ما كنتم تعبدون) (أنتم وآباؤكم الأقدمون) (فَإِنَّهُمْ عَدُوٌّ لِي) لَا أَعْبُدهُمْ (إلَّا) لَكِنْ (رَبَّ الْعَالَمِينَ) فَإِنِّي أَعْبُدهُ (الذي خلقني فهو يهدين) إلَى الدِّين (والذي هو يطعمني ويسقين) (وإذا مرضت فهو يشفين) (والذي يميتني ثم يحيين) (وَالَّذِي أَطْمَع) أَرْجُو (أَنْ يَغْفِر لِي خَطِيئَتِي يَوْم الدِّين) الْجَزَاء (رَبّ هَبْ لِي حُكْمًا) عِلْمًا (وَأَلْحِقْنِي بِالصَّالِحِينَ) النَّبِيِّينَ (وَاجْعَلْ لِي لِسَان صِدْق) ثَنَاء حَسَنًا (فِي الْآخِرِينَ) الَّذِينَ يَأْتُونَ بَعْدِي إلَى يَوْم الْقِيَامَة (وَاجْعَلْنِي مِنْ وَرَثَة جَنَّة النَّعِيم) مِمَّنْ يُعْطَاهَا (وَاغْفِرْ لِأَبِي إنَّهُ كَانَ مِنْ الضَّالِّينَ) بِأَنْ تَتُوب عَلَيْهِ فَتَغْفِر لَهُ وَهَذَا قَبْل أَنْ يَتَبَيَّن لَهُ أَنَّهُ عَدُوّ لِلَّهِ كَمَا ذُكِرَ فِي سُورَة بَرَاءَة (وَلَا تُخْزِنِي) تَفْضَحنِي (يَوْم يُبْعَثُونَ) النَّاس قَالَ تَعَالَى فِيهِ (يَوْم لَا يَنْفَع مَال وَلَا بَنُونَ) احدا (إلَّا) لَكِنْ (مَنْ أَتَى اللَّه بِقَلْبٍ سَلِيم) مِنْ الشِّرْك وَالنِّفَاق وَهُوَ قَلْب الْمُؤْمِن فَإِنَّهُ يَنْفَعهُ ذَلِكَ (وَأُزْلِفَتْ الْجَنَّة) قُرِّبَتْ (لِلْمُتَّقِينَ) فَيَرَوْنَهَا (وبرزت الجحيم) اظهرت (للغاوين) الكافرين (وقيل لهم أين ما كنتم تعبدون) (مِنْ دُون اللَّه) أَيْ غَيْره مِنْ الْأَصْنَام (هَلْ يَنْصُرُونَكُمْ) بِدَفْعِ الْعَذَاب عَنْكُمْ (أَوْ يَنْتَصِرُونَ) بدفعه عن انفسهم لا (فكبكبوا) القوا (فيها هم والغاوون) (وَجُنُود إبْلِيس) أَتْبَاعه وَمَنْ أَطَاعَهُ مِنْ الْجِنّ وَالْإِنْس (أجمعون) (قَالُوا) أَيْ الْغَاوُونَ (وَهُمْ فِيهَا يَخْتَصِمُونَ) مَعَ معبوديهم (تَاللَّهِ إنْ) مُخَفَّفَة مِنْ الثَّقِيلَة وَاسْمهَا مَحْذُوف أَيْ إنَّهُ (كُنَّا لَفِي ضَلَال مُبِين) بَيِّن (إذْ) حَيْثُ (نُسَوِّيكُمْ بِرَبِّ الْعَالَمِينَ) فِي الْعِبَادَة (وَمَا أَضَلَّنَا) عَنْ الْهُدَى (إلَّا الْمُجْرِمُونَ) أَيْ الشَّيَاطِين أَوْ أَوَّلُونَا الَّذِينَ اقْتَدَيْنَا بِهِمْ (فَمَا لَنَا مِنْ شَافِعِينَ) كَمَا لِلْمُؤْمِنِينَ مِنْ الْمَلَائِكَة وَالنَّبِيِّينَ وَالْمُؤْمِنِينَ (وَلَا صَدِيق حَمِيم) يُهِمّهُ أَمْرنَا (فَلَوْ أَنَّ لَنَا كَرَّة) رَجْعَة إلَى الدُّنْيَا (فَنَكُون مِنْ الْمُؤْمِنِينَ) لَوْ هُنَا لِلتَّمَنِّي وَنَكُون جَوَابه (إنَّ فِي ذَلِكَ) الْمَذْكُور مِنْ

نبأ ابراهيم وقومه (الآية وماكان اكثرهم مؤمنين) (وان ربك لهو العزيز الرحيم)

ترجمه: او د مکې کافرانو ته د ابراهيم ﷺ واقعه (هم) واوروه، إذقال لأبيه د (نبأ ابراهيم) نه بدل الاشتمال دې کله چې ابراهيم ﷺ خپل پلار او خپل قوم ته اووئيل تاسو دکوم څيز بندگی کوئ؟ هغوی جواب ورکړو د بتانو بندگی کوو د فعل صراحت ئې اوکړو، دې دپاره چې په دې باندې د (فنظل لها عاكفين) عطف اوکړې شی مونږ خو شپه ورځ ددوی په عبادت کښې مشغول اوسیږويعنی مونږ پابندئ سره ټوله ورځ ددوی عبادت کوو، اوهغوی په جواب کښې د (فنظل) اضافه (د بتانو) په عبادت باندې د فخر په طور اوکړه نو ابراهيم ﷺ اوفرمائيل آيا دوی ستاسو آوری هم کله چې تاسو دوی ته آواز کوئ؟ يا ستاسو ددوی د عبادت کولو په صورت کښې تاسو ته نفع يا د عبادت نه کولو په صورت کښې نقصان دررسوی؟ هغوی اووئيل (مونږ هيڅ نه پيژنو) مونږ خو خپل پلار نيکونه دغسې کونکی موندلی دی يعنی څنګه چې مونږ کوو (ابراهيم ﷺ) اوفرمائيل آيا تاسو اوستاسو مخکينی پلار نيکونه چې دکومو (بتانو) بندگو، کوئ کله مو په ددوی حالت کښې غور کړې دې؟ دا ټول زما دشمنان دی زه د دوی بندگی نه کوم ليکن د رب العالمين بندگی کوم چې هغه زه پيدا کړې يم نو هم هغه دين طرف ته زما رهبری کوی هم هغه دې چې ماته خوراک څکاک راکوی او کله چه زه بيمار شم نو ماته شفاء راکوی او هم هغه به ماته مرګ راکوی او بيا به مې ژوندې کوی او هم هغه دې چې د هغه نه اُميد کوم چه د جزاء په ورځ به هغه زما خطاګانې معاف کړی اې زما پروردګار ماته علم راکړې او ما په صالحانو يعنی د نبيانو په دله کښې شامل کړې او په روستو خلقو کښې زما نيک شهرت اوکړې يعنی په هغه خلقو کښې کوم چه به زمانه روسته تر قيامته پورې راځی او ما د جنت النعيم په وارثانو کښې شامل کړې يعنی په هغه خلقو کښې چاته چې به جنت ورکولې شی او زما پلار معاف کړې بې شکه هغه د لارې نه ګمراه شوې دې، په دې طريقه چه ته دغه توبه قبوله کړې چه دغه مغفرت اوشی او دا (دعاء) ددې نه د مخکښې خبره د چې په ابراهيم ﷺ باندې الله تعالی سره دغه د دشمنئ حقيقت واضح شو، لکه چې په سورة براءت کښې ذکرشوی دی او خلقو لره د دوباره ژوندی کولو په ورځ ما رسوا نه کړې الله تعالی دغه ورځې باره کښې اوفرمائيل په هغه ورځ به مال او اولاد ديچا هيڅ په کار نه راځی خو څوک چې د شرک او نفاق نه سالم زړه سره راشی او هغه به دمومن زړه وی دا څيزونه به دغه دپاره فائده مند وی او متقيانو ته به جنت بالکل نزدې کړې شی چه هغوی دا اوګوری او کافرانو دپاره به جهنم ښکاره کړې شی او دغوی نه به تپوس اوشی چه دچا تاسو د الله نه سوا عبادت کولو هغوی چرته دی؟ يعنی د الله تعالی نه علاوه د بتانو، آيا هغوی ستاسو نه عذاب لرې کولو سره ستاسو مدد کولې شی؟ يا پخپله دخپل ځان دفاع کولې شئ؟ نه، پس هغوی او ګمراه خلق او د ابليس لښکر او دغه متبعين او په جناتو او انسانانو کښې چې چا دغه اطاعت کړې وی ټول به جهنم ته

پرمخې ور واچولې شي او کافران به په جهنم کښې دخپلو معبودانو سره جهګړې کوي په الله قسم بې شکه مونږ په ښکاره ګمراهئ کښې وو اِنْ مخففه عن المثقله دې، ددې اسم محذوف دې اې اِنَّهُ،کله چه مونږ خو تاسو په عبادت کښې د رب العالمین برابر ګرځولئ او مونږ خو سوا ددې بدکارانو نه د هدايت نه هيڅ ګمراه نه کړو يعنی شيطانانو يا هغه مخکينو خلقو دکومو چې مونږه اقتداء اوکړه، اوس زمونږ څوک سفارشی هم نشته لکه څنګه چې د مومنانو دپاره ملائکه او انبياء او مومنان سفارشيان دی، او نه څوک رشتونې غمخوار دوست چې هغوی له زمونږ حالت غمژن کړی کاش چې مونږ ته يوځل بيا دنيا کښې واپس تلل ملاؤ شوې نو مونږ به ايمان راوړلې وې لَوْدلته د تمنٰی دپاره دې او نَكُوْنَ ددې جواب دې بې شکه ابراهيم عليه السلام او دغه په مذکوره قصه کښې روستنو خلقو دپاره نښه (عبرت) او دې په دوی کښې اکثر خلق ايمان راوړونکی نه دی او يقيناً ستا پروردګار غالب مهربان دې.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

قوله: (وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ إبراهيم) واؤ عاطفه دې او په (ماسبق کښې) په اذکر مقدر باندې عطف دې کوم چې په اِذْنَادٰى رَبُّكَ مُوسٰى کښې عامل دې دا عطف قصه على القصه دې.

قوله: (إذقال لأبيه وقومه ما تعبدون) د نَبَأَ إبراهيم نه بدل مفصل عن المجمل دې.

قوله: صَرَّحُوا بِالْفِعْلِ لِيَعْطِفُوا عَلَيْهِ: ددې عبارت د اضافه کولو مقصد ديو اعتراض جواب دې، اعتراض دادې چې د مَا تَعْبُدُونَ په جواب کښې د قياس تقاضه دا وه چې (فقط) اَصْنَامًا ونيلې وې لکه چې د الله تعالى په قول وَيَسْئَلُوْنَكَ مَاذَا يُنْفِقُوْنَ، قُلِ الْعَفْوَ،کښې دی څکه چه کله سوال کښې فعل مذکوروی نو په جواب کښې دفعل ذکرکولو ضرورت نه وی؟ جواب دادې چه د فعل نَعْبُدُ ذکر کولو ضرورت څکه پيښ شو چې د (فَنَظَلُّ لَهَا عَاكِفِيْنَ) عطف صحيح شی ګنی نو د فعل عطف به په اسم باندې لازم راتلو.

قوله: نُقِيمُ نَهَارًا: دا د نَظَلُّ دمعنی بيان دې اوس پاتې شوه داخبره چې د (فَنَظَلُّ لَهَا عَاكِفِيْنَ) ونيلو څه ضرورت پيښ شو؟ نو ددې جواب دادې چې مشرکانو په بت پرستئ باندې فخر کولو هغوی دا د معيوب ګڼرلو يا په دې باندې د پښيمانه کيدو په ځائې په دې باندې فخر کولو په دې وجه دوی (فَنَظَلُّ لَهَا عَاكِفِيْنَ) اوونيل چې مونږ خو توله ورځ يعنی هر وخت دې ته سجدې کوو او دا زمونږ دپاره د فخر سبب دې د پښيمانتيا سبب نه دې.

قوله: هَلْ يَسْمَعُونَكُمْ: دلته مضاف محذوف دې تقدير د عبارت دادې هَلْ يَسْمَعُونَ دُعَاءَكُمْ،څکه چې د ذوات د اوريدلو هيڅ مطلب نشته.

قوله: أَفَرَأَيْتُمْ: کښې همزه په فعل محذوف باندې داخل د، فا عاطفه د، تقدير د عبارت

دادې. أتأملتم فأبصرتم ماكنتم تعبدُون.

**قوله:** وآباؤكم: ددې عطف په تَعبُدون كښې دننه په ضمير مرفوع متصل باندې دې هم په دې وجه د ضمير مرفوع منفصل أنتُم په ذريعه تاكيد راوړلې شوې دې.

**قوله:** ﴿فَإِنَّهُمْ عَدُوٌّ لِّي﴾ هغوى زما دشمنان دى د دشمنئ نسبت حضرت ابراهيم عليه السلام خپل ځان طرف ته كړې دې دا تعريض دې او په باب د نصيحت كښې تعريض دتصريح نه أبلغ وى يعنى د ﴿فَإِنَّهُمْ عَدُوٌّ لَّكُمْ﴾ په ځائى ئى ﴿فَإِنَّهُمْ عَدُوٌّ لِّي﴾ اووئيل.

**قوله:** إِلَّا: لٰكِنَّ ربّ العالمين: د إِلَّا تفسير په لٰكِنّ سره كولوكښې ئى اشاره اوكړه چې دا استثناء منقطع د، معنى داد: لٰكِنَّ ربّ العالمين ليس بعدوّى بل هوولى فى الدنيا والأخرة.

**قوله:** الذي خلقنى: دا خو يا د رب العالمين صفت دې يا بدل دې يا عطف بيان دې يا د هُوَ مبتدأ محذوف خبر دې او ددې مابعد په دې باندې معطوف دې.

**قوله:** ﴿وإذا مرضت فهو يشفين﴾: په دې كښې ئې د مرض نسبت خپل ځان طرف ته كړې دې الله طرف ته ئې نه دې كړې، داسې ئې د ډير ادب په وجه كړى دى.

**قوله:** لِسَان صِدْق: دا اضافت موصوف إلى الصفت دې أى اللسان الصدق.

**قوله:** قَالَ تَعَالَىٰ فِيهِ أى فى شان ذٰلك اليوم: بعضې حضراتو وئيلى دى چې يوم لاينفع مال ولا بنون داهم دحضرت ابراهيم عليه السلام كلام دې او د يوم يبعثون نه بدل دې، په ړومبى صورت كښې ئى هم بدل اووئيلو خو دا د اعتراض نه خالى نه د.

**قوله:** إِلَّا لٰكن مَن أتى اللهَ بِقَلبٍ سليم: شارح د إِلَّا په لكن سره تفسير كولوكښې اشاره اوكړه چه دا مستثنٰى منقطع د ليكن د أحدًا مفعول (محذوف) تقاضه داد چه دا دې مستثنٰى متصل وى په دواړو كښې تضاد معلوميږى، د تطبيق صورت دا كيدې شى چې مستثنٰى منه كه مالٌ ولا بنونَ اوګرځولې شى نو مستثنٰى به منقطع وى اوكه مستثنٰى منه أحدًا اوګرځولې شى نو مستثنٰى به متصل وى، ځكه چې مَن أتى الله مستثنٰى منه د أحدًا د جنس نه د او په ړومبى صورت كښې مستثنٰى د مستثنٰى منه د جنس نه نه د.

**قوله:** أين ما كنتم تعبدون: أينَ خبرمقدم دې او مَامبتدأ مؤخر په معنى د الذى دې او كُنتُم تعبدُون د مَاصله د عائد محذوف دې أى تعبدُونهُ او مِن دُون الله حال دې تقدير د عبارت به داسې وى: مَاكُنتُم تعبدونهُ أينَ.

**قوله:** فَلوْلَا أنّ لنَا كرَّةً: په فارسئ كښې: پس كاش ما را يک بار رجوع باشد، كاش مونږ ته يو ځل دنيا ته واپس تلل ملاؤ شوې وې.

**قوله:** لَو هُنَا للتمنّى فنكون مِن المؤمنين: ددې جواب دې بعضې حضراتو وئيلى دى چې لَو

شرطيه دي ددې جواب محذوف دي او فَنَكُونَ په كَرَّةً باندې معطوف دې، تقدير د عبارت دادي: لَوْأَنَّ لَنَا كَرَّةً فَنَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ لَرَجَعْنَا عَمَّا كُنَّا عَلَيْهِ يا جواب لَخَلَصْنَا مِنَ الْعَذَابِ كيدې شي.

**[ايالتونه: ۱۰۵-۱۲۲]**

(كَذَّبَتْ قَوْمُ نُوحٍ الْمُرْسَلِينَ) بِتَكْذِيبِهِمْ لَهُ لِاشْتِرَاكِهِمْ فِي الْمَجِيءِ بِالتَّوْحِيدِ أَوْ لِأَنَّهُ لِطُولِ لُبْثِهِ فِيهِمْ كَأَنَّهُ رُسُلٌ وَتَأْنِيثُ قَوْمٍ بِاعْتِبَارِ مَعْنَاهُ وَتَذْكِيرُهُ بِاعْتِبَارِ لَفْظِهِ (إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ) نَسَبًا (نُوحٌ أَلَا تَتَّقُونَ) اللهَ (إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ) عَلَى تَبْلِيغِ مَا ارسلت به (فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ) فِيمَا آمُرُكُمْ بِهِ مِنْ تَوْحِيدِ اللهِ وَطَاعَتِهِ (وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ) عَلَى تَبْلِيغِهِ (مِنْ أَجْرٍ إِنْ) مَا (أَجْرِيَ) اي ثوابي (إِلَّا عَلَى رَبِّ الْعَالَمِينَ) (فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ) كَرَّرَهُ تَأْكِيدًا (قَالُوا أَنُؤْمِنُ) نُصَدِّقُ (لَكَ) لِقَوْلِكَ (وَاتَّبَعَكَ) وَفِي قِرَاءَةٍ وَأَتْبَاعُكَ جَمْعُ تَابِعٍ مُبْتَدَأٌ (الْأَرْذَلُونَ) السِّفْلَةُ كَالْحَاكَةِ وَالْأَسَاكِفَةِ (قَالَ وَمَا عِلْمِي) اي علم لي (بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ) (إِنْ) مَا (حِسَابُهُمْ إِلَّا عَلَى رَبِّي) فَيُجَازِيهِمْ (لَوْ تَشْعُرُونَ) تعلمون ذلك ما عبتموهم (وَمَا أَنَا بِطَارِدِ الْمُؤْمِنِينَ) (إِنْ) مَا (أَنَا إِلَّا نَذِيرٌ مُبِينٌ) بَيِّنُ الانذار (قَالُوا لَئِنْ لَمْ تَنْتَهِ يَا نُوحُ) عَمَّا تَقُولُ لَنَا (لَتَكُونَنَّ مِنَ الْمَرْجُومِينَ) بِالْحِجَارَةِ أَوْ بِالشَّتْمِ (قَالَ) نوح (رَبِّ إِنَّ قَوْمِي كَذَّبُونِ) (فَافْتَحْ بَيْنِي وَبَيْنَهُمْ فَتْحًا) اي احكم (وَنَجِّنِي وَمَنْ مَعِيَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ) قال تعالى (فَأَنْجَيْنَاهُ وَمَنْ مَعَهُ فِي الْفُلْكِ الْمَشْحُونِ) الْمَمْلُوءِ مِنَ النَّاسِ وَالْحَيَوَانِ وَالطَّيْرِ (ثُمَّ أَغْرَقْنَا بَعْدُ) بَعْدَ إِنْجَائِهِمْ (الْبَاقِينَ) مِنْ قَوْمِهِ (إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَةً وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُمْ مُؤْمِنِينَ) (وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ)

**ترجمه:** د نوح قوم دحضرت نوح عليه السلام تكذيب كولو سره دټولو پيغمبرانو د تكذيب ارتكاب اوكړو ددې ټولو د توحيد په راوړلو كښې د مشترک كيدو په وجه يا ددوی په قوم كښې د ډيرې زمانې پورې د قيام كولو په وجه ګويا چه هغه د ډيرو پيغمبرانو قائم مقام وو (لفظ) قوم دخپلې معنی په اعتبار سره مؤنث دې او دخپل لفظ په اعتبار سره مذكر دې كله چې دوی ته د دوی نسبی رور نوح اوفرمائيل چې آيا تاسو د الله د عذاب نه نه ويريږئ؟ زه ستاسو په طرف د الله امانت دار رسول يم هغه پيغام په رسولو كښې كوم سره چې څه رالیږلې شوې يم لهذا تاسو د الله نه اويريږئ او د الله په توحيد اودغه په اطاعت كښې دكوم چې زه تاسوته حكم كوم زما اطاعت كوئ زه ستاسونه په دې باندې يعنی په دې تبليغ باندې هيڅ معاوضه نه غوارم زما اجر يعنی زما ثواب خوصرف په رب العالمين باندې دې دالله نه اويريږئ او زما اطاعت اوكړئ د تاكيد په طور ئې دا مكرر ذكر كړې دې قوم جواب وركړو آيا مونږ په تا باندې ايمان راوړو يعنی ستا دخبرې تصديق اوكړو حالانكه ستا اتباع رذيلو خلقو كړې د يعنی كم حيثيت والا خلقو مثلاً جولاګانو او موچيانو او په يو قراءت كښې د اِتَّبَعَكَ په ځاى اَتْبَاعُكَ دې چې د تابع جمع د (او) مبتدأ د (او ارذلون ددې خبر دې) حضرت نوح عليه السلام جواب وركړو زما ددوی د پيشو (كارونو) نه سره څه غرض؟ (يعنی زما ددوی د پيشې نه هيڅ

مطلب نشته که ددوی پیشه رذیله وی او که شریف، اوس پاتې شو دا احتمال چه ددوی ایمان د زړه نه نه دې نو دوی حساب په الله باندې د ې ددوی حساب خو زما د رب په ذمه دې نو هم هغه به ددوی ته جزاء ورکړي، که دا حقیقت ستاسو په پوهه کښې راتلې نو تاسو به عیبونه نه لټول زه ایمان والو ته دیکه ورکونکې نه یم زه خو صفا طور باندې ویرونکې یم یعنې ښکاره یرونکې، دغه خلقو اووئیل اې نوح که ته منع نه شوې ددې خبرو نه کومې چه ته مونږ سره کوې نو یقینًا سنګسار به کړې شې د کاڼړو په ذریعه یا د کنځلو او بدو ردو په ذریعه (نو بیا د مجبورئ نه) نوح عليه السلام دعا اوکړه اې زما پروردګار زما قوم زما تکذیب اوکړو نو ته زما او ددوی په مینځ کښې (قطعی) فیصله اوکړې او ما ته او کوم چې ما سره ایمان والا خلق دی نجات ورکړې الله تعالی اوفرمائي چې مونږ هغه ته او دغه ملګرو ته په ډکه کشتئ کښې نجات ورکړو، یعنی د انسانانو، حیواناتو او مارانو نه ډکه کشتئ کښې مو هغوی ته دنجات ورکولو نه پس دغه د قوم باقي خلق غرق کړل یقینًا په دې کښې ډیر لوئې عبرت دې او په دوی کښې اکثر خلق ایمان راوړونکی نه وو او بې شکه ستا پروردګار زبردست رحم کونکې دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** بِتَكْذِيبِهِمْ لَهُ..الخ: ددې اضافې مقصد ددې شبهې توجیه د چې د نوح دپاره مُرْسَلِين د جمعې صیغه راوړلو څه مقصد دې حالانکه هغه یو فرد وو؟ شارح ددې دوه جوابونه ورکړی دی، د اول جواب خلاصه داد چې ټول انبیاء او مرسلین په اصول دین یعنی توحید اورسالت، بعث بعدالموت اوپه آخرت کښې جزا اوسزا دغسې نورو بنیادی أمورو کښې متفق وی، لهذا د یو تکذیب به دټولو تکذیب شمارلې شی. أَوْلِأَنَّهُ سره دویم جواب دې، ددې خلاصه داد چې دحضرت نوح عليه السلام د رسالت زمانه ډیره اوږد د عام طورباندې دومره موده کښې ډیر رسولان مبعوث کیدې شو خو صرف حضرت نوح عليه السلام په دې اوږد زمانه کښې د رسالت فرائض پوره کړل څکه خو وئیلې شی چه هغه د ډیرو رسولانو قائم مقام دې لکه بجو (غوښه خوړونکې) څناور ته د ډیرو افرادو برابر دخوراک خوړلو په وجه حضاجر وئیلې شی.

**قوله:** تَأْنِيثُ قَوْمٍ: په كَذَّبَتْ قَوْمُ نُوحٍ کښې قوم مؤنث منلو سره ئې فعل مؤنث راوړې دې څکه چه لفظ د قوم دخپلې معنی په اعتبار سره مؤنث اود لفظ په اعتبار سره مذکر دې، د قوم تصغیر قُوَيْمَةٌ راځی، ددې نه هم معلومیږی چه لفظ قوم د معنی په اعتبارسره مؤنث دې، هم دا حال درهغه جمعې دې چې دغې واحد نشته لکه رَهْطٌ وَنَفَرٌ هم دا وجه د چې ضمائر مثلاً لَهُمْ، أَخُوهُمْ، تَتَّقُونَ کښې د معنی رعایت شوې دې.

**قوله:** مِنْ أَجْرٍ: من په مفعول باندې زائد دې.

قوله: أتباعك: مبتدأ د أرذلونَ خبر، دا جمله د أنؤمنُ د ضميرنه حال دي، مفسّر علام چې چرته وفي قراءة آخرى فرمائي ددې نه قرا ءت سبعه مراد وى، خو ددوى دا طريقه اغلبى د كُلي نه د، ځكه چه دلته أتباعك والا قرا ءت سبعه نه دي دا قرا ءت د يعقوب دې د عشره نه.
الحُلة د سائلة جمع د، بې حيثيته يا كم حيثيته خلقو ته وائي. الحائك (جولا، تهان جورونكي) قال في القاموس، حاك الثوب حوكًا وحياكًا نسجه فهو حائك، الأساكفة جمع د إسكاف د كفش دوز (يعنى موچى).
قوله: وَمَا عِلۡمِي: په دې كښې دوه صورتونه دى اول ما استفهاميه انكاريه مبتدأ او علمى خبر، او بَاد علمى سره متعلق د تقدير د عبارت دادې أيّ شيئ علمي؟ دويم صورت مَانافيه د په دې صورت كښې به هم بَاد علمى سره متعلق وى، مفسّر علام أيّ علم لي وئيلو سره اول صورت طرف ته اشاره كړې د. د علمي اصل عِلمُنِي دې تخفيفًا حذف كړې شوې دې
قوله: أي أحكمُ: ددې عبارت د اضافه كولو مقصد دا ښودل دى چې فَافۡتَحۡ د انفتاحة نه مشتق دې، ددې معنى حكومت د، الفتاح أي الحاكم، بفتح المغلق من الأمور.

**[اياتونه: ۱۲۳ - ۱۴۰]**

(كذبت عاد المرسلين) (إذ قال لهم أخوهم هود ألا تتقون) (إني لكم رسول أمين) (فاتقوا الله وأطيعون) (وَمَا أَسۡأَلُكُمۡ عَلَيۡهِ مِنۡ أَجۡرٍۚ إِنۡ) مَا (أجري إلا على رب العالمين) (أَتَبۡنُونَ بِكُلِّ رِيعٍ) مَكَان مُرۡتَفِع (آيَةً) بِنَاء عَلَمًا لِلۡمَارَّةِ (تَعۡبَثُونَ) بِمَنۡ يَمُرّ بِكُمۡ وَتَسۡخَرُونَ منهم والجملة حال من ضمير تبنون (وَتَتَّخِذُونَ مَصَانِعَ) لِلۡمَاءِ تَحۡت الۡأَرۡض (لَعَلَّكُمۡ) كَأَنَّكُمۡ (تَخۡلُدُونَ) فِيهَا لَا تَمُوتُونَ (وَإِذَا بَطَشۡتُمۡ) بِضَرۡبٍ أَوۡ قَتۡل (بَطَشۡتُمۡ جَبَّارِينَ) مِنۡ غَيۡر رَأۡفَة (فَاتَّقُوا اللَّهَ) فِي ذَلِكَ (وَأَطِيعُونِ) فِيمَا أَمَرۡتُكُمۡ بِهِ (واتقوا الذي أمدكم) انعم عليكم (بما تعلمون) (أمدكم بأنعام وبنين) (وَجَنَّاتٍ) بَسَاتِين (وَعُيُونٍ) أَنۡهَار (إِنِّي أَخَافُ عَلَيۡكُمۡ عَذَابَ يَوۡمٍ عَظِيمٍ) فِي الدُّنۡيَا وَالۡآخِرَة إِنۡ عَصَيۡتُمُونِي (قَالُوا سَوَاءٌ عَلَيۡنَا) مُسۡتَوٍ عِنۡدنَا (أَوَعَظۡتَ أَمۡ لَمۡ تَكُنۡ مِنَ الۡوَاعِظِينَ) أَصۡلًا أَيۡ لَا نَرۡعَوِي لِوَعۡظِك (إِنۡ) مَا (هَذَا) الَّذِي خَوَّفۡتنَا بِهِ (إلا خلق الأولين) اختلافهم وَكَذِبهمۡ وَفِي قِرَاءَة بِضَمِّ الۡخَاء وَاللَّام أَيۡ مَا هَذَا الَّذِي نَحۡنُ عَلَيۡهِ مِنۡ إنكار البعث إلا خلق الأولين أي طبيعتهم وعادتهم (وما نحن بمعذبين) (فكذبوه) بالعذاب (فأهلكناهم) في الدنيا بالريح (إن في ذلك لآية وماكان أكثرهم مؤمنين) (وإن ربك لهو العزيز الرحيم)

ترجمه: عاديانو هم پيغمبران دروغژن اوګڼل كله چه دوى ته د دوى رور هود اووئيل آيا تاسو نه يريږئ؟ زه ستاسو امانتدار پيغمبر يم پس د الله نه اويريږئ او زما خبره اومنئ زه ستاسو نه په دې باندې هيڅ اجرت نه غوارم زما اجر خو د رب العالمين په ذمه دې آيا تاسو په هر اوچت ځائې باندې عمارت جوړوئ يعنى مسافرو د پاره نښه حال دادې چه تاسو ستا سو په خوا كښې تيريدونكو

سره چهير (لولبې) کوئ او دغوی سره مسخرې کوئ (تعبثون) جمله د تبنون د ضمير نه حال دې او د زمکې لاندې د اوبو ټينکئ جوړوئ گويا چې دنيا کښې به تاسو هميشه اوسيږئ مړه کيږئ به نه اوکله چې تاسو په چا باندې د وهلو او قتل په ذريعه نيول کوئ نو بغير د نرمئ نه د ظالمانو په شان نيول کوئ په دې معامله کښې د الله نه اوويريږئ او زما خبره اومنئ د کوم خيز چې زه تاسو ته حکم کوم اودغه نه اوويريږئ چاچه ستاسو مدد اوکړو يعنی په تاسو باندې ئې ددې خيزونو انعام اوفرمائيلو څاروو سره اوځامنو سره او باغونو سره او چينو سره يعنی نهرونو سره ماته خو ستاسو په باره کښې په دنيا او آخرت کښې د لوئې ورځې د عذاب ويره ده که چرې تاسو زما نافرمانی اوکړئ نو هغه خلقو اوويئل زمونږ په نزد ټول برابر دی که ته نصيحت اوکړې يا بالکل نصيحت اونه کړې، مونږ ستا د نصيحت په وجه نه منع کيږو دا خبره د کوم نه چه ته مونږ يروې هسې د رومبنو خلقو دځانه جوړه کړې خبره ده او دغوی دروغ دی او په يو قراءت کښې د خا او لام په ضمې سره دې، يعنی هغه عقيد چې په هغې باندې مونږ قائم يو هغه دا چې د مرگ نه پس ژوندی کيدل نشته، د تيرو شوو خلقو عادت او دغوی طبيعت دې او مونږ ته به هيڅ چرې عذاب نه شی راکولې نو دغه خلقو د عذاب تکذيب اوکړو نو مونږ هغوی د سيلئ په ذريعه په دنيا کښې هلاک کړل، بې شکه په دې کښې نښه ده او په دوی کښې ډير خلق منونکی نه وو او بې شکه ستا رب غالب مهربان دې.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** ﴿كَذَّبَتْ عَادٌ﴾ عاد د قبيله په معنی کښې د کيدو په وجه مؤنث دې په دې وجه فعل مؤنث راوړلې شو، عاد د قوم عاد د لړې نيکه نوم دې هم هغه طرف ته دا قوم منسوب دې، عاد د حضرت نوح عليه السلام د ځوی د سام نسل نه وو. (جمل)

**قوله:** ﴿إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ هُودٌ﴾ هود عليه السلام دغوی د نسل او خاندان سره تعلق ساتلو په دې وجه ئې دوی ته أخوهم وئيلی دی، حضرت هود عليه السلام ډير حسين اوجميل او د پيشې په اعتبار سره تاجر وو، دحضرت آدم عليه السلام سره ئې ډير زيات مشابهت وو، څلورسوه شپيته کاله ژوندې وو. (جمل)

**قوله:** ﴿بِكُلِّ رِيعٍ﴾ کسره او فتحه دواړه صحيح دی اوچت ځائې ته وائی لکه غر، غونډئ وغيره. ابوعبيد وئيلی دی لارې ته وائی أتبنون بكل ريع کښې استفهام د توبيخ دپاره دې او محل د توبيخ تعبثون جمله حاليه ده، مطلب دادې چه په اوچت ځائې باندې عمارت جوړول مذموم نه دی بلکه بې فائدې اوفضول جوړول مذموم دی، د وتتخذون عطف په تبنون باندې دې او دغه شان د وَإِذَا بَطَشْتُمْ، مطلب دادې چه د قوم هود په دريو مذموم خبرو باندې توبيخ (رټنه) شوې ده.

قوله: (فَاتَّقُوا اللَّهَ) فِي ذَٰلِكَ..إلخ: هم دغه دريو خبرو طرف ته اشاره د ① البناء ② الاتخاذ المذكور ③ التجبر

قوله: (أمدكم بانعام وبنين) په دې کښې دوه صورتونه دی ① جمله ثانيه د جمله اولى بيان دې ② بانعام د بما تعلمون د فعل اعادې سره بدل دې لکه په اتبعوا المرسلين اتبعوا من لا يسالكم اجرا کښې او بعضې حضرات ئې د بدل په ځائې تکرار ګرځوي.

قوله: سواءٌ علينا: خبر مقدم دې او أوعظت په تاويل د مفرد مبتدأ مؤخر دے أى الوعظ وعدمه سواءٌ علينا. نرعوی د لارعواءٌ نه په معنى د بازماندن (منع کيدو) إِلَّا خُلُقُ الْأَوَّلِينَ دا د ماقبل علت دې مطلب دادې چې مونږ ستا وعظ او نصيحت ځکه نه قبلوو چې دا د تيرو شوو خلقو د خان نه جوړې شوې خبرې دی.

**[اياتونه: ۱٤۱ - ۱۵۹]**

(كذبت ثمود المرسلين) (إذ قال لهم أخوهم صالح ألا تتقون) (إني لكم رسول أمين) (فاتقوا الله وأطيعون) (وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ إِنْ) ما (أجري إلا على رب العالمين) (أتتركون في ما ها هنا) من الخيرات (آمنين) (في جنات وعيون) (وزروع وَنَخْلٍ طَلْعُهَا هَضِيمٌ) لطيف لين (وَتَنْحِتُونَ من الجبال بيوتاً فرهين) بَطِرِينَ وَفِي قِرَاءَةٍ فَارِهِينَ حَاذِقِينَ (فاتقوا الله وأطيعون) فيما امرتكم به (ولا تطيعوا أمر المسرفين) (الَّذِينَ يُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ) بِالْمَعَاصِي (وَلَا يُصْلِحُونَ) بطاعة الله (قَالُوا إِنَّمَا أَنْتَ مِنَ الْمُسَحَّرِينَ) الَّذِينَ سَحَرُوا كَثِيرًا حَتَّى غَلَبَ عَلَى عَقْلِهِمْ (مَا أَنْتَ) أَيْضًا (إِلَّا بَشَرٌ مِثْلُنَا فَأْتِ بِآيَةٍ إِنْ كُنْتَ مِنَ الصَّادِقِينَ) فِي رِسَالَتِك (قَالَ هَذِهِ نَاقَةٌ لَهَا شِرْبٌ) نَصِيبٌ مِنَ الماء (ولكم شرب يوم معلوم) (وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوءٍ فَيَأْخُذَكُمْ عَذَابُ يَوْمٍ عَظِيمٍ) بعظم العذاب (فَعَقَرُوهَا) عَقَرَهَا بَعْضُهُمْ بِرِضَاهُمْ (فَأَصْبَحُوا نَادِمِينَ) عَلَى عقرها (فأخذهم العذاب) الموعود به فهلكوا (إن في ذلك لآية وما كان أكثرهم مؤمنين) (وان ربك هو العزيز الرحيم)

ترجمه: ثمود (هم) پيغمبرانو لره دروغژن اوګڼل کله چه د هغوى ورور صالح هغوى ته اووئيل چه ستاسو (د خدائ نه) ويره نه کيږى؟ زه ستاسو امانت دار پيغمبريم نو تاسو د الله نه اوويريږئ اوزما وينا اومنئ، اوزه ستاسو نه په دې باندې هيڅ بدله نه غوارم، زما بدله خو په رب العالمين باندې ده، آيا تاسو به په دې (د راحت په شيزونو کښې) په بې فکرئ سره پريښودلې شئ کوم چه دلته (په دنيا کښې) موجود دی، (يعنى) په باغونو او چينو او پټو او کجوروکښې چه د هغې غونچې نرمې اونازکې دی (ياد کوموغونچې چه يوبل سره پيوسته دی) او تاسو غرونه تراشئ او په فخر سره کورونه جوړوئ، (په يوقراءت کښې فارهين دې يعنى په ماهرانه اندازسره) نو د الله نه اوويريږئ او (د کوم کار د پاره چه زه تاسو ته وينا کوم په هغې کښې) زما خبره اومنئ او د بې باکه د حدنه تيرى کوونکو خبره مه منئ کوم چه (د نافرمانئ په ذريعه) په ملک کښې فساد راپورته

کوی،اود الله تعالی اطاعت کولو سره اصلاح نه کوی،نودې خلقواووئیل چه په تاباندې خوچادیرغټ جادوکړې دې،(یعنی تاسوپه هغوخلقوکښې یې چه په کوموباندې زبردست جادوشوې وی تردې پورې چه عقل ئې مغلوب شوې وی)ته هم زمونږپه شان یوانسان یې لهٰذا که ته (د پیغمبرئ په خپله دعوی کښې)رېښتونې یې نوځه معجزه وړاندې کړه (صالح علیه السلام)اوفرمائیل چه دایوه اوښه د د اوبود یوې ورځې واریه ددې وی او د یوه ورځ د اوبوبه ستاسودپاره مقرره وی، (اوخبرداراوسئ)په بدنیت سره دې ته لاس اونه لګوئ ګنې نودیوې ډیرې درنې ورځې عذاب به تاسولره په خپله نیوکه کښې را اونیسی(د عذاب د درندوالی په وجه) بیا هغوی دا (اوښه) هلاکه کړه بیاهغوی(د هغې په هلاکولو)پښیمان شو نوهغوی لره موعودعذاب را اونیول،(چه دغې په نتیجه کښې هلاک شول)یقینا په دې (واقعه)کښې غټ عبرت دې اوپه هغوی کښې ډیرخلقوایمان رانه وړو او بې شکه ستارب ډیرزوره ور،ډیرمهربان دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: کذبت ثمود. کذّبت فعل مؤنث راوړلې شوځکه چه ثمود د قبیلې په معنی کښې دې. ثمود'د قوم ثمود د مشرنیکهٔ نوم دې هم د هغه په نامه د قوم نوم کیښودلې شوې دې،نسب ئې داسې دې ثمودبن عبیدبن عوص بن عاد بن ارم بن سام بن نوح، ثمود د حضرت صالح علیه السلام امت دې حضرت صالح علیه السلام دوه سوه اتیاکاله عمرموندلې وو د حضرت صالح اوحضرت هودعلیهما السلام ترمینځه سل کاله وقفه د. (حاشیه جلالین)

**قوله**: فیماههنامن الخیرههنااى فى الدنیا،من الخیر،د مَابیان دې اوددې نه مراد د دنیاراحت اود آرام سامان دې، آمنین،د تترکون د ضمیرفاعل نه حال دې.

**قوله**: فی جنّٰت.الخ داد اعادې دجارسره د فیماههنانه د تفصیل دپاره بدل دې.

**قوله**: طلعها طلع ابتداء رانښکاره کیدونکې غونچه،بیابلح بیابسربیارطب بیاتمر،هضیم نرم نازک،

**قوله**: الذین یفسدون فی الارض: د مسرفین صفت کاشفه دې ځکه چه دلته د دمسرفین معروفه معنی نه د مراد.

[ایاتونه:۱۶۰-۱۷۵]

(کذبت قوم لوط المرسلین) (إذ قال لهم أخوهم لوط ألا تتقون) (إنی لکم رسول أمین) (فاتقوا الله وأطیعون)(وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ إِنْ) ما (أجري إلا على رب العالمين) (أتأتون الذكران من العالمين) الناس(وَتَذَرُونَ مَا خَلَقَ لَكُمْ رَبُّكُمْ مِنْ أَزْوَاجِكُمْ أَقْبَالِهِنّ (بَلْ أَنْتُمْ قَوْمٌ عَادُونَ) متجاوزون الحلال إلى الحرام (قَالُوا لَئِنْ لَمْ تَنْتَهِ يَا لُوطُ) عن إنكارك علينا (لَتَكُونَنَّ مِنَ الْمُخْرَجِينَ) من بلدتنا (قال) لوط (إنّي لِعَمَلِكُمْ مِنَ الْقَالِينَ) المبغضين (رَبِّ نَجِّنِي وَأَهْلِي مِمَّا يَعْمَلُونَ) أي من عذابه (فنجيناه وأهله أجمعين) (إلا

عَجُوزًا امرأته (فِى الْغَابِرِينَ) الباقين أهلكناها (ثُمَّ دَمَّرْنَا الْآخَرِينَ) اهلكناهم (وأمطرنا عليهم مطرا) حجارة من جملة الإ هلاك (فساء مطر المنذرين) مطرهم (إن فى ذلك لآية وما كان أكثرهم مؤمنين) (وإن ربك لهو العزيز الرحيم)

ترجمه: قوم لوط (هم) پیغمبرانو لره دروغژن اوګڼل کله چه د هغوی ورور لوط عليه السلام هغوی ته اووئیل چه آیاتاسو (د الله نه) نه یرېږئ ؟ زه ستاسو امانت دار پیغمبریم نو تاسو د الله نه اویرېږئ ازما اطاعت اوکړئ اوزه ستاسونه په دې باندې هیڅ صله (بدله) نه غوارم زما صله خود رب العالمین په ذمه ده، آیاتاسو د اهل عالم (یعنی انسانانو) نه د سړو سره شهوت پوره کوئ ؟ او ستاسو د ببیانو چه کوم ځیز (یعنی د هغوی شرمګاهونه) ستاسو رب ستاسو دپاره پیدا (حلال کړی دی) نوهغه مو پرېښی دی، (د خپلو ببیانو شرمګاهونه تاسو پرېښې دی اود نارینؤنه شهوت پوره کوئ، د اتفسیر او ترجمه به په هغه صورت کښې وی چه مِن د تبغیض دپاره اومنلې شی، اوکه مِن د بیان دپاره شی نو مِن أزواجکم به د مَا بیان شی. مطلب به داشی چه الله تعالی کوم ځیز یعنی ښځه ستاسو دپاره جائزه کړې د هغه تاسو پرېښې د اود نارینؤنه شهوت پوره کوئ کوم چه حرام دې. )بلکه تاسو د حد (یعنی د حلالونه حرامو طرف ته تجاوز کوؤنکی یئ، (د قوم) خلقو جواب ورکړو، اې لوط که ته (په مونږ باندې د انکار کولونه) منع نه شوې نو یې شکه (زمونږ د ښارنه) به اوویستلې شې (حضرت لوط عليه السلام) ځواب ورکړو چه زه ستاسو د حرکت ډیرناخوښ یم، اې زما پروردګاره ماا وزما اهل ته ددوی د عملونو (د عذاب نه) خلاصې راکړه نو مونږ د ته اود د ټولو متعلقینو ته خلاصې ورکړو سیوا د یوې بوډۍ نه (کومه چه دد ښځه وه) په شاته پاتې کیدونکو کښې ایساره شوه کوم چه مونږ هلاک کړل، بیا مونږ نورټول (هم) هلاک کړل بیا مونږ په هغوی باندې د یو خاص قسم (یعنی د کاڼړو) باران را اوورولو (منجمله د هلاکولو د طریقونه) نو ډیرېد باران وو کوم چه په هغه خلقو باندې را اوورېدو کوم چه یرولې شوی وو بلاشبه په دې کښې عبرت دې او په دوې کښې زیات خلق ایمان نه راوړی او یې شکه ستارب د ډیر غالب رحمت والا دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: أخوهم لوط: د لوط عليه السلام خود قوم لوط سره نه نسبی تعلق وو اونه دینی مشارکت، ځکه چه حضرت لوط عليه السلام د حضرت ابراهیم عليه السلام وراره وو، او د مشرق په ښارونو کښې د بابل اوسیدونکې وو، د حضرت ابراهیم عليه السلام سره ئې هجرت کړې وو او تشریف ئې راوړې وو، حضرت ابراهیم عليه السلام په شام کښې په خلیل مقام کښې قیام اوفرمائیلو او حضرت لوط عليه السلام ورسره نزدې یعنی د یوې ورځې په مسافت لرې په اهل سدوم کښې استوګنه اختیار کړه اود سخرګنې رشته ئې هم په دې خلقو کښې قائمه شوې وه په دې وجه حضرت لوط عليه السلام ته د دوی ورور اووئیلې شو.

**قوله**: ماخلق لكم: أي أحل لكم من أزواجكم،دا د مابيان دې، شارح علام د من أزواجكم تفسير په أقبالهنّ سره كولو كښې دوؤخبروته اشاره كړې د اوله خبره داچه په ماخلق لكم كښې د مارعايت مقصوددې، كۀ د ماپه ځائ من وې نوددې تفسيرمن أزواجكم كافى وو،د أقبالهنّ حاجت نه وو،دويم داچه په أقبالهن سره ئې اشاره اوكړه چه ستاسو د بيبيانو د حلال والى مطلب دادې چه د هغوى "قبل" ستاسودپاره حلال دې او"دبر"نه دې حلال،ځکه چه قبل موضع دحرث دې نه چه دبرځکه چه دبر موضع دفرث دې.

**قوله**: عادون دا د عادجمع د معنى ئې د د حدنه وړاندې والې كوؤنكې،يعنى حق پرېښودونكې باطل اختيارؤنكې اوحلال پرېښودونكې اوحرام اختيارؤنكې،

**قوله**: من القالين قالين د قالى جمع د اوماد ئې قلو ياقلى د ،ددې په معنى كښې د نفرت اود بې زارئ مفهوم هم شامل دې،اصل معنى ئې د غورځول ورتول،من القالين د قال محذوف سره متعلق دې اود إنّ خبردې.

**قوله**: من عذابه:دا د مضاف محذوف طرف ته اشاره د أي من عذاب ممايعملون،ځکه چه د دوى په شان د عملونونه د بچ كولوهيڅ مطلب نشته،ځکه چه پيغمبرخوهسې هم دداسې قبيحوعملونونه محفوظ وى.مطلب دادې چه د دوى د بدوعملونوپه بدل كښې چه كوم عذاب په دوى باندې نازليدونكې دې د هغې نه مااوزمامتعلقين بچ اوساته.

**قوله**: إلا عجوزا:دا لفظ په اهل كښې د شامليدو په وجه سره مستثنى متصل د ،اوپه دې اعتبارسره چه هغه د ايمان والؤنه نه وه اود حضرت لوط عليه السلام په حقيقت كښې اهل د ايمان والا وؤنوپه دې اعتبارسره دامستثنى منقطع د ،امرءته د عجوزا نه بدل دې د حضرت لوط عليه السلام د كافرې ښځې نوم واعله وو،اوپه تفسيرروح البيان كښې ئې نوم والهه ليكلې دې،د حضرت لوط عليه السلام يوه ښځه مؤمنه هم وه،كافره ښځه چونكه د قوم سره د يوفكر والا وه،اود هغوى په بې حيائى باندې خوشحاله وه په دې وجه هغه هم د قوم سره هلاكه شوه د حضرت لوط عليه السلام قوم د زمكې په التـه كولواود كاڼود باران په ورولواو د مختلفوعذابونو په ذريعه هلاک كړې شو.

**[اياتونه:۱۷۶ - ۱۹۱]**

(كَذَّبَ أَصْحَابُ الْأَيْكَةِ) وَفِي قِرَاءَة بِحَذْفِ الْهَمْزَة وَإِلْقَاء حَرَكَتهَا عَلَى اللَّام وَفَتْح الْهَاء هِيَ غيضة شجر قرب مدين (المرسلين) (إذ قال لهم شعيب) لم يقل لهم اخوهم لانه لم يكن منهم (ألا تتقون) (إني لكم رسول أمين) (فاتقوا الله وأطيعون) (وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ إِنْ) ما (أجري إلا على رب العالمين) (أَوْفُوا الْكَيْلَ) اتموه (وَلَا تَكُونُوا مِنَ الْمُخْسِرِينَ) الناقصين (وَزِنُوا بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيمِ) الميزان السوي (وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ أَشْيَاءَهُمْ) لا تنقصوهم من حقهم شيئا (وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ) بالقتل

زجره من غير بكسر المثلثة أفسد وَمُفسِدِينَ حال مؤكدة لمعنى عاملها ﴿واتقوا الذي خلقكم والجبلة﴾ الخليقة ﴿الأولين﴾ ﴿قالوا إنما أنت من المسحرين﴾ ﴿وَمَا أَنتَ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا وَإِنْ﴾ مخففة من الثقيلة واسمها محذوف أي أنه ﴿نظنك لمن الكاذبين﴾ ﴿فَأَسْقِطْ عَلَيْنَا كِسَفًا﴾ بسكون السين وفتحها قطعا ﴿مِّنَ السَّمَاءِ إِن كُنتَ مِنَ الصَّادِقِينَ﴾ في رسالتك ﴿قَالَ رَبِّي أَعْلَمُ بِمَا تَعْمَلُونَ﴾ فيجازيكم به ﴿فَكَذَّبُوهُ فَأَخَذَهُمْ عَذَابُ يَوْمِ الظُّلَّةِ﴾ هي سحابة أظلتهم بعد حر شديد أصابهم فأمطرت عليهم نارا فاحترقوا ﴿إنه كان عذاب يوم عظيم﴾ ﴿إن في ذلك لآية وماكان أكثرهم مؤمنين﴾ ﴿وإن ربك لهو العزيز الرحيم﴾

ترجمه: ايكه والو (هم) د رسولانو تكذيب اوكړو (په يو قراءت كښې د همزې په حذف سره او د ي د حركت لام ته وركولو سره او د ة په فتحې سره راغلې دې، ايكه د مدين سره نزدې د ونو يو بن وو.) كله چه هغوى ته حضرت شعيب عليه السلام اوفرمائيل (دلته ئې أخوهم اونه وئيلو څكه چه شعيب عليه السلام د دوى نه نه وو) آيا تاسو نه ويريږئ؟ زه تاسو د پاره امانت دار پيغمبر يم د الله نه يره اوكړئ او زما خبره اومنئ په دې باندې زه ستاسو نه څه بدله نه غواړم زما بدله خو د عالم په پروردګار باندې د ناپ پوره وركوئ او په كمى كوونكو كښې مه شامليږئ په صحيح تلې سره تول كوئ (داسې تله چه هغې كښې پاسنګ (فرق) نه وى) د خلقو په څيزونو كښې كمى مه كوئ، (يعنى د هغوى د حق نه هيڅ څيز مه كموئ) او په ملك كښې (د قتل او د اكو په ذريعه په سركشئ سره فساد خورولو سره مه ګرځئ (عثى د ث د كسره سره په معنى د افسد دې.
مفسدين د خپل عامل تعثوا نه معنى حال دې) د هغه نه يره اوكړئ چاچه تاسو او (نور) وړاندينې مخلوق پيدا كړې دې، دې خلقو اووئيل چه ته په هغه خلقو كښې ئې چه په چا باندې جادو شوې دې او ته خو بس زمونږ په شان انسان ئې او مونږ تا په دروغژنو كښې ګنړو، (دلته ان مخفف د مثقل نه راغلې دې او اسم ئې محذوف دې أى انه) نو كه ته (په خپله دعوى د رسالت كښې) رښتونې ئې نو په مونږ باندې د اسمان نه يوه ټكړه راوغورځوه. (كسفا د كاف په كسرې سره او د سين په سكون سره معنى ئې د ټكړه، شعيب عليه السلام اوفرمائيل زما رب ستاسو د عملونو نه خبر دې (نو هغه به تاسو ته د دې بدله دركوى) نو هغه خلقو د شعيب عليه السلام مسلسل تكذيب كولو نو دوى له د سورى والا د ورځې عذاب را اونيول، (هغه يوه وريځ وه، د سختې ګرمئ په دوپ كښې د مبتلا كيدونه پس په هغوى باندې سورې شوې وو، د هغې نه پس دغې وريځې په دوى باندې اور اوور ولو، چه د هغې په وجه هغوى اوسوزيدل او خاورې شول) بې شكه هغه د يوې لوئې ورځې عذاب وو بې شكه په دې كښې يوه لويه نخښه د اوپه دوى كښې زيات د ايمان والا نه وو او يقينا ستا رب د غلبې والا مهربانئ والا دې.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

قوله: أيكه په يو قراءت كښې ليكة هم دې. أيكه ګنړ ځنګل ته وئيل كيږى د اصحاب الايكه نه مراد د حضرت شعيب عليه السلام قوم او د مدين د طرفونو اوسيدونكى مراد دى. وئيل شوى

دی چه ایکه ګنړې ونې ته هم ونیل کیږی،غیضه د غین په فتحې سره ځنګل او دیږو بوټو ته ونیل کیږی،مدین د حضرت شعیب علیه السلام د کلی نوم دې،مدین بن ابراهیم علیه السلام دا کلې آباد کړې وو،په دې وجه هم دد په نوم سره یادیږی،مدین او د مصر ترمینځه د اتو ورځو مسافت دې.

**قوله:** مفسدين د تعثوا د معنی نه حال مؤکد دې،د حال او د ذوالحال لفظونه اګرچه مختلف دی لیکن معنی ئې یوه د،ځکه چه تعثوا د عثی نه مشتق دې او معنی ئې فساد کولو.

**قوله:** الجبلة او جبلّ دواړه د مخلوق په معنی دی،په یوبل ځائ کښې ئې فرمائیلی دی ﴿وَلَقَدْ اَضَلَّ مِنْكُمْ جِبِلًّا كَثِيرًا﴾ دې (شیطان) په تاسو کښې دیر خلق بې لارې کړل.

**قوله:** فأسقط ځنو دا جمله د ان كنت من الصادقين دپاره جوابِ مقدم ګرځولې دې او ځنو حضراتو جواب د شرط محذوف ګرځولې دې په کوم باندې چه جمله د (فأسقط) دلالت کوی.

[ایاتونه: ۱۹۲ - ۲۲۷]

(وإنه) اي القرآن (لتنزيل رب العالمين) (نزل به الروح الأمين) جبريل (على قلبك لتكون من المنذرين) (بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِينٍ) بَيِّن وَفِي قِرَاءَة بِتَشْدِيدِ نَزَّلَ وَنَصْب الرُّوح وَالْفَاعِل اللّٰه (وَإِنَّهُ) ذِكْر الْقُرآن الْمُنَزَّل عَلَى مُحَمَّد (لَفِي زُبُرِ) كتب (الأولين) كالتوراة والإنجيل (أولم يَكُنْ لَّهُمْ) لِكُفَّار مَكَّة (آيَةً) عَلَى ذَلِكَ (أَنْ يَعْلَمَهُ عُلَمَاءُ بَنِي إِسْرَائِيلَ) كَعَبْدِ اللّٰه بن سلام واصحابه من الذين آمنوا فإنهم يخبرون بذلك وَيَكُنْ بالتحتانية وَنَصْب آيَة وبالفوقانية وَرَفْع آيَة (وَلَوْ نَزَّلْنَاهُ عَلَى بَعْضِ الْأَعْجَمِينَ) جَمْع أَعْجَم (فَقَرَأَهُ عَلَيْهِمْ) كُفَّار مَكَّة (مَا كَانُوا بِهِ مُؤْمِنِينَ) أَنَفَة مِنْ اتِّبَاعه ٢٠ - (كَذَٰلِكَ) أَيْ مِثْل إِدْخَالنَا التَّكْذِيب بِهِ بِقِرَاءَةِ الْأَعْجَمِيّ (سَلَكْنَاهُ) أَدْخَلْنَا التَّكْذِيب بِهِ (فِي قُلُوبِ الْمُجْرِمِينَ) كفار مكة بقراءة النبي (لا يؤمنون به حتى يروا العذاب الأليم) (فيأتيهم بغتة وهم لا يشعرون) (فَيَقُولُوا هَلْ نَحْنُ مُنْظَرُونَ) لِنُؤْمِن فَيُقَال لَهُمْ لا فقالوا متى هذا العذاب قال تعالى (أفبعذابنا يستعجلون) (أفرأيت) اخبرني (إن متعناهم سنين) (ثُمَّ جَاءَهُمْ مَا كَانُوا يُوعَدُونَ) من العذاب (مَا) اسْتِفْهَامِيَّة بِمَعْنَى أَيّ شَيْء (أَغْنَىٰ عَنْهُمْ مَا كَانُوا يُمَتَّعُونَ) فِي دَفْع الْعَذَاب أَوْ تَخْفِيفه أَيْ لَمْ يُغْنِ (وَمَا أَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ إِلَّا لَهَا مُنْذِرُونَ) رُسُل تُنْذِر أَهْلهَا (ذِكْرَىٰ) عِظَة لَهُمْ (وَمَا كُنَّا ظَالِمِينَ) فِي إِهْلَاكهمْ بَعْد إِنْذَارهمْ وَنَزَلَ رَدًّا لِقَوْلِ الْمُشْرِكِينَ (وَمَا تَنَزَّلَتْ بِهِ) بالقرآن (الشَّيَاطِينُ) (وَمَا يَنْبَغِي) يَصْلُح (لَهُمْ) أَنْ يَنْزِلُوا بِهِ (وَمَا يَسْتَطِيعُونَ) ذَلِكَ (إِنَّهُمْ عَنِ السَّمْعِ) لِكَلَامِ الْمَلَائِكَة (لَمَعْزُولُونَ) بِالشُّهُبِ (فَلَا تَدْعُ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ فَتَكُونَ مِنَ الْمُعَذَّبِينَ) إِنْ فَعَلْت ذَلِكَ الَّذِي دَعَوْك إِلَيْهِ (وَأَنْذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ) وَهُمْ بَنُو هَاشِم وَبَنُو الْمُطَّلِب وَقَدْ أَنْذَرَهُمْ جِهَارًا رَوَاهُ الْبُخَارِيّ وَمُسْلِم (وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ) أَلِنْ جَانِبك (لِمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ) الموحدين (فَإِنْ عَصَوْكَ) عشيرتك (فَقُلْ) لَهُمْ (إِنِّي بَرِيءٌ مِمَّا تَعْمَلُونَ) مِنْ عِبَادَة غَيْر اللّٰه (وَتَوَكَّلْ) بِالْوَاوِ وَالْفَاء (عَلَى الْعَزِيزِ الرَّحِيمِ) اللّٰه أَيْ فَوِّضْ إِلَيْهِ جَمِيع أُمُورك (الَّذِي يَرَاكَ

حِينَ تَقُومُ إِلَى الصَّلَاةِ (وَتَقَلُّبَكَ) فِي أَرْكَانِ الصَّلَاةِ قَائِمًا وَقَاعِدًا وَرَاكِعًا وَسَاجِدًا (فِي السَّاجِدِينَ) الْمُصَلِّينَ (إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ) (هَلْ أُنَبِّئُكُمْ) يَا كُفَّارَ مَكَّةَ (عَلَى مَنْ تَنَزَّلُ الشَّيَاطِينُ) بِحَذْفِ إِحْدَى التَّائَيْنِ مِنَ الْأَصْلِ (تَنَزَّلُ عَلَى كُلِّ أَفَّاكٍ) كَذَّابٍ (أَثِيمٍ) فَاجِرٍ مِثْلِ مُسَيْلِمَةَ وَغَيْرِهِ مِنَ الْكَهَنَةِ (يُلْقُونَ) الشَّيَاطِينُ (السَّمْعَ) مَا سَمِعُوهُ مِنَ الْمَلَائِكَةِ إِلَى الْكَهَنَةِ (وَأَكْثَرُهُمْ كَاذِبُونَ) يَضُمُّونَ إِلَى الْمَسْمُوعِ كِذْبًا كَثِيرًا وَكَانَ هَذَا قَبْلَ أَنْ حُجِبَتِ الشَّيَاطِينُ عَنِ السَّمَاءِ (وَالشُّعَرَاءُ يَتَّبِعُهُمُ الْغَاوُونَ) فِي شِعْرِهِمْ فَيَقُولُونَ بِهِ وَيَرْوُونَهُ عَنْهُمْ فَهُمْ مَذْمُومُونَ (أَلَمْ تَرَ) تَعْلَمْ (أَنَّهُمْ فِي كُلِّ وَادٍ) مِنْ أَوْدِيَةِ الْكَلَامِ وَفُنُونِهِ (يَهِيمُونَ) يَمْضُونَ فَيُجَاوِزُونَ الْحَدَّ مَدْحًا وَهِجَاءً (وَأَنَّهُمْ يَقُولُونَ) فَعَلْنَا (مَا لَا يَفْعَلُونَ) يَكْذِبُونَ (إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ) مِنَ الشُّعَرَاءِ (وَذَكَرُوا اللَّهَ كَثِيرًا) لَمْ يَشْغَلْهُمُ الشِّعْرُ عَنِ الذِّكْرِ (وَانْتَصَرُوا) بِهَجْوِهِمُ الْكُفَّارَ (مِنْ بَعْدِ مَا ظُلِمُوا) بِهَجْوِ الْكُفَّارِ لَهُمْ فِي جُمْلَةِ الْمُؤْمِنِينَ فَلَيْسُوا مَذْمُومِينَ قَالَ اللَّهُ تَعَالَى (لَا يُحِبُّ اللَّهُ الْجَهْرَ بِالسُّوءِ مِنَ الْقَوْلِ إِلَّا مَنْ ظُلِمَ) وَقَالَ تَعَالَى (فَمَنِ اعْتَدَى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدَى عَلَيْكُمْ) (وَسَيَعْلَمُ الَّذِينَ ظَلَمُوا) مِنَ الشُّعَرَاءِ وَغَيْرِهِمْ (أَيَّ مُنْقَلَبٍ) مَرْجِعٍ (يَنْقَلِبُونَ) يَرْجِعُونَ بَعْدَ الْمَوْتِ

---

ترجمه: بې شکه دا (قرآن کریم) د رب العالمین نازل کړې شوې دې، دې لره روح الامین (یعنی جبرائیل ﷺ) ستا په زړه باندې رانازل کړې دې په صفاعربۍ ژبه کښې ددې دپاره چه ته په دارکوونکو کښې شې (اوپه یو قراءت کښې نزّل په تشدید سره اود روح په نصب سره راغلې دې اوفاعل ئې الله دې) اوبې شکه (په محمد ﷺ باندې د نازل شوی) قرآن خبر د پخوانو خلقو په کتابونو (لکه تورات او انجیل) کښې دې آیا د دوی دپاره د قرآن د صداقت دا نخښه کافی نه ده چه د بنی اسرائیلو علماء ئې هم پیژنی ؟ (لکه عبدالله بن سلام اود دغه ملګری چه ایمان ئې راوړې دې، هغوی ددې د حقانیت خبرورکوی اویکن په یاء سره او د آیة په نصب سره او په تا سره اود آیة په رفع سره) او که بالفرض دا قرآن مونږ په یو عجمی باندې نازل کړې وې او هغه دا قرآن د مکې کافرانو ته اوروَلی نو بیا به هم دې خلقو (دد د اتباع نه تکبر کولو په وجه) په د باندې ایمان نه وې راوړې، (اعجمین د اعجم جمع د) هم دغه شان (یعنی لکه څنګه چه د عجمی د قرامت په وجه د قرآن تکذیب مونږ ددوی په زړونو کښې داخل کړې دې) د مجرمانو (د کفار مکه) په زړونو کښې (د نبی د قراء ت په وجه هم) تکذیب داخل کړې دې، دا خلق به دې قرآن باندې ایمان نه راوړی تردې پورې چه دردناک عذاب اوګوری بیا هغه عذاب په دوی باندې ناڅاپه راشی اودوی ته ئې هیڅ خبرهم نه وی، بیا به وائی چه آیا مونږته به مهلت راکړې شی ؟ (ددې دپاره چه مونږ ایمان راوړو، نو دوی ته به جواب ورکړې شی چه نه دې خلقو پوښتنه اوکړه چه دا عذاب به کله راځی نو الله تعالی اوفرمائیل) آیا دا خلق زما عذاب په جلتۍ سره غواړی ؟ ښه دا اوښایۍ که مونږ دوی لره څو کاله هم فائد اخستو دپاره پریږدو بیا د هغې نه پس په دوی باندې دا عذاب راشی کوم چه دوی سره ئې وعد کړې شوې د نو هغه د کالونو خوشحالی به

(ددوی نه د عذاب د لري کولو یاد آسانولو دپاره) څه په کار راشي ؟او مونږ هیڅ یو کلی نه دی هلاک کړی مګر داچه د هغوی دپاره داروونکي (د اسې پیغمبران موجود وو چه هغوی به ئې) نصیحت په توګه یرول، (او د داروونکو نه پس د هغوی په هلاکولو کښې) مونږ ظالمان نه وو، (او د مشرکانو د خبرې د ردکولو دپاره داآیت نازل شو، یعنی) داقرآن شیطانانو نه دی راوړی اونه هغوی ددې قابل دی (چه داقرآن نازل کړی اوراتې وړی) اونه په هغوی کښې ددې مجال شته، (بلکه) بې شکه هغوی خو (د فرښتو د خبرو) اوریدونه هم محروم کړی شوی دی، (یعنی د شعلو په ذریعه را منع کړې شوی دی) نو ته د الله سره بل څوک مه راغواړه ګنې ته به د سزاموندونکونه شې (که څه ته هغه کاراوکړو (کوم طرف ته چه ته راغوښتل رابلې) اوته خپل نژدې خپلوان اوداړکړه (اوهغه بنوهاشم اوبنومطلب دی اوهغوی ئې په ښکاره اویره ول، ددې روایت بخاری اومسلم کړی دی) اوپه مؤمنینو (یعنی موحدینو) کښې چه کوم ستاتابعداری اختیارکړې د نوته د هغوی سره په نرمۍ (عاجزی) سره وراندې کیږه او (که ستا کورنۍ) ستانافرمانی کوی نوورته اوایه چه زه ستاسو د عملونو نه (یعنی د غیرالله د بندګۍ نه) بری یم اوپوره اعتمادپه غالب مهربان الله باندې ساته (وتوکّل په واو اوفاء دواړوسره دې یعنی خپل ټول کارونه هغه ته اوسپاره) کوم چه ستامانځۀ ته پاڅیدل او (د مانځۀ په ارکانو کښې) ستاناسته پاسته (یعنی قیام قعودرکوع اوسجد) په سجد کوونکو کښې (یعنی په مانځۀ کوونکو کښې) وینی بې شکه هغه اوریدونکې اوپوهه دې (اې د مکې کافرانو) آیازه تاسوته اوښایم چه شیطانان په کوم کس باندې راکوزیږی ؟(دلته اصل کښې به دوؤتاګانو کښې یوه تاء حذف شوې د، نوواوری چه شیطانان) په هردروغژن ګنهګارباندې راکوزیږی، (په فاجرباندې لکه په کاهنانو کښې مسیلمه کذاب وغیره، او دا شیطانان اوریدلې شوې خبره (یعنی کومه خبره چه د فرښتونه واوری کاهنانو ته ئې) القاء کوی اوپه دوی کښې زیات تردروغژن دی (په دې اوریدلې شوې خبره کښې ډیردروغ یوځائ کوی او داد شیطانانواسمان ته د ختلونه د بندیدونه وړاندې خبره د) اود شاعرانوتابعداری (د اهغوی په شعر کښې) بې لارې خلق کوی (نوهغوی شعرونه وائی اود شاعرانونه نقل کوی نوهم دادې مذموم اود مذمت قابل) آیاته نه پوهیږی چه داخلق (د کلام اوددې د اصنافو) په هره وادی کښې سردانه ګرځی (یعنی حیران ګرځی نوڅکه خوپه مدح اوهجوکښې د حدنه تیرې کوی (یعنی دروغ وائی) سیواد هغه (شاعرانو) نه چه ایمان لری اونیک عملونه کوی اوډیرالله لره یاد وی، (یعنی شعر هغوی لره د الله نه نه دی غافل کړی او (د کافرانو هجوکوی اود) خپل مظلوم والی انتقام اخلی (ددې کافرانوفی الجمله د مومنانو د هجوکولو په وجه لهذاداخلق د مذمت قابل نه دی، الله تعالی په بدئ سره آوازپورته کول نه خوښوی لیکن مظلوم ته اجازت دې نوچاچه په تاسوباندې ظلم کړی دې نوتاسوهم په هغوی باندې

دومره ظلم کولې شي) ونږدې د چه ظالمانو (دې شاعرانو وغیره) ته به معلومه شي چه (د مرګ نه پس به) کوم اړخ ته ګرځي (یعنی کومه ټکانه به ئې وي).

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: بلسان عربي: د به د ضمیرنه په اعاد د جارسره بدل دې اود المنذرین متعلق هم کیدې شي یعنی ددې دپاره چه ته د هغه پیغمبرانونه شې چه کوموپه عربۍ ژبه دار ورکړې دې اوزیرې ئې ورکړې دې، لکه هود ﷺ اوصالح ﷺ اوشعیب ﷺ اواسماعیل ﷺ.

قوله: أي ذکر القرآن: ددې عبارت د زیاتولومقصد د یوې شبهې جواب دې شبه داد چه د الله تعالی د قول "إنه لفی زبرالاولین" نه دامعلومیږي چه قرآن کریم په نفس نفیس سره په وړاندینوکتابونوکښې موجوددې حال دادې چه خبره داسې نه د؟

جواب: د جواب خلاصه داد چه قرآن کریم په نفس نفیس سره په وړاندینوکتابونوکښې موجودنه دې بلکه د قرآن کریم ذکراوصفت په کتب سابقه کښې موجوددې.

قوله: کعبدالله بن سلام واصحابه: د عبدالله بن سلام ﷺ ملګری کوم چه د یهودیت نه اسلام ته راغلی وؤنو د عبدالله بن سلام ﷺ نه علاوه څلورنورکسان وؤ (۱) اسد ﷺ (۲) اسید ﷺ (۳) ثعلبه ﷺ (۴) ابن یامین ﷺ، داپنځه کسان علماء یهودو وؤ، وروستوئې ایمان راوړې دې اوښه ایمان ئې راوړې دې.

قوله: یکن بالتحتانیة ونصب آیة: دا آیةً د یکن خبرمقدم دې اواسم ئې ان یعلمه دې اود آیة په رفع سره د تکن اسم دې اولهم ئې خبرمقدم دې او أن یعلمه د اسم نه بدل دې، که تکن تامه شي نو آیة ئې فاعل شي او أن یعلمه به د هغې نه بدل شي.

قوله: جمع أعجم: یعنی أعجمین د أعجم جمع د.

سوال: أفعل فعلاء جمع خوپه واو نون اویاء نون سره نه راځي لهٰذاد أعجم جمع أعجمین صحیح نه د؟

جواب: داپه اصل کښې اعجميّ دې اود نسبت والا یاء د تخفیف دپاره حذف کړې شوې د نوپه دې وجه د اعجميّ جمع په اعجمین سره صحیح د.

قوله: کذالك: دا د سلکنه دپاره معمول دې اوپه سلکنه کښې د ه ضمیرمرجع قرآن دې د مضاف په حذف سره، أي سلکنا تکذیبه.

قوله: أفرءیت: عطف په فیقولواباندې دې، په مینځ کښې جمله معترضه د.

قوله: إلا لها منذرون: داپوره جمله د قریة دپاره صفت دې اود قریة نه حال هم کیدې شي.

قوله: من قریة: دلته من په مفعول باندې زائد دې، اوداپه سابق کښې د نفی په وجه

جائزدي.

سوال: دلته د إلاّ د جملې نه ئې واو ولې پرېښودو حال دادې چه "وما أهلكنامن قرية الا ولهاكتاب معلوم" كښې واو موجوددې؟

جواب: اصل ترک د واؤ دې ځکه چه جمله د قرية صفت دې اود موصوف اود صفت ترمينځه د واؤ نه كيدل اصل دې اوكه چرته واؤ راؤړلې شي نود وصل صفت بالموصوف د تاكيدد پاره راؤړلې كيږي لكه "سبعة وثامنهم كلبهم" (جمل)

لها د محذوف سره متعلق د اوخبرمقدم دې اومنذرون ئې مبتدأ مؤخرد. مبتدأ اوخبردواړه جمله ياد قرية دپاره صفت دې ياترې حال دې، د خبر كيدوپه صورت كښې تقديرد عبارت به داسې شي قدانذراهلهامنذرون، اود حال كيدوپه صورت كښې به تقديرداسې شي الا كائناً لهامنذرون.

قوله: ذكرٰى :داخوياد منذرون د ضميرنه حال دې اى منذرون ذوى ذكرٰى، يامذكرين ذكرٰى، اوكۀ په خپل ظاهرباندې پاتې كړې شي نوداامبالغةً حمل شي، لكه زيدعدل، يا ذكرٰى منصوب دې د مصدريت په بناء، په دې صورت كښې منذرون د مذكّرون په معنى سره شي، تقديرد عبارت به داسې شي منذرون ذكرى اى تذكرة ذكرٰى د منذرون دپاره علت يعنى مفعول له كيدې شي اى تنذرهم لاجل تذكيرهم العواقب او ذكرٰى دمبتدأ محذوف د پاره خبرهم كيدې شي اى هٰذه ذكرٰى په داسې صورت كښې جمله معترضه شي.

قوله: ردّالقول المشركين: د قول مقوله محذوفه داوهغه داد انّ الشياطين يلقون القرآن اليه.

قوله: شهب: د شِهاب جمع د معنى ئې د، د اوريږک، مات شوې ستورې.

قوله: فتكون من المعذبين: داد شرط محذوف دپاره جزامقدمه د لكه څنګه چه شارح ورته په ان فعلت ذالک سره اشاره كړې د.

قوله: بالواووالفاء: يعنى په توكّل كښې دوه قراءته دى يوپه واؤسره بل په فاء سره، په واؤ سره د كيدلوپه صورت كښې په انذرباندې عطف شي اود فاء په صورت كښې د جواب شرط يعنى فقل انى برئ نه بدل واقع شي.

قوله: تقلبك: د يراک په كاف باندې عطف دې.

قوله: فى الساجدين: دلته فاء په معنى د مع د.

قوله: على من: تنزل پورې متعلق دې كۀ انبئكم دريو مفعولوته متعدى شي نوجمله د تنزل الشياطين به قائم مقام د دوؤمفعولوشي يعنى د ثانى اود ثالث، او اوكنې مفعول ضميرد كم دې، اوكۀ متعدى دوؤمفعولوته شي نوداجمله چه قائم مقام دمفعول ثانى شي.

قوله: مثل مسيلمه: د مسيلمه په مثال كنبې راوړل مناسب نه ښكارى ځكه چه اول خو مسيلمه دحضور ﷺ دبعثت به پس د نبوت دعوى اوكړه كوم وخت چه د شيطانانو اسمان ته ختل بندشوى وؤ، لهذاد ته د شيطانانو د اسمانى خبروور كول صحيح نه دى، دويمه خبره داد چه مسيلمه په كاهنانو كنبې نه وو بلكه هغه يو مفترى او كذاب وو نو لهذاد او مفسر علام من الكهنة وئيل تيك نه معلوميږى وغيره لكه سطيح دا يو كاهن وو، كاهن د راتلونكى وخت د خبرور كولو والا ته وائى، او عرّاف د تيرو وخت د اخبارو وئيلو والا ته وائى.

قوله: اى كفار مكة: دلته اى ندائيه هم كيدې شى لكه ځنګه چه ظاهره د او تفسيريه هم كيدې شى او په دې صورت كنبې مفسّر په انبئكم كنبې د كم ضميروى.

قوله: عليهم‌ون: د انّ خبر دې او فى كلّ واد دې سره متعلق دې.

قوله: الاالذين امنوا: داد مذمومون محذوف سابق نه استثناء ده.

## [۲۷] سورة النمل

سُورَةُ النَّمْلِ مَكِّيَّةٌ وَآيَاتُهَا ۹۳ او ۹٤ او ۹۵ آيَةً نَزَلَتْ بَعْدَ سُورَةِ الشعراء

سوره شعراء مكى دې خو "والشعراء" نه تر آخره پورې مدنى دې. اودا ۲۲۷ آيتونه دى.

[اياتونه: ۱-۱٤]

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿طس﴾ اللّٰهُ أَعْلَمُ بِمُرَادِهِ بِذٰلِكَ ﴿تِلْكَ﴾ هٰذِهِ الآيَاتُ ﴿آيَاتُ الْقُرْآنِ﴾ آيَاتٌ مِنْهُ ﴿وَكِتَابٍ مُبِينٍ﴾ مُظْهِرٍ لِلْحَقِّ مِنَ الْبَاطِلِ عَطْفٌ بِزِيَادَةِ صِفَةٍ هُوَ ﴿هُدًى﴾ هَادٍ مِنَ الضَّلَالَةِ ﴿وَبُشْرَىٰ لِلْمُؤْمِنِينَ﴾ الْمُصَدِّقِينَ بِهِ بِالْجَنَّةِ ﴿الَّذِينَ يُقِيمُونَ الصَّلَاةَ﴾ يَأْتُونَ بِهَا عَلَى وَجْهِهَا ﴿وَيُؤْتُونَ﴾ يُعْطُونَ ﴿الزَّكَاةَ وَهُمْ بِالْآخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ﴾ يعلمونها بالاستدلال واعيد هم لمّا فصل بينه وبين الخبر ﴿إِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ زَيَّنَّا لَهُمْ أَعْمَالَهُمْ﴾ الْقَبِيحَةَ بِتَرْكِيبِ الشَّهْوَةِ حَتّٰى رَأَوْهَا حَسَنَةً ﴿فَهُمْ يَعْمَهُونَ﴾ يَتَحَيَّرُونَ فِيهَا لِقُبْحِهَا عِنْدَنَا ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ لَهُمْ سُوءُ الْعَذَابِ﴾ أَشَدُّهُ فِي الدُّنْيَا الْقَتْلُ وَالْأَسْرُ ﴿وَهُمْ فِي الْآخِرَةِ هُمُ الْأَخْسَرُونَ﴾ لِمَصِيرِهِمْ إِلَى النَّارِ الْمُؤَبَّدَةِ عَلَيْهِمْ ﴿وَإِنَّكَ﴾ خِطَابٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿لَتُلَقَّى الْقُرْآنَ﴾ يُلْقَى عَلَيْكَ بِشِدَّةٍ ﴿مِنْ لَدُنْ﴾ مِنْ عِنْدِ ﴿حَكِيمٍ عَلِيمٍ﴾ فِي ذٰلِكَ اذْكُرْ ﴿إِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِأَهْلِهِ﴾ زَوْجَتِهِ عِنْدَ مَسِيرِهِ مِنْ مَدْيَنَ إِلَى مِصْرَ ﴿إِنِّي آنَسْتُ﴾ أَبْصَرْتُ مِنْ بَعِيدٍ ﴿نَارًا سَآتِيكُمْ مِنْهَا بِخَبَرٍ﴾ عَنْ حَالِ الطَّرِيقِ وَكَانَ قَدْ ضَلَّهَا ﴿أَوْ آتِيكُمْ بِشِهَابٍ قَبَسٍ﴾ بِالْإِضَافَةِ لِلْبَيَانِ وَتَرْكِهَا أَيْ شُعْلَةِ نَارٍ فِي رَأْسِ فَتِيلَةٍ أَوْ عُودٍ ﴿لَعَلَّكُمْ تَصْطَلُونَ﴾ وَالطَّاءُ بَدَلٌ مِنْ تَاءِ الْإِفْتِعَالِ مِنْ صَلِيَ بِالنَّارِ بِكَسْرِ اللَّامِ وَفَتْحِهَا تَسْتَدْفِئُونَ من البرد ﴿فَلَمَّا جَاءَهَا نُودِيَ﴾ أَيْ بِأَنْ ﴿بُورِكَ﴾ أَيْ بَارَكَ اللّٰهُ ﴿مَنْ فِي النَّارِ﴾ أَيْ مُوسَى ﴿وَمَنْ حَوْلَهَا﴾ أَيِ الْمَلَائِكَةُ أَوِ الْعَكْسُ وَبَارَكَ يَتَعَدَّى بِنَفْسِهِ وَبِالْحَرْفِ وَيُقَدَّرُ بَعْدَ فِي مَكَانٍ ﴿وَسُبْحَانَ اللّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ مِنْ جُمْلَةِ مَا نُودِيَ وَمَعْنَاهُ تَنْزِيهُ اللّٰهِ مِنَ السُّوءِ ﴿يَا مُوسَىٰ إِنَّهُ﴾ أَيِ الشَّأْنُ ﴿أَنَا اللّٰهُ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾ ﴿وَأَلْقِ عَصَاكَ﴾ فَأَلْقَاهَا ﴿فَلَمَّا رَآهَا تَهْتَزُّ﴾ تَتَحَرَّكُ

(كَأَنَّهَا جَانٌّ) حَيَّة خفيفة (وَلَّى مُدْبِرًا وَلَمْ يُعَقِّبْ) يرجع قال تعالى (يَا مُوسَى لَا تَخَفْ) مِنْهَا (إِنِّي لَا يَخَافُ لَدَيَّ) عِنْدِي (الْمُرْسَلُونَ) مِنْ حَيَّة وَغَيْرِهَا (إِلَّا) لَكِنْ (مَنْ ظَلَمَ) نَفْسه (ثُمَّ بَدَّلَ حُسْنًا) أتاه (بَعْدَ سُوءٍ) أي تاب (فَإِنِّي غَفُورٌ رَحِيمٌ) أقبل التوبة وَأغفر له (وَأَدْخِلْ يَدَكَ فِي جَيْبِكَ) طَوْق قميصك (تَخْرُجْ) خِلَاف لَوْنِهَا مِنَ الأدمة (بَيْضَاءَ مِنْ غَيْرِ سُوءٍ) بَرَص لَهَا شُعَاع يُغْشِي الْبَصَر آية (فِي تِسْعِ آيَاتٍ) مرسلا بها (إِلَى فِرْعَوْنَ وَقَوْمِهِ إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمًا فَاسِقِينَ) (فَلَمَّا جَاءَتْهُمْ آيَاتُنَا مُبْصِرَةً) مُضِيئَة وَاضِحَة (قَالُوا هَذَا سِحْرٌ مُبِينٌ) بين ظاهر (وَجَحَدُوا بِهَا) لَمْ يُقِرُّوا (وَ) قد (اسْتَيْقَنَتْهَا أَنْفُسُهُمْ) أَيْ تَيَقَّنُوا أَنَّهَا مِنْ عِنْدِ اللهِ (ظُلْمًا وَعُلُوًّا) تَكَبُّرًا عَنِ الإِيمَان بِمَا جَاءَ بِهِ مُوسَى رَاجِع إِلَى الْجَحْد (فَانْظُرْ) يَا مُحَمَّد (كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِينَ) الَّتِي عَلِمْتَهَا من إهلاكهم

**ترجمه**: طٰس (ددې مراد الله تعالی بنه پیژنی) داآیتونه دي د قرآن اود کتاب مبین دی (یعنی د باطل نه د حق جداکوونکی کتاب، د صفت د زیادت سره په القرآن باندې عطف دی) هدایت دې (یعنی د گمراهئ نه هدایت کوونکې دې) اومؤمنینوته (یعنی ددې تصدیق کوونکوته د جنت) زیرې دې، هغه (مؤمنین) چه مونځ قائموی (یعنی مونځ په خپله طریقه سره اداکوی) اوزکوة ورکوی اوپه آخرت باندې یقین لری، (یعنی په دلیل سره په دې یقین لری، د "هم" مبتدأ اوددې د خبر "یوقنون" ترمینځه "بالاخره" سره په فصل راتلوپه وجه سره د "هم" اعاد اوشوه) کوم خلق چه په آخرت باندې ایمان نه لری مونږد هغودپاره د هغو (قبیح) عملونه ښائسته کړی دی (د نفس د خواهش د گډوالی په وجه سره تردې پورې چه هغوی بدعملونه هم ښه گڼړی) نودوی حیران گرځی (یعنی هغوی په دې عملونوکښې حیران دی زمونږپه نیزد قبیح کیدوپه وجه سره) دادی هغه خلق چه دوی لره لوئ عذاب دې (یعنی په دنیاکښې سخت عذاب دې چه قیداوقتل دې) اوپه آخرت کښې هم په لوئ تاوان کښې دی (ددوی د دائمی عذاب خواته د تلوپه وجه) یقیناً تاله د حکمت والا دعلم والا د خوانه قرآن (د مشقتونو سره) درکول کیږی، هغه وخت یادکړه چه کله موسیٰ ﷺ خپل اهل (یعنی خپلې ښځې ته د مدین نه مصرته د واپسئ په وخت) اووئیل چه ما د لرې نه اورلیدلې دې، د هغه نه به یاخو (د لارې) خبراوړم (اوحضرت موسیٰ ﷺ لاره هیره کړې وه) یابه بله شوې یوه شعله راوړم (په بشهاب قبس کښې په اضافت بیانیه سره اوپه ترک د اضافت سره هم دې، یعنی د لرگی یا د رسئ په سرکښې د اورشعله) ددې دپاره چه تاسوگرم شئ (طاء د افتعال د تاء نه بدل راغلې د اوتصطلون د صلی بالنار په کسره د لام اوفتحه د لام نه مشتق دې، د یخنئ نه ئې بچاؤ حاصل کړل) کله چه هلته اور سیدونوآواز ورکړې شود برکت والا دې کوم چه دې اورکښې دې (یعنی موسیٰ ﷺ) اوهغه څوک هم چه ددې سره دی (یعنی ملائکې یاددې برعکس، اوبارک متعدی بنفسه دې اومتعدی بالحرف هم، اود فی نه پس لفظ د مکان

محذوف دې.) او الله رب العالمين پاک دې (دا جمله هم منجمله د هغه جملونه د چه د کوموپه ذريعه سره نداشوې د، ددې جملې معنی داد چه الله تعالی د تولوعيوبونه پاک دې) اې موسٰی (خبره داد چه) زه الله يم زوره ورحکمت والا اوته خپله همسا اوغورځوه. (نوحضرت موسٰی ﷺ خپله همسا اوغورځوله) نوکله چه موسٰی هغې لره په داسې حرکت کولوسره اوليد چه ګويا ايو ماردې. (يعنې نرې شانتې ماردې) نود (موسٰی ﷺ) شاکړه او اوتختيد او په شاته ئې هم اونه کتل. (ارشاد اوشو چه) اې موسٰی. (ددې نه) مه يريږه زمونږ په حضورکښې پيغمبران (د ماروغيره نه) نه يريږی، او! چاچه (په خپل ځان باندې) ظلم اوکړو ياد بدونه پس د بدو په ځائې ئې نيکی اوکړه (يعنې توبه ئې اوباسله) نوځه بخښنې والا رحمت والا يم. (توبه به ئې قبلوم اوبخښنه به ورته کوم.) او خپل لاس دې په خپل ګريوان کښې (يعنې د خپل قميص په ګريوان کښې) ته باسه (د خپل غنم رنګی رنګ په خلاف به) هغه بغيرد څه بيمارئ نه پرقيدونکې را اوځی. (يعنې د برص وغيره د مرض نه بغيريه په هغه کښې يوداسې پرق وی چه سترګې به ورته بريخی، دا دوه معجزې) دغې نهو معجزونه دی د کوموسره چه ته فرعون اود هغه قوم ته ليږلې کيږې، هغوی بې شکه د حدنه تجاوزکوؤنکوکښې دی، نوکله چه دې خلقوته زمونږ سترګې کلاوه ؤنکې (واضحې او روښانه) معجزې راغلې نودې خلقواوويل چه دا صريح (يعنې ښکاره) جادودې، اود هغوئ نه ئې انکاراوکړو (يعنې اقرارئې اونه کړو) حال دادې چه د دوی زړونويقين کړې وو (يعنې ددوی دايقين ووچه داټولې معجزې د الله تعالی د طرف نه دی اودابماجاء به موسٰی نه انکارکول د ايمان نه د ظلم اود تکبرپه توګه وؤ بماجاء به موسٰی تعلق د الجحدسره دې.) نوته اوګوره چه ددې فساد کوؤنکو انجام څنګه شو (لکه څنګه چه ته د دوی د هلاکت خبرئې)

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله: عطف بزيادة صفة**: په دې عبارت سره مفسرعلام مقصد د يوسوال جواب ورکول دې، سوال دادې چه عطف د کتاب په قرآن باندې د قبيلې د عطف د شيئ نه دې په خپل نفس باندې ځکه چه د دواړومعنی يوه د، نوپه دې وجه ددې عطف هيڅ فائده نشته ؟

جواب دادې چه کله معطوف په يوصفت زائد باندې مشتمل وی نوداعطف بې فائدې نه وی، دلته هم معطوف چه کتاب دې په يواضافی صفت سره متصف دې چه مبين دې نوداعطف بې فائدې نه شو.

**قوله: يؤتون**: داد ايتاء مصدرنه د جمع مذکرغائب فعل مضارع معروف صيغه د، هغوی ورکوی.

**قوله: وهم بالأخرة هم يوقنون**: هم مبتدأ يوقنون ددې خبربالاخرة، د يوقنون متعلق مقدم د مبتدأ اود خبرترمينځه په جاراومجرورسره د فصل راتلوپه وجه د هم اعاد اوکړې

شوه،ددې دپاره چه د خبر د مبتدأ سره صورةً اتصال پيداشي،مفسرعلام د أعيدم الغ اضافه هم په دې وجه كړې د.

**قوله: يعمهون:** د "عمه" نه مشتق دې معنى ئې د تردد اوحيران والې.

**قوله: لقصاعندنا:** په دې عبارت سره ددې شبهې دفع كول مقصوددى.چه د كافرانوپه خپلوعملونوكښې د حيرانيدلو اومتردد كيدلونه څه مراددى ؟حال داچه هغوى په خپل پوره سوچ اوپوهې سره خپل ټول كفرى عملونه اختياروى؟

جواب دادې چه دوى زمونږپه نيزمتحيردى نه داچه د خپل ځان په نيز،مطلب دادې چه د تزئين شيطان اود اخبار رحمٰن ترمينځه د تعارض په وجه متحيردى،او په دوى كښې دومره بصيرت نشته چه د ښه اوبدترمينځه فرق اوكړې شي،اودوى په دې هم متحيردى چه كفراواعمال كفريه باندې قائم اودائم پاتې شى اوكۀ پرې ئې ږدى،ليكن داتفسير د شبه نقصان نه خالى نه دې،ځكه چه كفاركله د خپل عملونوباره كښې د حسن گمان كوى نوبيا د هغوى د حيران والى هيڅ معنى نشته،په دې وجه بهترين تفسيرهغه دې كوم چه نوروحضراتو كړې دې،هغه دادې چه يعمهون په معنى ديستمرون اويداومون عليها دې، كماذكره ابوسعود ،اوابن عباس ﷺ اوامام قتاده ﷺ ئې تفسيرپه يلعبون سره كړې دې.

**قوله: لمصيرهم:** دا د اخسرون علت دې،اخسراسم تفضيل د مبالغې دپاره دې نه داچه د تشريک د پاره،ځكه چه د مؤمنينو دپاره خسران نشته،د "وهم فى الاخرة هم الاخسرون" اعراب هم هغه دې كوم چه د "هم بالاخرة هم يوقنون"دې.خنوحضراتوئيلى دى چه مفضل عليه په خپله كفاردى ليكن د زمان اود مكان په اختلاف سره،يعنى كفارپه د دنياپه اعتبارسره په آخرت كښې ديرتاوانيان وى.

**قوله: لَتلقّى :** تاته تلقين كول كيږى،تاته ښودلې كيږى،واحدمذكرحاضرمضارع مجهول،په اصل كښې تتلقى وويوه تاء ترينه حذف كړې شوې د ،دادوؤمفعولوته متعدى دې، رومبنې مفعول ئې قائم مقام د فاعل (نائب فاعل) دې اودويم مفعول ئې القرآن دې.

**قوله: بشدة:** په دې وجه چه په دې كښې سخت تكليفونه دى يعنى د نزول په وخت كښې هم تكليف وى اود عمل په وخت كښې هم.

**قوله: بالإضافة:** د جلالين د نظرلاندې نسخه كښې په ترک د اضافت سره دې، لهٰذاپه دې صورت كښې "قبس"په معنى د مقبوس د شهاب نه بدل دې يائې نعت دې،اوكه په اضافت سره شى لكه په موجود نسخه كښې دې نودابه اضافت بيانيه شى.

**قوله: شعلة نار:** داد مضاف اود مضاف اليه دواړو تفسيردې يعنى شهاب په معنى د شعله او قبس په معنى د نار دې.

قوله: فتيلة: باتئ، كټ شوي څيز.

قوله: نودی: ددې نائب فاعل موسیٰ عليه السلام دې، په دې صورت كښې أن تفسيريه دې، ځكه چه په ماقبل كښې نودی په معنی د قيل موجوددې، مطلب دادې چه د أن تفسيريه د مرادكولودپاره ضروری د چه مخكښې قول يا د قول نه مشتق صيغه وی، يا د قول معنی وركوونكې صيغه وی، نودلته د ان تفسيريه نه وړاندې اگرچه قول يادادې د مشتقاتو نه څه صيغه نشته ليكن "نودی" چه د قول په معنی دې هغه موجود دې، لهٰذا أن تفسيريه دې اوداهم ممكنه د چه ان مخفف عن المثقله نه شی، اواسم ئې ضميرشان شی، او "بورك" ئې خبرشی، اوأن مصدريه هم كيدې شی په حذف د حرف جرسره أی بأن، او مدخول د أن به په معنی د مصدر شی، أی نودی ببركة من فی النار بَارَكَ متعدی بنفسه هم استعمالیږی لكه وئيل كيږی بارک الله داد متعدی بنفسه مثال دې يابارک الرجلَ د سړی دپاره ئې د بركت دعااوكړه اوپه حرف يعنی لام اوفی او علی سره هم استعمالیږی د متعدی بالحرف دپاره مثال لكه بارك الله لك بارك الله فيك بارك الله عليك.

قوله: من جملة ما نودی: مطلب دادې چه د كوم څيزنداء كړې شوې د په هغې كښې جمله تنزيهيه هم د يعنی سبحان الله رب العالمين.

قوله: تهتز: داد راها د ضميرمفعولی نه حال دې، ولّی مدبرا، د لمّاجواب دې.

قوله: إلا لكن من ظلم: علامه مفسر د الا تفسيرپه لكنّ سره كولو كښې ته اشاره اوكړه چه دامستثنٰی منقطع د، مطلب دادې چه د من ظلم نه مراد غيرمرسلين دی.

قوله: من ظلم: مبتدأ د اوفإنّی غفوررحيم ئې خبردې.

قوله: مبصرة: د آيات نه حال دې، اود آيات طرف ته د مبصرة اسنادمجازی دې، ځكه چه آيات كتونكی نه وی، بلكه د هغې په رڼراكښې كتل كيږی، لكه نهرجار، كښې اسناد مجازی دې ځنومفسرينوفرمائيلی دی چه مبصرة اسم فاعل په معنی د اسم مفعول دې لكه دافق په معنی د مدفوق دې.

قوله: استيقنتها أنفسهم: داد جحدوا د واؤنه په تقديرد قدسره حال دې.

قوله: ای تيقنوا: په دې سره ئې اشاره اوكړه دې خبرې ته چه په استيقنتهاكښې سين زائددې.

قوله: ظلما وعلوا: ددې تعلق د جحدوا سره دې، يعنی ظلماوعلوّاد انكارعلت دې.

قوله: كيف كان عاقبة المفسدين: كيف د كان خبرمقدم دې، اوعاقبة المفسدين ئې اسم مؤخردې اوپوره جمله د "انظر" په معنی د تفكرسره د متعلق كيدوپه وجه په محل د نصب كښې ده.

[ايات توله:۱۵ - ۲۱]

(ولقد آتينا داود وسُلَيْمَان) ابنه (عِلْمًا) بالقضاء بين الناس ومنطق الطير وغير ذلك (وَقَالَا) شكرا لله (الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي فَضَّلَنَا) بالنبوة وتسخير الجن والإنس والشياطين (على كثير من عباد المؤمنين) (وورث سليمان داود) النبوة والعلم دون باقي اولاد (وقال يأيها النّاس عُلِّمْنَا مَنطِقَ الطَّيْرِ) اي فهم اصواته (وَأُوتِينَا مِن كُلِّ شَيْءٍ) تُؤتَاهُ الأنبياء وَالْمُلوك (إِنَّ هَذَا) المؤتى (لَهُوَ الْفَضْلُ الْمُبِينُ) الْبَيِّن الظاهر (وَحُشِرَ) جمع (لِسُلَيْمَانَ جُنُودُهُ مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ وَالطَّيْرِ) في مسير له (فَهُمْ يُوزَعُونَ) يجمعون ثم يساقون (حتى إذا أتوا على واد النَّمْلِ) هُوَ بالطَّائِفِ أو بالشَّام نَمْلَهُ صِغَار أوْ كِبَار (قَالَتْ نَمْلَةٌ) مَلِكَة النَّمل وقد رأت جند سليمان (يأيها النَّمْلُ ادْخُلُوا مَسَاكِنَكُمْ لَا يَحْطِمَنَّكُمْ) يَكْسِرَنَّكُمْ (سُلَيْمَانُ وَجُنُودُهُ وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ) نُزِّلَ النَّمل مَنْزِلَة الْعُقَلاء في الخِطَاب بِخِطَابِهِمْ (فَتَبَسَّمَ) سُلَيْمَان ابْتِدَاء (ضَاحِكًا) انْتِهَاء (مِنْ قَوْلِهَا) وَقَدْ سَمِعَهُ مِنْ ثَلاثَة أَمْيَال حَمَلَتْهُ إِلَيْهِ الرِّيح فَحَبَسَ جُنْدَه حِين أَشْرَفَ عَلَى وَادِيهِمْ حَتَّى دَخَلُوا بُيُوتهمْ وَكَانَ جُنْد رُكْبَانًا وَمُشَاة فِي هَذَا السَّيْر (وَقَالَ رَبِّ أَوْزِعْنِي) أَلْهِمْنِي (أَنْ أَشْكُرَ نِعْمَتَكَ الَّتِي أَنْعَمْتَ) بِهَا (عَلَيَّ وَعَلَى وَالِدَيَّ وَأَنْ أَعْمَلَ صَالِحًا تَرْضَاهُ وَأَدْخِلْنِي بِرَحْمَتِكَ فِي عِبَادِكَ الصَّالِحِينَ) الأنبياء وَالأولياء (وَتَفَقَّدَ الطَّيْرَ) لِيَرَى الْهُدْهُد الَّذِي يَرَى الْمَاء تَحْت الأَرْض وَيَدُلّ عَلَيْهِ بِنَقْرِهِ فِيهَا فَتَسْتَخْرِجهُ الشَّيَاطِين لِاحْتِيَاجِ سُلَيْمَان إِلَيْهِ لِلصَّلَاةِ فَلَمْ يَرَهُ (فَقَالَ مَالِيَ لَا أَرَى الْهُدْهُدَ) أَيْ أَعَرَضَ لِي مَا مَنَعَنِي مِنْ رُؤْيَته (أَمْ كَانَ مِنَ الْغَائِبِينَ) فَلَمْ أَرَهُ لِغَيْبَتِهِ فَلَمَّا تحققها قَالَ (لَأُعَذِّبَنَّهُ عَذَابًا) تَعْذِيبًا (شَدِيدًا) بِنَتْفِ رِيشه وَذَنَبه وَرَمْيه فِي الشَّمْس فَلَا يَمْتَنِع مِنَ الْهَوَامّ (أَوْ لَأَذْبَحَنَّهُ) بِقَطْعِ حُلْقُومه (أَوْ لَيَأْتِيَنِّي) بِنُونٍ مُشَدَّدَة مَكْسُورَة أَوْ مَفْتُوحَة يَلِيهَا نُون مَكْسُورَة (بِسُلْطَانٍ مُبِينٍ) بِبُرْهَانٍ بَيِّن ظَاهِر عَلَى عذره

ترجمه: او مونږ داؤد او (د هغه ځوې) سليمان ته (د خلقو په مينځ كښې د فيصله كولو) علم وركړو او (او د مارغانو وغيره) خبرې مو وروا وښودلې، او دې دواړو (د الله تعالى شكر ادا كړو او) اوئې وئيل چه ټول تعريفونه د هغه الله دپاره دى چا چه مونږ ته (د نبوت په ذريعه سره او د پېريانو او انسانانو او شيطانانو د تسخير په ذريعه سره) په خپلو ايماندارو بندګانو كښې په ډيرو باندې غوره والې راكړو، او سليمان (عليه السلام) په نبوت او علم كښې) د داؤد (عليه السلام) وارث شو، او (سليمان عليه السلام) او وئيل چه اې خلقو امونږ ته د مارغانو خبرې (يعنى د هغوى د آواز پوهه) ښودلې شوې د او هر هغه څيز راكړې شوې دې (كوم چه پيغمبرانو او بادشاهانو ته وركول كيږى، يعنى چه د كوم څيز هغوى ته حاجت وى، بې شكه دا) راكړې شوې څيز) ډير لوئ فضل دې، (ښكاره فضل دې) او د سليمان په وړاندې (په يو سفر كښې) د د لښكر را جمع كړې شو كوم چه په پېريانو او انسانانو او مارغانو باندې مشتمل وو هغه را جمع كولې شو، (بيا به نو تللې شو) تردې پورې چه هغوى د ميږويو ميدان ته اورسيدل (هغه ميدان په شام يا طائف كښې وو، هغه ميږى د وړو نسل والا وو يا د غټ نسل والا) يو ميږى (كوم چه د ميږو مشره وه) او وئيل (او د

سلیمان ﷺ لښکرئې لیدلې وو،اې میږو ! خپلوسوړوته ننه اوځئ، داسې نه وی چه سلیمان اود ه لښکرتاسولره په بې خبرئ کښې د خپلاندې کړی،(یعنی هغوی ته ستاسو د هلاکت څه خبرهم اونه شی،میږوته په خطاب کښې،هغوی ته په خطاب کولوکښې په منزله د عقلاؤ اوګرځولې شو،)سلیمان (ﷺ)د هغې په خبره مسکئ شواوئې خاندل(یعنی ابتداءً مسکئ شو اوآخرئې اوخاندل اوسلیمان ﷺ د میږی خبره درې میله لرې اوریدلې وه،هواد میږی داخبره سلیمان ﷺ ته رسولې وه،نوکله چه سلیمان ﷺ دغه وادی ته اورسیدو نو خپل لښکرئې ایسارکړوتردې پورې چه میږی خپلوسوړوته ننوتل،اود سلیمان ﷺ لښکرپه دې سفرکښې په سورواوپه خپلوخپوروانوباندې مشتمل وو،سلیمان(ﷺ) اووئیل چه اې زماپروردګاره اته ماته الهام (توفیق) راکړه چه زه ستاد هغه نعمتونو شکر اداکړم کوم چه تاپه ماباندې اوزماپه موراوپلارباندې کړی دی،اوداچه زه داسې عملونه اوکړم چه ته پرې خوشحاله شې،اوپه خپل رحمت سره مې په خپلو نیکانو بندګانو (یعنی په انبیاؤاوپه اولیاؤ) کښې داخل کړه، اود(سلیمان ﷺ)د مارغانو معلومات اوکړل (ددې دپاره چه هدداوګوری کوم چه اوبهٔ د زمکې د لاندې وینی اوپه زمکه باندې خپله مخوکه وهلوسره اونخښه ئې ښائی، اوشیطانانو د سلیمان ﷺ د پاره د مونځ وغیره ضرورتونود پاره اوبه راوستلې، نو هدهد ئې اونه موندونوسلیمان ﷺ اووئیل چه څه خبره د چه هدد ماته په نظرنه راځی ؟(یعنی آیاڅه څیزماته مخې ته خنډ جوړ شوې دې،چه هغه ما د هدد د لیدونه منع کوی)یاواقعی هغه غیرحاضر دې(چه زه ئې د هغه د غیرحاضرئ په وجه نه وینم، نوکله چه دد غیرحاضری یقینی شوه،)نواوئې فرمائیل چه زه به د ته سخته سزاورکوم،(دد وزرې به شوکوم،لګئ به ئې اوکاږم اوګرمئ ته ئې واچوم،چه د هغې په وجه به د چینجومینجو نه محفوظ نه وی،)یابه ئې (مرئ غوڅوم)ذبح کړم به ئې،یابه زماپه وړاندې یوواضح دلیل (عذر) وړاندې کوی (لیاتینّی کښې په نون مشدد مکسورسره یانون مفتوحه چه ورسره نون مکسوره ملاؤشوې وی یعنی د خپل عذربه څه واضح دلیل ښائی.)

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: أُتینا: په معنی د اعطینا،طیر د طائرجمع د مارغهٔ،قال یاأیّها الناس عُلّمنامنطق الطیر،د حضر ت سلیمان ﷺ د خپل ځان دپاره د جمع صیغه استعمالول یوسیاسهٔ شاهانه طرزِخطاب دې نه داچه تکبراً،(په روح البیان کښې دی)النون نون الواحد المطاع علی عادة الملوک فانهم یتکلمون مثل ذالک رعایة لقاعدة السیاسة، اوځنو حضراتووئیلی دی چه عُلّمنا ای اناوابی،لیکن دتاویل د حضرت سلیمان ﷺ د مارغانو د خبرو د پوهې د اختصاص سره منافی دې،لکه ځنګه چه مشهوره د ،اګرچه سلیمان ﷺ ته د مارغانونه علاوه د نوروحیواناتوپه خبروباندې د پوهید ومعجزه هم ورکړې شوې وه

لیکن په دې وجه چه مارغان به هروخت په د باندې سورې کوونکی وو نوپه دې غرض د مارغانوتذکره په خاص توگه شوید،د منطق عطف په قضا باندې دې،د باء د لاندې کیدوپه وجه سره مجروردې أی علمابالقضاء وبمنطق الطیر.

**قوله: وغیرذالك**: په دې سره دې خبرې ته اشاره د چه حضرت سلیمان علیه السلام ته د مارغانو د خبرو د پوهیدوسره سره د نوروحیواناتو د خبروپوهه هم ورکړې شوې وه.

**قوله: حتی اذاأتوا**: دا د محذوف دپاره غایت دې، تقدیر د عبارت داسې دې "فساروا حتی اذا اتوا" اوځنوحضراتو د یوزعون دپاره غایت گرځولې دې،تقدیر د عبارت به داسې شی فهم یسیرون ممنوعابعضهم من مفارقة بعض حتی اذا اتواعلی وادالنمل.

**قوله: فی عبادك الصالحین**: ای فی جملة عبادک الصالحین، د مضاف په حذف سره او د صالحینونه کامل صالحین مراددی کوم چه انبیاء کرام علیهم السلام دی،لهٰذاشبه ختمه شوه چه د یوپیغمبرپه صالحینوکښې د شاملیدو د دعانه څه مقصددې ؟ځکه چه انبیاء کرام په مرتبه کښې د تولونه اوچت وی.

**[ایاتونه: ۲۲ - ۳۱]**

{فَمَكَثَ} بِضَمِّ الْكَاف وَفَتْحِهَا {غَيْرَ بَعِيدٍ} يَسِيرًا مِنَ الزَّمَنِ وَحَضَرَ لِسُلَيْمَان مُتَوَاضِعًا بِرَفْعِ رَأْسه وَإِرْخَاء ذَنَبه وَجَنَاحَيْهِ فَعَفَا عَنْهُ وَسَأَلَهُ عَمَّا لَقِيَ فِي غَيْبَته {فَقَالَ أَحَطتُ بِمَا لَمْ تُحِطْ بِهِ} أَيْ اطَّلَعْت عَلَى مَا لَمْ تَطَّلِع عَلَيْهِ {وَجِئْتُكَ مِنْ سَبَإٍ} بِالصَّرْفِ وَتَرْكه قَبِيلَة بِالْيَمَنِ سُمِّيَتْ بِاسْمِ جَدّ لَهُمْ بِاعْتِبَارِهِ صرف {بِنَبَإٍ} خبر {يقين} {إِنِّي وَجَدتُّ امْرَأَةً تَمْلِكُهُمْ} أَيْ هِيَ مَلِكَة لَهُمْ اسْمهَا بِلْقِيس {وَأُوتِيَتْ مِن كُلِّ شَيْءٍ} يَحْتَاج إِلَيْهِ الْمُلُوك مِنَ الْآلَة وَالْعُدَّة {وَلَهَا عَرْشٌ} سَرِير {عَظِيمٌ} طُوله ثَمَانُونَ ذِرَاعًا وَعَرْضه أَرْبَعُونَ ذِرَاعًا وَارْتِفَاعه ثَلَاثُونَ ذِرَاعًا مَضْرُوب مِنَ الذَّهَب وَالْفِضَّة مُكَلَّل بِالدُّرِّ وَالْيَاقُوت الْأَحْمَر وَالزَّبَرْجَد الْأَخْضَر وَالزُّمُرُّد وَقَوَائِمه مِنَ الْيَاقُوت الْأَحْمَر وَالزَّبَرْجَد الْأَخْضَر وَالزُّمُرُّد عَلَيْهِ سَبْعَة أَبْوَاب عَلَى كُلّ بَيْت بَاب مُغْلَق {وَجَدتُّهَا وَقَوْمَهَا يَسْجُدُونَ لِلشَّمْسِ مِن دُونِ اللَّهِ وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ أَعْمَالَهُمْ فَصَدَّهُمْ عَنِ السَّبِيلِ} طريق الحق {فَهُمْ لَا يَهْتَدُونَ} {أَلَّا يَسْجُدُوا لِلَّهِ} أَيْ أَنْ يَسْجُدُوا لَهُ فَزِيدَتْ لَا وَأُدْغِمَ فِيهَا نُون أَنْ كَمَا فِي قَوْله تَعَالَى {لِئَلَّا يَعْلَمَ أَهْلُ الْكِتَابِ} وَالْجُمْلَة فِي مَحَلّ مَفْعُول يَهْتَدُونَ بِإِسْقَاطِ إِلَى {الَّذِي يُخْرِجُ الْخَبْءَ} مَصْدَر بِمَعْنَى الْمَخْبُوء مِنَ المطر والنبات {فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَيَعْلَمُ مَا تُخْفُونَ} فِي قُلُوبهمْ {وَمَا تُعْلِنُونَ} بالسنتهم {اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ} استئناف جملة ثناء مُشْتَمِل عَلَى عَرْش الرَّحْمَن فِي مُقَابَلَة عَرْش بِلْقِيس وَبَيْنهمَا بَوْن عَظِيم {قَالَ} سُلَيْمَان لِلْهُدْهُدِ {سَنَنظُرُ أَصَدَقْتَ} فِيمَا أَخْبَرْتنَا بِهِ {أَمْ كُنتَ مِنَ الْكَاذِبِينَ} أَيْ مِنْ هَذَا النَّوْع فَهُوَ أَبْلَغ مِنْ أَمْ كَذَبْت فِيهِ ثُمَّ دَلَّهُمْ عَلَى الْمَاء فَاسْتُخْرِجَ وَارْتَوَوْا وَتوضؤوا وَصَلَّوْا ثُمَّ كَتَبَ سُلَيْمَان كِتَابًا صُورَته {مِنْ عَبْدِ اللَّهِ سُلَيْمَان بْن دَاوُد إِلَى بِلْقِيس مَلِكَة سَبَأٍ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ السَّلَام عَلَى مَنْ اتَّبَعَ الْهُدَى أَمَّا بَعْد فَلَا تَعْلُوا عَلَيَّ وَأْتُونِي مُسْلِمِينَ} ثُمَّ طَبَعَهُ بِالْمِسْكِ وَخَتَمَهُ بِخَاتَمِهِ ثُمَّ قَالَ

بِالْهُدْهُدِ (اذْهَبْ بِكِتَابِي هَٰذَا فَأَلْقِهِ إِلَيْهِمْ) أي بلقيس وقومها (ثُمَّ تَوَلَّ) انصرف (عَنْهُمْ) وقف قريبا منهم (فَانْظُرْ مَاذَا يَرْجِعُونَ) يردون من الجواب فأخذه وأتاها وحولها جندها وألقاه في حجرها فلما رأته ارتعدت وخضعت خوفا ثم وقفت على ما فيه ثم (قالت) لأشراف قومها (يأيها الملأ إني) بتحقيق الهمزتين وتسهيل الثانية بقلبها واوا مكسورة (ألقى إلي كتاب كريم) مختوم (إنه من سليمان وإنه) أي مضمونه (بسم الله الرحمن الرحيم) (ألا تعلوا علي وأتوني مسلمين)

ترجمه: (فمکث د کاف په ضمې او په فتحې سره)نو لږشانتې وخت تیرو و(چه هد هد راغې او وئې وئیل)یعنې لږشانتې وخت تیرشوې ووچه لکئ اووزرې ئې زورندې کړې وې اوسرئې اوچت کړې وو،د عاجزئ په حالت کښې د سلیمان ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، نو سلیمان ﷺ معاف کړواود غائب والی په زمانه کښې ئې ترینه د راپیښې شوې واقعې په باره کښې معلومات اوکړل نو وئې وئیل) مایوداسې خبراوړې دې چه تاته ئې معلومات نشته،(یعنې زه د داسې خبرنه خبر شوې یم چه د هغې اطلاع تاته نشته) اوماد سبا(قوم)نه یوریښتونې خبراوړې دې،(سبامنصرف اوغیرمنصرف دواړه دې،سبا په یمن کښې د یوې قبیلې نوم دې،کوم چه د هغوی د لرې نیکه په نوم باندې کیښودلې شوې دې،اوهم په دې وجه منصرف دې،اوکه د قبیلې نوم شی نو د علمیت او د تانیث په وجه به غیرمنصرف شی)مااوکتل چه په هغوی باندې یوه ښځه حکومت کوی،(یعنې هغه دغوی ملکه د اونوم ئې بلقیس دې) اود هغې سره د هرقسم سازاوسامان دې،(د کوموچه بادشاه ته ضرورت وی،یعنې وسله او نور سامان،)اود هغې یودیرلوئ تخت دې (چه اوږدوالې ئې اتیالاسه اوپلن والې ئې څلوېښت لاسه دې اولوړوالې ئی دیرش لاسه دې،د سرو اوسینوزرونه جوړدې، په ملغلرو او سرو یاقوتو، زبرجدو او زمردوسره ښائسته کړې شوې دې،اوخپې ئې د سرویاقوتواود شنوزبرجدواود زمردودی،اود پاخه پرې اوو کمرې دی اوپه هره کمره باندې بند دروازه د ،)ماهغې لره اود هغې قوم لره د الله نه علاوه نمرته په سجد کولواومونډل اوشیطان ورته خپل عملونه دغوی په نظرښائسته کړی دی چه د هغې په وجه ئې هغوی د حق لارې نه نبد کړی دی نوهغوی په هدایت باندې نه راځی چه الله ته سجد اوکړی،(دلته لا زائد د اوان پکښې مدغم کړې شوې دې لکه په دې قول د الله تعالی کښې "لئلا یعلم اهل الکتاب" حرف الی حذف شوې دې اود یهتدون د مفعول په ځائ کښې دې) هغه (الله) کوم چه د زمکې اواسمانونوپټ څیزونه (یعنې باران اوبوټی)را اوکاږی (الخبا مصدر په معنی د مخبوء دې) اوکوم څیزونه چه تاسو (په خپلوزړونو کښې)پټوئ اوکوم څیزونه چه (په خپلوژبو سره)ښکاره کوئ هغه پیژنی ، هغه برحق معبود دې،دغه نه سیوابل معبود نشته، هغه د عرش عظیم مالک دې،،(داجمله مستانفه ثنائیه د ،د بلقیس د تخت په مقابله کښې د

رحمٰن په تخت باندې مشتمله د حال دادې چه د دواړوترمينځه بون بعيدې، سليمان عليه السلام اوفرمائيل چه اوس به مونږ گورو چه آيات(په دې خبره كښې كومه دې چه مونږته اوكړه)رېښتيا اووئيل كه ته په دروغژنو كښې ئې،(يعنى د دروغژنود قسم نه ئې، دا جمله د ام كذبت فيه نه ډيره بليغه ده،بيا هدهد هغوى دپاره د اوبو نشاندى اوكړه،نو سليمان عليه السلام اوبهٔ را اوكاږلې،تول خلق ماړهٔ شول،اودسونه ئې اوكړل اومونځونه ئې اوكړل، بيا سليمان عليه السلام يو خط اوليكلو چه د هغې متن لاندينې دې،د الله د بند سليمان بن داؤد له خوانه د سباد ملكه بلقيس په نوم،بسم الله الرحمٰن الرحيم، السلام على من اتبع الهدٰى امّابعد،زماپه مقابله كښې سركشى اونه كړئ اود فرمان منونكى زماخواته راشى بيا ئې دا خط په مشكوسره سر بند كړواوخپل مهرئې هم پرې اولگولو،بيائې هدهدته اوفرمائيل زما داخط يوسه اوهغوى ته (يعنى بلقيس اود هغې قوم ته)ئې اورسوه بيا د هغوى نه يو خواته شه(اونژدې ورسره اودرېږه) اوگوره چه هغوى څه جواب وركوى؟(نوهدهد غه خط راواخستو اود بلقيس خواته راغې،حال دادې چه د بلقيس گير چاپيره لښكر وو، نو هدهد داخط د بلقيس په غيږه كښې واچولو،نوكله چه بلقيس داخط اوكتونوپه بدن ئې لړزان راغې اوعاجزى ئې اوكړه، د خپل قوم شريفانوته ئې)اوئيل چه زماخواته يود عزت والا (يعنى مهروهلې شوې) خط راغورځول شوې دې (د دواړوهمزود تحقيق سره اود ثانى په تسهيل سره يعنى په واؤ مكسوره سره بدل شوې،) د سليمان د خوانه دې (اومضمون ئې دادې)بسم الله الرحمٰن الرحيم، داچه زماپه مقابله كښې سركشى مه كوئ اوفرمان بردارہ زماخواته راشئ.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله: أبلغ من أم كذبت فيه:** داددې سوال جواب دې چه أم كذبت مختصر هم دې او مشهور هم دې، كثير الاستعمال هم دې نوبيا ئې دا مختصر كلام ولې پرېښودواو دااوږد جمله ام كنت من الكاذبين ئې اختيار كړه ؟

خلاصه د جواب داد چه أم كذبت په صدور د كذب أحيانا باندې دلالت كوى او ام كنت من الكاذبين په دوام د كذب اوپه عادت د كذب باندې دلالت كوى،په دې وجه ئې أخصر پرېښودواو أطول ئې اختيار كړو.

**قوله: فانظر الأية:** انظر په معنى د انتظر سره دې او مَاپه معنى د الذى د ،صله چونكه جمله د په دې وجه عائد محذوف دې،تقدير د عبارت داسې دې چه انتظر الذى يرجعونه، وتسهيل الثانية بقلبها واوا مكسورا دلته د تسهيل نه معروف تسهيل نه دې مراد ،بلكه دويمه همزه په واؤسره بدلول مراد دى،يعنى "ياأيها الملاوني ألقي الىّ كتاب كريم"، د كتاب كريم نه مراد مهرلگول شوې خط مراددې،دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول اكرم صلى الله عليه وسلم

اوفرمائیل "كرم الكتاب ختمه" د خط محترم کیدل د هغې په مهرسره کیدل دي

**قوله:** إنه من سليمان: جمله مستانفه د يعنى د يومقدرسوال جواب دي.کله چه بلقيس اووئيل چه إنى ألقى إلىّ كتاب كريم.نوسوال اوکړې شوچه مَاهو ؟ نوجواب ئې ورکړو إنه من سليمان الخ.

**قوله:** أن لا تعلوا على: داخوياد كتاب نه د بدل واقع کیدوپه وجه محلاً مرفوع دې ياد محذوف مبتدأ د خبر کیدوپه وجه مرفوع دې.أى مضمونه أن لا تعلوا علىّ وأتونى مسلمين.

**[ایاتونه:۳۲-۳۹]**

(قالت يأيها الملأ أفتوني) بتحقيق الهمزتين وتسهيل الثانية بقلبها واوا أي اشيروا علي (في أمري ما كنت قاطعة أمرا) قاضيته (حتى تشهدون) تحضرون (قالوا نحن أولوا قوة وأولوا بأس شديد) اي اصحاب شدة في الحرب (والأمر إليك فانظري ماذا تأمرين) نا نطعك (قالت إن الملوك إذا دخلوا قرية أفسدوها) بالتخريب (وجعلوا أعزة أهلها أذلة وكذلك يفعلون) اي مرسلو الكتاب (وإني مرسلة إليهم بهدية فناظرة بم يرجع المرسلون) من قبول الهدية أو ردها إن كان ملكا قبلها اونبيا لم يقبلها فارسلت خدما ذكورا واناثا ألفا بالسوية وخمسمائة لبنة من الذهب وتاجا مكللا بالجواهر ومسكا وعنبرا وغير ذلك مع رسول بكتاب فأسرع الهدهد إلى سليمان يخبره الخبر فأمر أن تضرب لبنات الذهب والفضة وأن تبسط من موضعه إلى تسعة فراسخ ميدانا وأن يبنوا حوله حائطا مشرفا من الذهب والفضة وأن يؤتى باحسن دواب البر والبحر مع أولاد الجن عن يمين الميدان وشماله (فلما جاء) الرسول بالهدية ومعه أتباعه (سليمان قال أتمدونن بمال فما آتاني الله) من النبوة والملك (خير مما آتاكم) من الدنيا (بل أنتم بهديتكم تفرحون) لفخركم بزخارف الدنيا (ارجع إليهم) بما أتيت من الهدية (فلنأتينهم بجنود لا قبل) لا طاقة (لهم بها ولنخرجنهم منها) من بلدهم سبا سميت باسم ابي قبيلتهم (أذلة وهم صاغرون) إن لم يأتوني مسلمين فلما رجع إليها الرسول بالهدية جعلت سريرها داخل سبعة أبواب داخل قصرها وقصرها داخل سبعة قصور وغلقت الأبواب وجعلت عليها حرسا وتجهزت للمسير إلى سليمان لتنظر ما يأمرها به فارتحلت في اثني عشر الف قيل مع كل قيل ألوف كثيرة إلى ان قربت منه على فرسخ شعر بها (قال يأيها الملأ أيكم) في الهمزتين ما تقدم (يأتيني بعرشها قبل أن يأتوني مسلمين) منقادين طائعين فلي اخذه قبل ذلك لا بعد (قال عفريت من الجن) هو القوي الشديد (أنا آتيك به قبل أن تقوم من مقامك) الذي تجلس فيه للقضاء وهو من الغداة إلى نصف النهار (وإني عليه لقوي) اي على حمله (أمين) على ما فيه من الجواهر وغيرها

**ترجمه:** اې درباريانو اتاسوماته زماپه دې معامله کښې مشوره راکړئ زه په يوه معامله کښې ترهغه وخته پورې فيصله نه کوم ترڅوچه تاسوماسره موجودنه يئ.(په الملاء أفتونى کښې د دواړوهمزوپه تحقيق سره اود ثانى په تسهيل سره يعنى په واؤسره بدلولو سره، أى

ونتونی،دې تولوجواب ورکړوچه مونږ د لوئ طاقت والا اودیرجنګیالی یو،(یعنی په جنګ کښې ډیر سخت یو)ورآندې تاله اختیاردې،ته په خپله غوراوکړه چه مونږته څه حکم راکول غواړې ؟(مونږبه ستااطاعت کوو) بلقیس اووئیل چه بادشاهان چه کله یوکلی ته (په فاتحانه توګه)ننوځی نوهغه (د تخریب په ذریعه)خرابوی اود هغه ځائ عزت مندخلق ذلیل کوی،او (داخط لیږونکی به)هم داسې کوی،اوزه دې خلقوته څه هدیه ورلیږم بیاګورم چه قاصدڅه جواب سره اوواپس کیږی ؟(آیاهغوی به هدیه قبلوی یابه ئې واپس کوی،که بادشاه وی نوهدیه به قبلوی اوکۀ پیغمبروی نوبیابه ئې نه قبلوی،لنډه دا چه بلقیس یوزرخادمان اولیږل په کوموکښې چه پنځه سوه هلکان اوپنځه سوه جینکۍ وې، اوپنځه سوه د سروزروخښتې اویود جواهراتونه پیللې شوې تاج اومشک اوعنبروغیره ئې د قاصدسره، سره د یوخط نه اولیږل.په دې موقع هدهدزرزرحضرت سلیمان علیه السلام ته د ټول صورت حال خبر راوړو، نو حضرت سلیمان علیه السلام د سروزرواود سپینوزرود خښتوجوړولوحکم اوکړو،اواوئې فرمائیل چه زماد محل نه ترنهه فرسخه پورې دې په میدان کښې اوغوړولې شی،اوددې میدان نه ګیرچاپیردې د سرزور اوسپینوزرودیوالونه اوچت کړې شی،دویمه ترجمه داد چه د میدان نه ګیرچاپیردې یودیوال جوړکړې شی چه د هغې (کنګورے) د سرو او سپینو زرووی،اوداچه د وچې اود لوندې بهترین ځناور د خدمت د پاره سره د پیریانود بچو دې د میدان ښی اوګس اړخ ته اودرولې شی،)نوکله چه (قاصدد هدیې سره د وفدد نوروارکانوسره)د سلیمان (علیه السلام)په خدمت کښې حاضرشونو(حضرت سلیمان علیه السلام)اوفرمائیل چه آیاتاسوپه مال سره زمامددکول غواړئ ؟نوالله چه کوم څه (نبوت اوبادشاهی)ماته راکړی دی هغه ډیربهتردی د هغه (دنیا)نه کومه ئې چه تاسوته درکړې د،آو تاسو به د هدیې په لین دین باندې فخرکوئ،(ځکه چه ددنیاپه زیب اوزینت باندې تاسوفخرکوئ یوه ترجمه داهم کړې شوې د،هم تاسوپه خپله هدیه باندې خوشحال اوسئ،یعنی ستاسوداهدیه دی هم ستاسو مبارکه شی زماورته ضرورت نشته. حضرت سلیمان علیه السلام د وفدامیرته اوفرمائیل چه خپله هدیه واخله) د هغه (هدیه لیږونکو)خواته واپس ورشه، مونږبه د هغوی په مقابله کښې یو داسې لښکرراؤلوچه هغوی کښې به ددې لښکرسره د مقابلې کولوطاقت نه وی اومونږبه خامخا هغوی د (دې ښارنه یعنی د سبانه)ذلیل اوخوارکولوسره اوباسو(کۀ دوی مونږتابعدارانه غلل.د ابوقبیله په نوم د ښارنوم سباکیښودلې شو،نوکله چه قاصدیه سره اوواپس لاړونوبلقیس خپل تخت د خپل محل د ننه کوم چه د اوۀ محلونود ننه وو،د اوو کمرود ننه بندکړواودروازې ئې تالا کړې،ورسره ئې په دروازوباندې څوکیداران کینول،اود حضرت سلیمان علیه السلام طرف ته په دې نیت دتللو تیاری شروع کړه چه اوګوری چه هغوی دې ته څه وائی، نوبلقیس د دولس زرومشرانوسره روانه شوه اود هرسردارسره په

زرونو کسان وؤ، تردې چه بلقیس حضرت سلیمان علیه السلام ته دومره نزدې اورسید چه صرف د یو فرسخ فاصله پاتې شوه نوحضرت سلیمان ته ددې د راتګ علم اوشو.
(حضرت) سلیمان (علیه السلام) اوفرمائیل چه اې سردارانو اپه تاسوکښې څوک دې (په دوؤهمزوکښې هم هغه دوه قراته دی کوم چه په وړاندینوکښې وو) چه د هغوی د مسلمان کیدو سره رارسیدونه وړاندې ماته دغې تخت راوړی (یعنی د مطیع اوفرمانبردارکیدوسره د راتلونه مخکښې، د هغې د مسلمان کیدونه مخکښې مادپاره د هغې تخت اخستل جائز دی، وروستونه دی جائز،) یوقوی صورت والا پیری اووئیل (حال داچه هغه دیرقوی اومضبوط وو) زه به ئې درله ستاد مجلس نه د پاڅیدونه وړاندې ستاخواته راوړم، (هغه مجلس کوم کښې چه ته د مقدمو د فیصله کولودپار کښینې اوهغه د سحرنه ترغرمه پورې به وو) اویقین اوساته چه په هغې باندې (یعنی د هغې راپورته کولوباندې) زه قادریم امین هم یم. (یعنی چه کوم جواهرات اوملغلرې په هغې پورې لګیدلې دی نوزه په هغې امین یم.)

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله: ماذاتامرین**: ماذا د تامرین دپاره مفعول ثانی دې اومفعول اول ئې محذوف دې، تقدیرد عبارت داسې دې تامریننا.

**قوله: نطعك**: دادفانظری امرجواب محذوف دې، اود جواب امرد کیدوپه وجه مجزوم دې.

**قوله: بِمَ یرجع**: بم د یرجع سره متعلق دې.

**قوله: من قبول الهدیة**: داپه بِمَ کښې د ما بیان دې، د فناظرة عطف په مرسلة باندې دې، د بم تعلق څنوحضراتود ناظرة سره کړې دې لیکن داصحیح نه د څکه چه ما استفهامیه صدارت غواړی اوپه دې صورت کښې هغه فوت کیږی.

**قوله: اذلة وهم صاغرون**: اذلةً د هم ضمیرنه حال اول دې او وهم صاغرون حال ثانی مؤکد دې.

**قوله: ای إن لم یأتونی مسلمین**: دائې مقدرمنلو سره اشاره اوکړه چه ولنخرجنهم د شرط محذوف مؤخر جزاء د اواهل سباد سبانه ویستل د بلقیس د تابع فرمان کیدوسره نه راتلو شرط سره مشروط دی.

**[ایاتوله: ۴۰-۴۴]**

قَالَ سُلَیْمَان أُرِیدُ أَسْرَعَ مِنْ ذٰلِكَ (قَالَ الَّذِیْ عِنْدَهٗ عِلْمٌ مِّنَ الْکِتٰبِ) الْمُنَزَّلِ وَهُوَ آصَفُ بْنُ بَرْخِیَا کَانَ صِدِّیقًا یَعْلَمُ اسْمَ اللّٰهِ الْأَعْظَمِ الَّذِیْ إِذَا دُعِیَ بِهٖ أَجَابَ (أَنَا آتِیْکَ بِهٖ قَبْلَ أَنْ یَّرْتَدَّ إِلَیْکَ طَرْفُكَ) إِذَا نَظَرْتَ بِهٖ إِلٰی شَیْءٍ فَقَالَ لَهٗ انْظُرْ إِلَی السَّمَاءِ فَنَظَرَ إِلَیْهَا ثُمَّ رَدَّ بِطَرْفِهٖ فَوَجَدَهٗ مَوْضُوْعًا بَیْنَ یَدَیْهِ فَفِیْ نَظَرِهٖ إِلَی السَّمَاءِ دَعَا آصَفُ بِالْاِسْمِ الْأَعْظَمِ أَنْ یَّأْتِیَ اللّٰهُ بِهٖ فَحَصَلَ بِأَنْ جَرٰی تَحْتَ الْأَرْضِ حَتّٰی نَبَعَ تَحْتَ کُرْسِیِّ سُلَیْمَانَ (فَلَمَّا رَآهُ مُسْتَقِرًّا) سَاکِنًا (عِنْدَهٗ قَالَ هٰذَا) أَیِ الْإِتْیَانُ لِیْ بِهٖ (مِنْ فَضْلِ رَبِّیْ لِیَبْلُوَنِیْ) لِیَخْتَبِرَنِیْ (أَأَشْکُرُ

بتحقيق الهمزتين وإبدال الثانية ألفا وتسهيلها وإدخال ألف بين المسهلة الأخرى وتركه ﴿أَمْ أَكْفُرُ﴾ النعمة ﴿وَمَنْ شَكَرَ فَإِنَّمَا يَشْكُرُ لِنَفْسِهِ﴾ أي لأجلها لأن ثواب شكره له ﴿وَمَنْ كَفَرَ﴾ النعمة ﴿فَإِنَّ رَبِّي غَنِيٌّ﴾ عن شكره ﴿كَرِيمٌ﴾ بالأفضال على من يكفرها ﴿قَالَ نَكِّرُوا لَهَا عَرْشَهَا﴾ أي غيروه إلى حال تنكره إذا رأته ﴿نَنْظُرْ أَتَهْتَدِي﴾ إلى معرفته ﴿أَمْ تَكُونُ مِنَ الَّذِينَ لَا يَهْتَدُونَ﴾ إلى معرفة ما يغير عليهم قصد بذلك اختبار عقلها لما قيل إن فيه شيئا فغيروه بزيادة أو نقص وغير ذلك ﴿فَلَمَّا جَاءَتْ قِيلَ﴾ لها ﴿أَهَكَذَا عَرْشُكِ﴾ أي أمثل هذا عرشك ﴿قَالَتْ كَأَنَّهُ هُوَ﴾ فعرفته وشبهت عليهم كما شبهوا عليها إذ لم يقل أهذا عرشك ولو قيل هذا قالت نعم قال سليمان لما رأى لها معرفة وعلما ﴿وأوتينا العلم من قبلها وكنا مسلمين﴾ ﴿وَصَدَّهَا﴾ عن عبادة الله ﴿مَا كَانَتْ تَعْبُدُ مِنْ دُونِ اللَّهِ﴾ اي غيره ﴿إنها كانت من قوم كافرين﴾ ﴿قِيلَ لَهَا﴾ أيضا ﴿ادْخُلِي الصَّرْحَ﴾ هو سطح من زجاج أبيض شفاف تحته ماء عذب جار فيه سمك اصطنعه سليمان لما قيل له إن ساقيها وقدميها كقدمي الحمار ﴿فَلَمَّا رَأَتْهُ حَسِبَتْهُ لُجَّةً﴾ من الماء ﴿وَكَشَفَتْ عَنْ سَاقَيْهَا﴾ لتخوضه وكان سليمان على سريره في صدر الصرح فرأى ساقيها وقدميها حسانا ﴿قَالَ﴾ لها ﴿إِنَّهُ صَرْحٌ مُمَرَّدٌ﴾ مملس ﴿مِنْ قَوَارِيرَ﴾ من زجاج ودعاها إلى الإسلام ﴿قَالَتْ رَبِّ إِنِّي ظَلَمْتُ نَفْسِي﴾ بعبادة غيرك ﴿وَأَسْلَمْتُ﴾ كائنة ﴿مَعَ سُلَيْمَانَ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ وأراد تزوجها فكره شعر ساقيها فعملت له الشياطين النورة فأزالته بها فتزوجها وأحبها وأقرها على ملكها وكان يزورها في كل شهر مرة ويقيم عندها ثلاثة أيام وانقضى ملكها بانقضاء ملك سليمان روي أنه ملك وهو ابن ثلاث عشرة سنة ومات وهو ابن ثلاث وخمسين سنة فسبحان من لا انقضاء لدوام ملكه

**ترجمه:** (سليمان ﷺ اوفرمائيل چه زه ئې ددې نه هم زرغوارم) دچاسره چه (د نازل شوي) كتاب علم وو هغه اووئيل (اوهغه آصف بن برخياوو، مقام د صديقيت ته رسيدلې وو اود الله تعالى د اسم اعظم نه خبروو، هغه اسم اعظم كوم سره چه دعااوغوښتلې شى نوقبليږي) داتخت به زه ستاد بنړود رپولونه وړاندې ستاحضورته راوړم (چه كله ته په خپل نظرسره څه څيزته ګورې، آصف بن برخياحضرت سليمان ﷺ ته عرض اوكړوچه ته د اسمان په طرف ګوره، نو حضرت سليمان ﷺ د اسمان په طرف اوكتل بيائې نظررا اوګرځولونوتخت ئې په خپل خواكښې مخامخ پروت اوليدو، د حضرت سليمان ﷺ د اسمان طرف ته د نظركولوپه وخت كښې آصف بن برخيااسم اعظم اووئيلواودادعا ئې اوكړه چه اې الله! ته داتخت راوله، نودعاداسې قبوله شوه چه تخت د زمكې د لاندې لاندې نه روان شواود حضرت سليمان ﷺ د كرسۍ مخې ته ښكاره شو، كله چه سليمان ﷺ تخت خپل ځان ته مخامخ موجوداوليدونواوئې فرمائيل چه دا (يعنى ددې تخت زماخواته راوړل) زماد رب فضل دې، ددې دپاره چه هغه ما اوزمائى چه زه شكرګزارى كوم كۀ (د نعمت) ناشكرى كوم (دَ أشكر، كښې د دواړوهمزوتحقيق اود دويمې په الف سره بدليدلو اود ثانى په تسهيل سره اودمسهله اود دويمې ترمينځه د الف په داخلولو سره اوپه ترك

د ادخال سره» اوشکرگزارد خپلې فائدې دپاره شکرگزاري کوی «ځکه چه دد دشکرگزارئ اجرهم د ته رسي»اوچاچه «د نعمت» ناشکري اوکړه بې شکه زمارب «دغه د شکريې نه» بې پرواه «او»کريم دې.«د نعمتونو ناشکري کوونکوباندې هم د فضل کولوپه وجه، حضرت» سليمان «ﷺ»حکم اوکړوچه دهغې په تخت کښې څه رداوبدل اوکړئ .«يعنى هغه دومره بدل کړئ چه هغه ئې کله اووينى نوچه اوئې نه پيژنى،داد دې دپاره چه»مونږاوګوروچه آياهغه به پيژندلې شى او کۀ په نه پيژندونکوکښې پاتې کيږي.«دهغه تخت په معرفت کښې،په کوم کښې چه د هغې دپاره ترميم کړې شوې دې،ددې رداوبدل مقصدد هغې د عقل آزمائش ووځکه چه حضرت سليمان ﷺ ته وئيل شوى ووچه د هغې په عقل کښې څه کمې دې نوپه دې وجه په تخت کښې څه قدرې کمې زياتې اوکړې شواوبدل کړې شو» کله چه هغه راغله نوپوښتنه ترې اوکړې شوه چه آياستاتخت هم داسې دې ؟«يعنى آياستاتخت هم ددې په شان دې» نوبلقيس جواب ورکړودا خو لکه چه هم هغه دې «يعنى خپل تخت ئې اوپيژندو،هغې هم دوى ته مغالطه ورکړه لکه څنګه چه دوى هغې ته مغالطه ورکړې وه،په دې وجه هغې ته داسې اونه وئيل شول چه آياداستاتخت دې ؟ اوکه داسې ورته وئيل شوى وى نوداسې به ئې وئيلى وې چه "نعم".کله چه سليمان ﷺ په هغې کښې علم اومعرفت اوليدونو وئې فرمائيل چه» مونږته ددې واقعې نه وړاندې هم وئيلې شوې وه،«د سباقوم ملکه به د فرمان تابعداري کوى اوخدمت کښې به حاضرېږي» اومونږمسلمانان وو.

نوټ: مفسرابن کثير ﷫ د "واوتيناالعلم "آيت د حضرت سليمان ﷺ قول ګرځولې دې اوعلامه محلى ﷫ هم دغه اختيارکړې دې،نورومفسرينود بلقيس قول ګرځولې دې او ترجمه ئې داکړې د چه مونږددې واقعې نه وړاندې هم پوهه وو چه ته د الله تعالى پيغمبر ئې اوستاد فرمان تابعدارشوى وو،» اوهغه «د الله تعالى د عبادت نه»د غيرالله عبادت راايساره کړې وه،«د صدها فاعل ماکانت تعبد دې» يقيناً هغه د کافرقوم نه وه»بلقيس ته داهم اووئيل شول چه محل ته تشريف يوسئ،«او هغه د صفااوشفاف شيشې سطح اوفرش وو،چه لاندې ترينه اوبۀ جارى وې،پکښې کبان هم وو،اودا د شيشې محل يا حوض ئى ددې دپاره جوړکړې ووچه حضرت سليمان ﷺ ته داوئيل شوى وو د بلقيس دواړه پنډئ اودواړه خپې د خرۀ د خپوپه شان دى» کله چه بلقيس محل ته اوکتل نودائې اوګنړله چه داژورې اوبۀ دى اوخپلې پنډئ ئې کلاوې کړې، «ددې دپاره چه وردننه شى اوحضرت سليمان ﷺ محل ته مخامخ په تخت باندې تشريف فرماوو،نود بلقيس خپې اوقدمونه ئې ښائسته اوموندل نوحضرت»سليمان «ﷺ هغې ته»اووئيل چه داخويود شيشې محل دې چه پرقيدونکې دې»«يعنى د شيشې نه جوړشوې محل دې !اوبلقيس ته ئې د اسلام دعوت ورکړو»بلقيس اووئيل چه اې ربه ايقيناً «ستانه بغيرد بل چاپه بندګئ کولوسره»ماپۀ خپل ځان باندې ظلم کړې

دې اوزه د سلیمان ﷺ سره په رب العالمین باندې ایمان راوړم. (او سلیمان ﷺ د هغې سره د نکاح کولو اراده اوکړه لیکن د هغې د پنډئ وینښته ئې ناخوښه کړل نو په دې وجه شیطانانو د هغې د پاره نوره (بال صفا) جوړه کړه پس د هغې نه بلقیس په هغې سره وینښته صفا کړل او پس د هغې نه سلیمان ﷺ د هغې سره نکاح اوکړو او هغه ئې په خپل ملک باندې برقرار او ساتله، حضرت سلیمان ﷺ به د هغې سره هره میاشت کښې یو ځل ملاقات کولو، او درې ورځې به ئې ورسره قیام کولو، د حضرت سلیمان ﷺ د بادشاهت د ختمیدو سره د بلقیس بادشاهت هم اختتام ته اورسیدو، روایت کړې شوې دې چه حضرت سلیمان ﷺ چه کله د دیارلسو کالووونو بادشاه جوړ شوې وو او کله چه د دریوپنځوسو کالو شو نو وفات شو، یو الله تعالی دې چه د هغه باشاهئ لره ختمیدل او زوال نشته.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** عفریت من الجن: د دې پیری نامه ذکوان یا صخرو.

**قوله:** آصف بن برخیا: وئیلی شوی دی چه داد حضرت سلیمان ﷺ د ترور (ماسی) خوې وو، او په لویو اولیاء کرامو کښې وو، دد په لاس به خارق العادة کارونه ډیر ښکاره کیدل.

**قوله:** ثم رده بطرفه: بطرفه کښې باء زائد د.

**قوله:** بالافضال علی من یکفرها: یعنی هغه خپل عام نعمتونه د کفر او د ناشکرئ په وجه نه سلب کوی، "قال نکروالها" د دې عطف په "قال هٰذا من فضل ربّی" باندې دې.

**قوله:** ننظر: د جواب امر کیدو په وجه مجزوم دې.

**قوله:** فکرة شعر ساقیها: د اتفسیر د ماقبل تفسیر "فرأی ساقیها و قدمیها حسانا" سره متعارض دې، ځنو حضراتو د اتوجیه کړې د چه د وینښتونه قطع نظر د هغې قدمونه او پنډئ ښائسته وې، لیکن د اتوجیه زړه ته نه کوزیږی.

**قوله:** ممرد" د تمرید نه مشتق دې معنی ئې د "خویه، هوار" أمرد د دې نه دې.

**[ایاتونه: ۴۵ - ۵۹]**

(وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا إِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ) مِن القبيلة (صَالِحًا أَنِ) اي بان (اعْبُدُوا اللَّهَ) وحدوه (فَإِذَا هُمْ فَرِيقَانِ يَخْتَصِمُونَ) في الدين فريق مؤمنون من حين ارساله اليهم وفريق كافرون (قَالَ) للمكذبين (يَا قَوْمِ لِمَ تَسْتَعْجِلُونَ بِالسَّيِّئَةِ قَبْلَ الْحَسَنَةِ) اي بالعذاب قبل الرحمة حيث قلتم ان كان ما اتيتنا به حقا فأتنا بالعذاب (لَوْلَا) هلا (تَسْتَغْفِرُونَ اللَّهَ) من الشرك (لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ) فلا تعذبون (قَالُوا اطَّيَّرْنَا) اصله تطيرنا ادغمت التاء في الطاء واجتلبت همزة الوصل اي تشاء منا (بِكَ وَبِمَن مَّعَكَ) المؤمنين حيث قحطوا المطر وجاعوا (قَالَ طَائِرُكُمْ) شؤمكم (عِندَ اللَّهِ) اتاكم به (بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ تُفْتَنُونَ) تختبرون بالخير والشر (وَكَانَ فِي

الْمَدِينَةِ} مَدِينَة ثَمُود {تِسْعَةُ رَهْطٍ} أَيْ رِجَال {يُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ} بِالْمَعَاصِي مِنْهَا قَرْضهمْ الدَّنَانِير وَالدَّرَاهِم {وَلَا يُصْلِحُونَ} بِالطَّاعَةِ {قَالُوا} أَيْ قَالَ بَعْضهمْ لِبَعْضٍ {تَقَاسَمُوا} أَيْ احْلِفُوا {بِاللَّهِ لَنُبَيِّتَنَّهُ} بِالنُّونِ وَالتَّاء وَضَمّ التَّاء الثَّانِيَة {وَأَهْلَه} أَيْ مَنْ آمَنَ بِهِ أَيْ نَقْتُلهُمْ لَيْلًا {ثُمَّ لَنَقُولَنَّ} بِالنُّونِ وَالتَّاء وَضَمّ اللَّام الثَّانِيَة {لِوَلِيِّهِ} لِوَلِيّ دَمه {مَا شَهِدْنَا} حَضَرْنَا {مَهْلِكَ أَهْلِهِ} بِضَمِّ الْمِيم وَفَتْحهَا أَيْ إِهْلَاكهمْ أَوْ هَلَاكهمْ فَلَا نَدْرِي مَنْ قَتَلَهُمْ {وَإِنَّا لَصَادِقُونَ} {وَمَكَرُوا} فِي ذَلِكَ {مَكْرًا وَمَكَرْنَا مَكْرًا} أَيْ جَازَيْنَاهُمْ بِتَعْجِيلِ عُقُوبَتهمْ {وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ} {فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ مَكْرِهِمْ أَنَّا دَمَّرْنَاهُمْ} أَهْلَكْنَاهُمْ {وَقَوْمَهُمْ أَجْمَعِينَ} بِصَيْحَةِ جِبْرِيل أَوْ بِرَمْيِ الْمَلَائِكَة بِحِجَارَةٍ يَرَوْنَهَا وَلَا يَرَوْنَهُمْ {فَتِلْكَ بُيُوتُهُمْ خَاوِيَةً} أَيْ خَالِيَة وَنَصْبه عَلَى الْحَال وَالْعَامِل فِيهَا مَعْنَى الْإِشَارَة {بِمَا ظَلَمُوا} بِظُلْمِهِمْ أَيْ كُفْرهمْ {إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَةً} لَعِبْرَة {لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ} قُدْرَتنَا فَيَتَّعِظُونَ {وَأَنْجَيْنَا الَّذِينَ آمَنُوا} بِصَالِحٍ وَهُمْ أَرْبَعَة آلَاف {وَكَانُوا يَتَّقُونَ} الشِّرْك {وَلُوطًا} مَنْصُوب بِاذْكُرْ مُقَدَّرًا قَبْله وَيُبْدَل مِنْهُ {إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ أَتَأْتُونَ الْفَاحِشَةَ} أَيْ اللِّوَاط {وَأَنْتُمْ تُبْصِرُونَ} أَيْ يُبْصِر بَعْضكُمْ بَعْضًا انْهِمَاكًا فِي الْمَعْصِيَة {أَئِنَّكُمْ} بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَتَسْهِيل الثَّانِيَة وَإِدْخَال أَلِف بَيْنهمَا عَلَى الْوَجْهَيْنِ {لَتَأْتُونَ الرِّجَالَ شَهْوَةً مِنْ دُونِ النِّسَاءِ بَلْ أَنْتُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ} عَاقِبَة فِعْلكُمْ {فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِ إِلَّا أَنْ قَالُوا أَخْرِجُوا آلَ لُوطٍ} أَهْله {مِنْ قَرْيَتِكُمْ إِنَّهُمْ أُنَاسٌ يَتَطَهَّرُونَ} مِنْ أَدْبَار الرِّجَال {فَأَنْجَيْنَاهُ وَأَهْلَهُ إِلَّا امْرَأَتَهُ قَدَّرْنَاهَا} جَعَلْنَاهَا بِتَقْدِيرِنَا {مِنَ الْغَابِرِينَ} الْبَاقِينَ فِي الْعَذَاب {وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ مَطَرًا} هُوَ حِجَارَة السِّجِّيل فَأَهْلَكَتْهُمْ {فَسَاءَ} بِئْسَ {مَطَرُ الْمُنْذَرِينَ} بِالْعَذَابِ مَطَرهمْ {قُلِ} يَا مُحَمَّد {الْحَمْدُ لِلَّهِ} عَلَى هَلَاك الْكُفَّار مِنَ الْأُمَم الْخَالِيَة {وَسَلَامٌ عَلَى عِبَادِهِ الَّذِينَ اصْطَفَى} هُمْ {آللَّهُ} بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَإِبْدَال الثَّانِيَة أَلِفًا وَتَسْهِيلهَا وَإِدْخَال أَلِف بَيْن الْمُسَهَّلَة وَالْأُخْرَى وَتَرْكه {خَيْرٌ} لِمَنْ يَعْبُدهُ {أَمَّا يُشْرِكُونَ} بِالتَّاءِ وَالْيَاء أَيْ أَهْل مَكَّة بِهِ الْآلِهَة خَيْر لِعَابِدِيهَا

**ترجمه:** او يقيناً مونږ ثمود ديانوته د هغوى (د برادرئ) ورور صالح ليږلي وو چه تاسو تول د الله بندګي اوکړئ (يعنى د هغه د توحيد قائل شئ) ناڅاپه (د اميد خلاف) په هغوى کښې دوه ډلي شوې، (د دين په باره کښې) ترخپله مينځه ئې جګړې شروع کړې، (يوه ډله د مؤمنانووه، د هغوى طرف ته د صالح عليه السلام د ليږلود وخت نه اوبله ډله د کافرانووه) هغه (صالح عليه السلام تکذيب کوونکوته) اووئيل چه اې زماد قوم خلقو ! تاسو د نيکئ نه ورآندې د بدئ جلتى ولې کوئ ؟ (يعنى د رحمت نه ورآندې د عذاب جلتى ولې کوئ، په دې اعتبار سره چه تاسو اووئيل چه که ته په خپله خبره کښې رينښتونې ئې کومه چه تا مونږ ته راوړې ده نو په مونږ باندې عذاب راوله) تاسو ولې د الله نه د شرک نه معافى نه غواړئ ددې دپاره چه په تاسو باندې رحم اوکړې شى، (چه په عذاب کښې مبتلا نه شئ) هغه خلقو اووئيل چه مونږ تاله اوستا ملګرتيا کوونکو له (يعنى مؤمنانوله) سپيره ګنړو، (اطيرنا په اصل کښې تطيرنا وو، تاء

په طاء کښې ادغام شوه، د ابتداء بالسکون لازمیدو په وجه په شروع کښې همزه داخله کړې شوه نواطیرناشو، یعنی ستاپه وجه مونږ په نحوست اوسپیرۀ والی کښې مبتلاشو، ځکه چه قوم د وچ کالئ اود قحط ښکارشو، (حضرت صالح ﷺ اوفرمائیل چه ستاسونحوست د الله سره دې (هم هغه په تاسوباندې راوستې دې)لیکن تاسو هغه خلق یئ چه (د خیراوشرپه ذریعه)په امتحان کښې مبتلاشوی یئ، اود ثمودپه ښار (حجر)کښې نهه داسې کسان وو چه (د نافرمانیوپه وجه ئې) په زمکه (ملک) کښې فسادخورولو، (هم ددې فسادپه طریقوکښې د دراهمواودنانیروکټ کول هم شامل وو) او (د طاعت په ذریعه ئې لره)اصلاح هم نه کوله، دې خلقو (په خپل مینځ کښې یوبل ته)اووئیل چه په الله قسم اوخورئ چه مونږ به د شپې په صالح ﷺ اود د په اهل باندې حمله کوؤ(یعنی د شپې به ئې مونږ خامخا وژنو، "لنبیتنه"په نون سره اوپه ځائ د نون په تاء سره اود تا ثانی په ضمې سره، اود اهل نه د حضرت صالح ﷺ باندې ایمان لرونکی خلق مراددی) اوبیابه مونږد هغه ولی دم تصفا وایوچه مونږد هغه د اهل د هلاکیدوپه وخت کښې موجود (هم)نه وو (لنقولنّ په نون سره اود تَ، او لام ثانی په ضمې سره اومهلک د میم په ضمې سره یعنی د هغوی د هلاکولوپه وخت کښې اود میم په فتحې سره یعنی د هغود هلاکیدوپه وخت کښې، لهٰذا مونږنه خبرچه، چابه وژلی وی ؟) اومونږبالکل ریښتونی یو، هغوی (په دې معامله کښې) یوپټ تدبیر اوکړو او مونږ (هم)یوتدبیراوکړو (یعنی مونږهغوی لره په فوری عذاب کښې راګیرکړل او سزا مو ورکړه) اوهغوته خبرهم اونه شونواوګوره د هغود مکرڅه انجام شو ؟مونږهغوی لره اود هغوی پوره قوم لره (د جبرائیل د چغې په ذریعې یاد فرښتود کاڼوویشتلوپه ذریعې سره) هلاک کړل (هغوې به کاڼی لیدل لیکن فرښتې ئې نه لیدلې) نودادي،د هغوی ځایونه کوم چه د ظلم په وجه خالی پراته دی(یعنی د هغوی د کفرپه وجه، خَاوِیَةً د حال کیدوپه وجه منصوب دې، اوعامل پکښې د اسم اشاره معنی د یعنی اشیر)بې شکه په دې (تدبیر)کښې غټ عبرت دې دهغه خلقودپاره چه زمونږقدرت پیژنی (نونصیحت ترې حاصلوی)اومونږ هغه خلقوته کوموچه (په صالح ﷺ باندې) ایمان راوړې وو(اوهغوی ځلورزره وو)خلاصې ورکړواوهغوی (د شرک نه)ځان ساتلو، اولوط ﷺ لره هم یادکړه دلته لوطا د ماقبل اذکرمحذوف په وجه منصوب دې او"اذقال لقومه "د "اذکرلوطا"نه بدل دې)کله ئې چه خپل قوم ته اوفرمائیل چه آیاتاسو د بې حیایئ (یعنی لواطت)کارکوئ په داسې حال کښې چه تاسو(یوبل لره په دې معصیت کښې ورډوب)وینی، (یعنی یوبل لره مشغول وینئ)آیاتاسو د ښځونه بغیرد نارینؤنه شهوت پوره کوئ ؟(په آئنکم کښې د دواړوهمزوپه تحقیق سره اود ثانی په تسهیل سره اوبیاپه دې دواړوصورتونوکښې د دواړوترمینځه په الف داخلولوسره)بلکه تاسوداسې قوم یئ چه (د خپل کارد انجام نه)بې خبره یئ (د قوم سره جواب بغیرددې وئیلونه بل څه نه وو چه د

لوط متعلقين د خپل ښارنه اوباسئ داخلق (د نارينو د دبرې معامله كښي) ډير پاک جوړيږي، نوموږ لره اودد اهل لره سيواد د ښځې نه بچ كړل اوموږهغه (دد ښځه په عذاب كښي) په پاتي كيدونكي كښې كړه، اوموږپه هغوى باندې د يوخاص قسم باران اوور ولو(هغه كوډ كاڼو كاڼي ور كوم)چه هغوى لره هلاک كړل نوددې عذاب نه په ويرولوشوؤباندې هغه بدباران وو.(اې محمد ﷺ)اووايه (د تيروشوو قومونوپه هلاكولوسره)ټول تعريفونه د الله دپاره دي اود هغه په غوره بندګانوباندې سلام دې،آياالله غوره دې (د هغه چا دپاره چه څوک ئې بندګي كوي)ياهغه چه دوى شريكان جوړي كړي دى.(په ءالله خيركښې د دواړوهمزوپه تحقيق سره اود دويمې په الف سره بدلولوسره اود مسهله اومحققه ترمينځ د الف په داخلولوسره اوپه ترک سره،يشركون په ياء اوتاء سره، يعنى اې د مكې والؤءالله تعالى بهتردې ياهغه څيزونه كوم چه تاسود الله تعالى سره د معبودپه حيثيت سره شريک كړي دى،د خپلو عابدينودپاره بهتردى.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله: ولقدأرسلناإلى ثمودأخاهم:** ثمودددې قبيلې د جدابعدنوم دې حضرت صالح ﷺ هم دوى د نسل نه دې،هم ددې ابوالجدپه نوم سره د قبيلې نوم كيښودلې شوې دې ليكن قبيله مراده،د حضرت صالح ﷺ امت ته عادثانيه هم وئيلې كيږي،عاداولى د هود ﷺ د قوم نوم دې،د عاد اولى اود عادثانيه ترمينځه سل كاله فاصله ده.

**قوله: صالحاً:** د اخاهم نه بدل ياعطف بيان دې،حضرت صالح ﷺ دوه سوه اتياكاله عمر موندلې وو،د هود ﷺ عمرڅلورسوه څلورشپيته كاله وو،د هود ﷺ اود نوح ﷺ ترمينځه آته سوه كاله فاصله د.

**قوله: فاذاهم فريقان يختصمون:** د فريقان نه قوم صالح مراددې،يعنى څنوخلقوايمان راؤړواوڅنورانه وړو،علامه زمخشرى په دوه فريقوكښې يوفريق حضرت صالح ﷺ اوبل د هغوى قوم ګرځولې دې،علامه زمخشرى لره په دې توجيه باندې يعنى د فريقان نه دامطلب اخستوباندې د فاء په ذريعه سره عطف آماده كړې دې ځكه چه فاء په تعقيب بالاتصال باندې دلالت كوى،يعنى د دعوې د رسالت سره متصلاً دوه ډلې شوې،يوفريق حضرت صالح ﷺ اوبل فريق د هغه قوم .

**قوله: يختصمون:** په اعتبارد معنى سره د فريقان صفت دې يعنى فريقان كوم چه موصوف دې اګرچه په اعتبارد لفظ سره تثنيه د ليكن كله چه هرفريق په څوافرادوباندې مشتمل دى په دې وجه په دې كښې د جمعيت معنى ده په موصوف اوصفت كښې مطابقت موجوددې.

**قوله: لم تستعجلون بالسيئة** : اى بطلب السيئة، د سيئه نه عذاب اود حسنه نه رحمت مراد دي،لکه څنګه چه ورته مفسرعلام اشاره کړې د.

**قوله: قحطوا المطر اى حبسوا المطر**: يعنى ستاسو د نحوست په وجه باران بندشوې دې.

**قوله: مدينة ثمود**: وئيلى شوى دى چه د ثمودد ښارنوم حجرو،اوځنومفسرينووئيلى دى چه حجرد مدينې اود شام ترمينځه يوه وادى د،هم دلته د ثموديانوآبادى وه.

**قوله: رهط** : د رهط تفسيرئې په رجال سره کولو کښې اشاره د دې خبرې ته چه رهط د تسعة نه په اعتبارد معنى سره تميزواقع شوي دې،رهط اګرچه د لفظ په اعتبارسره مفرد دې ليکن د معنى په اعتبارسره جمع دې،په دې وجه ئې تميزواقع کيدل صحيح دى، په تسعة رهط کښې اضافت بيانى دې،اى تسعة هم رهط. رهط د لسونه کمو افرادو ته وئيلې کيږى په کوموکښې چه زنانه نه وى.د تقاسمواتفسير په احلفواسره کولو کښې اشاره د دې خبرې ته چه دا صيغه د امرد ،مطلب دادې چه دې نهوکسانوکوموچه د اوښې اود حضرت صالح ﷺ د اهل خانې د وژلومنصوبه جوړه کړې وه،دوى په خپل مينځ کښې اووئيل چه قسمونه اوخورئ چه مونږبه په صالح ﷺ اود هغه په اهل خانه باندې د شپې حمله کوؤ،تقاسموا فعل ماضى هم کيدې شى په دې صورت کښې به د لقالوا تفسيرواقع شى،نوګوياچه سوال اوکړې شوچه ماقالوا ؟ فقيل تقاسموا،لنبيتنه مضارع جمع متکلم بانون تاکيدثقيله، ه ضميرمفعول باب تفعيل، مونږبه په د باندې خامخاپه شپه کښې حمله کوؤ.

**قوله: بما ظلموا**:ددې تفسيرئې په بظلمهم سره کوکو کښې اشاره کړې د دې خبرې چه مَا مصدريه د اوباء سببيه د.

**قوله: امنوبصالح**:په نوروتفاسيروکښې امنوا صالحا دې.

**قوله: وانتم تبصرون** : د تاتون د ضميرنه جمله حال واقع دې، مقصدد نکير تاکيد او تشديد دې،په يبصربعضکم بعضاسره دې خبرې ته اشاره د چه د رؤيت نه رؤيت بصرى مراددې،يعنى دوى به د يوبل په وړاندې داخبيث عمل کولو.ځنود رؤيت نه رؤيت قلبى مرادکړې دې يعنى سره د پوهې تاسوداحرکت کوئ.

**قوله: لتاتون الرجال شهوة من دون النساء**: په دې سره چه په اتاتون الفاحشة کښې کوم ابهام وونود هغې تعين اوکړې شو،اولًا مبهم ساتلوکښې دې طرف ته اشاره د چه دا حرکت ناقابل بيان بلکه ددې وصف بيانول انتهائى مشکل اوګران دى،هيڅ يو عقلمند اوپوهه کس به ددې تصديق او نه کړى چه يوداسې عمل هم د چانه صادريدې شى.

**قوله: من دون النسآء:** په دې کښې دې خبرې ته اشاره د چه په دې حرکت کښې دوه طرفه معصيت اونافرماني ديعني يود نارينه سره فعل معصيت دې اوبل د ښځوترک معصيت دې.

**قوله: تجهلون:** سوال .دلته تجهلون د قوم صفت دې حال داچه مطابقت نشته ځکه چه قوم غائب دې اوتجهلون حاضردې؟ جواب دادې چه کله غيبت اومخاطبت دواړه جمع شی نود مخاطبت د اقوٰی کيدوپه وجه مخاطبت ته په غيبت باندې غلبه ورکول کيږی، (جمل) داهم وئيل شوی دی چه چونکه مخاطب قوم دې په دې وجه ئې د حاضرپه درجه کښې اوساتلوصفت ئې د مخاطب په صيغې سره راوړلې شو.

**قوله: عاقبة:** په دې کښې اشاره دې خبرې ته د چه د تجهلون مفعول محذوف دې.

**قوله: فماكان جواب قومه:** د كان خبرمقدم دې الا ان قالوا ئې اسم دې ای الا قولهم، اوابن ابی اسحاق جواب په رفع سره لوستلې دې اود كان دپاره ئې اسم ګرځولې دې او مابعد ئې ددې خبرګرځولې دې.

**قوله: وامطرناعليهم مطرا:** داتاکيدپه شدت د مطر باندې دلالت کولو دپاره دې يعنی هغه باران غيرمعمولی اوغيرمعهودوو،بالعذاب د منذرين سره متعلق دې اومطرهم مخصوص بالذم دې.

## پاره نمبر۲۰ [أمن خلق]
## [اياتونه:۶۰-۶۶]

{أمن خلق السماوات وَالْأَرْض وَأَنزَلَ لَكُم مِّنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَنبَتْنَا} فِيهِ الْتِفَات مِنَ الْغَيْبَة إلَى التَّكَلُّم {بِهِ حَدَائِقَ} جَمْع حَدِيقَة وَهُوَ الْبُسْتَان الْمَحُوط {ذَاتَ بَهْجَةٍ} حُسْن {مَّا كَانَ لَكُمْ أَن تُنبِتُوا شَجَرَهَا} لِعَدَمِ قُدْرَتكُمْ عَلَيْهِ {أَإِلَٰهٌ} بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَتَسْهِيل الثَّانِيَة وَإِدْخَال أَلِف بَيْنهمَا عَلَى الْوَجْهَيْنِ فِي مَوَاضِعه السَّبْعَة {مَّعَ اللَّهِ} أَعَانَهُ عَلَى ذَلِكَ أَيْ لَيْسَ مَعَهُ إلَه {بَلْ هُمْ قَوْمٌ يَعْدِلُونَ} يُشْرِكُونَ بِاَللَّهِ غَيْره {أَمَّن جَعَلَ الْأَرْضَ قَرَارًا} لَا تَمِيد بِأَهْلِهَا {وجعل خلالها} فيما بينها {أنهارا وَجَعَلَ لَهَا رَوَاسِيَ} جِبَالًا أَثْبَتَ بِهَا الْأَرْض {وَجَعَلَ بَيْنَ الْبَحْرَيْنِ حَاجِزًا} بَيْن الْعَذْب وَالْمِلْح لَا يَخْتَلِط أَحَدهمَا بِالْآخَرِ {أَإِلَٰهٌ مَّعَ اللَّهِ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ} تَوْحِيده {أَمَّن يُجِيبُ الْمُضْطَرَّ} الْمَكْرُوب الَّذِي مَسَّهُ الضُّرّ {إِذَا دَعَاهُ وَيَكْشِفُ السُّوءَ} عَنْهُ وَعَنْ غَيْره {وَيَجْعَلُكُمْ خُلَفَاءَ الْأَرْضِ} الْإِضَافَة بِمَعْنَى فِي أَيْ يَخْلُف كُلّ قَرْن الْقَرْن الَّذِي قَبْله {أَإِلَٰهٌ مَّعَ اللَّهِ قَلِيلًا مَّا تَذَكَّرُونَ} تَتَّعِظُونَ بِالْفَوْقَانِيَّةِ وَالتَّحْتَانِيَّة وَفِيهِ إدْغَام التَّاء فِي الذَّال وَمَا زَائِدَة لِتَقْلِيلِ الْقَلِيل {أَمَّن يَهْدِيكُمْ} يُرْشِدكُمْ إلَى مَقَاصِدكُمْ {فِي ظُلُمَاتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ} بِالنُّجُومِ لَيْلًا وَبِعَلَامَاتِ الْأَرْض نَهَارًا {وَمَن يُرْسِلُ الرِّيَاحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهِ} قُدَّام الْمَطَر {أَإِلَٰهٌ مَّعَ اللَّهِ تَعَالَى اللَّهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ} بِهِ غَيْره {أَمَّن يَبْدَأُ الْخَلْقَ} فِي الْأَرْحَام مِنْ نُطْفَة {ثُمَّ يُعِيدُهُ} بَعْد الْمَوْت وَإِنْ لَمْ تَعْتَرِفُوا بِالْإِعَادَةِ لِقِيَامِ الْبَرَاهِين عَلَيْهَا {وَمَن يَرْزُقُكُم مِّنَ

السماء، بالمطر (وَالْأَرْضِ) بالنبات (أَإِلٰهٌ مَعَ اللّٰهِ) اي لا يفعل شيئا مما ذكر الا الله ولا اله معه (قُلْ) يا محمد (هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ) حجتكم (إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ) ان معي الها فعل شيئا مما ذكر وسألوه عن وقت قيام الساعة فنزل (قُلْ لَا يَعْلَمُ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ) من الملائكة والناس (الْغَيْبَ) اي ما غاب عنهم (إِلَّا) لكن (اللّٰهُ) يعلمه (وَمَا يَشْعُرُونَ) اي كفار مكة كغيرهم (أَيَّانَ) وقت (يُبْعَثُونَ) (بَلْ) بمعنى هل (أدرك) وزن اكرم وفي قراءة ادارك بتشديد الدال واصله تدارك ابدلت التاء دالا وادغمت في الدال واجتلبت همزة الوصل اي بلغ ولحق او تتابع وتلاحق (عِلْمُهُمْ فِي الْآخِرَةِ) اي بها حتى سألوا عن وقت مجيئها ليس الامر كذلك (بَلْ هُمْ فِي شَكٍّ مِنْهَا بَلْ هُمْ مِنْهَا عَمُونَ) من عمى القلب وهو ابلغ مما قبله والاصل عميون استثقلت الضمة على الياء فنقلت الى الميم بعد حذف كسرتها

**ترجمه:** اوښایئ ؟آیاهغه ذات (غوره دی)چاچه اسمانونه اوزمکه جوړکړی دی اود اسمان نه ئې ستاسودپاره اوبه راورولې دی بیامونږدې اوبوپه ذریعه باغونه د حسن والا راوټوکول،(په انبتناکښې د غیبت نه تکلم طرف ته التفات دې،حدائق د حدیقة جمع د هغه باغ ته وئیل کیږی چه د هغې نه څلورواړه خونوته دیوال وهلې شوې وی،)ستاسودپاره ممکنه نه وه چه ددې باغونونه ونې راوټوکوئ،(ستاسوپه دې باندې د نه قدرت لرلوپه وجه، داموچه واورېدل نودا اوښایئ چه)آیاد الله سره بل معبودشته ؟(په دې کارباندې دمددکولودپاره،یعنی دهغه سره بل هیڅ څوک اله نشته،په ءاله کښې د دواړوهمزوپه تحقیق سره اود دویمې په تسهیل سره اوپه دواړوصورتونوکښې د دواړوهمزوترمینځه په الف داخلولوسره په اوږدایونوکښې)بلکه داداسې خلق دی چه د الله سره برابر جوړوی.(یعنی غیرالله لره د الله سره شریک گرځوی)یاهغه ذات چه زمکه ئې قرارگاه جوړه کړه، (ددې دپاره چه د زمکې والوباندې اونه خوزی)اوددې په مینځ کښې ولې روانې کړې، (اود زمکې د ټینګولودپاره ئې) غرونه جوړکړل،(چه د هغې په ذریعه ئې زمکه ساکنه کړه ددې دپاره چه هغه اضطرابی حرکت اونه کړی)اودوو دریابونو (یعنی د خوږاوترېخ)ترمینځه ئې حد فاصل جوړکړو،(ددې دپاره چه په خپلوکښې خلط ملط نه شی) آیاد الله سره بل معبود شته ؟ بلکه په دوی کښې زیات خلق (په توحید)نه پوهیږی، آیاهغه ذات کوم چه د بې قراره کس دعا اوری کله چه د هغه نه غوښته کوی (یعنی ددې مصیبت زپلی کس کوم چه په تکلیفونو کښې مبتلا دې)اودد (اود نوروهم) مصیبتونه لرې کوی اوتاسود زمکې خلیفه گان جوړوی، (په خلفاء الارض کښې اضافت په معنی د فی دې یعنی هرنوې نسل د راتلونکی نسل د پاره قائم مقام جوړوی) آیاد الله سره بل معبودشته ؟تاسودیرکم نصیحت حاصلوئ،(تذکرون کښې په تاء اویاء دواړه قراتونه راغلی دی اوپه دې کښې د تاء په ذال کښې ادغام دې او ما پکښې زائد د قلیل د قلت یعنی د عدم بیانولودپاره)آیاهغه ذات کوم چه تاسوته (ستاسود

مقاصدو په طرف» د وچې اود لوندې په تیاروکښې لاربنودنه کوی» د شپې د ستوروپه ذریعې سره اود ورځې د زمکې د علاماتوپه ذریعې سره» اوهغه ذات چه «د باران نه وړاندې» زیرې ورکوونکې بادونه چلوی آیاده‌ٔالله سره بل معبودم شته ؟الله د هغه تولوخیزونه پاک دې «کوم چه دوی د الله سره شریک جوړوی» آیاهغه ذات کوم چه مخلوق «د موریه رحم کښې د نطفې نه» ابتداءً پیداکوی بیابه ئې «د مرګ نه وروستو» واپس کوی «اګرچه د هغوی د اعادې عقید نه وه لیکن چونکه په اعاد باندې براهین قاطعه موجوددی ځکه د هغوی نه د دویم ځل د تخلیق په باره کښې پوښتنه اوشوه» اوهغه ذات چه د اسمان نه «د باران په ذریعه» اود زمکې نه «د زرغونې په ذریعه» تاسوته روزی درکوی «ددې اوریدوسره اوس اووایئ چه» آیاد الله سره بل کوم معبودشته ؟«یعنی په دې مذکوره کارونوکښې د الله نه سیوا بل هیڅوک څه نه شی کولې اونه بل هیڅ یومعبود د هغه سره شته، اې محمد ﷺ» ته اووایه چه که تاسوریښتونی یئ نودلیل راوړئ، «په دې خبره چه ماسره بل معبودشته چاچه په دې مذکوره کارونوکښې څه کارکړې وی ؟اوکله چه مشرکانو د حضور ﷺ نه د قیامت د قائمیدو د وخت په باره کښې پوښتنه اوکړه نودارارون آیت نازل شو» ته اووایه چه د اسمان اود زمکې والوْنه «که هغه فرښتې وی که انسانان وی» په غیب «یعنی د خپل ځان نه په پټوخیزونوباندې» هیڅوک نه پوهیږی سیواد الله نه «چه هغه پرې پوهیږی» اوکافران «هم د نوروپه شان» په دې نه پوهیږی چه کله به راپورته کولې شی ؟«بل په معنی د هل دې، ادرک په وزن د اکرم په یوقراءت کښې اوپه بل قراءت کښې ادّارک په تشدیدسره، اصل کښې تدارک ووتاء په دال سره بدله کړې شوه اودال په دال کښې مدغم کړې شو، د ابتداء بالسکون لازمیدوپه وجه په شروع کښې همزه د وصل اضافی کړې شوه یعنی بلغ ولحق، دامعنی به د رومبنی قراءت په صورت کښې شی اوتتابع اوتلاحق به د دویم قراءت په صورت کښې شی یعنی» د دوی علم دآخرت په باره کښې ستړی شوې دې «عاجزشوې دې» چه د هغې په وجه ئې د آخرت د وخت د راتلوپه باره کښې پوښتنه کړې وی خبره داسې نه د، فی الآخرة کښې فی په معنی د باء د ای بها» بلکه داخلق د قیامت د وقوع په باره کښې په شک کښې مبتلا دی بلکه ددې نه دوی ړاند جوړشوی دی «د زړه ړاندهٔ، اوداد ماقبل نه ابلغ دې، یعنی بل هم منهاعمون د ادارک علمهم نه ابلغ دې، اوعمون په اصل کښې عمیون وو، ضمه په یاء باندې ګرانه وه د میم د کسرې د حذف کولونه وروستومیم ته ورکړې شوه.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** أمّن خلق السمٰوات والأرض : دا اَم منقطعه دې، ابوحاتم وئیلی دی چه ددې تقدیرداسې دې ءالٰهتکم خیرأمن خلق السمٰوات والارض، اوځنوحضراتود آیت معنی دابیان کړې د چه اَعبادة ماتعبدون من أوثانکم خیرأم عبادة من خلق السمٰوات والارض

په دې صورت کښې به أم متصله وی اود توبیخ اوتهکم په معنی به وی.

**قوله: قوم یعدلون** : داد عدل نه مشتق دې چه معنی ئې د برابرول،مفسرعلام هم دغه معنی مراد اخستې د،اود عدول نه هم مشتق کیدې شی چه معنی ئې د د حدنه تجاوزکول.یعنی ټاسود حدنه تجاوزکوونکې قوم یئ.څنوحضراتوامن جعل والارض قرارا اوورپسې راتلونکې دغه شان جملې د امن خلق السمٰوات نه بدل ګرځولې دی.راجح اوبهترقول دامعلومیږی چه بَل په درې وارو ځایونوکښې د تبکیت د یوې طریقې نه بلې طریقې ته د انتقال دپاره دې.

**قوله: خلالها**: د جعل دپاره ظرف هم کیدې شی کۀ جَعَلَ په معنی د خلق واخستې شی اود جعل دپاره مفعول ثانی هم کیدې شی کۀ جعل په معنی د صیّر واخستې شی.

**قوله: ویکشف السوء**: ددې عطف په یجیب المضطرباندې دې،داد عطف د خاص علی العام د قبیلې نه دې،مفسرعلام عنه وعن غیره وئیلو سره هم دې طرف ته ئې اشاره اوکړه.

**قوله: تقلیل القلیل**: داکنایه ده د عدم بالکلیه نه مراد د تذکّرمطلقانفی ده.

**قوله: وان لم یعترفوا بالاعادة**: داد یو مقدرسوال جواب دې،سوال دادې چه کله کفارد اعاد بعدالموت قائل نه دی نوبیا هغوی ته داوئیل چه هغه ذات چه ابتداءً تخلیق کوی اود مرګ نه پس به بیاژوندی کول کوی،څنګه صحیح کیدې دې ؟

د جواب حاصل دادې چه کفاراګرچه د اعاد بعدالموت قائل نه و لیکن ابتداءً د تخلیق قائل وو،د ابتداء په اعاد باندې دلالت ظاهراواقوی دې نوپه دې وجه دوی د اعادې قائلین اومعترفین فرض کړې شو اود اعادې په باره کښې ترې تپوس اوکړې شو.

**قوله: ءَإِلٰه مع الله** : داجمله دلته پینځه ځایه مسلسل ذکرشوې د اولنې ئې په بل هم قوم یعدلون باندې ختمه کړې د،دویمه ئې په بل اکثرهم لایعلمون باندې ختمه کړې د،دریمه ئې په قلیلا ماتذکرون باندې ختمه کړېد،څلورمه ئې په عمّا یشرکون باندې اوپنځمه ئې په قل هاتوا برهانکم ان کنتم صادقین باندې ختمه کړې ده.

**قوله: انّ معی إلٰها**: دیر صحیح دادې آنّ معه الٰها ځکه چه مخکښې ءالهة معه وئیلې شوې دې،په څنونسخوکښې د معه په ځائ مع الله دې،کوم چه بالکل واضح دې،د الّاتفسیرئې په لکنّ سره اوکړوپه دې کښې دې خبرې ته اشاره د چه دامستثنٰی منقطع د ځکه چه کۀ مستثنٰی متصله اوګرځولې شی نوالله به په من فی السمٰوات والارض کښې شامل شی،اود من فی السمٰوات والارض دپاره د مکان ضرورت دې نود الله دپاره به هم مکان ثابت شی،کوم چه غلط دې،نوپه دې وجه مستثنٰی لره مستثنٰی منقطعه ګرځولې ده.

د فی الاخرة تفسیرئې بهاسره اوکړو،اشاره دې خبرې ته د چه دلته فاء په معنی دباء سره

د ،یعنی آیاد آخرت په باره کښې ددوی علم عاجزشوی دی.

**قوله: لیس الامرکذالك:** په دې سره اشاره د دې خبرې ته چه بَل په معنی د هل دې اود استفهام انکاری دپاره دی، أی لم یحصل لهم علم بالآخرة أی لم یصدقوا بها ولم یحققوها"

**[ایاتونه: ۶۷-۸۲]**

{وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا} أَيْضًا فِي إِنْكَارِ الْبَعْثِ {أَئِذَا كُنَّا تُرَابًا وَآبَاؤُنَا أَئِنَّا لَمُخْرَجُونَ} مِنَ الْقُبُورِ {لَقَدْ وُعِدْنَا هَذَا نَحْنُ وَآبَاؤُنَا مِنْ قَبْلُ إِنْ} مَا {هَذَا إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ} جَمْعُ أُسْطُورَةٍ بِالضَّمِّ أَيْ مَا سُطِرَ مِنَ الْكَذِبِ {قُلْ سِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَانْظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُجْرِمِينَ} بِإِنْكَارِهِمْ وَهِيَ هَلَاكُهُمْ بِالْعَذَابِ {وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُنْ فِي ضَيْقٍ مِمَّا يَمْكُرُونَ} تَسْلِيَةٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيْ لَا تَهْتَمَّ بِمَكْرِهِمْ عَلَيْكَ فَإِنَّا نَاصِرُوكَ عَلَيْهِمْ {وَيَقُولُونَ مَتَى هَذَا الْوَعْدُ} بِالْعَذَابِ {إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ} فِيهِ {قُلْ عَسَى أَنْ يَكُونَ رَدِفَ} قَرُبَ {لَكُمْ بَعْضُ الَّذِي تَسْتَعْجِلُونَ} فَحَصَلَ لَهُمُ الْقَتْلُ بِبَدْرٍ وَبَاقِي الْعَذَابِ يَأْتِيهِمْ بَعْدَ الْمَوْتِ {وَإِنَّ رَبَّكَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ} وَمِنْهُ تَأْخِيرُ الْعَذَابِ عَنِ الْكُفَّارِ {وَلَكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَشْكُرُونَ} فَالْكُفَّارُ لَا يَشْكُرُونَ تَأْخِيرَ الْعَذَابِ لِإِنْكَارِهِمْ وُقُوعَهُ {وَإِنَّ رَبَّكَ لَيَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُورُهُمْ} تُخْفِيهِ {وَمَا يُعْلِنُونَ} بِأَلْسِنَتِهِمْ {وَمَا مِنْ غَائِبَةٍ فِي السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ} الْهَاءُ لِلْمُبَالَغَةِ أَيْ شَيْءٍ فِي غَايَةِ الْخَفَاءِ عَلَى النَّاسِ {إِلَّا فِي كِتَابٍ مُبِينٍ} بَيِّنٍ هُوَ اللَّوْحُ الْمَحْفُوظُ وَمَكْنُونُ عِلْمِهِ تَعَالَى وَمِنْهُ تَعْذِيبُ الْكُفَّارِ {إِنَّ هَذَا الْقُرْآنَ يَقُصُّ عَلَى بَنِي إِسْرَائِيلَ} الْمَوْجُودِينَ فِي زَمَانِ نَبِيِّنَا {أَكْثَرَ الَّذِي هُمْ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ} أَيْ بِبَيَانِ مَا ذُكِرَ عَلَى وَجْهِهِ الرَّافِعِ لِلِاخْتِلَافِ بَيْنَهُمْ لَوْ أَخَذُوا بِهِ وَأَسْلَمُوا {وَإِنَّهُ لَهُدًى} مِنَ الضَّلَالَةِ {وَرَحْمَةٌ لِلْمُؤْمِنِينَ} مِنَ الْعَذَابِ {إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِي بَيْنَهُمْ} كَغَيْرِهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ {بِحُكْمِهِ} أَيْ عَدْلِهِ {وَهُوَ الْعَزِيزُ} الْغَالِبُ {الْعَلِيمُ} بِمَا يَحْكُمُ بِهِ فَلَا يُمْكِنُ أَحَدًا مُخَالَفَتُهُ كَمَا خَالَفَ الْكُفَّارُ فِي الدُّنْيَا أَنْبِيَاءَهُ {فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ} ثِقْ بِهِ {إِنَّكَ عَلَى الْحَقِّ الْمُبِينِ} الدِّينِ الْبَيِّنِ فَالْعَاقِبَةُ لَكَ بِالنَّصْرِ عَلَى الْكُفَّارِ ثُمَّ ضَرَبَ أَمْثَالًا لَهُمْ بِالْمَوْتَى وَالصُّمِّ وَالْعُمْيِ فَقَالَ {إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَى وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَاءَ إِذَا} بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَتَسْهِيلِ الثَّانِيَةِ بَيْنَهَا وَبَيْنَ الْيَاءِ {وَلَّوْا مُدْبِرِينَ} {وَمَا أَنْتَ بِهَادِي الْعُمْيِ عَنْ ضَلَالَتِهِمْ إِنْ} مَا {تُسْمِعُ} سَمَاعَ إِفْهَامٍ وَقَبُولٍ {إِلَّا مَنْ يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا} الْقُرْآنِ {فَهُمْ مُسْلِمُونَ} مُخْلِصُونَ بِتَوْحِيدِ اللَّهِ {وَإِذَا وَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ} حَقَّ الْعَذَابُ أَنْ يَنْزِلَ بِهِمْ فِي جُمْلَةِ الْكُفَّارِ {أَخْرَجْنَا لَهُمْ دَابَّةً مِنَ الْأَرْضِ تُكَلِّمُهُمْ} أَيْ تُكَلِّمُ الْمَوْجُودِينَ حِينَ خُرُوجِهَا بِالْعَرَبِيَّةِ تَقُولُ لَهُمْ مِنْ جُمْلَةِ كَلَامِهَا عَنَّا {إِنَّ النَّاسَ} كُفَّارَ مَكَّةَ وَعَلَى قِرَاءَةِ فَتْحِ هَمْزَةِ إِنَّ تُقَدَّرُ الْبَاءُ بَعْدَ تُكَلِّمُهُمْ {كَانُوا بِآيَاتِنَا لَا يُوقِنُونَ} لَا يُؤْمِنُونَ بِالْقُرْآنِ الْمُشْتَمِلِ عَلَى الْبَعْثِ وَالْحِسَابِ وَالْعِقَابِ وَبِخُرُوجِهَا يَنْقَطِعُ الْأَمْرُ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّهْيُ عَنِ الْمُنْكَرِ وَلَا يُؤْمِنُ كَافِرٌ كَمَا أَوْحَى اللَّهُ إِلَى نُوحٍ {أَنَّهُ لَنْ يُؤْمِنَ مِنْ قَوْمِكَ إِلَّا مَنْ قَدْ آمَنَ}

**ترجمه:** اوکافرانو (د بعثت نه د انکارپه باره کښې هم)اووئیل چه آیاکله چه مونږخاورې شو اوزمونږپلاران اونیکونه هم،نوآیامونږبه (د قبرونو نه)بیارا ویستل کیږو؟زمونږسره اوزمونږ

پلارانواونيکونوسره د ديروخت نه داوعدې شوې دي،هيڅ نشته،داخود پخوانوخلقوقيصې دي (اساطير د اسطوره بالضم جمع د يعنى هغه دروغ خبرې چه ليکلې شوى وى)ته اووايه چه په زمکه کښې لړاوګرځئ اوګورئ چه د مجرمانو (د انکارکولوپه وجه) څه انجام شو ؟(اوهغه د عذاب په ذريعه د هغوى هلاکيدل دى) ته په دوى باندې غمژن کيږه مه،اوکوم شرارتونه چه دوى کوى د هغې نه زړه مه تنګوه، (داپيغمبر ﷺ ته تسلى د يعنى ستاپه خلاف د دوى د سازش کولوپه وجه ته غمګين کيږه مه،مونږدده دوى په مقابله کښې ستامدد کوونکى يو) داخلق وائى چه (دعذاب)داوعد کله د ؟که تاسو (په دې وعد کښې)رښتونې ئې (نواوښايه)ته اووايه چه عجيبه نه ده کوم عذاب چه تاسوئې زرغواړئ د هغې څه حصه تاسونه نزدې شوى وى ،(نوبياپه دوى باندې په غزوۀ بدرکښې د قتل عذاب لا حق شو.اوباقى عذاب به د مرګ نه روستوراځى)يقيناً ستارب په خلقوباندې ډيرد فضل والا دې (اود کافرانونه د عذاب تاخيرد هغه د فضل حصه د) ليکن زيات خلق ناشکرى کوى، (چنانچه کافران د عذاب د واقع کيدونه د څه منکرکيدوپه وجه د عذاب د تاخيرشکرنه اداکوى) اوبې شکه ستارب هغه څه هم پيژنى چه د دوى سينوپټ کړى دى اوڅه چه دوى (په خپلوژبوسره)ښکاره کوى،د اسمانونواود زمکې هيڅ يو پټ څيزداسې نشته چه په کتاب مبين کښې نه وى،(په غائبة کښې تا، د مبالغې دپاره د يعنى هغه څيزچه د خلقودپاره بيخى پټ وى،اود کتاب مبين نه مراد لوح محفوظ دې،ياد بارى تعالى په علم کښې محفوظ دى،اوهم ددې محفوظو څيزونونه د کفاروته د عذاب ورکولو علم هم دې) يقيناً دا قرآن (زمونږد پيغمبر ﷺ په زمانه کښې موجودو)بنى اسرائيلوته زيات ترهغه خبرې بيانوى چه په کوموکښې دوى اختلاف کوى، (يعنى مذکوره اختلاف په داسې طريقې سره بيانوى چه که داخلق دې لره اختيار کړى اوتسليم ئې کړى نوددوى مينځنې اختلاف به ختم کړى)اودقرآن يقيناً (د ګمراهئ نه)هدايت دې اود مؤمنينودپاره(د عذاب نه) رحمت دې،بې شکه ستارب به(د قيامت په ورځ د نوروپه څيرد هغوترمينځه هم) په خپل حکم سره (يعنى عدل سره)فيصله کوى،هغه غالب دې (اود کوم څيزچه فيصله کوى نوپه هغې)پوهه دې،(هيڅاته به دهغه د فيصلې د مخالفت کولو قدرت نه وى،لکه څنګه چه په دنياکښې کافرانود پيغمبرانونه مخالفت کړې وو) نوته په الله باندې باورلره ته په واضح حق باندې ئې (يعنى په واضح دين باندې ئې آخرهم کاميابى په کافرانوباندې هم ستاد،بياالله تعالى د کافرانود مړواوکڼرواود راندو مثالونه بيان کړى دى اوفرمائيلى ئې دى،بې شکه ته (خپل) غږنه مړوته اوره ولې شې اونه کڼړو ته کله چه هغوى په شااوګرځى (دعاءاذا کښې د دواړوهمزوتحقيق اود دويمې په تسهيل سره د همزه اويا ترمينځه)اونه ړاندوته د هغوى د ګمراهئ نه (بچ کولو سره شې) اود لاربښودنه کولې شې،ته خو(د فهم اوقبلولواوريدل)صرف هغه خلقوته اوره ولې شې چه کوم

زمونږه آيتونو باندې ايمان لرى يا هغوى فرمانبردار هم وى، (يعنى د الله تعالى په توحيد كښې مخلص وى) او كله چه به په هغوى باندې وعد ثابته شى (يعنى د عذاب وعد ثابت شى په دې طريقې سره چه منجمله د كفارونه په دوى باندې هم عذاب نازليشى) نو مونږه د هغوى دپاره د زمكې نه يو ځناور را اوكاږو چه كوم به د دوى سره خبرې كوى (يعنى د هغه د راوتو په وخت كښې چه كوم خلق موجود وى په عربئ كښې د هغو سره خبرې كوى هغه به منجمله د ذېلو نورو خبرونه زمونږ د خوانه حكايت كوى او دا به وائى) چه خلقو به زمونږ په خبرو يقين نه ساتلو، (يعنى د مكې كافرانو، او په يو قراءت كښې د انّ د فتحې سره دې دباء په تقدير سره د تكلمهم نه پس، يعنى په قرآن كريم ئې يقين نه ساتلو كوم چه د بعث اود حساب او عقاب په خبرو باندې مشتمل دې، او ددې د خروج نه وروستو به د امر بالمعروف او نهى عن المنكر وخت ختم شى، ځكه چه ددې نه پس به د عمل كولو هيڅ فائد نه وى، د دوى نه پس به هيڅ يو كافر ايمان نه راوړى، لكه څنګه چه الله تعالى نوح عليه السلام ته وحى اوليږله چه ستاد قوم نه به اوس هيڅوك ايمان نه راوړى، سواد هغه چا نه چه ايمان ئې راوړې دې.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** وقال الذين كفروا: د ضمير په ځائ ئې الذين موصول ذكر كړو، يعنى د "قالوا ءاذا كنا ترابا" په ځائ ئې قال الذين كفروا اووئيل ددې دپاره چه د صلې په ذريعه د هغوى د صفت مذمومه كفر طرف ته اوشى اود هغوى د باطل قول د علت طرف ته هم اشاره د، (روح المعاني) ءاذا د فعل محذوف دپاره ظرف دې په كوم باندې چه مخرجون دلالت كوى، تقدير دعبارت داد دې ‹ نخرج اذا كنا ترابا، ءاذا د لمخرجون دپاره ظرف مقدم ګرځول صحيح نه دى ځكه چه د مابعد په ماقبل كښې د عمل كولونه درې موانع موجود دى، همزه، انّ او لام. په دې كښې هر يو د مابعد د پاره په ماقبل كښې د عمل كولونه مانع دې، او كله چه درې موانع جمع شى نو د مابعد په ماقبل كښې د عمل كولو سوال هم نه پيدا كيږى. څنو حضراتو وئيلى دى چه د انّ جواب چه كله مقرون باللام وى نو بيا په ماقبل كښې عمل كولې شى، لكه انّ زيدا طعامك لاكل. ليكن بيا دوه مانعه پاتې كيږى لهذا دا به منې چه لمخرجون د اذا دپاره عامل نه دې، بلكه ددې عامل محذوف دې او هغه نخرج دې.

**قوله:** وءاباؤنا: ددې عطف د كان په اسم باندې دې. دلته دا سوال پيدا كيږى چه په ضمير مرفوع متصل باندې د عطف دپاره په ضمير منفصل سره تاكيد لازمى وى ليكن دلته نشته دې؟

جواب دادې چه دلته د ترابا (خبر) فصل راغلې دې لهذا اوس د تاكيد ضرورت نشته دې او په ءانا كښې د همزه تكرار د تاكيد او تشديد فى انكار البعث دپاره دې.

**قوله**. قل سیروا فی الارض : دا امرد تهدیدد پاره دي اوددې خبرې طرف ته د اشارې کولو د پاره دي چه ستاسونه وړاندې هم امتونود الله تعالی طرف ته رجوع اونه کړه آخرداچه هغوی په عذاب کښې مبتلاکړې شول نوکه تاسوهم الله تعالی طرف ته رجوع اونه کړه نوتاسوبه هم د الله تعالی په رانیولو کښې راشئ.

**قوله**: إن کنتم صٰدقین : دلته د جمع صیغه استعمال کړې شوه حال دادې چه مخاطب صرف حضور ﷺ دې ؟وجه داد چه د بعث بعدالموت وغیره څیزونو خبرورکولو کښې د حضور ﷺ سره نورمسلمانان هم شریک وو په دې وجه مشرکانود جمع صیغه استعمال کړه.

**قوله**: قل عسٰی أن یکون : عسٰی دلته د یقین په معنی دې،قاضی ﷫ ونیلی دی چه عسٰی،لعلّ اوسوف د بادشاهانوپه مواعیدوکښې د جزم په کښې وی،اوددې خبرې طرف ته اشاره کولودپاره وی چه د هغوی اشاره د نورود تصریح په مثل ده .

**قوله**: ولوامدبرین: یعنی یوخو کونړهم دې اوبل داچه شاتې هم واړوله چه د هغې په وجه د هدایت امکان بالکلیه مفقودشو،ځکه چه د تش اوریدوامیدخود کونړوالی په وجه منقطع شولیکن کونړهم کله کله د اشارې په ذریعه خبره باندې پوهه شی لیکن کله چه کونړخپله شاواړوله نوپه اشارې سره هم د پوهیدوامیدختم شو.

**قوله**: بهٰدی العمی عن ضلالتهم: دَ هدایت صله عن نه استعمالیږی دلته چونکه هدایت د صرّف معنی لره متضمن دې په دې وجه ددې صله عن راوړل صحیح دی.

**قوله**: حقّ العذاب: دا د وقع القول تفسیردې.

**قوله**: أخرجنا لهم دآبة من الارض : د قیامت نزدې به د حضرت عیسٰی اوحضرت مهدی علیهما السلام د وفات نه پس یوعجیب الخلقت ځناورد کوه صفانه رابهرشی اوځنو حضراتو حجر او د طائف مقام د خروج ښودلې دې،هغه دابه به د خلقوسره په عربئ کښې خبرې کوی، منجمله د نوروخبرونه به ځنې خبرې نیابةً عن الله په طورد نقل د حکایت هم کوی،مثلاً د هغه دامقوله "انّ الناس کانو اباٰیٰتنالا یوقنون "به نیابةً عن الله وی .

**[ایاتوله:۸۲-۹۲]**

(وَ) اُذْکُرْ (یَوْمَ نَحْشُرُ مِنْ کُلِّ أُمَّةٍ فَوْجًا) جَمَاعَةً (مِّمَّنْ یُکَذِّبُ بِاٰیٰتِنَا) وَهُمْ رُؤَسَاؤُهُمُ الْمُتَّبَعُوْنَ (فَهُمْ یُوزَعُوْنَ) اَیْ یُجْمَعُوْنَ بِرَدِّ آخِرِهِمْ اِلَی اَوَّلِهِمْ لَمْ یَسَاقُوْنَ (حَتّٰی إِذَا جَاءُوْا) مَکَانَ الْحِسَابِ (قَالَ) تَعَالٰی لَهُمْ (أَکَذَّبْتُمْ) اَنْبِیَائِیْ (بِاٰیٰتِیْ وَلَمْ تُحِیْطُوْا) مِنْ جِهَةِ تَکْذِیْبِکُمْ (بِهَا عِلْمًا أَمَّا) فِیْهِ اِدْغَامُ مَا الْاِسْتِفْهَامِیَّةِ (ذَا) مَوْصُوْلٌ اَیْ مَا الَّذِیْ (کُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ) مِمَّا اُمِرْتُمْ بِهٖ (وَوَقَعَ الْقَوْلُ) حَقَّ الْعَذَابُ (عَلَیْهِمْ بِمَا ظَلَمُوْا) اَیْ

انزلوا ﴿فَهُمْ لَا يَنطِقُونَ﴾ اذ لا حجة لهم ﴿أَلَمْ يَرَوْا أَنَّا جَعَلْنَا﴾ خلقنا ﴿اللَّيْلَ لِيَسْكُنُوا فِيهِ﴾ كغيرهم ﴿وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا﴾ بمعنى يُبصر فيه ليتصرفوا فيه ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ﴾ دَلالات على قدرته تعالى ﴿لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ﴾ خصوا بالذكر لانتفاعهم بها في الإيمان بخلاف الكافرين ﴿وَيَوْمَ يُنفَخُ فِي الصُّورِ﴾ القرن النفخة الأولى من إسرافيل ﴿فَفَزِعَ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَمَن فِي الْأَرْضِ﴾ خافوا الخوف المفضي إلى الموت كما في آية أخرى فصعق والتعبير فيه بالماضي لتحقق وقوعه ﴿إِلَّا مَن شَاءَ اللَّهُ﴾ أي جبريل وميكائيل وإسرافيل وملك الموت وعن ابن عباس هم الشهداء إذ هم أحياء عند ربهم يرزقون ﴿وَكُلٌّ﴾ تنوينه عوض عن المضاف إليه أي وكلهم بعد إحيائهم يوم القيامة ﴿أَتَوْهُ﴾ بصيغة الفعل واسم الفاعل ﴿دَاخِرِينَ﴾ صاغرين والتعبير في الإتيان بالماضي لتحقق وقوعه ﴿وَتَرَى الْجِبَالَ﴾ تبصرها وقت النفخة ﴿تَحْسَبُهَا﴾ تظنها ﴿جَامِدَةً﴾ واقفة مكانها لعظمها ﴿وَهِيَ تَمُرُّ مَرَّ السَّحَابِ﴾ المطر إذا ضربته الريح أي تسير سيره حتى تقع على الأرض فتستوي بها مبثوثة ثم تصير كالعهن ثم تصير هباء منثورا ﴿صُنْعَ اللَّهِ﴾ مصدر مؤكد لمضمون الجملة قبله أضيف إلى فاعله بعد حذف عامله أي صنع الله ذلك صنعا ﴿الَّذِي أَتْقَنَ﴾ أحكم ﴿كُلَّ شَيْءٍ﴾ صنعه ﴿إِنَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَفْعَلُونَ﴾ بالياء والتاء أي أعداؤه من المعصية وأولياؤه من الطاعة ﴿مَن جَاءَ بِالْحَسَنَةِ﴾ أي لا إله إلا الله يوم القيامة ﴿فَلَهُ خَيْرٌ﴾ ثواب ﴿مِّنْهَا﴾ أي بسببها وليس للتفضيل إذ لا فعل خير منها وفي آية أخرى ﴿عَشْرُ أَمْثَالِهَا﴾ ﴿وَهُم﴾ الجائون بها ﴿مِّن فَزَعِ يَوْمَئِذٍ﴾ بالإضافة وكسر الميم وفتحها وفزع منونا وفتح الميم ﴿آمِنُونَ﴾ ﴿وَمَن جَاءَ بِالسَّيِّئَةِ﴾ أي الشرك ﴿فَكُبَّتْ وُجُوهُهُمْ فِي النَّارِ﴾ بأن وليتها وذكرت الوجوه لأنها موضع الشرف من الحواس فغيرها من باب أولى ويقال لهم تبكيتا ﴿هَلْ﴾ ما ﴿تُجْزَوْنَ إِلَّا﴾ جزاء ﴿مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ من الشرك والمعاصي قل لهم ﴿إِنَّمَا أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ رَبَّ هَٰذِهِ الْبَلْدَةِ﴾ أي مكة ﴿الَّذِي حَرَّمَهَا﴾ جعلها حرما آمنا لا يسفك فيها دم إنسان ولا يظلم فيها أحد ولا يصاد صيدها ولا يختلى خلاها وذلك من النعم على قريش أهلها في رفع الله عن بلدهم العذاب والفتن الشائعة في جميع بلاد العرب ﴿وَلَهُ﴾ تعالى ﴿كُلُّ شَيْءٍ﴾ فهو ربه وخالقه ومالكه ﴿وَأُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ مِنَ الْمُسْلِمِينَ﴾ لله بتوحيده ﴿وَأَنْ أَتْلُوَ الْقُرْآنَ﴾ عليكم تلاوة الدعوة إلى الإيمان ﴿فَمَنِ اهْتَدَىٰ﴾ له ﴿فَإِنَّمَا يَهْتَدِي لِنَفْسِهِ﴾ أي لأجلها فإن ثواب اهتدائه له ﴿وَمَن ضَلَّ﴾ عن الإيمان وأخطأ طريق الهدى ﴿فَقُلْ﴾ له ﴿إِنَّمَا أَنَا مِنَ الْمُنذِرِينَ﴾ المخوفين فليس علي إلا التبليغ وهذا قبل الأمر بالقتال ﴿وَقُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ سَيُرِيكُمْ آيَاتِهِ فَتَعْرِفُونَهَا﴾ فأراهم الله يوم بدر القتل والسبي وضرب الملائكة وجوههم وأدبارهم وعجلهم الله إلى النار ﴿وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ﴾ بالياء والتاء وإنما يمهلهم لوقتهم

ترجمه: هغه ورځ (یاد کړه) په کومه ورځ به چه مونږه هرامت نه یوه یوه ډله د هغه خلقو راجمع کړو کوموبه چه زمازمونږآیتونه دروغ ګڼړل (اوهغوی به ددی مشران اومقتدیان وی)، هغوی به را ایساره کړې شی (یعنی د مخکښې اووروستونه به راایسار کړې شی بیابه هغوی لره شړل

کیږي،تردې پورې چه کله (د حساب مقام ته)اورسيږي نوالله تعالى به (دوی ته)اوفرمائی چه آياتاسو (زماپيغمبران) زماد آيتونوسره دروغژن گڼرلی وؤ، حال دادې چه تاسود هغه تکذيب (د جهت علمی) احاطه نه وه کړې، (په اَماکښې ام لره په مااستفهاميه کښې مدغم کړې شوې دې،ذا موصول دې ای ماالذی، اود کوموکارونوچه تاسوته حکم درکړې شوې وو)په هغې کښې تاسوکوم کوم کارونه اوکړل ؟اود هغوی د ظلم (يعنی شرک)کوله په وجه په هغوباندې د عذاب حکم ثابت شواوس هغوی غلی دی (ځکه چه د هغوی سره څه دليل نشته)آيادوی دانه گوری چه موږشپه (تيارهٔ)جوړه کړې د؟ (يعنی پيدا کړې د) ددې دپاره چه (د نوروخلقوپه خيردوی هم)په دې کښې سکون حاصل کړی اوورځ مود کتلووالا (جوړه کړه يعنی داسې موجوړه کړه چه هغې کښې په نظرراشی ددې دپاره چه پکښې کارروزگاراوکړی) يقيناپه دې کښې (د الله تعالى په قدرت باندې) نخښې (دلائل)دی د ايمان والوُدپاره (د مؤمنينوپه خاص طورسره ذکرځکه اوکړې شو چه د قدرت د دلائلونه صرف مومنان فائد اخلی نه کافران)کومه ورځ چه شپيلۍ اوپوکلې شی)يعنی په ښکرکښې، دابه د حضرت اسرافيل عليه السلام رومبنې شپيلۍ وی)نود زمکې اواسمان والا به اودارشی (يعنی دومره حد پورې به اويريږی چه انجام به ئې مرگ وی لکه څنگه چه په يوبل آيت کښې فصعق راغلې دې اود ماضی په صيغې سره تعبيرد يقينی الوقوع کيدلوپهٔ وجه سره دې)ليکن چالره چه الله اوغواړی (نوهغه به نه يريږی لکه جبرائيل اوميکائيل اواسرافيل اوعزرائيل عليهم السلام،اود ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دی چه هغه شهداء دی ځکه چه هغوی ژوندی دی هغوته د هغوی د رب په حضورکښې روزی ورکول کيږی)اوداټول به عاجزۍ (اوکمزورۍ) سره دد مخامخ حاضرشی (د کلّ تنوين د مضاف اليه نه عوض دې "أي كلهم بعدإحياءهم يوم القيامة أتوه"په اتوه کښې فعل اواسم فاعل دواړه صحيح دی،د دآخرين معنی صاغرين د يعنی ذليل اوخوار،د مذکوره خبرود يقينی کيدوپه وجه په ماضی سره تعبيراوکړې شو) کوم غرونه چه ته ښخ شوی (مضبوط) (يعنی په خپل ځائ باندې د هغې د غتوالی په وجهٔ قائم اوکلک) گڼرې (نودابه هم ته د نفخهٔ اولی په وخت اوگورې چه) هغه به د باران د وريځې (يعنی د باران)په شان په والوځی (گوياچه هوا هغې لره الوځوی يعنی په تيزۍ سره ئې گرځوی تردې چه په زمکه باندې به راپريوځی اوخوارهٔ وارهٔ به شی اود زمکې د سطحې سره به هوارشی بيابه د وانډس شوې ورې په شان شی بيابه الوتونکې گردشی)دادې صنعت د هغه الله (صنعة مصدردې داد ماقبل جملې د مضمون تاکيدکوی چه اضافت ئې د خپل فاعل طرف ته شوې دې د مصدرد عامل د حذف کولونه پس تقديرد عبارت داسې دې صنع الله ذالک صنعا) چه خپل هرمصنوع ئې مضبوط جوړکړې دې بې شکه کوم څه چه تاسوکوۍ د هغې ښه خبردې (په ياء اوتاء سره يعنی د الله دښمنان چه کومه نافرمانی او

اولياء ئې چه کوم اطاعت کوی د هغوتولونه خبرداردې) چاچه (د قيامت په ورځ)نيک عمل (يعنی لا اله الا الله)راؤړو نود هغه ته به د هغې بهترثواب ملاويږی (يعنی ددې نيکئ په وجه، خير د اسم تفضيل په معنی نه دې ځکه چه د کلمه لا اله الا الله نه بغيربل هيڅ بهترعمل نشته اوپه يوبل آيت کښې دی چه ددې په لس چنده به د ته ثواب ملاويږی) اودوې به (يعنی د نيک عمل کوؤنکې به) دې ورځې د يرې نه مامون وی (په اضافت اود ميم په کسرې اود ميم په فتحې سره اوفزع په تنوين سره اود ميم په فتحې سره هم يوقراء ت دې) اوکوم کس چه بدئ (يعنی شرک)سره راغې نوهغه په پرمخ سره دوزخ ته غورځولې شی (په داسې طريقې سره چه مخونه به ئې اورته حواله کړې شی ځکه چه مخ په حواس خمسه کښې اشرف مقام دې نوپه دې وجه به د مخ نه علاوه به په طريق اولی سره د اورمستحق وی،اود هغوی د لاجواب کولودپاره به هغوی ته وئيل شی چه)تاسوته صرف د هغه عملونو(يعنی د شرک اونافرمانيانو)بدله درکول شی کوم چه تاسوکول (ته دوی ته اووايه چه) ماته صرف ددې حکم راکړې شوې دې چه زه صرف ددې ښار (مکې)د رب عبادت اوکړم چاچه دا محترم جوړ کړې دې (يعنی مکه ئې محترمه اود امن والا جوړه کړې د نه په دې کښې د يوانسان وينه تويولې شی اونه په دې کښې په چاباندې ظلم کيدې شی اونه ددې د ښکار يعنی ښناورښکارکيدلې شی اوددې شنه واښه اوکارلې شی اوداانعامات دی په قريشو باندې کوم چه ددې اوسيدونکی دی، د الله تعالی د هغوې د ښارنه د عذاب اوپه ټولو ښارونود عربو کښې د خوروشوؤفتنو د پورته کولوپه وجه) اودده په ملکيت کښې هريو څيز دې (نوبس هم دې د هغې خالق اومالک اورب دې) اوماته ددې خبرې حکم راکړې شوې دې چه (زه به دد دتوحيد سره) دد په فرمان منونکو کښې اوسم (اوماته ددې خبرې هم حکم راکړې شوې دې چه) زه به تاسوته (د دعوت الی الايمان په طورسره)قرآن اوروم نوڅوک چه (د ايمان لاره اختيارکړی نوهغه به د خپل ځان دپاره لاره اختياروی (ځکه د هغه د ايمان لاره اختيارولو ثواب به هم هغه ته ملاويږی) اوڅوک چه (د ايمان نه)بې لارې شی (اود هدايت د لارې نه واوړی نوهغه ته) اووايه چه زه صرف داروركوؤنکې يم (يعنی خوف وركوؤنکې يم،زماپه ذمه صرف پيغام رسول دی،اوداحکم د جهاد د حکم د راتلونه وړاندې وو) اوته اووايه چه ټول تعريفونه د الله تعالی دی هغه به زرتاسوته خپلې نخښې اوښائی چه تاسوبه ئې په خپله اوپيژنئ (نو بيا الله تعالی دوی ته په بدرکښې د قتل اوبندی کيدل او د فرښتو هغوی لره په مخونو او کوناټو باندې وهل اوښودل اوزرالله تعالی دوی لره دوزخ ته بوتلل)اوکوم څه چه تاسوکوئ ستا رب د هغې نه ناخبره نه دې (په ياء اوتاء سره،هغوی ته صرف د وخت پوره کيدوپورې مهلت وركول دی).

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله: ویوم نحشر من کل أمة فوجا ممن یکذب بآیتنا**: د عمومی حشرنه پس به داخصوصی حشرتوبیخی وی من کل امة کښې مِن تبعیضیه دې اوممن یکذب کښې من بیانیه دې ددې مبیّن فوجادې، فوج اگرچه په تیزئ سره حرکت کوونکی جماعت ته وئیل کیږی لیکن دلته د مطلق جماعت په معنی دې اود جماعت نه د هرامت د مشرانو او رئیسانو جماعت مراددې.

**قوله: برد أخرهم الی أولهم**: کهٔ شارح رحمه الله "بردّ اولهم علی اٰخرهم" وئیلی وې نودیره مناسب وې یعنی مخکښې تلونکی به راایساره کړې شی ددې دپاره چه روستنی هم د هغوی سره یوځائ شی اویوځائ روان شی، (صاوی)

**قوله: أکذبتم أنبائی بأیاتی**: دااستفهام د توبیخ دپاره دې یعنی تاسوزماد آیتونوولې تکذیب کړې وو ؟ اٰیتی د کذّبتم دپاره مفعول دې اوباء د تعدیه دپاره د یعنی تاسوزماد آیتونوولې تکذیب کړې وو ؟ مفسرعلام د کذبتم دپاره مفعول انبیائی مقدرګرځولې دې حال دادې چه ددې تقدیرهیڅ ضرورت نشته،ددې په وجه به بې وجه تکلف کول پیښیږی.

**قوله: ولم تحیطوابهاعلما**: داجمله د کذبتم د ضمیرنه حال دې اود سابق انکاراود تکذیب تاکیددې یعنی تاسوزماد آیتونوبغیرد فکراوسوچ نه انکاراوکړوکوم چه د مؤاخذې اهم سبب دې .

**قوله: أمّاذاکنتم تعملون**: ددې تقدیرد عبارت دادې "أیّ الشیئ الذی کنتم تعملونه "ما استفهامیه په معنی د أیّ شیئ مبتدأ،ذا موصول په معنی د الذی، کنتم تعملونه جمله صله د موصول، موصول سره د صلې نه د مامبتدأ خبر،یعنی داهم اوښایئ چه تاسوځه کول چه تاسوته زماپه آیتونوکښېئ ظوراوفکرکولوموقع هم ملاؤنه شوه ؟

**قوله: وقع القول**: أی قرب وقوعه د یقینی الوقوع کیدوپه وجه په ماضی سره تعبیرشوې دې،د وجعلنا اللیل نه پس مظلمامحذوف دې اوقرینه والنهارمبصرا د لکه ځنګه چه په لیسکنوافیه باندې قیاس کولوسره والنهارمبصرانه لیتصرّفوافیه لره حذف کړې شوې دې،دې ته صنعت احتباک وئیلې شی .

**قوله: ففزع**: نفخهٔ اولی ته نفخهٔ فزع وئیلې کیږی اوهم دې ته نفخهٔ صعق هم وئیلې کیږی په سورهٔ زمرکښې نفخهٔ اولی ته صعق وئیلی شوی دی د صعق معنی د داسې بې هوشئ اوبې خودئ د چه هغې سره مرګ واقع شی.د نفخهٔ اولی په وخت کښې به اولاً په ټولو حیواناتوباندې بې هوشی راشی ددې نه پس به پرې مرګ راشی سیواد هغه چا نه کوم چه الله تعالی مستثنی کړی دی اود دویمې نفخې نه پس به هرمړې راژوندې کیږی اود دې

دواړو نفخو ترمینځه به د څلویښتو کالو فاصله وي، ځنو حضراتو دري نفخي بیان کړې دی (۱) نفخهٔ زلزله چه د کومې په وجه به په زمکه کښي یوه زوره وره زلزله راشي غرونه به د وريځ د ټکړو په شان الوځي او ګرځي به (۲) نفخهٔ موت او (۳) نفخهٔ حیات، لیکن دا روایت ضعیف دې د صحیح حدیث نه صرف د دوؤ نفخو پته لګي.

**قوله: تمر مرالسحاب: المطر**، مفسر علام د السحاب تفسیر په مطر سره کړې دې دا تفسیر نه د لغت سره موافق دې او نه د عقل او نقل سره، د سحاب نه ددې خپله ظاهري معنی مراده.

**قوله: مؤکد لمضمون الجملة قبله**: ددې مطلب دادی، چه "صنع الله" د ماقبل جملې د مضمون دپاره تاکید دې یعني نفخ صور او فزع بیا مرګ او بیا د غرونو د روان ریګ په شان الوتل داټول د الله تعالی صنعت دې.

**قوله: بالإضافة**: یعني د فزع د یوم په طرف اضافت سره، د یوم په میم باندې به د اضافت په وجه کسره وی او یوم مفتوح هم کیدې شی د مبنی برفتحه کیدو په وجه سره، ځکه چه یوم د اِذ طرف ته مضاف دې کوم چه مبنی الاصل دې نو ګویاد یوم په میم کښې دوه قراءته دی، د میم کسره او فتحه.

**قوله: وفزع منوّنا**: ددې عطف په اضافة باندې دې یعني یوم په اضافت سره هم وئیلې کیږی او بغیرد اضافت نه هم، په اضافت سره د وئیلو په صورت کښې د یوم په میم باندې کسره او فتحه دواړه صحیح دی او د عدم اضافت په صورت کښې په میم باندې صرف فتحه صحیح د کسره نه د صحیح.

**قوله: موضع الشرف من الحواس**: حواس خمسه باطنه خوټول په سر کښې دی چه تفصیل ئې دادې، دماغ نرم او متخلل مخروطي یعني د مثلث شکل یو جرم دې ددې درې حصې دی چه هغې ته بطون وئیلې کیږی (۱) بطن مؤخر د زاویه حاد طرف ته دې او (۲) بطن اوسط، د دواړو ترمینځه دې (۳) بطن مقدم د ټولو نه غټ دې او هم دا حس مشترک او د قوت خیال مقام دې، بطن مؤخر کوم چه د ذاوګې (څټ) په طرف د مقدم په نسبت سره وروکې دې او دا د قوت حافظه مقام دې بطن اوسط د ټولو نه وروکې دې او د قوت متصرفه او قوت واهمه مقام دې (کاتو نچه ترجمه قانونچه) او په حواس خمسه ظاهره کښې سیوا د قوت لامسه نه باقی څلور په سر کښې دی (۱) قوت باصره (۲) قوت سامعه (۳) قوت شامه (۴) قوت ذائقه، البته پنځم قوت لامسه په ټول بدن کښې عام دې، قوت لامسه په ټولو قوتونو کښې زیات بلید حس دې تر خو چه ددې سره مس نه وی راغلې نو احساس نه شی کولې.

**قوله: فقل له انما انا من المنذرین**: دا جمله د من ضلّ جزاء د او "له" رابطه د.

## [۲۸] سورة القصص

سُورة القَصص مَكيّة إلّا مِن آية ٥٢ إلى آية ٥٥ فَمَدَنِيّة
وآية ٨٥ فبالجُحفة نَزَلَتْ اثناء الهجرة وآياتها ٨٨ نزلت بعد النمل

سوره قصص مکی دې سوا د آیت ۵۲ نه ۵۵ پورې دا مدنی دی، او آیت ۸۵ په جحفه کښې د هجرت په دوران کښې نازل شوې دې، ددې آیتونه ۸۸ دی، سوره نمل نه پس نازل شوې دې.

### [ایاتونه: ۱ - ۱۲]

بسم الله الرحمن الرحيم (طسم) الله أعْلَم بِمُراد بِذلِكَ (تِلْكَ) أيْ هٰذِهِ الآيَات (آيَاتُ الْكِتَابِ) الإضافة بِمَعْنَى مِنْ (الْمُبِينِ) الْمُظهِر الحَقّ مِنَ البَاطِل (نتلوا) نَقُصّ (عَلَيْكَ مِنْ نَبَإِ) خبر (مُوسَىٰ وَفِرْعَوْنَ بِالْحَقِّ) الصِّدْق (لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ) لأجْلِهِمْ لِأنَّهُمْ الْمُنْتَفِعُونَ به (إِنَّ فِرْعَوْنَ عَلَا) تَعَظّمَ (فِي الْأَرْضِ) أرض مصر (وَجَعَلَ أَهْلَهَا شِيَعًا) فِرَقًا فِي خِدْمَته (يَسْتَضْعِفُ طَائِفَةً مِنْهُمْ) هُمْ بَنُو إسْرَائِيل (يُذَبِّحُ أَبْنَاءَهُمْ) الْمَوْلُودِينَ (وَيَسْتَحْيِي نِسَاءَهُمْ) يَسْتَبْقِيهِنّ أحْيَاء لِقَوْلِ بَعْض الْكَهَنَة لَهُ إنْ مَوْلُودًا يُولَد فِي بَنِي إسْرَائِيل يَكُون سَبَب زَوَال مُلْكك (إِنَّهُ كَانَ مِنَ الْمُفْسِدِينَ) بِالْقَتْلِ وَغَيْره (وَنُرِيدُ أَنْ نَمُنَّ عَلَى الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا فِي الْأَرْضِ وَنَجْعَلَهُمْ أَئِمَّةً) بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَإبْدَال الثَّانِيَة يَاء يُقْتَدَى بِهِمْ فِي الْخَيْر (وَنَجْعَلَهُمُ الْوَارِثِينَ) ملك فرعون (وَنُمَكِّنَ لَهُمْ فِي الْأَرْضِ) أرْض مِصْر وَالشَّام (وَنُرِيَ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَجُنُودَهُمَا) وَفِي قِرَاءَة وَيَرَى بِفَتْحِ التَّحْتَانِيَّة وَالرَّاء وَرَفْع الْأَسْمَاء الثَّلَاثَة (مِنْهُمْ مَا كَانُوا يَحْذَرُونَ) يَخَافُونَ مِنَ الْمَوْلُود الَّذِي يَذْهَب مُلْكهمْ عَلَى يَدَيْهِ (وَأَوْحَيْنَا) وَحْي إلْهَام أوْ مَنَام (إِلَىٰ أُمِّ مُوسَىٰ) وَهُوَ الْمَوْلُود الْمَذْكُور وَلَمْ يَشْعُر بِوِلَادَتِهِ غَيْر أخته (أَنْ أَرْضِعِيهِ فَإِذَا خِفْتِ عَلَيْهِ فَأَلْقِيهِ فِي الْيَمِّ) الْبَحْر أيْ النِّيل (وَلَا تَخَافِي) غرقه (وَلَا تَحْزَنِي) لِفِرَاقِهِ (إِنَّا رَادُّوهُ إِلَيْكِ وَجَاعِلُوهُ مِنَ الْمُرْسَلِينَ) فَأَرْضَعَتْهُ ثَلَاثَة أشْهُر لَا يَبْكِي وَخَافَتْ عَلَيْهِ فَوَضَعَتْهُ فِي تَابُوت مطلي بالقار من داخل مُمَهَّد لَهُ فِيهِ وَأَغْلَقَتْهُ وَأَلْقَتْهُ فِي بَحْر النيل ليلا (فَالْتَقَطَهُ) بِالتَّابُوتِ صَبِيحَة اللَّيْل (آلُ) أعْوَان (فِرْعَوْنَ) فَوَضَعُوهُ بَيْن يَدَيْهِ وَفُتِحَ وَآخرجَ مُوسَى مِنْهُ وَهُوَ يَمُصّ مِنْ إبْهَامه لَبَنًا (لِيَكُونَ لَهُمْ) فِي عَاقِبَة الْأَمْر (عَدُوًّا) يَقْتُل رِجَالهمْ (وَحَزَنًا) يَسْتَعْبِد نِسَاءَهُمْ وَفِي قِرَاءَة بِضَمِّ الْحَاء وَسُكُون الزَّاي لُغَتَانِ فِي الْمَصْدَر وَهُوَ هُنَا بِمَعْنَى اسْم الْفَاعِل مِنْ حَزَنَهُ كَأَحْزَنَهُ (إِنَّ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ) وَزِيره (وَجُنُودَهُمَا كَانُوا خَاطِئِينَ) مِنَ الْخَطِيئَة أيْ عَاصِينَ فَعُوقِبُوا عَلَى يَدَيْهِ (وَقَالَتِ امْرَأَتُ فِرْعَوْنَ) وَقَدْ هَمَّ مَعَ أعْوَانه بِقتله هو (قُرَّتُ عَيْنٍ لِي وَلَكَ لَا تَقْتُلُوهُ عَسَىٰ أَنْ يَنْفَعَنَا أَوْ نَتَّخِذَهُ وَلَدًا) فَأَطَاعُوهَا (وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ) بِعَاقِبَةِ أمْرهمْ مَعَهُ (وَأَصْبَحَ فُؤَادُ أُمِّ مُوسَىٰ) لَمَّا عَلِمَتْ بِالْتِقَاطِهِ (فَارِغًا) مِمَّا سِوَاهُ (إِنْ) مُخَفَّفَة مِنَ الثَّقِيلَة وَاسْمهَا مَحْذُوف أيْ إنَّهَا (كَادَتْ لَتُبْدِي بِهِ) أيْ بِأنَّهُ ابْنهَا (لَوْلَا أَنْ رَبَطْنَا عَلَىٰ قَلْبِهَا) بِالصَّبْرِ أيْ سَكَّنَّاهُ (لِتَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ) الْمُصَدِّقِينَ بِوَعْدِ اللّٰه وَجَوَاب لَوْلَا دَلّ عَلَيْهِ ما قبلها (وَقَالَتْ لِأُخْتِهِ) مَرْيَم (قُصِّيهِ) اتّبِعِي أثره

حتى تعلمي خبره ﴿فَبَصُرَتْ بِهِ﴾ ابصرته ﴿عَنْ جُنُبٍ﴾ من مكان بعيد اختلاسا ﴿وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ﴾ انها اخته وانها ترقبه ﴿وَحَرَّمْنَا عَلَيْهِ الْمَرَاضِعَ مِنْ قَبْلُ﴾ اي قبل رده الى امه اي منعناه من قبول ثدي مرضعة غير امه فلم يقبل ثدي واحدة من المراضع المحضرة له ﴿فَقَالَتْ﴾ اخته ﴿هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰ أَهْلِ بَيْتٍ﴾ لما رأت حنوهم عليه ﴿يَكْفُلُونَهُ لَكُمْ﴾ بالارضاع وغيره ﴿وَهُمْ لَهُ نَاصِحُونَ﴾ وفسرت ضمير له بالملك جوابا لهم فاجيبت فجاءت بامه فقبل ثديها واجابتهم عن قبوله بانها طيبة الريح طيبة اللبن فاذن لها في ارضاعه في بيتها فرجعت به كما قال تعالى ﴿فَرَدَدْنَاهُ إِلَىٰ أُمِّهِ كَيْ تَقَرَّ عَيْنُهَا﴾ بلقائه ﴿وَلَا تَحْزَنَ﴾ حينئذ ﴿وَلِتَعْلَمَ أَنَّ وَعْدَ اللَّهِ﴾ برده اليها ﴿حَقٌّ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ﴾ اي الناس ﴿لَا يَعْلَمُونَ﴾ بهذا الوعد ولا بان هذه اخته وهذه امه فمكث عندها الى ان فطمته واجرى عليها اجرتها لكل يوم دينار واخذتها لانها مال حربي فاتت به فرعون فتربى عنده كما قال تعالى حكاية عنه في سورة الشعراء ﴿أَلَمْ نُرَبِّكَ فِينَا وَلِيدًا وَلَبِثْتَ فِينَا مِنْ عُمُرِكَ سِنِينَ﴾

**ترجمه:** طٰسٓمٓ (ددې نه د الله تعالى څه مراددې هغه پرې ښه پوهيږي) دا (آيتونه) د كتاب مبين آيتونه دي (په آيات الكتاب كښې اضافت په معنى د من دې اود مبين نه مراددباطل نه حق لره د ممتازكوونكي كتاب آيتونه دي) مونږستاپه ورآندې د موسىٰ اوفرعون صحيح واقع بيانوؤ د هغه خلقو دپاره چه ايمان لري (يعنى د مؤمنينودپاره،ځكه چه هغوى د دې قيصې نه استفاده كوي) يقينافرعون په زمكه (ده مصر)كښې سركشى كړې وه اوده مصراوسيدونكي ئې (ده خپل خدمت دپاره)په ډلوكښې تقسيم كړي وؤپه هغوى كښې ئې يوه ډله كمزورې كړې وه (اوهغه بنى اسرائيل وؤ) ده هغوى (نوى پيداشوى)هلكانولره به ئې قتلول اوده هغوى جينكۍ به ئې ژوندۍ پريښودلې (يعنى ژوندۍ به ئې ساتلې د څنو كاهنانو د دې خبرې په وجه چه په بنى اسرائيلوكښې به يوداسې ماشوم پيداكيږي چه ستاده بادشاهت د خاتمې سبب به جوړيږي) بې شكه هغه (د قتل وغيره په وجه) وود مفسدانونه،اوزمونږ د مشيت تقاضا داشوه چه مونږ احسان اوكړوپه هغوى خلقوباندې كوم چه په ملك كښې كمزورى كړې شوى وؤ او مونږهغوى لره مشران جوړكړو(د دواړوهمزوپه تحقيق سره اود همزه ثانى په ياء سره بدلول،ددې دپاره چه په خيركښې د هغوى اقتدا اوكړې شي)اومونږهغوى لره (د فرعون د ملك) وارثان جوړ كړو او دا چه مونږهغوى ته (د شام او د مصرپه ملك كښې) قدرت (اختيار) وركړو،اوفرعون اوهامان او د هغوى لښكروته (په يوقراءت كښې يرٰى د ياء اود راء په فتحې سره دې،اوددې درې واړو اسمونو فرعون اوهامان اوجنودهما په رفع سره) د بنى اسرائيلود خوانه هغه څه اوښايو د كوم څه نه هغوى يريدل (فرعونيان د هغه ماشوم نه په يره كښې وو چه د كوم په وجه د هغوى ملك بربادى مقدر وه) اومونږ د موسىٰ مورته (الهامى يامنامى)وحى اوليږله (اوموسىٰ ﷺ هم هغه ولدمذكوردې اود موسىٰ ﷺ د ولادت علم سيوا د هغه د خورنه هيچاته نه ووشوې)چه ده ته پئ وركوه اوكله چه دده په باره

کښېي څه يره محسوس کړې نوده لره په درياب (د نيل کښې) واچوه اودده (د ډوبيدو) خطره مه کوه اود (جدا يېغم مه کوه مونږيقيناً دې بياتاله راواپس کوونکي يو او ده لره د خپلو رسولانو نه جوړوونکي يو (لهذاحضرت موسىٰ عليه السلام ته درې مياشتو پورې خپلې موربې ورکړل چه موسىٰ عليه السلام ژړلې هم نه، اوکله ئې چه په موسىٰ عليه السلام باندې د وژلوخطره محسوسه کړه نوموسىٰ عليه السلام ئې په يوداسې تابوت کښې واچولوچه دننه پکښې روغن زفت يعنى تارکول لګولې شوى وو اوګدئ پکښې غوړولې شوې وه،هغې کښې ئې رابندکړواودہ شپې ئې په دريائے نيل کښې واچولو،هم ددې شپې په سحر) تابوت لره آلِ فرعون (يعنى د هغه خادمانو) راپورته کړو (د هغې نه پس ئې تابوت د فرعون خواته راوړو او کلاؤ ئې کړو،موسىٰ عليه السلام ئې د تابوت نه راواويستوپه داسې حال کښې چه هغه د خپلې ګوتې نه پئ څکل) ددې دپاره چه (آخرکارهم دابچې) ده هغوى دښمن جوړشى،(چه د قبطيانو نارينه به قتلوى) او د غم سبب جوړشى (دهغوى ښځې به وينځې جوړوى،اوپه يوقراءت کښې ”حزنا“ کښې د حاء په ضمې سره اود زاء په سکون سره راغلې دې په مصدر ”حزنا“ کښې دادوه لغته دى، اومصدردلته د اسم فاعل په معنى دې او”حزناً“ دهحزَنه باب سمع نه دې په معنى د أحزنه دې،)په دې کښې هيڅ شک نشته چه فرعون او (د هغه وزير) هامان او د دواړو لښکرې خطاکار وو، (خٰطئين د خطيئة نه مشتق دې معنى ئې ده نافرمانى کوونکى،نوهم د موسىٰ عليه السلام په لاس دوى ته سزاملاؤشوه،) او د فرعون ښځې اووئيل (کوم وخت چه فرعون د خپلو مددګارانو سره د موسىٰ عليه السلام د وژلواراده اوکړه) دا خو زما او ستا د سترګو يخوالې دې، دامه وژنه، ممکنه ده چه دې به مونږته فائده اورسوى، يابه مونږ ده لره خپل ځوئ جوړکړو ،(نودې خلقوئې داخبره اومنله)اوداخلق (ددې سره د انجام نه) ناخبره وو، (بل خواته) ده موسىٰ (عليه السلام)د مور زړه بې قراره شو (کله چه هغې ته معلومه شوه چه موسىٰ عليه السلام لره فرعون اوچت کړې دې، يعنى د موسىٰ عليه السلام نه سيوا د هغې په زړه کښې بل هيڅ يوه خبره پاتې نه شوه) اِن (داده اِنّ نه مخفف دې اواسم ئې محذوف دې، اى انّها) نزدې وه چه داخبره ئې څرګنده کړې وې (چه هغه زماځوئ دې)کۀ مونږد هغې زړه (د صبر په ذريعه)مضبوط کړې نه وې (يعنى کۀ مونږ د هغې زړه ته تسلى نه وې ورکړې) ددې دپاره چه هغه په يقين کوونکوکښې شى، (يعنى د الله تعالىٰ ده وعدې په تصديق کوونکوکښې شى،اود لَولاَ په جواب باندې ماقبل (”لتبدى“) دلالت کوى)او د موسىٰ (عليه السلام) مورد موسىٰ (عليه السلام) خور(مريم)ته اووئيل چه د موسىٰ (عليه السلام)پته اولګوه،(يعنى په د پسې پسې درومه چه ده حال نه ئې خبرداره اوسې) نوهغه ئې د لرې نه کتلو (يعنى د لرې نه ئې په پټه طريقه کتلو) او فرعونيانو ته (ددې خبرې) خبرتيا او نه شوه،(چه دائې خور ده او د ده نګرانى کوى) او مونږ د ورآندې نه (يعنى دده خپلې مورته د واپس کيدونه وړاندې) د پئ ورکوونکو بندش کړې وو، (يعنى موسىٰ

ﷺ لره موده خپلې مورنه علاوه د بلې پۍ ورکوونکې ښځې سینې نه منع کړې وو، په دې وجه موسٰی ﷺ د هیڅ یوې پۍ ورکوونکې ښځې سینې قبولې نه کړې) نود موسٰی ﷺ خور (چه کله په موسٰی ﷺ باندې د هغوی شفقت اولید او نو وې وئیل چه آیا زه تاسو ته داسې کورنۍ نخښه درکړم چه ستاسو د پاره ددې ماشوم (د پۍ ورکولو وغیره) پالنه اوکړي او هغوی ددې ماشوم خیرغوښتونکي هم وي، (اومریم د "له" د ضمیر مرجع د هغوی د سوال په جواب کښې بادشاه اوښودو، لهٰذا د مریم مشوره اومنلې شوه بیائې خپله مور راوغوښتله نوموسٰی ﷺ د خپلې مورسینې رودل شروع کړل، د حضرت موسٰی ﷺ مور د موسٰی ﷺ د هغې سینولره د قبلولوپه وجه د سوال په جواب کښې اووئیل چه زه د ښائسته خوشبوۍ والا اود ښکلو پیتروالا ښځه یم نوهغې ته ئې خپل کورته د بوتلو او د پیو ورکولو اجازت ئې ورکړو، نو د موسٰی ﷺ مور هغه خپل کورته واپس یوړو، لکه څنګه چه الله تعالٰی فرمائیلي دي چه) مونږموسٰی لره د هغه خپلې مورته واپس کړو ددې دپاره چه د هغې سترګې (د موسٰی ﷺ په لیدو سره) یخې شي اوددې دپاره چه (په دې وخت کښې د جدائۍ) په غم کښې پاتې نه شي اوددې دپاره چه پوهه شي چه (د ماشوم بیاهغې ته د واپس کولو سره) د الله وعده ریښتوني ده لیکن اکثرخلق (ددې وعدې په باره کښې)نه پوهیږي، (اونه ددې خبرې نه خبرداردي چه داد هغه خورده اودائې مورده، حضرت موسٰی ﷺ د خپلې مورسره د تې پرېښودوپورې وو، فرعون د موسٰی ﷺ مورته د پۍ ورکولو اجرت روزانه یو دینار مقرر کړې وو، د موسٰی ﷺ مور دا اجرت واخستوځکه چه د حربي مال دې بیا مور ئې حضرت موسٰی ﷺ لره فرعون ته راوستو، لهٰذاموسٰی ﷺ د فرعون سره پالنه اوموندله لکه څنګه چه الله تعالٰی ددې حکایت کړې دې اوپه سورت شعراء کښې ئې ارشادفرمائیلې دې أَلَمْ نُرَبِّكَ فِينَا وَلِيدًا وَلَبِثْتَ فِينَا مِنْ عُمُرِكَ سِنِينَ۔

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** نتلواعلیك: ای بواسطة جبرائیل من نبأ من خبر موسی وفرعون بالحق، من تبعیضیه دې أی نتلوا علیک بعضَ نبأ موسٰی، د نتلوامفعول محذوف هم کیدې شي، د عبارت تقدیربه داسې شي "نتلواعلیک شیئامن نبأ موسٰی، په قول د اخفش من زائده هم کیدې شي "ای نتلواعلیک نبأ موسٰی.

**قوله:** بالحق: داد نتلواد ضمیرِ فاعل نه حال دې "أی حال کوننامتلبسین بالصدق "یاد نتلوا د مفعول نه حال دې "أی کون الخبرمتلبسابالصدق.

**قوله:** لاجلهم: دااشاره ده چه لقوم کښې لام د تعلیل دپاره دې اود نتلواسره متعلق دې یعني مقصودبالذکرمؤمنین دي ځکه چه هم هغوی ددې نه منتفع کیږي.

**قوله.** انّ فرعون علا : داجمله مستانفه ده، گویاچه پوښتنه اوکړې شوه چه د موسیٰ او فرعون څه قیصه ده ؟نوجواب ئې ورکړوچه انّ فرعون علا الخ

**قوله.** یذبح ابنآءهم: داد یستضعف نه بدل دې لقول بعض الکهنة،داد یذبح علت دې

**قوله.** نمکن لهم فی الارض: ای نسلطهم علی مصروالشام

**قوله:** نری فرعون:فرعون اوددې معطوفات د ''نری'' مفعول اول دی، ماکانوایحذرون ئې مفعول ثانی دې،په جنودهماکښې اضافت تغلیبا دې یعنی لښکراګرچه د فرعون وولیکن هامان ئې وزیروو دبادشاه لښکرته ئې تغلیباد هامان لښکراووئیلو.اودا هم ممکنه د چه د هامان خپل څه مخصوص لښکروی،اوپه یوقراءت کښې یَرٰی دې په دې صورت کښې به درې واړه اسمونه د اسم فاعل کیدوپه وجه مرفوع وئیلې کیږی.

**قوله:** الی امّ موسیٰ : د حضرت موسیٰ علیه السلام د موربی بی په نوم کښې اختلاف دې،ځنې حضرات یوحانذ وائی اوقرطبی د ثعلبی نه نقل کړی دی چه د هغې نوم لوخا بنت حانذ بن لاوی بن یعقوب دې ددې نه علاوه نور نومونه هم مذکوردی.

**قوله:** ان ارضعیه: آن تفسیریه اومصدریه دواړه کیدې شی .

**قوله:** ولاتخافی: غرقه، بره وئیلی شوی وو فاذاخفت علیه اودلته وئیلې کیږی چه لاتخافی په دې دواړوکښې تعارض معلومیږی؟ ددې جواب دادې چه داتعارض د لاتخافی غرقه په تفسیرسره دفع شو،فإذاخفت کښې د ذبح خوف مراددې.اوپه لاتخافی کښې د غرق د خوف نفی د . لهٰذا هیڅ تعارض نشته القار توره بهیدونکې ماده کومه چه په کشتئ وغیره کښې لګول کیږی ددې دپاره چه اوبه څه اثراونه کړی لکه تارکول وغیره .

**قوله:** ممهد: داد تابوت دپاره صفت ثانیه دې،صفت اولی ئې مطلی دې.یعنیٰ په خښې تابوت کښې ئې تارکول اولګول ددې دپاره چه اوبه پرې اثراونه کړی اوپکښې ټکولې (داندس) شوې مالوچ ئې واچولوددې دپاره چه موسیٰ علیه السلام نه څه تکلیف اونه رسی، ممهد په معنی د غوړولی شوی.

**قوله:** فی عاقبة الامر: په دې سره ئې اشاره اوکړه چه په لیکون کښې لام د عاقبت دپاره دې اود علت دپاره نه دې ځکه چه د پورته کولوپه وخت کښې مقصد ابن جوړول وؤ او د خوانیدو نه پس د فرعون اود فرعونیانودپاره د غم اوتکلیف سبب جوړشو.

**قوله:** انّ فرعون وهامان : داد معطوف علیه فالتقطه آل فرعون اود معطوف وقالت امراة فرعون ترمینځه جمله معترضه ده (جمل)قالت امرأة فرعون، د فرعون د ښځې نوم آسیه بنت مزاحم بن عبیدبن الریان بن الولیدوو.

**قوله**: هو قرّة عين لي ولك: هوئي مقدر منلو سره اشاره اوكړه چه قرّة عين مرفوع دې اود مبتدأ محذوف خبردې.

**قوله**: لولا ان رّبطنا: د لولا جواب محذوف دې په كوم باندې چه د لولا ماقبل لتبدين دلالت كوي تقديرد عبارت داسې دې لولا ان ربطنا على قلبها لابدت انه ابنها.

**قوله**: وهم لايشعرون: داجمله د آل فرعون نه حال دې

**قوله**: لاخته مريم: مريم د حضرت موسىٰ عليه السلام حقيقي خورد ،خنوحضراتود مريم په ځائ كلثمه اوكلثوم هم ذكركړې دء،د موربى بى نوم ئې يوحانذ اود پلارنوم ئې عمران دې،اوداعمران د حضرت عيسىٰ عليه السلام د مورمريم د پلارعمران نه علاوه بل عمران دې،ځكه چه د دواړو په مينځ كښې د يوزرآته سوه كالوفاصله دء. (جمل)

**قوله**: من مكان بعيد: په دې سره دې خبرې ته اشاره دء چه جنب د موصوف يو محذوف صفت دې "اى عن مكان بعيد اختلاساً اى اختفاءً.

**قوله**: حرّمنا عليه المراضع: حرّمنا د تحريم نه مشتق دې اى منعنا. دلته د تحريم نه مجازاً منع كول مراد دې،ځكه چه دلته د تحريم شرعي معنى مرادكول صحيح نه دى ځكه چه ماشوم د شرعي امورو او تكاليفو مكلف نه وى، مراضع د مرضع جمع دء، چونكه پئ وركول د ښځوسره مخصوص دى ځكه پكښې (ة) ترك شوې دء،لكه په حائض كښې

**[ايانونه: ۱۴ - ۲۱]**

(وَلَمَّا بَلَغَ أَشُدَّهُ) وَهُوَ ثَلَاثُونَ سَنَة أَوْ وَثَلَاث (وَاسْتَوَى) أَيْ بَلَغَ أَرْبَعِينَ سَنَة (آتَيْنَاهُ حُكْمًا) حِكْمَة (وَعِلْمًا) فِقْهًا فِي الدِّين قَبْل أَنْ يُبْعَث نَبِيًّا (وَكَذَلِكَ) كَمَا جَزَيْنَاهُ (نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ) لِأَنْفُسِهِمْ (وَدَخَلَ) مُوسَى (الْمَدِينَة) مَدِينَة فِرْعَوْن وَهِيَ مَنْف بَعْد أَنْ غَابَ عَنْهُ مُدَّة (عَلَى حِين غَفْلَة مِنْ أَهْلهَا) وَقْت الْقَيْلُولَة (فَوَجَدَ فِيهَا رَجُلَيْنِ يَقْتَتِلَانِ هَذَا مِنْ شِيعَته) أَيْ إِسْرَائِيلِيّ (وَهَذَا مِنْ عَدُوّه) أَيْ قِبْطِيّ يُسَخِّر إِسْرَائِيلِيًّا لِيَحْمِل حَطَبًا إِلَى مَطْبَخ فِرْعَوْن (فَاسْتَغَاثَهُ الَّذِي مِنْ شِيعَته عَلَى الَّذِي مِنْ عَدُوّه) فَقَالَ لَهُ مُوسَى خَلِّ سَبِيله فَقِيلَ إِنَّهُ قَالَ لِمُوسَى لَقَدْ هَمَمْت أَنْ أَحْمِلهُ عَلَيْك (فَوَكَزَهُ مُوسَى) أَيْ ضَرَبَهُ بِجُمْعِ كَفّه وَكَانَ شَدِيد الْقُوَّة وَالْبَطْش (فَقَضَى عَلَيْهِ) قَتَلَهُ وَلَمْ يَكُنْ قَصَدَ قَتْله وَدَفَنَهُ فِي الرَّمْل (قَالَ هَذَا) قَتْله (مِنْ عَمَل الشَّيْطَان) الْمُهَيِّج غَضَبِي (إِنَّهُ عَدُوّ) لِابْنِ آدَم (مُضِلّ) لَهُ (مُبِين) بَيِّن الْإِضْلَال (قَالَ) نَادِمًا (رَبّ إِنِّي ظَلَمْت نَفْسِي) بِقَتْلِهِ (فَاغْفِرْ لِي فَغَفَرَ لَهُ إِنَّهُ هُوَ الْغَفُور الرَّحِيم) أَيْ الْمُتَّصِف بِهِمَا أَزَلًا وَأَبَدًا (قَالَ رَبّ بِمَا أَنْعَمْت) بِحَقِّ إِنْعَامك (عَلَيَّ) بِالْمَغْفِرَةِ اعْصِمْنِي (فَلَنْ أَكُون ظَهِيرًا) عَوْنًا (لِلْمُجْرِمِينَ) الْكَافِرِينَ بَعْد هَذِهِ إِنْ عَصَمْتنِي (فَأَصْبَحَ فِي الْمَدِينَة خَائِفًا يَتَرَقَّب) يَنْتَظِر مَا يَنَالهُ مِنْ جِهَة الْقَتِيل (فَإِذَا الَّذِي اسْتَنْصَرَهُ بِالْأَمْسِ يَسْتَصْرِخهُ) يَسْتَغِيث بِهِ عَلَى قِبْطِيّ آخَر (قَالَ لَهُ مُوسَى إِنَّك لَغَوِيّ مُبِين) بَيِّن الْغَوَايَة لِمَا فَعَلْته بِالْأَمْسِ

والیوم (فَلَمَّآ أَنْ) زائدة (أَرَادَ أَنْ يَّبْطِشَ بِالَّذِي هُوَ عَدُوٌّ لَّهُمَا) لموسى والمستغيث به (قَالَ) المستغيث ظانا انه يبطش به لما قال له (يَا مُوسَى أَتُرِيدُ أَنْ تَقْتُلَنِي كَمَا قَتَلْتَ نَفْسًا بِالْأَمْسِ إِنْ) ما (تُرِيدُ إِلَّا أَنْ تَكُونَ جَبَّارًا فِي الْأَرْضِ وَمَا تُرِيدُ أَنْ تَكُونَ مِنَ الْمُصْلِحِينَ) فسمع القبطي ذلك فعلم ان القاتل موسى فانطلق الى فرعون فاخبره بذلك فامر فرعون الذباحين بقتل موسى فاخذوا في الطريق اليه (وَجَاءَ رَجُلٌ) هو مؤمن آل فرعون (مِنْ أَقْصَى الْمَدِينَةِ) آخرها (يَسْعَى) يسرع في مشيه من طريق اقرب من طريقهم (قَالَ يَا مُوسَى إِنَّ الْمَلَأَ) من قوم فرعون (يَأْتَمِرُونَ بِكَ) يتشاورون فيك (لِيَقْتُلُوكَ فَاخْرُجْ) من المدينة (إِنِّي لَكَ مِنَ النَّاصِحِينَ) في الامر بالخروج (فَخَرَجَ مِنْهَا خَائِفًا يَتَرَقَّبُ) لحوق طالب او غوث الله اياه (قَالَ رَبِّ نَجِّنِي مِنَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ) قوم فرعون

ترجمه: او موسٰی علیه السلام چه کله خپلې پوره ځوانۍ ته اورسیدو (چه هغه دیرش یا درې دیرش کاله دی) او مضبوط او تندرست شو (یعنی د څلویښتو کالو شو) نو مونږ هغه ته حکمت او علم ورکړو (یعنی د پیغمبرجوړولو نه وړاندې وړاندې موهغه ته د حکمت او د دین پوهه ورکړه) او مونږهم دغه شان (لکه څنګه موچه موسٰی علیه السلام ته بدله ورکړه) په خپل ځان بلندې احسان کوونکو ته بدله ورکوواو (موسٰی علیه السلام) په ښارکښې (یعنی د فرعون په ښارکښې چه نامه ئې منف وه د دپروخت د غائب والی نه پس) په یوداسې وخت کښې داخل شوچه د ښارخلق (د قیلوله په وخت کښې) غافل وو دلته ئې دوه کسان په جګړه اوموندل دایودد د ورورولئ (خاندان) نه وو (یعنی اسرائیلی وو) اودویم دده ده دښمن د ورورولئ نه وو (یعنی قبطی وو، قبطی دې اسرائیلی لره په دې خبره باندې مجبورولو چه هغه لرګی د فرعون لنګر ته یوسی) نو کوم چه د موسٰی د برادرۍ نه وو هغه د هغه کس چاخلاف موسٰی ته فریاد اوکړو چه د هغه د دښمن د برادرۍ نه وو (نو موسٰی علیه السلام قبطی ته اووئیل چه دې پریږده چه لاړشی، وئیلی شوی دی چه دې قبطی موسٰی علیه السلام ته اووئیل چه اراده لرم چه دالرګی ستاپه سرباندې کیږدم) په دې موسٰی (علیه السلام) قبطی ته یوسوک ورکړو (یعنی لاس ئې راموټې کړو او په سوک ئې اووهلو، موسٰی علیه السلام ډیر قوی او سختو رانیولو والا وو) نو موسٰی (علیه السلام) قبطی لره مړکړو (حال داچه د هغه د وژلو اراده نه وه، او هغه ئې په شګوکښې ښخ کړو او موسٰی علیه السلام وې فرمائیل چه داقتل شیطانی حرکت شو (کوم چه زماد غصې راتیزولو والا دې) بې شکه شیطان د انسانانو دپاره ښکاره دښمن دې په غلطۍ کښې غورځوونکې دې (پښیمان شو او) عرض ئې اوکړو چه ای زماپروردګاره (ماد قبطی په قتلولو سره) یقیناً په خپل ځان باندې ظلم اوکړو ته ماته معافی اوکړې، نو الله هغه لره معاف کړو، بې شکه الله غفور او رحیم دې (یعنی الله تعالی ددې دواړو صفتونو سره ازلاً او ابداً متصف دې) موسٰی اووئیل چه ای زماربه ا په ماباندې ستاد بخښنې کولو د انعام فرمائیلو په صدقه کښې (زماحفاظت اوکړه، که

تازماحفاظت او کړونوزه به په راتلونکي وخت کښې) د مجرمانو مددګارنه جوړېږم پیاموسیٰ عليه السلام د يرې او وحشت په حالت کښې سباکړو، (په دې انتظار کښې چه د مقتول د خوانه د ته څه معامله رامخې ته کيږي) نوپیوناڅاپه (څه ګوري چه) هم هغه سړې چه پرون ئې د موسیٰ نه مددغوښتې وو (نن بیاد یوقبطي خلاف د مددکولودپاره) موسیٰ ته فریادکوي نوموسیٰ اوويل چه ته خوګمراه ګندېې لارې ئې (د خپل هغه حرکت په وجه چه پرون اونن دې اوکړو) نوکله چه موسیٰ (عليه السلام) د هغه کس طرف ته لاس اوږدکړوکوم چه د دواړودښمن وو (يعنی د موسیٰ عليه السلام اود اسرائيلی، آن زائده دې، کله چه حضرت موسیٰ عليه السلام اسرائيلی ته انک لغوی مبين جمله اووئيله نوهغه داسې اوګڼړله چه کيدې شي چه نن موسیٰ عليه السلام زما د رانيولو اراده لري نو) وئ وئيل چه اې موسیٰ! آیاته زماد قتل اراده لرې لکه څنګه چه تاپرون يوکس قتل کړې وو، ته خوصرف داغوارې چه ته خپل زورپه دنيا کښې جوړکړې اوصلح کول نه غوارې، (نوکله چه قبطي داخبره واورېدله نوپوهه شوچه د پرون ورځې د مقتول قاتل خوموسیٰ عليه السلام دې، نوقبطي لاړواوفرعون ته ئې داخبرورکړو، فرعون جلاديانو ته د موسیٰ عليه السلام د وژلو حکم صادرکړو، نوجلاديان د موسیٰ عليه السلام په خواروان شول، الله تعالی فرمائی چه د آل فرعون نه) يوکس (مؤمن) د ښارد لرې طرف نه په منډه راغې (يعنی د جلاديانوپه نسبت تيزاوپه لنډه لارباندې راغې) اوئې وئيل چه اې موسیٰ! (د فرعون د قوم) مشران مشوره کوی چه تااووژنی نوته د ښار نه اووځه، (اود وتلو د مشورې په معامله کښې) زه ستادپاره خيرخواه يم، نوموسیٰ (عليه السلام) د يرې په حالت کښې چه انتظارئې کولو (د تلاش کوؤنکود رسيدو (د يرې نه) ياد الله تعالی د مددانتظارئې کولو) اووتو، وئ وئيل چه زماپروردګاره! ته ماد ظالم قوم (يعنی د فرعون د قوم) نه بچ اوساته.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله: واستوىٰ** : ای بلغ اربعين سنةً، مفسرعلام کۀ د استوىٰ تفسيرپه انتهی شبابه وتکامل عقله سره کړې وې نودابه ډيرظاهراومناسب وې، څکه چه په مدين کښې د حضرت شعيب عليه السلام خدمت کښې لس کاله قيام کولو نه پس د حضرت موسیٰ عليه السلام مصرته واپسی اوشوه په دې وخت کښې دحضرت موسیٰ عليه السلام عمرخلويښت کاله وو، ددې مطلب دادې چه د حضرت موسیٰ عليه السلام په مصرکښې ديرش کاله قيام شوې دې اوکۀ په مصرکښې د موسیٰ عليه السلام قيام خلويښت کاله اومنلې شي لکه څنګه چه مفسرعلام فرمائيلی دی نود مدين نه د واپسئ په وخت کښې د حضرت موسیٰ عليه السلام عمرپنځوس کاله په کاردې، حال داچه داد صراحت نه خلاف دی.

**قوله: منف** : داد هغه ښارنوم دې کوم کښې چه فرعون اوسيدو، داد علميت اود عجمه په وجه ياد علميت اوتانيث په وجه غيرمنصرف دې، دې ښارته منوف هم وائی، فلطفی عليه

داد اوقع القضاء علیه په معنی د کیدو په وجه متعدی په علی سره دې.

**قوله: وکن یکن قصده:** داده دې سوال جواب دې چه حضرت موسیٰ ﷤ یرداسې غیرشرعی کارځنګه اوکړوچه یوغیرواجب القتل کس ئې قتل کړو ؟ جواب دادې چه داقتل خطا دې، پاتې شوه داخبره چه په دې قتل ئې استغفارولې اوغوښتونو وجه داد چه "حسنات الابرار سیئات المقربین".

**قوله: هذااى قتله:** په ای قتله سره ئې هذا مشارالیه ته اشاره اوکړه چه مرادفعل قتل دې، او څنو حضراتو ذ هذا مشارالیه فعل مقتول ګرځولې دې د مقتول فعل یعنی د قبطی په اسرائیلی باندې زور زبردستی کول دافعل یو شیطانی عمل ووکوم چه د مؤاخذې قابل وو، اوځنوحضراتو د هذا مشارالیه په خپله قبطی ګرځولې دې یعنی داقبطی په خپله د یو شیطانی لښکراود هغې د جماعت یوفردوو، اود حضرت موسیٰ ﷤ "انی ظلمت نفسی" وئیل د تواضع اود کسرنفسی په توګه وو.

**قوله: قال رب بما انعمت:** بحق انعامک علیّ :دلته مفسرعلام د بما انعمت علی تفسیر په بحق انعامک علیّ سره اوکړو،دې سره ئې دوؤخبروطرف ته اشاره اوکړه،یوه داچه مامصدریه د یعنی انعمت په معنی د انعامک دې،اوکلام په حذف د مضاف سره دې،ای بحق انعامک، او دویمه خبره داچه اعصمنی محذوف منلو سره ئې دې خبرې ته اشاره اوکړوچه بحق جار او مجرور د اعصمنی محذوف سره متعلق دې تقدیرد عبارت داسې دې "اعصمنی بحق انعامک علی بالمغفرة.

**قوله: فلن اکون ظهیراللمجرمین:** داجمله د شرط محذوف جواب دې تقدیرد عبارت دادې "ان عصمتنی فلن اکون ظهیراللمجرمین.

**قوله: بعدهٰذه:** ای بعدهٰذه المرة د مفسرعلام د مجرمین تفسیرپه کافرین سره کول مناسب نه معلومیږی ځکه چه ددې تفسیرمطابق د اسرائیلی کافرکیدل لازمیږی،بهتره داد چه مجرمین په خپل حال باندې پرېښودلې شی، (جمل)

**قوله: فاصبح فی المدینة خائفا یترقب:** د مدینه نه هغه ښارمراددې کوم کښې چه قبطی قتل کړې شوې وو.

**قوله: خائفاً:** داد اصبح خبردې اوفی المدینة ددې سره متعلق دې اود یترقب مفعول محذوف دې ای یترقب المکروه،اوالفرَج،اوالخبرهل وصل لفرعون ام لا ،یعنی د یترقب مختلف مفعول محذوف ګرځول کیدې شی،لکه څنګه چه بره ظاهرکړی شوی دی.

**قوله: اذاالذی:** اذامفاجاتیه ده،الذی موصول استنصره ئې صله ده،صله سره د خپل موصول نه دموصوف محذوف الاسرائیلی صفت،موصوف سره دخپل صفت نه مبتدأ،

يستصرخه ني خبر،بالامس متعلق دې د استنصره سره، تقديرد عبارت داسې دې "اذا الاسرئيلي الذي استنصره بالامس يستصرخه".

**قوله: يسعٰى:** د رجل صفت دې، يسعٰى د رجل نه حال هم كيدې شي ځكه چه رجل په من اقصى المدينة سره د متصف كيدو په وجه معرفه شوې دې چه د هغې په وجه د رجل ذوالحال كيدل صحيح دى، الملاء اسم جمع د معنى ئې د شريفان ياد سردارانو جماعت اودله.

**قوله: يأتمرون:** ايتمار د باب افتعال نه جمع مذكرغائب صيغه د ،هغوى مشوره كوى.ا‌يّاه الضمير راجع الى موسٰى.

**[اياتونه:۲۲ - ۲۸]**

﴿وَلَمَّا تَوَجَّهَ﴾ قَصَدَ بِوَجْهِهِ ﴿تِلْقَاءَ مَدْيَنَ﴾ جِهَتَهَا وَهِيَ قَرْيَةُ شُعَيْبٍ مَسِيرَةَ ثَمَانِيَةِ أَيَّامٍ مِنْ مِصْرَ سُمِّيَتْ بِمَدْيَنَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ وَلَمْ يَكُنْ يَعْرِفُ طَرِيقَهَا ﴿قَالَ عَسَىٰ رَبِّي أَنْ يَهْدِيَنِي سَوَاءَ السَّبِيلِ﴾ أَيْ قَصْدَ الطَّرِيقِ أَيِ الطَّرِيقَ الْوَسَطَ إِلَيْهَا فَأَرْسَلَ اللّٰهُ مَلَكًا بِيَدِهِ عَنَزَةٌ فَانْطَلَقَ بِهِ إِلَيْهَا ﴿وَلَمَّا وَرَدَ مَاءَ مَدْيَنَ﴾ بِئْرٌ فِيهَا أَيْ وَصَلَ إِلَيْهَا ﴿وَجَدَ عَلَيْهِ أُمَّةً﴾ جَمَاعَةً ﴿مِنَ النَّاسِ يَسْقُونَ﴾ مَوَاشِيَهُمْ ﴿وَوَجَدَ مِنْ دُونِهِمُ﴾ سِوَاهُمْ ﴿امْرَأَتَيْنِ تَذُودَانِ﴾ تَمْنَعَانِ أَغْنَامَهُمَا عَنِ الْمَاءِ ﴿قَالَ﴾ مُوسَىٰ لَهُمَا ﴿مَا خَطْبُكُمَا﴾ مَا شَأْنُكُمَا لَا تَسْقِيَانِ ﴿قَالَتَا لَا نَسْقِي حَتَّىٰ يُصْدِرَ الرِّعَاءُ﴾ جَمْعُ رَاعٍ أَيْ يَرْجِعُونَ مِنْ سَقْيِهِمْ خَوْفَ الزِّحَامِ فَنَسْقِي وَفِي قِرَاءَةٍ يَصْدُرَ مِنَ الرُّبَاعِيِّ أَيْ يَصْرِفُوا مَوَاشِيَهُمْ عَنِ الْمَاءِ ﴿وَأَبُونَا شَيْخٌ كَبِيرٌ﴾ لَا يَقْدِرُ أَنْ يَسْقِيَ ﴿فَسَقَىٰ لَهُمَا﴾ مِنْ بِئْرٍ أُخْرَى بِقُرْبِهِمَا رَفَعَ حَجَرًا عَنْهَا لَا يَرْفَعُهُ إِلَّا عَشَرَةُ أَنْفُسٍ ﴿ثُمَّ تَوَلَّىٰ﴾ انْصَرَفَ ﴿إِلَى الظِّلِّ﴾ لِسَمُرَةٍ مِنْ شِدَّةِ حَرِّ الشَّمْسِ وَهُوَ جَائِعٌ ﴿فَقَالَ رَبِّ إِنِّي لِمَا أَنْزَلْتَ إِلَيَّ مِنْ خَيْرٍ﴾ طَعَامٍ ﴿فَقِيرٌ﴾ مُحْتَاجٌ فَرَجَعَتَا إِلَىٰ أَبِيهِمَا فِي زَمَنٍ أَقَلَّ مِمَّا كَانَتَا تَرْجِعَانِ فِيهِ فَسَأَلَهُمَا عَنْ ذَلِكَ فَأَخْبَرَتَاهُ بِمَنْ سَقَىٰ لَهُمَا فَقَالَ لِإِحْدَاهُمَا ادْعِيهِ لِي قَالَ تَعَالَىٰ ﴿فَجَاءَتْهُ إِحْدَاهُمَا تَمْشِي عَلَى اسْتِحْيَاءٍ﴾ أَيْ وَاضِعَةً كُمَّ دِرْعِهَا عَلَىٰ وَجْهِهَا حَيَاءً مِنْهُ ﴿قَالَتْ إِنَّ أَبِي يَدْعُوكَ لِيَجْزِيَكَ أَجْرَ مَا سَقَيْتَ لَنَا﴾ فَأَجَابَهَا مُنْكِرًا فِي نَفْسِهِ أَخْذَ الْأُجْرَةِ كَأَنَّهَا قَصَدَتِ الْمُكَافَأَةَ إِنْ كَانَ مِمَّنْ يُرِيدُهَا فَمَشَتْ بَيْنَ يَدَيْهِ فَجَعَلَتِ الرِّيحُ تَضْرِبُ ثَوْبَهَا فَتَكْشِفُ سَاقَيْهَا فَقَالَ لَهَا امْشِي خَلْفِي وَدُلِّينِي عَلَى الطَّرِيقِ فَفَعَلَتْ إِلَىٰ أَنْ جَاءَ أَبَاهَا وَهُوَ شُعَيْبٌ عَلَيْهِ السَّلَامُ وَعِنْدَهُ عَشَاءٌ فَقَالَ اجْلِسْ فَتَعَشَّ قَالَ أَخَافُ أَنْ يَكُونَ عِوَضًا مِمَّا سَقَيْتُ لَهُمَا وَإِنَّا أَهْلُ بَيْتٍ لَا نَطْلُبُ عَلَىٰ عَمَلِ خَيْرٍ عِوَضًا قَالَ لَا عَادَتِي وَعَادَةُ آبَائِي نُقْرِي الضَّيْفَ وَنُطْعِمُ الطَّعَامَ فَأَكَلَ وَأَخْبَرَهُ بِحَالِهِ قَالَ تَعَالَىٰ ﴿فَلَمَّا جَاءَهُ وَقَصَّ عَلَيْهِ الْقَصَصَ﴾ مَصْدَرٌ بِمَعْنَى الْمَقْصُوصِ مِنْ قَتْلِهِ الْقِبْطِيَّ وَقَصْدِهِمْ قَتْلَهُ وَخَوْفِهِ مِنْ فِرْعَوْنَ ﴿قَالَ لَا تَخَفْ نَجَوْتَ مِنَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ﴾ إِذْ لَا سُلْطَانَ لِفِرْعَوْنَ عَلَىٰ مَدْيَنَ ﴿قَالَتْ إِحْدَاهُمَا﴾ وَهِيَ الْمُرْسَلَةُ الْكُبْرَىٰ أَوِ الصُّغْرَىٰ ﴿يَا أَبَتِ اسْتَأْجِرْهُ﴾ اتَّخِذْهُ أَجِيرًا يَرْعَىٰ غَنَمَنَا بَدَلَنَا ﴿إِنَّ خَيْرَ مَنِ اسْتَأْجَرْتَ الْقَوِيُّ الْأَمِينُ﴾ أَيِ اسْتَأْجِرْهُ لِقُوَّتِهِ وَأَمَانَتِهِ فَسَأَلَهَا عَنْهُ فَأَخْبَرَتْهُ بِمَا تَقَدَّمَ مِنْ رَفْعِهِ حَجَرَ الْبِئْرِ وَمِنْ قَوْلِهِ لَهَا امْشِي خَلْفِي وَزِيَادَةٍ أَنَّهَا لَمَّا جَاءَتْهُ وَعَلِمَ بِهَا صَوَّبَ رَأْسَهُ فَلَمْ يَرْفَعْهُ فَرَغِبَ فِي إِنْكَاحِهِ ﴿قَالَ إِنِّي أُرِيدُ أَنْ أُنْكِحَكَ إِحْدَى ابْنَتَيَّ هَاتَيْنِ﴾ وَهِيَ الْكُبْرَىٰ أَوِ الصُّغْرَىٰ ﴿عَلَىٰ أَنْ تَأْجُرَنِي﴾ تَكُونَ

أَجِيرًا لِي فِي رَعْيِ غَنَمِي ﴿ثَمَانِيَ حِجَجٍ﴾ أَيْ سِنِينَ ﴿فَإِنْ أَتْمَمْتَ عَشْرًا﴾ أَيْ رَعْيَ عَشْرِ سِنِينَ ﴿فَمِنْ عِنْدِكَ﴾ التَّمَامُ ﴿وَمَا أُرِيدُ أَنْ أَشُقَّ عَلَيْكَ﴾ بِاشْتِرَاطِ الْعَشْرِ ﴿سَتَجِدُنِي إِنْ شَاءَ اللَّهُ﴾ لِلتَّبَرُّكِ ﴿مِنَ الصَّالِحِينَ﴾ الْوَافِينَ بِالْعَهْدِ ﴿قَالَ﴾ مُوسَى ﴿ذَٰلِكَ﴾ الَّذِي قُلْتَهُ ﴿بَيْنِي وَبَيْنَكَ أَيَّمَا الْأَجَلَيْنِ﴾ الثَّمَانَ أَوِ الْعَشْرَ وَمَا زَائِدَةٌ أَيْ رَعْيَهُ ﴿قَضَيْتُ﴾ بِهِ أَيْ فَرَغْتُ مِنْهُ ﴿فَلَا عُدْوَانَ عَلَيَّ﴾ بِطَلَبِ الزِّيَادَةِ عَلَيْهِ ﴿وَاللَّهُ عَلَىٰ مَا نَقُولُ﴾ أَنَا وَأَنْتَ ﴿وَكِيلٌ﴾ حَفِيظٌ أَوْ شَهِيدٌ فَتَمَّ الْعَقْدُ بِذَٰلِكَ وَأَمَرَ شُعَيْبُ ابْنَتَهُ أَنْ تُعْطِيَ مُوسَى عَصًا يَدْفَعُ بِهَا السِّبَاعَ عَنْ غَنَمِهِ وَكَانَتْ عِصِيُّ الْأَنْبِيَاءِ عِنْدَهُ فَوَقَعَ فِي يَدِهَا عَصَا آدَمَ مِنْ آسِ الْجَنَّةِ فَأَخَذَهَا مُوسَى بِعِلْمِ شُعَيْبٍ

ترجمه:اوکله چه د مدین طرف ته متوجه شو(یعنی د مدین طرف ته ئې مخه کړه،مدین د حضرت شعیب علیه السلام کلې وو،کوم چه د مصرنه د آته ورځو په مسافت پروت وو،د حضرت ابراهیم علیه السلام د ځوئ مدین بن ابراهیم علیه السلام په نوم باندې داکلې موسوم وو.اوحضرت موسیٰ علیه السلام د مدین د لارې نه واقف اوخبر نه وو)نو وئ وئیل چه ماته امیددې چه زمارب به ماته د نیغې لارې ښودنه اوکړی (یعنی د سیدهالارې یعنی د مدین د متوسطې لارې ښودنه به راته اوکړی، نوالله تعالی یوه فرښته موسیٰ علیه السلام ته اولیږله چه د هغې په لاس کښې نیزه وو،نوهغې فرښتې حضرت موسیٰ علیه السلام لره مدین طرف ته بوتلو)نوکله چه (حضرت موسیٰ علیه السلام)د مدین اوبو (یعنی د هغې کوهی)ته اورسیدو نو وئ لیدل چه یوه غټه ډله د خلقو (خپلو څارووته)اوبهٔ ورکوی،اوددې خلقونه جدائې دوه ښځې اولیدې چه (خپل څاوری ئې د اوبونه)رامنع کول،موسیٰ (علیه السلام)د دواړونه تپوس اوکړو چه ستاسو څه معامله ده؟(تاسو ولې اوبهٔ نه ورکوئ)هغوی اووئیل ترڅوپورې چه شپونکی واپس نه وی تلی ترهغې پورې مونږاوبهٔ نه ورکوؤ.(الرعآء د راع جمع ده یعنی ترڅوپورې چه دې شپونکوخپلو څارووته اوبهٔ نه وی ورکړې اوواپس نه وی تلی نومونږد ازدحام د یرې په وجه اوبهٔ نه ورکوؤ.اوکله چه رش ختم شی نوبیابه اوبهٔ ورباندې څکوؤ.اوپه یو قراءت کښې یصدرد باب افعال نه راغلې دې ای یصرفوامواشیهم عن المآء.یعنی ترڅوچه دوی خپل څاروی واپس بو نه څی)اوزمونږپلارد دیرعمربوډادې، (یعنی هغه د اوبوپه ورکولوباندې قدرت نه لری)لهذه داچه موسیٰ (علیه السلام) ددوی څارووته (د یوبل کوهی نه چه ددې کوهی سره نزدې وو) اوبهٔ ورکړې (یوه غټه تیګه حضرت موسیٰ علیه السلام ددې کوهی نه په یواځې ځان پورته کړه کومه به چه لسوکسانوهم په مشکله پورته کوله بیاد ګرمئ د سخت دهوپ په وجه د کیکر)سوری خواته لاړو (حال داچه موسیٰ علیه السلام سخت وږې هم وو) بیائې دعااوکړه چه اې زماپروردګاره !(په دې وخت کښې)کوم نعمت هم چه ته په ماباندې رااولیږې (خوراک وغیره) نوزه د هغې حاجتمندیم، (نود داواړه جینکئ به چه هره ورځ په څومره وخت کښې واپس کیدلې د هغې نه په کم وخت کښې خپل پلارته واپس لاړلې نوپلارترینه د زرراتلووجه

اوپوښتله نوهغوی ددې کس په باره کښې خبرورکړوکوم چه د دوی چیلوته اوبهٔ ورکړې وې نوپلارئې په هغوی کښې یوې ته اووئیل چه داکس زماخواته راوله،الله تعالی فرمائي:په دې کښې د هغه دوؤنه یوه جینئ موسیٰ ﷺ ته راغله چه په حیاسره رازروانه وه (یعنی د موسیٰ ﷺ نه د حیاکولوپه وجه ئې د قمیص لستونې په خپل مخ باندې اینبې وو،)اووئې وئیل چه زماپلارتاغواړی ددې دپاره چه تاکوم زمونږڅاروؤته اوبهٔ ورکړې دی چه د هغې بدله درکړی (حضرت موسیٰ ﷺ ددې جینئ دعوت قبول کړو،په خپل زړه کښې د اجرت د اخستل ناخوښولو سره او ګویاچه د جینئ مقصداجرت ورکول وؤکهٔ موسیٰ ﷺ اجرت اخستل اوغواړی بیاهغه جینئ د موسیٰ ﷺ نه وړاندې وړاندې تله او بادونو د هغې جامې پورته کړې چه د هغې په وجه ئې پنډئ ښکاره شوه نوموسیٰ ﷺ ورته اوفرمائیل چه ته زماشاته څه اوماته لاره ښایه،نودې جینئ هم داسې اوکړل تردې چه خپل پلارحضرت شعیب ﷺ ته اورسیده،د هغه سره د ماښام روټئ تیاره وه،حضرت شعیب ﷺ موسیٰ ﷺ ته اوفرمائیل چه تشریف کیږده اوروټئ اوخوره،حضرت موسیٰ ﷺ اوفرمائیل چه ماته خطره د چه هسې نه داسې اوشی چه داخوراک زماد څاروؤته د اوبوورکولوبدله وی، اوزمونږتعلق د یوداسې کورنئ سره دې چه هغوی په یونیک کارباندې اجرت نه اخلی،حضرت شعیب ﷺ ورته اوفرمائیل چه داسې خبره نشته بلکه زمااوزماد پلارانواونیکونودامعمول دې چه مونږ میلمنومیلمستیاکوؤ،اوروټئ پرې خوروؤ،لهٰذاموسیٰ ﷺ روټئ اوخوړه اوخپل ټول حال ئې شعیب ﷺ ته بیان کړو،نوالله تعالی فرمائي) فلما جاءه کله موسی (ﷺ) هغه ته اورسیدونواوهغه ته ئې ټول حال بیان کړو (القصص مصدردې د مقصوص په معنی دې یعنی د قبطی د قتلولو او بیا د هغوی د موسیٰ ﷺ لره د قتلولو اراده اود فرعون د خوانه د خپلې یرې ټوله قیصه ئې واؤروله نوشعیب ﷺ ورته) اوفرمائیل چه (اوس)خطره مه کوه ته د ظالمانوخلقونه بچ شوې، (ځکه چه په مدین باندې د فرعون سلطنت نشته) په هغوی دوؤ کښې یوې (اوداهم هغه وه چه د موسیٰ ﷺ راغوښتو پسې ئې لیږلې وه) اووئیل چه اې پلاره! ده لره نوکر اوساته،(یعنی دې مزدوراونیسه چه زمونږ په ځائ داچیلئ څروی) ځکه چه کوم څوک ته په اجرت سره نیسې په هغوی کښې د ټولونه بهتر به هغه څوک وی چه کوم قوی اوامانت داروی (یعنی د هغه د قوت اوامانت په وجه هغه مزدور اونیسه نوشعیب ﷺ د خپلې لورنه ددې دواړوصفتونوپه باره کښې معلومات اوکړل نوهغې هغه ټولې خبرې خپل پلارته بیان کړې د کوموچه اوس بره ذکراوشویعنی د کوهی نه د یوې غټې تیګې په یواځې ځان سره پورته کول اوپه لاره کښې ئې جینئ ته داوئیل چه زمانه شاته څه، او مزید دا چه کله هغه ته داجینئ را اورسیده اوهغه ئې د راتلوعلم اوشونوخپل سرئې ټیټ کړواوپورته کړې ئې هم نه دې،

نوپه دې وجه شعيب عليه السلام حضرت موسى عليه السلام ته د لورپه نكاح وركولوباندې راغب شونو، شعيب (عليه السلام) اوفرمائيل چه زه په دې دواړولوريانوكښې يوه لور تاله په نكاح دركول غواړم (هغه كۀ لويه ده او كه وړه) په دې شرط سره چه ته به زماسره آته كاله نوكري كوې، (يعنى ته به زما د چيلود څرولوكاركوې)اوكۀ تالس كاله پوره كړل (يعنى لس كاله دې چيلې اوڅرولې نودا (اتمام)به ستاد خوانه وى اوزه تالره (د لسو كالوپه شرط لګولو سره) په مشقت كښې اچول نه غواړم اوته به ماله انشاء الله (د تبرك دپاره دې) وعده پوره كوونكې اوموموې نوموسى (عليه السلام)اوفرمائيل چه داخبره (كومه چه تا اوكړه) زما او ستا ترمينځه مكمله شوه په دې دوؤكښې (يعنى دې اتوياد لسوكالو كښې) كومه يوه موده چه هم زه پوره كړم نو(په هغې باندې د زياتولود مطالبې كولوسره)په ماباندې به جبرنه وى (آيماكښې مازائده ده يعنى چه د څرولو مود پوره كړم)اومونږ چه څه وايو الله په هغې باندې نګهبان دې (يا شاهد دې، په دې خبره د نكاح عقدمكمل شواوحضرت شعيب عليه السلام خپلې لورته اووئيل چه د ته يوه همساوركړه چه د هغې په ذريعه د ځاروؤ حفاظت د درنده (شلوؤنكوحيواناتو) نه كوى، او د سابقينو انبياء كراموعليهم السلام ديرې همساګانې دد سره موجودې وې نو د جينئ په لاس كښې د حضرت آدم عليه السلام همسا راغله كومه چه د جنت د ونې د مورو وه،نوحضرت موسى عليه السلام هغه همسا د حضرت شعيب عليه السلام په علم كښې راوسته اوځان سره ئې واخسته

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: سوآء السبيل : داد اضافت د صفت نه الى الموصوف د قبيلې نه دې، اى الطريق الوسط، د سواء السبيل تفسيرئې په قصد السبيل سره كړې دې،د دې خبرې د ښودنې دپاره چه دااضافت د صفت دې خپل موصوف ته د قصد الطريق تفسيرئې په الطريق الاوسط سره كړې دې.

**قوله**: عنزة: عنزه د عصانه غټه اود نيزې نه وړه وى ددې په لاندينى سرپورې د اوسپنې نوكه وى

**قوله**: مآءمدين :ددې تفسيرئې په بئرسره كړې دې اشاره ئې اوكړه دې خبرې ته چه دلته ذكرد حال دې اومرادترينه محل دې،اود بئرنه مخكښې هومبتدأمحذوف ده،بئرددې خبردې،اى هوبئركائن فيها.

**قوله**: امّة: د امّت تفسير په جماعة كثيرة سره كولو كښې ئې اشاره كړې د دې خبرې ته چه تنوين د تكثيردپاره دې.

**قوله**: تذودان: د امرئتين صفت دې نه داچه د وجد مفعول ثانى، ځكه چه وَجَدَ په معنى د لقِىَ دې.

سوال: دلته سوال پیداکیږی چه ددې څلور افعالو مفعولونه ئې ولې حذف کړی دی، یسقون، تذودان، لانسقی اویصدرالرعآء.

جواب: جواب دادې چونکه مقصودبالذات فعل وی اومفعول نه وی په دې وجه ئې د څلوروواړو مفاعیل حذف کړل.

قوله: علی ان تأجرنی: داجمله د فاعل یاد مفعول نه د حال کیدوپه وجه محلاً منصوب ده،ای مشروطاعلیّ اوعلیک ذالک.

قوله: التمام: دائې محذوف منلو سره اشاره کړې د چه من عندک د مبتدأ محذوف خبردې.

قوله: ایما الاجلین: ایّ شرطیه د مازائده ده اوفلاعدوان جواب شرط دې.

**[ایاتونه:۲۹-۳۲]**

{فلماقضی موسی الأجل} اي رعيه وهو ثمان أو عشر سنين وهو المظنون {وَسَارَ بِأَهْلِهِ} زوجته بإذن أبيها نحو مصر {آنَسَ} أبصر من بعيد {مِنْ جَانِبِ الطُّورِ} اسم جبل {نَارًا قَالَ لِأَهْلِهِ امْكُثُوا} هنا {إِنِّي آنَسْتُ نَارًا لَعَلِّي آتِيكُمْ مِنْهَا بِخَبَرٍ} عن الطريق وكان قد اخطأها {أَوْ جَذْوَةٍ} بتثليث الجيم قطعة وشعلة {مِنَ النَّارِ لَعَلَّكُمْ تَصْطَلُونَ} تستدفئون والطاء بدل من تاء الإفتعال من صلي النار بكسر اللام وفتحها {فلما أتاها نودي من شاطئ} جانب {الواد الْأَيْمَنِ} لموسى {فِي الْبُقْعَةِ الْمُبَارَكَةِ} لموسى لسماعه كلام الله فيها {مِنَ الشَّجَرَةِ} بدل من شاطئ بإعادة الجار لنباتها فيه وهي شجرة عناب أو عليق أو عوسج {أَنْ} مفسرة لا مخففة {يا موسى إني أنا الله رب العالمين} {وَأَنْ أَلْقِ عَصَاكَ} فألقاها {فَلَمَّا رَآهَا تَهْتَزُّ} تتحرك {كَأَنَّهَا جَانٌّ} وهي الحية الصغيرة من سرعة حركتها {وَلَّى مُدْبِرًا} هاربا منها {وَلَمْ يُعَقِّبْ} اي يرجع فنودي {يا موسى أقبل ولا تخف إنك من الآمنين} {اسْلُكْ} أدخل {يَدَكَ} اليمنى بمعنى الكف {فِي جَيْبِكَ} هو طوق القميص وأخرجها {تَخْرُجْ} خلاف ما كانت عليه من الأدمة {بَيْضَاءَ مِنْ غَيْرِ سُوءٍ} أي برص فأدخلها وأخرجها تضيء كشعاع الشمس تغشي البصر {وَاضْمُمْ إِلَيْكَ جَنَاحَكَ من الرهب} بفتح الحرفين وسكون الثاني مع فتح الأول وضمه أي الخوف الحاصل من إضاءة اليد بأن تدخلها في جيبك فتعود إلى حالتها الأولى وعبر عنها بالجناح لأنها للإنسان كالجناح للطائر {فَذَانِكَ} بالتشديد والتخفيف أي العصا واليد وهما مؤنثان وإنما ذكر المشار به إليهما المبتدأ لتذكير خبره {بُرْهَانَانِ} مرسلان {من ربك إلى فرعون وملئه إنهم كانوا قوما فاسقين}

ترجمه: نوکله چه موسیٰ علیه السلام موده پوره کړه (یعنی د چیلود څرولوموده، کومه چه اته یالس کاله وه اوغالب ګمان دادې چه لس کاله ئې تیرکړل) اوخپله اهلیه ئې (د هغې د پلارپه اجازت سره د مصرپه طرف ځان سره) بوتله (نو) د لرې نه ئې د طور (کوم چه د یوغرنوم دې) خواته اوراولیدونوخپلې کوروالا ته ئې اوویئیل چه ته (دلته) ایساره شه (ما اورلیدلې دې) لایره ممکنه ده چه زه به هلته نه (د لارې) خبر (حال داچه موسیٰ علیه السلام لاره غلطه کړې وه) یاد

اورتکړه (یاشعله) راوړم (جذوة په جیم کښې درې واړه اعرابه صحیح دي) ددې دپاره چه تاسو ګرم شئ (یعني تاوده شئ. طاء د باب افتعال په تاء سره بدله شوې ده اوداد صَلِيَ بالنار په فتحې د لام اوکسرې د لام دواړو نه مشتق دې.)نوکله چه موسیٰ (ﷺ)اورته اورسیدو نو(موسیٰ ﷺ ته)د هغه د ښي اړخ نه د وادی په غاړه د ونې نه غږوکړې شو(د موسیٰ ﷺ د پاره) په مبارک میدان کښې (د هغه په دې میدان کښې د الله تعالیٰ د کلام اوریدوپه وجه،یعني هغه میدان د موسیٰ ﷺ دپاره ډیرمبارک وو په دې میدان کښې هغه ته د نبوت د ملاویدوپه وجه اود الله تعالیٰ سره د خبروکولوپه وجه، من الشجرة په اعادې دجارسره د وادی نه بدل دې،ددې ونې په دې وادی کښې د راتوکیدلوپه وجه، اوهغه د بیرې یاامبربیل یاد عوسج ونه وه،ان مفسره ده مخففه نه دې) اې موسیٰ یقیناًزه الله یم د ټولو جهانونوپروردګار(اوداآوازهم راغې چه اې موسیٰ !)خپله همساډې اوغورځوه، (نوهمسا ئې اوغورځوله)بیائې چه کله داهمسااولیدله چه د مارپه شان حرکت کوی (نولکه چه د ډیر تیزحرکت کولوپه وجه هغه جان یعني وړوکې ماردې نو)موسیٰ (ﷺ) د هغې نه) شاګړه او اوتختیدو (اوشاته ئې اونه کتل نوحکم اوشو)اې موسیٰ وړاندې راشه اوېرېږه مه،یقیناً ته په امن کښې ئې اوته خپل (ښې)لاس ترخ ته دننه باسه (اوطوق د قمیص ګریوان ته وائی،د خپل وراندینی غنم رنګئ برخلاف به)بغیرد څه بیمارئ نه (پرقیدونکې) رااوځی (یعني د برص د بیمارئ نه علاوه،نوموسیٰ ﷺ لاس وردننه کړواوبیائې رابهر کړونو د نمرد شعلوپه شان روښانه وو،اوسترګې ئې بریښولې.)اود یرې نه (د بچ کیدودپاره)خپل لاس دې د خپل ځان په طرف رایوځائ کړه (ددواړوحرفونوپه فتحې اود دویم په سکون معه فتحه د اول اوضمه د اول یعني د هغه د یرې نه د بچ کیدودپاره کومه چه د لاس په پرقیدوسره حاصله شی،په داسې طریقې سره چه ته لاس دویم ځل ترخ ته ننه باسه نوهغه به خپل وراندینی حالت ته راشی اود لاس نه ئې په وزر سره تعبیرکړې دې په دې وجه چه د انسان دپاره لاسونه داسې دی لکه د مارغۀ دپاره وزرې .)داوه معجزې ستادپاره ستاد رب د خوانه د فرعون اودهغه د مشرانوخواته لیږلې شوې دی (ذانک په تشدید اوتخفیف دواړوسره یعني عصااویدبیضا ،اوداودواړه مؤنث دی اوپه کوم اسم اشارې سره چه دې ته اشاره شوې ده هغه مبتدادهو هغه مذکراوړلې شوې ده اود هغې د خبرد مذکروالی د رعایت کولو په وجه) څکه چه هغوی ډیرنافرمانه خلق دی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله: جذوة:** په جیم باندې درې واړه حرکات صحیح دی،هغه لرګی ته وئیلې کیږی چه په سرکښې ئې شعله وی،مضبوط لرګی ته هم جذوه وئیلې کیږی، من نارد جذوة بیان دې، فلما اتاها کښې د هاضمیرمرجع ناردې.

قوله: من شاطئ الواد: من ابتدائیه د غایت دپاره دي اوأیمن د شاطئ یاد وادی صفت دي اوایمن د یمین نه دي په معنی د ښی اړخ، اود جانبِ یمین نه مراد د حضرت موسیٰ علیه السلام جانب یمین دي اوفی البقعة د نودي سره متعلق دي.

قوله: لسماعه كلامَ الله: یعنی هغه میدان د موسیٰ علیه السلام دپاره ځکه مبارک ووچه په دې میدان کښې هغه په نبوت سره اونمانزلې شواود رب العالمین سره ورته د کلام کولوشرف حاصل شو.

قوله: من الشجرة: داد شاطئ نه بدل الاشتمال دي اود ملابست د وجې طرف ته مفسرعلام "لنباتها فیه وئیلوسره اشاره کړې ده،چونکه هغه ونه پهٔ شاطئ یعنی یوطرف کښې وه نو داسې شوه لکه چه آوازد ونې نه راغې،هغه ونه د څه ونه وه نوپه دې کښې درې اقوال دی ① اول عناب کوم چه معروف دې،هغې میوې ته هم عناب وئیل کیږی چه کوم د ځنګلی بیرې نه لږغټ او رنګ ئې سور تورزالی ته مائل وی، ② دویم عُلیق،داپه ونوپورې انختونکې د ځیلئ (تانړو) په ځیروی پانړې ئې بیخی لږې وی، د مینچوپه شان په تولـه ونه باندې خوریږی،په کومه ونه پورې چه اونخلی نود هغې ونې رس راکاږی اوهغه وچه کوی، رنګ ئې زیړوی،په عوامو کښې ئې مختلف نومونه دی،آکاش بیل،امربیل اوپه فارسئ کښې ورته عشق پیچان وائی،طبی نوم ئې افطیمون دې، ③ دریم قول عوسج دې، دا یو ازغنه ځنګلی ونه ده،په دې باندې وړې وړې ترخې ترشې میوې رااوځی، کوموته چه عام طورباندې "جهربیری وائی.

قوله: ان مفسرة: ځنوحضراتو دې آن ته ان مخففه عن المثقله وئیلې دی لیکن داصحیح نه د بلکه داان مفسره دې، ددې نه وړاندې چه کوم نودِیَ راغلې دې چه د قول په معنی کښې دې لهٰذا ددې ان مفسره کیدل متعین دی،ای نودی بان یموسیٰ، جانّ وارهٔ مارته وئیلې کیږی اوثعبان غټ مارته وئیلې کیږی اوحیّة مطلق مارته وئیلې کیږی،په قرآن کریم کښې دیته جان هم وئیلې شوې دې اوثعبان هم،د تطبیق صورت دادې چه ابتداءً د غورځولوپه وخت کښې به جانّ یعنی وړوکې ماروو،لیکن وروستوبه غټ شو،یاد تیزحرکت کولوپه وجه به هغه د وړوکې مارپه شان تیزګرځیدواود جسم اوجوثې په اعتبارسره به غټه اژدها وه.

قوله: ذكّر المشار به اليهما: داد یوسوالِ مقدر جواب دې،سوال دادې چه عصااویدواړه مؤنث دی لهٰذا ددوی دپاره اسم اشاره مؤنث تانْ په کاروه،نه داچه ذانِ ؟

د جواب خلاصه داده چه په دې کښې د خبررعایت کړې شوې دې کوم چه "برهانان" دې هغه مذکردې نوپه دې وجه ئې مبتدأ هم مذکرذکرکړه چه مطابقت راشی.

**قوله**: من ربك: دا د محذوف سره متعلق دي او هغه د برهانان صفت دي د کوم طرف ته چه مفسرعلام د مرسلان په مقدر منلو سره اشاره کړې د اوځنو حضراتو کائنان محذوف منلې دي.

**[ایاتونه: ۳۳ - ٤٢]**

(قَالَ رَبِّ إِنِّي قَتَلْتُ مِنْهُمْ نَفْسًا) هُوَ القبطي السابق (فأخاف أن يقتلون) به (وَأَخِي هَارُونُ هُوَ أَفْصَحُ مِنِّي لِسَانًا) أبين (فَأَرْسِلْهُ مَعِيَ رِدْءًا) مُعِينًا وَفِي قِرَاءَة بِفَتْحِ الدَّال بِلا هَمْزَة (يُصَدِّقُنِي) بِالْجَزْمِ جَوَاب الدُّعَاء وفي قراءة بالرفع وجملته صفة ردءا (إني أخاف أن يكذبون) (قَالَ سَنَشُدُّ عَضُدَكَ) نُقَوِّيك (بِأَخِيكَ وَنَجْعَلُ لَكُمَا سُلْطَانًا) غَلَبَة (فَلَا يَصِلُونَ إِلَيْكُمَا) بِسُوءٍ اذهَبَا (بِآيَاتِنَا أَنْتُمَا وَمَنِ اتَّبَعَكُمَا الْغَالِبُونَ) لَهُمْ (فَلَمَّا جَاءَهُمْ مُوسَىٰ بِآيَاتِنَا بَيِّنَاتٍ) وَاضِحَات حَال (قَالُوا مَا هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُفْتَرًى) مُخْتَلَق (وما سمعنا بهذا) كائنا (في) ايام (آبائنا الأولين) (وَقَالَ) بِوَاوٍ وَبِدُونِهَا (مُوسَىٰ رَبِّي أَعْلَمُ) عَالِم (بِمَنْ جَاءَ بِالْهُدَىٰ مِنْ عِنْدِهِ) الضَّمِير لِلرَّبِّ (وَمَنْ) عَطْف عَلَى مَنْ قَبْلهَا (تَكُونُ) بِالْفَوْقَانِيَّة وَالتَّحْتَانِيَّة (لَهُ عَاقِبَةُ الدَّارِ) أَيْ الْعَاقِبَة الْمَحْمُودَة فِي الدَّار الْآخِرَة أَيْ هُوَ أَنَا فِي الشِّقَّيْنِ فَأَنَا مُحِقّ فِيمَا جِئْت بِهِ (إِنَّهُ لا يفلح الظالمون) الكافرون (وقال فرعون يأيها الْمَلَأُ مَا عَلِمْتُ لَكُمْ مِنْ إِلَٰهٍ غَيْرِي فَأَوْقِدْ لِي يَا هَامَانُ عَلَى الطِّينِ) فَاطْبُخْ لِي الْآجُرّ (فَاجْعَلْ لِي صَرْحًا) قَصْرًا عَالِيًا (لَعَلِّي أَطَّلِعُ إِلَىٰ إِلَٰهِ مُوسَىٰ) أَنْظُر إِلَيْهِ وَأَقِف عَلَيْهِ (وَإِنِّي لَأَظُنُّهُ مِنَ الْكَاذِبِينَ) فِي ادعائهم إلَهًا آخر وَأَنَّهُ رَسُوله (وَاسْتَكْبَرَ هُوَ وَجُنُودُهُ فِي الْأَرْضِ) أَرْض مِصْر (بِغَيْرِ الْحَقِّ وَظَنُّوا أَنَّهُمْ إِلَيْنَا لَا يُرْجَعُونَ) بِالْبِنَاءِ لِلْفَاعِلِ وَلِلْمَفْعُولِ (فَأَخَذْنَاهُ وَجُنُودَهُ فَنَبَذْنَاهُمْ) طَرَحْنَاهُمْ (فِي الْيَمِّ) الْبَحْر الْمَالِح فَغَرِقُوا (فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الظَّالِمِينَ) حِين صَارُوا إِلَى الْهَلَاك (وَجَعَلْنَاهُمْ) فِي الدُّنْيَا (أَئِمَّةً) بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَإِبْدَال الثَّانِيَة يَاء رُؤَسَاء فِي الشِّرْك (يَدْعُونَ إِلَى النَّارِ) بِدُعَائِهِمْ إِلَى الشِّرْك (وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ لَا يُنْصَرُونَ) بِدَفْعِ الْعَذَاب عَنْهُمْ (وَأَتْبَعْنَاهُمْ فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً) خِزْيًا (وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ هُمْ مِنَ الْمَقْبُوحِينَ) الْمُبْعَدِينَ

**ترجمه**: موسٰی (علیه السلام) عرض اوکړو اې زما پروردګاره! زما نه د هغوی د یو کس قتل شوی دی (او هغه سابق قبطی وو) نو زه یریږم چه چرته (د هغه په بدل کښې به) مابه هم اووژنی، او زما ورور هارون زمانه ډیر فصیح اللسان دی نو هغه هم (ځما) معاون جوړولو سره لیږه (په یو قراءت کښې ردأ د دال په فتحې سره بغیر د همزې نه دی) هغه به ځما تائید کوی، (یصدقني په جزم سره جواب د دعاء دی یعنی د ارسله، او بل قراءت په رفع د قاف سره جمله به د رداء صفت شی) زه یریږم چه دا خلق به ځما تکذیب اوکړی، ارشاد اوشو چه او س مونږ ستا ورور ستاد لاس قوت جوړوؤ، (یعنی تا ته قوت درکوؤ) او مونږ به تاله غلبه درکړو، چه د هغې په وجه به هغوی تا سو ته (په بدنیتئ سره) نه شی رسیدلې، زمونږ نخښو (معجزو) سره لاړشئ تاسو او ستاسو متبعین به په هغوی باندې غالب اوسئ. لنډه دا چه کله موسٰی دې خلقو ته زمونږ ښکاره نخښو سره راغې (بینات

حال دې،نودې خلقو اوويل چه داخو جوړکړې شوې جادودې،اوموږنه دی اوريدلی چه زموږپه وراندينو پلارانو اونيکونوکښې داسې خبره شوې وی،اوموسٰی (علیه السلام) اوويل چه زما پروردگار هغه کس ديرښه پيژنی کوم چه د هغه د طرف نه هدايت راوړی (په يوقراءت کښې په دواؤسره "وقال" دې اوپه يوکښې بغيرد واؤنه "قال"دې، د عنده ضميررب ته راجع دې،اوهغه څوک هم ښه پيژنی) چالره چه په آخرت کښې (ښه)انجام دې،(يعنی بهترانجام دې په آخرت کښې،يعنی هغه په دواړوصورتونوکښې هم زه يم،نوماچه کوم څه راوړې دی نوزه په هغې کښې په حقه يم،)يقيناًظالمان خلق به کاميابی نه مومی.(په يکون کښې ياء اوتاء دواړه قراءتونه دی) فرعون اوويل چه اې درباريانو اززه ستاسودپاره د خپل ځان نه بغيرل معبودنه پيژنم،اې هامان اته زمادپاره خاوره په اورکښې اولګوه پخه ئې کړه (يعنی پخې خښتې جوړې کړه)اوما له يولوړعمارت جوړکړه (اوچته بنګله)ددې دپاره چه زه د موسٰی خدائ ته ورڅرګندشم،(هغه اوګورم اوځان ترې خبرکړم)اوزه خوموسٰی (علیه السلام)لره (د هغه په دې دعوٰی کښې چه زمانه علاوه هم بل خدائ شته اودې ئې پيغمبردې) دروغژن ګنړم اوفرعون اود هغه لښکرپه دنياکښې ناحقه سراوچت کړې وواودائې ګنړله چه د هغوی زماخواته هدو واپس راتلل نشته (يرجعون په معروف اومجهول دواړوصيغوسره استعمال شوې دې)نوموږ لره اود لښکرو لره رااونيول اوپه درياب کښې مووروګوزارکړل (په ترش درياب کښې نوپکښې غرق شول)نواوګوره چه د ظالمانو څنګه انجام شو؟ (کله چه د هلاکت په طرف روان شول) اوموږهغوی لره (په دنياکښې)داسې مشران اوګرځول چه (خلق ئې د شرک د دعوت په ذريعه) د دوزخ په اړخ راغوښتل (ائمة کښې د دواړوهمزوپه تحقيق سره اود دويمې په ياء سره بدلولو سره، يعنی په شرک کښې مورئيسان اوګوځول)اود قيامت په ورځ به (د عذاب د لرې کولو دپاره مطلقا)ددوی سره مددنه کيږی،اوموږپه دوی پسې په دې دنياکښې هم لعنت (رسوائی)اولګوله،اود قيامت په ورځ به دوی په بدشکله (لعنتی) خلقوکښې وی.

## د قيودااتو فوائد اوتسهيل

قوله: رِدءً: د ارسله د ضميرنه حال دې په معنی د مددګار، جواب الدعاء په اصل کښې جواب الامروئيل په کاروو ليکن ادبائې جواب دعاء اوويل څکه چه د الله تعالی په حضورکښې چه کومې صيغې د امراسعتماليږی هغې ته دعاوئيلې کيږی.

قوله: سنشدعضدك : په دې مجازمرسل دې سبب ذکرشوې دې اومرادترې نه مسبب دې،څکه چه قوت د لاس قوت د شخص لره مستلزم دې

قوله: بأيٰتنا : دلته د آيات نه عصااويدمراددی،ليکن په دوؤباندې صيغه د جمع راوړلې شوه څکه چه د هغې نه هريوپه متعددوآياتوباندې مشتمل وو.

**قوله: بينات:** داد آيات نه حال دې.

**قوله: اعلم:** اى عالم، د اعلم تفسيرئې په عالم سره اوكړوپه دې سره ئې دفع د سوال مقدر اوكړه، سوال دادې چه اسم تفضيل خو اسم ظاهرته نصب نه وركوى؟ د جواب خلاصه دادہ چه دلته اسم تفضيل په معنى د اسم فاعل دې، **وتكون** عامو قاريانو په تاء سره وئيلې دې له "د تكون خبردې اوعاقبة ئې اسم دې، اوداهم كيدې شى چه په تكون كښې هم ضميرددې اسم شى اوله عاقبة الدار جمله د خبر په محل كښې، اوشقين د شق تثنيه د په معنى د غاړې اوارخ نومعنى ئې دوه غاړې، دلته مراد "من جآء بالهدى اومن تكون له عاقبة الدار" دى.

**قوله: يوم القيٰمة هم من المقبوحين:** يوم القيامة د مقبوحين سره هم متعلق كيدې شى ليكن ظاهره داد چه د محذوف سره متعلق دې. تقديرد عبارت به داسې شى "قبحوا يوم القيامة هم من المقبوحين، قبحوا د مقبوحين تفسيركوى، مقبوحين د مقبوح جمع ده اومعنى ئې ده وران كړې شوې، مطلب دادې چه د قيامت په ورځ به ددوى مخونه مسخ شوى وى اوتک توربه وى، سترګې به ئې شنې وى، مقبوح اسم مفعول دې، (ك،ف).

**[ایاتونه: ۴۳-۵۰]**

﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ﴾ التَّوْرَاة ﴿مِنْ بَعْدِ مَا أَهْلَكْنَا الْقُرُونَ الْأُولَى﴾ قَوْم نُوح وَعَاد وَثَمُود وَغَيْرهمْ ﴿بَصَائِرَ لِلنَّاسِ﴾ حَال مِنَ الْكِتَاب جَمْع بَصِيرَة وَهِيَ نُور الْقَلْب أَيْ أَنْوَارًا لِلْقُلُوبِ ﴿وَهُدًى﴾ مِنَ الضَّلَالَة لِمَنْ عَمِلَ بِهِ ﴿وَرَحْمَةً﴾ لِمَنْ آمَنَ بِهِ ﴿لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ﴾ يَتَّعِظُونَ بِمَا فِيهِ مِنَ الْمَوَاعِظ ﴿وَمَا كُنْتَ﴾ يَا مُحَمَّد ﴿بِجَانِبِ﴾ الْجَبَل أَوْ الْوَادِي أَوْ الْمَكَان ﴿الْغَرْبِيِّ﴾ مِنْ مُوسَى حِين الْمُنَاجَاة ﴿إِذْ قَضَيْنَا﴾ أَوْحَيْنَا ﴿إِلَى مُوسَى الْأَمْرَ﴾ بِالرِّسَالَةِ إِلَى فِرْعَوْن وَقَوْمه ﴿وَمَا كُنْتَ مِنَ الشَّاهِدِينَ﴾ لِذَلِكَ فَتَعْلَمهُ فَتُخْبِر بِهِ ﴿وَلَكِنَّا أَنْشَأْنَا قُرُونًا﴾ أُمَمًا مِنْ بَعْد مُوسَى ﴿فَتَطَاوَلَ عَلَيْهِمُ الْعُمُرُ﴾ طَالَتْ أَعْمَارهمْ فَنَسُوا الْعُهُود وَانْدَرَسَتْ الْعُلُوم وَانْقَطَعَ الْوَحْي فَجِئْنَا بِك رَسُولًا وَأَوْحَيْنَا إِلَيْك خَبَر مُوسَى وَغَيْره ﴿وَمَا كُنْتَ ثَاوِيًا﴾ مُقِيمًا ﴿فِي أَهْلِ مَدْيَنَ تَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِنَا﴾ خَبَر ثَانٍ فَتَعْرِف قِصَّتهمْ فَتُخْبِر بِهَا ﴿وَلَكِنَّا كُنَّا مُرْسِلِينَ﴾ لَك وَإِلَيْك بِأَخْبَارِ الْمُتَقَدِّمِينَ ﴿وَمَا كُنْتَ بِجَانِبِ الطُّورِ﴾ الْجَبَل ﴿إِذْ﴾ حِين ﴿نَادَيْنَا﴾ مُوسَى أَنْ خُذْ الْكِتَاب بِقُوَّةٍ ﴿وَلَكِنْ﴾ أَرْسَلْنَاك ﴿رَحْمَةً مِنْ رَبِّكَ لِتُنْذِرَ قَوْمًا مَا أَتَاهُمْ مِنْ نَذِيرٍ مِنْ قَبْلِكَ﴾ وَهُمْ أَهْل مَكَّة ﴿لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ﴾ يَتَّعِظُونَ ﴿وَلَوْلَا أَنْ تُصِيبَهُمْ مُصِيبَةٌ﴾ عُقُوبَة ﴿بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ﴾ مِنَ الْكُفْر وَغَيْره ﴿فَيَقُولُوا رَبَّنَا لَوْلَا﴾ هَلَّا ﴿أَرْسَلْتَ إِلَيْنَا رَسُولًا فَنَتَّبِعَ آيَاتِكَ﴾ الْمُرْسَل بِهَا ﴿وَنَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ وَجَوَاب لَوْلَا مَحْذُوف وَمَا بَعْده مُبْتَدَأ وَالْمَعْنَى لَوْلَا الْإِصَابَة الْمُسَبَّب عَنْهَا قَوْلهمْ أَوْ لَوْلَا قَوْلهمْ الْمُسَبَّب عَنْهَا لَعَاجَلْنَاهُمْ بِالْعُقُوبَةِ وَلَمَا أَرْسَلْنَاك إِلَيْهِمْ رَسُولًا ﴿فَلَمَّا جَاءَهُمُ الْحَقُّ﴾ مُحَمَّد ﴿مِنْ عِنْدِنَا قَالُوا لَوْلَا﴾ هَلَّا ﴿أُوتِيَ مِثْلَ مَا أُوتِيَ مُوسَى﴾ مِنَ الْآيَات كَالْيَدِ

اَلْبَيْضَاء وَالْعَصَا وَغَيْرِهِمَا أَوِ الْكِتَاب جملة واحدة قال تعالى (أَوَلَمْ يَكْفُرُوا بِمَا أُوتِيَ مُوسَىٰ مِنْ قَبْلُ) حيث (قَالُوا) فِيهِ وَفِي مُحَمَّد (سَاحِرَانِ) وَفِي قِرَاءَة سِحْرَان اي الْقُرآن وَالتَّوْرَاة (تَظَاهَرَا) تعَاوَنَا (وَقَالُوا إِنَّا بِكُلٍّ) من النبيين والكتابين (كَافِرُونَ) (قُلْ) لَهُمْ (فَأْتُوا بِكِتَابٍ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ هُوَ أَهْدَىٰ مِنْهُمَا) مِنَ الْكِتَابَيْنِ (أَتَّبِعْهُ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ) فِي قَوْلِكُمْ (فَإِنْ لَمْ يَسْتَجِيبُوا لَكَ) دُعَاءَكَ بِالْإِتْيَانِ بِكِتَابٍ (فَاعْلَمْ أَنَّمَا يَتَّبِعُونَ أَهْوَاءَهُمْ) فِي كُفْرِهِمْ (وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّنِ اتَّبَعَ هَوَاهُ بِغَيْرِ هُدًى مِنَ اللَّهِ) اي لا اضلّ مِنْهُ (إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ) الْكَافِرِينَ

---

**ترجمه:** اومونږورانديناوامتونولره (لكه قوم نوح اوعاداوثمودوغيره) د هلاكولونه وروستو موسٰى (عليه السلام) ته كتاب (تورات) وركړي وو كوم چه د خلقو دپاره بصيرت اوهدايت وو، (ده گمراهئ نه هغه كس دپاره چه عمل پرې اوكړى) اورحمت وو (د هغه چادپاره چه ايمان پرې راوړى) ددې دپاره چه نصيحت حاصل كړى (د هغه نصحتونونه چه په هغې كښې وو. بصائر للناس د الكتاب نه حال دې، اوبصائرد بصيرة جمع ده، اوبصيرت نورقلبى ته وائى. اود بصائر مطلب دې انوارالقلوب، اواې محمد ﷺ) ته (د مناجات په وخت كښې د موسى (عليه السلام) په مغربى (د غرهٔ په) اړخ كښې (ياد مغربى وادى په اړخ كښې ياد مغربى مكان په اړخ كښې) موجودنه وې كله چه مونږ (فرعون اود هغه د قوم په طرف) د پيغام رسولودپاره موسٰى (عليه السلام) ته وحى ليږلې وه اونه ته (ددې واقعې) په كتونكوكښې وې (چه داواقعه دې كتلې وي اوبيادې ترې خبرور كړې وې) ليكن مونږ (د موسٰى (عليه السلام) نه پس) ډيرامتونه پيداكړل بيا په هغوى باندې اوږده زمانه تيره شوه، (يعنى د هغوى عمرونه اوږده شول، وعدې اولوظونه ئې هير كړل او علوم ختم شول اود وحى سلسله منقطع شوه نومونږتالره پيغمبرجوړكړواوته مواوليږلې اوتاله موده حضرت موسٰى (عليه السلام) وغيره د واقعاتو وحى اوليږله) اوته په اهل مدين كښې هم ستوګن نه وې، چه ته هغه خلقو ته زمونږآيتونه اوروې، (تتلوعليهم د ماكنت دپاره خبرثانى دې) بلكه مونږتالره پيغمبر جوړولو سره ليږونكى يو، (اود تيروشوخلقود واقعاتود خبرونوليږونكى يو،) اوكله چه مونږ (حضرت موسٰى (عليه السلام) ته) آوازاوكړو (چه كتاب په مضبوط والى سره اونيسه) نو (هغه وخت كښې هم) ته د جبل طورپه جانب كښې موجودنه وې بلكه مونږتالره ستاد رب د خوانه رحمت جوړكړې اوموليږلې ددې دپاره چه ته هغه قوم ته داروركړې چه كوموته ستانه وراندې هيڅ يوويره ؤنكې نه دې راغلې، (اوهغه اهل مكه دى) ددې دپاره چه هغوى نصيحت حاصل كړى، اوكهٔ داخبره نه وې چه د هغوى د لاسونود كړو (كفروغيره) په وجه هغوى ته مصيبت (يعنى عقوبت) اورسى نودابه ئې وئيلې چه زمونږپروردګاره اتازمونږخواته يوپيغمبرولې راونه ليږلو؟ چه مونږستاد (راليږلې شوى) آيتونوتابعدارى كړې وې اوپه ايمان والوكښې شوى وې، (د لولا اوّل دپاره جواب محذوف دې او مابعد ئې مبتدأ

دو اومعنی داده چه کۀ د مصیبت رسیدل کوم چه ددې کافرانود قول لولا ارسلت الینارسولا سبب دي،کۀ دانه وې نومونږبه دوی ته په سزاورکولوکنبې جلتی کړې وې یاکۀ ددوی قول ربنالولا ارسلت الینارسولا کوم چه مسبب دې د مصیبت د اصابت نه وی نومونږبه تالره د هغوی طرف پیغمبرنه وئ لیږلی)بیاکله چه ددوی خواته زمونږد طرف نه حق (محمد ﷺ) راغې نو(د مکې والو)اووئیل چه د ته داسې نخښنه ولې نه د ورکړې شوې لکه څنګه چه موسٰی (علیه السلام)ته ورکړې شوې وه،(لکه یدبیضااوعصااوپه یوځل د کتاب ملاویدل،الله تعالی فرمائی)آیاداخلق منکرشوی نه وو د هغه څه نه کوم چه موسٰی ته ددې نه وړاندې ورکړې شوې وو،دوی (د موسٰی علیه السلام اود حضوراکرم ﷺ په باره کښې)اووئیل چه دواړه جادوګردی(په یوقراءت کښې سِحران دې یعنی تورات اوقرآن کریم)کوم چه د یوبل معاون دی،اوهغوی داهم وائی چه مونږ(دد دواړوکتابونویا په دواړو پیغمبرانو نه) یو هم نه منو، ته (دوی ته)اووایه چه ښه، نوبیاتاسویوکتاب د الله د خوانه راوړئ کوم چه په هدایت کولوکښې ددې دووْ(کتابونو)نه بهتروی زه به ئې اتباع اوکړم،کۀ تاسو(په خپله خبره کښې)رېښتونی یئ،بیاکۀ داخلق (د کتاب په راوړلو کښې) ستا خبره اونه منی نوته پوهه شه چه دوی (په کفرکښې)صرف د خپلوخواهشاتو پسې دی اود داسې کس نه به غټ بې لارې څوک وی چه په خپلوخواهشاتوپسې درومی بغیرددې نه چه د الله د خوانه څه دلیل وی،(یعنی دد نه لوئ ګمراه بل څوک نشته)الله تعالی داسې ظالم (کافر)خلقوته هدایت نه ورکوی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** وعاد: ددې عطف په قوم باندې دې نه چه په نوح باندې،څکه چه که ددې عطف په نوح باندې شی نود قوم عاددپاره به د قوم کیدل لازم شی حال داچه عادپه خپله یوقوم دې تقدیرد عبارت دادې "من بعدمااهلکناقوم نوح وعادوثمود،پس ددې نه چه مونږهلاک کړل قوم نوح اوقوم عاداوقوم ثمودلره.لهٰذامناسب وه چه عاد ئې په الف سره "عادا"لیکلې وې ددې دپاره چه په نوح باندې ئې د عطف اشتباه نه وې راغلې.

**قوله:** بصائر: ① داپه حذف د مضاف سره د کتاب نه حال دې،ای ذابصائر،② که مضاف محذوف اونه منلې شی نومبالغةً هم حال کیدې شی،③ اوبصائرد کتاب نه مفعول له هم کیدې شی. دغه شان په هدًی اورحمةً کښې هم ذکر شوی درې واړه ترکیبونه کیدې شی.

**قوله:** بجانب الجبل اوالوادي اوالمکان: ددې عبارت په اضافه کولوسره مقصدد بصریینود مذهب مطابق د راتلونکی اعتراض جواب دې،اعتراض دادې چه د جانب اضافت غربی طرف ته د اضافت د موصوف الی الصفة د قبیلې نه دې اوداد بصریینوپه نیز جائز نه دې، څکه چه موصوف اوصفت دواړه یوڅیزوی، لهٰذا ددې نه اضافت الشیئ الی نفسه

لازمیږي، او دلته هم دغه شان دي چه جانب او غربي یو څیز دي؟
د دې اعتراض جواب کولو د پاره د غربي موصوف محذوف منلې دي خلاصه د جواب داده چه دلته د غربي دپاره موصوف محذوف دې چه الجبل دې، نو اضافت د جانب جبل ته دې، غربي ته نه دې، مفسر علام درې لفظونه محذوف منلي دی، په دې درې وارو کښې هر یو د جانب دپاره مضاف الیه گرځولې شي، د کوفینود مذهب مطابق اعتراض نه واقع کیږي، د داسې قسم تعبیرات په قرآن او حدیث کښې ډیرزیات موجود دی.
**قوله: وماكنت من الشاهدين**: لذالک، او ته د دې حالاتو او واقعاتو کتونکې نه وې، دلته یو سوال پیدا کیږي چه په ماقبل کښې او نیلې شوچه د غربه غربي جانب کښې موجودنه وې، په دې سره د مشاهدې په خپله نفی اوشوه، نو بیاد "وماكنت من الشاهدين" و نیلو څه فائده؟
جواب دادې چه د حاضریدو د پاره مشاهده ضروری نه ده، څنو ختونو کښې داسې هم کیږي چه انسان خو موجود وی لیکن مشاهده اونه کړی، په دې وجه ابن عباس ﷺ فرمائي چه "لم تحضر ذالك الموضع ولو حضرته ماشاهدت ماوقع فيه".
**قوله: تتلو عليهم آيتنا**: داجمله ده کنتَ دپاره خبر ثاني هم کیدې شي او د کنت د ضمیر نه حال هم کیدې شي، د هم ضمیر مرجع اهل مکه دی، یعنی کله چه تا اهل مکه ته د اهل مدین واقعات اورول نو ته په اهل مدین کښې موجودنه وې، چه د هغوی حالات او واقعات دې کتلې وئ او قوم ته ئې اوره وې، بلکه د زرونو کالو په خواتیر شوو دې حالاتو او واقعاتو خبرتاله د وحی په ذریعه سره درکولې کیږي کوم چه ستاد پیغمبرئ یو پوخ او واضح دلیل دې.
**قوله: ان خذ الكتاب بقوة**: دې کښې ان تفسیریه دې یعنی د نداء تفسیر دې، مفسر علام خذ الكتاب لره د ایتاء تورات سره متعلق کړې دې او مخکښینئ آیت "وماكنت بجانب الغربي" لره ئې په نفس ارسال پورې متعلق کړې دې، حال دادې چه د نفس ارسال او د ایتاء تورات په مینځ کښې د ډیرشو کالو فاصله د، او څنو حضراتو دې عکس هم و نیلې دې.
**قوله: لولا ان تصيبهم مصيبة**: لولا امتناعیه ده کومه چه د وجود د اول په وجه په انتفاء د ثاني باندې دلالت کوی، په ان تصيبهم کښې ان مصدریه دې، او د لولا اصابة المصيبة لهم په معنی کیدونه پس مبتدأ ده او خبرئې موجودٌ محذوف دې، او د لولا جواب "ماارسلناك" محذوف دې. دویمه لولا تحضیضیه ده د دې جواب "فنتبع ايتك" مذکور دې تقدیر د عبارت دادې "لولا قولهم هذا اذا اصابتهم مصيبة لما ارسلناك اليهم رسولا".
خلاصه داشوه چه اصابت عقوبت، سبب دې د قول، او قول سبب دې د ارسال، چونکه د سبب سبب هم سبب وی لهٰذا اصابت مصیبت په واسطه د قول سبب شو د ارسال دپاره، نو په دې وجه ئې لولا په اصابت باندې داخل کړو او فاء سببیه سره ئې د "فيقولوا" عطف

په اصابت باندې اوکړو.
يعنى د حضور ﷺ د ارسال سبب د اهل مکه قول دې، که د اهل مکه دا قول نه وې نو مونږ به ته پيغمبرنه وې ليږلې، يعنى د عدم ارسال د انتفاء (ارسال) سبب د اهل مکه قول لولا ارسلت الينا رسولا دې، او د دې قول سبب اصابت د مصيبت دې.
تنبيه: د عدم ارسال انتفاء نفى النفى د اثبات په معنى کښې د کيدوپه وجه د ارسال په معنى کښې دې.
قوله: اولولا قولهم المسبب عنها الخ: يعنى د اصابت د مصيبت په وخت کښې کۀ د هغوى قول د انتفاء د عدم رسالت سبب نه وې نو مونږبه د هغوى په عذاب کښې جلتى کړې وې، اونه به موهغوى ته پيغمبرنه ليږلې، داتعبيرد حاصل معنى په اعتبارسره دې، چه حاصل ئې دا دې چه د لولا د جواب د انتفاء سبب د هغوى دا قول مذکوردې، په دې وجه ئې "المسبب عنها قولهم" وئيلى دى.
قوله: ولما ارسلناك: داجواب منفى دې، داد وجودشرط په وجه د جواب په انتفاء باندې دلالت کوى، فالمعنى انتفى عدم ارسالك اليهم لقولهم المذكور، ددې دپاره چه د عذاب د نزول په وخت کښې ددوى عذرختم کړې شى، گنى بيابه ئې د عذاب د نزول په وخت کښې داعذروړاندې کولې شوچه کۀ د مخکښينوامتونوپه شان مونږته هم انبياء کرام راغلى وې نومونږبه ايمان راوړې وې اونن به د عذاب په دې مصيبت کښې مونږنه وې راگيرشوى، الله تعالى د حضور ﷺ په ليږلوسره ددوى داعذرختم کړو، کۀ يو کس اعتراض اوکړى چه اصابت د مصيبت او دا مذکوره مقوله خوبه په راتلونکې ورځ د قيامت کښې واقع کيږى اولولا کوم چه د وجود واقعى په وجه په انتفاء د ثانى باندې دلا لت کوى حال دادې چه دلته داسې نه ده؟ د جواب خلاصه داده چه مانع کله موجودوى اوکله مفروض وى، دلته ثانى صورت مراددې، يعنى على سبيل الفرض والتقدير. (جمل ملخصا)
قوله: اوالكتاب: په دې سره د "مثل ما اوتى" دويم تفسيرته اشاره ده، اود أوالكتاب عطف په الايات باندې دې.
قوله: ساحران: داد مبتدأ محذوف "هما" خبردې.

**[ايات قوله: ٥١ - ٦٠]**

(وَلَقَدْ وَصَّلْنَا) بيّنّا (لَهُمُ الْقَوْلَ) القرآن (لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ) يتعظون فيؤمنون (الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِهِ) أى القرآن (هُم بِهِ يُؤْمِنُونَ) أيضا نزلت في جماعة أسلموا من اليهود كعبد الله بن سلام وغيره ومن النصارى قدموا من الحبشة ومن الشام (وَإِذَا يُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ) القرآن (قَالُوا آمَنَّا بِهِ إِنَّهُ الْحَقُّ مِن رَّبِّنَا إِنَّا كُنَّا مِن قَبْلِهِ مُسْلِمِينَ) موحدين (أُولَٰئِكَ يُؤْتَوْنَ أَجْرَهُم مَّرَّتَيْنِ) بإيمانهم بالكتابين (بِمَا صَبَرُوا) بصبرهم على

العمل بهما ﴿وَيَدْرَءُونَ﴾ يدفعون ﴿بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ﴾ منهم ﴿وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنْفِقُونَ﴾ يتصدقون ﴿وَإِذَا سَمِعُوا اللَّغْوَ﴾ الشتم والأذى من الكفار ﴿أَعْرَضُوا عَنْهُ وَقَالُوا لَنَا أَعْمَالُنَا وَلَكُمْ أَعْمَالُكُمْ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ﴾ سلام متاركة أي سلمتم منا من الشتم وغيره ﴿لَا نَبْتَغِي الْجَاهِلِينَ﴾ لا نصحبهم ونزل في حرصه صلى الله عليه وسلم على إيمان عمه ابي طالب ﴿إِنَّكَ لَا تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ﴾ هدايته ﴿وَلَكِنَّ اللَّهَ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ وَهُوَ أَعْلَمُ﴾ عالم ﴿بِالْمُهْتَدِينَ﴾ ﴿وَقَالُوا﴾ قومه ﴿إِنْ نَتَّبِعِ الْهُدَىٰ مَعَكَ نُتَخَطَّفْ مِنْ أَرْضِنَا﴾ ننتزع منها بسرعة قال تعالى ﴿أَوَلَمْ نُمَكِّنْ لَهُمْ حَرَمًا آمِنًا﴾ يأمنون فيه من الإغارة والقتل الواقعين من بعض العرب على بعض ﴿يُجْبَىٰ﴾ بالفوقانية والتحتانية ﴿إِلَيْهِ ثَمَرَاتُ كُلِّ شَيْءٍ﴾ من كل أوب ﴿رِزْقًا﴾ لهم ﴿مِنْ لَدُنَّا﴾ عندنا ﴿وَلَكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ﴾ أن ما نقوله حق ﴿وَكَمْ أَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ بَطِرَتْ مَعِيشَتَهَا﴾ عيشها وأريد بالقرية أهلها ﴿فَتِلْكَ مَسَاكِنُهُمْ لَمْ تُسْكَنْ مِنْ بَعْدِهِمْ إِلَّا قَلِيلًا﴾ للمارة يومًا أو بعضه ﴿وَكُنَّا نَحْنُ الْوَارِثِينَ﴾ منهم ﴿وَمَا كَانَ رَبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرَىٰ﴾ بظلم منها ﴿حَتَّىٰ يَبْعَثَ فِي أُمِّهَا﴾ أي أعظمها ﴿رَسُولًا يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِنَا وَمَا كُنَّا مُهْلِكِي الْقُرَىٰ إِلَّا وَأَهْلُهَا ظَالِمُونَ﴾ بتكذيب الرسل ﴿وَمَا أُوتِيتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَمَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَزِينَتُهَا﴾ تتمتعون وتتزينون به أيام حياتكم ثم يفنى ﴿وَمَا عِنْدَ اللَّهِ﴾ أي ثوابه ﴿خَيْرٌ وَأَبْقَىٰ أَفَلَا يَعْقِلُونَ﴾ بالتاء والياء أن الباقي خير من الفاني

**ترجمه:** او مونږه خلقو دپاره قول (يعنی قرآن)لره (ښکاره بيان کړې دې)ليږلي دې،ددې دپاره چه دوی نصيحت حاصل کړی (او ايمان راوړی)کوم خلقو ته چه مونږ ددې قرآن نه وړاندې کتاب ورکړې دې په دې هغوی قرآن باندې(هم) ايمان لری (دا آيت د يهودو د هغه کسانو په باره کښې نازل شوې دې چه کوم اسلام قبول کړې وو،لکه عبد الله بن سلام وغيره.او د هغه نصارې په حق کښې نازل شوې دې کوم چه د حبشې او شام نه راغلی وو)او کله چه قرآن په دوی باندې تلاوت کولې شی نو هغوی وائی چه ددې زمونږ د رب د خوانه په حق کيدو باندې زمونږ ايمان دې مونږ خو ددې نه وړاندې هم مسلمانان (يعنی مؤحدين) وو، دې خلقو ته به (په دواړو کتابونو باندې د ايمان لرلو په وجه او په دواړو باندې د عمل کولو په مشقت باندې) د صبر په وجه دوه ګنا ثواب ورکول کيږی، او دا خلق په نيکئ سره بدی دفع کوی،او مونږ چه دوی ته کوم څه ورکړی دی نو د هغې نه (د الله تعالی په لاره کښې) صدقه کوی،او کله چه د چانه لغوه خبره(او د اذيت خبره) واوړی نو د هغې نه ډډه کوی او وائی چه زمونږ عمل زمونږ دپاره دې او ستاسو عمل ستاسو دپاره دې، مونږ تاسو ته سلام کولو. (دا سلام د متارکت يعنی د ځان خلاصی سلام دې، نه دا چه د تحيه سلام، يعنی تاسو زمونږد کنځلو وغيره نه سلامت وسئ،)مونږه ناپوهه خلقو سره مصاحبت (انختل)نه غواړو.(راتلونکې آيت د حضور اکرم ﷺ د خپل ترهٔ ابو طالب په ايمان باندې د ډير حرص کولو په باره کښې نازل شوې دې)بې شکه ته چه چالره او غواړې هدايت ورته نه شې کولې بلکه الله چه چالره او غواړی هدايت ورته کوی او د هدايت موندونکو علم هم دد سره دې،او دوی (د حضور ﷺ قوم)او وئيل چه کهٔ مونږ ستا سره د

هدایت تابعداری اوکړونومونږ به د خپل ملک نه اوتختولې شو،(یعني سمدستي به مونږ د ملک نه بهر اوویستلې شو) آیامونږ دوی ته د امن والا حرم کښې ځائ نه دې ورکړې ؟(چه دری په هغې کښې د قتل اوغارت نه کوم چه په عربوکښې په عامه توګه باندې واقع کیږی،مامون او سیږی)چرته چه د هرقسم میوې د هرځائ نه راوړل کیږی کوم چه زمونږ خوانه (د هغوی دپاره)په طورد رزق دی،لیکن په دوی کښې زیات خلق نه پوهیږی،(چه کوم څه مونږ وایونو هغه حق دی)اومونږ ډیرداسې کلی هلاک کړی دی کوم چه په خپل سامان د عیش باندې نازکوونکی وو،(د قریه نه مراد اهل قریه دی)دادی د هغوی ځایونه،چه استوګنه پرې نه ده شوې ددوی نه پس لیکن لږه شان،(د مسافرودپاره یوه ورځ یاد ورځې څه حصه)اوآخرهم مونږ(د هغوی) وارثان شو،او ستارب هیڅ کلی لره (د کلی والؤد ظلم په وجه) ترهغه وخته پورې نه هلاکوی ترڅوپورې چه ئې ددې (کلو)په صدرمقام کښې یوپیغمبر نه وی رالیږې چه هغوی ته زمونږآیتونه واوروی،اومونږ کلوهلاکوونکی نه یومګرهغه وخت چه اوسیدونکی ئې(د پیغمبرانوتکذیب کولوسره) ظلم ته ملااوتړی،اوکوم څه چه تاسوته درکړی شوی دی هغه صرف د دنیوی ژوندسامان اود هغې زینت دې،(چه د کوم نه تاسوپه خپل ژوندکښې فائده اوچتوئ،اودهغې نه زینت حاصلوئ،بیاهغه فناکیږی.) او کوم څه چه د الله سره دی هغه ډیر بهتر او باقی پاتې کیدونکی دی،آیاتاسونه پوهیږئ؟ (دلته تعقلون اویعقلون دواړه قراءته دی،اویقینی د چه باقی د فانی نه ډیربهتروی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** وصّلنا: ماضی جمع متکلم باب تفعیل،مونږ پرله پسې اولیږل،مونږ صفاصفابیان کړل

**قوله:** الذین: موصول سره د خپلې صلې نه جمله مبتدأ،هم مبتدأ ثانی،یؤمنون ئې خبر دې، او"به" د یؤمنون سره متعلق دې،مبتدأ ثانی سره د خبرنه جمله د مبتدأ اول خبردې

**قوله:** ایضاً: ای کما اٰمنوا بکتابهم

**قوله:** بصبرهم: په دې سره ئې اشاره اوکړه چه دلته مامصدریه ده.

**قوله:** یدرءون: ینفقون،واذا سمعوا ددې تولوعطف په یؤتون باندې دې.

**قوله:** والاذٰی من الکفار: داد قبیلې د عطف د عام علی الخاص نه دې

**قوله:** لاتهدی من احببت: په دې کښې د ایصال الی المطلوب نفی ده،نه دا چه د ارائة الطریق نفی ده. لهٰذا په دې قول کښې اوپه دې قول د الله تعالی "وانک لتهدی الی صراط مستقیم" کښې هیڅ تعارض نشته. وقالوا ای قومه،د قوم نه مراددد حضور ﷺ قوم دې،اوقائل ئې حارث بن عثمان بن نوفل بن عبدمناف دې.

**قوله:** یجبٰی: ای یحمل ویساق الیه من کل اوب ای من کل جانب.

قوله: ثمرات كل شيء: داد كثرت نه كنايه ده،لكه په دې قول د الله تعالى "واوتيت من كل شئ" كښې چه ضرورت هرڅيزمراددې نه دا چه د دنياهرڅيز.

قوله: معيشتها: اى عيشهامعيشتهاد حذف د مضاف سره د ظرفيت په وجه منصوب دې، او مفسر علام د معيشت تفسيرپه عيش سره كړې دې اوس به تقديرداسې شى، بطرت في زمن حياتها.

قوله: لم تسكن: داجمله حال دې اوعامل پكښې تلك په معنى د اشير دې،اوتلك د مبتدأ ثانى خبرهم كيدې شى.

قوله: وما اوتيتم من شيئ فمتاع الحيوة الدنيا: ماشرطيه ده اومن شيئ ددې بيان دې،فمتاع الحيوة الدنيا د هو مبتدأ محذوف خبردې،اوپوره جمله جواب شرط دې.

[اياتونه: ۶۱-۷۵]

{أَفَمَنْ وَعَدْنَاهُ وَعْدًا حَسَنًا فَهُوَ لَاقِيهِ} وَهُوَ مُصِيبُهُ وَهُوَ الْجَنَّة {كَمَنْ مَتَّعْنَاهُ مَتَاعَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا} فَيَزُول عَنْ قَرِيب {ثُمَّ هُوَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنَ الْمُحْضَرِينَ} النَّار الْأَوَّل الْمُؤْمِن وَالثَّانِي الْكَافِر أَيْ لَا تَسَاوِي بَيْنهمَا {وَ} اُذْكُرْ {يَوْمَ يُنَادِيهِمْ} اللّٰه {فَيَقُولُ أَيْنَ شُرَكَائِيَ الَّذِينَ كُنْتُمْ تَزْعُمُونَ} هُمْ شُرَكَائِي {قَالَ الَّذِينَ حَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ} بِدُخُولِ النَّار وَهُمْ رُؤَسَاء الضَّلَالَة {رَبَّنَا هَؤُلَاءِ الَّذِينَ أَغْوَيْنَا} هُمْ مُبْتَدَأ وَصِفَة {أَغْوَيْنَاهُمْ} خَبَره فَغَوَوْا {كَمَا غَوَيْنَا} لَمْ نُكْرِههُمْ عَلَى الْغَيّ {تَبَرَّأْنَا إِلَيْكَ} مِنْهُمْ {مَا كَانُوا إِيَّانَا يَعْبُدُونَ} مَا نَافِيَة وَقُدِّمَ الْمَفْعُول لِلْفَاصِلَةِ {وَقِيلَ ادْعُوا شُرَكَاءَكُمْ} أَيْ الْأَصْنَام الَّذِينَ تَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ شُرَكَاء اللّٰه {فَدَعَوْهُمْ فَلَمْ يَسْتَجِيبُوا لَهُمْ} دُعَاءَهُمْ {وَرَأَوْا} هُمْ {الْعَذَابَ} أَبْصَرُوهُ {لَوْ أَنَّهُمْ كَانُوا يَهْتَدُونَ} فِي الدُّنْيَا لَمَا رَأَوْهُ فِي الْآخِرَة {وَ} اُذْكُرْ {يَوْمَ يُنَادِيهِمْ فَيَقُولُ مَاذَا أَجَبْتُمُ الْمُرْسَلِينَ} إِلَيْكُمْ {فَعَمِيَتْ عَلَيْهِمُ الْأَنْبَاءُ} الْأَخْبَار الْمُنْجِيَة فِي الْجَوَاب {يَوْمَئِذٍ} لَمْ يَجِدُوا خَبَرًا لَهُمْ فِيهِ نَجَاة {فَهُمْ لَا يَتَسَاءَلُونَ} عَنْهُ فَيَسْكُتُونَ {فَأَمَّا مَنْ تَابَ} مِنَ الشِّرْك {وَآمَنَ} صَدَّقَ بِتَوْحِيدِ اللّٰه {وَعَمِلَ صَالِحًا} أَدَّى الْفَرَائِض {فَعَسَى أَنْ يَكُونَ مِنَ الْمُفْلِحِينَ} النَّاجِينَ بِوَعْدِ اللّٰه {وَرَبُّكَ يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ وَيَخْتَارُ} مَا يَشَاء {مَا كَانَ لَهُمُ} لِلْمُشْرِكِينَ {الْخِيَرَةُ} الِاخْتِيَار فِي شَيْء {سُبْحَانَ اللّٰهِ وَتَعَالَى عَمَّا يُشْرِكُونَ} عَنْ إِشْرَاكهمْ {وَرَبُّكَ يَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُورُهُمْ} تُسِرّ قُلُوبهمْ مِنَ الْكُفْر وَغَيْره {وَمَا يُعْلِنُونَ} بِأَلْسِنَتِهِمْ مِنْ ذَلِكَ {وَهُوَ اللّٰهُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ لَهُ الْحَمْدُ فِي الْأُولَى} الدُّنْيَا {وَالْآخِرَةِ} الْجَنَّة {وَلَهُ الْحُكْمُ} الْقَضَاء النَّافِذ فِي كُلّ شَيْء {وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ} بِالنُّشُورِ {قُلْ} لِأَهْلِ مَكَّة {أَرَأَيْتُمْ} أَيْ أَخْبِرُونِي {إِنْ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ اللَّيْلَ سَرْمَدًا} دَائِمًا {إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ مَنْ إِلَهٌ غَيْرُ اللّٰهِ} بِزَعْمِكُمْ {يَأْتِيكُمْ بِضِيَاءٍ} نَهَار تَطْلُبُونَ فِيهِ الْمَعِيشَة {أَفَلَا تَسْمَعُونَ} ذَلِكَ سَمَاع تَفَهُّم فَتَرْجِعُونَ عَنِ الْإِشْرَاك {قُلْ} لَهُمْ {أَرَأَيْتُمْ إِنْ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ النَّهَارَ سَرْمَدًا إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ مَنْ إِلَهٌ غَيْرُ اللّٰهِ} بِزَعْمِكُمْ {يَأْتِيكُمْ بِلَيْلٍ تَسْكُنُونَ} تَسْتَرِيحُونَ {فِيهِ} مِنَ التَّعَب {أَفَلَا تُبْصِرُونَ} مَا أَنْتُمْ عَلَيْهِ مِنَ الْخَطَأ فِي الْإِشْرَاك فَتَرْجِعُونَ عَنْهُ {وَمِنْ رَحْمَتِهِ} تَعَالَى {جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ

لتسكنوافيه، فِي الَّيْلِ «وَلِتَبْتَغُوامِنْ فَضْلِه» فِي النَّهَار لِلْكَسْبِ «وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ» النِّعْمَة فِيهِمَا «وَ» اذْكُرْ «يَوْمَ يُنَادِيهِمْ فَيَقُولُ أَيْنَ شُرَكَائِيَ الَّذِينَ كُنْتُمْ تَزْعُمُونَ» ذُكِرَ ثَانِيًا لِيُبْنَى عَلَيْهِ «وَنَزَعْنَا» آخرجنا «مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا» وَهُوَ نَبِيُّهُمْ يَشْهَد عَلَيْهِمْ بِمَا قَالُوا «فَقُلْنَا» لَهُمْ «هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ» عَلَى مَا قُلْتُمْ مِنَ الإِشْرَاك «فعلموا أن الحق» في الإلهية «لِلّٰهِ» لَا يُشَارِكُهُ فِيهِ أَحَد «وَضَلَّ» غَابَ «عَنْهُمْ مَا كَانُوا يَفْتَرُونَ» فِي الدُّنْيَا مِنْ أَنَّ مَعَهُ شَرِيكًا تَعَالَى عَنْ ذَلِكَ

ترجمه آیاهغه څوک چه چاسره مونږ یوه ښائسته وعده کړې ده چه هغې لره خامخاموندونکې دې (یعنی دې وعدې (موعودبه) ته رسیدونکې دې، چه هغه جنت دې) آیاداد هغه چاپه شیردې چه چاته مونږد دنیوی ژوندیوڅوورځې فائده ورکړې ده، (کوم چه به نزدې زائل شي) بیابه هغه د قیامت په ورځ په هغه خلقوکښې وی کوم به چه ګرفتارولو سره (دوزخ) ته حاضرکولې شي، (اول کس به مؤمن وی اودویم کافریعنی په دواړوکښې به هیڅ مساوات نه وی) او (هغه ورځ یاده کړه چه) کومه ورځ به الله تعالی دې کافرانوته اووائی چه چرته دی زماهغه شریکان کوم چه تاسوګنړل، (چه دوی زماسره شریکان دی) په چاباندې چه د الله (دوزخ ته د ننوتو) حکم ثابت شوې وی هغوی به اووائی (اوهغوی به د ګمراهئ سرداران وی) اې زمونږپروردګاره! داهغه خلق دی چه مونږ بې لارې کړی وو، (دامبتدأ اود هغې صفت دې اواغوینا هم ئې خبردې) مونږدوی لره داسې بې لارې کړی دی لکه څنګه چه مونږبې لارې وو، (نودوی ګمراه اوبې لارې شول او مونږ دوی لره په ګمراهئ باندې نه وومجبور کړی) مونږستاپه درکښې (د دوی نه) د خپل طرف نه د براءت اظهارکوو، دوی زمونږبندګی نه کوله، (مانافیه ده اومفعول د فواصلود رعایت دپاره مقدم کړې شوې دې) اواوبه وئیلې شي چه خپل شرکاء راوغواړئ (یعنی هغه بتان چه تاسو دا ګنړل چه هغوی زماسره شریکان دی) نودوی به هغوی لره راوغواړی نوهغوی به دوی ته (د څغوو هلو) جواب قدرې هم ورنه کړی اوداخلق به عذاب (په خپلو سترګو) اووینی، ارمان چه داخلق (په دنیاکښې) په نیغه لاره باندې وې، (نو داعذاب به ئې په آخرت کښې نه لیدلې) او (هغه ورځ یاده کړه په) کومه ورځ به چه الله دوی ته آوازاوکړی اوپوښتنه به اوکړی چه تاسوخپلوپیغمبرانوته څه جواب ورکړې وو ؟بیابه په دې ورځ باندې د دوی (په جواب کښې د پیش کولو سره د خلاصی ورکونکی) ټول دلیلونه ورک شي، (یعنی هک بک به پاتې شي، یعنی ددوی په پوهه کښې به هیڅ یوداسې دلیل نه راځی چه ددوی دپاره د خلاصون سبب وی) اودوی به په خپل مینځ کښې هم (د دلیل په باره کښې) پوښتنه نه شي کولې، (چه ددې په وجه به دوی لاجوابه شي) لیکن کوم کس چه (د شرک نه) توبه اوباسی اوایمان راوړی (یعنی د الله تعالی د توحید تصدیق اوکړی) اونیک عملونه اوکړی (یعنی فرائض اداکړی) نویقینی د چه داسې خلق به (د الله تعالی د وعدې مطابق) کامیابېږی.

اوستارب چه څه اوغواړی نوپیدا کوی ئې، اوچالره چه اوغواړی نوخوښ ئې کړی، او دوی کښې هیڅ مشرک لره په هیڅ یو څیز باندې هیڅ اختیار نشته، الله لره پاک والې دې، او هغه لوئ دې ددوی د شرک نه، اوستارب ددوی په ټولو (د کفروغیره) خبروباندې خبردې کومې چه ددوی سینې پټوی، اوکوم (دروغ) چه (د دوی ژبې) ښکاره کوی، (هم دامعبود دې) دد نه علاوه څوک د بندګئ لائق نشته، په دنیااوآخرت کښې (په جنت کښې) هم دد تعریف دې، اوهم دد دپاره فرمان روائی ده (یعنی په هرڅیز کښې دده فیصله نافذه ده) او (بیاژوندی کیدونه پس) هم د ده طرف ته به واپس کولې شئ، ته (اهل مکه ؤته) اووایه چه راته اوښایئ چه کهٔ الله تعالی په تاسوباندې د همیشه دپاره ترقیامته پورې شپه اوساتی نود الله نه سیوا (ستاسوپه خیال کښې) هغه کوم یو معبود دې چه ستاسودپاره (د ورځې) رڼرا اولی (چه تاسوپکښې روزی طلب کړئ) آیا تاسو دا خبره د پوهیدودپاره نه اورئ؟ (چه تاسود شرک نه توبه ګارشئ) ته پوښتنه اوکړه چه داهم راته اوښایئ چه کهٔ الله تعالی په تاسو باندې ترقیامته پورې د همیشه دپاره ورځ اوساتی نو (ستاسود خیال مطابق) دده نه سیوا کوم معبود دې چه تاسوته شپه راولی؟ چه تاسوپکښې (ده ستونزې په وجه) آرام اوکړئ، آیا تاسو (د شرک په معامله کښې خپلې غلطئ ته) نه ګورئ (غورنه کوئ، چه تاسود شرک نه منع شئ) الله تعالی په خپل رحمت سره ستاسودپاره شپه اوورځ جوړ کړی دی، ددې دپاره چه په شپه کښې آرام اوکړئ او (په ورځ کښې د کسب په ذریعه) د هغه روزی تلاش کړئ اوددې دپاره چه تاسو (د شپې اود ورځې د نعمت) شکراداکړئ، (اویاده کړه) په کومه ورځ چه به الله تعالی دوی ته آوازاوکړی اوبه وائی چه کوم تاسوزماسره شریک ګڼړل هغه چرته دی؟ (د دوی شرک ئې دویم ځل ذکرکړودې دپاره چه د راتلونکی قول په دې باندې بنااوکړی) اوموږ به د هرامت نه یو یو ګواه راولو، (اوهغه به د هغوی پیغمبروی کوم څه چه هغوی د ته وئیلی وی نود هغې شهادت به ورکړی) نوموږ به دې (مشرکانوته اووایوچه تاسو (په خپله دعوی د شرک باندې) دلیل وړاندې کړئ، دوی ته به معلومه شی چه (د الوهیت په باره کښې) ریښتونې خبره د الله وه (چه په الوهیت کښې دد سره شریک څوک نشته) اوکوم څه چه دوی په دنیاکښې د ځانه جوړول (چه د الله تعالی سره شریک شته، حال داچه الله ددې نه بری دې) هغه ټول به ددوی د خوانه ورک شی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: وقال الذین حق علیهم القول : داجمله مستانفه ده، کومه چه د سوال مقدرپه جواب کښې واقع ده، کله چه مشرکانوته اووئیلې شی چه زماهغه شریکان چرته دی کوموته چه تاسوعبادت کولو؟ نوددې سوال د جواب ورکولوپه ځائ به ده مشرکانومشران اوتابعداران په خپلو کښې جګړه شروع کړی، تابعین به متبوعینو لره مورد د الزام ګرځوی اومتبوعین به تابعین لره مورد د الزام ګرځوی.

**قوله**: مبتدأ وصفته: هؤلاء اسم اشاره موصوف الذين اسم موصول، اغوينا جمله صله، عائد محذوف دې چه هم ضميردې، تقديرد عبارت داسې دې، اغويناهم، موصول سره د صلې نه صفت، صفت سره د خپل موصوف نه مبتدأ، او اغوينا، د كما غوينا (مبتدأ) خبردې.

**قوله**: قدم المفعول للفاصل: په اصل كښې ماكانوايعبدوننااو، د فواصلود رعايت دپاره مفعول مقدم كړې شو، ماكانوا ايانايعبدون شو.

**قوله**: مارأوه في الأخرة: داد لو جواب دې اوځنوحضراتو "لأنجاهم ذالك" محذوف منلې دې، يعنى كه دوى په دنياكښې په هدايت باندې وئ نودوى لره به په آخرت كښې د دوى په هدايت كيدلو كاميابى كړى وې.

**قوله**: فعميت عليهم الانبآء: په دې كښې قلب دې، كوم چه په محسنات د كلام كښې شماريږى، اصل دا ې چه فعمواعن الانبآء، د شارح قول لم يجدواخيرالهم فيه سره هم دې قلب ته اشاره د..

**قوله**: فعميت عليهم: په دې كښي د عمى صله على په دې وجه راغلې ده چه عمى معنى د خفى لره متضمن دې.

**قوله**: عسٰى ان يكون: عسٰى دلته د تحقيق دپاره ده، ځكه چه د كريم په حضوركښې توقع هم د يقين درجه لرى، اوالله تعالى خواكرم الاكرمين دې، لهٰذا د الله تعالى په كلام كښې به عسٰى په معنى ده حقق وى. اوكهٔ په خپله معنى ده ترجى سره واخستلې شى نودابه د تائب په اعتبارسره وى.

**[اياتونه: ۷۶-۸۲]**

(إن قارون كان من قوم موسى) ابن عمه وابن خالته وآمن به (فَبَغَى عَلَيْهِمْ) بالكبر والعلو وكثرة المال (وَآتَيْنَاهُ مِنَ الْكُنُوزِ مَا إِنَّ مَفَاتِحَهُ لَتَنُوءُ) تثقل (بِالْعُصْبَةِ) الجماعة (أُولِي) أصحاب (الْقُوَّةِ) أي تثقلهم فالباء للتعدية وعدتهم قيل سبعون وقيل أربعون وقيل عشرة وقيل غير ذلك اذكر (إِذْ قَالَ لَهُ قَوْمُهُ) المؤمنون من بني إسرائيل (لَا تَفْرَحْ) بكثرة المال فرح بطر (إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْفَرِحِينَ) بذلك (وَابْتَغِ) اطلب (فِيمَا آتَاكَ اللَّهُ) من المال (الدَّارَ الْآخِرَةَ) بان تنفقه في طاعة الله (وَلَا تَنسَ) تترك (نَصِيبَكَ مِنَ الدُّنْيَا) اي أن تعمل فيها للآخرة (وَأَحْسِن) للناس بالصدقة (كَمَا أَحْسَنَ اللَّهُ إِلَيْكَ وَلَا تَبْغِ) تطلب (الْفَسَادَ فِي الْأَرْضِ) بعمل المعاصي (إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِينَ) بمعنى أنه يعاقبهم (قَالَ إِنَّمَا أُوتِيتُهُ) أي المال (عَلَى عِلْمٍ عِندِي) أي في مقابلته وكان أعلم بني إسرائيل بالتوراة بعد موسى وهارون قال تعالى (أَوَلَمْ يَعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ قَدْ أَهْلَكَ مِن قَبْلِهِ مِنَ الْقُرُونِ) الأمم (مَنْ هُوَ أَشَدُّ مِنْهُ قُوَّةً وَأَكْثَرُ جَمْعًا) للمال أي هو عالم بذلك ويهلكهم الله (وَلَا يُسْأَلُ عَن ذُنُوبِهِمُ الْمُجْرِمُونَ) لعلمه تعالى بها فيدخلون النار بلا حساب (فَخَرَجَ)

قارون ﴿عَلَى قَوْمِهِ فِي زِينَتِهِ﴾ بأتباعه الكثيرين ركبانا متحلين بملابس الذهب والحرير على خيول وبغال متحلية ﴿قَالَ الَّذِينَ يُرِيدُونَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا يَا﴾ للتنبيه ﴿لَيْتَ لَنَا مِثْلَ مَا أُوتِيَ قَارُونُ﴾ في الدنيا ﴿إِنَّهُ لَذُو حَظٍّ﴾ نصيب ﴿عَظِيمٍ﴾ وافٍ فيها ﴿وَقَالَ﴾ لهم ﴿الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ﴾ بما وعد الله في الآخرة ﴿وَيْلَكُمْ﴾ كلمة زجر ﴿ثَوَابُ اللَّهِ﴾ في الآخرة بالجنة ﴿خَيْرٌ لِمَنْ آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا﴾ مما أوتي قارون في الدنيا ﴿وَلَا يُلَقَّاهَا﴾ أي الجنة المثاب بها ﴿إِلَّا الصَّابِرُونَ﴾ على الطاعة وعن المعصية ﴿فَخَسَفْنَا بِهِ﴾ بقارون ﴿وَبِدَارِهِ الْأَرْضَ فَمَا كَانَ لَهُ مِنْ فِئَةٍ يَنْصُرُونَهُ مِنْ دُونِ اللَّهِ﴾ أي غيره بأن يمنعوا عنه الهلاك ﴿وَمَا كَانَ مِنَ الْمُنْتَصِرِينَ﴾ منه ﴿وَأَصْبَحَ الَّذِينَ تَمَنَّوْا مَكَانَهُ بِالْأَمْسِ﴾ أي من قريب ﴿يَقُولُونَ وَيْكَأَنَّ اللَّهَ يَبْسُطُ﴾ يوسع ﴿الرِّزْقَ لِمَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ وَيَقْدِرُ﴾ يضيق على ما يشاء ووي اسم فعل بمعنى أعجب أي أنا والكاف بمعنى اللام ﴿لَوْلَا أَنْ مَنَّ اللَّهُ عَلَيْنَا لَخَسَفَ بِنَا﴾ بالبناء للفاعل والمفعول ﴿وَيْكَأَنَّهُ لَا يُفْلِحُ الْكَافِرُونَ﴾ لنعمة الله كقارون

ترجمه: بې شکه قارون د موسٰی (علیه السلام) د قوم نه وو (یعنی د تره خوئ اود ترور (ماسی) خوئ ئې وو او په موسٰی علیه السلام باندې ئې ایمان راوړې وو، د تکبراولوئې اود مال د ډیروالی په ذریعه ئې د خلقو په مقابله کښې تکبر شروع کړو او مونږ ته دومره قدرې خزانې ورکړې وې چه د هغې کنجیانې په ډیرو طاقتورو خلقو باندې درنې وې (یعنی په هغوی باندې به ئې زور راوستو، باء د تعدیه دپاره ده، اوددې کنجیانوده اوچتوونکو خلقو شمیره کښې چارئیلی دی چه اویاکسان وو، چاخلویښت ښودلی دی اوچالس ښودلی دی ددې نه علاوه نورهم ډیراقوال دی، هغه وخت یادکړه) کله چه دده قوم (د بنی اسرائیلو مؤمنانو خلقو) ده ته اووئیل چه (د مال په ډیروالی باندې) فخرمه کوه بې شکه الله تعالی (په مال باندې) فخرکوونکی نه خوښوی او کوم مال چه الله تاله درکړې دې په هغې کښې د آخرت د کور طلب هم کوه، (په دې طریقه چه دا هغې نه د الله تعالی په لاره کښې خرچ کوه) اود دنیانه خپله حصه هم مه هیروه (په دې طریقه چه په دنیاکښې د آخرت دپاره عمل کوه) او (د خلقو د صدقې په ذریعه) ښه سلوک کوه لکه څنګه چه الله تعالی تاسره احسان کړې دې او (د معصیت د عمل په ذریعه) په ملک کښې د فساد لټونکو نه مه جوړیږه، بې شکه الله فساد خورونکی نه خوښوی، (په دې معنی چه هغوی ته به سزا ورکوی) قارون جواب ورکړو چه دا هرڅه ماته زماد ذاتی هنرمندئ په وجه ملاؤ دی، (یعنی زماد هوښیاروالی په وجه، اوهغه د موسٰی اود هارون علیهما السلام نه پس د تولو زیات د تورات عالم وو، الله تعالی فرمائی چه) آیاده ته ددې خبرې علم نشته چه الله تعالی دده نه وړاندې هم ډیراسې امتونه هلاک کړی دی چه هغوی په قوت کښې دده نه هم زیات وؤ او (د مالونو) د جمع کولوپه اعتبارسره هم ډیروؤ، (یعنی ده ته ددې خبرې علم دې اوالله تعالی به دوی لره هلاک کړی، اوالله تعالی ته ددوی ده ګناهونود علم لرلوپه وجه به ددوی نه د ګناهونوپه باره کښې پوښتنه نه

کيږي(اوبغيرد حساب کتاب نه به ئې دوزخ ته ننه باسي)نو (قارون)په پوره بناښت (اوشان)سره د خپل قوم په وړاندې (يوه ورځ ده خپلوتابعدارانوسره کوموچه د سرو او ريښمو جامې اغوستې وې اوپه کالو او سرو زرو سره بارکړي کچرواواسونوباندې سوارهٔ وو) راووتو نوده دنياده ژوند طلبګاروااووئيل (يا د تنبيه دپاره ده)کاش چه مونږته هم په ځه طريقه هغه ځه ملاوٌشوي وئ کوم چه قارون ته (په دنياکښې)ورکړي شوي دي داخوده ډيرې برخې والا دې(يعني د دنيانه د ډيرې حصې موندونکې دې،د فيهاپه ځائ منهاډيرمناسب دې)اوهغوی خلقو چاته چه (د هغه څيزونو)علم ورکړې شوې وو(چه د کوموالله تعالی په آخرت کښې وعده کړې ده دې خلقوته ئې د نصيحت په طور)اووئيل په تاسوافسوس دې (ويل کلمه د توبيخ ده) د الله ثواب (په آخرت کښې چه جنت دې،په زرونودرجې)بهتردې (د هغه څه نه چه په دنياکښې قارون ته ورکړي شوي دي)کوم چه به هغه کس ته ورکولې کيږي چه ايمان ئې راوړې وي اونيک عملونه ئې کړي وي،اوداجنت(کوم چه په طورد ثواب ورکول کيږي) هغه چا ته به ملاويږي چه (په طاعت اومعصيت باندې)صبرکوؤنکي وي نومونږ قارون سره دده د محل په زمکه ښخ کړو او ده الله نه سيوا بل هيڅ يوجماعت نه ووچه دد مددئې کړې وې (يعني چه ده هلاکت نه ئې خلاص کړې وې) اونه هغه په خپله د عذاب نه د ځان په بچ کوؤنکوکښې شو،اوکوموخلقوچه پرون (په زمانه قريب کښې)دده پهٔ شان د کيدوارمان کولوهغوی اووئيل چه داسې معلوميږي چه الله چاته اوغواړي په خپلوبندګانوکښې نوپه روزئ کښې فراخي ورکوي او(چاته چه اوغواړي نو)تنګي ورکوي (وی اسم فعل په معنی د اعجب انا دې،اوکاف په معنی ده لام دې)اوکهٔ په مونږ باندې د الله مهرباني نه وې نومونږبه ئې هم په زمکه ښخ کړي وې، (لخسف معروف او مجهول دواړه دي)معلومه شوه چه (د قارون په شان د الله تعالی د نعمتونو)ناشکري کوؤنکي کاميابي نه مومي.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله: ان قارون:** قارون عجمي عبراني لفظ دې،د عجمه اوعلميت په وجه غيرمنصرف دې،د قارون په باره کښې دومره خبره يقيني ده چه د موسی عليه السلام د ورورولئ (خاندان) کس وو. پاتې شوه داخبره چه د موسی عليه السلام سره ئې څه رشته وه،په دې کښې مختلف اقوال دي، ①اول داچه د ترهٔ خوئ ئې وو، ②دويم داچه د ترور (ماسي) خوئ ئې وو ،دادواړه خپلولئ جمع کيدې هم شي په داسې طريقې سره چه د حضرت موسی عليه السلام ترور (ماسي) د موسی عليه السلام په ترهٔ باندې واده وي، ددې نه علاوه نورهم اقوال موجوددي. نسب ئې داسې دې،قارون بن يصهربن قاهث، او موسی بن عمران بن قاهث، تنوء واحد مؤنث غائب ده ناء ينوء نوءً نه، باب نصر ،په معنی ده تيتيد و اودرنيدو سره.

**قوله: ان مفاتحه لتنوء بالعصبة:** لتنوء بالعصبة کښې دوه صورته دي،

① یو داچه باء د تعدیه دپاره شی په دې صورت کښې به معنی داشی چه "لتنوء المفاتح العصبة الاقویاء" یعنی کنجیانې دومره قدرې زیاتې وې چه د طاقتوروخلقویوه غټه ډله به ئې هم درنوله،په دې صورت کښې قلب نشته، ②دویم صورت دادې چه لتنوء بالعصبة کښې قلب اومنلې شی اومعنی داشی، لتنوء المفاتح العصبة هغوی کنجیانو به یوقوی ډله دروندبارجوړوله، ځکه چه که قلب اونه منلې شی نوترجمه به داسې شی،د طاقتوروکسانوډلې به کنجیانې درنولې،ظاهره ده چه داخبره خلاف عقل ده

قوله: ولایسئل عن ذنوبهم المجرمون:

سوال:په یوآیت کښې دی چه " فَوَرَبِّكَ لَنَسْئَلَنَّهُمْ اَجْمَعِيْنَ ۙ عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ○ د رومبنی آیت نه دامعلومیږی چه د مجرمانونه به د هغوی د جرمونوپه باره کښې پوښتنه نه کیږی اوبغیرد حساب کتاب به دوزخ ته داخلیږی،اوددې دویم آیت نه دامعلومیږی چه د ټولو مجرمانو نه به د ګناهونوپه باره کښې تپوس کیږی،په دې دواړوکښې د تطبیق څه صورت دې ؟

جواب: د سوال اوپوښتنې کولودوه قسمونه دی :

رومبنې قسم: استعتاب "چه د سوال کولونه پس به دوی معاف کیږی،لکه څنګه به چه د خنو نافرمانو مؤمنانوسره دامعامله کیږی.

دویم قسم: تقریع"چه د هغې نه پس به دوزخ ته داخلولې شی دلته د رومبنی قسم د سوال نفی مراده ،لهذاهیڅ تعارض نشته.

قوله: فخرج: ددې عطف په قال انما اوتیته باندې دې،په مینځ کښې جمله معترضه ده.

قوله: من فئة ینصرونه : فئة د کان اسم هم کیدې شی کهٔ کان ناقصه شی،او"له "به ئې خبرشی.اوکهٔ کان تامه شی نوفئة به ئې فاعل شی،اوینصرونه د فئة صفت،فئةَ لفظاً مجرور دې او معنی مرفوع دې،ځکه چه من زائد دې

قوله: من دون الله: داد فئة نه حال دې .

قوله: بالامس : ددې نه خپله حقیقی معنی نه ده مرادچه تیره شوې ورځ ده.بلکه نزدې زمانه ترې نه مراده ده،د نزدې وخت نه مجازا په امس سره تعبیرکیږی

قوله: ویکانّ : داکلمه د زجراوتعجب ده،ده وَی کَ نه مرکب دې،کاف ضمیرخطاب دې، اوانّ حرف مشبه بالفعل دې،خنوحضراتو وئیلی دی چه "وا"اسم دې چه په تعجب باندې دلالت کوی ددې "وا"نه پس کله کله ها راځی اومعنی ئې هم د تعجب وی. اوکله وا لره وَی وئیل کیږی، اوددې نه پس کَاَنّ لګولې شی. ویکانّ من یکن له نشب یحبب ومن یفتقر یعش عیش ضر" تعجب دې چاسره چه ډیرزروی ده هغه سره مینه کیږی،اوخوک چه محتاج وی نود تکلیف ژوند تیروی. (لغات القرآن)

[ايا تونه: ۸۳-۸۸]

﴿تِلْكَ الدَّارُ الْآخِرَةُ﴾ أَيِ الْجَنَّةُ ﴿نَجْعَلُهَا لِلَّذِينَ لَا يُرِيدُونَ عُلُوًّا فِي الْأَرْضِ﴾ بِالْبَغْيِ ﴿وَلَا فَسَادًا﴾ بِعَمَلِ الْمَعَاصِي ﴿وَالْعَاقِبَةُ﴾ الْمَحْمُودَةُ ﴿لِلْمُتَّقِينَ﴾ عِقَابَ اللّٰهِ بِعَمَلِ الطَّاعَاتِ ﴿مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ خَيْرٌ مِنْهَا﴾ ثَوَابٌ بِسَبَبِهَا وَهُوَ عَشْرُ أَمْثَالِهَا ﴿وَمَنْ جَاءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزَى الَّذِينَ عَمِلُوا السَّيِّئَاتِ إِلَّا﴾ جَزَاءَ ﴿مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ أَيْ مِثْلَهُ ﴿إِنَّ الَّذِي فَرَضَ عَلَيْكَ الْقُرْآنَ﴾ أَنْزَلَهُ ﴿لَرَادُّكَ إِلَى مَعَادٍ﴾ إِلَى مَكَّةَ وَكَانَ قَدِ اشْتَاقَهَا ﴿قُلْ رَبِّي أَعْلَمُ مَنْ جَاءَ بِالْهُدَى وَمَنْ هُوَ فِي ضَلَالٍ مُبِينٍ﴾ نَزَلَ جَوَابًا لِقَوْلِ كُفَّارِ مَكَّةَ لَهُ إِنَّكَ فِي ضَلَالٍ أَيْ فَهُوَ الْجَائِي بِالْهُدَى وَهُمْ فِي ضَلَالٍ وَأَعْلَمُ بِمَعْنَى عَالِمٍ ﴿وَمَا كُنْتَ تَرْجُو أَنْ يُلْقَى إِلَيْكَ الْكِتَابُ﴾ الْقُرْآنُ ﴿إِلَّا﴾ لَكِنْ أُلْقِيَ إِلَيْكَ ﴿رَحْمَةً مِنْ رَبِّكَ فَلَا تَكُونَنَّ ظَهِيرًا﴾ مُعِينًا ﴿لِلْكَافِرِينَ﴾ عَلَى دِينِهِمُ الَّذِي دَعَوْكَ إِلَيْهِ ﴿وَلَا يَصُدُّنَّكَ﴾ أَصْلُهُ يَصُدُّونَنَّكَ حُذِفَتْ نُونُ الرَّفْعِ لِلْجَازِمِ وَالْوَاوُ لِلْفَاعِلِ لِالْتِقَائِهَا مَعَ النُّونِ السَّاكِنَةِ ﴿عَنْ آيَاتِ اللّٰهِ بَعْدَ إِذْ أُنْزِلَتْ إِلَيْكَ﴾ أَيْ لَا تَرْجِعْ إِلَيْهِمْ فِي ذٰلِكَ ﴿وَادْعُ﴾ النَّاسَ ﴿إِلَى رَبِّكَ﴾ بِتَوْحِيدِهِ وَعِبَادَتِهِ ﴿وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِينَ﴾ بِإِعَانَتِهِمْ وَلَمْ يُؤَثِّرِ الْجَازِمُ فِي الْفِعْلِ لِبِنَائِهِ ﴿وَلَا تَدْعُ﴾ تَعْبُدْ ﴿مَعَ اللّٰهِ إِلٰهًا آخَرَ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُ﴾ إِلَّا إِيَّاهُ ﴿لَهُ الْحُكْمُ﴾ الْقَضَاءُ النَّافِذُ ﴿وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ﴾ بِالنُّشُورِ مِنْ قُبُورِكُمْ

ترجمه: دغه دارِ آخرت (يعنى جنت) مونږ هغوى خلقو دپاره خاص کوو کوم چه په دنياکښې نه (د ظلم په ذريعه) غټ جوړيدل غواړى اونه (د نافرمانئ په ذريعه) فساد کوى، اوبهترانجام (د الله په حکم منلوسره، د الله د عذاب نه) د يريدونکو دپاره دې. کوم کس چه نيکى ځان سره راوړى هغه ته به د هغې نه بهتره ملاوېږى (د ده د نيکئ په وجه به اجر ملاوېږى او هغه به د دې نيکئ نه لس چنده زيات وى) اوکوم کس چه بدى ځان سره راوړى نو داسې خلقوته چه بديانې کوى هغوى ته به هم دومره بدله ملاوېږى څومره چه هغوى عمل کړې دې، کوم الله چه په تاباندې قرآن نازل کړې دې هغه دويم ځل بياتالره رومبنى ځائ ته واپس کوونکې دې، (يعنى مکې مکرمې ته، اوحضور ﷺ د مکې دپاره اشتياق ښکاره کړې وو) ته اووايه چه زمارب ښه پوهېږى چه څوک د هدايت سره راغلې دې، اوڅوک په ښکاره ګمراهئ کښې دې (دا آيت مبارکه د مکې د کفارود هغه قول په باره کښې نازل شوې دې کوم کښې دوى حضور ﷺ ته وئيلى وو چه ته په ښکاره ګمراهئ کښې ئې، يعنى نبى عليه السلام د هدايت سره راغلې دې اودوى په ښکاره ګمراهئ کښې پراته دى دلته اعلم په معنى د عالم دې) ستاخودا توقع نه وه چه په تاباندې به داکتاب (قرآن کريم) نازل کړې شى، ليکن په تاباندې خالص ستاد رب په مهربانئ سره (نازل کړې شو) لهٰذا ته د کافرانو (د هغوى د دين په باره کښې چه د کوم په طرف هغوى تاله دعوت اوبلنه درکوى) هيڅ کله مددګارمه جوړېږه او (خيال ساته چه) دا کافران تالره د الله تعالى د آيتونو د تبليغ نه منع نه کړى پس د هغې نه چه دا آيتونه تا ته نازل شوى دى (ولا يصدنك په اصل کښې يصدوننک وو، نونِ رفع د جازم په وجه حذف شو، او واوِ فاعل د نون ساکنه

سره د التقاء ساكنين په وجه حذف شو، يعنى ته په دې معامله كښې د هغوى د خرافاتو طرف ته التفات مه كوه.) اوته خلقوته د خپل رب (د توحيد او عبادت) په طرف دعوت وركوه او هيڅ كله (ددوى په اعانت كولو سره) د مشركانو نه مه كيږه. (جازم يعنى لا فعل لره د مبنى كيدو په وجه جزم نه دې وركړې) او د الله سره د بل چابندګى مه كوه، سواد الله نه بل معبود نشته د هغه د ذات نه علاوه هر يو څيز فنا كيدونكې دې، هم ددغه ذات فيصله نافذ كيدونكې ده او (د قبرونو نه د راژوندى كولو نه پس به) تاسو هم دد خواته وركرځول كيږئ.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله: تلك الدار الأخرة:** تلك مبتدأ موصوف الدار الأخرة په تركيب توصيفى سره د دې صفت، نجعلها جمله ئې خبر دې.

**قوله: لرادك الى معاد:** د معاد نه اكثرو مفسرينو مكه مكرمه اخستې ده، او څنو ترې نه مقام محمود مراد اخستې دې.

**قوله: ولا يصدنك:** لا ناهيه جازمه ده، او يصدنك فعل مضارع مجزوم دې او علامت د جزم حذف د نون دې، او واؤ فاعل دې، كاف مفعول به دې او نون تاكيد دې.

**قوله: عن أيات الله:** دلته مضاف محذوف دې يعنى عن تبليغ أيات الله.

**قوله: لم يؤثر الجازم:** په ولا تكونن كښې لاء جازمه په لفظ كښې هيڅ اثر نه دې كړې، اګرچه محلائې اثر كړې دې، د اثر نه كولو وجه دا ده چه تكونن د نون تاكيد ثقيله په وجه مبنى شوې دې.

**قوله: تعبد:** د تدع تفسير ئې په تعبد سره كړې دې په دې سره ئې په خوارجو باندې رد كړې دې، خوارج وائى چه طلب كه د ژوندى نه وى او كه د مړى نه وى دا شرك دې، دا د خوارجو جهل دې ځكه چه مؤثر بالذات ګنړلو سره د غير الله نه طلب كول شرك دې، ليكن د اسبابو په درجه كښې طلب شرك نشته.

## [۲۹] سورة العنكبوت

سورة العنكبوت مكية هي تسع و ستون اية

سوره عنكبوت مكى دې او په دې كښې ۶۹ آيتونه دى.

**[اياتونه: ۱ - ۱۴]**

بسم الله الرحمن الرحيم (الم) الله أعلم بمراده بذلك (أَحَسِبَ النَّاسُ أَنْ يُتْرَكُوا أَنْ يَقُولُوا) أي بقولهم (آمَنَّا وَهُمْ لَا يُفْتَنُونَ) يختبرون بما يتبين به حقيقة إيمانهم نزل في جماعة آمنوا فآذاهم المشركون (وَلَقَدْ فَتَنَّا الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَلَيَعْلَمَنَّ اللَّهُ الَّذِينَ صَدَقُوا) في إيمانهم علم مشاهدة (وَلَيَعْلَمَنَّ الْكَاذِبِينَ) فيه (أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ يَعْمَلُونَ السَّيِّئَاتِ) الشرك والمعاصي (أَنْ يَسْبِقُونَا) يفوتونا فلا ننتقم منهم (سَاءَ) بئس (مَا) الذي (يَحْكُمُونَ) ه حكمهم هذا (مَنْ كَانَ يَرْجُو) يخاف (لِقَاءَ اللَّهِ فَإِنَّ أَجَلَ اللَّهِ) به (لَآتٍ) فليستعد له

﴿وَهُوَ السَّمِيعُ﴾ لِأَقْوَالِ الْعِبَادِ ﴿الْعَلِيمُ﴾ بِأَفْعَالِهِمْ ﴿وَمَنْ جَاهَدَ﴾ جِهَادَ حَرْبٍ أَوْ نَفْسٍ ﴿فَإِنَّمَا يُجَاهِدُ لِنَفْسِهِ﴾ فَإِنَّ مَنْفَعَةَ جِهَادِهِ لَهُ لَا لِلّٰهِ ﴿إِنَّ اللّٰهَ لَغَنِيٌّ عَنِ الْعَالَمِينَ﴾ الْإِنْسِ وَالْجِنِّ وَالْمَلَائِكَةِ وَعَنْ عِبَادَتِهِمْ ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَنُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ﴾ بِعَمَلِ الصَّالِحَاتِ ﴿وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَحْسَنَ﴾ بِمَعْنَى حَسَنٍ وَنَصْبُهُ بِنَزْعِ الْخَافِضِ الْبَاءِ ﴿الَّذِي كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ وَهُوَ الصَّالِحَاتُ ﴿وَوَصَّيْنَا الْإِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ حُسْنًا﴾ أَيْ إِيصَاءً ذَا حُسْنٍ بِأَنْ يَبَرَّهُمَا ﴿وَإِنْ جَاهَدَاكَ لِتُشْرِكَ بِي مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ﴾ بِإِشْرَاكِهِ ﴿عِلْمٌ﴾ مُوَافَقَةً لِلْوَاقِعِ فَلَا مَفْهُومَ لَهُ ﴿فَلَا تُطِعْهُمَا﴾ فِي الْإِشْرَاكِ ﴿إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ فَأُجَازِيكُمْ بِهِ ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَنُدْخِلَنَّهُمْ فِي الصَّالِحِينَ﴾ الْأَنْبِيَاءِ وَالْأَوْلِيَاءِ بِأَنْ نَحْشُرَهُمْ مَعَهُمْ ﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَقُولُ آمَنَّا بِاللّٰهِ فَإِذَا أُوذِيَ فِي اللّٰهِ جَعَلَ فِتْنَةَ النَّاسِ﴾ أَيْ أَذَاهُمْ لَهُ ﴿كَعَذَابِ اللّٰهِ﴾ فِي الْخَوْفِ مِنْهُ فَيُطِيعُهُمْ فَيُنَافِقُ ﴿وَلَئِنْ﴾ لَامُ قَسَمٍ ﴿جَاءَ نَصْرٌ﴾ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴿مِنْ رَبِّكَ﴾ فَغَنِمُوا ﴿لَيَقُولُنَّ﴾ حُذِفَتْ مِنْهُ نُونُ الرَّفْعِ لِتَوَالِي النُّونَاتِ وَالْوَاوُ ضَمِيرُ الْجَمْعِ لِالْتِقَاءِ السَّاكِنَيْنِ ﴿إِنَّا كُنَّا مَعَكُمْ﴾ فِي الْإِيمَانِ فَأَشْرِكُونَا فِي الْغَنِيمَةِ قال تعالى ﴿أَوَلَيْسَ اللّٰهُ بِأَعْلَمَ﴾ أَيْ بِعَالِمٍ ﴿بِمَا فِي صُدُورِ الْعَالَمِينَ﴾ بِقُلُوبِهِمْ مِنَ الْإِيمَانِ وَالنِّفَاقِ بَلَى ﴿وَلَيَعْلَمَنَّ اللّٰهُ الَّذِينَ آمَنُوا﴾ بِقُلُوبِهِمْ ﴿وَلَيَعْلَمَنَّ الْمُنَافِقِينَ﴾ فَيُجَازِي الْفَرِيقَيْنِ وَاللَّامُ فِي الْفِعْلَيْنِ لَامُ قَسَمٍ ﴿وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلَّذِينَ آمَنُوا اتَّبِعُوا سَبِيلَنَا﴾ دِينَنَا ﴿وَلْنَحْمِلْ خَطَايَاكُمْ﴾ فِي اتِّبَاعِنَا إِنْ كَانَتْ والأمر بمعنى الخبر قال تعالى ﴿وَمَا هُمْ بِحَامِلِينَ مِنْ خَطَايَاهُمْ مِنْ شَيْءٍ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ﴾ فِي ذٰلِكَ ﴿وَلَيَحْمِلُنَّ أَثْقَالَهُمْ﴾ أَوْزَارَهُمْ ﴿وَأَثْقَالًا مَعَ أَثْقَالِهِمْ﴾ بِقَوْلِهِمْ لِلْمُؤْمِنِينَ اتَّبِعُوا سَبِيلَنَا وَإِضْلَالِهِمْ مُقَلِّدِيهِمْ ﴿وَلَيُسْأَلُنَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَمَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ﴾ يَكْذِبُونَ عَلَى اللّٰهِ سُؤَالَ تَوْبِيخٍ وَاللَّامُ فِي الْفِعْلَيْنِ لَامُ قَسَمٍ وَحُذِفَ فَاعِلُهُمَا الْوَاوُ وَنُونُ الرَّفْعِ

---

**ترجمه:** الٓمٓ: ددې په مراد باندې الله تعالى ښه پوهيږي. ايا دې خلقو داګمان دې چه د دوى صرف په دې ووئيلو باندې چه مونږه ايمان روړې دې مونږه به دوى بغير دازميښته پرېږدو، دوى به په داسې څيزونو باندې آزميښتولې شى چه دهغې دوجې نه ددوى ايمان ظاهرشى، داديوجماعت په باره کښې نازل شوى دې چه کله هغوى ايمان راوړلو نودمشرکينو دطرفه هغوى ته مختلف قسمه اذيتونه اوتکليفونوورکول شروع شو، الله تعالى د دوى نه رومبنى خلق هم آزماو کړى دى، يقيناً الله تعالى به داخلق هم معلوم کړى چه کوم په خپل ايمان کښې رشتونې دى، دمشاهدې په توګه باندې معلومول اوداايمان په باره کښې به دروغجن خلق هم معلوم کړى، آياکوم خلق چه بدکارونه يعنى شرک اونور ګناهونه کوى نودوى د اګڼړى دوى به زمونږ نه بچ شى نو مونږ به ددوى نه انتقام نه شو اغستې، نوددوى دا تجويزدکوم په باره کښې چه دوى فيصله کوى، انتهائى بې خونده اوبيهوده دې کوم کس چه د الله تعالى دملاقات ويره لرى نويقيناً دده دملاقات وخت راروان دې، لهذا ده له پکاردى چه دهغې دپاره تيارى اوکړى، هغه دخپلو بنديګانو خبرې لره اوريدونکې او دهغوى کارونو

لره پېژندونکې دې اوچه کوم کس جهاد اوکړو برابره ده که جهاد بالحرب وی اوکه جهاد بالنفس وی نوهغه هم دخپلې فائدې دپاره جهاد کوی ځکه چه دده دجهاد نفع به هم دې جهادکونکی ته ملاویږی نه چې الله تعالی ته، الله تعالی خودجهان والونه یعنی دانسانانو، پیریانواوفرشتو اودهغوی دعباداتونه بې نیازه دې اوکومو خلقوچه ایمان راوړلو اونیک عملونه ئې اوکړل نوموږ به دهغوی ګناهونه دهغوی دنیك عملونوپه بدله کښې ختم کړواوموږپه ددوی دعملونو حال دادې چه هغه عملونه نیك وی، بهترینه بدله ورکړو احسن، دحسن په معنی کښې دې اوددې نصب دباجاره دساقط کیدلو دوجې نه دې، موږ هرانسان ته دخپل مورپلارسره دښه اوحسن سلوک تاکیدکړې دې ښه سلوك اوښه تاکید دادې چه هغوی سره دښه سلوك برتاؤکوې، اوکه چرې هغوی په تا باندې ددې خبرې زوراچوی چه ته ماسره څوک شریک جوړکړې داسې څیزچه دهغې په شریک کیدو باندې تا سره دواقع مطابق علم هم نشته نو په شرك کولو کښې دهغوی اطاعت مه کوه تاسوټول به زما طرف ته واپس راځې بیا به زه تاسو دهرهغه څیزنه خبرکړم کوم چه تاسو کول، نوزه به ستاسو داعمالوجزاء درکومه اوهغه خلق کومو چه ایمان راوړې وی اونیک عملونه ئې کړې وی نوهغوی به په صالحینو یعنی په انبیاؤ اواولیاؤکښې اوشمارو په دې توګه چه موږ به دهغوی حشردې پاکوخلقوسره اوکړو، اوځنې خلق داسې هم دی چه هغوی امنا بالله وائی اوکله چه دوی ته دالله تعالی په لارکښې تکلیفونه وررسولې شی، نوهغوی دخلقو تکلیف یعنی دخلقوایذاء رسانی دخپل زان دپاره دعذاب الهی په شان ګڼړی اودهغې نه ویریږی اوهم ددې دوجې نه دهغوی اطاعت کوی اودنفاق مرتکب جوړشی، اوقسم دې که چرې مومنینوته ستادرب دطرفه څه امداد راورسی چه دهغې دوجې نه دوی ته مال غنیمت حاصل شی، نودوی وائی چه موږه خوتاسوسره په ایمان کښې شریک وو، لهذا موږه هم په مال غنیمت کښې شریك کړئ، ولئن، کښې لام قسم دې، لیقولن : کښې نون د رفع مسلسل «درې» نونودوجې نه اودجمع ضمیرواؤدالتقائې ساکنین دوجې نه حذف کړې شوی دې، الله تعالی اوفرمائیل آیا الله تعالی ته دټولوجهان دخلقو دزړونوحال دایمان او دنفاق نه چه هرڅه وی معلوم نه دې؟ ضرورورته معلوم دې، اوالله تعالی به دزړه نه ایمان روړونکې خلق بالیقین ظاهره وی اومنافقان به هم بالیقین ظاهره وی، اودواړوډلوته به بدله ورکړی، اوپه دواړو فعلونو کښې لام لام قسم دې اوکافران مسلمانانو ته وائی چه تاسوپه دین کښې زمونږه طریقه اختیاره کړئ (بالفرض) که چرې زمونږه په اتباع کولو کښې څه ګناه وی نو موږ به هغه په خپل زان باندې اوچته کړو یعنی دهغې وبال اوبوج به موږه په خپله ذمه واخلو، اوتاسوبه ترینه بیغمه ئې، اوامردخبرپه معنی کښې دې، الله تعالی فرمائی حالانکې دوی دهغوی دګناهونونه هیڅ څه اوچتوونکې نه دی دوی خوپه دې معامله کښې محض دروغجن دی البته

دوی به دخپلو گناهونوبوج اوچت کړې وی اود خپلو گناهونو د بوج سره سره به ئې لگ نور بوج هم مومنانوته ددې خبرې دوجې نه چه تاسوزمونږدطريقې اتباع اوکړئ اوخپلومتبعينو گمراه کولو دوجې نه اودوی چه کوم دروغ اوافتراء کوی نودقيامت په ورځ به ددوی نه ضرور تپوس پوښتنه کولې شی، يعنی په الله تعالی باندې چه کوم دروغ بيانی کوی، اوداتپوس اوپوښتنه به دتوبيخ اوزورنې په توگه باندې وی، په دواړوفعلونوکښې لام لام قسم دې اود دواړوفاعل واؤ اونون د رفع حذف کړې شوی دې،

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله.** ای بقولهم:داد، ما، مصدريه كيدوطرف ته اشاره ده او، با، محذوف ده او،ان يتركوا، دحسبد دوومفعولو قائم مقام دې،

**قوله**:نزل في جماعة :لکه عماربن ياسر، عياش بن ابی ربيعه وليدبن وليد، سلمان بن هشام دې فقيرانوته په مکه کښې ددوی دايمان روړلو دوجې نه تکليفونه ورکړې کيدل،

**قوله**:علم مشاهدة: ددې اضافې مقصدديوسوال مقدر جواب ورکول دی، سوال دادې چه دا آيت دالله تعالی دعلم په تجددباندې دلالت کوی، حالانکه دالله تعالی علم قديم غيرحادث دې؟

دجواب خلاصه داده چه دعلم نه مراد علم ظهور اوعلم مشاهده دې، دايت مقصد دادې چه الله تعالی دصادقينو صدق اودکاذبينوکذب ښکاره کړی چه معلوم دا الله تعالی دعلم مطابق ظاهر شی، (يعنی چه خلقوته دالله تعالی دعلم اودمعلوم مطابقت معلوم شی،) کوم چه د ښکاره کيدو نه مخکښې دپټوالی په پرده کښې وو.

**قوله**: يحكمون: داټوله جمله صله ده د، ما، دپاره اومايه معنی د، الذی، کښې ده، اوپه صله کښې، ه، ضمير محذوف دې کوم چه شارح رحمه الله ظاهرکړواو، حکمهم هذا، مخصوص بالذم دې،

**قوله**:فليستعد:داد، من كان، جواب شرط دې او احسن دنزع خافض دوجې نه منصوب دې په اصل کښې باحسن وو،

**قوله**:ايصاء ذا حسن : ددې مقصوددې طرف ته اشاره کول دی چه، حسناً دوصينا، محذوف مصدردپاره صفت دې سره دحذف دمضاف، اوکه مضاف محذوف اونه گڼړلې شی نوبيامبالغةً صفت واقع کيدل هم درست دی،

**قوله**:والذين امنوا وعملوا الصلحت : مبتدا ده او لنكفرن عنهم سيئاتهم سره دقسم محذوف دمبتدا خبردې، تقدير دعبارت داسې دې والله لنكفرن،اوداهم کيدې شی چه والذين امنوا دفعل محذوف دوجې نه محلاً منصوب وی نوتقدير دعبارت به داسې شی وتخلص الذين

امنواوعملواالصلحات من سیئاتهم په دې صورت کښې به داد باب اشتغال نه وی.

قوله: موافقة للواقع: دا د محذوف علت دې، تقدیری عبارت دا دې وذکرهذاالقید موافقة للواقع.

قوله: فلامفهوم له: مطلب دا دې چه ددې مفهوم مخالف مرادنه دې چه ددې په معبود کیدو باندې تاسره څه دلیل نه وی نوته هغه ماسره شریك مه جوړه وه اوچه دکوم په معبودجوړولو باندې دلیل وی نو هغه معبود جوړولې شی، «دلته کښې دامرادنه دې» څکه چه دهغه نه سوابل څوك داسې معبودنشته چه دهغه په وجود باندې دلیل موجودوی اونه داسې معبودشته دې چه دهغه په وجودباندې دلیل موجودنه وی بلکه هغه خو اله واحد دې.

[اياتونه: ۱۵_۲۲]

﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِ﴾ وَعُمُره أَرْبَعُونَ سَنَة أَوْ أَكْثَر ﴿فَلَبِثَ فِيهِمْ أَلْفَ سَنَةٍ إِلَّا خَمْسِينَ عَامًا﴾ يَدْعُوهُمْ إِلَى تَوْحِيد اللّٰه فَكَذَّبُوهُ ﴿فَأَخَذَهُمُ الطُّوفَانُ﴾ أَيْ الْمَاء الْكَثِير طَافَ بِهِمْ وَعَلَاهُمْ فَغَرِقُوا ﴿وَهُمْ ظَالِمُونَ﴾ مُشْرِكُونَ ﴿فَأَنْجَيْنَاهُ﴾ أَيْ نُوحًا ﴿وَأَصْحَابَ السَّفِينَةِ﴾ الَّذِينَ كَانُوا مَعَهُ فِيهَا ﴿وَجَعَلْنَاهَا آيَةً﴾ عِبْرَة ﴿لِلْعَالَمِينَ﴾ لِمَنْ بَعْدهمْ مِنْ النَّاس إِنْ عَصَوْا رُسُلهمْ وَعَاشَ نُوح بعد الطوفان ستين سنة او اكثرحتى كثر الناس ﴿وَ﴾ اُذْكُرْ ﴿إِبْرَاهِيمَ إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ اعْبُدُوا اللَّهَ وَاتَّقُوهُ﴾ خَافُوا عِقَابه ﴿ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ﴾ مِمَّا أَنْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ عِبَادَة الْأَصْنَام ﴿إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ الْخَيْر مِنْ غَيْره ﴿إِنَّمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ﴾ أَيْ غَيْره ﴿أَوْثَانًا وَتَخْلُقُونَ إِفْكًا﴾ تَقُولُونَ كَذِبًا إِنَّ الْأَوْثَان شركاء لله ﴿إِنَّ الَّذِينَ تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ لَا يَمْلِكُونَ لَكُمْ رِزْقًا﴾ لَا يَقْدِرُونَ أَنْ يَرْزُقُوكُمْ ﴿فَابْتَغُوا عِندَ اللَّهِ الرِّزْقَ﴾ اطلبوه منه ﴿واعبدوه واشكروا له إليه ترجعون﴾ ﴿وَإِن تُكَذِّبُوا﴾ أَيْ تُكَذِّبُونِي يَا أَهْل مَكَّة ﴿فَقَدْ كَذَّبَ أُمَمٌ مِّن قَبْلِكُمْ﴾ مِنْ قَبْلِي ﴿وَمَا عَلَى الرَّسُولِ إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ﴾ إِلَّا الْبَلَاغ الْبَيِّن فِي هَاتَيْنِ الْقِصَّتَيْنِ تَسْلِيَة لِلنَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم وقال تعالى في قومه ﴿أَوَلَمْ يَرَوْا﴾ بِالْيَاءِ وَالتَّاء يَنْظُرُوا ﴿كَيْفَ يُبْدِئُ اللَّهُ الْخَلْقَ﴾ هو بضم اوله وقرىء بِفَتْحِهِ مِنْ بَدَأَ وَأَبْدَأَ بِمَعْنَى أَيْ يَخْلُقهُمْ ابْتِدَاء ﴿ثُمَّ﴾ هُوَ ﴿يُعِيدُهُ﴾ أَيْ الْخَلْق كَمَا بَدَأَهُمْ ﴿إِنَّ ذَٰلِكَ﴾ الْمَذْكُور مِنْ الْخَلْق الْأَوَّل وَالثَّانِي ﴿عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ﴾ فَكَيْفَ يُنْكِرُونَ الثَّانِي ﴿قُلْ سِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَانظُرُوا كَيْفَ بَدَأَ الْخَلْقَ﴾ لِمَنْ كَانَ قَبْلكُمْ وَأَمَاتَهُمْ ﴿ثُمَّ اللَّهُ يُنشِئُ النَّشْأَةَ الْآخِرَةَ﴾ مَدًّا وَقَصْرًا مَعَ سُكُون الشِّين ﴿إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ وَمِنْهُ الْبَدْء والإعادة ﴿يُعَذِّبُ مَن يَشَاءُ﴾ تَعْذِيبه ﴿وَيَرْحَمُ مَن يَشَاءُ﴾ رَحْمَته ﴿وَإِلَيْهِ تُقْلَبُونَ﴾ تُرَدُّونَ ﴿وَمَا أَنتُم بِمُعْجِزِينَ﴾ رَبّكُمْ عَنْ إِدْرَاككُمْ ﴿فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ﴾ لَوْ كُنْتُمْ فِيهَا أَيْ لَا تَفُوتُونَهُ ﴿وَمَا لَكُم مِّن دُونِ اللَّهِ﴾ أَيْ غَيْره ﴿مِن وَلِيٍّ﴾ يَمْنَعكُمْ مِنْهُ ﴿وَلَا نَصِيرٍ﴾ يَنْصُركُمْ مِنْ عَذَابه

ترجمه: اوموږ نوح علیه السلام د دوی طرف ته ورلیږلې وو اوهغه وخت دهغوی عمرڅلوېښت کاله یاددې نه هم زیات وو، نوح علیه السلام په خپل قوم کښې پنځوس کم زرکاله پاتې شوی وو

او دوی ته ئې دالله دتوحيد دعوت ورکولو نوهغوی دنوح عليه السلام تكذيب اوکړونو طوفان راګير کړل يعنی ډيرو ابو دوی راګير کړل اوپه دوی باندې راواوريدې نودوی په هغه اوبو سره غرق شو، اوهغوی ډيرلوئې ظالمان مشرك خلق وونومونږه نوح عليه السلام اوکشتۍ والويعنی هغه کسان چه هغوی دنوح عليه السلام سره په کشتۍ کښې سواره شوی ووته نجات ورکړو اودا واقعه مونږه دټولو جهان دانسانانو دپاره دعبرت نښه اوګرځوله يعنی ددوی نه روستونو خلقو دپاره که چرې هغوی دخپل رسولانونافرمانی اوکړی، اونوح عليه السلام دطوفان نه روستوشپيته کاله يادډېنه زيات موده ژوندې پاتې ووتردې پورې چه خلق ګڼرشو اوډيرشو اوحضرت ابراهيم ذکر اوکړه کله چه هغوی خپل قوم ته اوويئيل چه د الله بندګی کوئې اودهغه نه يريږې يعنی دهغه دعذاب نه اويريږئ داستاسو دپاره دبتانودبندګې نه چه په کوم باندې تاسو کلك ولاړ يئ بهتر دې که چرته تاسوپه ښه اوخراب کښې تميز کولې شئ، تاسوخلق دالله تعالى نه علاوه دغيرالله عبادت کوئ يعنی دبتانو اودروغ جوړوئ يعنی دادروغ وائې چه بتان دالله شرکاء دې (واورئ) تاسو دالله تعالى نه سواچه د کومو معبودانو عبادت کوئ هغوی ستاسو درزق مالکان نه دی يعنی تاسوته رزق درکولوباندې قادرنه دې نوتاسوله پکاردی چه تاسو هم دالله نه رزق اوغواړئ اوهم دهغه بندګی اوکړې اوهم دهغه شکر اداکړئ اوتاسو به هم دهغه طرف ته واپس ګرځولې شئ اې مکې والو که چرته تاسو زماتکذيب کوئې (نوداخه نوې خبره نه ده) تاسو نه مخکښې هم ډيرو امتونو زمانه ړومبنی راتلونکی رسولان دروغجن ګرځولې وو، درسول په ذمه خوصرف په صفاصفا توګه باندې وررسول دی يعنی په ښکاره توګه باندې وررسول دی د دوی دواړو حضراتو (يعنی نوح عليه السلام اوا براهيم عليه السلام) په قصه کښې حضور مبارك ته تسلی ده الله تعالى د نبی عليه السلام دقوم په باره کښې اوفرمائيل چه آياهغوی نه ګوری چه الله تعالى مخلوقات ابتداء څنګه پيداکړی دی يروا ياواوتاپه دواړوقراءتو سره واردډې، بيدی داول په ضمې سره اوداول په فتحې سره وئيلې شوی دی دبدء اوابدأيوه معنی ده يعنی هغه ابتداء پيدا کولو والا دې اوهم هغه به دوی دوباره پيدا کوی يعنی څنګه ئې چه ابتداء مخلوق پيدا کړو بلا شبه داپه اول خل پيداکول او داپه دوئيم خل پيدا کول د الله تعالى دپاره ډيرآسان دی لهذاپه دوئيم خل پيداکولونه تاسو ولې انکار کوئې؟تاسو دوی ته اووائې چه په ملك کښې اوګرځئ اواوګورئ چه ستاسونه ړومبنی خلق مونږه څنګه پيداکړل په ړومبی ځل اوبيامو هغوی مړه کړل اوبيابه ئې دوباره هم پيداکوونشاةمد سره اوقصرسره اودشين په سکون سره بيشکه الله تعالى په هرڅيزباندې قادر دې اوپه دې کښې په ړومبی خل اوپه دوئيم خل پيداکول هم داخل دی چاته چه عذاب ورکول اوغواړی نوعذاب ورله ورکړی اوپه چاچه رحم کول اوغواړی نو رحم پری اوکړی تو) به دهغه طرف ته واپس ګرځولی شئ اوتاسوخپل رب ستاسو دنيولونه نه په

زمکه کښې عاجزه کولې شئ او نه په اسمان کښې که چرې تاسو په اسمان کښې یې یعنی تاسو دهغه نه نشئ بچ کیدلې د الله تعالی نه سوا نه ستاسو څوک دوست شته دې چه تاسو دهغه نه بچ کړي او نه څوک مددګار چه د الله تعالی دعذاب نه ستاسو امداد اوکړي.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: نوحاً: دحضرت نوح علیه السلام په نوم مبارك کښې یوڅو اقوال دی ①عبدالغفار ②یشکر ③السکن، نوح، د دوی لقب وو، ډیرزیات نوحه کونکی ته نوح وئیلی شی، حضرت نوح علیه السلام به هم دخپل قوم په حالت باندې ډیرزیات ژړل نو دډیرو ژړلو دوجې نه دهغوی لقب نوح مشهورشو

قوله: ابراهیم: په ابراهیم باندې عامو قراؤ نصب وئیلی دې او دنصب درې وجې کیدې شی، اول خو دا چه دا په نوحاً باندې عطف شی یا ددې عامل ناصب محذوف اوګنړلې شی لکه څنګه چه شارح، اذکر، محذوف ګنړلو سره دې طرف ته اشاره اوکړه، او یاد، انجیناه، په ضمیر باندې عطف دې اوځنی حضراتو ابراهیم دمبتدأ دوجې نه مرفوع وئیلی دې اوخبرئې ورله محذوف ګنړلې دې نو تقدیر دعبارت به داسې شی، ومن المرسلین ابراهیم

قوله: اوثان: دوثنٌ جمع ده دکانړو نه تراشلې شوی بتان د چا چې عبادت کیږی

قوله: برزقوکم: ددې اضافه کولو سره شارح دې طرف ته اشاره اوکړه چه رزقاً دمفعول مطلق دوجې نه منصوب دې تقدیر دعبارت دا دې لایملکون ان یرزقوکم رزقاً.

قوله: تکذبونی: په دې کښې دې طرف ته اشاره ده چه دتکذبوا مفعول محذوف دې،

قوله: یاأهل مکة: دې سره مقصود دې طرف ته اشاره کول دی چه دا آیت او راروان آیت دحضرت ابراهیم علیه السلام د واقعې په مینځ کښې جمله معترضه ده او دې سره مقصود حضور مبارك ته تسلی ورکول دی ان تکذبوا شرط دې او ددې جزاء داده فلایضرنی تکذیبکم

قوله: من قبلی: من موصوله دکذب مفعول دې

قوله: هاتین القصتین: ددې نه مراد دحضرت نوح علیه السلام او دحضرت ابراهیم علیه السلام قصې دی،

قوله: اولم یروا: دلته درویت نه مراد علم یقینی دې ګنی په رومبی ځل دتخلیق په وخت کښې خوڅوك هم موجود نه وو، لهذا د اولم یروا په ذریعه سره سوال کول به بې معنی وو،

قوله: النشاة الاخرة مداً وقصراً: دمد مطلب دادې چه دشین نه پس الف دې او دقصر مطلب دادې چه الف نشته دې.

..............

**[ایاتونه: ۲۳ ـ ۳۰]**

{وَالَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ اللَّهِ وَلِقَائِهِ} أَيْ الْقُرآن وَالْبَعْث {أُولَئِكَ يَئِسُوا مِنْ رَحْمَتِي} أَيْ جَنَّتِي {وأولئك لهم عذاب أليم} مؤلم قال تعالى في قصة إبراهيم عليه السلام {فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِ إِلَّا أَنْ قَالُوا اقْتُلُوهُ أَوْ حَرِّقُوهُ فَأَنْجَاهُ اللَّهُ مِنَ النَّارِ} الَّتِي قَذَفُوهُ فِيهَا بِأَنْ جَعَلَهَا عَلَيْهِ بَرْدًا وسلاما {إن في ذلك} اي انجائه منه {لَآيَاتٍ} هِيَ عَدَم تَأْثِيرهَا فِيهِ مَعَ عِظَمِهَا وَإِخْمَادهَا وَإِنْشَاء رَوْض مَكَانهَا فِي زَمَن يَسِير {لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ} يُصَدِّقُونَ بِتَوْحِيدِ اللَّه وَقُدْرَته لِأَنَّهُمْ المنتفعون بها {وَقَالَ} إبْرَاهِيم {إِنَّمَا اتَّخَذْتُمْ مِنْ دُونِ اللَّهِ أَوْثَانًا} تَعْبُدُونَهَا وَمَا مَصْدَرِيَّة {مَوَدَّةَ بَيْنِكُمْ} خَبَر إنَّ وَعَلَى قِرَاءَة النَّصْب مَفْعُول لَهُ وَمَا كَافَّة الْمَعْنَى تَوَادَدْتُمْ عَلَى عِبَادَتهَا {فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ثُمَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكْفُرُ بَعْضُكُمْ بِبَعْضٍ} يَتَبَرَّأ الْقَادَة مِنْ الْأَتْبَاع {وَيَلْعَنُ بَعْضُكُمْ بَعْضًا} يَلْعَن الْأَتْبَاع الْقَادَة {وَمَأْوَاكُمُ} مَصِيركُمْ جَمِيعًا {النَّارُ وَمَا لَكُمْ مِنْ نَاصِرِينَ} مَانِعِينَ مِنْهَا {فَآمَنَ لَهُ} صدق بإبراهيم {لوط} وهو بن أَخِيهِ هَارَان {وَقَالَ} إبْرَاهِيم {إِنِّي مُهَاجِرٌ} مِنْ قَوْمِي {إِلَى رَبِّي} إلَى حَيْثُ أَمَرَنِي رَبِّي وَهَجَرَ قَوْمه وَهَاجَرَ مِنْ سَوَاد الْعِرَاق إلَى الشَّام {إِنَّهُ هُوَ الْعَزِيزُ} فِي مُلْكه {الْحَكِيمُ} فِي صُنْعه {ووهبنا له} بعد إسماعيل {إِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ} بَعْد إسْحَاق {وَجَعَلْنَا فِي ذُرِّيَّتِهِ النُّبُوَّةَ} فَكُلّ الْأَنْبِيَاء بَعْد إبْرَاهِيم مِنْ ذُرِّيَّته {وَالْكِتَابَ} بِمَعْنَى الْكُتُب أَيْ التَّوْرَاة وَالْإِنْجِيل وَالزَّبُور وَالْفُرْقَان {وَآتَيْنَاهُ أَجْرَهُ فِي الدُّنْيَا} وَهُوَ الثَّنَاء الْحَسَن فِي كُلّ أَهْل الْأَدْيَان {وَإِنَّهُ فِي الْآخِرَةِ لَمِنَ الصَّالِحِينَ} الَّذِينَ لَهُمْ الدرجات العلى {و} اذكر {لوطا إذ قال لقومه أئنكم} بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَتَسْهِيل الثَّانِيَة وَإِدْخَال أَلِف بَيْنهمَا عَلَى الْوَجْهَيْنِ فِي الْمَوْضِعَيْنِ {لَتَأْتُونَ الْفَاحِشَةَ} أَيْ أَدْبَار الرِّجَال {مَا سَبَقَكُمْ بِهَا مِنْ أَحَدٍ من العالمين} الإنس والجن {أئنكم لَتَأْتُونَ الرِّجَالَ وَتَقْطَعُونَ السَّبِيلَ} طَرِيق الْمَارَّة بِفِعْلِكُمْ الْفَاحِشَة بِمَنْ يَمُرّ بِكُمْ فَتَرَكَ النَّاس الْمَمَرّ بِكُمْ {وَتَأْتُونَ فِي نَادِيكُمُ} أَيْ مُتَحَدَّثكُمْ {الْمُنْكَرَ} فِعْل الْفَاحِشَة بَعْضكُمْ بِبَعْضٍ {فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِ إِلَّا أَنْ قَالُوا ائْتِنَا بِعَذَابِ اللَّهِ إِنْ كُنْتَ مِنَ الصَّادِقِينَ} فِي اسْتِقْبَاح ذَلِكَ وَأَنَّ الْعَذَاب نَازِل بِفَاعِلِيهِ {قَالَ رَبِّ انْصُرْنِي} بِتَحْقِيقِ قَوْلِي فِي إنْزَال الْعَذَاب {عَلَى الْقَوْمِ الْمُفْسِدِينَ} الْعَاصِينَ بِإِتْيَانِ الرِّجَال فَاسْتَجَابَ اللَّه دُعَاءَهُ

ترجمه: کوموخلقو چه د الله تعالی آیتونه اودهغه ملاقات هیرکړي دي یعنی قرآن اوبعث بعد الموت لره نو داخلق زمادرحمت نه نا امیده شوی دی او دوی دپاره به دردناک عذاب وی الله تعالی دحضرت ابراهیم علیه السلام په قصه کښې فرمائی نودهغوی قوم سره دې نه سوا بل څه جواب نه وو چې وئ وئیل چه یاخودې قتل کړئ او یائې په اور کښې اوسوزئ خو آخرهم الله تعالی هغوی ددې اور نه بچ کړو چه په کوم کښې هغوی اچولی شوی وو په دې طریقه باندې چه هغه اور ابراهیم علیه السلام باندې سلامتیا والا او دهغوی دپاره گل گلزار شو بیشکه په دې کښې یعنی ابراهیم علیه السلام لره داور نه خلاصولو کښې ډیرې نښې دي په دغه نښو کښې یو داهم وه چه دې دومره لوئې اوریه حضرت ابراهیم علیه السلام کښې هیڅ قسمه اثر اونه کړواو

هغه اور مړشواو په لږ وخت کښې د اور په ځائې خکلې ګلستان اوباغ جوړشو، ایمان والو دپاره یعنی دالله د توحید او د هغه دقدرت تصدیق کونکووالو دپاره، ځکه چه هم دغه خلق دنښو نه نفع اوفائده اغستونکی دی اوابراهیم علیه السلام داهم اوفرمائیل چه تاسو الله تعالی پریخې دې اویتان مو خپل معبودان ګرځولی دی دکومو چه تاسو عبادت کونې نو داستاسو دیوبل سره ددنیاوی تعلقاتو دوجې نه دی ماتخذتم کښې مامصدریه ده او مودةبینکم د انّ خبر دې او دنصب په صورت کښې به مودة مفعول له وی اومابه کافه وی، او دآیت معنی به داسې شی چه ددې بتانو دعبادت دوجې نه ستاسو دیو بل ترمینځه دادوستې تعلق قائم دې بیا دقیامت په ورځ به تاسو دیوبل نه منکر ئې سرداران به دخپلو ماتحتو نه دبیزارې اظهار اوکړی او په خپل مینځ کښې به په یوبل باندې لعنت وائې یعنی ماتحت به په سردارانو باندې لعنت وائی اودستاسو ټولوټهکانه به دوزخ وی اوستاسو به هیڅ څوک مددګار یعنی داور نه دخلاصی دپاره نه وی نو لوط علیه السلام دابراهیم علیه السلام دنبوت تصدیق اوکړو اوهغه ددوی درور هاران ځوئې وواوابراهیم علیه السلام اوفرمائیل زه دا خپل قوم پرېږدمه اودخپل پروردګار خودلې شوی ځائې ته هجرت کومه نو خپل قوم ئې پریخودلو اوذعراق داطرافونه ئې دشام طرف ته هجرت اوکړوبیشکه هغه په خپل ملک کښې ډیر غالبه اوپه خپل کاریکرئې کښې ډیرحکمت والا دې اومونږه دوی له داسماعیل علیه السلام نه پس اسحاق اوداسحاق نه پس یعقوب ورکړو اومونږه ددوی په اولاد کښې نبوت جاری کړو نو ټول انبیاء ددوی نه پس هم ددوی په نسل کښې راغلی دی اوکتاب سلسله موجاری کړله اوکتاب په معنی دکتب سره یعنی تورات، انجیل، زبور، او دقرآن مجیداومونږه ددې صله دوی له په دنیاکښې هم ورکړله اوپه ټولواهل مللوکښې ددوی ذکرجمیل دې اوبیشکه هغوی په آخرت کښې هم دصالحانو بندګانو نه دی دچادپاره چه عالی شان درجات دی، اود لوط ذکر اوکړئې کله چه هغوی خپل قوم ته اوفرمائیل چه تاسوداسې دبې حیائې کارونه کوئې یعنی تاسو سروسره بدفعلی کوئې چه دتاسونه مخکښې عالم والو یعنی نه انسانانواونه پیریانوکړې دې ددواړوهمزوپه تحقیق سره اوددوئیمې په تسهیل سره اود دواړو ترمینځه په دواړو صورتونو کښې په دواړوځایونوکښې په الف داخلولوسره آیاتاسو نارینو سره بدفعلی کوئې اوتاسوتیریدونکوخلقو سره دبې حیائې کارونه کوئې اودمسافرولاره بنده وې دکومې دوجې نه چه خلقو ستاسو په خوا کښې تیریدل پریخودل اوتاسودخپل خبرو په مجلسونو کښې دیوبل سره دبې حیائې کارونه کوئې نوددوی قوم سره ددې نه سوابل څه جواب نه چې ویّ وئیل که چرته ته داکار بدګنړې اوپه دې خبره کښې چه داسې کارونه کونکوباندې د الله تعالی عذاب رانازلیدونکې دې رشتونکې ئې نو راوړه دالله عذاب نولوط علیه السلام دا دعااوکړه چه اې زماپروردګاره په عذاب نازلیدوکښې زماخبره

رشتیاکړه اودنارینوسره بدفعلی کونکی اونافرمانه قوم په مقابله کښې زمامداد اوکړه نوالله تعالی دحضرت لوط علیه السلام دعاقبوله کړه،

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** یئسوا من رحمتی :هم داهغه خلق دی چه دقیامت په ورځ به زمادرحمت نه ناامیده وی، یئسوادماضی صیغه ئې ددې دپاره استعمال کړه چه ددې واقع کیدل یقینی دی.

**قوله:** اقتلوه اوحرقوه :دلته ئې حرف تردیدسره اوفرمائیل اوپه سورة الانبیاء کښې ئې صرف یو یعنی حرقوه اوفرمائیل؟

**جواب:** دلته کښې ئې ددوی مشوره بیان کړې ده اوپه سورة الانبیاء کښې ئې دمشورې نه پس چه کومه فیصله په وجودکښې راغلې وه هغه بیان کړه (یعنی په اورکښې سوزول)نو هغې فیصلې دعملی جامې اغوستلو بیان دې،

**قوله:** التی قذفوه فیها :شارح ددې عبارت سره دمحذوف کلام طرفته اشاره کړې ده نو تقدیر دکلام داشو فقذفوه فی النار فانجاه الله من النار،

**قوله:** وقال ابراهیم:ددې عطف په فانجاه الله من النار باندې دې ای قال بعد انجائه من النار،

**قوله:** انّ ما اتخذتم من دون الله اوثاناً: په ماکښې درې ترکیبونه کیدې شی،

**رومبې ترکیب:** ما موصوله په معنی د الذی سره اوعائدئې محذوف دې اوهم هغه د اتخذتم مفعول اول اوثاناًمفعول ثانی او مودة د انّ خبردې نوتقدیر دعبارت به داسې شی انّ الذی اتخذتموه اوثاناً مودة(په دې صورت کښې به دمودة حمل په اوثاناًباندې مبالغة وی اوکه چرې دمودة نه مخکښې ذومحذوف اوګنړلی شی نوحمل به درست وی)اوپه مودة باندې دنصب په صورت کښې به دانّ خبرمحذوف وی نوتقدیر دعبارت به داسې وی الذی اتخذتموه اوثاناً لاجل المودة لاینفعوکم،

**دوئیم ترکیب:** ماکافه انّ دعمل نه منع کوی اوثاناً اتخذتم دپاره مفعول به دې که چرې اتخذتم متعدی وی یومفعول ته اوکه چرې متعدی وی دوومفعولوته نومفعول ثانی به من دون الله وی، اوکه چرې مودة مرفوع اولوستلې شی نوبیابه دمبتدأ محذوف دپاره خبروی ای هی مودة جمله به په دې صورت کښې داوثاناً صفت وی، اوجمله مستانفه هم کیدې شی، اوکه په مودة باندې نصب اوئیلې شی نوبیابه هغه داتخذتم دپاره مفعول له وی نیز داعنی محذوف په ذریعه هم منصوب کیدې شی،

**دریم ترکیب** : ما:که چرې مصدریه اوګنړلې شی نوددې نه پس به دوه صورتونه وی، داتخاذنه وړاندې سبب مضاف محذوف اوګنړلی شی اوتقدیردعبارت به داوی انّ سبب

اتخاذکم اوثاناً مودة او داهم جائزده چه سبب مضاف محذوف اونه گنړلی شی، بلکه مبالغةً هم نفس اتخاذ مؤدة اوګنړلی شی اوپه مؤدةً باندې دنصب په صورت کښې به خبر محذوف وی لکه څنګه چه په رومبنی صورت کښې دی،

قوله: المعنی: دقراءت مذکوره حاصل معنی یعنی تاسوهم ددې بتانو دعبادت دوجې نه متفق شوی یئ،

قوله: صدق بابراهیم: یعنی حضرت لوط علیه السلام دحضرت ابراهیم علیه السلام دنبوت تصدیق اوکړو، نه که دنفس ایمان تصدیق ئې اوکړو څکه چه حضرت لوط علیه السلام خو دمخکښې نه مومن وو، په لوط به وقف لازم وی،

قوله: الی حیث امرنی ربی: ددې عبارت سره مقصودددیوشبهې جواب ورکول دی هغه داچه دالی ربی نه دالله تعالی دپاره جهت ثابتیږی حالانکه الله تعالی خودجهاتو نه پاك دې، نودهغه جواب ئې الی حیث امرنی ربی سره ورکړو،

قوله: سواد العراق: ای اطرافها یقال سواد البلد ای اطراف البلد،

قوله: لمن الصالحین: ای الصالحین الکاملین،

**[ایاتونه: ۳۱ ـ ۴۴]**

{وَلَمَّا جَاءَتْ رُسُلُنَا إِبْرَاهِيمَ بِالْبُشْرَىٰ} بِإِسْحَاق وَيَعْقُوب بَعْده {قَالُوا إِنَّا مُهْلِكُوا أَهْلِ هَٰذِهِ الْقَرْيَةِ} أَيْ قَرْيَة لُوط {إِنَّ أَهْلَهَا كَانُوا ظَالِمِينَ} كَافِرِينَ {قَالَ} إِبْرَاهِيم {إِنَّ فِيهَا لُوطًا قَالُوا} أَيْ الرُّسُل {نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَنْ فِيهَا لَنُنَجِّيَنَّهُ} بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيد {وَأَهْلَهُ إِلَّا امْرَأَتَهُ كَانَتْ مِنَ الْغَابِرِينَ} الْبَاقِينَ فِي الْعَذَاب {وَلَمَّا أَنْ جَاءَتْ رُسُلُنَا لُوطًا سِيءَ بِهِمْ} حَزِنَ بِسَبَبِهِمْ {وَضَاقَ بِهِمْ ذَرْعًا} صَدْرًا لِأَنَّهُ حِسَان الْوُجُوه فِي صُورَة أَضْيَاف فَخَافَ عَلَيْهِمْ قَوْمه فَأَعْلَمُوهُ أَنَّهُمْ رُسُل رَبّه {وَقَالُوا لَا تَخَفْ وَلَا تَحْزَنْ إِنَّا مُنَجُّوكَ} بِالتَّشْدِيدِ وَالتَّخْفِيف {وَأَهْلَكَ إِلَّا امْرَأَتَكَ كَانَتْ مِنَ الْغَابِرِينَ} وَنَصْب أَهْلك عَطْف عَلَى مَحَلّ الْكَاف {إِنَّا مُنْزِلُونَ} بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيد {عَلَىٰ أَهْلِ هَٰذِهِ الْقَرْيَةِ رِجْزًا} عَذَابًا {مِنَ السَّمَاءِ بِمَا} بِالْفِعْلِ الَّذِي {كَانُوا يَفْسُقُونَ} بِهِ أَيْ بِسَبَبِ فِسْقهمْ {وَلَقَدْ تَرَكْنَا مِنْهَا آيَةً بَيِّنَةً} ظَاهِرَة هِيَ آثَار خَرَابهَا {لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ} يَتَدَبَّرُونَ {وَ} أَرْسَلْنَا {إِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا فَقَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ وَارْجُوا الْيَوْمَ الْآخِرَ} اخْشَوْهُ هُوَ يَوْم الْقِيَامَة {وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ} حَال مُؤَكِّدَة لِعَامِلِهَا مِنْ عَثِيَ بِكَسْرِ الْمُثَلَّثَة أَفْسَدَ {فَكَذَّبُوهُ فَأَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ} الزَّلْزَلَة الشَّدِيدَة {فَأَصْبَحُوا فِي دَارِهِمْ جَاثِمِينَ} بَارِكِينَ عَلَى الرُّكَب مَيِّتِينَ {وَ} أَهْلَكْنَا {عَادًا وَثَمُودَا} بِالصَّرْفِ وَتَرْكه بِمَعْنَى الْحَيّ وَالْقَبِيلَة {وَقَدْ تَبَيَّنَ لَكُمْ} إِهْلَاكهمْ {مِنْ مَسَاكِنِهِمْ} بِالْحِجْرِ وَالْيَمَن {وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ أَعْمَالَهُمْ} مِنَ الْكُفْر وَالْمَعَاصِي {فَصَدَّهُمْ عَنِ السَّبِيلِ} سَبِيل الْحَقّ {وَكَانُوا مُسْتَبْصِرِينَ} ذَوِي بَصَائِر {وَ} أَهْلَكْنَا {قَارُونَ وَفِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَلَقَدْ جَاءَهُمْ مُوسَىٰ} مِنْ قَبْل {بِالْبَيِّنَاتِ} الْحُجَج الظَّاهِرَات {فَاسْتَكْبَرُوا فِي الْأَرْضِ وَمَا كَانُوا

سَابِقِيْنَ، فَائِتِينَ عَذَابَنَا (فَكُلًّا) مِنَ الْمَذْكُورِيْنَ (أَخَذْنَا بِذَنْبِهِ فَمِنْهُمْ مَنْ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِ حَاصِبًا) رِيحًا عَاصِفَة فِيهَا حَصْبَاء كَقَوْمِ لُوط (وَمِنْهُمْ مَنْ أَخَذَتْهُ الصَّيْحَةُ) كَثَمُود (وَمِنْهُمْ مَنْ خَسَفْنَا بِهِ الْأَرْضَ) كَقَارُون (وَمِنْهُمْ مَنْ أَغْرَقْنَا) كَقَوْمِ نُوح وَفِرْعَوْن وَقَوْمه (وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيَظْلِمَهُمْ) فَيُعَذِّبهُمْ بِغَيْرِ ذَنْب (وَلٰكِنْ كَانُوا أَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ) بِارْتِكَابِ الذَّنْب (مَثَلُ الَّذِينَ اتَّخَذُوا مِنْ دُونِ اللّٰهِ أَوْلِيَاءَ) أَيْ أَصْنَامًا يَرْجُونَ نَفْعهَا (كَمَثَلِ الْعَنْكَبُوتِ اتَّخَذَتْ بَيْتًا) لِنَفْسِهَا تَأْوِي إِلَيْهِ (وَإِنَّ أَوْهَنَ) أَضْعَف (الْبُيُوتِ لَبَيْتُ الْعَنْكَبُوتِ) لَا يَدْفَع عَنْهَا حَرًّا وَلَا بَرْدًا كَذٰلِكَ الْأَصْنَام لَا تَنْفَع عَابِدِيهَا (لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ) ذٰلِكَ مَا عَبَدُوهَا (إِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا) بِمَعْنَى الَّذِي (يَدْعُونَ) يَعْبُدُونَ بِالْيَاءِ وَالتَّاء (مِنْ دُونِهِ) غَيْره (مِنْ شَيْءٍ وَهُوَ الْعَزِيزُ) فِي مُلْكه (الْحَكِيمُ) فِي صُنْعه (وَتِلْكَ الْأَمْثَالُ) فِي الْقُرْآن (نَضْرِبُهَا) نَجْعَلهَا (لِلنَّاسِ وَمَا يَعْقِلُهَا) أَيْ يَفْهَمهَا (إِلَّا الْعَالِمُونَ) الْمُتَدَبِّرُونَ (خَلَقَ اللّٰهُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ) أَيْ مُحِقًّا (إِنَّ فِي ذٰلِكَ لَآيَةً) دَالَّة عَلَى قُدْرَته تَعَالَى (لِلْمُؤْمِنِيْنَ) خُصُّوا بِالذِّكْرِ لِأَنَّهُمْ الْمُنْتَفِعُونَ بِهَا فِي الْإِيمَان بِخِلَافِ الْكَافِرِينَ

ترجمه: زمونږ لیږلي شوي فرشتې ابراهیم علیه السلام له داسحاق اوداسحاق نه پس داسحاق دخوئې یعقوب زیرې ورکولودپاره راغلي نو وئ وئیل چه مونږه دې کلی والو لره هلاکونکی یو یعنی د لوط علیه السلام کلی والا بیشکه ددې کلی والا خلق ظالمان یعنی کافران دی حضرت ابراهیم علیه السلام اووئیل چه په دوی کښې خولوط هم دې فرشتوورته اوفرمائیل ښوک چه هلته دی مونږه هغوی ښه پیژنو مونږ به لوط اودهغوی اهل خاندان دهغوی دښځې نه علاوه تول بچ اوساتو ځکه چه هغه خوبه په عذاب راګیریدونکی خلقو کښې پاتې کیدونکی وی اوکله چه زمونږه استازی لوط علیه السلام له راغلل نو دهغوی دوجې نه حضرت لوط غمژن شو اوزړه تنګې شو ځکه چه هغوی دخکلو هلکانو په شکل کښې میلمانه وو ، نو ددوی په باره کښې ئې دخپل قوم نه اندیښنه اوکړه، نو هغوی ورته اووئیل چه مونږه ستا درب دطرف نه استازی رالیږلي شوی یو نوهغه ملائکو اووئیل چه تاسو اندیښنه مه کوئې اوغمژن کیږې هم مه مونږ به تاسو اوستاسو کوروالا دعذاب نه بچ اوساتو ستاسو دښځې نه علاوه چه هغه به په عذاب کښې پاتې کیدونکو کښې وی او داهلك نصب دکاف په محل باندې د عطف دوجې نه دې مونږبه په دې کلی والوباندې د دوی دبدعملونو دوجې نه یعنی ددوی دنافرمانۍ اوپه سبب اسمانی عذاب نازلونکی یو البته مونږه ددې کلی څنی ظاهری نښې یعنی ددوی دکورونو دکهنډراتو اثار دغوراوفکر کونکو خلقو دپاره پریخودی دی اومدین والوته مونږه ددوی رور شعیب پیغمبر جوړکړو ومولیږلو نوهغوی اوفرمائیل اې زماقومه دقوم خلقو دالله تعالی عبادت کوئې اودآخرت دورځې نه چه هغه دقیامت ورځ ده ویریږئ اوپه زمکه کښې فسادمه کوئې مفسدین دخپل عامل دپاره حال مؤکده دې اوعثی، دافسد ، په معنی کښې دې نودې خلقو حضرت شعیب علیه السلام دروغژن اوګڼرلونودوی یوې جټکې یعنی تیزې زلزلې اونیول نوهغوی خوپیاپه خپلو

کورونوکښې مره دکونډودپاسه پاتې شواومونږه عاداوثمودهم هلاک کړل ثمودمنصرف اوغیرمنصرف دواړه کیدې شی، الحی، په معنی کښې منصرف او د القبیله په معنی کښې غیرمنصرف، ستاسو وړاندې دهغوی هلاکت په حجر اویمن کښې دهغوی د کورونو نه ظاهر دې اوشیطان دهغوی عملونه یعنی کفر او نور معصیتونه دهغوی په نظر کښې ښائسته کړي وو او هغوی ئې دحق دلارې نه بندکړی وو اوهغوی په عقلمند و کښې شمارلې کیدل، اومونږه قارون اوفرعون اوهامان هلاك کړل اوددې نه وړاندې دوی ته موسی عليه السلام ښکاره دلیلونه راوړې وو بیا هم دوی خلقو په زمکه کښې سرکشی اوکړه اوزمونږ د عذاب نه نشو تختیدلې نومونږه دا ټول مذکورین ددوی دګناهونو په سزاکښې رااونیول نو په دوی کښې مونږ څنو باندې زول وروليږلو یعنی تیزه هواچه په هغې کښې کودکانړې هم وولکه څنګه چه دلوط علیه السلام په قوم باندې اوپه دوی کښې څنی خلق سختې تیزې چغې (تیز اوان) ګیرکړل لکه ثمود شو اوپه دوی کښې موڅنی په زمکه کښې خښ کړل لکه قارون اوپه دوی کښې موڅنی غرق کړل لکه قوم د نوح اوفرعون او دهغه قوم اوالله تعالی داسې نه دې چه په دوی باندې ظلم اوکړی یعنی چه بغیر دجرم نه سزاورکړی خو دوی هم په خپله دجرمونو ارتکاب کولو په وجه په خپلو زانونو باندې ظلمونه کول اوکومو خلقو چه دالله تعالی نه علاوه نور کارساز جوړکړی دی یعنی بتان چه دهغوی نه دنفع توقعات لری ددوی مثال دجولا ګی دجالې په شان دې چه د ځان دپاره یوکورجوړکړی چه په هغې کښې هغه تهکانه جوړه وی بیشکه په ټولو کورونوکښې دټولو نه کمزورې کور د جولاګی وی څکه چه دهغه کور دهغه نه ګرمی هم نشی لرې کولې اویخنی هم، هم دغه شان بتان هم دی یعنی خپلو عبادت کونکو ته نفع نشی رسولی، اوکه چرې داخلق په دې حقیقت باندې پوهیدلې نو دوی به کله هم ددې بتانو عبادت نه ووکړې الله تعالی بیشکه هغه ټول څیزونه پیژنی دکوموچه دوی دالله تعالی نه علاوه عبادت کوی په یا اوتاسره هغه په خپل ملك کښې غالب دې اوپه خپل صنعت کښې حکمت والا دې مونږ دا قرآنی مثالونه دخلقو دپاره بیانو او په دې مثالونو صرف غوراوفکروالا عالمان پوهیږی الله تعالی اسمانونه اوزمکې برحق یعنی بامقصده پیدا کړی دی بیشکه په دې کښې دمؤمنانو دپاره دالله تعالی په قدرت باندې لوئې لوئې دلیلونه دی، مؤمنین ئې په خاصه توګه څکه ذکرکړل چه ددې دلائلونه په ایمان کښې صرف هم مومن فائده اغستلی شی، په خلاف دکافرانو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:اسحاق ویعقوب:** په سورة هود کښې ددوؤ خبرودزیری ذکر دې، داسحاق اود یعقوب دولادت دزیری ذکر، اودقوم لوط دهلاکت خبر، لیکن دلته کښې شارح په یوباندې اکتفاء اوکړه ګویا چه دسابق تفصیل دوجې نه ئې دلته په اجمال باندې اکتفاء اوکړه، داحقرپه خیال کښې د، بعده، په ځائ که شارح، ولده، وئیلی وونودابه ډیره مناسبه وه

ځکه چه حضرت يعقوب عليه السلام دحضرت ابراهيم عليه السلام نوسي وو، دبعد ضمير دحضرت اسحاق عليه السلام طرف ته راجع دي يعنى حضرت ابراهيم عليه السلام له د اسحاق اوداسحاق نه پس دحضرت يعقوب عليه السلام زيرى وركړى شونودي نه داوهم چه حضرت يعقوب عليه السلام هم داحضرت ابراهيم عليه السلام خوئي دي حالانکه حضرت يعقوب دهغوى نوسي دي.

**قوله: قرية لوط:** ددې کلى نوم سدوم وو (جمل) په ځنې کتابونو کښې سدوم په دال سره دې، دادقوم لوط دکلومرکزى مقام وو، حضرت لوط عليه السلام هم په دې کلى کښې اوسيدلو.

**قوله:** كـانت من الغـابرين اى فى علم الله الازلى.

**قوله: سيئ بهم:** ددې تفسيرئې په حزن بسببهم سره اوکړو، چه دې طرف ته اشاره اوشى چه د سيئ دضمير مرجع حضرت لوط عليه السلام دي قاضى بيضاوى دسيئ ضمير مرجع مصدرمساة گرځولې دې اى جاءت المساءة بهم خو شارح اول توجيه اختيارکړې ده او دې خبرې طرف ته هم اشاره ده چه په. بهم کښې، باء، سببيه ده

**قوله: ذرعاً صدرا:** د ذرعاً تفسير په صدراً سره کولو کښې دې طرف ته اشاره ده چه داتفسير دحاصل معنى په ذريعه سره دې ګنى نو د ذرعاً معنى خو په قوت اوطاقت سره راځى، دارنګ ذرعاً د ضاق د نسبت نه تميزدې چه هغه دفاعل نه منتقل شوى دې نوتقديردعبارت به داسې شى، ضاق بامرهم.

**قوله: لقوم يعقلون:** د لقوم تعلق ترکنا يا باية بآينة سره کيدى شى، خودريم احتمال ظاهر دې.

**قوله: وارجوا اليوم الاخرة:** رجاء مشهوره معنى توقع او اميدده نو بعضې مفسرينو هم دامعنى مراد اخستى ده او ددې يو معنى ديرې هم ده، مفسر علام هم دغه معنى له ترجيح ورکړې ده، يعنى دقيامت په ورځ دالله تعالى نه اويريږئ، اوپه رومبى صورت کښې به معنى اومطلب داشى چه تاسو خلق دآخرت په ورځ داجر اوثواب اميد اوساتئ.

**قوله: من عثى:** دا (سين اونون) دواړه بابونو نه مستعمل دې ددې معنى ده فساد خورول.

**قوله: مفسدين:** دلاتعثوا دضمير نه حال مؤکده دې ځکه چه دعثى کومه معنى ده نو هم هغه معنى دافسد هم ده نوګويا چه دا د لاتولوا ف عطوفا دقبيل نه دې،

**قوله: الرجفة:** سخته زلزله، اوپه سورة هودکښې داسې راغلى دى فاخذتهم الصيحة په دواړو کښې هيڅ منافات نشته دې، حالانکه واقعه يوه ده ځکه چه دحضرت جبرائيل عليه السلام دآواز اوکړکې نه زلزله پيداشوه اودزلزلې دوجې نه هغوى هلاك شو،نوپه يوځائ کښې د عذاب اضافت سبب ته يعنى صيحة طرف ته اوشو اوبل ځائ کښې بل سبب يعنى رجفة ته اوشو

قوله: بالصرف وترکه: ددې دواړو تعلق صرف دثمود سره دی،

قوله: بالحجر: حجر ديووادي نوم دی، دا دمدينې اودشام په مينځ کښې واقع ده، دادقوم ثمودکلي وو، اوپه يمن کښې قوم عادآبادوو، دادواړه قومونه په عذاب الهي کښې تباه شوي وو.

قوله: ذوي بصائر: يعنی صاحب د بصيرت، عقلمند، تجربه کار، يعنی دوی څه ليوني اومجنونان نه وو بلکه ددنياپه کارونوکښې ښه هوښياران وو، نوکه چرې دوی غوښتل نو د توحيد او د آخرت په معامله کښې هم دوی دعقل نه کاراغستلې شو مګر د دنيا حرص اوقومی تعصب ددوی نه بې بصيرته جوړکړل،

قوله: قارون وفرعون: دلته کښې قارون مقدم کړې شو، حالانکه په سرکشۍ اوتکبر کښې فرعون دقارون نه ډيرزيات اوچت اوخطرناك وو، خو قارون چونکه دحضرت موسی عليه السلام رشته داروويعنی دتره خوئې ئې وونوددې وجې نه هغه ته يو قسمه شرف اوعزت حاصل وو، نو هم ددې وجې نه ئې قارون په فرعون باندې مقدم کړو،

قوله: العنکبوت: بيت العنکبوت ددې نه دجولا ګی جالا مراده ده، جولا ګې په څوقسمه باندې دی، دلته کښې هغه جولا ګې مراددې چه هغه په عامه توګه په کورونوکښې جالې اچوی، په صاوی کښې دی چه دجولا ګی اته خپې اوشپږ سترګې وی، دې په قانع ترين حيواناتو کښې دې، په خپله جاله کښې ښه په صبراوقناعت سره ناست وی، الله تعالی ده ده دصبراوقناعت دوجې نه دټولونه حريص ترين حيوان، مچ اوماشې ددې خوراك جوړ کړې دی، چه هغه ددې په جاله کښې ګيرشی اودده خوراك اوغذا جوړه شی، په عنکبوت کښې نون اصلی دې او واو او تاء پکښې زائددی، ددې وجې نه ددې جمع عناکب اوتصغير عنيکب راځی، ددې اطلاق په واحد، جمع، مذکر، اومونث په ټولو باندې کيږی، اګرچه کثيرالاستعمال په تانيث کښې دې.

قوله: ماعبدوها: دلوکانوايعلمون جزاء ده،

قوله: ما بمعنی الذي: ما د، يعلم، مفعول دی ای يعلم الذين يدعونهم اوځنی حضراتو ما استفهاميه توبيخيه مراداخستی ده، نوپه ددې صورت کښې به مايدعون من دونه من شیء ديعلم او د وهوالعزيزالحکيم په مينځ کښې جمله معترضه شی.

قوله: محقاً: سره دې خبری ته اشاره ده چه بالحق جار مجرور دملابست دپاره دی اودلفظ دالله نه حال دی ای محقاً غيرقاصد به باطلاً،

## پاره نمبر ۲۱ [اُتْلُ مَا]

## [ایاتونه: ۴۵ - ۵۱]

﴿اُتْلُ مَا اُوحِيَ اِلَيْكَ مِنَ الْكِتَابِ﴾ الْقرآن ﴿وَاَقِمِ الصَّلَاةَ اِنَّ الصَّلَاةَ تَنْهَى عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنْكَرِ﴾ شَرْعًا اَيْ مِنْ شَأنِهَا ذٰلِكَ مَا دَامَ الْمَرْءُ فِيهَا ﴿وَلَذِكْرُ اللّٰهِ اَكْبَرُ﴾ مِنْ غيره من الطاعات ﴿وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَصْنَعُونَ﴾ فَيُجَازِيكُمْ بِهِ ﴿وَلَا تُجَادِلُوا اَهْلَ الْكِتَابِ اِلَّا بِالَّتِي﴾ اَيْ الْمُجَادَلَة الَّتِي ﴿هِيَ اَحْسَنُ﴾ كَالدُّعَاءِ اِلَى اللّٰه بِآيَاتِهِ وَالتَّنْبِيه عَلَى حُجَجِه ﴿اِلَّا الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْهُمْ﴾ بِاَنْ حَارَبُوا وَاَبَوْا اَنْ يُقِرُّوا بِالْجِزْيَةِ فَجَادِلُوهُمْ بِالسَّيْفِ حَتّٰى يُسْلِمُوا اَوْ يُعْطُوا الْجِزْيَة ﴿وَقُولُوا﴾ لِمَنْ قَبِلَ الْاِقْرَار بِالْجِزْيَةِ اِذَا اَخْبَرُوكُمْ بِشَيْءٍ مِمَّا فِي كُتُبِهِمْ ﴿آمَنَّا بِالَّذِي اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَاُنْزِلَ اِلَيْكُمْ﴾ وَلَا تُصَدِّقُوهُمْ وَلَا تُكَذِّبُوهُمْ فِي ذٰلِكَ ﴿وَاِلٰهُنَا وَاِلٰهُكُمْ وَاحِدٌ وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ﴾ مطيعون ﴿وَكَذٰلِكَ اَنْزَلْنَا اِلَيْكَ الْكِتَابَ﴾ الْقرآن كَمَا اَنْزَلْنَا اِلَيْهِمْ التَّوْرَاة وَغَيْرهَا ﴿فَالَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ﴾ التَّوْرَاة كَعَبْدِ اللّٰه بن سَلَام وَغَيْره ﴿يُؤْمِنُونَ بِهِ﴾ بِالْقرآن ﴿وَمِنْ هٰؤُلَاءِ﴾ اَهْل مَكَّة ﴿مَنْ يُؤْمِنُ بِهِ وَمَا يَجْحَدُ بِآيَاتِنَا﴾ بَعْد ظُهُورهَا ﴿اِلَّا الْكَافِرُونَ﴾ اَيْ الْيَهُود وَظَهَرَ لَهُمْ اَنَّ الْقرآن حَقّ وَالْجَائِي بِهِ مُحِقّ وَجَحَدُوا ذٰلِكَ ﴿وَمَا كُنْتَ تَتْلُو مِنْ قَبْلِهِ﴾ اَيْ الْقرآن ﴿مِنْ كِتَابٍ وَلَا تَخُطُّهُ بِيَمِينِكَ اِذًا﴾ اَيْ لَوْ كُنْت قَارِئًا كَاتِبًا ﴿لَارْتَابَ﴾ شَكَّ ﴿الْمُبْطِلُونَ﴾ اَيْ الْيَهُود فِيك وَقَالُوا الَّذِي فِي التَّوْرَاة اَنَّهُ اُمِّيّ لَا يَقْرَأ وَلَا يَكْتُب ﴿بَلْ هُوَ﴾ اَيْ الْقرآن الَّذِي جِئْت بِهِ ﴿آيَاتٌ بَيِّنَاتٌ فِي صُدُورِ الَّذِينَ اُوتُوا الْعِلْمَ﴾ اَيْ الْمُؤْمِنُونَ يَحْفَظُونَهُ ﴿وَمَا يَجْحَدُ بِآيَاتِنَا اِلَّا الظَّالِمُونَ﴾ اَيْ الْيَهُود وَجَحَدُوهَا بَعْد ظُهُورهَا لَهُمْ ﴿وَقَالُوا﴾ اَيْ كُفَّار مَكَّة ﴿لَوْلَا﴾ هَلَّا ﴿اُنْزِلَ عَلَيْهِ﴾ اَيْ عَلَى مُحَمَّد ﴿آيَةٌ مِنْ رَبِّهِ﴾ وَفِي قِرَاءَة آيَات كَنَاقَةِ صَالِح وَعَصَا مُوسَى وَمَائِدَة عِيسَى ﴿قُلْ﴾ لَهُمْ ﴿اِنَّمَا الْآيَاتُ عِنْدَ اللّٰهِ﴾ يُنَزِّلهَا كَيْفَ يَشَاء ﴿وَاِنَّمَا اَنَا نَذِيرٌ مُبِينٌ﴾ مظهر اِنْذاري بالنار اهل المعصية ﴿اَوَلَمْ يَكْفِهِمْ﴾ فِيمَا طَلَبُوا ﴿اَنَّا اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ﴾ الْقرآن ﴿يُتْلَى عَلَيْهِمْ﴾ فَهُوَ آيَة مُسْتَمِرَّة لَا انْقِضَاء لَهَا بِخِلَافِ مَا ذُكِرَ مِنَ الْآيَات ﴿اِنَّ فِي ذٰلِكَ﴾ الْكِتَاب ﴿لَرَحْمَةً وَذِكْرٰى﴾ عظة ﴿لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ﴾

**ترجمه:** کوم کتاب چه په تاسوباندې یعنی قرآن نازل کړې شوی دې تاسودا لولې اودمونځ پابندی کوئې یقیناً بیشکه مونځ دبې حیائې اوشرعاً نارواکارونونه منع کونکې دې یعنی دمونځ شان دادې ترسو پورې چه انسان په مانځه کښې وی بیشکه دالله تعالی ذکر دنورو نیکوکارونوپه مقابله کښې ډیرلوئې څیزدې اوتاسوچه څه کوئې الله تعالی ددې نه ښه خبرداردې ددې به هغه تاسوله جزاء درکوی اواهل کتابوسره جګړه مه کوئ مګر په مهذب طریقې سره مثلاً دالله دطرف ته دهغه په آیاتونو سره دعوت ورکړئې اودهغې په دلا ئلو باندې تنبیه اوکړئې مګرهغه چا سره کوم چه په دوی کښې زیاتې اوکړی داسې چه هغوی محاربه (جنګ) اوکړی یادجزیې نه انکاراوکړی نوداسې خلقوسره په توره باندې جهاداوکړئې تردې پورې چه یاخواسلام قبول کړی اویاجزیه ورکول منظورکړی،

اوکوم کسانو چه د جزیې ورکولو اقرار کړې دې نو چه کله هغوی خپلو کتابونو نه تاسو ته دخه خبرې خبردرکړی نو تاسو ورته او وائې چه زمونږ خو په هغه کتاب باندې ایمان دې کوم چه په مونږ باندې نازل کړې شوې دې او په هغه هم کوم چه په تاسو باندې نازل کړې شوې دې او د دې خبر په باره کښې مه ددوی تصدیق کوئ اونه تکذیب اوزمونږاوستاسو معبودیو دې او مونږټول دهغه حکم منونکې یو یعنی دهغه اطاعت گزاریو اومونږ هم دغه شان په تاسو باندې کتاب یعنی قرآن نازل کړې دې لکه څنګه چه په دوی باندې تورات وغیره نازل کړې وو، نوکوموخلقو ته چه مونږکتاب تورات ورکړې دې لکه عبد الله بن سلام وغیره نوهغوی په دې کتاب یعنی قرآن باندې هم ایمان راوړې دې اودې خلقو یعنی په اهل مکه کښې ځنې داسې دی چه په قرآن باندې ئې ایمان راوړې دې اوزمونږ دآیتونونه د دې د ظاهریدونه پس سوا دکافرانو نه یعنی دیهودیانو نه هیڅ څوک هم منکرنشته دې اوپه دوی باندې داظاهره شوه چه قرآن حق دې اوددې راوړونکې هم په حقه باندې دې بیاهم ددې منکر شول تاسوددې کتاب یعنی د قرآن نه مخکښې بل هیڅ یو کتاب نه وو وئیلې اونه تاسو په خپل لاس باندې یو کتاب لیکلې وو کنې که چرته تاسو لیکل اولوستل پیژندل نودې باطل پرستو یهودیانو به ستاسو په باره کښې ضرورشک کولو او وئیل به ئې چه دکوم راتلونکی نبی ذکر په تورات کښې راغلی دې نوهغه خوبه امی وی، لیکل اولوستل وغیره هیڅ څیز به نه پیژنی (اودانبی خو لیکل او لوستل پیژنی) بلکه دا قرآن کوم چه تاسو راوړې دې پخپله دهغه خلقو په زړه کښې چاته چه علم ورکړې شوې دې یعنی مومنان کوم چه ددې قرآن حفاظت کوی واضح اوښکاره دلیلونه دی اوزمونږ دآیتونونه سوا دظالمانو نه څوک هم منکرنه دی یهودیانو ددې خبرې باوجود چه دا آیتونونه ښه ښکاره او واضح دې خوبیائې هم انکار اوکړو، دمکې کافرانو اووئیل چه ولې په محمد باندې یوه نښه دده درب دطرف نه نازله نه شوه اوپه یو قراءت کښې دآیت په ځائې آیات راغلی دی، لکه د صالح علیه السلام اوښه، او دموسی علیه السلام کونتې، او دعیسی علیه السلام دسترخوان، تاسو ورته اووائې چه نښې خو دالله تعالی په اختیارکښې دی چه په چاباندې ئې غواړی نو په هغوی باندې ئې نازل کړی زه خوصفاصفا ویرونکې یمه زه ګناهګاران دجهنم داورنه ویروم نو آیا دوی ته د خپلې مطالبې په سلسله کښې دکافی نه ده چه مونږ داقرآن په تاسو باندې نازل کړې دې کوم چه دوی باندې اوروِلی شی داکتاب خو داسې نښه ده چه دابه همیشه پاتې وی اوکله به هم ختم نشی، بخلاف دهغه نښو دکومو چه شاته ذکر اوکړې شو په دې کتاب کښې رحمت هم دې اونصیحت هم دې دایمان والو دپاره.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله: اتل ما اوحی الیك** : اې محمد چه کله تاسوته دخپل قوم دایمان نه راوړلو افسوس اوغم وی نو تاسو دقرآن تلاوت کوئې، نوتاسوته به په دې خبرې تسلی ملاویږی چه

حضرت نوح او حضرت لوط (علیهما السلام) ته هم داسې قسمه حالات راپیښ شوی وو، ځکه چه تاسو ته راپیښ شوی دی یار اپیښیدونکی دی، دارنګ هغوی درسالت په تبلیغ کښې اوددلا ئلو په قائمولو کښې دډیرزیات محنت او مبالغې نه کاراخستې وو، خو ددې باوجود هغوی خپل قومونه دضلالت اودجهالت نه بچ نه کړې شونو چه کله تاسو دقرآن تلاوت کوئې او دانبیاؤ مذکورینو حالات تاسو ته معلومیږی نو تاسو ته به د دې په ذریعې سره تسلی ملا ویږی،

**قوله: الفحشاء والمنكر:**، فحش، هغه بدکارته وئیلی شی چه شریعت هغې ته بد وئیلی وی او دشریعت په نظرکښې هغه بدوی اګرکه په عام عرف کښې خلق هغه ښه ګڼړی.

**قوله: مادام المرء فيها:** دایوقول دې ورنه صحیح خبره داده چه دفواحشو اومنکر اتونه منع کول دمونځ خاصه ده خو په دې شرط چه مونځ کښې دشرائطو اود آدابو رعایت اوساتلې شی، اوپه پابندې سره اوکړې شی، که چرته څوک دمانځه دپابندې باوجوددفواحشو نه نه منع کیږی نو هغه دې په دې خبره باندې پوهه شی چه دهغه په مانځه کښې دشرائطو اود آدابو په لحاظ سره کمې دې، نو قصور او کمې دده دطرفه دې، دمونځ په خاصیت کښې دځه قسمه کمې نشته دې،

**قوله: كعبدالله بن سلام:** داسبقت قلم دې ځکه چه داسورت مکی دې، اوحضرت عبدالله بن سلام په مدینه کښې اسلام راوړې دې لهذا عبدالله بن سلام په مثال کښې پیش کول درست نه دی، البته دامکن ده چه داخبار بالغیب په توګه الله تعالی دحضرت عبدالله بن سلام دایمان خبرورکړې وی،

**قوله: من كتاب:** من كتاب دتتلوامفعول دې اومن زائده دې،

**قوله: لوكنت قارئا كاتبا:** دالف نشر مرتب دې،

**قوله: اليهود:** د مبطلون په تفسیرکښې دیهودوتخصیص مناسب نه دې ځکه چه دنصارٰی هم داحال وو نو که د اليهودپه ځائې باندې کالیهودوئیلې شوی وونو ډیره به مناسبه وه ددې دپاره چه دیهودونه علاوه هرمنکرِ قرآن ته شامل شی،

**قوله: اولم يكفهم:** همزه محذوف بلندې داخل دې او واؤ عاطفه دې او یکفهم معطوف دې په محذوف باندې نوتقدیرد عبارت به داسې شی، اجهلوا ولم يكفهم، لودا استفهام توبیخی دې،

**قوله: انا انزلنا:** انّ اوپه ځۀ چه انّ داخل ده دمصدرپه تاویل دیکف فاعل دې نو تقدیر د عبارت به داسې شی اولم يكفهم انزالنا،

[ایاتونه: ۵۲ـ۶۳]

(قُلْ كَفَىٰ بِاللَّهِ بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ شَهِيدًا) بِصِدْقِي (يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ) وَمِنْهُ حَالِي وَحَالُكُمْ (وَالَّذِينَ آمَنُوا بِالْبَاطِلِ) وَهُوَ مَا يُعْبَدُ مِنْ دُونِ اللَّهِ (وَكَفَرُوا بِاللَّهِ) مِنْكُمْ (أُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ) فِي صَفْقَتِهِمْ حَيْثُ اشْتَرَوْا الْكُفْرَ بِالإِيمَانِ (وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ وَلَوْلَا أَجَلٌ مُسَمًّى) لَهُ (لَجَاءَهُمُ الْعَذَابُ) عَاجِلًا (وَلَيَأْتِيَنَّهُمْ بَغْتَةً وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ) بِوَقْتِ إِتْيَانِهِ (يَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ) فِي الدُّنْيَا (وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيطَةٌ بِالْكَافِرِينَ) (يَوْمَ يَغْشَاهُمُ الْعَذَابُ مِنْ فَوْقِهِمْ وَمِنْ تَحْتِ أَرْجُلِهِمْ وَيَقُولُ) فِيهِ بِالنُّونِ أَيْ نَأْمُرُ بِالْقَوْلِ وَبِالْيَاءِ يَقُولُ أَيِ الْمُوَكَّلُ بِالْعَذَابِ (ذُوقُوا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ) أَيْ جَزَاءَهُ فَلَا تَفُوتُونَنَا (يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّ أَرْضِي وَاسِعَةٌ فَإِيَّايَ فَاعْبُدُونِ) فِي أَيِّ أَرْضٍ تَيَسَّرَتْ فِيهَا الْعِبَادَةُ بِأَنْ تُهَاجِرُوا إِلَيْهَا مِنْ أَرْضٍ لَمْ تَتَيَسَّرْ فِيهَا نَزَلَ فِي ضُعَفَاءِ مُسْلِمِي مَكَّةَ كَانُوا فِي ضِيقٍ مِنْ إِظْهَارِ الْإِسْلَامِ بِهَا (كُلُّ نَفْسٍ ذَائِقَةُ الْمَوْتِ ثُمَّ إِلَيْنَا تُرْجَعُونَ) بِالتَّاءِ وَالْيَاءِ بَعْدَ الْبَعْثِ (وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَنُبَوِّئَنَّهُمْ) نُنْزِلَنَّهُمْ وَفِي قِرَاءَةٍ بِالْمُثَلَّثَةِ بَعْدَ النُّونِ مِنَ الثَّوَاءِ الْإِقَامَةُ وَتَعْدِيَتُهُ إِلَى غُرَفًا بِحَذْفِ فِي (مِنَ الْجَنَّةِ غُرَفًا تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ) مُقَدَّرِينَ الْخُلُودَ (فِيهَا نِعْمَ أَجْرُ الْعَامِلِينَ) هَذَا الْأَجْرُ هُمُ (الَّذِينَ صَبَرُوا) أَيْ عَلَى أَذَى الْمُشْرِكِينَ وَالْهِجْرَةِ لِإِظْهَارِ الدِّينِ (وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ) فَيَرْزُقُهُمْ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُونَ (وَكَأَيِّنْ) كَمْ (مِنْ دَابَّةٍ لَا تَحْمِلُ رِزْقَهَا) لِضَعْفِهَا (اللَّهُ يَرْزُقُهَا وَإِيَّاكُمْ) أَيُّهَا الْمُهَاجِرُونَ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَعَكُمْ زَادٌ وَلَا نَفَقَةٌ (وَهُوَ السَّمِيعُ) لِأَقْوَالِكُمْ (الْعَلِيمُ) بِضَمَائِرِكُمْ (وَلَئِنْ) لَامُ قَسَمٍ (سَأَلْتَهُمْ) أَيِ الْكُفَّارَ (مَنْ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَيَقُولُنَّ اللَّهُ فَأَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ) يُصْرَفُونَ عَنْ تَوْحِيدِهِ بَعْدَ إِقْرَارِهِمْ بِذَلِكَ (اللَّهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ) يُوَسِّعُهُ (لِمَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ) امْتِحَانًا (وَيَقْدِرُ) يُضَيِّقُ (لَهُ) بَعْدَ الْبَسْطِ أَوْ لِمَنْ يَشَاءُ ابْتِلَاءً (إِنَّ اللَّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ) وَمِنْهُ مَحَلُّ الْبَسْطِ وَالتَّضْيِيقِ (وَلَئِنْ) لَامُ قَسَمٍ (سَأَلْتَهُمْ مَنْ نَزَّلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا لَيَقُولُنَّ اللَّهُ) فَكَيْفَ يُشْرِكُونَ بِهِ (قُلْ) لَهُمْ (الْحَمْدُ لِلَّهِ) عَلَى ثُبُوتِ الْحُجَّةِ عَلَيْكُمْ (بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ) تَنَاقُضَهُمْ فِي ذَلِكَ

**ترجمه:** تاسو ورته اووایئ چه الله تعالی زما او ستاسو په مینځ کښې زما په رښتینو الی باندې ګواه کافی دی په آسمانونو او په زمکو کښې چه څه دي هغه ته ددې دهريو خبري علم دې او هم په هغې کښې زما او ستاسو حال هم دي او کوم خلق چه په باطل باندې او هغه د الله نه علاوه هر هغه څیز دې د کوم چه عبادت کولی شي یقین ساتی او په تاسو کښې د الله تعالی نه منکرین دی هم داخلق دی چه کوم په خپله سودا کښې نقصان او چتونکی دی په دې توګه چه هغوی د ایمان په بدله کښې کفر اختیار کړو او داخلق تاسو نه دعذاب په باره کښې تلوار کوی او که چرې دعذاب مدت متعین نه وو نو په دوی به زر ترزره عذاب راغلې وو او په دوی باندې به هغه عذاب دفعة یعنی په یو خل راځی او دوی ته به ددې عذاب دراتللو خبرهم نه وی داخلق تاسو نه په دنیا کښې دعذاب تقاضا کوی نو تاسو لره تسلی ساتې بیشکه جهنم کافرانو لره راګیرونکې دې په

کومه ورځ چه به داخلق عذاب دبره نه اودلاندې نه راگیرکړی دعذاب ذمه دارې فرښتې به اووائې دخپلو عملونوجزااوڅکې به بقول کښې نون اویا دواړه دی که نون وی نو مطلب به داشی چه مونږ به فرښتو ته ددې خبرې حکم ورکوونو زمونږ نه به دوی بچ نه شی، اې زما ایماندار بندگانو زمکه ډیره فراخه ده نوهم زماعبادت اوکړئې چه په کوم ځائې کښې هم عبادت آسان وی نوکه په دې زمکه کښې عبادت کول آسان نه وی نو چه په کوم ځائې کښې عبادت آسان وی نوهلته هجرت اوکړئې (یعنی چه په کوم ځائې کښې عبادت کول آسان وی) داایت دمکې دکمزورې مسلمانانو په باره کښې نازل شوی دې کوم چه په مکه مکرمه کښې داسلام دظاهرولوپه وجه په تنگې اوپه سختې کښې وو، هرژندی سری به دمرگ مزه څکې بیابه تاسو ټول دژوندې کیدونه پس زمونږ طرف ته واپس کولې شئ، ترجعون به تاء او یاء دواړو سره دې او کومو خلقو چه ایمان راوړلو اونیک عملونه ئې اوکړل نومونږ به دوی له دجنت په بالاخانو کښې ځایونه ورکړوچه د هغې دلاندې به نهرونه بهیږی اودجنت به بالاخانوکښې به همیشه همیشه اوسیږی یعنی مونږ ددوی دپاره دجنت په بالاخانوکښې همیشه همیشه اوسیدل لیکلی دی دعمل کونکواجرڅومره ښائسته دې دا اجر، دا هغه خلق دی چه هغوی دمشرکینو په تکلیفونو باندې اوددین په اظهارباندې صبر اوکړو او په خپل رب باندې توکل کوی نوهغه به دوی له په داسې طریقې باندې رزق ورکړی چه ددوی به وهم اوگمان هم نه وی اوډیرځناور داسی دی چه هغوی دخپلې کمزورې دوجې نه خپل رزق اچتولې نه شی، اې هجرت کونکوالله تعالی به تاسوله هم رزق درکړی او هغوی له به هم اگرکه تاسو سره دلارې خرچه او دخوراك دپاره څه نه وی هغه ستاسوخبرې اوریدلووالا دې اوستاسو دزړونو رازونه پیژندلو والا دې اوکه چرته تاسوددوی نه یعنی د کافرانونه تپوس اوکړئې چه داآسمانونه اوزمکې چاپیدا کړی دی؟ اونمر اوسپوږمې چامسخرکړې دی؟ ولئن کښې لام قسم دې نویقیناً دوی به هم دغه جواب درکوی چه الله پیدا کړې دی نوبیا دا خلق د توحید د اقرارکولو نه پس کوم خواه الوړی روان دی؟ الله تعالی په خپل بندگانو کښې چه دچادپاره اوغواړی دآزمائش په توگه دهغوی رزق فراخه کړی اودفراخه کولو نه پس دهغوی رزق تنگ کړی یادآزمینبت په توگه چه دچادپاره اوغواړی نورزق ورله تنگ کړی بیشکه الله تعالی دهرڅیز په حال باندې خبردار دې اوهم په دغه (معلوم) شی کښې درزق دفراخه کولو او د تنگولو محل هم دې اوکه چرته تاسو د دوی نه تپوس اوکړئ چه هغه کوم ذات دې چه د آسمانه ئې اوبه راوورولې اوددې اوبو په ذریعه ئې زمکه داوچیدونه پس تروتازه کړه؟ نویقیناً دوی به هم داجواب درکوی چه الله تعالی دااوکړل نوبیاهغه سره ولې خلق شریکان جوړه وی؟ تاسواووائې چه په تاسوباندې حجت ثابتولونه پس الحمدلله، بلکه په دوی کښې اکثرخلق په دې معامله کښې (په خپل قول کښې) په تناقض هم نه پوهیږی،

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: صفقة: په لاس باندې لاس وهل، لاسونه پرقول، دعربوعادت ووچه دبيع تماميدل ظاهرولو د پاره به ئې دبيع په اخره كښې د يو بل په لاس لاس باندې لاس وهلو، دلته كښې مطلقاً بيع مراده ده، كوم ته چه دتجارت په اصطلاح كښې سودا وئيلى شى،

قوله: فاياى فاعبدون: اياى د ماقبل محذوف فعل دوجې نه منصوب دې اوددې نه روستوفعل ددې تفسيركوى نوتقدير دعبارت به داشى، فاعبدوااياى فاعبدون

قوله. لنبوئنهم: جمع متكلم لام تاكيدبانون تاكيدثقيله دې، بوّء، يبوّء، تبوئة (تفعيل) بوّءماده ده، معنى ئې ټهكانه وركول، ځائې درست كول، راځى، اوپه يو قراءت كښې لنثوينهم اى لننزلنهم نه مشتق دې په معنى داقامت سره، ددې دويم قراءت مطابق غرفاً به مفعول به وى، نثوى دنتزل معنى لره متضمن كيدودوجې نه، نوپه دې صورت كښې دبه نتزل معنى لره د متضمن كيدو دوجې نه متعدى بدومفعول وى، مفعول اول به هم ضميروى اودويم مفعول به غرفاً وى خود فى په تقديرسره، اى فى غرف من الجنة اوپه ړومبى قراءت كښې غرفاً مفعول ثانى دې اوهم مفعول اول دې څكه چه بوأ متعدى بدومفعول دې، قال الله تعالى تبوّى المومنين مقاعد للقتال، اوكله كله متعدى وى په لام سره كماقال الله تعالى واذ بوانالابراهيم مكان البيت،

قوله: تجري من تحتها الانهار: داجمله دغرفاً دپاره صفت دې،

قوله: والذين امنوا: مبتدأ ده اولنبوئنهم ددې خبردې او والذين امنوا دفعل محذوف دوجې نه منصوب هم كيدى شى، كوم باندې چه روستوراتلونكې فعل دلالت كوى په دې صورت كښې به دا دباب اشتغال نه وى،

قوله: مقدرين الخلود فيها: په دې كښې اشاره ده دې طرفته چه خالدين، حال مقدره دې، اى حين الدخول يقدرون الخلود،

قوله: هذا الاجر: دامخصوص بالمدح دې،

قوله: الذين صبروا: د هم مبتدأ محذوف خبردې لكه څنګه چه شارح ظاهر كړې دې اود العاملين صفت هم كيدې شى،

قوله: وكاين من دابة: كاين مبتدأ مميز، او من دابة ددې تميز، لاتحمل ددابة صفت، الله يرزقها توله جمله دكاين مبتدأ دپاره خبر،

**[اياتونه: ٦٤ _ ٦٩]**

{وَمَا هَٰذِهِ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا لَهْوٌ وَلَعِبٌ} وَأَمَّا الْقُرَبُ فَمِنْ أُمُورِ الْآخِرَةِ لِظُهُورِ ثَمَرَتِهَا فِيهَا {وَإِنَّ الدَّارَ الْآخِرَةَ لَهِيَ الْحَيَوَانُ} بِمَعْنَى الْحَيَاةِ {لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ} ذَلِكَ مَا آثَرُوا الدنيا عليها {فَإِذَا رَكِبُوا فِي الْفُلْكِ دَعَوُا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ} أَيِ الدُّعَاءَ أَيْ لَا يَدْعُونَ مَعَهُ غَيْرَهُ لِأَنَّهُمْ فِي شِدَّةٍ لَا يَكْشِفُهَا إِلَّا هُوَ {فَلَمَّا نَجَّاهُمْ إِلَى الْبَرِّ إِذَا هُمْ يُشْرِكُونَ} بِهِ {لِيَكْفُرُوا بِمَا آتَيْنَاهُمْ} مِنَ النِّعْمَةِ {وَلِيَتَمَتَّعُوا} بِاجْتِمَاعِهِمْ عَلَى عِبَادَةِ الْأَصْنَامِ وَفِي قِرَاءَةٍ بِسُكُونِ اللَّامِ امر تهديد {فسوف يعلمون} عاقبة ذلك {أَوَلَمْ يَرَوْا} يَعْلَمُوا {أَنَّا جَعَلْنَا} بَلَدَهُمْ مَكَّةَ {حَرَمًا آمِنًا وَيُتَخَطَّفُ النَّاسُ مِنْ حَوْلِهِمْ} قَتْلًا وَسَبْيًا دُونَهُمْ {أَفَبِالْبَاطِلِ} الصَّنَمِ {يُؤْمِنُونَ وَبِنِعْمَةِ اللَّهِ يَكْفُرُونَ} بِإِشراكهم {وَمَنْ أَظْلَمُ} أَيْ لَا أَحَدَ أَظْلَمُ {مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا} بِأَنْ أَشْرَكَ بِهِ {أَوْ كَذَّبَ بِالْحَقِّ} النَّبِيِّ أَوِ الْكِتَابِ {لَمَّا جَاءَهُ أَلَيْسَ فِي جَهَنَّمَ مَثْوًى} مَأْوًى {لِلْكَافِرِينَ} أَيْ فِيهِ ذَلِكَ وَهُوَ مِنْهُمْ {وَالَّذِينَ جَاهَدُوا فِينَا} فِي حَقِّنَا {لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا} اي طريق السَّيْرِ إِلَيْنَا {وَإِنَّ اللَّهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِينَ} الْمُؤْمِنِينَ بِالنَّصْرِ وَالْعَوْنِ

ترجمه: او دا دنيا ژوند دلوبو تپوقونه سواهيڅ څه نه دي البته عبادتونه نوهغه خودآخرت دامورو نه دی ځکه چه ددې ثمرات خوبه په آخرت کښې ظاهريږي، اواصلي ژوندخوهم دآخرت ژونددې که چرې دا خلق په خبره باندې زان پوهيدلې نو د دنيا ژوند له به ئې دآخرت په ژوند باندې ترجيح نه ورکوله، نوبياچه داخلق کله په کشتوکښې سواره شي نو په خالص اعتقادسره دالله تعالى نه دعاکوی يعنی هغه سره بل څوك شريك نه جوړوی، اوبل څوك نه رابلي ځکه چه دوی په دغه وخت کښې په يوه لوئې پريشانې کښې مبتلا وی، او دا پريشانی دالله تعالى نه علاوه بل څوك نه شی ختمولې، بياچه کله دوی ته نجات ورکړی او د خشکې طرف ته ئې راولي نوسمدستی د هغه سره شريکان جوړکړی ددې دپاره چه زمونږ د ورکړې شوی نعمت ناقدری اوکړی او چه داخلق دبتانوپه عبادت باندې راجمع شی اوله نوره فائده ترينه هم واخلی اوپه يوقراءت کښې وليتمتعوادلام په سکون سره امرتهديدی دې، دوی ته به زر ددې دانجام پته اولګی آيادوی ته علم نشته دې چه مونږه دمکې ښار امن والا جوړکړې دې اوددې په ارخونوکښې نورخلق دقتل اوقيدپه ذريعه باندې تختولې شی آياداخلق ددروغوپه معبودانو باندې ايمان روړی اوالله سره شريک کوی او د هغه دنعمت ناشکری کوی د هغه چا نه به لوئې ظالم بل څوک وی؟ يعنی ددې نه لوئې ظالم بل څوك هم نشته دې، چه کوم په الله تعالى باندې بهتان تړی په دې توګه چه هغه سره شرك کوی، ياچه کله دۀ ته حق يعنی نبی يا کتاب راشی نو دهغه تکذيب اوکړی نوآيا دکافرانو ځائې په جهنم کښې نه دې؟ اوداسې کس دجهنميانو نه دې اوکوم خلق چه خالص زمونږ دپاره جهادکوی نو مونږ به داسې خلقوته مونږ ته د رارسيدو لارې خامخاخايويښکه الله تعالى دخپل نصرت اومد په ذريعه سره احسان کونکو يعنی مومنانوسره دې،

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: اللهوا: ددنيادلذتونه خونداخستل، اوخنى حضراتو وئيلى دى چه لهوا په بې مطبله خيزونو كښې مشغول ليدلو ته وئيلى شى، اواللعب هوالعبث،

قوله حيوان: ژوند، ژوندتيرول، حوان، حى يحى (س) نه مصدردې اوپه اصل كښې، حَيَان وو نو دويمه، ياء، په واؤ سره بدل كړې شوه، دا د حياة نه زيات بليغ دې، خكه چه دفعلانٌ په وزن كښې دحركت اواضطراب معنى ده كوم چه د حياة لازمه ده، هم داوجه ده چه دلته كښې دحياة په خائې دحيوان لفظ استعمال كړې شو، (لغات القرآن)_

قوله: لوكانوايعلمون: ذلك، يعلمون دپاره مفعول دې لو حرف شرط دې او ما اثروا الدنيا عليها جواب شرط دې،

قوله: اي الدعاء: دا دمعنى دتعيين دپاره دې، ددين دلفظ مختلفې معانى راخى، نود، الدعاء، په ذريعه ئې خكه تفسير اوكړوچه په ډيرومعنوكښې يوه معنى متعين كړې شى،

قوله: اذا هم يشركون: دادفلما جواب دې مطلب دادې چه دغرقيدونه خنګه نجات اوموموى او سمدستى شرك شروع كړى،

قوله: ليكفروا: كښې لام، لام كى، دې اود ليتمتعوا عطف په ليكفروا باندې دې،

تنبيه: كه دلام كى په خائې دلته كښې دلام نه مراد لام د عاقبت واخستلى شى نوهغه به زيات مناسب وى (جمل) په يوقراء ت كښې دلام په سكون سره دې نو په دې صورت كښې به لام، لام امروى په دواړو فعلونو كښې، خودلته كښې بيا داشبه كيدې شى چه ددېنه خودا لازميږى چه الله تعالى دفعل قبيح امراوحكم كړې دې حالانكه الله تعالى خوحكيم ذات دې، اوحكيم خودقبيح حكم نه كوى، نو شارح امر تهديد وئيلو سره ددې سوال جواب وركړو، يعنى دامر نه مرادامردامتثال نه دې بلكه امرتوبيخ او تهديد مراد دې، اوفسوف يعلمون دادامردتهديدى كيدوقرينه ده،

قوله: ويتخطف: جمله حاليه ده اوددې نه وړاندې هم مبتدأ محذوف ده، نوتقدير دعبارت داسې دې، وهم يتخطف الناس،

قوله: فيها ذلك: په دې كښې اشاره دې طرف ته ده چه په اليس فى جهنم كښې همزه د انكار دپاره ده اودا استفهام تقريرى خكه دې چه، ليس، حرف نفى ده كله چه په دې باندې همزه انكارى داخله شى نو نفى النفى په ايجاب باندې دلالت كوى، نوپه دې كښې دتقرير معنى پيداشوه، مطلب دادې چه دكافرانوخائې بيشكه او بې شبه جهنم دې،

## [۳۰] سورة الروم

سورة الروم مَكِّيَّة و هي ستون او تسع و خمسون اية

سوره روم مکی دی او دا ۶۰ یا ۵۹ آیتونه دی.

[ایاتونه: ۱ ـ ۱۰]

بسم الله الرحمن الرحيم (الم) الله أعلم بمرادِهِ في ذَلِكَ (غُلِبَتِ الرُّومُ) وَهُمْ أَهْلِ الْكِتَابِ غَلَبَتْهَا فَارِس وَلَيْسُوا أَهْل كِتَاب بَلْ يَعْبُدُونَ الأَوْثَان فَفَرِحَ كُفَّار مَكَّة بِذَلِكَ وَقَالُوا لِلْمُسْلِمِينَ نَحْنُ نَغْلِبكُمْ كَمَا غَلَبَتْ فَارِس الرُّوم (فِي أَدْنَى الْأَرْضِ) أَيْ أَقْرَب أَرْض الرُّوم إِلَى فَارِس بِالْجَزِيرَةِ الْتَقَى فِيهَا الْجَيْشَانِ وَالْبَادِي بِالْغَزْوِ الْفُرْس (وَهُمْ) أَيْ الرُّوم (مِنْ بَعْدِ غَلَبِهِمْ) أُضِيفَ الْمَصْدَر إِلَى الْمَفْعُول أَيْ غَلَبَة فَارِس إِيَّاهُمْ (سَيَغْلِبُونَ) فَارِس (فِي بِضْعِ سِنِينَ) هُوَ مَا بَيْن الثَّلَاث إِلَى التِّسْع أَوْ الْعَشْر فَالْتَقَى الْجَيْشَانِ فِي السَّنَة السَّابِعَة مِنْ الِالْتِقَاء الْأَوَّل وَغَلَبَتْ الرُّوم فَارِس (لِلَّهِ الْأَمْرُ مِنْ قَبْلُ وَمِنْ بَعْدُ) أَيْ مِنْ قَبْل غَلَب الرُّوم وَمِنْ بَعْده الْمَعْنَى أَنَّ غَلَبَة فَارِس أَوَّلًا وَغَلَبَة الرُّوم ثَانِيًا بِأَمْرِ اللَّه أَيْ إِرَادَته (وَيَوْمَئِذٍ) أَيْ يوم تغلب الروم (يفرح المؤمنون) (بِنَصْرِ اللَّهِ) إِيَّاهُمْ عَلَى فَارِس وَقَدْ فَرِحُوا بِذَلِكَ وَعَلِمُوا بِهِ يَوْم وُقُوعه يَوْم بَدْر بِنُزُولِ جِبْرِيل بِذَلِكَ مَعَ فَرَحهمْ بِنَصْرِهِمْ عَلَى الْمُشْرِكِينَ فِيهِ (يَنْصُرُ مَنْ يَشَاءُ وَهُوَ الْعَزِيزُ) الْغَالِب (الرَّحِيمُ) بِالْمُؤْمِنِينَ (وَعْدَ اللَّهِ) مَصْدَر بَدَل مِنْ اللَّفْظ بِفِعْلِهِ وَالْأَصْل وَعَدَهُمْ اللَّه النَّصْر (لَا يُخْلِفُ اللَّهُ وَعْدَهُ) بِهِ (وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ) أَيْ كُفَّار مَكَّة (لَا يَعْلَمُونَ) وَعْده تَعَالَى بِنَصْرِهِمْ (يَعْلَمُونَ ظَاهِرًا مِنَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا) أَيْ مَعَايِشهَا مِنْ التِّجَارَة وَالزِّرَاعَة وَالْبِنَاء وَالْغَرْس وَغَيْر ذَلِكَ (وَهُمْ عَنِ الْآخِرَةِ هُمْ غَافِلُونَ) إِعَادَة هُمْ تَاكيد (أَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوا فِي أَنْفُسِهِمْ) لِيَرْجِعُوا عَنْ غَفْلَتهمْ (مَا خَلَقَ اللَّهُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا إِلَّا بِالْحَقِّ وَأَجَلٍ مُسَمًّى) لِذَلِكَ تَفْنَى عِنْد انْتِهَائِهِ وَبَعْده الْبَعْث (وَإِنَّ كَثِيرًا مِنَ النَّاسِ) أَيْ كُفَّار مَكَّة (بِلِقَاءِ رَبِّهِمْ لَكَافِرُونَ) أَيْ لَا يُؤْمِنُونَ بالبعث بعد الموت (أَوَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَيَنْظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ) مِنْ الْأُمَم وَهِيَ إِهْلَاكهمْ بِتَكْذِيبِهِمْ رُسُلهمْ (كَانُوا أَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً) كَعَادٍ وَثَمُود (وَأَثَارُوا الْأَرْضَ) حَرَثُوهَا وَقَلَبُوهَا لِلزَّرْعِ وَالْغَرْس (وَعَمَرُوهَا أَكْثَرَ مِمَّا عَمَرُوهَا) أَيْ كُفَّار مَكَّة (وَجَاءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ) بِالْحُجَجِ الظَّاهِرَات (فَمَا كَانَ اللَّهُ لِيَظْلِمَهُمْ) بِإِهْلَاكِهِمْ بِغَيْرِ جُرْم (وَلَكِنْ كَانُوا أَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ) بِتَكْذِيبِهِمْ رُسُلهمْ (ثُمَّ كَانَ عَاقِبَةَ الَّذِينَ أَسَاءُوا السُّوأَى) تَأْنِيث الْأَسْوَأ الْأَقْبَح خَبَر كَانَ عَلَى رَفْع عَاقِبَة وَاسْم كَانَ عَلَى نَصْب عَاقِبَة وَالْمُرَاد بِهَا جَهَنَّم وَإِسَاءَتهمْ (أَنْ) أَيْ بِأَنْ (كَذَّبُوا بِآيَاتِ اللَّهِ) القرآن (وكانوا بها يستهزءون)

**ترجمه:** الم ددې په مراد باندې الله تعالی ښه پوهیږي رومیان مغلوبه شول دوی اهل کتاب وودوی اهل فارس مغلوبه کړل اواهل فارس اهل کتاب نه وو، بلکه بت پرست وو، په ددې خبرې اهل مکه ډیرزیات خوشحاله شول، اومسلمانانو ته ئې اوونیل چه مونږ به تاسوهم دغه شان مغلوبه کړو لکه څنګه چه اهل فارس رومیان مغلوبه کړل، په نزدې زمکه

کښې يعنې دجزيره روم په هغه علاقه کښې کومه چه فارس ته ډيره زياته نزدې وه، هلته کښې ددوارولښکرو مقابله شوې وه اوهغوی يعنی روميان به دمغلوبه کيدونه پس دمصدر اضافت خپل مفعول طرف ته کړې شوې دې اې غلبة فارس اياهم، دجنګ شروع کونکې اهل فارس وو، عنقريب په يو څو کالو کښې په اهل فارس باندې غالب راشي اوهغه ددرې کالونه ترده نهه کالونو په مينځ کښې دې، نودروميې مقابلې نه اووه کاله پس دوباره دوارولښکرونه دجنګ دپاره يو بل ته مخامخ شول، اوروميان په اهل فارس باندې غالبه شول، په روميې اوپه آخره کښې اختيارصرف د الله دې يعنې دروم دغلبې نه وړاندې اودروم دغلبې نه روستو، معنی داشوه چه داهل فارس غالب راتلل اووروستې دروميانو غالب راتلل په اهل فارس باندې داټول دالله په حکم او ارادې سره وو، اوپه دغه ورځ به يعنی چه کله روميان غالبه راغلل نومسلمانان داهل فارس په مقابله کښې روميانو سره دالله تعالی په امدادباندې خوشحاله شي نومسلمانان په دې واقعه باندې خوشحاله شول، اودددې نصرت (غلبې) علم ددبدر په ورځ حضرت جبرائيل عليه السلام دوحی په ذريعه سره اوخودلو، اودا خوشحالی مسلمانانوته په مشرکانو باندې دبدر په ورځ نصرت (غلبې) سره حاصله شوې وه، هغه چه دچا اوغواړی نوامداد ئې کوی هغه غالب دې په حقيقت کښې غالب اومهربان هم الله پاک دې دا الله وعده ده داپه تلفظ کښې دخپل فعل نه بدل کړې شوې دې په اصل کښې داسې عبارت دې وعدهم الله النصر الله تعالی په امداد کښې دخپلې وعدې خلاف ورزی نه کوی خو اکثرخلق يعنې دمکې کافران مؤمنانو سره دالله تعالی دنصرت په وعده نه پوهيږی هغوی خو صرف ددنيا د ژوند په ظاهر يعنی دمعاش په طريقوباندې مثلاً تجارت، زميندارې، تعميرات اوونې نال کول وغيره باندې ښه پوهيږی، اوهغوی دآخرت نه بالکل بې خبره دی اود (هم) دلفظ اعاده دتاکيددپاره ده، آيادې خلقو په خپلو زړونو کښې په دې خبرې باندې نه دې کړې؟ ددې دپاره چه دخپل غفلت نه منع شی، چه الله تعالی آسمان اوزمکه اوڅه چه ددې په مينځ کښې دی داټول خيزونه ئې په يوې قرينې اوديوټاکلې وخت دپاره پيداکړی دی اوهم داوجه ده چه د خپل مدت پوره کيدونه پس به سمدستی دټول څيزونه فناشی، او ددې نه پس به (ژوندی کيدو) نه پس دوباره راپاسيدل وی يقيناً اکثرخلق يعنی دمکې کافران دخپل رب دملاقات نه منکر دی يعنی دمرګ نه پس په ژوندی کيدوباندې يقين نه ساتی، آيادوی په زمکه کښې دګرځيدوسره دانه ګوری چه ددوی نه وړاندې خلق يعنی تيرشوی امتونه دهغوی څه انجام شو؟ اوهغه ددوی هلاکت دې درسولانو دتکذيب کرلودوجې نه اوهغوی ددوی نه ډيرطاقتوروو مثلاً عاداوثمود اوهغوی هم زمکه کرله اوزميندارې اوونې نال کولو دپاره به ئې زمکه نرموله اواړوله او دمکې والونه ئې ډيره آباده کړې وه اودوی له ددې رسولانوروښانه يعنی واضح دليلونه راوړلی وه، دا خو ناممکن ده

چه الله تعالى دوى بغير د جرم نه هلاک کړى او په دوى باندې ظلم او کړى ليکن اصل خبره دا ده چه دوى به پخپله په خپلو ځانونو باندې د پيغمبرانو د دروغژن ګنړلو د وجې نه ظلم کولو آخر د بدکارکونکو انجام هم ډير بد شو السُّوٰی، دلَسُوْءٰ تانيث دې په معنى د اقبح او که په عاقبة باندې رفع وى نو سواى به د کان خبر وى او د کان فعل تذکير به د عاقبة د مؤنث مجازى کيدو د وجې نه وى، او که چرې په عاقبة باندې نصب شى نو (السواى) به د، کان، اسم وى او دبد انجامې نه مراد جهنم دې، او ددوى دبد انجامې وجه دا شوه چه دوى دالله تعالى د آيتونو قرآن تکذيب او کړو او هغوى به په دې آيتونو پسې توقې او مسخرې کولې.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله غلبت الروم:** روم د يو قبيلې نوم دې، کوم چه ددوى د جد امجد يعنى (نيکه په ذريعه پشت کښې) روم بن عيصو بن اسحاق بن ابراهيم په نوم سره موسوم وو

**قوله: الجزيرة:** د دجله او دفرات مينځنې علاقې ته وئيلې شى. دلته کښې جزيرة العرب مرادنه دې.

**قوله: بالجزيرة:** د محذوف متعلق دې او د الارض د پاره صفت دې اى ارض الروم الکائنة بالجزيرة وقد فرحوا بذلك اى بنصره

**قوله: يوم وقوعه يوم بدر:** يوم بدر د يوم وقوعه نه بدل دې، بنزول دا دلموا سره متعلق دې يعنى د روم د غلبې علم دبدر د واقعې په ورځ او شو، روميانو ته هم په دې ورځ غلبه حاصله شوه او مسلمانانو ته په مشرکانو باندې دبدر په مقام کښې غلبه حاصله شوه، مسلمانانو ته دخبر د حضرت جبرائيل په ذريعه سره را اورسيدو.

**[اياتونه: ۱۱ ـ ۱۹]**

(اَللّٰهُ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ) أَيْ يُنْشِئُ خَلْقَ النَّاسِ (ثُمَّ يُعِيدُهُ) أَيْ خَلْقَهُمْ بَعْدَ مَوْتِهِمْ (ثُمَّ إِلَيْهِ يرجعون) بالياء والتاء (وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ يُبْلِسُ الْمُجْرِمُونَ) يَسْكُتُ الْمُشْرِكُونَ لانقطاع حجتهم (وَلَمْ يَكُنْ) أَيْ لَا يَكُونُ (لَّهُمْ مِّنْ شُرَكَائِهِمْ) مِمَّنْ أَشْرَكُوهُمْ بِاللّٰهِ وَهُمُ الْأَصْنَامُ لِيَشْفَعُوا لَهُمْ (شُفَعَاءُ وَكَانُوا) أَيْ يَكُونُونَ (بِشُرَكَائِهِمْ كَافِرِينَ) أَيْ مُتَبَرِّئِينَ مِنْهُمْ (وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ) تَأْكِيد (يَتَفَرَّقُونَ) الْمُؤْمِنُونَ والكافرون (فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فَهُمْ فِي رَوْضَةٍ) جَنَّة (يُحْبَرُونَ) يُسَرُّونَ (وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا) القرآن (وَلِقَاءِ الْآخِرَةِ) البعث وغيره (فَأُولٰئِكَ فِي الْعَذَابِ مُحْضَرُونَ) (فَسُبْحَانَ اللّٰهِ) أَيْ سَبِّحُوا اللّٰهَ بِمَعْنَى صَلُّوا (حِينَ تُمْسُونَ) أَيْ تَدْخُلُونَ فِي الْمَسَاءِ وَفِيهِ صَلَاتَانِ الْمَغْرِبُ وَالْعِشَاءُ (وَحِينَ تُصْبِحُونَ) تَدْخُلُونَ فِي الصَّبَاحِ وَفِيهِ صَلَاةُ الصُّبْحِ (وَلَهُ الْحَمْدُ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ) اعْتِرَاض وَمَعْنَاهُ يَحْمَدُهُ أَهْلُهُمَا (وَعَشِيًّا) عطف عَلَى حِين وَفِيهِ صَلَاةُ الْعَصْرِ (وَحِينَ تُظْهِرُونَ) تَدْخُلُونَ فِي الظَّهِيرَة وَفِيهِ صَلَاةُ الظُّهْرِ (يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ

النَّبت، كالإنسان مِن النُّطفة وَالطَّائِر مِن البَيضة ﴿وَيُخرِجُ الْمَيِّتَ﴾ النُّطفة وَالبَيضة ﴿مِنَ الْحَيِّ وَيُحْيِي الْأَرْضَ﴾ بالنبات ﴿بَعْدَ مَوْتِهَا﴾ أي يُبسها ﴿وَكَذَٰلِكَ﴾ الإخراج ﴿تُخْرَجُونَ﴾ مِن القُبور بالبناء لِلفاعِل والمفعول

ترجمه: الله تعالى دمخلوق ابتداء کوی یعنی دانسانو تخلیق ظاهر وی (یعنی دعدم نه وجود ته ئې راولی، اوبیابه هم هغه ددوی دمرګ نه پس ددوی دتخلیق اعاده کوی بیابه تاسوټول دهغه طرف ته واپس ګرځولی شی، په تاء او یاء سره اوپه کومه ورځ چه قیامت به قائم شی نومجرمان به حیرانه پاتی شی، اومشرکین به دلا جواب کیدونه پس غلی اوخاموشه پاتی شی، اوددوی شرکاؤ کښې به ددوی دپاره څوک هم سفارش کونکی نه وی یعنی په هغه شریکانو کښې کوم چه دوی به الله تعالى سره شریك جوړکړی وودې دپاره چه دهغوی سفارش اوکړی، اوهغه بتان وو . اودابت پرسته خلق به د خپلو شریکانونه انکاراوکړی یعنی دهغوی نه به دبراء ت اظهار اوکړی، اوپه کومه ورځ چه قیامت قائم شی نومومنان اوکافران به جداجداشی یومئذ درومبی یوم دپاره تاکیددې، خوچه کومو خلقو ایمان روړلو اونیک عملونه ئې اوکړل نوهغوی به دجنت به باغونوکښې به په خوشحالۍ سره اوسیږی اوهغه خلق کومو چه کفراوکړواوزمونږ آیتونه قرآن اودآخرت پیښه یعنی بعث بعدالموت وغیره ئې دروغ اوګڼړله نوهم داسې خلق به دالله په عذاب کښې ګرفتاره وی نودالله تعالى تسبیح بیانوئ یعنی چه کله تاسودماښام په وخت کښې داخلیږئ نومونځ کوئ، سبحوا د صلوا په معنی کښې دې اوپه دې وخت کښې دوه مونځونه دی مغرب اوعشاء اوکله چه تاسو دسحرپه وخت کښې داخلیږئ نو مونځ کوئ یعنی دسحروخت اوپه دې وخت کښې چه دسحرمونځ شی په آسمانونواوزمکه کښې هم دهغه حمدکیږی داجمله معترضه ده اومعنی ئې داده چه زمکې اوآسمانونو والا دهغه حمدبیانوی، اودماښام په وخت کښې مونځ کوئ اوددې عطف په حین باندې دې اوپه دې وخت کښې دمازیګرمونځ دې، اوکله چه تاسودماسپښین په وخت کښې داخل شئ نومونځ کوئ اوپه دې وخت کښې دماسپښین مونځ دې اوهم هغه ذات دمړی نه ژوندې پیداکوی لکه انسان دنطفې نه اومارغه د اګې نه اومړې لکه نطفه او اګې د ژوندی نه پیداکوی اوزمکه دنباتاتوپه ذریعه ددې د مړکیدونه یعنی د اوچیدونه پس ژوندې کوی اوهم دغه شان به تاسوهم راویستلې شئ،

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: یبدؤ الخلق : دماضی په ځائې دمضارع صیغه استعمال کړه ددې دپاره چه په تجددباندې دلالت اوکړی څکه بدؤ او خلق هروخت اوهره لمحه کیږی اوچه ترڅوپورې دنیاقائمه وی نو تجدد به کیږی ، په یبدؤا کښې واؤ دجمع دپاره نه دې بلکه دجمع سره دمشابهت دوجې نه ددې په اخره کښې الف لیکلې شوی دې خولوستلې نه شی اودنه

لوستلونښه ئې داده چه په الف باندې يوه وړه ګول دائره شان جوړه شوې وي،

**قوله**: ينشئ د يبدؤ تفسيرئې په ينشئ سره د معنى د بيان دپاره اوکړو، ددې معنى ده ظاهرول يعنى چه دعدم نه وجود طرف ته راوستل يوم تقوم الساعة ديبلس دپاره ئې ظرف مقدم دې،

**قوله**. لا يكون: دلم يكن تفسيرئې پ لا يكون سره اوکړو، په دې کښې دخبرې طرفته اشاره ده چه، لم يكن، اګرکه دماضى په معنى دې خودلته دمضارع معنى مراده ده،

**قوله**: بشركائهم كافرون: بشركائهم د كافرين متعلق مقدم دې،

**قوله**: يحبرون: دحبرنه مضارع جمع مذكرغائب (ن) دوى به خوشحاله کړې شى، اوددوى به عزت اوکړې شى،

**قوله**: بمعنى صلوا: د سبحوا تفسير ئې په صلوا سره اوکړو په دې کښې دې خبرې طرفته اشاره ده چه تسبيح په قول، فعل اوزړه درې واړه طريقوسره کيږى، اوصلوة دې ټولوته شامل اوجامع دې، اود، سبحان الله تفسير ئې په سبحوا الله سره اوکړو، په دې کښې دې خبرې طرفته اشاره ده چه خبر دامر په معنى دې او سبحان مصدردې ددې نه وړاندې فعل محذوف دې، اى سبحوا سبحاناً

**قوله**: تمسون اود تصبحون تفسير ئې په تدخلون سره اوکړو په دې کښې دې خبرې طرفته اشاره ده چه دواړه فعل تام دى، په دې آيت کښې دپنځو مونځونو ذکر دې،

**قوله**: اعتراض: يعنى دمعطوف اودمعطوف عليه په مينځ کښې جمله معترضه ده،

**[اياتونه: ۲۰ ـ ۲۷]**

(وَمِنْ آيَاتِه) تَعَالَى الدَّالَّة عَلَى قُدْرَتِه (أَنْ خَلَقَكُمْ مِنْ تُرَابٍ) أَيْ أَصْلَكُمْ آدَم (ثُمَّ إِذَا أَنْتُمْ بَشَرٌ) مِنْ دَم وَلَحْم (تَنْتَشِرُونَ) فِي الأَرْض (وَمِنْ آيَاتِه أَنْ خَلَقَ لَكُمْ مِنْ أَنْفُسِكُمْ أَزْوَاجًا) فَخُلِقَتْ حَوَّاء مِنْ ضِلَع آدَم وَسَائِر النَّاس مِنْ نُطَف الرِّجَال وَالنِّسَاء (لِتَسْكُنُوا إِلَيْهَا) وَتَأْلَفُوهَا (وَجَعَلَ بَيْنَكُمْ) جَمِيعًا (مَوَدَّةً وَرَحْمَةً إِنَّ فِي ذَلِكَ) الْمَذْكُور (لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ) فِي صُنْع اللّه تعالى (وَمِنْ آيَاتِه خَلْقُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافُ أَلْسِنَتِكُمْ) أَيْ لُغَاتكُمْ مِنْ عَرَبِيَّة وَعَجَمِيَّة وَغَيْرهمَا (وَأَلْوَانِكُمْ) مِنْ بَيَاض وَسَوَاد وَغَيْرهمَا وَأَنْتُمْ أَوْلَاد رَجُل وَاحِد وَامْرَأَة وَاحِدَة (إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَاتٍ) دَلَالَات عَلَى قُدْرَته تَعَالَى (لِلْعَالِمِينَ) بِفَتْحِ اللَّام وَكَسْرهَا أَيْ ذَوِي الْعُقُول واولي العلم (وَمِنْ آيَاتِه مَنَامُكُمْ بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ) بِإِرَادَتِهِ تَعَالَى رَاحَة لَكُمْ (وَابْتِغَاؤُكُمْ) بِالنَّهَارِ (مِنْ فَضْلِه) أَيْ تَصَرُّفكُمْ فِي طَلَب الْمَعِيشَة بِإِرَادَتِهِ (إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَسْمَعُونَ) سَمَاع تَدَبُّر وَاعْتِبَار (وَمِنْ آيَاتِه يُرِيكُمْ) أَيْ إِرَاءَتكُمْ (الْبَرْقَ خَوْفًا) لِلْمُسَافِرِ مِنْ الصَّوَاعِق (وَطَمَعًا) لِلْمُقِيمِ فِي الْمَطَر (وَيُنَزِّلُ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَيُحْيِي بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا) اي يبسها بِأَنْ تُنْبِت (إِنَّ فِي ذَلِكَ) الْمَذْكُور (لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ) يَتَدَبَّرُونَ (وَمِنْ آيَاتِه أَنْ تَقُومَ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ بِأَمْرِهِ) بِإِرَادَتِهِ مِنْ غَيْر عَمَد (ثُمَّ إِذَا دَعَاكُمْ

دَعْوَةً مِنَ الْأَرْضِ﴾ بِأَنْ يَنْفُخَ إِسْرَافِيلُ فِي الصُّورِ لِلْبَعْثِ مِنَ الْقُبُورِ ﴿إِذَا أَنْتُمْ تَخْرُجُونَ﴾ مِنْهَا أَحْيَاءً فَخُرُوجُكُمْ مِنْهَا بِدَعْوَةٍ مِنْ آيَاتِهِ تعالى ﴿وَلَهُ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ مُلْكًا وَخَلْقًا وَعَبِيدًا ﴿كُلٌّ لَهُ قَانِتُونَ﴾ مُطِيعُونَ ﴿وَهُوَ الَّذِي يَبْدَأُ الْخَلْقَ﴾ لِلنَّاسِ ﴿ثُمَّ يُعِيدُهُ﴾ بَعْدَ هَلَاكِهِمْ ﴿وَهُوَ أَهْوَنُ عَلَيْهِ﴾ مِنَ الْبَدْءِ بِالنَّظَرِ إِلَى مَا عِنْدَ الْمُخَاطَبِينَ مِنْ أَنَّ إِعَادَةَ الشَّيْءِ أَسْهَلُ مِنِ ابْتِدَائِهِ وَإِلَّا فَهُمَا عِنْدَ اللهِ تَعَالَى سَوَاءٌ فِي السُّهُولَةِ ﴿وَلَهُ الْمَثَلُ الْأَعْلَى فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ أَيِ الصِّفَةُ الْعُلْيَا وَهِيَ أَنَّهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ ﴿وَهُوَ الْعَزِيزُ﴾ فِي مُلْكِهِ ﴿الْحَكِيمُ﴾ فِي خَلْقِهِ

ترجمه: اوالله تعالى په هغه نښو كښې كومې چه دهغه په قدرت باندې دلالت كوى چه هغه تاسو يعنى ستاسو اصل آدم عليه السلام دخاورې نه پيداكړواوبيا تاسودفعةً دوينې اوږغونښې انسانان جوړشوې اوپه زمكه كښې گرځې راگرځې اوهم دهغه د قدرت په نښو كښې داهم ده چه تاسو له ئې ستاسو دجنس بيبانې جوړې كړې نو حضرت حواء ئې دآدم عليه السلام دپښتې نه پيداكړه اونورې ټولې ښځې ئې دسړو اودښځو دنطفو نه پيداكړلې دې دپاره چه تاسو په هغوى سره ارام حاصل كړئ اوهغوى سره الفت اوكړئ، اوپه تاسو ټولو كښې ئې مينه اوهمدردى پيداكړه يقيناً په دې مذكوره څيزونوكښې دالله په كارى گرى كښې غور او فكركونكو دپاره دقدرت نښې دى اوهم دهغه د قدرت په نښو كښې دآسمانونو اوزمكې پيدائش اوستاسو دژبو يعنى دلغاتو اختلاف هم دې، څنى عربى دى اوڅنى عجمى دى، او ستاسو درنگونو اختلاف دې دچارنگ سپين دې اودچه رنگ تور دې حالانكه تاسوټول ديو سړى اوديوښځې اولاد ئې، دعقلمندانو دپاره يقيناً په دې كښې دالله تعالى په قدرت باندې دلالت كونكى نښې دى العالمين، دلام په فتحې اوكسرې سره يعنى عقل اوعلم لرونكو د پاره. او دهغه دقدرت په نښو كښې ستاسو په شپه اوپه ورځ كښې دالله تعالى په ارادې سره ستاسو دراحت دپاره اوده كيدل هم دى اوپه ورځ كښې ستاسودهغه درزق نه طلب كول دى يعنى درزق دطلب دپاره دالله تعالى په ارادې اومشيت سره ستاسو كوشش اوگرځيدل دى بيشكه په دې كار كښې هم دهغه خلقو دپاره كوم چه دغوراوفكراودعبرت دپاره اوريدل كوى دقدرت نښې دى اودهغه په نښوكښې د مسافرانويرولودپاره او د مقيم خلقوته دباران اميد وركولو دپاره دبجلې پرق ښودل هم دى اوهم هغه داسمان نه اوبه راوروى چه دهغې په ذريعه مړه زمكه يعنى اوچه زمكه راژوندې كوى په دې طريقه باندې چه هغه وابنه اوگياگانې رازرغونى كړى بيشكه په دې مذكوره خبروكښې هم د غوراوفكر كونكو دپاره دقدرت نښې دى اود هم هغه دقدرت په نښو كښې داهم دى چه آسمان اوزمكه دهغه په حكم يعنى ارادې سره بغير دستنونه ولاړاوقائم دى اوبياچه كله به هغه تاسو ته اواز دركړى نوهم په يواوازباندې به تاسو داسې چه اسرافيل عليه السلام به قبرونونه د راپاڅولو دپاره شپيلۍ اووهى نوتاسوبه

سمدستي دزمکې نه يعنې دقبرونو نه ژوندي راوځې نو ستاسو دقبرونونه په يوآوازباندې سمدستي راوچتيدل هم دالله تعالى دقدرت په نښوکښې دی، اودزمکې اودآسمان هر يوڅيز دهغه دې دملك په اعتبارسره اودمخلوق کيدلو په اعتبارسره اودغلام کيدلو په اعتبار سره، اوهر يو څيزهم داهغه فرمانبرداردې اوهم هغه دې چه په اول ځل خلق پيداکوي اوبيا دهغوی دهلاك کيدونه پس به ئې دوباره پيداکوي اوداعاده دهغه دپاره دابتداءً پيداکولونه ډيره آسانه ده مخاطبينوته د نسبت په اعتبارسره، ځکه چه دشی اعاده دهغې د ابتداء نه آسانه وی، کنی ابتداء اواعاده خوالله تعالى ته دسهولت په اعتبارسره برابردی په آسمانونو اوپه زمکه کښې دهغه شان اوچت دې يعنې دهغه صفت اعلى اواوچت دې اوهغه داچه دهغه نه علاوه بل څوك معبودنشته دې، اوهم هغه په خپل ملك کښې غالب دې اوپه خپل تخليق کښې حکمت والا دې،

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله: اصلكم:** مقدر راويستلوسره ئې اشاره دې طرفته اوکړه چه خلقكم کښې د کم نه وراندې مضاف محذوف دې اودائې هم اوخودل چه داصل نه مرادحضرت آدم عليه السلام دې

**قوله: ثم:** په ثم سره تعبير کولوکښې ئې تاخير دتغيراتو ته اشاره وکړه ځکه چه دغذانه اول نطفه جوړيږی اوبياعلقه اوبيامضغه، اوددې تولو تغيراتو وقفه ځلوېښت ځلوېښت ورځې وی، اوچه کله يوسل اوشل ورځې اوشی نودغوښې په دې تکره کښې روح پوك وهلی شی، نوهغه سمدستي انسان جوړشی اذا مفاجاتيه دې، اګرچه اذا مفاجاتيه اکثر د فا نه روستوراځی، مګرډيرکرته د، واو، نه روستوهم راځی، د اذا په ذکر کولو کښې مقصود دا دې چه کله مذکوره درې واړه تغيرات مکمل شی نو بيابشرجوړيدوکښې وخت نه لګی، يعنې روح پوك وهلو سره سمدستي انسان جوړشی،

**قوله:** ومن آياته يريكم البرق

**قوله: يريكم:** په اصل کښې ان يريكم وو، ددې دوجې نه يريكم، اراءتكم مصدرپه معنی کښې دې نو أن مصدريه ئې حذف کړو مفسر علام هم د، يريكم، تفسير په اراءتكم سره ځکه اوکړو چه د، ان مصدريه په حذف باندې دلا لت اوکړی او د، ان مصدريه، حذف په کلام عرب کښې شائع اوذائع دې، لکه. تسمع بالمعيدي خير من ان تراه
ای ان تسمع، يريكم البرق مبتدأ مؤخرده او ومن آياته خبرمقدم دې،

**قوله: خوفاً وطمعاً:** داديريكم مفعول له دې،

**قوله: هو:** ددې مرجع اعاده ده کوم چه ديعيده نه مفهوم کښې راځی، هو، ضمير ئې دخبر درعايت دوجې نه مذکرورلو، هواهون عليه مبتدأ مؤخر ده،

**قوله:** بالنظر الى ما عند المخاطبين: مفسر علام په ددې عبارت سره ديو شبهې جواب ورکول غواړي هغه شبه داده چه الله تعالى دپاره ابتداء اواعاده دواړه برابردي، يعنى آسان دي خود ،هو اهون عليه،نه داسې معلوميږي چه اعاده الله تعالى ته هم د ابتداء نه اسانه ده؟

**جواب:** دجواب خلاصه داده چه په دې کښې دانسانو په اعتبارسره يوه اصولى خبره بنودلې شوې ده اودعقل تقاضاهم داده چه د ابتداءً جوړولو په اعتبارسره ثانياً ديو څيز : جوړول اسان وى،

**دوئم جواب:** دادې چه اهون، اسم تفضيل د ، هين ً، په معنى کښې دې

**دريم جواب:** اوځنى حضراتو دا جواب ورکړې دې چه، هو اهون عليه، کښې، عليه، ضمير مخلوق طرفته راجع دې نه که د خالق اوالله تعالى طرفته. اومطلب دادې چه کله شپيلې پوك وهلې شى نومخلوق دپاره به عودکول په نسبت دابتدا اسان وى ځکه چه ځنګه دروح تعلق دانسان دجسم سره پيدا شو نو بس اعاده هم اوشوه، بخلاف دابتداء نه چه په دې کښې دمختلف بدلون اودتغيراتونه پس ژوندملاويږي، مثلاً رومبې خلوينښت ورځ کښې علقه جوړيږى ددې نه پس څلوينښت ورځې مضغه جوړيږى نوپه دې طريقه باندې په دې کښې تاخير راځى کوم چه دعودپه اعتبارسره ډيرګران اومشکل دې،(حاشيه جلالين)

**[اياتونه: ۲۸ ـ ۴۰]**

(ضَرَبَ) جَعَلَ (لَكُمْ) أَيُّهَا الْمُشْرِكُوْنَ (مَثَلًا) كَائِنًا (مِنْ أَنفُسِكُمْ) وهو (هَل لَّكُم مِّن مَّا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ) أَيْ مِنْ مَمَالِيكِكُمْ (مِنْ شُرَكَاءَ) لَكُمْ (فِي مَا رَزَقْنَاكُمْ) مِنَ الْأَمْوَالِ وَغَيْرِهَا (فَأَنتُمْ) وَهُمْ (فِيهِ سَوَاءٌ تَخَافُونَهُمْ كَخِيفَتِكُمْ أَنفُسَكُمْ) أَيْ أَمْثَالَكُمْ مِنَ الْأَحْرَارِ وَالْإِسْتِفْهَامُ بِمَعْنَى النَّفْيِ الْمَعْنَى لَيْسَ مَمَالِيكُكُمْ شُرَكَاءَ لَكُمْ إِلَى آخِرِهِ عِنْدَكُمْ فَكَيْفَ تَجْعَلُوْنَ بَعْضَ مَمَالِيكِ اللّٰهِ شُرَكَاءَ لَهُ (كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْآيَاتِ) نُبَيِّنُهَا مِثْلَ ذٰلِكَ التَّفْصِيلِ (لِقَوْمٍ يَعْقِلُوْنَ) يَتَدَبَّرُوْنَ (بَلِ اتَّبَعَ الَّذِينَ ظَلَمُوا) بِالْإِشْرَاكِ (أَهْوَاءَهُم بِغَيْرِ عِلْمٍ فَمَن يَهْدِي مَنْ أَضَلَّ اللّٰهُ) أَيْ لَا هَادِيَ لَهُ (وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ) مَانِعِينَ مِنْ عَذَابِ اللّٰهِ (فَأَقِمْ) يَا مُحَمَّدُ (وَجْهَكَ لِلدِّينِ حَنِيفًا) مَائِلًا إِلَيْهِ أَيْ أَخْلِصْ دِينَكَ لِلّٰهِ أَنْتَ وَمَنْ تَبِعَكَ (فِطْرَتَ اللّٰهِ) خِلْقَتَهُ (الَّتِي فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا) وَهِيَ دِينُهُ أَيْ الْزَمُوهَا (لَا تَبْدِيلَ لِخَلْقِ اللّٰهِ) لِدِينِهِ أَيْ لَا تُبَدِّلُوهُ بِأَنْ تُشْرِكُوا (ذٰلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ) الْمُسْتَقِيمُ تَوْحِيدُ اللّٰهِ (وَلٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ) أَيْ كُفَّارَ مَكَّةَ (لَا يَعْلَمُوْنَ) تَوْحِيدَ اللّٰهِ (مُنِيبِينَ) رَاجِعِينَ (إِلَيْهِ) تَعَالَى فِيمَا أَمَرَ بِهِ وَنَهَى عَنْهُ حَالٌ مِنْ فَاعِلِ أَقِمْ وَمَا أُرِيدَ بِهِ أَيْ أَقِيمُوا (وَاتَّقُوهُ) خَافُوهُ (وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَلَا تَكُونُوا مِنَ الْمُشْرِكِينَ) (مِنَ الَّذِينَ) بَدَلٌ بِإِعَادَةِ الْجَارِّ (فَرَّقُوا دِينَهُمْ) بِاخْتِلَافِهِمْ فِيمَا يَعْبُدُوْنَهُ (وَكَانُوا شِيَعًا) فِرَقًا فِي ذٰلِكَ (كُلُّ حِزْبٍ) مِنْهُمْ (بِمَا لَدَيْهِمْ) عِنْدَهُمْ (فَرِحُوْنَ) مَسْرُوْرُوْنَ وَفِي قِرَاءَةٍ فَارَقُوا أَيْ تَرَكُوا دِينَهُمُ الَّذِي أُمِرُوا بِهِ (وَإِذَا مَسَّ النَّاسَ) أَيْ كُفَّارَ مَكَّةَ (ضُرٌّ) شِدَّةٌ (دَعَوْا رَبَّهُم مُّنِيبِينَ) رَاجِعِينَ (إِلَيْهِ) دُونَ غَيْرِهِ (ثُمَّ إِذَا أَذَاقَهُم مِّنْهُ رَحْمَةً) بِالْمَطَرِ (إِذَا فَرِيقٌ مِّنْهُم بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُوْنَ) (لِيَكْفُرُوا بِمَا آتَيْنَاهُمْ)

أريد به التهديد ﴿فَتَمَتَّعُوا فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ﴾ عَاقِبَةَ تَمَتُّعِكُمْ فِيهِ الْتِفَات عَنِ الغيبة ﴿أَمْ﴾ بِمَعْنَى هَمْزَةِ الإِنْكَار ﴿أَنزَلْنَا عَلَيْهِمْ سُلْطَانًا﴾ حُجَّة وَكِتَابًا ﴿فَهُوَ يَتَكَلَّمُ﴾ تَكَلُّم دَلَالَة ﴿بِمَا كَانُوا بِهِ يُشْرِكُونَ﴾ أَيْ يَأْمُرهُمْ بِالإِشْرَاكِ لَا ﴿وَإِذَا أَذَقْنَا النَّاسَ﴾ كفار مكة وغيرها ﴿رَحْمَةً﴾ نِعْمَة ﴿فَرِحُوا بِهَا﴾ فَرَح بَطَر ﴿وَإِن تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ﴾ شِدَّة ﴿بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ إِذَا هُمْ يَقْنَطُونَ﴾ يَيْأَسُونَ مِنَ الرَّحْمَةِ وَمِنْ شَأْنِ الْمُؤْمِنِ أَنْ يَشْكُر عِنْدَ النِّعْمَة وَيَرْجُو رَبَّهُ عند الشدة ﴿أَوَلَمْ يَرَوْا﴾ يَعْلَمُوا ﴿أَنَّ اللَّهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ﴾ يُوَسِّعهُ ﴿لِمَن يَشَاءُ﴾ امْتِحَانًا ﴿وَيَقْدِرُ﴾ يُضَيِّقهُ لِمَنْ يَشَاء ابْتِلَاء ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ﴾ بِهَا ﴿فَآتِ ذَا الْقُرْبَىٰ﴾ الْقَرَابَة ﴿حَقَّهُ﴾ مِنَ الْبِرّ وَالصِّلَة ﴿وَالْمِسْكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ﴾ الْمُسَافِر مِنَ الصَّدَقَة وَأُمَّة النَّبِيّ تَبَع لَهُ فِي ذَلِكَ ﴿ذَٰلِكَ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ يُرِيدُونَ وَجْهَ اللَّهِ﴾ أَيْ ثَوَابه بِمَا يَعْمَلُونَ ﴿وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾ الْفَائِزُونَ ﴿وَمَا آتَيْتُم مِّن رِّبًا﴾ بِأَنْ يُعْطَى شَيْء هِبَة أَوْ هَدِيَّة لِيَطْلُب أَكْثَر مِنْهُ فَسُمِّيَ باسم المطلوب من الزيادة في المعاملة ﴿لِّيَرْبُوَ فِي أَمْوَالِ النَّاسِ﴾ الْمُعْطِينَ أَيْ يَزِيد ﴿فَلَا يَرْبُو﴾ يَزْكُو ﴿عِندَ اللَّهِ﴾ لَا ثَوَاب فِيهِ لِلْمُعْطِينَ ﴿وَمَا آتَيْتُم مِّن زَكَاةٍ﴾ صَدَقَة ﴿تُرِيدُونَ﴾ بِهَا ﴿وَجْهَ اللَّهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُضْعِفُونَ﴾ ثَوَابهمْ بِمَا أَرَادُوهُ فِيهِ الْتِفَات عَنِ الْخِطَاب ﴿اللَّهُ الَّذِي خَلَقَكُمْ ثُمَّ رَزَقَكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ هَلْ مِن شُرَكَائِكُم﴾ مِمَّنْ أَشْرَكْتُمْ بِاللهِ ﴿مَّن يَفْعَلُ مِن ذَٰلِكُم مِّن شَيْءٍ﴾ لَا ﴿سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ﴾ بِهِ

**ترجمه:** اې مشركانو الله تعالی ستاسو دپاره په خپله هم ستاسو مثال بيانوی اوهغه دادې چه كوم څيزمونږ تاسوله دركړې دې دمال وغيره نه نوآيا په دې كښې ستاسو په غلامانوكښې ستاسوڅوک شريک دې؟ چه تاسو اوهغوی په دې كښې د برابر درجې ئې، اوتاسو دهغوی نه داسې انديښنه ساتې لكه چه څنګه په خپل مينځ كښې يعنی دځان پشان د ازادو خلقو، او استفهام دنفی په معنی كښې دې مطلب دادې چه ستاسو په نيزهم ستاسو غلامان ستاسوشريكان نه دی (الی اخره) يعنی په دې اموالوكښې كوم چه مونږ تاسو له دركړی دی ستاسوغلامان ستاسو دازادوپه شان ستاسو شريكان نه دی چې برابر درجه لری، نو بيادالله څنی غلامان تاسو دالله سره څنګه شريكان جوړوئې؟ اومونږ به هم دغه شان څنګه چه مونږ دا تفصيل بيان كړو دعقلمندودپاره يعنی دغوراوفكر كونكودپاره صفا صفا دلائل بيانوو بلكه خبره داده چه شرك كونكی ظالمان خوبغير دپوهې نه دخپلو خواهشاتو اتباع كوی نوڅوک چه الله تعالی ګمراه كړی نوهغه بياڅوک په نيغه لار باندې راوستلې شی؟ يعنی هغه لره بياپه نيغه لارباندې راوستلو والا هيڅ څوك نشته دې، ددوی به څوک هم امدادكونكی نه وی، يعنی دالله دعذاب نه ساتلووالا به څوك هم نه وی نو اې محمد ﷺ تاسوبه په توجه سره خپل رخ هغه دين حق طرف ته واړوئ يعنی تاسواوستاسو اتباع كونكی دې خپل دين دالله دپاره خالص كړی په خداداد قابليت باندې په كوم باندې ئې چه خلق پيداكړی دی اوهغه دهغه دين دې لازم اونيسئې، دالله تعالی دين بدلول نه دی پكار يعنی شرك كولوسره دين

فطرت مه بدلوئې هم دغه دالله د توحید قائله کیدل دین مستقیم دې خودیر خلق یعنی دمکې کافران دالله دتوحیدنه انکارکوی تاسوسره دخپلو ملګروخپل رخ ددین طرف ته ساتې، الله تعالی طرفته رجوع کولو سره په هغه څیزونوکښې دکوموچه دالله دطرفه حکم کړې شوی دې اودکومونه چه منع کړې شوی ده، منیبین داقم نه او د اقم نه څه مراددی یعنی اتهوانه حال دې اودهغه نه ویریږئې، اودمونځ پابندی کوئې اودمشرکانونه مه کیږئ چاچه خپل دین دخپلومعبودانوپه باره کښې داختلاف دوجې نه ټکړې ټکړې کړومن الذین، دحرف جارداعادې سره د المشرکین نه بدل دې اوهغوی ددین په باره کښې ډلې ډلې شول اوپه دوی کښې هره یوه ډله چه په کومه دین باندې ده خوشحاله ده اوپه یو قراء ت کښې فارقوا دې یعنی دوی خلقو هغه دین پریخودلې دې دکوم دین چه دوی ته حکم ورکړې شوې وو، اوکله چه خلقو یعنی دمکې کافرانو ته څه مصیبت اورسي نودهغې طرف ته نه که دهغې دغیر طرف ته رجوع اوکړی او خپل رب (حقیقی) رابلی اوبیاچه کله الله تعالی دخپل رحمت دباران په ذریعه دهغې مزه په دوی باندې اوڅکوی نوپه دوی کښې یو فریق د خپل رب سره شرک کول شروع کړی پکاردې چه دوی زمونږ د ورکړې شوی نعمتونو ناشکری اوکړی ددې امر نه دتهدید اراده کړې شوې ده، نویوڅوورځې نورې هم مزې اوکړئ، ستاسو دمزوکولو انجام به تاسوته ډیرزرمعلوم شی په دې کښې دغیبوبت نه خطاب طرفته التفات دې آیامونږ په دوی باندې څه حجت اوکتاب نازل کړې دې چه هغه دلالت دوی ته د شرک کولو وائی یعنی (هغه کتاب) په دلالت حال سره دوی ته دشرك کولوحکم ورکوی، نه داسې نه ده، اوکله چه مونږ خلقوته یعنی دمکې کافرانو وغیره ته درحمت یعنی دنعمت مزه اوخونداوڅکوو، نودوی ددې نعمت نه په خوشحالې کښې وی اکړخانی شروع کړی، اوکه چرې ددوی داعمالو دوجې نه دوی ته څه مصیبت اورسي نوسمدستی زمونږ درحمت نه ناامیده شی اودمومن شان دادې چه دنعمت په وخت کښې دخپل رب شکرادا کړی اودمصیبت په وخت کښې دخپل رب نه امیداوساتی آیادې خلقوته معلومه نه ده چه الله تعالی دچاډپاره اوغواړی امتحاناً دهغه په رزق کښې فراخ والې راولی اودچاپه رزق کښې چه اوغواړی ابتلاءً تنګی په کښې راولی په دې کښې هم د هغه خلقو دپاره نښې دی کوم خلق چه په دې نښو باندې ایمان ساتی، نو رشته دارته دهغه حق ورکړه اوهغه ښه سلوک اوصله رحمی ده، اومسکینانوته اومسافروته صدقه ورکړه اودنبی امت هم په دې حکم کښې دنبی تابع دې، دا دهغه خلقو دپاره بهتره ده کوم خلق چه دالله درضاطلب کوی، یعنی دهغه نه دخپل عملونو دثواب طلب کونکی دی، هم دغه شان خلق په خپل مقصد کښې کامیابی موندلو والا دی، اوکوم څیزونه چه تاسو ددیریدوپه خیال سره ورکوئې په دې طریقه باندې چه څه څیزچاته هدیه یادهبې په توګه ورکړئ په دې خیال چه د هغه نه بیاددې نه ډیراوزیات طلب کړی، ددې دپاره چه کوموخلقوته ورکړې شوې دې دهغوی په مال کښې ګډشی

اوزیات شی نو هغه دالله په نیزنه زیاتیږی یعنی په دې کښې ورکونکوته څه اجرنه ملاویږی، روایه خیال سره ورکړې شوې څیزچه دهغې په ورکولو کښې زیاتوالې مطلوب وی نوددې څیز نوم ربوا کیخودلې شو، یعنی کومه هبه یاصدقه چه دزیاتوالی په غرض ورکړې شی چونکه په دې کښې زیاتوالې یعنی ربوا مطلوب وی نوهم ددې هبې یا صدقې نوم په قرآن کښې ربوا کیخودلې شو. اوتاسوچه کوم زکوة ورکوئې چه دهغې نه ستاسومقصدالله رضاوی نوهم داسې خلق دی چه خپل ثواب د خپل مطلوب مطابق دوچند کوی په دې کښې دخطاب نه غیبوبت طرفته التفات دې، اوالله هم هغه ذات دې چاچه تاسوپیداکړئې اوبیائې تاسوله رزق درکړواوبیابه تاسوله مرګ درکوی اوبیابه تاسوژوندی کوی آیا ستاسوپه شریکانو کښې هم کوم چه تاسوالله تعالی سره شریك جوړوئ څوک داسې شته دې چه هغه په دې کارونوکښې څه هم کولی شی، نه نشته دې هغه ددې دشریکانونه پاک اوبرتر دې،

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** كائناً :محذوف راویستلو سره ئې دې طرفته اشاره اوکړه چه من انفسکم دکائناً سره متعلق دې او مثلاً صفتم دې، اومن ابتدائیه دې

**قوله:** مما ملکت ایمانکم: دادمن شرکاء نه حال مقدم دې، اوړومبې، من، ابتدائیه دې او دوئیم من، تبعیضیه دې، او دریم من زائده دې،

**قوله:** انت ومن اتبعك: په دې سره ئې اشاره اوکړه چه اقم وجهك کښې اګرچه خطاب حضور مبارك ته دې خومرادترینه ټول امت دې،

**قوله:** فطرت الله :دادفعل محذوف دوجې نه منصوب دې،اوهغه الزموادې لکه څنګه چه شارح علیه الرحمة مقدر راویستلو سره اشاره وکړه چه فطرت معنی ده پیدائشی صلاحیت او خداداد قابلیت،فطرت،په اوګده تاسره په قرآن پاك کښې صرف دلته کښې مستعمل دې،

**قوله:** لاتبدلوه:په دې کښې اشاره دې طرف ته اوشوه چه لاتبدیل خبربمعنی امر دې اوداهم وئیلی شی چه نفی دنهی په معنی کښې ده،

**قوله:** "فطرت": ددې دوه تفسیرونه دی، یوفطری صلاحیت، دوئیم د دین اسلام په دې، دې دوئیم تفسیر طرفته شارح، وهی دینه، سره اشاره اوکړه، ددې دوجې نه دواړه تفسیرونه ګډوډ شوی دی. البته که د وهی دینه واو د او په معنی کښې واخستلی شی، نودا اختلاط ختمیدئې شی. (جمل)_

**قوله:** منیبین :داد اقم اود اقم نه چه څه مراددی یعنی د اقیموا نه حال دې څکه چه په اقم کښې اګرکه خطاب حضور مبارك ته دې خومرادترینه ټول امت دې،

**قوله:** لیکفروا: ددې نه پس ئې داید په التهدید په اضافې سره اشاره اوکړه چه په لیکفروا

کښې لام لام امر دې، او لام د عاقبت هم کیدې شي، یعنی آخر دوی ناشکری شروع کړی
**قوله: تکلم دلالة**: دلته کښې د تکلم نه مجازاً دلالت مراد دې ځکه چه حجت یا کتاب خو خبرې نه کوی، البته مجازاً داسې وئیلی شی، کتاب ناطق، ویقال هذا مما نطق به القرآن،
**قوله: بطر**: د ډیرې زیاتې خوشحالې اظهار کول چه هغه د تکبر درجې ته اورسیږی نو شارح د فرح بطر اضافه کولو سره دې خبرې ته اشاره او کړه چه دې شبهې جواب هم پکښې او شی چه د الله تعالی په نعمتونو باندې د خوشحالې اظهار کول څه بده خبره خو نه ده بلکه د واما بنعمة ربك فحدث، د وجې نه ښه خبره ده نو ددې خبرې جواب ئې ورکړو چه د تحدیث بالنعمت په طور باندې د نعمت اظهار کول اګر که ښه خبره ده خو د تکبر په طور ممنوع دې.
**قوله: الله الذي خلقكم**: لفظ د الله مبتدأ ده او الذی خلقکم موصول صله خبر دې او مبتدأ او خبر دواړه معرفه دی په دې وجه د اجمله د حصر فائده ورکوی
**قوله هل من شركائكم**: خبر مقدم دې او من يفعل من ذلكم مبتدأ موخر ده

**[ایاتونه: ۴۱-۵۳]**

{ظَهَرَ الْفَسَادُ فِي الْبَرِّ} أَيِ الْقِفَار بِقَحْطِ الْمَطَر وَقِلَّة النَّبَات {وَالْبَحْرِ} أَيِ الْبِلَاد الَّتِي عَلَيْهَا الْأَنْهَار بِقِلَّةِ مَائِهَا {بِمَا كَسَبَتْ أَيْدِي النَّاسِ} مِنَ الْمَعَاصِي {لِيُذِيقَهُمْ} بِالْيَاءِ وَالنُّون {بَعْضَ الَّذِي عَمِلُوا} أَيْ عُقُوبَته {لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ} يَتُوبُونَ {قُلْ} لِكُفَّارِ مَكَّة {سِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَانْظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِنْ قَبْلُ كَانَ أَكْثَرُهُمْ مُشْرِكِينَ} فَأُهْلِكُوا بِإِشْرَاكِهِمْ وَمَسَاكِنهمْ وَمَنَازِلهمْ خَاوِيَة {فَأَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ الْقَيِّمِ} دِين الْإِسْلَام {مِنْ قَبْلِ أَنْ يَأْتِيَ يَوْمٌ لَا مَرَدَّ لَهُ مِنَ اللَّهِ} هُوَ يَوْم الْقِيَامَة {يَوْمَئِذٍ يَصَّدَّعُونَ} فِيهِ إِدْغَام التَّاء فِي الْأَصْل فِي الصَّاد يَتَفَرَّقُونَ بَعْد الْحِسَاب إِلَى الْجَنَّة وَالنَّار {مَنْ كَفَرَ فَعَلَيْهِ كُفْرُهُ} وَبَال كُفْره وَهُوَ النَّار {وَمَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِأَنْفُسِهِمْ يَمْهَدُونَ} يُوَطِّئُونَ مَنَازِلهمْ فِي الْجَنَّة {لِيَجْزِيَ} مُتَعَلِّق بِيَصَّدَّعُونَ {الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنْ فَضْلِهِ} يُثِيبهُمْ {إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْكَافِرِينَ} اي يعاقبهم {وَمِنْ آيَاتِهِ} تَعَالَى {أَنْ يُرْسِلَ الرِّيَاحَ مُبَشِّرَاتٍ} بِمَعْنَى لِتُبَشِّرَكُمْ بِالْمَطَرِ {وَلِيُذِيقَكُمْ} بِهَا {مِنْ رَحْمَتِهِ} الْمَطَر وَالْخِصْب {وَلِتَجْرِيَ الْفُلْكُ} السُّفُن بِهَا {بِأَمْرِهِ} بِإِرَادَتِهِ {وَلِتَبْتَغُوا} تَطْلُبُوا {مِنْ فَضْلِهِ} الرِّزْق بِالتِّجَارَةِ فِي الْبَحْر {وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ} هَذِهِ النِّعَم يَا أَهْل مَكَّة فَتُوَحِّدُوهُ {وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ رُسُلًا إِلَى قَوْمِهِمْ فَجَاءُوهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ} بِالْحُجَجِ الْوَاضِحَات عَلَى صِدْقهمْ فِي رِسَالَتهمْ إِلَيْهِمْ فَكَذَّبُوهُمْ {فَانْتَقَمْنَا مِنَ الَّذِينَ أَجْرَمُوا} أَهْلَكْنَا الَّذِينَ كَذَّبُوهُمْ {وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِينَ} عَلَى الْكَافِرِينَ بِإِهْلَاكِهِمْ وَإِنْجَاء الْمُؤْمِنِينَ {اللَّهُ الَّذِي يُرْسِلُ الرِّيَاحَ فَتُثِيرُ سَحَابًا} تُزْعِجهُ {فَيَبْسُطُهُ فِي السَّمَاءِ كَيْفَ يَشَاءُ} مِنْ قِلَّة وَكَثْرَة {وَيَجْعَلُهُ كِسَفًا} بِفَتْحِ السِّين وَسُكُونهَا قِطَعًا مُتَفَرِّقَة {فَتَرَى الْوَدْقَ} الْمَطَر {يَخْرُجُ مِنْ خِلَالِهِ} أَيْ وَسَطه {فَإِذَا أَصَابَ بِهِ} بِالْوَدْقِ {مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ إِذَا هُمْ يَسْتَبْشِرُونَ} يَفْرَحُونَ بِالْمَطَرِ {وَإِنْ} وَقَدْ {كَانُوا مِنْ قَبْلِ أَنْ يُنَزَّلَ عَلَيْهِمْ مِنْ قَبْلِهِ} تَأْكِيد {لَمُبْلِسِينَ} آيِسِينَ مِنْ إِنْزَاله {فَانْظُرْ إِلَى

آثر وفي قراءة آثر (رَحْمَةِ اللَّهِ) أي نِعْمَته بِالْمَطَرِ (كَيْفَ يُحْيِي الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا) أي يُبْسِهَا بِأَنْ تُنْبِت (إِنَّ ذٰلِكَ لَمُحْيِ الْمَوْتَىٰ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ) (وَلَئِنْ) لام قسم (أَرْسَلْنَا رِيحًا) مُضِرَّة على نبات (فَرَأَوْهُ مُصْفَرًّا لَّظَلُّوا) صَارُوا جَوَاب الْقَسَم (مِنْ بَعْدِهِ) أي بَعْد اصْفِرَاره (يَكْفُرُونَ) يَجْحَدُونَ النِّعْمَة بِالْمَطَرِ (فَإِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَىٰ وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَاءَ إِذَا) بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَتَسْهِيل الثَّانِيَة بَيْنَهَا وبين الياء (وَلَّوْا مُدْبِرِينَ) (وَمَا أَنتَ بِهَادِ الْعُمْيِ عَن ضَلَالَتِهِمْ إِن) مَا (تُسْمِعُ) سَمَاع إفهام وَقَبُول (إِلَّا مَن يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا) الْقُرآن (فَهُم مُّسْلِمُونَ) مُخْلِصُونَ بِتَوْحِيدِ اللّٰه

ترجمه: په اوچه یعنی په میدانونو کښې خشك سالۍ اودوښو او ګیاګانو دکمۍ وجه اوپه لمده یعنی په هغه ښارونو کښې کوم چه دنهرونو په غاړو باندې واقع دی. داوبو دکمۍ دوجې نه د خلقو د بدعملونو په سبب فساد ظاهرشوددې دپاره چه مونږدوی ته ددوی دځنوعملونو سزا اوڅکو ممکنه ده چه دوی راوګرځی (سم شی) توبه اوباسی، تاسو دمکې کافرانوته اووائې چه په زمکه کښې اوګرځې اوګورئې چه دمخکینې خلقو انجام څنګه شوې وو؟ چه په هغې کښې اکثرخلق مشرکان وو، نو هغوی دځپل شرك په سبب باندې هلاك کړې شو، اود هغوی کورونه راغوزیدلی او وران پراته دی، تاسوځپله توجه دین قیم یعنی اسلام طرفته کړئ مخکښې د دېنه چه هغه ورځ راشی چه هغه به الله تعالی هیڅ کله هم نه واپس کوی، اوهغه به دقیامت ورځ وی په دې ورځ به ټول خلق یوازې یوازې کړې شی یصدعون په اصل کښې د تاء په صاد کښې ادغام شوې دې، یعنی دحساب نه پس به په جنت یاپه دوزخ کښې متفرق کړې شی، کافرانو باندې به ددوی دکفروبال وی اوهغه دوزخ دې اونیک عملونه کونکی به دځپل ځان دپاره آرام ګاه جوړه وی، یعنی په جنت کښې به ځپل کورجوړوی، ددې دپاره چه الله تعالی ایمان راوړونکو او نیک عمل کونکو ته په ځپل فضل سره اجر ورکړی، لیجزء دیتصدعون سره متعلق دې، بیشکه هغه کافران نه خوښوی، یعنی دوی له به سزاورکړی، اودالله تعالی دقدرت په نښوکښې دباران زیری ورکونکی هواګانو چلول هم دی، اومبشرات لتبشرکم په معنی کښې دې، ددې دپاره چه تاسوته دهواګانوپه ذریعه ځپل رحمت یعنی د باران اوشینکې په ذریعه سره خوندورکړی اودهغه په دپاره چه ددې حکم په ارادې سره دهواګانوپه ذریعه سره کشتیانې اوچلی اوددې دپاره چه تاسو ددې په ذریعه دهغه فضل یعنی رزق دسمندری سفرپه ذریعه سره دتجارت په توګه حاصل کړئ اوددې دپاره چه اې مکې والو، تاسو ددې نعمتونو شکر ادا کړئ اوبیا دهغه دتوحید قائله شئ او مونږ ستاسو نه وړاندې هم ځپل رسولان دهغوی قو مونو طرفته لیږلی وو اودوی هغوی ته ددوی دطرفنه درسولانو کیدلوپه باره کښې دځپل صداقت واضح دلیلونه راوړل، بیاهم هغه خلقو دځپلو پیغمبرانو تکذیب اوکړو بیامونږه دمجرمانونه بدله واخسته، یعنی کومو خلقو چه ددوی تکذیب اوکړو نومونږه هغوی هلاك کړل، اوپه

مونږه باندې دکافرانو په مقابله کښې دمسلمانانو مددکول لازم دی، چه کافران هلاك کړو او مومنان له نجات ورکړو، الله تعالی هغه ذات دې چه هغه هواګانې چلوی نو هغه وریځې له اوچتوی، حرکت ورکوی، اوبیاهغه دخپل منشاء مطابق په اسمان کښې لرې یا دیره خوروی اوبیاهغه دې اوریځې لره جداجداکړی کسفاً، دسین په فتحې اوسکون سره جداجداکول اوټکرې ټکرې کول، نو بیا اې مخاطبه ته به باران ته ګورې چه هغه داوریځې دمینځ نه راوځی بیا چه الله تعالی په خپلوبندګانوکښې دچادپاره دباران فیصله اوکړی نوپه هغوی باندې ئې اوورَوی نوهغوی په دې سره خوشحاله شی یعنی دباران په وجې دوی خوشحالی شی، یقنی خبره ده چه په دوی باندې دباران وریدونه وړاندې وړاندې خو دوی دباران نه ناامیده شوی وو وړومبی قبل تاکید دې، نوبیا ته سو دخدائې درحمت اثار اوګوره یعنی دانعمت دباران په شکل کښې اوپه یوقراء ت کښې آثرٌ دې چه هغه زمکه دمره کیدونه یعنی ددې داوچیدونه پس څنګه ژوندی کوی په دې توګه چه هغه ټکول شروع کړی، یقیناً هم دغه زمکه ژوندې کولو والا ذات به مړی هم دغه شان ژوندی کوی اوهغه په هر شی باندې قادر دې، اوقسم دې که چرې مونږ ددوی په فصلونو باندې نقصانی هوا اوچلو نو دوی به دافصلونه تک زیړ اوګوری نودوی به ددې فصلونو د زیړیدو نه پس دباران د نعمت ناشکری شروع کړی او ولئن کښې لام قسم دې بیشکه تاسو مړو ته اوروَل نشئ کولې اونه کڼروته خپل اواز اوروَلې شئ کله چه هغوی شاکړی اوروان شئ، ءاذا،کښې د دواړو همزو تحقیق دی، اودویم تسهیل سره، د یاء اوهمزې په مینځ کښې اوهم دغه شان تاسوړانده دهغوی دبې لارې نه په لارباندې نشئ راوستې، تاسو خوبس صرف دفهم اودقبول اوروَل هم هغه چاته کولې شی کوم چه زمونږ په آیتونوباندې قرآن باندې ایمان لری لهذا دالله په توحید کښې هم دا خلق مخلصین دی،

**قوله**:قفار:دقفرٌ جمع ده، اوار میدان ته وائې، قفار،دقاف په فتحې سره هغه روتې ته وائې کومه چه دسالن نه بغیر وی، بماکسبت:با سببیه ده او ما مصدریه ده ای بسب کسبهم لنذیقهم:کښې لام دعاقبت دې اوداد ظهر الفساد متعلق دې،

**قوله**:ای عقوبة: په دې سره حذف مضاف طرفته اشاره ده ای عقوبة ماعملوادلته کښې مجازاً دسبب اطلاق په مسبب باندې شوی دې، بد عملونه دعقوبت سبب وی نوځکه سبب وئیلې شوی دې اومرادترینه مسبب دې،

**قوله**: من الله: ددې تعلق د یاتی سره دې،

**قوله**: یومئذ:ددې تنوین دجملې په عوض کښې دې، ای یوم اذایاتی هذاالیوم،

**قوله**:یصدعون: دامضارع نه دجمع مذکرغائب صیغه ده په اصل کښې یتصدعون وو نو تاء مو په صاد سره بدله کړه اوصاد مو په صاد کښې بدل کړو اومصدرئې تصدع راځی

خوربدلو په معنی سره، دیو سخت څیزچاودل، ماتیدل، وبال کفرة اضافه ئې ددې دوجې نه اوکړه چه دمضاف حذف ته په کښې اشاره اوشي،

**قوله:** یوطئون :هغوی ښائسته کوی برابروی وطأ توطئة، درست کول خورول لیجزی د یصدعون، سره متعلق دې، ای یصدعون لیجزیهم، دوی به جدا جدا شی ددې دپاره چه الله دوی له جزاء ورکړی،

**قوله:** یثیبهم: دلیجزی تفسیر دې،

**قوله:** بمعنی لتبشرکم: ددې اضافې نه مقصود دیو سوال مقدرجواب ورکول دی،

**سوال:** دادې چه دلیذیقکم عطف په مبشرات باندې درست نه دې ځکه چه دادفعل عطف دې په اسم باندې؟ شارح ددې جواب ورکړوچه مبشرد تبشرپه معنی کښې دې، لهذا اس هیڅ اعتراض نشته دې،

**قوله:** ولقد ارسلنا من قبلك : داآیت د آیت مفصله یعنی :ومن ایاته ان یرسل (الأیة) اوآیت مفصله یعنی الله الذی یرسل الریاح الأیة په مینځ کښې جمله معترضه ده مطلب دادې چه ومن ایاته مفصل دې او الله الذی ددې تفصیل دې او ولقدارسلنا من قبلك آیت معترضه دې اومقصد ددې نه حضورمبارك ته تسلی ورکول دی،

**قوله:** فانتقمنا:ددې عطف په محذوف باندې دې، شارح، فکذبوا سره معطوف علیه محذوف دې طرف ته اشاره اوکړه،

**قوله:** وکان حقاً علینا نصرالمؤمنین :کان فعل ناقص دې او حقاً دهغې خبردې او نصرالمؤمنین اسم مؤخردې او علینا د حقاً متعلق دې،

**قوله:** وان وقد:شارح علیه الرحمة د، ان، تفسیر په، قد، سره کولوکښې دبغوی اتباع کړې ده، په دې صورت کښې واوحالیه دې، اونوروحضراتو، مخفف من المثقل ان، ګرځولي دې اوددې اسم ئې هم ضمیرشان ګرځولې دې اوتوله جمله ئې د انّ دپاره خبرګرځولې ده اوپه لمبلسین کښې لام فارقه دې،

**قوله:** لظلوا:داجواب قسم دې اودجواب شرط هم قائم مقام دې، ځکه چه قاعده داده چه کله شرط او قسم یوځې راشی نوپه دې کښې دړومبی جواب مذکور وی اوددوئیم جواب محذوف وی، او د ړومبنی جواب ددویم دجواب دقائم مقام وی، اودلته کښې، لئن،کښې قسم او شرط دواړه جمع شوی دی،

**[اياتونه: ٥٤ـ٦٠]**

﴿اللَّهُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ ضَعْفٍ﴾ مَاء مَهِين ﴿ثُمَّ جَعَلَ مِنْ بَعْدِ ضَعْفٍ﴾ آخَر وَهُوَ ضَعف الطفولية ﴿قُوَّةً﴾ أَيْ قُوَّة الشَّاب ﴿ثُمَّ جَعَلَ مِنْ بَعْدِ قُوَّةٍ ضَعْفًا وَشَيْبَةً﴾ ضَعْف الْكِبَر وَشَيْب الْهَرَم وَالضُّعْف فِي الثَّلَاثَة بِضَمِّ أَوَّله وَفَتْحه ﴿يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ﴾ مِنَ الضُّعْف وَالْقُوَّة وَالشَّبَاب وَالشَّيْبَة ﴿وَهُوَ الْعَلِيمُ﴾ بِتَدْبِيرِ خَلْقه ﴿الْقَدِيرُ﴾ عَلَى مَا يَشَاء ﴿وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ يُقْسِمُ﴾ يَحْلِف ﴿الْمُجْرِمُونَ﴾ الْكَافِرُونَ ﴿مَا لَبِثُوا﴾ فِي الْقُبُور ﴿غَيْرَ سَاعَةٍ﴾ قَالَ تَعَالَى ﴿كَذَلِكَ كَانُوا يُؤْفَكُونَ﴾ يُصْرَفُونَ عَنِ الْحَقّ الْبَعْث كَمَا صُرِفُوا عَنِ الْحَقّ الصِّدْق فِي مُدَّة اللُّبْث ﴿وَقَالَ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ وَالْإِيمَانَ﴾ مِنَ الْمَلَائِكَة وَغَيْرهمْ ﴿لَقَدْ لَبِثْتُمْ فِي كِتَابِ اللَّهِ﴾ فِيمَا كَتَبَهُ فِي سَابِق عِلْمه ﴿إِلَى يَوْمِ الْبَعْثِ فَهَذَا يَوْمُ الْبَعْثِ﴾ الَّذِي أَنْكَرْتُمُوهُ ﴿وَلَكِنَّكُمْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾ وُقُوعه ﴿فَيَوْمَئِذٍ لَا يَنْفَعُ﴾ بِالْيَاءِ وَالتَّاء ﴿الَّذِينَ ظَلَمُوا مَعْذِرَتُهُمْ﴾ فِي إِنْكَارهمْ لَهُ ﴿وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ﴾ لَا يُطْلَب مِنْهُمُ الْعُتْبَى أَيِ الرُّجُوع إِلَى مَا يُرْضِي اللَّه ﴿وَلَقَدْ ضَرَبْنَا﴾ جَعَلْنَا ﴿لِلنَّاسِ فِي هَذَا الْقُرْآنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ﴾ تَنْبِيهًا لَهُمْ ﴿وَلَئِنْ﴾ لَام قَسَم ﴿جِئْتَهُمْ﴾ يَا مُحَمَّد ﴿بِآيَةٍ﴾ مِثْل الْعَصَا وَالْيَد لِمُوسَى ﴿لَيَقُولَنَّ﴾ حُذِفَ مِنْهُ نُون الرَّفْع لِتَوَالِي النُّونَات وَالْوَاو ضَمِير الْجَمْع لِالْتِقَاءِ السَّاكِنَيْنِ ﴿الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ مِنْهُمْ ﴿إِنْ﴾ مَا ﴿أَنْتُمْ﴾ أَيْ مُحَمَّد وَأَصْحَابه ﴿إِلَّا مُبْطِلُونَ﴾ أَصْحَاب أَبَاطِيل ﴿كَذَلِكَ يَطْبَعُ اللَّهُ عَلَى قُلُوبِ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ﴾ التَّوْحِيد كَمَا طَبَعَ عَلَى قُلُوب هَؤُلَاءِ ﴿فَاصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ﴾ بِنَصْرِك عَلَيْهِمْ ﴿حَقٌّ وَلَا يَسْتَخِفَّنَّكَ الَّذِينَ لَا يُوقِنُونَ﴾ بِالْبَعْثِ أَيْ لَا يَحْمِلَنَّك عَلَى الْخِفَّة وَالطَّيْش بِتَرْكِ الصَّبْر أَيْ لَا تَتْرُكَنَّهُ

**ترجمه:** الله هغه ذات دې چه تاسو ئې دضعف يعنى دبې وقعته اوبې قدره اوبونه پيداكړئ اوبيا ئې ضعف آخريعنى دماشومتوب نه پس ئې تاسو ته قوت اوتوانائې دركړه يعنى قوت شباب اوبيائې دقوت نه پس ضعف اوبډهاتوب دركړو، يعنى بوډها توب دكمزورې اودسپين ويختو په شكل كښې، اولفظ دضعف په درې واړوځايونو كښې دضاد په ضمې اوفتحې سره دې اوهغه ضعف اوقوت اوځوانى اوبوډاتوب چه څه اوغواړى نوهغه پيداكړى اوهغه دخپل مخلوق دتدبيرنه خبردار دې اوچه څه اوغواړى په هغې باندې قادر دې، اوپه كومه ورځ چه به قيامت قائم شى نومجرمان كافران به قسمونه خورى چه مونږه په قبرونوكښې د يو ساعت او يو ګهړۍ درنګ نه زيات نه دې تير كړې الله تعالى اوفرمائيل چه هم دغه شان دوى حق يعنى دبعث بعدالموت نه په دنياكښې الټه اوړى روان وو لكه څنګه چه دمدت بعث په باره كښې دحقيقى رښتيانه الټه روان دى. اوكوموملائكو وغيره ته چه علم اوايمان وركړې شوې دې هغوى به اووائى چه تاسوخودالله تعالى د ليكلې شوې تقدير مطابق يعنى دهغه د تقدير مطابق كوم چه دهغه په علم ازلى كښې دې دقيامت دورځې پورې وخت تير كړو، داورځ هم دبعث ده د كوم نه چه تاسو انكاركولو خوتاسوخو ددې دوقوع يقين هم نه ساتې غرض داچه په دې ورځ به ظالمانوته دبعث دانكارپه باره كښې معذرت هيڅ فائده نه وركوى په

تنفع کښې یاء او تاء دواړه صحیح دي او نه به د دوی نه د توبې مطالبه کولې شي یعني دوی ته به د الله تعالی د خوشنودې حاصلولو دپاره نه شي وئیلې، او مونږه د خلقو دپاره په دې قرآن کښې دوی ته د تنبیه کولو دپاره هر قسمه عمده (ناشنا، ښکلي) مضمونونه بیان کړي دي او قسم دې اې محمد که چرته تاسو دوی ته د موسی علیه السلام د عصا او دید بیضاء په شان معجزې هم راوړې نو بیا هم په دوی کښې چه کوم کافران دي هغوی به هم داوائي چه ته او ستا ملګري اهل باطل دي کوم خلق چه د توحید علم (یقین) نه لري الله تعالی به د هغوی په زړونو باندې مهر اولګوی لکه چه د دغه خلقو په زړونو باندې ئې مهر اولګولو لهذا تاسو صبر کوئ بیشکه د هغوی په مقابله کښې د الله تعالی وعده ستاسو د نصرت رښتونې ده او د بعث بعد الموت یقین نه لرونکی داخلق (چرته) تاسو بې صبره نه کړي یعني (چرته) تاسو غولولو سره په جلدبازي او غصه باندې مجبور نه کړي یعني په هر حال کښې ستاسو د لاس نه د صبر لمن نه دی خلاصیدل پکار یعني په هر حال کښې صبر کوئ.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** مـاءِمهـيْنٍ دا د ضُعْفٍ تفسیر دې، د دې تفسیر مقصد یو اعتراض دفع کول دي.
اعتراض دا دې چه ضُعْف صفت دې د دې نه د څه څیز تخلیق نه شي کیدې.
**جواب:** د جواب خلاصه داده چه د ضعف نه مراد اصلِ ضعف دې لکه چه نطفه په اصل ضعیف ده یعني ضعف مصدر د ذو ضعفٍ په معنی کښې دې.
**قوله:** الله الذي خَلَقَكُمْ جمله مبتدا او خبر دي.
**قوله:** شَيْبَةً د ویښتو سپینوالې چه په عام توګه باندې د درې څلویښتو کالو په عمر کښې ښکاره کیږي او هم دغه د کهولت شروع وي.
**قوله:** من الضُّعفِ والقوة، د مَا بیان دې.
**قوله:** من الملائكة وغيرهم اي الانبياء والمؤمنون.
**قوله:** وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ استعتاب د (استفعال مصدر دې، د هغوی نه به (د الله تعالی) د رضا کولو خواهش نه کیږي، بعض مفسرینو ترجمه کړې ده چه د هغوی عذر به نه شي قبلولې. علامه محلی رحمه الله د دې لفظ په تشریح کښې فرمائیلي دي لايُطْلَبُ منهم العتبى اي الرجوع الى مَا يرضى الله د دې ظالمانو نه به د توبې مطالبه نه شي کولې یعني د داسې عمل طرف ته رجوع کولو دپاره به نه شي وئیلې په کوم سره چه الله تعالی راضي شي. امام بغوی رحمه الله په معالم کښې لیکلي دي لايكلفون أن يَرْضَوْا ربهم لان الاخرة ليست بدار التكليف د قیامت په ورځ به هغوی د الله تعالی په رضا کولو باندې مکلف کیږي نه، ځکه چه دار آخرت دار تکلیف نه دې بلکه دار جزاء دې صاوی رحمه الله وئیلي دي العُتْبى، الرُّجْعى په شان دې په وزن او معنی

کنبې، اودَ لَا يُسْتَعْتَبُوْنَ معنی ده دنیاته دَ واپس تللو دَعوی درخواست به قبلولې نه شي په نورو اياتونو کنبې هم دا مضمون بيان کړې شوې دې چه کافران او مشرکان به دَ قيامت په ورځ دَ الله تعالی نه دا درخواست کوی چه مونږ دنیاته واپس کړه او يوه موقع راکړه دې دَ پاره چه دَ مافات تلافي اوکړو شو.

قوله لَيَقُوْلَنَّ دَدې نه پس عبارت دَ شارح دَ قلم سبقت دې غالبًا دَ جمع مذکر غائب صيغه ني کنړلی ده ځکه ني مذکوره تعليل کړې دې کنی په اتفاق دَ قراء لَيَقُوْلَنَّ کنبې لام مفتوح دې او الذين کفروا دَدې فاعل دې.

قوله. فَاصْبِرْ د شرط محذوف جزاء ده اى إِذَا عَلِمت حَالَهم انهم لايؤمنون فَاصْبِرْ.

## [۳۱] سورة لقمان

سورة لقمان مكية الا: ولو ان ما في الارض من شجرة أقلام الآيتين وهي اربع وثلثون آية

سوره لقمان مکی دې سوا د (ولوان مافي الارض من شجرة أقلام) دوه آيتونو نه، او دا ۳۴ آيتونه دی.

### [اياتونه: ۱ ـ ۱۱]

بسم الله الرحمن الرحيم (الم) اللَّه أَعْلَم بِمُرَادِهِ بِهِ (تِلْكَ) أَيْ هَذِهِ الْآيَات (آيَاتُ الْكِتَابِ) الْقرآن (الْحَكِيمِ) ذي الحكمة والإضافة بمعنى من هو (هُدًى وَرَحْمَةً) بالرفع (لِلْمُحْسِنِينَ) وَفِي قِرَاءَة الْعَامَّة بِالنَّصْب حَالًا مِنَ الْآيَات الْعَامِل فِيهَا مَا فِي (تِلْكَ) مِنْ مَعْنَى الإشارة (الَّذِينَ يُقِيمُونَ الصَّلَاةَ) بَيَان لِلْمُحْسِنِينَ (وَيُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَهُمْ بِالْآخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ) هُمْ الثَّانِي تَأْكِيد (أُولَئِكَ عَلَى هُدًى مِنْ رَبِّهِمْ وَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ) الفائزون (وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ) أَيْ مَا يُلْهِي مِنْهُ عَمَّا يَعْنِي (لِيُضِلَّ) بِفَتْحِ الْيَاء وَضَمِّهَا (عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ) طَرِيق الْإِسْلَام (بِغَيْرِ عِلْمٍ وَيَتَّخِذَهَا) بِالنَّصْبِ عَطْفًا عَلَى يُضِلّ وبالرفع عطفا على يشتري (هُزُوًا) مَهْزُوءًا بِهَا (أُولَئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُهِينٌ) ذُو إهانة (وَإِذَا تُتْلَى عَلَيْهِ آيَاتُنَا) أَيْ الْقُرْآن (وَلَّى مُسْتَكْبِرًا) مُتَكَبِّرًا (كَأَنْ لَمْ يَسْمَعْهَا كَأَنَّ فِي أُذُنَيْهِ وَقْرًا) صَمَمًا وَجُمْلَتَا التَّشْبِيه حَالَانِ مِنْ ضَمِير وَلَّى أَوْ الثَّانِيَة بَيَان لِلْأُولَى (فَبَشِّرْهُ) اعلمه (بِعَذَابٍ أَلِيمٍ) مؤلم و ذكر الْبِشَارَة تَهَكُّم بِهِ وَهُوَ النَّضْر بْن الْحَارِث كَانَ يَأْتِي الْحِيرَة يَتَّجِر فَيَشْتَرِي كُتُب أَخْبَار الْأَعَاجِم وَيُحَدِّث بِهَا أَهْل مَكَّة وَيَقُول إنَّ مُحَمَّدًا يُحَدِّثكُمْ أَحَادِيث عَاد وَثَمُود وأنا أُحَدِّثكُمْ أَحَادِيث فَارِس وَالرُّوم فَيَسْتَمْلِحُونَ حَدِيثه وَيَتْرُكُونَ اسْتِمَاع القرآن (إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ جَنَّاتُ النَّعِيمِ) (خَالِدِينَ فِيهَا) حَال مُقَدَّرَة أَيْ مُقَدَّرًا خُلُودهمْ فِيهَا إذَا دَخَلُوهَا (وَعْدَ اللَّهِ حَقًّا) أَيْ وَعَدَهُمْ اللَّه ذَلِكَ وَحَقَّه حَقًّا (وَهُوَ الْعَزِيزُ) الَّذِي لَا يَغْلِبهُ شَيْء فَيَمْنَعهُ مِنْ إنْجَاز وَعْده وَوَعِيده (الْحَكِيمُ) الَّذِي لَا يَضَع شَيْئًا إلا في محله (خَلَقَ السَّمَاوَاتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا) أَيْ الْعَمَد جَمْع عِمَاد وَهُوَ الْأُسْطُوَانَة وَهُوَ صَادِق بِأَنْ لَا عَمَد أَصْلًا (وَأَلْقَى فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ) جِبَالًا مُرْتَفِعَة لِ (أَنْ) لَا (تَمِيدَ) تَتَحَرَّك (بِكُمْ وَبَثَّ فِيهَا مِنْ كُلِّ دَابَّةٍ وَأَنْزَلْنَا) فِيهِ الْتِفَات عَنْ الْغَيْبَة (مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَنْبَتْنَا فِيهَا مِنْ كُلِّ زَوْجٍ

كَرِيمٍ) صنف حسن (هَٰذَا خَلْقُ اللَّهِ) أي مخلوقه (فَأَرُونِي) أخبروني يا اهل مكة (مَاذَا خَلَقَ الَّذِينَ مِن دُونِهِ) غيره أي آلهتكم حتى أشركتموها به تعالى وما استفهام إنكار مبتدأ وذا بمعنى الذي بصلته خبره وأروني معلق عن العمل وما بعده سد مسد المفعولين (بَلْ) للانتقال (الظَّالِمُونَ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ) بين بإشراكهم وأنتم منهم

ترجمه: شروع كوم په نامه دَ الله چه ډير بخښونكې او ډير مهربان دې. الٓمٓ دَدې (حقيقى) مراد خو الله تعالى بهتر پيژنى تِلْكَ يعنى دا آياتونه دَ حكمت والا كتاب يعنى د قرآن آياتونه دى اضافت په معنى دَ مِنْ دې هغه دَ نيكانو دَپاره لارخودونكې او (سراسر) رحمت دې دَ رَحْمَةٌ په رفع سره، رَحْمَةً په عام قراءت كښې دَ ايات نه حال واقع كيدو دَ وجې نه منصوب دې (او) عامل په دې كښې هغه (فعل) دې كوم چه په تِلْكَ كښې دَ اشارې معنى ده (يعنى أُشِيْرُ كوم خلق چه مونځ قائموى دا دَ محسنينو بيان دې او زكوة اداكوى او په آخرت باندې (كامل) يقين لرى دويم هُمْ دَ ړومبې هُمْ تاكيد دې هم دغه خلق دى چه دَخپل رب دَ طرف نه په هدايت باندې دى او هم دغه خلق خلاصې بيامومونكى دى كامياب دى او بعض خلق داسې دى چه فضول خبرې اخلى يعنى هغه څيز دكوم په وجه چه دَ مقصد نه غافل پاتې شى (نوټ) دا ترجمه په هغه صورت كښې ده كله چه يُلْهِى معروف اولوستلې شى او كه يُلْهِى مجهول اولوستلې شى نو ترجمه به داسې شى او بعض خلق داسې دى چه داسې لغويات اخلى دَ كوم په ذريعه چه دَ مقصد نه غافل كړې شى دې دَپاره چه دَ الله تعالى دَ لارې نه يعنى دَ اسلام دَ طريقې نه دَ ناپوهئ دَ وجې نه په گمراهئ كښې پريوځى (يا) دې دَپاره چه خلق گمراه كړى لِيُضِلَّ په فتحه او ضمه سره دې وَيَتَّخِذَهَا نصب سره به په يُضِلَّ باندې عطف وى او په رفع سره به په يَشْتَرِى باندې عطف وى دې دَپاره چه د دې آياتونو يعنى دَ سبيل الله مسخرې اوكړى هم دغه هغه خلق دى دَ چا دَپاره چه رسوا كونكې عذاب دې او كله چه دوى ته زمونږ آياتونه يعنى قرآن لوستلې اوروللې شى نو كبر كولو سره داسې مخ اړوى لكه چه ده هډو اوريدلې نه دې لكه چه دَ ده په غوږونو كښې درُوند والې دې يعنى غوږونه ئې درانه دى او دَ تشبيه دواړه جملې د ولّى دَ ضميرنه حال دى يا دويمه جمله دَ ړومبې جملې بيان دې تاسو ده ته دَ دردناک عذاب خبر وركړئ او دَ زيرى ذكر دَ ده دَپاره دَ توقو مسخرو په توگه دې او هغه نضر بن حارث دې چه دَ تجارت په سلسله كښې به حيره ته تللو (هلته) نه به ئې دَ عجميانو تاريخى كتابونه راوړل او هغه كتابونه به ئې اهل مكه ته اورول او وئيل به ئې چه محمد ﷺ خو تاسو ته دَ عاديانو او ثموديانو قصې اوره وى او زه تاسو ته دَ روم او فارس قصې او روم نودې خلقو به دَ هغه خبره خوښوله او قرآن اوريدل به ئې پريخودلو. بيشكه كوم خلقو چه ايمان قبول كړو او كارونه ئې هم نيک كړى دى دَ هغوى دَپاره دَ نعمتونو والا جنتونه دى چرته چه به هغوى هميشه

اوسیږی، حال مقدره دي يعني دهغوی په جنت کښې دهمیشه دَ پاره اوسیدل مقدر شوی دی کله چه هغوی په دې کښې داخل شی دَ الله تعالی وعده ربښتونې يعنى الله تعالى هغوی سره وعده کړې ده ربښتونې وعده هغه دَ غلبې والا ده هغه لره هیڅوك مغلوب کولې نه شی چه هغه دَ خپلو وعدو اووعیدونوپوره کولونه منع کړې شی. هغه دَ لوئی حکمت والا دې چه هرڅیز هم دهغې په محل او موقع کښې اږدی هم هغه آسمان بغیر د ستنو جوړکړو (لکه څنګه) چه تاسو هغې ته ګورئی عَمَدٌ دَ عِمَادٌ جمع ده او معنی ئې ستنې دی اوداخبره په دې صورت کښې هم صادق راځی چه ستن بالکل نه وی او په زمکه ئې باندې اوچت اوچت غرونه کیخودل دې دَپاره چه په تاسو (اضطرابی) حرکت اونه کړی او هرقسم څناورئی په زمکه کښې خواره کړل اومونږ دَ آسمان نه اوبه راؤرولې په دې کښې دَغیبت (نه دَ تکلم طرف ته) التفات دې بیا په دغه زمکه کښې د قسم قسم (بوټو نه) ښکلې قسمونه راؤټوکول دادی دَالله تعالی پیداکړې شوی (څیزونه) يعنى دهغه مخلوق، اوس اې مکې والوماته اوښایئې چه غیرالله څه پیداکړی دی؟ يعنى ستاسو معبودانو چه تاسو هغوی دَ الله تعالی سره شریك ګرځولی دی مَا استفهام انکاری مبتدأ ده اوذَا په معنی د الذی د خپلې صلې سره دَدې خبردې او اَرُوْنِی دَ عمل نه منع کړې شوې دې اودَدې مابعدَ د دوو مفعولو قائم مقام دې بل دَ انتقال دَپاره دې بلکه ظالمان په ښکاره ګمراهئی کښې دی دَهغوی دَ شرك کولودَ وجې نه او هم دَدوی نه تاسو هم یئې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** اَیْ هٰذِهِ الاٰیَات، تِلْكَ د اسم اشارهٔ بعید تفسیر په هذه اسم اشارهٔ قریب سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چه دَ سورت ایات دَالله تعالی په نیزدَ مرتبې په لحاظ سره رفیع القدر دی اګرچه اذهان ته نیزدې دی. هُوَ محذوف منلو کښې ئې اشاره اوکړه چه هُدًی وَرَحمَةً دَمبتدأ محذوف خبر دې او که چرې هدًی او رحمةً منصوب وی نو د آیات نه به حال وی او عامل به ئې تِلْكَ دَ یُشِیْرُ په معنی کښې وی.

**قوله:** وَمِنَ النَّاسِ مَنْ یَشْتَرِی لَهْوَالحدیث د دې نه وړاندې آیت کښې دَ نیکانو مؤمنانو ذکر وپه دې آیت کښې دَ مقابلې په توګه دَ بدکاره مشرکانو ذکردې په رومبی آیت کښې دَ محسنینو دَ اوصافو ذکر وو په دې آیت کښې دَ مشرکانو دَ اوصاف ذکر دې. وَمِنَ النَّاس کښې مِن تبعیضیه دې اودَ شان نزول په اعتبار سره اګرچه یوخاص سړی نضر بن حارث بن کلده مراد دې مګر الفاظ عام دی په کوم کښې چه لهوالحدیث سره شوق لرونکې هرسړې داخل دې.

قوله: لَهْوَ (ن) مصدر دې په داسې فضول کار کښې مشغولیدل د کوم په وجه سره چه فائده مند کار پاتې شی دلته مصدر د اسم فاعل په معنی کښې دې یعنی هغه فضول خبرې کومې چه غافل کونکې وی، لَهْوَالحدیث دا اضافت په معنی د مِن دې لکه چه شارح رحمه الله په منه سره اشاره کړې ده په اصل کښې لَهْوٌ من الحدیث وو د فضول او بې هوده قصولو بې توقې.

قوله: عَمَّا یعنی، مایعنی هغه څیز چه مقصود وی اوس ترجمه دا شوه لَهْوَالحدیث هغه شې چه د فائده مند او کار والا شې نه غافل کړی.

قوله: ای مَا یُلْهِی (س) واحد مذکر غائب مضارع معروف.

قوله: لِیَضِلَّ او لِیُضِلَّ دواړه قراءتونه دی په ړومبی صورت کښې به ترجمه دا وی هغه لهو الحدیث څکه اخلی او راوړی دې دپاره چه په خرافات او قصه ویونکو کښې همیشه مشغولیدو سره پخپله گمراه پاتې شی او په دویم صورت کښې به ترجمه دا وی دې دپاره چه هغه نور خلق گمراه کړی یعنی ضال هم دې او مضل هم.

قوله: صَمَمًا دا د وَقْرًا تفسیر دې وقر ډاټ ته وائی کوم چه محسوس او د بهر څیز وی دلته معنوی ډاټ مراد دې او هغه درروند والې او کوڼ والې دې نه اوریدل یا اوریدل خو عمل نه کول ئې په وقر سره تعبیر کړې دی.

قوله: فَبَشِّرْهُ ای اَعْلِمْهُ دبشره تفسیر په ئې اَعْلِمْهُ سره کولو کښې اشاره اوکړه چه دلته خوشخبری او زیرې مراد نه دې څکه چه د عذاب الیم د خوشخبرئی هیڅ مطلب نشته څکه چه خوشخبری خود بنه خبر وی مراد ترې نه مطلقًا خبرور کول دی.

قوله: وَذِکْرُالْبَشَارَةِ تَهَکُّمٌ دا د فَبَشِّرْهُ دویم تفسیر دې د شارح علام دپاره مناسب وه چه دلته ئې د واؤ په ځائې اَوْ ذکر کړې وې. د دویم تفسیر خلاصه داده چه دلته د بشارت نه مراد هم بشارت یعنی زیرې دې خو دا د توقو او خندا کولو په توگه دې

قوله: خالدین فیها دا د جَنّٰتُ یا لَهُمْ د ضمیرنه حال مقدره دې څکه چه د حال او ذوالحال زمانه یو کیدل ضروری دی.

قوله: وَعَدَهُمُ اللهُ ذٰلِكَ په دې تفسیر سره ئې اشاره اوکړه چه وَعْدًا مصدر دې او د خپل فعل په ځائې واقع دې یعنی فعل ئې حذف کړو او مصدرئې د هغې په ځائې کیخودو. تقدیری عبارت داسې وو وَعَدَهُمُ اللهُ وَعْدًا او وَعْدًا مصدر مؤکدلنفسه دې څکه چه لَهُمْ جنات النعیم په معنی کښې د وَعَدَهُمُ اللهُ ذٰلِكَ دې او حَقًّا مصدر مؤکدلغیره دې څکه چه هره یوه وعده حق نه وی

قوله: اُسْطُوَانَةٌ ستن (ج) اساطین.

قوله: هُوَ صَادِقٌ بِاَن لاعَمَدَ اَصْلاً شارح رحمه الله په مذکوره عبارت سره د بِغَیْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا د

دوو معنو طرف ته اشاره کړې ده. ①یو مطلب دادې چه الله تعالی اسمانونه په داسې ستنو قائم کړی دی کومې چه تاسو نه شئی لیدلې اودې ②دویم مطلب دادې چه آسمانونه ئې بغیرد ستنو قائم کړی دی کوم چه تاسو نه شئ لیدلې اودې دریم مطلب دادې چه آسمانونه ئې بغیرد ستنو پیدا کړل ځکه چه کله د آسمانونو ستنې نشته نو ښکاری به د کوم ځائې نه، ځکه چه قضیه سالبه څنګه چه د موضوع د پاره محمول نه ثابتیدو په صورت کښې صادق راځی نو دغه شان موضوع د سر نه د نه موجودکیدو په صورت کښې هم صادق راځی که چرې زید ناست وی نو زید لیس بقائم وئیل صحیح دی او که چرې زید په دنیا کښې موجود نه وی نو بیا هم زید لیس بقائم صادق دې.

**قوله:** لِاَنَّ لَا تَمِيْدَ بِكُمْ مفسر علام لام تعلیل او لائې نافیه مقدر منلو سره اشاره کړې ده چه په زمکه کښې د غرونو د نصب کولو علت زمکه د اضطرابی حرکت نه منع کول دی. په یو نسخه کښې د ان نه وړاندې لام مکتوب نشته او د صاوی په نسخه کښې لام تعلیلیه هم مکتوب دې.

**قوله:** مَاذَا خَلَقَ الَّذِيْنَ مِنْ دُوْنِهٖ،غَيْرِهٖ، دا د دونه تفسیر دې. آلِهَتُكُمْ، د الذین تفسیر دې مَاذَا کښې مَا استفهام انکاری دې او مبتدأ ده او ذا په معنی د الذی د خپلې صلې سره د مبتدأ خبر دې او عائد محذوف دې ای ما الذی خلقه آلِهَتُكُمْ او اَرُوْنِي ممنوع العمل دې لفظًا، ځکه چه دد ما استفهامیه نه وړاندې واقع شوې دې که چرې اروني ته عمل ورکړې شی نو دَمَا استفهامیه صدارت د کلام به باطل شی.

**قوله:** مَا بَعْدَهٗ سَدَّ مَسَدَّ المفعولين. دا په دې صورت کښې صحیح دی چه اروني متعدی دریو مفعولو ته او منلې شی نو په دې صورت کښې به مفعول اول د اَرُوْنِي یاء وی او روستنې جمله به قائم مقام د دوؤ مفعولو وی مګر دا دې خلاف دی کوم چه بیان کړې شوی دی چه اَرِی کله د اَخْبِرْ په معنی کښې وی نو متعدی وی دوو مفعولو ته لکه څنګه چه دلته دی لهذا په دې صورت کښې د شارح رحمه الله سد مسد المفعولین وئیل مناسب نه معلومیږی بلکه که سد مسد المفعول الثانی ئې فرمائیلې وې نو بهتر به وه.

**[ایاتونه: ۱۲ ـ ۱۹]**

---

﴿وَلَقَدْ اٰتَيْنَا لُقْمٰنَ الْحِكْمَةَ﴾ مِنْهَا الْعِلْم والدِّيَانَة وَالْإِصَابَة فِي الْقَوْل وَحِكَمه كَثِيرَة مَأْثُورَة كَانَ يُفْتِي قَبْل بَعْثَة دَاوُد وَأَدْرَكَ زمانه وَأَخَذَ عَنْهُ الْعِلْم وَتَرَكَ الْفُتْيَا وَقَالَ فِي ذَلِكَ أَلَا أَكْتَفِي إِذَا كُفِيت وَقِيلَ لَهُ أَيّ النَّاس شَرّ قَالَ الَّذِي لَا يُبَالِي إِنْ رَآهُ النَّاس مُسِيئًا ﴿أَنْ﴾ أَيْ وَقُلْنَا لَهُ أَنْ ﴿اشْكُرْ لِلّٰهِ﴾ عَلَى مَا أَعْطَاك مِنْ الْحِكْمَة ﴿وَمَنْ يَّشْكُرْ فَإِنَّمَا يَشْكُرُ لِنَفْسِهٖ﴾ لِأَنَّ ثَوَاب شُكْره لَهُ ﴿وَمَنْ كَفَرَ﴾ النِّعْمَة ﴿فَإِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ﴾ عَنْ خَلْقه ﴿حَمِيْدٌ﴾ مَحْمُود

بي صنعه (وَ) اذْكُرْ (إِذْ قَالَ لُقْمَانُ لِابْنِهِ وَهُوَ يَعِظُهُ يَا بُنَيَّ) تَصْغِير إِشْفَاق (لَا تُشْرِكْ بِاللَّهِ إِنَّ الشِّرْكَ) بِاللّه (لَظُلْمٌ عَظِيمٌ) فرجع إليه واسلم (وَوَصَّيْنَا الْإِنسَانَ بِوَالِدَيْهِ) أَمَرْنَاهُ أَنْ يَبَرَّهُمَا (حَمَلَتْهُ أُمُّهُ) فَوَهَنَتْ (وَهْنًا عَلَىٰ وَهْنٍ) أَيْ ضَعُفَتْ لِلْحَمْلِ وَضَعُفَتْ لِلطَّلْقِ وَضَعُفَتْ لِلْوِلَادَةِ (وَفِصَالُهُ) أَيْ فِطَامه (فِي عَامَيْنِ) وَقُلْنَا لَهُ (أَنِ اشْكُرْ لِي وَلِوَالِدَيْكَ إِلَيَّ الْمَصِيرُ) أَيِ الْمَرْجِع (وَإِن جَاهَدَاكَ عَلَىٰ أَن تُشْرِكَ بِي مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ) مُوَافَقَة لِلْوَاقِعِ (فَلَا تُطِعْهُمَا وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا) أَيْ بِالْمَعْرُوفِ الْبِرّ وَالصِّلَة (وَاتَّبِعْ سَبِيلَ) طَرِيق (مَنْ أَنَابَ) رَجَعَ (إِلَيَّ) بِالطَّاعَةِ (ثُمَّ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ) فَأُجَازِيكُمْ عَلَيْهِ وَجُمْلَة الْوَصِيَّة وَمَا بَعْدَهَا اعْتِرَاض (يَا بُنَيَّ إِنَّهَا) أَيِ الْخَصْلَة السَّيِّئَة (إِن تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ فَتَكُن فِي صَخْرَةٍ أَوْ فِي السَّمَاوَاتِ أَوْ فِي الْأَرْضِ) أَيْ فِي أَخْفَى مَكَان مِنْ ذَلِكَ (يَأْتِ بِهَا اللَّهُ) فَيُحَاسِب عَلَيْهَا (إِنَّ اللَّهَ لَطِيفٌ) بِاسْتِخْرَاجِهَا (خَبِيرٌ) بِمَكَانِهَا (يَا بُنَيَّ أَقِمِ الصَّلَاةَ وَأْمُرْ بِالْمَعْرُوفِ وَانْهَ عَنِ الْمُنكَرِ وَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا أَصَابَكَ) بِسَبَب الْأَمْر وَالنَّهْي (إِنَّ ذَٰلِكَ) الْمَذْكُور (مِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ) أَيْ مَعْزُومَاتهَا الَّتِي يُعْزَم عَلَيْهَا لِوُجُوبِهَا (وَلَا تُصَعِّرْ) وَفِي قِرَاءَة تُصَاعِر (خَدَّكَ لِلنَّاسِ) لَا تَمِلْ وَجْهك عَنْهُمْ تَكَبُّرًا (وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا) أَيْ خُيَلَاء (إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ) مُتَبَخْتِر فِي مَشْيه (فَخُورٍ) على الناس (وَاقْصِدْ فِي مَشْيِكَ) تَوَسَّطْ فِيهِ بَيْنَ الدَّبِيب وَالْإِسْرَاع وَعَلَيْك السَّكِينَة وَالْوَقَار (وَاغْضُضْ) اخْفِضْ (مِن صَوْتِكَ إِنَّ أَنكَرَ الْأَصْوَاتِ) أَقْبَحهَا (لَصَوْتُ الْحَمِيرِ) أَوَّله زَفِير وَآخِره شَهِيق

**ترجمه:** اوبيشكه مونږ حضرت لقمان ته حكمت وركړې وو اوهم دَدې نه علم ديانت او ربنتياخبرې كول دى اودَهغه دَ حكمت (خبرې) ډيرې دى كومې چه نقل دى اوهغوى به دَحضرت داؤد علیه السلام دَ بعثت نه وړاندې فتوىٰ وركوله، حضرت لقمان دَ حضرت داؤد علیه السلام په زمانه كښې وو اودَهغوى نه ئې علم هم حاصل كړې وو اودَ (داؤد علیه السلام دَ بعثت نه پس) ئې فتوىٰ وركول پرېخودې وو اودَ فتوىٰ (په معامله كښې) ئې اوفرمائيل زه دې نه بس نه كړم كله چه زما په ځائ بل سوك كافي شو؟ اودَ حضرت لقمان نه تپوس اوكړې شو چه بدترين سړې كوم يودې؟ جواب ئې وركړو چه هغه سړې چه دَ دې خبرې پرواه اونه كړى چه خلق به هغه په بدوكولوسره اووينى يعنى مونږ هغه ته اووئيل چه ته دَالله تعالى شكر كوه په دې خبره باندې چه تاته ئې حكمت دركړې دې اوهرشكر كونكې هم دَخپلې فائدې دَپاره شكر كوى خكه چه دَهغه دَ شكر كولو اجر هم هغه ته ملاويږى اوچاچه دَنعمت ناشكرى اوكړه (هغه دې پوهه شى) چه الله تعالى دَ خپل مخلوق نه بې پرواه دې او په خپل صنعت كښې دَ ستاينې يعنى دَتعريف قابل دې اوهغه وخت يادكړه كوم وخت چه حضرت لقمان خپل ځوئې ته نصيحت كولوسره اووئيل اې زما بچيه بُنَىَّ دَ شفقت دَپاره تصغير دې الله تعالى سره شريک مه كړځوه بيشكه الله تعالى سره شريک كرځول ډيرلوئې ظلم دې نوهغه دَ لقمان خبره اومنله او اسلام ئې قبول كړو اومونږ انسان ته دَخپل مورپلار سره دَ ښه سلوک كولو

(تاکیدي) حکم ورکړې دې دَهغه مور دَ تکلیف دَپاسه تکلیف تیرولو سره هغه په خیټه اوساتلو
یعنی دَحمل دَ وجې نه هغې ته کمزوری اورسیدله اودَ بچې پیداکیدو په درد سره ورته
کمزوری پیداشوه او دَ ولادت دَ وجې نه کمزورې شوه اوپه دوه کالو کښې هغه دَ پیئو نه پرې
کولې شی اومونږ هغه ته اووئیل چه ته زما اوَ د خپل مورپلار شکر اداکوه هم زما طرف ته
راواپس کیدل دی اوکه چرې هغه دواړه (هم) په تا باندې دَ دې خبرې زورنه واچوی چه ته ماسره
داسې څیز شریک کړه دَ کوم چه تاسره دَ واقع مطابق دلیل نه وی نودَ هغوی وینامه منه او په
دنیاکښې هغوی سره ښه وخت تیروه یعنی په ښه سلوك سره اودَهغه کس دَ طریقې تابعداری کوه
چه زماطرف ته دَ طاعت په ذریعه رجوع کونکې وی بیاتاسو ټول به هم زماطرف ته واپس
راګرځئ بیا به زه تاسو ته اوښایم څه چه تاسو کول بیا به دَهغه اعمالو تاسو ته بدله ورکوم دَ
وصیت اودَ هغې نه مابعد جمله جمله معترضه ده، اې زما خوږه بچیه خراب خصلت اګرچه
که هغه دَا اوری دَ دانې برابروی او بیا هغه (هم) په کاڼړی کښې وی یا په آسمانونوکښې وی یا په
زمکه کښې وی یعنی دَ دغه ذکر شوو ځایونونه په زیات پټ ځائې کښې وی الله تعالی به
هغه خامخا راوُباسی اوبیابه په هغې باندې محاسبه کوی بیشکه الله تعالی دَهغې د راویستو
په باره کښې باریک بین دې اودَهغې دَ ځائې نه خبردې، اې زما خوږه بچیه ته مونځ قائموه اودَ
خو کارونو نصیحت کوه اودَ خرابو کارونو نه منع کول کوه اودَ امر اونهی دَ وجې نه که په
تاباندې څه مصیبت راشی نو صبرکوه یقین اوکړه چه دا صبرکول دَ دیر همت والا کارونونه دی
یعنی دا صبر دَهغه امورو نه دې دَ کوم دَ واجب کیدو دَ وجې نه چه دَدې تاکید کړې شوې
دې اوته دَ خلقونه دَ تکبر دَ وجې نه خپل مخ مه اړوه او په زمکه باندې په کبر سره مه ګرځه یعنی
په عجب او خان خوښئ سره، بیشکه الله تعالی په کبرسره تګ کونکی او دَخلقو په مقابله
کښې فخرکونکی نه خوښوی او ته په خپل رفتارکښې دَ توخیدو او د منډې په مینځ کښې
اعتدال اختیارکړه او وقعت او وقار اختیارکړه او خپل آواز ښکته ساته یقیناً په آوازونو کښې دَ
ټولونه ناخوښه آواز دَ خرآواز دې (دَ خرد آواز) رومبې حصه زفیر دې اودَدې آخر شهیق دې

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: وَلَقَدْ اٰتَيْنَا لُقْمَانَ الْحِكْمَةَ دَ لفظ د لقمان باره کښې بعضو وئیلی دی چه دا عجمی
لفظ دې اوعلمیت او عجمه دَ وجې نه غیرمنصرف دی او بعض حضراتو وئیلی دی چه
عربی لفظ دې علمیت او الف نون زائدتان دَ وجې نه غیرمنصرف دې او د حضرت لقمان
عليه السلام دَنسب په باره کښې مختلف اقوال دی بعض حضرات لقمان بن باغور بن ناخور بن
تارخ او تارخ دَ آزر نوم دې دَدې نسب په اعتبارسره حضرت لقمان عليه السلام دَحضرت ابراهیم
عليه السلام دَ رور نمسی دې او بعضې حضراتو ورته دَحضرت ایوب عليه السلام خورئې وئیلې دې
اوبعضو دَحضرت ابراهیم عليه السلام دَ ترور خوئی وئیلی دې. وئیلی شی چه حضرت لقمان عليه السلام

زر کاله ژوندي وو تردې چه دحضرت داؤد عليه السلام زمانه ئې هم ليدلې ده، جمهور په دې خبره متفق دی چه حضرت لقمان حکيم وو نبی نه وو البته عکرمه رحمه الله او امام شعبی رحمه الله دَ هغوی دَ نبوت قائل دی (صاوی)

**قوله:** إن، ای وَقُلْنَا لَهُ شارح رحمه الله په دې تفسيری عبارت سره دَ دوو خبروطرف ته اشاره کړې ده اول دا چه أن تفسيريه دې دويم دا چه دا حذف د قلنا په ذريعه أن اشکرعطف په وَلَقَدْ آتَيْنَا لُقْمَانَ الْحِكْمَةَ باندې شوې دې. حضرت لقمان عليه السلام دَ خوئی په نوم کښې درې اقوال دی بعضو ثاران وئيلې دې اوکلبی رحمه الله مشکم وئيلې اوبعضې انعم وئيلې دې (جمل) وئيلې شوی دی چه دحضرت لقمان عليه السلام بی بی او خوئی کافر وودهغوی په نصيحت سره مسلمانان شو.

**قوله:** فَرَجَعَ وَأَسْلَمَ داعطف تفسيری دې.

**قوله:** وَوَصَّيْنَا الْإِنْسَانَ دا دوه آياتونه دحضرت سعدبن ابی وقاص رضی الله عنه په باره کښې نازل شوی دی اودا دوه آياتونه دحضرت لقمان عليه السلام دکلام په مينځ کښې دَ جملې معترضې په توګه واقع شوی دی.

**قوله:** وَهَنَتْ وَهْنًا عَلَىٰ وَهْنٍ مفسرعلام دَ وَهْنًا نه ورانددې وَهَنَتْ فعل محذوف منلوسره اشاره اوکړه چه وَهْنًا دَفعل محذوف مفعول مطلق دې اوعلی وهن دا د كائنًا محذوف متعلق دې او دَوَهْنًا صفت دې ای وَهْنًا کائنًا علی وَهْنٍ او صاوی رحمه الله وئيلی دی چه زيات بهتردادی چه د أُمُّهُ نه حال اوګرځولې شی ای حَمَلَتْهُ أُمُّهُ ذات وهن.

**قوله:** موافقة لِلْوَاقِعِ شارح رحمه الله دَ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ په باره کښې فرمائيلی دی چه دا قيد دَ بيان د واقعې دَپاره دې يعنی واقعی اوحقيقت کښې دَهغه خوك شريك نشته نوبيابه د دې علم او دليل چرته وی؟ دا قيداحترازی نه دې چه دَ آيت مطلب دا وی چه دَچادَ شريك کيدو چه تاسره دليل نه وی نوهغه مه شريك کوه اودَ چادَ شريك کيدو چه تاسره دليل وی هغه شريك کولې شې دا به دَدې مفهوم مخالف وی کوم چه معتبرنه دې. هم دې ته وئيلی شی لامفهوم لَهُ يعنی دَدې مفهوم مخالف مراد نه دې.

**قوله:** وَوَصَّيْنَا الْإِنْسَانَ د دې ځای نه دوه آياتونه دَحضرت لقمان دکلام په مينځ کښې دَ جملې معترضې په توګه دې مقصددَدې دَ حضرت لقمان دَ کلام تاکيد دې يا بُنَيَّ دادَ حضرت لقمان دَ خپل خوئی دَ نصيحت طرف ته عود کول دی

**قوله:** فِي صَخْرَةٍ، صخرة مطلقًا دکانړی غرته وائی اودَ اوومې زمکې لاندې چه کوم سخت کانړې دې هغې ته هم وائی.

**قوله:** لَا تُصَعِّرْ فعل نهی، مه اړوه دلته دَ تکبردَ وجې نه د مخ اړولونه نهی ده.

[ایاتونه: ۲۰ ـ ۳۰]

﴿أَلَمْ تَرَوْا﴾ تعلموا يا مخاطبين ﴿أَنَّ اللَّهَ سَخَّرَ لَكُم مَّا فِي السَّمَاوَاتِ﴾ من الشمس والقمر والنجوم لتنتفعوا بها ﴿وَمَا فِي الْأَرْضِ﴾ من الثمار والأنهار والدواب ﴿وَأَسْبَغَ﴾ أوسع وأتم ﴿عَلَيْكُمْ نِعَمَهُ ظَاهِرَةً﴾ وهي حسن الصورة وتسوية الأعضاء وغير ذلك ﴿وَبَاطِنَةً﴾ هي المعرفة وغيرها ﴿وَمِنَ النَّاسِ﴾ أي أهل مكة ﴿مَن يُجَادِلُ فِي اللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَلَا هُدًى﴾ من رسول ﴿وَلَا كِتَابٍ مُّنِيرٍ﴾ أنزله الله بل بالتقليد ﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا﴾ قال تعالى ﴿أ﴾ يتبعونهم ﴿وَلَوْ كَانَ الشَّيْطَانُ يَدْعُوهُمْ إِلَىٰ عَذَابِ السَّعِيرِ﴾ أي موجباته لا ﴿وَمَن يُسْلِمْ وَجْهَهُ إِلَى اللَّهِ﴾ أي يقبل على طاعته ﴿وَهُوَ مُحْسِنٌ﴾ موحد ﴿فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَىٰ﴾ بالطرف الأوثق الذي لا يخاف انقطاعه ﴿وَإِلَى اللَّهِ عَاقِبَةُ الْأُمُورِ﴾ مرجعها ﴿وَمَن كَفَرَ فَلَا يَحْزُنكَ﴾ يا محمد ﴿كُفْرُهُ﴾ لا تهتم بكفره ﴿إِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ فَنُنَبِّئُهُم بِمَا عَمِلُوا إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ﴾ أي بما فيها كغيره فمجاز عليه ﴿نُمَتِّعُهُمْ﴾ في الدنيا ﴿قَلِيلًا﴾ أيام حياتهم ﴿ثُمَّ نَضْطَرُّهُمْ﴾ في الآخرة ﴿إِلَىٰ عَذَابٍ غَلِيظٍ﴾ وهو عذاب النار لا يجدون عنه محيصا ﴿ولئن﴾ لام قسم ﴿سألتهم من خلق السماوات وَالْأَرْضَ لَيَقُولُنَّ اللَّهُ﴾ حذف منه نون الرفع لتوالي الأمثال وواو الضمير لالتقاء الساكنين ﴿قُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ﴾ على ظهور الحجة عليهم بالتوحيد ﴿بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ﴾ وجوبه عليهم ﴿لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ ملكا وخلقا وعبيدا فلا يستحق العبادة فيهما غيره ﴿إِنَّ اللَّهَ هُوَ الْغَنِيُّ﴾ عن خلقه ﴿الْحَمِيدُ﴾ المحمود في صنعه ﴿وَلَوْ أَنَّمَا فِي الْأَرْضِ مِن شَجَرَةٍ أَقْلَامٌ وَالْبَحْرُ﴾ عطف على اسم أن ﴿يَمُدُّهُ مِن بَعْدِهِ سَبْعَةُ أَبْحُرٍ﴾ مدادا ﴿مَّا نَفِدَتْ كَلِمَاتُ اللَّهِ﴾ المعبر بها عن معلوماته بكتبها بتلك الأقلام بذلك المداد ولا بأكثر من ذلك لأن معلوماته تعالى غير متناهية ﴿إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ﴾ لا يعجزه شيء ﴿حَكِيمٌ﴾ لا يخرج شيء عن علمه وحكمته ﴿مَّا خَلْقُكُمْ وَلَا بَعْثُكُمْ إِلَّا كَنَفْسٍ وَاحِدَةٍ﴾ خلقا وبعثا لأنه بكلمة كن فيكون ﴿إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ﴾ يسمع كل مسموع ﴿بَصِيرٌ﴾ يبصر كل مبصر لا يشغله شيء عن شيء ﴿أَلَمْ تَرَ﴾ تعلم يا مخاطب ﴿أَنَّ اللَّهَ يُولِجُ﴾ يدخل ﴿اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُولِجُ النَّهَارَ﴾ يدخله ﴿فِي اللَّيْلِ﴾ فيزيد كل منهما بما نقص من الآخر ﴿وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ﴾ منهما ﴿يَجْرِي﴾ في فلكه ﴿إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ هو يوم القيامة ﴿وأن الله بما تعملون خبير﴾ ﴿ذَٰلِكَ﴾ المذكور ﴿بِأَنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَقُّ﴾ الثابت ﴿وَأَنَّ مَا يَدْعُونَ﴾ بالياء والتاء يعبدون ﴿مِن دُونِهِ الْبَاطِلُ﴾ الزائل ﴿وَأَنَّ اللَّهَ هُوَ الْعَلِيُّ﴾ على خلقه بالقهر ﴿الْكَبِيرُ﴾ العظيم

ترجمه: اې مخاطبو! ولې تاسو داخبره نه پېژنئ چه الله تعالى ستاسو په کارکښې لګولې دی هغه ټول خیزونه کوم چه په آسمانونوکښې دی یعنی نمر، سپوږمئ اوستوری دې دپاره چه تاسو ددې نه فائده حاصله کړئ اوهغه څیزونه کوم چه په زمکه کښې دی، میوې نهرونه او ځناور (وغیره) اوتاسو ته ئې ډیر ظاهری نعمتونه اوهغه ښائست او صورت اود اندامونو برابروالې وغیره وغیره دی، او باطنی (نعمتونه) (او) هغه معرفت (دالله تعالی) وغیره دی

پوره درکړې دی او څه خلق یعنی اهل مکه داسې هم دی چه دَالله تعالی باره کښې بغیرد علم نه اودَ رسول دَ طرف نه بغیرد هدایت اوبغیرد څه روښانه کتاب کوم چه الله تعالی نازل کړې وی، جګړې کوې بلکه دتقلیددَ وجې نه (جګړې کوې) اوکله چه هغوی ته وئیلې شی چه دَالله تعالی دَ نازل کړې شوې وحی تابعداری اوکړئ نو وائی چه مونږ خو چه په کومه طریقه خپل پلاران اونیکونه لیدلی دی هم دَهغې تابعداری به کوو الله تعالی اوفرمائیل آیا دوی به هم دَهغه لارې تابعداری کوی اګرچه دوی لره شیطان دَدوزخ دَعذاب طرف ته یعنی دَهغې دَ موجبات طرف ته راغوښتې وی؟ نه، او کوم سړې چه خپل ځان الله تعالی ته حواله کړی یعنی دَهغه دَ اطاعت طرف ته متوجې شی اوحال دا چه هغه نیک یعنی مؤحد وی نویقینًا هغه مضبوطه حلقه یعنی داسې مضبوطه غاړه اونیوله دَ کومې دَ ماتیدو چه څه اندیښنه نشته اودَ ټولوکارونو انجام یعنی راګرځیدل هم دَ الله تعالی طرف ته دی. اې محمد ﷺ تاسو دَ کافرانو په کفرسره مه خفه کیږئ یعنی تاسودَهغوی په کفرباندې خپل خاطر مه درنوئی (آخر) دَدوی هم زمونږ طرف ته راواپس کیدل دی نومونږ به هغوی ته دَهغوی ټول چلونه اوښایو بیشکه الله تعالی دَ سینو دَ رازونونه یعنی څه چه په زړونوکښې دی خبردې لکه څنګه چه دَ زړونو دَ رازونونه علاوه هم خبردې نودَهغې بدله به ورکړی مونږ به هغوی ته په دنیاکښې څه لږشان (یعنی) دَ هغوی دَ ژوند دمودې پورې فائده ورکړو اوآخر به مونږ هغوی دَ ډیرې ناچارئې په حالت کښې په آخرت کښې دَ سخت عذاب طرف ته وراوشړو اوهغه دَدوزخ عذاب دې چه هغوی به دَدې نه دَ پناه ځائې اونه مومی اوکه چرې تاسو دَهغوی نه پوښتنه اوکړئ چه دَ آسمان اوزمکې خالق څوک دې؟ نویقینًا به هم دغه جواب درکوی چه الله پاک دې. دَدې نه نون د رفع مسلسل دَ یوڅو نوناتودَ جمع کیدو دَ وجې نه حذف کړې شوې دې او ضمیر د واؤ (هم) دَالتقاء ساکنین دَ وجې نه ساقط کړې شو په هغوی باندې دَ توحید حجت ښکاره کیدو سره تاسو الحمدلله اووایئې لیکن په دوی کښې اکثر خلق په خپل ځان باندې دَ توحید دَ وجوب نه خبر نه دی، په آسمانونو اوزمکوکښې چه څه دی دَ مملوك او مخلوق اوغلام کیدو په اعتبارسره هم دَالله تعالی دی، لهذا په زمکو او آسمانونو کښې هیڅوك دَ هغه نه علاوه دَ عبادت مستحق نه دی یقینًا الله تعالی دَ خپل مخلوق نه بې نیاز دې او په خپل صنعت کښې دَ تعریف قابل دې. که په مخ دَ زمکې ټولې ونې قلمونه شی او ټول سمندرونه سیاهی شی دَ أن په اسم باندې عطف دې اودې سره اووه سمندرونه نور هم شامل شی بیاهم دَالله تعالی کلمات نه شی ختمیدې دَ الله تعالی معلومات ئې په کلمات سره تعبیرکړې دې دَ دغه معلوماتو په دې قلمونو سره دَ لیکلو دَ وجې نه په دغه سیاهی سره اونه دَ دغه (مذکوره) نه زیات (اندازې) سره ختمیدې شی ځکه چه دَ الله تعالی معلومات غیرمتناهیه دی بیشکه الله تعالی دَلوئی غلبې والا دې هغه هیڅ څیز عاجز کولې نه شی او دَلوئی حکمت والا دې هیڅ یوشئ دَهغه دَعلم

او حکمت نه خارج نه دي ستاسو دَټولو پيدا کول او دَمرګ نه پس راژوندي کول هم داسې دي لکه دَ يو نفس پيدا کول او ژوندي کول، ځکه چه دا ټول (هرڅه) په کلمه دَ کن فيکون سره کيږي، بيشکه الله تعالى هره خبره اوري او هر يو څيزته ګوري هغه لره هيڅ يو شئ دَ بل شئ نه منع کولې نه شي، اې مخاطب ولې ته نه ګورې چه الله تعالى شپه په ورځ کښې او ورځ په شپه کښې ورداخلوي په هغې کښې په هريو کښې دومره اضافه کيږي څومره چه دَ بل نه کميږي.
: شمس او قمر ئې هر يو هغه مسخر کړي دي چه دَ مقرر وخت پورې په خپله محور کښې ګرځي او مقرر وخت دَ قيامت ورځ ده، او بيشکه الله تعالى ستاسو دَهر عمل نه خبردې دا ذکر شوي (تسخير او انتظامات) دَدې دَپاره دي چه الله تعالى برحق ثابت الالوهية دې او دَهغه نه علاوه چه کوم کوم (معبودان) رابلئې يعنى بندګي ئې کوئې ټول باطل دي ختميدونکي دي يَدْعون کښې ياء او تاء دواړه قراءتونه دي او يقيناً الله تعالى په خپل مخلوق باندې دَ غلبې په اعتبار سره اوچت او عظيم دې.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: اَلَمْ تَرَوْا أنِ اللهَ الأية دا ردعلى المشركين دَ مخکښنى مضمون طرف ته رجوع ده.
**قوله**: يَاْمخَــاطبين منادى مفرد کيدو دَ وجې نه قياس دا وو چه يامخــاطبون وې، ځکه چه منادى مفرد مبني على علامة الضم وي مګر کيدې شي چه نکره دَ غير مقصود کيدو دَ وجې نه منصوب وي.
**قوله**: يقبِلُ على طاعته دَ اضافې مقصد داخودل دي چه وَجْهَه مخ مرادنه دې بلکه ذات مراددې.
**قوله**: مُوَحِّدٌ، دَمُحْسِنٌ تفسير ئې په مُوَحِدٌ سره کولو کښې دې طرف ته اشاره او کړه چه دلته دَ احسان نه کامل احسان مراد نه دې کومه چه دَ أن تعبدالله کأنك تراه درجه ده دلته دَ توحيد قائل مسلمان مراددې دې دَپاره چه عام مسلمان هم په دې کښې داخل شي.
**قوله**: لَيَقُولُنَّ الله دا جمله د قسم محذوف جواب دې او جواب شرط دَقاعدې مطابق محذوف دې لفظ دَالله خو يا دَ فعل محذوف دَ فاعل کيدو دَ وجې نه مرفوع دې، تقديري عبارت دادې خَلَقَهُنَّ الله او دَ دې حذف قرينه خَلَقَهُنَّ العزيزُ العليمُ دې، يا د مبتدأ محذوف خبر دې تقديري عبارت دادې الخالق لَهُنَّ الله.
**قوله**: وَلَوْ أنَّ مَافِي الارضِ مِنْ شَجَرَةٍ أقْلامٌ دا پوره جمله دَ أنَّ اسم دې او أقْلامٌ دَدې خبر دې.
**قوله**: وَالْبَحْرُ عطف على اسم أنّ دا دَ البحرَ دَ نصب توجيه ده، شارح رحمه الله دَ رفع توجيه ترک کړې ده، دَ رفع توجيه دا کيدې شي چه د البحرُ عطف أنَّ او د دې د اسم او خبر نه جوړې

شوې جملې باندې دی، ځکه چه جمله دَ فعل محذوف دَ فاعل کیدودَ وجې نه په محل دَ رفع کښې ده، تقدیری عبارت دادې لَوْثَبَتَ أَنَّ مَا فِى الارض الخ بالعمر مبتدأ ده او بمدهٔ ذدې خبردې او جمله حالیه ده.

**قوله**: مِدادٌ دادَ مبتدأ محذوف خبردې ای الجمیعُ مِدادٌ دا جمله مستانفه ده.

**قوله**: مَا نَفِدَتْ الخ دادَ لَوْ جواب دې مګر لَوْ دلته په خپله مشهوره معنی یعنی دَ انتفاء دَ شرط دَ وجې نه، انتفاء د جزاء دَپاره نه دې.

**قوله**: بكتبها بتلك الاقلام الخ په دې عبارت سره ئې اشاره اوکړه چه په کلام کښې حذف دې او کلمات الله نه دَ الله تعالی د کلام نفسی قدیم قائم بالذات مدلولات مراد دی.

**قوله**: ذلك المذكور، ذلك مبتدأ بِأَنَّ الله هو الحقُّ دَدې خبردې.

**[اياتوله: ۳۱ ـ ۳٤]**

﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّ الْفُلْكَ﴾ السُّفُن ﴿تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِنِعْمَتِ اللّٰهِ لِيُرِيَكُم﴾ يَا مُخَاطَبِينَ بِذٰلِكَ ﴿مِنْ آيَاتِهِ إِنَّ فِي ذٰلِكَ لَآيَاتٍ﴾ عِبَرًا ﴿لِكُلِّ صَبَّارٍ﴾ عَنْ مَعَاصِي اللّٰه ﴿شَكُورٍ﴾ لِنِعْمَتِهِ ﴿وَإِذَا غَشِيَهُم﴾ أَيْ عَلَا الْكُفَّار ﴿مَوْجٌ كَالظُّلَلِ﴾ كَالْجِبَالِ الَّتِي تُظِلّ مَنْ تَحْتهَا ﴿دَعَوُا اللّٰهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ﴾ أَيْ الدُّعَاء بِأَنْ يُنْجِيهِمْ أَيْ لَا يَدْعُونَ مَعَهُ غَيْره ﴿فَلَمَّا نَجَّاهُمْ إِلَى الْبَرِّ فَمِنْهُمْ مُقْتَصِدٌ﴾ مُتَوَسِّط بَيْن الْكُفْر وَالْإِيمَان وَمِنْهُمْ بَاقٍ عَلَى كُفْره ﴿وَمَا يَجْحَدُ بِآيَاتِنَا﴾ ومنها الإنجاء من الْمَوْج ﴿إِلَّا كُلُّ خَتَّارٍ﴾ غَدَّار ﴿كَفُورٍ﴾ لِنِعَمِ الله تعالى ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ﴾ أَيْ أَهْل مَكَّة ﴿اتَّقُوا رَبَّكُمْ وَاخْشَوْا يَوْمًا لَا يَجْزِي﴾ يُغْنِي ﴿وَالِدٌ عَنْ وَلَدِهِ﴾ فِيهِ شَيْئًا ﴿وَلَا مَوْلُودٌ هُوَ جَازٍ عَنْ وَالِدِهِ﴾ فِيهِ ﴿شَيْئًا إِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ﴾ بِالْبَعْثِ ﴿فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا﴾ عَنْ الْإِسْلَام ﴿وَلَا يَغُرَّنَّكُمْ بِاللّٰهِ﴾ فِي حِلْمه وَإِمْهَاله ﴿الْغَرُورُ﴾ الشَّيْطَان ﴿إِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ﴾ مَتَى تَقُوم ﴿وَيُنَزِّلُ﴾ بالتخفيف والتشديد ﴿الْغَيْثَ﴾ بِوَقْتٍ يَعْلَمهُ ﴿وَيَعْلَمُ مَا فِي الْأَرْحَامِ﴾ أَذَكَر أَمْ أُنْثَى وَلَا يَعْلَم وَاحِدًا مِنْ الثَّلَاثَة غَيْر اللّٰه تَعَالَى ﴿وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ مَاذَا تَكْسِبُ غَدًا﴾ مِنْ خَيْر أَوْ شَرّ وَيَعْلَمهُ اللّٰه تَعَالَى ﴿وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ﴾ وَيَعْلَمهُ اللّٰه تَعَالَى ﴿إِنَّ اللّٰهَ عَلِيمٌ﴾ بِكُلِّ شَيْء ﴿خَبِيرٌ﴾ بِبَاطِنِهِ كَظَاهِرِهِ رَوَى الْبُخَارِيّ عن ابن عُمَر حَدِيث مَفَاتِيح الْغَيْب خَمْسَة إِنَّ الله عِنْده عِلْم السَّاعَة إِلَى آخِر السُّورَة

**ترجمه**: آیا تاسو په دې کښې غورنه کوئی چه په دریاب کښې کشتئی دَالله تعالی په فضل سره ګرځی دې دَپاره چه اې مخاطبو دَدې په ذریعه تاسوته دَ خپل (قدرت) نخښې اوښائی یقینًا په دې کښې دَ الله تعالی د معصیت نه صبرکونکو او دَهغه دَ نعمتونو شکرکونکودَ پاره دعبرت نښې دی او کله چه په هغوی باندې یعنې په کافرانو باندې موجونه دَداسې غرو په شان راخورېږی چه هر هغه څیز کوم چه دَهغې دَ سور لاندې راشی په سوری کښې راګیرشی نو ډیر په خالص عقیدې سره هم دَالله تعالی نه دعاکوی چه

دوی ته دَ (غرقيدو) نه نجات ورکړي يعنی (هغه) وخت د هغه سره غير الله نه راغواړی بيا چه کله هغه هغوی ته خلاصي ورکړی او چې ته ئې راؤرسوی نو په هغوی کښې څه په اعتدال باندې پاتې شی يعنی دَ کفر او ايمان مينځمې لار اختياروی او بعضې هم په خپل کفرباندې باقی پاتې شی او زمونږ د نعمتونو نه او په هغې کښې (دَدرياب) دَ موجونو نه خلاصي ورکول هم دی صرف هم هغه انکارکوی چه بدعهد اودَ الله تعالی دَ نعمتونو ناشکره وی. اې خلقو اې دَ مکې والو دَ خپل رب نه اوويريږئ اودَ هغه ورځې نه ويره اوکړئ په کومه ورځ چه به پلار خپلو ځامنوته څه فائده نه شی رسولې اونه به ځوئې خپل پلار ته په هغه ورځ څه فائده نشی رسولې. يقين اوکړئ دَالله تعالی دَ بعث وعده حق ده. ګورئې تاسو دا دنياوی ژوندون دَ اسلام په باره کښې په دهوکه کښې وانچوی اونه دې شيطان تاسو دَ الله تعالی دَ حلم او مهلت ورکولوباره کښې په دهوکه کښې واچوی بيشکه هم الله تعالی سره دې علم دَ قيامت چه کله به وی اوهم هغه باران نازلوی په هغه وخت کوم چه هغه پيژنی. ينزل په تشديد اوتخفيف سره دې اوهغه څه هم پيژنی کوم چه دَ مور په رحم کښې وی چه هلك دې که جينئی؟ اودَ دې دريواړونه يوهم دَالله تعالی نه سوا بل څوك نه پيژنی اوهيڅوك نه پيژنی چه هغه به صباله څه کوی خيريا شر الله دا پيژنی اونه چاته معلومه ده چه چرته به مری او الله تعالی ته معلومه ده بيشکه الله تعالی ته دَهرشی علم دې (اوهغه) دَ هرشئ باطن نه داسې خبردې لکه څنګه چه دَ ظاهر نه. امام بخاری رحمه الله دَ ابن عمر رضي الله عنه نه مفتاتيح الغيب خمسةٌ والا حديث روايت کړې دې ﴿ إِنَّ اللَّهَ عِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْأَرْحَامِ وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ ﴾

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** لَا يَجْزِي وَالِدٌ عَن وَلَدِهِ وَلَا مَوْلُودٌ الخ مذکوره دواړه جملې دَيوماً صفت دې او ضمير عائد محذوف دې لکه چه شارح ورته فيهِ مقدرمنلوسره اشاره کړې ده.

**قوله:** وَلَا مَوْلُودٌ دا مبتدأ اول ده او هُوَ مبتدأ ثانی ده او جازٍ دَمبتدأ ثانی خبردې او بيا جمله د مبتدأ اول خبردې.

**سوال:** مولودٌنکره ده دَدې مبتدأ جوړيدل صحيح نه دی؟

**جواب:** نکره چه کله تحت النفی داخل وی نودَدې مبتدأ جوړيدل صحيح وی، دلته هم مَوْلُودٌ لاتافيه لاندې داخل دې.

**قوله:** شيئًا دا تنازع د فعلان دَ قبيل نه دې په شيئًا کښې يجزی او جازٍ مفعول جوړيدو کښې تنازع اوکړه ثانی يعنی جازته ئې عمل ورکړو او اول يعنی يجزی دَپاره ئې

مفعول محذوف او منلو لکه چه شارح رحمه الله شيئًا محذوف منلو سره اشاره او کړه

**قوله:** غَرُور صيغه دَ صفت ده دهوکه ورکونکي، دَ دروغو اميد ورکونکي. شيطان.

**قوله:** بالله باء سببيه ده او مضاف محذوف دې اى بسبب حلم الله لکه چه شارح رحمه الله حذف دَمضاف طرف ته اشاره کړې ده

**قوله:** إنَّ اللهَ عِنْدَهُ علم الساعة دا آيت دَ حارث بن عمرو په باره کښې نازل شوې دې.

**قوله:** وينزل الغيث دَدې عطف عندهُ علم الساعة باندې دې چه دَ إنَّ خبر دې.

**قوله:** بوقتٍ اى فى وقتٍ.

**قوله:** واحدًا دا دَ لايَعْلَمُ مفعول مقدم کيدو دَ وجې نه منصوب دې او غير الله دَدې فاعل دې.

**قوله:** مَاذا تكسب غدًا: مَا استفهاميه مبتدأ، ذا اسم موصول تَكْسِبُ غدًا صله موصول او صله د مبتدأ خبر دې.

## [۳۲] سورة السجدة

سورة السجدة مكية وهى ثلثون آية

سوره سجده مکی دې او په دې کښې ديرش (۳۰) آيتونه دی.

[اياتونه: ۱ ـ ۱۱]

بسم الله الرحمن الرحيم (الم) الله أعلم بمراده به (تَنْزِيلُ الْكِتَابِ) القرآن مبتدأ (لَارَيْبَ) شك (فِيهِ) خبر أول (مِنْ رَّبِّ الْعَالَمِينَ) خبر ثان (أَمْ) بل (يَقُولُونَ افْتَرَاهُ) محمد لا (بَلْ هُوَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ لِتُنْذِرَ) به (قَوْمًا مَا) نافية (أَتَاهُمْ مِنْ نَذِيرٍ مِنْ قَبْلِكَ لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُونَ) بإنذارك (اللهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ) أولها الأحد وآخرها الجمعة (ثُمَّ اسْتَوَى عَلَى الْعَرْشِ) هو في اللغة سرير الملك استواء يليق به (مَا لَكُمْ) يا كفار مكة (مِنْ دُونِهِ) أي غيره (مِنْ وَلِيٍّ) اسم ما بزيادة من أي ناصر (وَلَا شَفِيعٍ) يدفع عذابه عنكم (أَفَلَا تَتَذَكَّرُونَ) هذا فتؤمنون (يُدَبِّرُ الْأَمْرَ مِنَ السَّمَاءِ إِلَى الْأَرْضِ) مدة الدنيا (ثُمَّ يَعْرُجُ) يرجع الأمر والتدبير (إِلَيْهِ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ أَلْفَ سَنَةٍ مِمَّا تَعُدُّونَ) في الدنيا وفي سورة سال خمسين ألف سنة وهو يوم القيامة لشدة أهواله بالنسبة إلى الكافر وأما المؤمن فيكون أخف عليه من صلاة مكتوبة يصليها في الدنيا كما جاء في الحديث (ذَلِكَ) الخالق المدبر (عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ) أي ما غاب عن الخلق وما حضر (الْعَزِيزُ) المنيع في ملكه (الرَّحِيمُ) بأهل طاعته (الَّذِي أَحْسَنَ كُلَّ شَيْءٍ خَلَقَهُ) بفتح اللام فعلا ماضيا صفة وبسكونها بدل اشتمال (وَبَدَأَ خَلْقَ الْإِنْسَانِ) آدم (مِنْ طِينٍ) (ثُمَّ جَعَلَ نَسْلَهُ) ذريته (مِنْ سُلَالَةٍ) علقة (مِنْ مَاءٍ مَهِينٍ) ضعيف هو النطفة (ثُمَّ سَوَّاهُ) أي خلق آدم (وَنَفَخَ فِيهِ مِنْ رُوحِهِ) أي جعله حيا حساسا بعد أن كان جمادا (وَجَعَلَ لَكُمْ) أي لذريته (السَّمْعَ) بمعنى الأسماع (وَالْأَبْصَارَ وَالْأَفْئِدَةَ) القلوب (قَلِيلًا مَا تَشْكُرُونَ) ما زائدة مؤكدة للقلة (وَقَالُوا) اي منكرو البعث (أَإِذَا ضَلَلْنَا فِي الْأَرْضِ) غبنا

فِيهَا بِأَنْ صِرْنَا تُرَابًا مُخْتَلِطًا بِتُرَابِهَا ﴿ءَأَنَّا لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍ﴾ اِسْتِفْهَام إِنْكَار بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَتَسْهِيل الثَّانِيَة وَإِدْخَال أَلِف بَيْنَهُمَا عَلَى الْوَجْهَيْنِ فِي الْمَوْضِعَيْنِ قال تعالى ﴿بَلْ هُمْ بِلِقَاءِ رَبِّهِمْ﴾ بالبعث ﴿كَافِرُونَ﴾ ﴿قُلْ﴾ لَهُمْ ﴿يَتَوَفَّاكُمْ مَلَكُ الْمَوْتِ الَّذِي وُكِّلَ بِكُمْ﴾ أَيْ يَقْبِض أَرْوَاحكُمْ ﴿ثُمَّ إِلَى رَبِّكُمْ تُرْجَعُونَ﴾ أَحْيَاء فَيُجَازِيكُمْ بِأَعْمَالِكُمْ

ترجمه: شروع کوم په نامه دَ الله چه ډیر بخښونکې اوډیر مهربان دې آلم دَدې مرادخو هم الله تعالى بهتر پیژنی بیشکه دا کتاب قرآن دَ ټولوجهانونودَ پروردګاردَ طرف نه نازل کړې شوې دې، (تنزیل الکتاب) مبتدأ ده (لاشك فیه) خبراول دې (من رب العالمین) خبرثانی دې، ایا دغه خلق دا وائی چه دا محمد ﷺ دَ ځان نه جوړکړې دې؟ نه، بلکه داخوستادَ رب دَطرف نه حق دې دَپاره چه تاسودَدې په ذریعه هغه قوم اویروئ چاله چه تاسو نه وراندې څوک ویرونکې نه دې راغلې، مَا نافیه ده دې دَپاره چه هغوی ستاسو په ویرولوسره هدایت حاصل کړی، الله تعالى هغه ذات دې چاچه آسمانونه او زمکه او کوم څه چه دَدې په مینځ کښې دی په شپږو ورځوکښې پیداکړل په دې کښې رومبې ورځ یکشنبه ده او آخری ورځ جمعه اوبیاهغه په عرش باندې قائم شو (عرش) په لغت کښې دَ بادشاه تخت ته وائی داسې قیام چه دَهغه شان سره لائق دې، اې دَمکې کافرانوستاسودَپاره دَ هغه نه علاوه هیڅوک حمایتی نشته (من ولی) د من په زیادت سره دَمَا اسم دې، یعنی هیڅوك حمایتی نشته، او نه څوک سفارشی چه تاسونه دَهغه عذاب لرې کړې شی بیاولې تاسو په دې نه پوهیږئ چه ایمان راوړئ، دَ آسمان نه واخله ترزمکې پورې دَ دنیادَ مودې پورې دَ هرحال تدبیرکوی بیا به ټول امور اوتدبیرونه هم دَهغه طرف ته وراوراګرځی، په داسې ورځ دَ کومې اندازه چه به په دنیاکښې ستاسو دَ شمیرپه اعتبار سره دَ زرو کالو برابر وی او په سورت سأل کښې پنځوس زره کاله ذکر دی اوهغه دَ قیامت ورځ ده دَدې دَسختئ خطرناکئ دَ وجې نه په نسبت دَ کافر، باقې شو مؤمن نو (هغه ورځ) به په هغه باندې دَ یوفرض مونځ کولودَ وخت نه هم کم وی کوم چه به ئې په دنیاکښې کولو لکه چه په حدیث شریف کښې راغلی دی داخالق کوم چه تدبیرکونکې دې دَ غائب اوحاضر پیژندونکې دې یعنی (دَهرهغه څیز) چه مخلوق دَپاره غائب اوکوم چه ظاهر دې او هغه ذات چه غالب دې په خپل ملك کښې او ډیر رحم کونکې دې په اطاعت کونکو باندې چاچه ډیر ښکلې جوړکړو کوم یوڅیز ئې هم چه جوړکړو (خَلَقَهُ) کښې د لام په فتحې سره دَفعل ماضی کیدودَ وجې نه جمله دَ شئ صفت دې او په سکون دلام سره بدل الاشتمال دې اودَ انسان یعنی د آدم ﷺ تخلیق شروع ئې دَ خاورې نه کړې ده بیا ئې دَهٔ دَ نسل (سلسله) دَ بې قیمته اوبو دَ جوهردَ وینې کلکې نه جاری کړه اوهغه نطفه دَمنئ ده اوبیا دا یعنی دَ آدم ﷺ تخلیق ټیک ټاك کړو بیائی په هغه کښې خپل روح ورپوك وهلو

یعنی هغه ته ئې ژوندون ورکړو حالانکه هغه جماد (بې حس) وو اوهم هغه اې د آدم علیه السلام اولاد ستاسو غوږونه جوړکړل سَمْعَ په معنی دَ اَسْمَاعْ دې او سترګې ئې جوړې کړې او زړونه ئې جوړکړل (په دې باندې هم) تاسو ډیرکم شکر اداکوئې ما زائده دَ قلت دَتاکید دَپاره ده او منکرین د بعث اووئیل آیا کله چه مونږ په زمکه کښې خاورې شو یعنی په زمکه کښې غائب شو په داسې طریقه چه مونږ خاورې شو اودَزمکې په خاوره کښې ګډوډ شو نوآیا مونږ به بیا په نوی تخلیق کښې راځو؟ دا استفهام انکاری دې په دواړو ځایونوکښې دَ دواړو همزو تحقیق او دَ بل تسهیل او په دواړو صورتونوکښې دَ دواړو همزو په مینځ کښې الف داخلولوسره الله تعالی اوفرمائیل بلکه (خبره داده) چه هغه خلق بعث (بعد الموت) په ذریعه دَ خپل رب دَملاقات منکردی تاسو هغوی ته اووایئې چه تاسو به دَمرګ فرښته مړه کړی کومه چه په تاسو باندې مقرره ده یعنی ستاسو روحونه به قبض کړی، بیابه تاسو ټول دَخپل پروردګار طرف ته راګرځولې شئ ژوندی کولوسره بیا به هغه تاسو ته ستاسو دَ اعمالو بدله درکړی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

سورت سجده مکی سورت دې په دې کښې دیرش آیاتونه دی اودَبعضو په نیز یوکم دیرش ایاتونه دی البته درې آیاتونه مدنی دی داد کلبی رحمه الله اومقاتل رحمه الله قول دې دَهغوی نه علاوه نورو وئیلی دی چه پنځه آیاتونه مدنی دی دکوم شروع چه دَ تتجافی جنوبهم نه ده او انتهاء ئې په الذی کنتم به تکذبون باندې ده.

**قوله:** الٓمٓ تَنْزِیْلُ الکتٰبِ لَارَیْبَ فِیْهِ مِنْ رَّبِّ العٰلمِیْنَ په دې کښې متعدد ترکیبونه کیدې شی مګر بهتراواسان هم هغه دې کوم چه شارح رحمه الله بیان کړې دې هغه دا چه تنزیل الکتاب مبتدأ او لاریب فیه خبر اول اومن رب العالمین خبرثانی، مبتدأ د خپلو دواړو خبرونوسره خبر شو دَ الٓمٓ مبتدأ.

**قوله:** اَمْ یَقُوْلُوْنَ افتراهُ اَمْ منقطعه دې چه په معنی کښې بل یقولون افتراه دې په دې کښې همزه انکاری ده مګر مفسرعلام صرف بل تحریرکړې دې، کیدې شی چه دَ کاتب نه همزه پاتې شوې وی، مطلب دا چه په دې کښې دَمشرکانودَې دعوې انکاردې چه دا قرآن دَمحمد صلی الله علیه وسلم د ځان نه جوړکړې شوې کتاب دې، دَدې رد اوانکارکولوسره فرمائی چه داسې خبره نه ده ځکه چه دا قسم کلام کول دَ بشری طاقت نه بهر خبره ده، پوره د عربو د دنیا فصحاء وبلغاء دَدې مثال راوړونه عاجزپاتې دی اونن هم دَ قرآن دا چیلنج دې چه دَ وړوکی ته وړوکې دَ دریوایاتونو پشان سورت دې څوك جوړکړی او پیش دې کړی.

**قوله:** بل هوالحق دَ افتراءنفی کولونه پس اثبات دَ حقیقت دَپاره دا اضراب انتقالی دې دا اضراب ابطالی هم کیدې شی یعنی دَ مشرکانوقول دَافتراء باطل کولوسره وئیلی شوی

دی په دې صورت کښې به تقدیری عبارت دا وی لیس هوکما قالوابل هوالحق اوس پاتې شو دا مقوله چه کل ما فی القرآن من الاضراب انتقالی نو هغه به دَدې نه په علاوه باندې محمول وی (صاوی) دَ آیت معنی به داشی چه په قرآن کښې چه څه دی هغه حق دې اودا د حصر جملې (بل هوالحق) معرفة الطرفین نه مستفاد دې.

**قوله:** لِتُنْذِرَ قَوْمًا، تُنْذِرُ د وړ مفعولو ته نصب ورکوی رومبې مفعول قَوْمًا دې دویم محذوف کوم چه مفسرعلام خپل قول په سره ظاهرکړې دې او بعضې حضراتو مفعول ثانی العقاب محذوف منلې دې تقدیری عبارت به داشی لِتنذر قومًا العقاب اوما اتاهم الخ دَ قومًا صفت دې.

**قوله:** لَعَلَّهُم يهتدون دا ترجی دَ رسول الله ﷺ په اعتبارسره ده مطلب دا چه تاسو قوم دَ هدایت په امید سره ویروئی اوناامیده کیږئی مه.

**قوله:** الله، الذی خَلَق الخ جمله د مبتدأ خبردې.

**قوله:** مَالکم من دونه من ولی من دونه، دَمَا اسم دې او من زائده دې په دې عبارت سره مفسرعلام اشاره اوکړه چه مَا حجازیه دې من ولی اسم مؤخردې او من دونه خبرمقدم دې مگر په دې به دا اعتراض واردیږی چه دَمَا د عامل کیدودپاره دَدې په اسم اوخبرکښې ترتیب ضروری دې حالانکه دلته ترتیب باقی پاتې نه دې؟ دَدې دا جواب ورکولې شی چه دَنحویانودَ قول ضعیف مطابق ئې عمل کړې دې ځکه چه دَ قول ضعیف مطابق دَ مَادَعمل دَپاره ترتیب شرط نه دې او بهتردادی چه مَا تمیمیه اومنلې شی او من دونه خبرمقدم او ولیّ مبتدأ مؤخراومنلې شی ځکه چه په قرآن کښې قول ضعیف باندې حمل کول مناسب نه دی.

**قوله:** أَفَلَا تَتَذَكَّرُونَ همزه په محذوف باندې داخل ده اوفاء عاطفه ده، تقدیری عبارت داسې دې أَغَفَلْتُمْ فَلَا تَتَذَكَّرُونَ هذا، هذا دَ تَتَذَكَّرُونَ مفعول دې.

**قوله:** يُدَبِّرُ الْأَمْرَ (الأية) یعنی الله تعالی چه خالق او مدبرالامور دې هغه دَ خپلې ارادې او د علم ازلی مطابق په مخلوق کښې تصرف کوی یعنی په هریووخت کښې د هغه یوشان دې ای کُلَّ یوم هوفی شان هر څیز د هغه په قضاء او قدر باندې کیږی.

**قوله:** من السماء الی الارض حضرت ابن عباس ﷠ فرمائی دَدې مطلب دادې چه قضاء اوقدر نازلیږی اوبعضې حضراتو وئیلی دی چه مراددَ وحی نزول دې.

**قوله:** مدة الدنیا: مختلف روایاتو نه ملعومیږی چه دَدنیاعمر (انسانی) اووه زره کاله دې اودَهغوی بعثت شپږ زره کښې شروع شوې دې او بعض آثار په دې خبره دلالت کوی چه دَ حضورپاك دَ امت عمردَزرو کالو نه زیات وی مگر دا زیاتوالی به دَ پنځوسوو کالونه

زيات نه وي. (الكشف عن مجاوزة هذه الامة الف، للسيوطي)

قوله: في يوم كان مقداره الف سنة دلته دَ يوم نه معروف يوم مراد نه دې كوم چه دَ دوو شپو په مينځ كښې محدودوى بلكه اوږده موده او عصر طويل مراد دې، ځكه چه عرب اوږده موده په يوم سره تعبير كوى نحاس رحمه الله فرمائيلى دى چه په لغت كښې دَ مطلق وخت په معنى كښې هم مستعمل دې لهذا اوس دَ تعارض هغه اشكال دفع شو كوم چه په سورت سأل كښې خمسين الف سنة او دلته الف سنة باندې وارد شوې دې. په دې لاندينى شعر كښې يوم د مطلق مودې په معنى كښې استعمال شوې دې:

يومان: يوم مقامات واندية　　　ويوم سير الى الاعداء تأويب

قوله: ذالك مبتدأ ده او عالم الغيب والشهادة خبر اول العزيز خبر ثاني او الرحيم خبر ثالث او الذي احسن الخ خبر رابع.

قوله: خَلَقَهُ دَ فعل ماضى په صورت كښې جمله دَ شئ صفت وى نو محلاً به مجرور وى او كه چرې دكلّ صفت وى نو محلاً به منصوب وى او كه چرې خَلْقَهُ په سكون دَ لام سره وى لكه چه بعضې قراتونو كښې دې نو د كلّ نه به بدل الاشتمال وى.

قوله: وَبَدَأَ دې عطف په احسن باندې دې او الانسان مفعول به دې او من طين دخَلَقَ متعلق دې، دانسان نه مراد آدم عليه السلام دې او د ة ضمير مرجع آدم دې نسل هم مرجع كيدې شى يعنى نسلِ آدم ئې دَ مورپه رحم كښې درست كړو.

قوله: مِنْ رُوْحِهِ كښې اضافت دتشريف دپاره دې.

قوله: جعل لكم كښې دَ غيبوبت نه دَ خطاب طرف ته التفات دې ځكه چه په مضغة كښې روح پوك وهلو نه پس دَ مخاطب جوړيدو صلاحيت پيدا كيږى.

قوله: السمع: مصدر په معنى د اسماع دې.

قوله: ادخال الف بينهما على الوجهين دلته دَ وتركها لفظ پاتې شوې دې دغه شان به تول ځلور قراتونه شى.

قوله: بل هم بلقاء ربهم كافرون دا انكار دَ بعث نه انكار دَ لقاء طرف ته اضراب دې.

**[اياتونه: ۱۲ـ۲۲]**

(ولو ترى إذ المجرمون) الكافرون (ناكسوا رؤوسهم عند ربهم) مُطَأطِئُوهَا حَيَاءً يَقُولُونَ (رَبَّنَا أَبْصَرْنَا) مَا أنكرنا مِنَ الْبَعْثِ (وَسَمِعْنَا) مِنْكَ تَصْدِيقَ الرُّسُلِ فِيمَا كَذَّبْنَاهُمْ فِيهِ (فَارْجِعْنَا) إِلَى الدُّنْيَا (نَعْمَلْ صَالِحًا) فِيهَا (إِنَّا مُوقِنُونَ) الآن فَمَا يَنْفَعُهُمْ ذَلِكَ وَلَا يَرْجِعُونَ وَجَوَابُ لَوْ لَرَأَيْتَ امرا فظيعا قال تعالى (وَلَوْ شِئْنَا لَآتَيْنَا كُلَّ نَفْسٍ هُدَاهَا) فَتَهْتَدِي بِالْإِيمَانِ وَالطَّاعَةِ بِاخْتِيَارٍ مِنْهَا (وَلَكِنْ حَقَّ الْقَوْلُ مِنِّي) وَهُوَ (لَأَمْلَأَنَّ

جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ} الجن {والناس أجمعين} وتقول لهم الخزنة إذا دخلوها {فَذُوقُوا} العذاب {بِمَا نَسِيتُمْ لِقَاءَ يَوْمِكُمْ هَذَا} أي بتركهم الإيمان به {إِنَّا نَسِينَاكُمْ} تركناكم في العذاب {وَذُوقُوا عَذَابَ الْخُلْدِ} الدائم {بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ} من الكفر والتكذيب {إِنَّمَا يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا} القرآن {الَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا} وعظوا {بِهَا خَرُّوا سُجَّدًا وَسَبَّحُوا} متلبسين {بِحَمْدِ رَبِّهِمْ} أي قالوا سبحان الله وبحمده {وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ} عن الإيمان والطاعة {تَتَجَافَى جُنُوبُهُمْ} ترتفع {عَنِ الْمَضَاجِعِ} مواضع الاضطجاع بالفرش لصلاتهم بالليل تهجدا {يَدْعُونَ رَبَّهُمْ خَوْفًا} من عقابه {وَطَمَعًا} في رحمته {وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنْفِقُونَ} يتصدقون {فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَا أُخْفِيَ} خبئ {لَهُمْ مِنْ قُرَّةِ أَعْيُنٍ} ما تقر به اعينهم وفي قراءة بسكون الياء مضارع {جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ} {أَفَمَنْ كَانَ مُؤْمِنًا كَمَنْ كَانَ فَاسِقًا لَا يَسْتَوُونَ} أي المؤمنون والفاسقون {أَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فَلَهُمْ جَنَّاتُ الْمَأْوَى نُزُلًا} و هو ما يعد للضيف {بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ} {وَأَمَّا الَّذِينَ فَسَقُوا} بالكفر والتكذيب {فَمَأْوَاهُمُ النَّارُ كُلَّمَا أَرَادُوا أَنْ يَخْرُجُوا مِنْهَا أُعِيدُوا فِيهَا وَقِيلَ لَهُمْ ذُوقُوا عَذَابَ النَّارِ الَّذِي كُنْتُمْ بِهِ تُكَذِّبُونَ} {وَلَنُذِيقَنَّهُمْ مِنَ الْعَذَابِ الْأَدْنَى} عذاب الدنيا بالقتل والأسر والجدب سنين والأمراض {دُونَ} قبل {الْعَذَابِ الْأَكْبَرِ} عذاب الآخرة {لَعَلَّهُمْ} أي من بقي منهم {يَرْجِعُونَ} إلى الإيمان {وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ ذُكِّرَ بِآيَاتِ رَبِّهِ} القرآن {ثُمَّ أَعْرَضَ عَنْهَا} أي لا أحد أظلم منه {إِنَّا مِنَ الْمُجْرِمِينَ} المشركين {مُنْتَقِمُونَ}

ترجمه: اوکه چرې تاسو اوګورئ چه کله به ګناهګاران خلق یعنی کافر دَخپل رب په وړاندې سرښکته ولاړ وی یعنی دَ پښیمانتیا دَ وجې نه به ئې سرښکته کړی وی وائی به اې زمونږ ربه مونږ دَ مرګ نه پس ژوندی کیدل اولیدل دکوم چه مونږ منکروو اوستادَ طرف نه دَهغه رسولانو دَهغه خبرو تصدیق مو واوریدو په کوموخبروکښې چه مونږ دَهغوی تکذیب کولو اوس ته مونږ دنیاته واپس کړه مونږ به دنیاته په تللوسره نیک اعمال اوکړو اوس زمونږ یقین راغلو هغوی ته به دَهغوی (دا اقرار اویقین) هیڅ فائده نه ورکوی اونه به هغوی دنیاته واپس کولې شی اودَ لَوْ جواب لَرَأَيْتَ أَمْرًا فظيعًا محذوف دې اوکه چرې مونږ غوښتل نوهریوته به مو هدایت ورنصیب کولو نوهغوی به په خپل اختیار ایمان او اطاعت قبلولو او په هدایت کیدل به، لیکن زما خبره بالکل حق شوې ده اوهغه دا چه زه به یقینی جهنم دَ پیریانو او انسانانو نه دکوم کله چه به هغوی دوزخ ته داخل شی نودَ جهنم نګرانان به هغوی ته وائی چه اوس تاسو دې ورځې لره د هیرولودَعذاب مزه اوڅکئ یعنی ستاسو په دې ورځ باندې دَ ایمان ترک کولودَ وجې نه مونږ هم تاسو هیرکړئ (یعنی) تاسو مو په عذاب کښې پریخودئ او تاسو دَخپل اعمالو (شامت) یعنی دکفر اوتکذیب دَ دائمی عذاب مزه اوڅکئ زمونږ په آیاتونو (یعنی) قرآن باندې هم هغه خلق ایمان راوړی چه هغوی ته کله دَدې په ذریعه نصیحت کولې شی نو په سجده پریوځی اودَخپل رب حمد سره تسبیح لولی یعنی سبحان الله وبحمده وائی اوهغوی دَ ایمان او طاعت په مقابله کښې تکبرنه کوی اودَ هغوی اړخونه دَ

بسترونه جدا وی یعنی دَ شپې دَ تهجد مونځ کولو دَ وجې نه دَ خوب په ځائې کښې خوږې شوې بسترې پریږدی خپل رب لره دَهغه دَ عذاب دَ ویرې دَ وجې نه او د هغه دَ رحمت په امید سره رابلی او کوم څه چه مونږ هغوی ته ورکړی دی دَهغې نه دَ الله تعالی په لار کښې صدقه کوی او هیڅ یو نفس هغه څه نه پیژنی چه مونږ دَهغوی دَ سترګو دَ یخوالی سامان دَ غیب په پرده کښې پټ کړې دې یعنی داسې سامان په کوم سره چه به دَهغوی سترګې یخې شی او په یو قراءت کښې (اُخفیْ) دَ یاء په سکون سره دَمضارع صیغه ده دادَهغوی دَاعمالو دَ صلې په توګه دې، آیا هغه کس څوک چه مؤمن وی دَهغه چا برابر کیدې شی چه فاسق وی؟ برابریدې نه شی یعنی مؤمن او فاسق (کافر) برابریدې نه شی کوم خلقو چه ایمان راوړو او نیک اعمال ئې هم اوکړل نودَهغه خلقو دَپاره به دَهمیشه ځائې په جنت کښې دَ میلمستیا په توګه وی (نُزُل) هغه څیزته وئیلې شی کوم چه دَ میلمه دَپاره تیارولې شی اوکوم خلقو چه دَ کفر او تکذیب په ذریعه د حکم نه واوړیدل نودَهغوی ځائې به دوزخ وی کله چه دَ دوزخ نه بهر راوتلو غواړی نو دیکه کولې به شی او هغوی ته به وئیلی شی چه دَ هغه دوزخ دَعذاب مزه اوڅکئی دکوم چه تاسو تکذیب کولو او مونږ به هغوی ته دَ قتل قید او قحط او د مرضونو ادنٰی دنیاوی عذاب (هم) ور او څکوو دَ آخرت دَ لوئی عذاب نه وړاندې دې دَپاره چه هغوی یعنی کوم چه دَهغوی نه باقی پاتې شوی دی دَ ایمان طرف ته رجوع اوکړی اودَهغه کس نه به لوئې ظالم څوک وی چاته چه دَهغه دَ رب آیاتونو یعنی قرآن په ذریعه نصیحت اوکړې شی او بیا هغه دَدې نه اعراض اوکړی؟ یعنی دَداسې سړی نه بل لوئی ظالم څوک نشته یقینًا مونږ به دَمجرمانو یعنی مشرکانو نه انتقام واخلو.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذِ الْمُجْرِمُونَ دَ قیامت په ورځ دَ مجرمانو عام حالت بیانولو دَپاره دا جمله مستانفه ده خطاب رسول الله ﷺ ته دې یا هر هغه کس مخاطب دې په کوم کښې چه دَمخاطب جوړیدو صلاحیت وی. په دې آیت کښې دَ مجرمانو دَ محشر په ورځ دَ خراب حالت نظاره پیش کړې شوې ده او دَهغې معنوی حالت ئې محسوس او مجسم کولو سره پیش کړې دې، لَوْ او إِذَا سره دَدې چه دَ ماضی دَپاره دی مکر دلته په مضارع باندې داخل دی ځکه چه دَ مجرمانو مذکوره حالت واقع کیدل یقینی دی ځکه دَدې په مضارع باندې داخلیدل صحیح دی او ابو البقاء رحمه الله وئیلی دی چه إِذْ دَ إِذَا په ځائې واقع شوې دې.

**قوله:** المجرمون مبتدأ دې او ناکسوا رءوسهم دَدې خبر دې، دَ جملې فعلیې په ځائې جمله اسمیه اختیارولو کښې مقصد دَهغوی د سر ښکته کولو او پښیمانتیا دَ حالت په دوام باندې دلالت کول دی.

**قوله:** ترٰی د ې مفعول محذوف دې په دې وجه دَ رؤیت نه رؤیت بصری مراد دې تقدیری عبارت دا دې لوتری المجرمین جواب لَوْ محذوف دې ای لَرَأیتَ امرًا فظیعًا لا یمکن وصفه او

علامه زمخشري رحمه الله و د تمنی د پاره وئیلی دی په دې صورت کښې به د جواب ضرورت نه وی.

**قوله:** يقولون ربنا مفسر علام د يقولون اضافه کولو سره دې خبرې طرف ته اشاره اوکړه چه ربنا په تقدير د قول حال دې اى قائلين ياربنا.

**قوله:** أبصرنا فعل بافاعل دې او مفعول محذوف دې اى أبصرنا صدق وعيدك ووعدك.

**قوله:** د سمعنا عطف په ابصرنا باندې دې د سمعنا مفعول محذوف دې اى سمعنا منك تصديق رسلك او دا هم جائز دی چه مفعول محذوف اونه منلې شی، اى صرنا ممن يبصرون ويسمعون وكنا من قبل صما وعميانا.

**قوله:** نعمل جواب امر د وجې نه مجزوم دې.

**قوله:** فنهتدي دا د لو جواب دې کوم چه مفسر علام ښکاره کړې دې.

**قوله:** بترككم مفسر علام د نسيان تفسير په ترک سره کولو کښې اشاره اوکړه چه په نسيان سره دواړه خايونو کښې لازم معنى مراد ده ځکه چه د نسيان د پاره ترک لازم دې ګنی په نسيان باندې مواخذه نشته، بل دا چه د الله تبارك وتعالى طرف ته د نسيان نسبت محال دې دا نسبت د استعارې يا مجاز مرسل په توګه باندې کيدې شي.

**قوله:** ذوقوا عذاب الخلد د دې تکرار د اول ذوقوا د مفعول محذوف کيدو باندې دلالت کولو د پاره دې.

**قوله:** بما كنتم کښې باء سببيه ده من الكفر والتكذيب، د ما بيان دې.

**قوله:** تتجافى جنوبهم، د تتجافى نه مضارع واحد مؤنث غائب، لرې وی جدا وی، دا جمله مستانفه هم کيدې شی او د يستكبرون د ضميرنه حال هم کيدې شی، دغه شان په يدعون کښې هم دغه دواړه احتماله دی يدعون د حال ګرځولو په صورت کښې دا هم احتمال دې چه حال ثانيه وی او دا هم ممکن دی چه د جنوبهم د ضمير نه حال وی.

**قوله:** خوفا وطمعا دواړه مفعول له دی او حال هم کيدې شی او د فعل محذوف مفعول مطلق هم کيدې شی اى جوزوا جزاءا او د أخفى مفعول له هم کيدې شی، اى أخفى لاجل جزاء هم.

[ايا تونه: ۲۳ - ۳۰]

(ولقد آتينا موسى الكتاب) التوراة (فلا تكن في مرية) شك (من لقائه) وقد التقيا ليلة الإسراء (وجعلناه) أي موسى أو الكتاب (هدى) هاديا (لبني إسرائيل (وجعلنا منهم أئمة) بتحقيق الهمزتين وإبدال الثانية ياء قادة (يهدون) الناس (بأمرنا لما صبروا) على دينهم وعلى البلاء من عدوهم وفي قراءة بكسر اللام وتخفيف الميم (وكانوا بآياتنا) الدالة على قدرتنا ووحدانيتنا (يوقنون) (إن ربك هو يفصل بينهم يوم

الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ) مِن أمر الدين (أَوَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَبْلِهِم) أي يَتَبَيَّن لِكُفَّار مَكَّة إهلاكنا كثيرًا (مِنَ الْقُرُونِ) الأمم بكفرهم (يَمْشُونَ) حَال مِن ضَمِير لَهُمْ (فِي مَسَاكِنِهِمْ) في أسفارهم إلى الشام وغيرها فيعتبروا (إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ) دَلَالات عَلَى قُدرتنا (أَفَلَا يَسْمَعُونَ) سَمَاع تَدَبُّر واتعاظ (أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا نَسُوقُ الْمَاءَ إِلَى الْأَرْضِ الْجُرُزِ) اليابسة التي لا نبات فيها (فَنُخْرِجُ بِهِ زَرْعًا تَأْكُلُ مِنْهُ أَنْعَامُهُمْ وَأَنفُسُهُمْ أَفَلَا يُبْصِرُونَ) هذا فيعلمون أنا نقدر على إعادتهم (وَيَقُولُونَ) لِلْمُؤْمِنِينَ (مَتَىٰ هَٰذَا الْفَتْحُ) بيننا وبينكم (إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ) (قُلْ يَوْمَ الْفَتْحِ) بإنزال العذاب بهم (لَا يَنفَعُ الَّذِينَ كَفَرُوا إِيمَانُهُمْ وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ) يُمهلون لتوبة أو معذرة (فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ وَانتَظِرْ) إنزال العذاب بهم (إِنَّهُم مُّنتَظِرُونَ) بك حادث موت أو قتل فيستريحون منك وهذا قبل الأمر بقتالهم

ترجمه: اويشكه مونږ موسیٰ علیه السلام ته كتاب تورات وركړو پس تاسو له دَهغوی دَملاقات باره كښې هيڅ كله شک نه دی كول پكار اودَ هغه دواړو حضراتو ملاقات په ليلة الإسراء يعنی د معراج په شپه شوې وو او مونږ هغه يعنی موسیٰ علیه السلام يا كتاب دَ بنی اسرائيل دَپاره لارخودونكې جوړكړو اوكله چه هغه خلقو په خپل دين باندې (قائم پاتې كيدو) او دَ خپلو دښمنانو په تكليفونوباندې صبراوكړو نو مونږ په هغوی كښې داسې پيشوايان جوړكړل چه زمونږپه حكم به ئې دَ خلقو رهنمائی كوله (ائمة) كښې دَ دواړو همزو تحقيق سره د ثانی همزه په "ی" سره بدله كړه په د معنی پيشوا او زمونږپه هغه آياتونو باندې ئې ايمان لرلو كوم چه زمونږ په قدرت او زمونږ په وحدانيت باندې دلالت كوی او (لَمَّا) په يو قراءت كښې دَلام په كسرې اودَميم په تخفيف سره دې. (يعنی لِمَا) يقينًا ستا رب به دَهغوی په مينځ كښې دَ قيامت په ورځ په هغه خبرو (يعنی) دَامور دين فيصله اوكړی په كوم كښې چه به هغوی اختلاف كولو، آيا دې خبرې هم هغوی ته هدايت ورنه كړو چه دَهغوی نه وړاندې مونږ څومره امتونه دَهغوی دكفر په سبب هلاک كړل، حالانكه داخلق دَخپل شام وغيره په سفر كښې دَهغوی په مكانونوباندې تيريږی چه عبرت حاصل كړی، بيشكه په هغې كښې زمونږ دَ قدرت دلائل دی آيا دوی دَ تدبر اوتذكر په توګه باندې نه اوری ولې دوی نه ګوری چه مونږ اوبه دَ اوچې زمكې طرف ته په كوم كښې چه وابنه نه وی رسوو بيا په هغه اوبوباندې مونږ فصل راټوكوو دَ كوم نه چه دَهغوی څاروی او هغوی پخپله خوراک كوی آيا بياهم دوی دې ته نه ګوری چه پوهه شی چه مونږ په بيا راژوندی كولوباندې قادر يو او مؤمنانوته وائی چه زمونږ او ستاسو په مينځ كښې به فيصله كله كيږی؟ كه چرې تاسو رښتونی يئې (نواوخايئې) ته ورته اووايه په دوی باندې عذاب نازلولو سره دَ فيصلې په ورځ به دې كافرانوته دَ دوی ايمان هيڅ فائده نه وركوی اونه به دوی ته دَتوبې يا د عذر پيش كولوڅه مهلت وركولې شی اوس تاسو دَدوی خيال پريږدئ او په دوی باندې دَعذاب دَ نازليدلو انتظاركوئ هغوی هم په تاسو باندې دَ حادثې مرګ يا د

قتل انتظارکوی دې دپاره چه هغوی ستاسو نه راحت حاصل کړی او دا حکم دَ جهاد دَ حکم نه وړاندې دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: مِرْيَة اسم مصدر په معنی د تردد او شك سره او لِقَآئِه دَ ضميرپه مرجع کښې يوڅو اقوال دی: ① دَموسیٰ علیه السلام طرف ته راجع دې او لِقَآء مصدر دَخپل مفعول طرف ته مضاف دې تقدیری عبارت دا دې مِنْ لِقَآئِكَ موسیٰ لیلة الاسراء ② دَ کتاب طرف ته راجع دې، په دې صورت کښې به دَمصدر اضافت دَ فاعل او مفعول دواړو طرف ته صحيح وی دَ فاعل طرف ته اضافت په صورت کښې به تقدیری عبارت داسې وی مِنْ لِقَآءِ الْكِتَابِ لموسیٰ اودَمفعول طرف ته هم صحيح دې تقدیری عبارت به داشی لقاء موسیٰ الکتاب داهم احتمال دې چه دَ لقائه ضمير دَالله تعالى طرف ته راجع وی، ای من لقاء موسیٰ الله په دې صورت کښې به دَ مصدر اضافت دَمفعول طرف ته وی، اوداهم احتمال دې چه دَ لِقَآئِه ضمير دَموسیٰ طرف ته راجع وی په دې صورت کښې به اضافت دَ فاعل طرف ته وی، يعنی اې محمد ﷺ تاسو دَموسیٰ علیه السلام دَالله تعالى سره د ملاقات په باره کښې شك مه کوئ يادَ الله تعالى دَموسیٰ علیه السلام سره دَ ملاقات په باره کښې شك مه کوئ (اعراب القرآن لابی البقاء) دَدې اقوالونه علاوه نور هم اقوال شته مگر هغه دَ ضعف نه خالی نه دی.

قوله: أئمة په دې کښې يو قراءت همزه په "ی" سره بدل هم شته يعنی أيِمَّةً اودا قراءت دَ عربيت په اعتبار سره دې نه چه دَ قراءت سبعه په اعتبار سره او په شرح عقائد کښې دی چه أئمة په اصل کښې أَأْمِمَة وو ځکه چه دا دَامام جمع ده، دوه ميم جمع شو دَ اول په ثانی کښې ادغام اوکړې شو، دارنګ حرکت نقل شو او همزې ته ورکړې شو نو أئمة شو دَدوؤ همزو دَ اجتماع دکراهت دَ وجې نه همزه مکسوره په "ی" سره بدل شوه أيِمَّة شو.

قوله: قَادَة دادَ قائد جمع ده معنی ئې ده مشر، لارخودونکې لکه چه سادةً دَ سيد جمع ده.

قوله: لَمَّا صَبَرُوا ①دَ جمهورو په قراءت کښې دَ لام په فتحې او د ميم په تشديد سره دې. لَمَّا به فتحی دحِيْنَ په معنی کښې دې او جمله جزائيه ده ای جَعَلْنَاهم أئِمَّةً حِيْنَ صَبَرُوْا، دَ صَبَرُوْا ضمير أئمة طرف ته راجع دې او دَ لَمَّا جواب محذوف دې په کوم چه جَعَلْنَا مِنْهُمْ دلالت کوی، تقديری عبارت دا دې لَمَّا صَبَرُوْا جَعَلْنَا مِنْهُمْ أئِمَّةً او ②دَ حمزه او کسائی په قراءت کښې لِمَا دَلام په کسرې سره او د ميم په تخفيف سره دې په دې صورت کښې به لام تعليليه وی او مَا مصدريه ای بسبب صبرهم علی دينهم وعَلَى الْبَلَاءِ مِنْ عدوهم (جمل)

قوله: بَيْنَهُمْ نه يا ①خو انبياء کرام عليهم السلام او دَهغوی امتونه مراددی يا ② مؤمنين

او مشرکین مراد دي.

قوله: أَوَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ دا عطف دي په محذوف باندې اى أغفلوا ولم يتبين لهم بالمتعظوا.

قوله: يَهْدِ لَهُمْ د دې فاعل مضمون جمله ده لکه چه مفسر علام إهلاکنا ونیلو سره اشاره کړې ده که چرې په حذف د فاعل باندې قرينه موجود وى نو فاعل حذف کول جائز دى.

قوله: فى ذلك اى فى كثرة إهلاك الأمم الماضية.

قوله: الْجُرُزُ هغه زمکې ته وائى دکومې نه چه واښه وغيره پرې کولو سره تش خالى ميدان کړې شوې وى بآية د دې لازم معنى ده.

## [۳۳] سورة الاحزاب

سورة الاحزاب مدنية وهى ثلث وسبعون آية

سوره احزاب مدنى دې، او په دې کښې ۷۳ آيتونه دى.

### [اياتونه: ۱ - ۸]

بسم الله الرحمن الرحيم {يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ اتَّقِ اللَّهَ} دُمْ عَلَى تَقْوَاهُ {وَلَا تُطِعِ الْكَافِرِينَ وَالْمُنَافِقِينَ} فِيمَا يُخَالِفُ شَرِيعَتَكَ {إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا} بِمَا يَكُونُ قَبْلَ كَوْنِهِ {حَكِيمًا} فِيمَا يَخْلُقُهُ {وَاتَّبِعْ مَا يُوحَى إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ} أَيِ الْقُرْآنَ {إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا} وَفِي قِرَاءَةٍ بِالتَّحْتَانِيَّةِ {وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ} فِي أَمْرِكَ {وَكَفَى بِاللَّهِ وَكِيلًا} حَافِظًا لَكَ وَأُمَّتُهُ تَبَعٌ لَهُ فِي ذَلِكَ كُلِّهِ {مَا جَعَلَ اللَّهُ لِرَجُلٍ مِنْ قَلْبَيْنِ فِي جَوْفِهِ} رَدًّا عَلَى مَنْ قَالَ مِنَ الْكُفَّارِ إِنَّ لَهُ قَلْبَيْنِ يَعْقِلُ بِكُلٍّ مِنْهُمَا أَفْضَلَ مِنْ عَقْلِ مُحَمَّدٍ {وَمَا جَعَلَ أَزْوَاجَكُمُ اللَّائِي} بهمزة وياء وبلا ياء {تظهرون} بلا الف قبل الهاء وبها والتاء الثانية فِي الْأَصْلِ مُدْغَمَةٌ فِي الظَّاءِ {مِنْهُنَّ} يَقُولُ الْوَاحِدُ مَثَلًا لِزَوْجَتِهِ أَنْتِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّي {أُمَّهَاتِكُمْ} أَيْ كَالْأُمَّهَاتِ فِي تَحْرِيمِهَا بِذَلِكَ الْمُعَدِّ فِي الْجَاهِلِيَّةِ طَلَاقًا وَإِنَّمَا تَجِبُ بِهِ الْكَفَّارَةُ بِشَرْطِهِ كَمَا ذُكِرَ فِي سُورَةِ الْمُجَادَلَةِ {وَمَا جَعَلَ أَدْعِيَاءَكُمْ} جَمْعُ دَعِيٍّ وَهُوَ مَنْ يُدْعَى لِغَيْرِ أَبِيهِ ابْنًا لَهُ {أَبْنَاءَكُمْ} حَقِيقَةً {ذَلِكُمْ قَوْلُكُمْ بِأَفْوَاهِكُمْ} أَيِ الْيَهُودِ وَالْمُنَافِقِينَ قَالُوا لَمَّا تَزَوَّجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْنَبَ بِنْتَ جَحْشٍ الَّتِي كَانَتِ امْرَأَةَ زَيْدِ بْنِ حَارِثَةَ الَّذِي تَبَنَّاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوا تَزَوَّجَ مُحَمَّدٌ امْرَأَةَ ابْنِهِ فَأَكْذَبَهُمُ اللَّهُ تَعَالَى فِي ذَلِكَ {وَاللَّهُ يَقُولُ الْحَقَّ} فِي ذَلِكَ {وَهُوَ يَهْدِي السَّبِيلَ} سَبِيلَ الْحَقِّ لكن {ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ هُوَ أَقْسَطُ} أَعْدَلُ {عِنْدَ اللَّهِ فَإِنْ لَمْ تَعْلَمُوا آبَاءَهُمْ فَإِخْوَانُكُمْ فِي الدِّينِ وَمَوَالِيكُمْ} بَنُو عَمِّكُمْ {وَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ فِيمَا أَخْطَأْتُمْ بِهِ} فِي ذَلِكَ {وَلَكِنْ} فِي {مَا تَعَمَّدَتْ قُلُوبُكُمْ} فِيهِ أَيْ بَعْدَ النَّهْيِ {وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا} لِمَا كَانَ مِنْ قَوْلِكُمْ قَبْلَ النَّهْيِ {رَحِيمًا} بِكُمْ فِي ذَلِكَ {النَّبِيُّ أَوْلَى بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ} فِيمَا دَعَاهُمْ إِلَيْهِ وَدَعَتْهُمْ أَنْفُسُهُمْ إِلَى خِلَافِهِ {وَأَزْوَاجُهُ أُمَّهَاتُهُمْ} فِي حرمة نكاحهن عليهم {وَأُولُو الْأَرْحَامِ} ذَوُو الْقَرَابَاتِ {بَعْضُهُمْ أَوْلَى بِبَعْضٍ} فِي الْإِرْثِ {فِي كِتَابِ اللَّهِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُهَاجِرِينَ} أَيْ مِنَ الْإِرْثِ بِالْإِيمَانِ وَالْهِجْرَةِ الَّذِي كَانَ أَوَّلَ الْإِسْلَامِ فَنُسِخَ {إِلَّا} لَكِنْ {أَنْ

تَفْعَلُوا إِلَى أَوْلِيَائِكُمْ مَعْرُوفًا) بِوَصِيَّةٍ فَجَائِزٌ (كَانَ ذَٰلِكَ) أَيْ نَسْخُ الْإِرْثِ بِالْإِيْمَانِ وَالْهِجْرَةِ بِإِرْثِ ذَوِي الْأَرْحَامِ (فِي الْكِتَابِ مَسْطُورًا) وَأُرِيْدَ بِالْكِتَابِ فِي الْمَوْضِعَيْنِ اللَّوْحِ الْمَحْفُوظِ (وَ) اُذْكُرْ (إِذْ أَخَذْنَا مِنَ النَّبِيِّيْنَ مِيْثَاقَهُمْ) حِيْنَ أُخْرِجُوا مِنْ صُلْبِ آدَمَ كَالذَّرِّ جَمْعُ ذَرَّةٍ وَهِيَ أَصْغَرُ النَّمْلِ (وَمِنْكَ وَمِنْ نُوحٍ وَإِبْرَاهِيمَ وَمُوسَى وَعِيسَى بْنِ مَرْيَمَ) بِأَنْ يَعْبُدُوا اللّٰهَ وَيَدْعُوا إِلَى عِبَادَتِهِ وَذِكْرُ الْخَمْسَةِ مِنْ عَطْفِ الْخَاصِّ عَلَى الْعَامِّ (وَأَخَذْنَا مِنْهُمْ مِيْثَاقًا غَلِيظًا) شَدِيْدًا بِالْوَفَاءِ بِمَا حَمَلُوهُ وَهُوَ الْيَمِيْنُ بِاللّٰهِ تَعَالَى ثُمَّ أَخَذَ الْمِيْثَاقَ (لِيَسْأَلَ) اللّٰهُ (الصَّادِقِيْنَ عَنْ صِدْقِهِمْ) فِي تَبْلِيْغِ الرِّسَالَةِ تَبْكِيْتًا لِلْكَافِرِيْنَ بِهِمْ (وَأَعَدَّ) تَعَالَى (لِلْكَافِرِيْنَ) بِهِمْ (عَذَابًا أَلِيْمًا) مُؤْلِمًا هُوَ عَطْفٌ عَلَى أَخَذْنَا

ترجمه: شروع کوم په نامه دَ الله چه ډیر بخښونکې او ډیر مهربان دې. اې نبي دَالله تعالی نه ویریږه یعنی دَهغه په تقوی باندې قائم اوسیږه اودکافرانواو منافقانوهغه خبرې مه منه چه ستا سو دَ شریعت خلاف وی، الله تعالی دَ کیدونکی څیز دَهغې دکیدونه وړاندې علم لری اوکوم څیزچه پیدا کول غواړی دَ هغې په باره کښې حکیم دې اوستادَ پروردګاردَ طرف نه چه کوم حکم ستا طرف ته دَ وحی په ذریعه یعنی دَ قرآن په ذریعه رالیږلې شی ته په هغې باندې روان اوسه بیشکه الله تعالی ستا دَ هر عمل نه خبر دې په یو قراءت کښې یاء فوقانیه سره دې اوته په خپله معامله کښې هم په الله تعالی باندې توکل ساته او الله تعالی دَ کارسازئی په اعتبارسره کافی دې ستا حفاظت کونکې دې، او د نبی علیه السلام امت په دې تولو امورو کښې د هغوی تابع دې، الله تعالی دَهیڅ یو سړی په سینه کښې دوه زړونه نه دی جوړکړی دا رد دې دَ بعضې کفارو په دې قول چه دَ فلانکی سړی په سینه کښې دوه زړونه دی او هغه په دواړو زړونو سره دَ محمد ﷺ نه زیات بهتر پوهیږی اوخپلو کومو بیبیانوسره چه تاسو ظهارکړې وی (یعنی دَحرمت په نیت سره مو ورته مور وئیلې وی) هغه الله تعالی ستاسودَپاره (حقیقی) میندې نه دی جوړې کړی اللّٰئی همزه او "ی" او بغیر د "ی" دواړه قراءتونه دی، تظهرون دَ ها نه وړاندې الف او بغیردَ الف دواړه صورتونه دی او تاء ثانیه په اصل کښې په ظاء کښې مدغم ده، چا خپلې ښځې ته مثلاً (انتِ علیَّ کظهر امی) اووئیل یعنی دَ ظهار په وجه په حرمت کښې (حقیقی) مور په شان نه ده ظهار په جاهلیت کښې طلاق شمیرلو دَ وجې نه اوبیشکه دَ ظهاردَ وجې نه کفاره دَهغې په شرط سره واجب کیږی لکه چه په سورت مجادله کښې ذکرکړې شوی دی اونه ئې ستاسو په څوئی نیولې شې ستاسو(حقیقی) څامن جوړکړی دی. اَدْعِيَاءَ دَ دَعِيٌّ جمع ده هغه کس ته وائی چاته دَ چه دَ څوئی نسبت دَهغه دَ پلار په خائې باندې بل چاته کړې شوې وی. اې یهودو او منافقانو دا ستاسو دَخُلوخبرې دی، کله چه نبی کریم ﷺ دَخپل متبنّی حضرت زیدبن حارثه ﷺ د بی بی زینب بنت جحش سره نکاح اوکړه نو (یهودو اومنافقانو) وئیلی وو چه محمد ﷺ دَ خپل څوئی ښځې سره

نکاح اوکړه نو الله تعالی په دې باره کښې دَهغوی تکذیب اوفرمائیلو او الله تعالی په دې معامله کښې حق خبره کوی اوهغه د لارې (حق) طرف ته رهنمائی کوی خو تاسو په ځوئی نیولی شوی دَ هغوی دَ پلارانو په نسبت سره رابلئ دَ الله تعالی په نیزصحیح خبره هم دغه ده اوکه چرې تاسو ته دَهغوی دَ پلارانو علم نه وی نوهغوی ستاسو دینی رونړه او ستاسو دَ تره ځامن دی اوکه چرې تاسو نه په دې معامله کښې هیره اوغلطی اوشی نو په تاسو باندې په دې کښې هیڅ گناه نشته، البته گناه هغه ده چه دَ ممانعت نه پس تاسو قصداً اوکړئی اودَممانعت نه وړاندې موچه څه وشیلی دی الله تعالی ډیر بخښونکې دې او په دې باره کښې په تاسو باندې مهربان دې. نبی په مؤمنانو باندې د هغوی د ځانونو نه هم زیات شفقت کونکې (مهربان) دې په هغه څیزونوکښې دَ کوم طرف ته چه هغوی رابلل کوی اودَهغوی نفسونه دَهغې نه خلاف طرف ته رابلی اودَ هغوی ښځې دَهغوی میندې دی په هغوی باندې دَهغوی سره نکاح حرمت کښې او ذوی الارحام یعنی نیزدې خپلوان دَ کتاب الله په رنړاکښې په نسبت دَ نورو مؤمنانو او مهاجرینو خپل مینځ کښې زیات حقداردی، دَ میراث په معامله کښې یعنی دَ ایمان او هجرت دَ وجې نه د ارث نه چه دَ اسلام په شروع کښې ووبیا منسوخ کړې شو مگر دا چه تاسو خپلو دوستانوسره دَ وصیت په ذریعه څه سلوک کول غوارئی نوجائزدې اودا یعنی دَایمان او د هجرت دَ وجې نه دَ میراث حکم دَ ذوی الارحام په ذریعه منسوخ کیدل په کتاب لوح محفوظ کښې لیکلې شوی دی دَ کتاب نه دوارو ځایونو کښې لوح محفوظ مراد دې. او یادکړئې مونږ دَ ټولو انبیاء کرامونه عهد اخستې وو کوم وخت چه هغوی دَ آدم ﷺ دَ شانه دَ وړو میږو په شان راویستلې شوی وو، ذُرِّ ذَرَّةٌ جمع ده ډیر وړوکی میږی ته وائی او (بالخصوص) تاسو نه اودَ حضرت نوح ﷺ نه اودَحضرت ابراهیم ﷺ نه اودَ موسیٰ ﷺ او عیسیٰ ابن مریم ﷺ نه (عهداخستې وو) دا چه دَ الله تعالی بندگی به کوی او خلقو ته به دَ هغه دَ بندگئی طرف ته دعوت ورکوی او دَتخصیص په توگه دَ دغه پنځو (انبیاء کرامو) ذکر عطف د خاص علی العام دَ قبیلې نه دې او مونږ دَهغوی نه ذمه واری پوره کولو ډیر پوخ عهد اخستې وو اوهغه (میثاق) دَ الله تعالی قسم وو دې دَپاره چه الله تعالی دَ دغه رښتینو نه دَ رسالت دَ تبلیغ په سلسله کښې دَ رښتیاؤ په باره کښې تپوس کړی دَهغوی منکرینو لره د لاجواب کولو دَ پاره اودکافرانودَپاره الله تعالی دردناک عذاب تیارساتلې دې، یعنی تکلیف ورکونکې، دَدې عطف په اخذنا باندې دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** یٰاَیُّهَا النَّبِیُّ الله تعالی سبحانه و تبارك رسول الله ﷺ ته دَ نورو انبیاء کرامو په شان خطاب نه فرمائی، نورو انبیاء کرامو ته ئې خطاب اوفرمائیلو یاموسیٰ یاعیسیٰ یاداؤد، څکه

چه حضورپاك بيشكه افضل الخلق على الاطلاق دي، لهذا الله تعالى حضورپاك ته په تعظيم او اكرام سره خطاب فرمائيلي دي مثلاً فرمائي يايها النبي، يايها الرسول او كه چرته په صراحت سره د حضورپاك د نوم د بيان ضرورت پيښ شوي نو سره د هغې نې وريسي څه بله كلمه ذكركړې ده چه په تعظيم باندې دلالت كوي مثلاً فرمائي محمد رسول الله، وما محمد الا رسول وغيرذلك.

قوله: دُمْ على تقوالله دي اضافي مقصد د تحصيل حاصل د شبهې جواب دې څكه چه حضورپاك خو د اول نه په تقوى باندې وو بيا حضورپاك ته د تقوى حكم وركول دا تحصيل د حاصل دې؟ د جواب خلاصه داده چه مقصد په تقوى باندې د قائم پاتې كيدو حكم دې نه چه انشاء تقوى يا حكم اگرچه حضورپاك ته دې مگر مراد امت دې.

قوله: كَفَى بِاللهِ كښې لفظ الله د كفى فاعل كيدو د وجې نه په محل د رفع كښې دې فاعل باندې ب زائده ده، وكيلاً تميز دې يا حال دې.

قوله: وَمَا جَعَلَ اَدْعِيَاءَكُمْ دا آيت حضرت زيدبن حارثه بن شرحبيل باره كښې نازل شوي دې، دَعِيٌّ په معنى د مَدْعُوٌّ يعنى فعيل په معنى د مَفْعُوْل دَعِيٌّ اصل كښې دَعِيْوٌ وو واؤ او ياء په يوځائې جمع شو ياء ساكن ده، واؤ مو ياء كړه اودياء مو په ياء كښې مدغمه كړه نو دَعِيٌّ شو ليكن د دَعِيٌّ جمع اَدْعِيَاء خلاف القياس ده څكه چه د فعيل معتل لام جمع اَفْعِلاءُ هغه وخت راځى كله چه د فاعل په معنى كښې وى لكه دَتَقِيٌّ جمع اَتْقِيَاءُ او غَنِيٌّ جمع اغنياء، دَعِيٌّ سره د دې چه معتل لام دې مگر په معنى د مفعول دې لهذا قياس دا وو چه د دې جمع دَعْىٰ په وزن د فَعْلى وى لكه د قتيل جمع قَتْلى او جَرِيح جمع جَرْحى راځى لهذا دا شاذ دى.

قوله: بَنُوْعَمِّكُم. د مَوَالِيكُمْ تفسير په بنوعمكم سره د كولو مقصد د معنى تعيين دې څكه چه د مولى ډيرې معنې راځى، د دغه ټولونه ابن عم مراد دې. حضرت زكريا عليه السلام فرمائيلى وو انى خفت الموالى من ورائى دلته د موالى نه بنوعم مراد دې.

قوله: مَا تَعَمَّدَتْ كښې مَا يا خو په سابق مَا باندې د عطف د وجې نه محلاً مجرور ده يا د ابتداء د وجې نه مرفوع ده او خبرئې محذوف دې تقديرى عبارت به داشى ولكن ما تعمدت تؤاخذون به

قوله: اَرْحَامٌ: جمع د رَحْمٌ په معنى د قرابت اولى بِبَعْضٍ اى بِاِرْثِ بعض شارح رحمه الله فى الارث اضافي كښې حذف د مضاف طرف ته اشاره كړې دې، فى كتاب الله اَوْلى سره متعلق دې اى هذه الاولوية ثابت فى كتاب الله دمن المؤمنين تعلق هم اولى سره دې يعنى خپلوان مؤمنان د پردو مهاجرينو نه د ارث زيات مستحق دى اِلَّا اَنْ تَفْعَلُوْا شارح رحمه الله د الا تفسير په لكن سره

کړ لو کښې اشاره اوکړه چه دا مستثنی منقطع ده.

**قوله**: أَنْ تفعَلُوْا په تاویل د مصدر مبتدأ ده او دَدې خبر محذوف دې. شارح رحمه الله فجائز مقدر منلو سره حذف د خبر طرف ته اشاره اوکړه، تَفعَلُو چونکه د تَوَصّلُوْا معنی لره متضمن دې لهذا دَدې صله الی راوړل صحیح دی.

**قوله**: بِإِرْثِ ذَوِي الارحام دا دَ نسخ سره متعلق دې.

**قوله**: وَاِذْ اَخَذْنَا د اذکر محذوف دَ وجې نه محلاً منصوب هم کیدې شی او دا هم جائز دی چه فی الکتاب په محل باندې عطف وی نو هغه وخت به عامل مسطورًا وی ای کان هذا الحکم مسطورًا فی الکتاب وقت اَخذنا.

**قوله**: وَاَعَدَّ دَدې عطف په اَخَذْنَا باندې دې.

## [ایاتونه: ۹ - ۲۰]

﴿يٰأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اذْكُرُوا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ إِذْ جَاءَتْكُمْ جُنُودٌ﴾ مِنَ الْكُفَّارِ مُتَحَزِّبُونَ أَيَّامَ حَفْرِ الْخَنْدَقِ ﴿فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا وَجُنُودًا لَمْ تَرَوْهَا﴾ مِنَ الْمَلَائِكَةِ ﴿وَكَانَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُونَ﴾ بِالتَّاءِ مِنْ حَفْرِ الْخَنْدَقِ وَبِالْيَاءِ مِنْ تَحْزِيبِ الْمُشْرِكِينَ ﴿بَصِيرًا﴾ ﴿إِذْ جَاءُوكُمْ مِنْ فَوْقِكُمْ وَمِنْ أَسْفَلَ مِنْكُمْ﴾ مِنْ أَعْلَى الْوَادِي وَأَسْفَلِهِ مِنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ ﴿وَإِذْ زَاغَتِ الْأَبْصَارُ﴾ مَالَتْ عَنْ كُلِّ شَيْءٍ إِلَى عَدُوِّهَا مِنْ كُلِّ جَانِبٍ ﴿وَبَلَغَتِ الْقُلُوبُ الْحَنَاجِرَ﴾ جَمْعُ حَنْجَرَةٍ وَهِيَ مُنْتَهَى الْحُلْقُومِ مِنْ شِدَّةِ الْخَوْفِ ﴿وَتَظُنُّونَ بِاللّٰهِ الظُّنُونَا﴾ الْمُخْتَلِفَةَ بِالنَّصْرِ وَالْيَأْسِ ﴿هُنَالِكَ ابْتُلِيَ الْمُؤْمِنُونَ﴾ اُخْتُبِرُوا لِيَتَبَيَّنَ الْمُخْلِصُ مِنْ غَيْرِهِ ﴿وَزُلْزِلُوا﴾ حُرِّكُوا ﴿زِلْزَالًا شَدِيدًا﴾ مِنْ شِدَّةِ الْفَزَعِ ﴿وَ﴾ اُذْكُرْ ﴿إِذْ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ﴾ ضُعْفُ اعْتِقَادٍ ﴿مَا وَعَدَنَا اللّٰهُ وَرَسُولُهُ﴾ بِالنَّصْرِ ﴿إِلَّا غُرُورًا﴾ بَاطِلًا ﴿وَإِذْ قَالَتْ طَائِفَةٌ مِنْهُمْ﴾ أَيِ الْمُنَافِقُونَ ﴿يَا أَهْلَ يَثْرِبَ﴾ هِيَ أَرْضُ الْمَدِينَةِ وَلَمْ تُصْرَفْ لِلْعَلَمِيَّةِ وَوَزْنِ الْفِعْلِ ﴿لَا مُقَامَ لَكُمْ﴾ بِضَمِّ الْمِيمِ وَفَتْحِهَا أَيْ لَا إِقَامَةَ وَلَا مَكَانَةَ ﴿فَارْجِعُوا﴾ إِلَى مَنَازِلِكُمْ مِنَ الْمَدِينَةِ وَكَانُوا خَرَجُوا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى سَلْعٍ جَبَلٍ خَارِجَ الْمَدِينَةِ لِلْقِتَالِ ﴿وَيَسْتَأْذِنُ فَرِيقٌ مِنْهُمُ النَّبِيَّ﴾ فِي الرُّجُوعِ ﴿يَقُولُونَ إِنَّ بُيُوتَنَا عَوْرَةٌ﴾ غير حصينة يخشى عليها قال تعالى ﴿وَمَا هِيَ بِعَوْرَةٍ إِنْ﴾ مَا ﴿يُرِيدُونَ إِلَّا فِرَارًا﴾ مِنَ الْقِتَالِ ﴿وَلَوْ دُخِلَتْ﴾ أَيِ الْمَدِينَةُ ﴿عَلَيْهِمْ مِنْ أَقْطَارِهَا﴾ نَوَاحِيهَا ﴿ثُمَّ سُئِلُوا﴾ أَيْ سَأَلَهُمُ الدَّاخِلُونَ ﴿الْفِتْنَةَ﴾ الشِّرْكَ ﴿لَآتَوْهَا﴾ بِالْمَدِّ وَالْقَصْرِ أَيْ أَعْطَوْهَا وَفَعَلُوهَا ﴿وَمَا تَلَبَّثُوا بِهَا إِلَّا يَسِيرًا﴾ ﴿وَلَقَدْ كَانُوا عَاهَدُوا اللّٰهَ مِنْ قَبْلُ لَا يُوَلُّونَ الْأَدْبَارَ وَكَانَ عَهْدُ اللّٰهِ مَسْئُولًا﴾ عَنِ الْوَفَاءِ بِهِ ﴿قُلْ لَنْ يَنْفَعَكُمُ الْفِرَارُ إِنْ فَرَرْتُمْ مِنَ الْمَوْتِ أَوِ الْقَتْلِ وَإِذًا﴾ إِنْ فَرَرْتُمْ ﴿لَا تُمَتَّعُونَ﴾ فِي الدُّنْيَا بَعْدَ فِرَارِكُمْ ﴿إِلَّا قَلِيلًا﴾ بَقِيَّةَ آجَالِكُمْ ﴿قُلْ مَنْ ذَا الَّذِي يَعْصِمُكُمْ﴾ يُجِيرُكُمْ ﴿مِنَ اللّٰهِ إِنْ أَرَادَ بِكُمْ سُوءًا﴾ إِهْلَاكًا وَهَزِيمَةً ﴿أَوْ﴾ يُصِيبُكُمْ بِسُوءٍ إِنْ ﴿أَرَادَ﴾ اللّٰهُ ﴿بِكُمْ رَحْمَةً﴾ خَيْرًا ﴿وَلَا يَجِدُونَ لَهُمْ مِنْ دُونِ اللّٰهِ﴾ أَيْ غَيْرِهِ ﴿وَلِيًّا﴾ يَنْفَعُهُمْ ﴿وَلَا نَصِيرًا﴾ يَدْفَعُ الضُّرَّ عَنْهُمْ ﴿قَدْ يَعْلَمُ اللّٰهُ الْمُعَوِّقِينَ﴾ الْمُثَبِّطِينَ ﴿مِنْكُمْ وَالْقَائِلِينَ لِإِخْوَانِهِمْ هَلُمَّ﴾ تَعَالَوْا ﴿إِلَيْنَا وَلَا

يَأْتُونَ الْبَأْسَ) الْقِتَال (إِلَّا قَلِيلًا) رِيَاء وَسُمْعَة (أَشِحَّةً عَلَيْكُمْ) بِالْمُعَاوَنَةِ جَمْع شَحِيح وَهُوَ حَال مِنْ ضَمِير يَأْتُونَ (فَإِذَا جَاءَ الْخَوْفُ رَأَيْتَهُمْ يَنْظُرُونَ إِلَيْكَ تَدُورُ أَعْيُنُهُمْ كَالَّذِي) كَنَظَرِ أَوْ كَدَوَرَانِ الَّذِي (يُغْشَى عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ) أَيْ سَكَرَاته (فَإِذَا ذَهَبَ الْخَوْفُ) وَحِيزَتْ الْغَنَائِم (سَلَقُوكُمْ) آذَوْكُمْ أَوْ ضَرَبُوكُمْ (بِأَلْسِنَةٍ حِدَادٍ أَشِحَّةً عَلَى الْخَيْرِ) أَيْ الْغَنِيمَة يَطْلُبُونَهَا (أُولَئِكَ لَمْ يُؤْمِنُوا) حَقِيقَة (فَأَحْبَطَ اللَّهُ أَعْمَالَهُمْ وَكَانَ ذَلِكَ) الْإِحْبَاط (عَلَى اللَّهِ يَسِيرًا) بِإِرَادَتِهِ (يَحْسَبُونَ الْأَحْزَابَ) مِنَ الْكُفَّار (لَمْ يَذْهَبُوا) إِلَى مَكَّة لِخَوْفِهِمْ مِنْهُمْ (وَإِنْ يَأْتِ الْأَحْزَابُ) كَرَّة أُخْرَى (يَوَدُّوا) يَتَمَنَّوْا (لَوْ أَنَّهُمْ بَادُونَ فِي الْأَعْرَابِ) أَيْ كَائِنُونَ فِي الْبَادِيَة (يَسْأَلُونَ عَنْ أَنْبَائِكُمْ) أَخْبَارِكُمْ مَعَ الْكُفَّار (وَلَوْ كَانُوا فِيكُمْ) هَذِهِ الْكَرَّة (مَا قَاتَلُوا إِلَّا قَلِيلًا) رِيَاء وَخَوْفًا مِنَ التَّعْيِير

**ترجمه.** اې دَ ايمان والو په خپلو ځانونو باندې دَ الله تعالى انعام يادكړئ كله چه په تاسو باندې دَ كافرانو ډيرو لښكرو دَ خندق كنستلو په ورځو كښې (متحده محاذ) جوړولو سره په تاسو حمله كړې وه نو مونږ په هغوى باندې طوفان راوليږلو او دَ فرښتو داسې فوج مو راوليږلو چه تاسو ته نه ښكاريدو او الله تعالى ستاسو خندق وغيره كنستلو عمل ته كتل، (تعملون) كښې تاء او ياء سره او دَ مشركانو ډله بندى (متحده محاذ) ته ئې كتل كله چه (دښمن) تاسو ته ستاسو د پاسه يعنى دَ وادئ دَ بره طرف نه او ښكته طرف نه راغلى وو يعنى دَ مشرق او مغرب دَ طرف نه او كله چه سترګې كولاؤ په كولاؤ پاتې شوې يعنى دَ هر طرف نه حمله كونكې دَ خپل دښمن په طرف لګيدلې وې او دَ سختې ويرې نه زړونه خلو ته راغلل حناجر دَ حنجرة جمع ده حنجرة دَ حلق آخرى حصې ته وائى او تاسو دَ الله تعالى په نسبت دَ امداد او نااميدئ قسم قسم ګمانونه كول په دې موقع دَ مؤمنانو ازميښت اوكړې شو دې دَ پاره چه مخلص دَ غير مخلص نه جدا شى او دَ سختې ويرې په سخته زلزله كښې واچولې شوئى او هغه وخت يادكړئ كله چه منافقانو او هغه خلقو دَ چا په زړونو كښې چه دَ كمزورې عقيدې مرض وو وئيل به ئې چه مونږ سره خو الله تعالى او دَ هغه رسول د مدد صرف دَ دهوكې وعده كړې وه او كله چه په هغوى كښې يعنى دَ منافقانو يو جماعت اووئيل اې دَ يثرب والو دا دَ مدينې دَ علاقې نوم دې د علميت او وزن دَ فعل دَ وجې نه غير منصرف دې چه ستاسو دَ پاره دَ حصاريدو موقع نه ده (مقام) كښې دَ ميم په ضمې او په فتحې سره نه دَ حصاريدو موقع او نه دَ حصاريدو مقام خپل كورونو يعنى مدينې ته واپس شئ، او داخلق رسول الله ﷺ سره دَ جهاد دَ پاره دَ مدينې نه بهر جبل سلع پورې وتلې وو او په هغوى كښې بعضې خلقو دې ويناكولو سره دَ نبى ﷺ نه دَ واپس كيدو اجازت غوښتلو چه زمونږ كورونه خالى دى (يعنى) غير محفوظ دى زمونږ دَ خپلو كورونو باره كښې دَ (دښمن) انديښنه ده، الله تعالى اوفرمائيل حالانكه هغه غير محفوظ نه دى دَ هغوى صرف اراده دَ جنګ نه دَ تختيدو وه او كه چرې په مدينه كښې په هغوى باندې دَ اطرافو د (مدينې) نه لښكرې راوَخيژى بيا دَ هغوى نه دَ داخليدونكې فتنې دَ شرك

مطالبه اوکړی نودوی به هغه منظورکړی (لاتوها) کښې مد اوقصردواړه دی یعنی دا به منظورې کړی اوبه ئې کړی او په کورونو کښې به ډیرکم حصار شی حالانکه دغه خلقو اول دَالله تعالی سره عهد کړې دې چه په شا به نه تختی، الله تعالی سره چه کوم عهد کولې شی دَهغې دَ پوره کولو په باره کښې به پوښتنه کیږی، تاسو ورته اووایئې چه تیختـه به تاسو ته څه فائده ورنه کړی که چرته تاسودَ مرگ نه یا قتل نه تختئی اوکه چرې تاسو اوتختیدئ نو دَ تیختې نه پس به په دنیاکښې دَلږو ورځونه بغیر یعنی بغیردَ ژوند دَ باقی ورځونه مستفید کیدې نه شئی او دا هم ورته اووایه چه هغه څوک دې چه تاسو دَالله تعالی نه بچ کړې شی که چرې هغه تاسو سره د بدئ یعنی هلاکت یا شکست اراده اوکړی یا هغه څوک دی چه تاسو ته تکلیف دراورسوی که چرې الله تعالی تاسو سره دَ خیرمعامله کول غواړی؟ اونه به هغوی ته دَ الله تعالی نه بغیرڅوک حمایتی اومومی چه هغوی ته نفع اورسولې شی اونه مددګارچه دَهغوی نه ضرر اخواکړې شی الله تعالی په تاسو کښې هغه خلق پیژنی کوم چه نور منع کونکی دی او خپلو رونړو ته وائی چه مونږ له راشئی او په جنګ کښې شرکت نه کوی مګر ډیرکم د خودلو اوروښولو (ریاکارئ) دَپاره، دَ معاونت په باره کښې ستاسو په حق کښې پوره بخیلان دی. اَشِحَّةً دَ شحیحٌ جمع ده او دا دَ یاتون د ضمیر نه حال دې اوکله چه دَ ویرې موقع راشی نوتاسو به هغوی ګورئی چه هغوی ستاسو طرف ته داسې ګوری چه دَ هغوی سترګې چکر خوری دَهغه سړی دَ نظر په شان یا دَهغه سړی دَ چکر خوړلو په شان په کوم چه دَ زنکدن بې هوشی خوره شوې وی اوکله چه ویره ځی اودَ غنیمت مالونه راجمع کولې شی نوتاسو ته په تیزو تیزو ژبوسره تکلیف رسوی پیغورونه درکوی او دَغنیمت په مال کښې ډیرحرصناک دی دَهغې مطالبه کوی دې خلقو په حقیقت کښې ایمان نه دې راوړې نو الله تعالی دَهغوی اعمال بې کاره کړل اودا بې کاره کول دَ الله تعالی دَپاره دَ هغه په مشیت سره ډیر آسان دی، دَهغه خلقو داخیال دې چه دَ کافرانو جماعتونه اوس لا مکې مکرمې ته نه دی تلی دَهغوی نه دَ ویریدو دَ وجې نه اوکه (فرض کړه) دا جماعتونه بیا راواپس شی نو دوی به دا خبره خوښه کړی چه افسوس چه مونږ کلوته بهر تلې وې یعنی په کلوکښې مو استوګنه اختیار کړې وې او کافرانوسره ستاسو دَ جنګ حالات ئې معلومولې اوکه چرې دې خلق هغوی تاسو سره وې نوبیابه هم ډیرکم جنګیدل دَ ریاکارئی په توګه اودَ شرم دَ ویرې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** جُنُودٌ جمع د جُنْد په معنی د لښکر، قریش، غطفان او یهودبنی نضیروغیره لښکرمراددې.

**قوله:** اِذْجَآءَتْكُمْ، نِعْمَةَ الله نه بدل دې په دې کښې عامل اُذْكُرُوْا دې.

**قوله:** مُعَوِّقُوْنَ ای مُثَبِّطُوْنَ،متحدہ محاذ

قوله: اِذْجَاءُوكُمْ دا د اِذْجَاءَتْكُمْ نه بدل دي. په ظُنُوْنَا كښې نافع او ابن عامر او ابوبكر د مصحف امام (يعنى مصحف عثمانى) د رعايت د وجه نه وقفًا ووصْلًا الف سره لوستلې دي او ابوعمر او حمزه په دواړو حالتونو كښې حذف د الف سره لوستلې دې

قوله: بِالنصر واليأس دَ نصرت اميدلرونكى مؤمنان مخلصان وو او نااميده كيدونكى منافقان وو.

قوله. زِلْزَالًا دَ زاء په كسرې سره دا عام قراءت دې او بعضې حضراتو دَ زاء په فتحې سره لوستلې دې ځكه چه دَفِعْلَالٌ دواړه مصدرونه راځى لكه زِلْزالٌ، قِلْقَالٌ، اوصِلْصَالٌ اوكله زَلزَالٌ په فتحې سره دَا سم فاعل په معنى كښې هم راځى. لكه زَلزَال په معنى د مُزَلْزِلٌ.

قوله: اِذقَالَت طَائفة قائل منافق اوس بن قيظيٰ اودَهغه ملگرى دى لَامُقَامَ په قراءت حفص كښې دَ ميم په ضمې سره دې اودَباقى حضراتو په نيز په فتحې سره دې. قول الشارح لَا اِقَامَةَ په معنى د حصاريدلو د مُقَامُ (په ضمې سره) تفسير دې او لَامَكَانَةَ په معنى د ځاې د قيام دادَ مقام (په فتحې سره) تفسيردې.

قوله: يَثْرِبَ په حديث شريف كښې مدينې ته يثرب وئيلونه منع كړې شوې ده ځكه چه دا دَ ثَرْبٌ نه مشتق دې دَ كوم معنى چه ملامت اودَ تعَنُّف ده. وئيلى شى چه دَ قوم معالقه يوسړې دَ كوم نوم چه يثرب وو هغه دې ځائې كښې دَ ټولونه اول اوسيدلې وو هم په دې وجه دَ دې ځائې نوم يثرب شو. رسول الله ﷺ دَدې ځائې نوم طيبة، طابة، قُبَّةَ الاسلام او دارالهجرت كيخودو. (اعراب القرآن للدرويش ملخصًا)

قوله. سَلَعْ د مدينې سره نيزدې دَ يوغرنوم دې اودَ شارح رحمه الله قول جبلٍ خارجِ المدينة دَسَلَعْ تفسير دې.

قوله: فَارجعوا كښې فا فصيحه ده اى اِن سمِعْتم نُصْحِى فَارْجِعُوا يعنى كه تاسو زما نصيحت اوريدلې وى نو واپس شئى اودَ وَيَسْتَاذِن عطف په قالت باندې دې، حكايت د حال ماضى په توگه باندې دِمضارع صيغه راوړلې شوې ده يقولون جمله حاليه يا مفسره ده كوم چه دَ وَيَسْتَاذِن تفسير كوى

قوله: وَلَوْدُخِلَتِ المَدِينة اى لَوْدَخَلَتِ الاحزابُ المدينةَ ثم سُئِلُوا اى المنافقون.

قوله. اَلْفِتْنَةَ اى الكُفْرَوَالرِّدة

قوله: لَاَتَوْهَا كښې لام په جواب قسم باندې داخل دې يعنى كفر او ردة (مرتد كيدل) ډير زر بلاتاخير منظوركړى او بعضې حضراتو دا معنى بيان كړې ده چه دكفر اوردة (مرتد كيدلو) مطالبه پوره كولو نه پس مدينه كښې ډيرې وخت حصار نه شى زر به ويستلې شى يا به

قتل کړي شي. (بيضاوي، جمل)

قوله: لَا يُوَلُّوْنَ دا جواب قسم دي ځکه چه عَاهَدُوْا معنی کښې اَقْسَمُوْا دي.

قوله: اِنْ فَرَرتم شرط دي دَدې جواب لن ينفعكم مقدم يا د ماقبل دَ دلالت دَوجې نه محذوف هم کيدې شي.

قوله: اَلْمُعَوِّقِيْنَ دا دَ مُعَوِّقْ اسم فاعل جمع ده دَدې معنی ده بندونکی، منع کونکی.

قوله: هَلُمَّ اى تَعَالَوْا هَلُمَّ دَبني تميم او حجازيينو په نيز فعل امر دې مګر فرق دادې چه دَ بنو تميم په نيز علامات تثنيه او جمع او تذكير او تانيث لاحق كيږي، يعنی هَلُمَّا هَلُمُّوا هَلُمَّتْ وغيره وئيلی شي او دَ حجازيينو په نيز دَدې صرف دَ واحد مذكر صيغه راځي. شارح رحمه الله دَ هَلُمَّ تفسير تعالوا سره کولو کښې دې خبرې ته اشاره کړې ده چه هغه دَ هَلُمَّ په باره کښې دَ حجازی مذهب قائل دې.

قوله: اَشِحَّةً دا دَ شحيح جمع ده دَدې معنی ده حريص مع البخل، اَشِحَّةً منصوب بالذم دې يا دَ حال كيدو دَ وجې نه منصوب دې بعض حضراتو د هم مبتدأ محذوف د خبر كيدو دَ وجې نه مرفوع هم لوستلې دې.

قوله: رأيتهم ينظرون اِلَيْكَ دا دَ منافقانو دَ بزدلئی او د ويرې دكيفيت بيان دې، دَ بزدلئی او ويرې دوه وجوهات وو اول مشركينو سره دَ جنګ ويره دويم دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم دَ غالب كيدو ويره، د يَنْظُرُوْنَ اِلَيْكَ خوفًا من القتال تعلق رومبی صورت سره دې او تَدُوْرُ اَعْيُنُهُمْ تعلق د دويم صورت سره دې.

قوله: ينظرون جمله حاليه ده ځکه چه مراد رويت بصريه دې.

قوله: كنظر او دَوران د شارح رحمه الله مقصد دَدې عبارت نه دا خودل دی چه كَالَّذِىْ يُغْشٰى عليه كښې دوه صورتونه دی اول دا چه دا يَنْظُرُوْنَ دَ مصدر محذوف صفت وی ای ينظرون اليك نظرًا كنظر الَّذِىْ يُغْشٰى عليه دويم دا چه دَ تَدُوْرُ د مصدرِ محذوف صفت وی ای تَدُوْرُ دَوَرَانًا كدوران عين الَّذِىْ يُغْشٰى عليه.

قوله: سَلَقُوْ (ض) سلقًا په ژبه تيزه خبره کول سَلَقَهٗ بالكلام هغه ته ئې تيزه خبره اوکړه، پيغورنې ورکړو.

قوله: بَادُوْنَ دا دَ بادٍ جمع ده، کلی وال، دکلی اوسيدونکې، يعنی افسوس چه هغوی دَ کلی اوسيدونکی وې، يَسْئَلُوْنَ جمله دَ بَادُوْنَ خبر دې.

........

**[اياتونه: ۲۱ - ۲۷]**

﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللّٰهِ أُسْوَةٌ﴾ بِكَسْرِ الْهَمْزَةِ وَضَمِّهَا ﴿حَسَنَةٌ﴾ اقْتِدَاءٌ بِهِ فِي الْقِتَالِ وَالثَّبَاتِ فِي مَوَاطِنِهِ ﴿لِمَنْ﴾ بَدَلٌ مِنْ لَكُمْ ﴿كَانَ يَرْجُو اللّٰهَ﴾ يَخَافُهُ ﴿وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللّٰهَ كَثِيرًا﴾ بِخِلَافِ مَنْ لَيْسَ كَذٰلِكَ ﴿وَلَمَّا رَأَى الْمُؤْمِنُونَ الْأَحْزَابَ﴾ مِنَ الْكُفَّارِ ﴿قَالُوا هٰذَا مَا وَعَدَنَا اللّٰهُ وَرَسُولُهُ﴾ مِنَ الِابْتِلَاءِ وَالنَّصْرِ ﴿وَصَدَقَ اللّٰهُ وَرَسُولُهُ﴾ فِي الْوَعْدِ ﴿وَمَا زَادَهُمْ﴾ ذٰلِكَ ﴿إِلَّا إِيمَانًا﴾ تَصْدِيقًا بِوَعْدِ اللّٰهِ ﴿وَتَسْلِيمًا﴾ لِأَمْرِهِ ﴿مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللّٰهَ عَلَيْهِ﴾ مِنَ الثَّبَاتِ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿فَمِنْهُمْ مَنْ قَضَىٰ نَحْبَهُ﴾ مَاتَ أَوْ قُتِلَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ ﴿وَمِنْهُمْ مَنْ يَنْتَظِرُ﴾ ذٰلِكَ ﴿وَمَا بَدَّلُوا تَبْدِيلًا﴾ فِي الْعَهْدِ وَهُمْ بِخِلَافِ حَالِ الْمُنَافِقِينَ ﴿لِيَجْزِيَ اللّٰهُ الصَّادِقِينَ بِصِدْقِهِمْ وَيُعَذِّبَ الْمُنَافِقِينَ إِنْ شَاءَ﴾ بِأَنْ يُمِيتَهُمْ عَلَىٰ نِفَاقِهِمْ ﴿أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ إِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُورًا﴾ لِمَنْ تَابَ ﴿رَحِيمًا﴾ بِهِ ﴿وَرَدَّ اللّٰهُ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ أَيِ الْأَحْزَابَ ﴿بِغَيْظِهِمْ لَمْ يَنَالُوا خَيْرًا﴾ مُرَادَهُمْ مِنَ الظَّفَرِ بِالْمُؤْمِنِينَ ﴿وَكَفَى اللّٰهُ الْمُؤْمِنِينَ الْقِتَالَ﴾ بِالرِّيحِ وَالْمَلَائِكَةِ ﴿وَكَانَ اللّٰهُ قَوِيًّا﴾ عَلَىٰ إِيجَادِ مَا يُرِيدُهُ ﴿عَزِيزًا﴾ غَالِبًا عَلَىٰ أَمْرِهِ ﴿وَأَنْزَلَ الَّذِينَ ظَاهَرُوهُمْ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ﴾ أَيْ قُرَيْظَةَ ﴿مِنْ صَيَاصِيهِمْ﴾ حُصُونِهِمْ جَمْعُ صِيصَةٍ وَهُوَ مَا يُتَحَصَّنُ بِهِ ﴿وَقَذَفَ فِي قُلُوبِهِمُ الرُّعْبَ﴾ الْخَوْفَ ﴿فَرِيقًا تَقْتُلُونَ﴾ مِنْهُمْ وَهُمُ الْمُقَاتِلَةُ ﴿وَتَأْسِرُونَ فَرِيقًا﴾ مِنْهُمْ أَيِ الذَّرَارِيَّ ﴿وَأَوْرَثَكُمْ أَرْضَهُمْ وَدِيَارَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ وَأَرْضًا لَمْ تَطَئُوهَا﴾ بَعْدُ وَهِيَ خَيْبَرُ أُخِذَتْ بَعْدَ قُرَيْظَةَ ﴿وَكَانَ اللّٰهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرًا﴾

**ترجمه:** يقيناً ستاسو دَپاره په (حيات) رسول الله ﷺ كښې دَ اقتداء دَپاره په جنګ كښې او په جنګ كښې ثابت قدم اوسيدو كښې ښكلې نمونه موجود ده، دَ اسوة په همزه باندې د كسرې او ضمې سره (يعنې) دَهرهغه سړي دَپاره چه دَالله تعالى او ورځې دَآخرت نه ويريږي اودَالله تعالى په كثرت سره ذكركوي په خلاف دَهغه سړي چه په دې صفت باندې نه دې. لِمَنْ دلَكُمْ نه بدل دې او ايمان والو چه كله دَكافرانو لښكرا وليدلو نو ناځاپې ئې اووئيل هم دغه دې هغه ازميښت او نصرت دكوم وعده چه الله تعالى اودَ هغه رسول ﷺ زمونږ سره كړې وه، او الله تعالى اودَهغه رسول ﷺ په وعده كښې رښتونى دى اودې څيزدَ الله تعالى دَوعدې تصديق اودَ هغه دَ حكم امتثال (پوره كولو) كښې اضافه اوكړه په دغه مؤمنانو كښې څه خلق داسې هم دى چاچه نبى سره دَ ثابت قدم اوسيدو كومه وعده كړې وه هغه ئې رښتيا كړه يا بعضې په هغوى كښې هغه دى چه خپل نذرئې پوره كړو اووفات شو، يادَ الله تعالى په لاركښې شهيدان كړې شو او په هغوى كښې بعضې دَ موقع په انتظاركښې دى اوهغوى په عهدكښې هيڅ بدلون نه دې كړې اودَهغوى حال دَ منافقانودَحال نه برخلاف دې (دا واقعه دَدې دَپاره اوشوه) چه الله تعالى رښتونى مسلمانانوته دَهغوى دَ صداقت بدله وركړي اومنافقانوته كه غواړي نوسزا وركړي په داسې طريقه چه هغوى تـه هم په نفاق باندې مرګ وركړي اوكه غواړي نودَهغوى توبه قبوله

کړي بیشکه الله تعالی توبه کونکو لره بخښونکې او په هغوی ډیر مهربان دی، اوالله تعالی کافرانو یعنی احزاب دَ غصې نه ډک نامراد واپس کړل یعنی هغوی په مؤمنانوباندې دَ فتح مراد حاصل نه کړې شو، اوالله تعالی په جنګ کښې دَ مؤمنانودَ طرف نه د سلیئی اودَ ملائکو په ذریعه هم په خپله کافی شو او الله تعالی چاله چه غواړی دَهغوی په موجود کولوباندې دَ ډیر قوت والا دې او په خپل امرباندې غالب دې اوکومو اهل کتابویعنی بنوقریظه چه دَهغوی امداد کړې وو هغوی ئې هم دَهغوی دَ قلعه ګانونه راوویستل صیاصی دَ صِیْصِیَةٌ جمع ده هغه عمارت ته ونیلی شی دَ کوم په ذریعه چه حفاظت کولې شی (قلعه) اودَهغوی په زړونوکښې ئې رعب ، ویره واچول په هغوی کښې یوفریق تاسو قتل کولو او هغه مقاتلین (جنګ کونکی) وو او په هغوی کښې یوفریق (یعنی) ماشومان مو قید کول اوهغه تاسو دَهغوی دَ زمکو اودَ هغوی دَکورونو اومالونو وارثان جوړ کړئی اودَهغې زمکې هم چرته چه تراوسه پورې ستاسو قدمونه هم نه دی رسیدلی (وارثان جوړ کړئی) او هغه دَ خیبرزمکه ده چه دَ قریظه نه پس په قبضه کښې واخستې شوه اوالله تعالی په هرڅیز قادردې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** أُسْوَةٌ نمونه د عمل، اسم په معنی د مصدردې، اَلاِئتِسَاءُ اقتداء کول شارح رحمه الله دَ اقتداء اضافه کولوسره اشاره اوکړه چه اُسْوَةٌ دَ اسم مصدرپه معنی کښې دې لکه قُدْوَةٌ په معنی د اقتداء يقال ائتسی فلانٌ بِفلانٍ ای اِقتدیٰ بِهٖ.

**قوله:** فِی القِتَالِ والثباتِ دا دواړه قیدونه اتفاقی دی، دَدې مفهوم مخالف مراد نه دې بلکه مطلب دادې چه دَ حضورپاك ژوند مبارك دَ عمل یوه بهترینه نمونه ده په هرحالت کښې که هغه دَ جنګ حالت وی اوکه دَ امن یا دَ جنګ په حالت کښې دَ ثابت قدم اوسیدو معامله وی یادَ بهادرئی.

**قوله:** فی مَوَاطِنِهٖ ای مواطن قتال یوعارف څه ښه وینا کړې ده

وَخَصَّكَ بِالهُدیٰ فِی کُلِّ اَمْرٍ　　　فَلَسْتَ تَشَاءُ الأَمَا یَشَاءُ

**قوله:** بَدَلٌ مِنْ لَكُمْ یعنی لِمَنْ دلَکُمْ نه په اعادې د جار سره بدل البعض دې

**قوله:** مَاوَعَدَنَا اللهُ دَ الله تعالی د وعدې نه دَالله تعالی دا قول اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ تَدْخُلُوا الجَنَّةَ (الآیة) مراددې اودَ قول رسول ﷺ نه دَ حضورپاك دا قول اَنَّ لاحزابَ سَائِرُوْنَ بعدَ تِسعٍ لیالٍ اوعَشرٍ وقوله صلی الله تعالی علیه وسلم سَیَشُدُّ الاَمْرُ بِاجتماعِ الاحزابِ علَیْکُمْ وَالعَاقِبَةُ لَکُمْ عَلَیْهِمْ مراد دې

**قوله:** صَدَقَ اللهُ وَرَسُوْلُهٗ دَاسم ضمیرپه ځائې اسم ظاهر راوړلې شوې دې.

**سوال** پورته دَالله تعالی اودَهغه دَ رسول ذکر صراحةً شوې دې لهذا دلته ضمیر راوړل یعنی صَدَقَا ونیل کافی وو دَ اسم ظاهرراوړلو څه وجه ده؟

**جواب:** ① دَالله تعالی دَ نوم د تکریم او تعظیم دَپاره ئې دَالله تعالی نوم مستقلاً ذکر کړو

**جواب:** ② دا دې چه ضمیر راوړلو کښې به الله او دَرسول نوم هم په یو لفظ کښې جمع کیدل ځکه چه دَ دواړو دَ پاره به تثنیه صیغه صَدَقَا راوړلې شوه کوم چه موهم الی الشرک دې، دارنګ حضور پاک ﷺ دواړه اسمونه په لفظ واحد کښې جمع کولونه منع فرمائیلې ده اودَ یو خطیب کوم چه مَنْ یُطِعِ اللهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ رَشَدَ وَمَنْ یَعْصِهِمَا فَقَدْ غَوٰی ونیلی وو، مذمت فرمائیلو سره ئې او فرمائیل بئس خطیبُ القوم أنت قل وَمَنْ یعص الله ورسُوْلَهٗ

**قوله:** نَحْبَهٗ، نَحْبٌ نذر، منخته، دا د مرګ نه کنایه ده ځکه چه دَ هر ساه والا دَپاره د نذر په شان مرګ هم لازم وی.

**قوله:** صِیْصِیَّةٌ مَا یُتَحَصَّنُ بِهٖ یعنی دَ څه په ذریعه چه حفاظت اوکړې شی که هغه قلعه وی اوکه څه بل څه څیز مثلاً ښکر، دَ چرګ تاج (خره) وغیره.

## پاره نمبر ۲۲ [ومن یقنت]

## [ایاتونه: ۲۸ _ ۳۴]

{يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ} وَهُنَّ تِسْعٌ وَطَلَبْنَ مِنْهُ مِنْ زِينَةِ الدُّنْيَا مَا لَيْسَ عِنْدَهُ {إِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا فَتَعَالَيْنَ أُمَتِّعْكُنَّ} أَيْ مُتْعَةَ الطَّلَاقِ {وَأُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيلًا} أُطَلِّقْكُنَّ مِنْ غَيْرِ ضِرَارٍ {وَإِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَالدَّارَ الْآخِرَةَ} أَيِ الْجَنَّةَ {فَإِنَّ اللَّهَ أَعَدَّ لِلْمُحْسِنَاتِ مِنْكُنَّ} بِإِرَادَةِ الْآخِرَةِ {أَجْرًا عَظِيمًا} أَيِ الْجَنَّةَ فَاخْتَرْنَ الْآخِرَةَ عَلَى الدُّنْيَا {يَانِسَاءَ النَّبِيِّ مَنْ يَأْتِ مِنْكُنَّ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ} بِفَتْحِ الْيَاءِ وَكَسْرِهَا أَيْ بُيِّنَتْ أَوْ هِيَ بَيِّنَةٌ {يُضَاعَفْ} وَفِي قِرَاءَةٍ يُضَعَّفْ بِالتَّشْدِيدِ وَفِي أُخْرَى نُضَعِّفْ بِالنُّونِ مَعَهُ وَنَصْبِ الْعَذَابَ {لَهَا الْعَذَابُ ضِعْفَيْنِ} ضِعْفَيْ عَذَابِ غَيْرِهِنَّ أَيْ مِثْلَيْهِ {وَكَانَ ذَلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرًا} {وَمَنْ يَقْنُتْ} يُطِعْ {مِنْكُنَّ لِلَّهِ وَرَسُولِهِ وَتَعْمَلْ صَالِحًا نُؤْتِهَا أَجْرَهَا مَرَّتَيْنِ} أَيْ مِثْلَيْ ثَوَابِ غَيْرِهِنَّ مِنَ النِّسَاءِ وَفِي قِرَاءَةٍ بِالتَّحْتَانِيَّةِ فِي تَعْمَلْ وَنُؤْتِهَا {وَأَعْتَدْنَا لَهَا رِزْقًا كَرِيمًا} فِي الْجَنَّةِ زِيَادَةً {يَانِسَاءَ النَّبِيِّ لَسْتُنَّ كَأَحَدٍ} كَجَمَاعَةٍ {مِنَ النِّسَاءِ إِنِ اتَّقَيْتُنَّ} اللَّهَ فَإِنَّكُنَّ أَعْظَمُ {فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ} لِلرِّجَالِ {فَيَطْمَعَ الَّذِي فِي قَلْبِهِ مَرَضٌ} نِفَاقٌ {وَقُلْنَ قَوْلًا مَعْرُوفًا} مِنْ غَيْرِ خُضُوعٍ {وَقَرْنَ} بِكَسْرِ الْقَافِ وَفَتْحِهَا {فِي بُيُوتِكُنَّ} مِنَ الْقَرَارِ وَأَصْلُهُ اقْرِرْنَ بِكَسْرِ الرَّاءِ وَفَتْحِهَا مِنْ قَرِرْتُ بِفَتْحِ الرَّاءِ وَكَسْرِهَا نُقِلَتْ حَرَكَةُ الرَّاءِ إِلَى الْقَافِ وَحُذِفَتْ مَعَ هَمْزَةِ الْوَصْلِ {وَلَا تَبَرَّجْنَ} بِتَرْكِ إِحْدَى التَّاءَيْنِ مِنْ أَصْلِهِ {تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَى} أَيْ مَا قَبْلَ الْإِسْلَامِ مِنْ إِظْهَارِ النِّسَاءِ مَحَاسِنَهُنَّ لِلرِّجَالِ وَالْإِظْهَارُ بَعْدَ الْإِسْلَامِ مَذْكُورٌ فِي آيَةِ {وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا} {وَأَقِمْنَ الصَّلَاةَ وَآتِينَ الزَّكَاةَ وَأَطِعْنَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيُذْهِبَ عَنْكُمُ الرِّجْسَ} الْإِثْمَ يَا {أَهْلَ الْبَيْتِ} أَيْ نِسَاءَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {وَيُطَهِّرَكُمْ} مِنْهُ {تَطْهِيرًا} {وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلَى فِي بُيُوتِكُنَّ مِنْ آيَاتِ اللَّهِ} الْقُرْآنِ {وَالْحِكْمَةِ} السُّنَّةِ {إِنَّ اللَّهَ كَانَ لَطِيفًا} بِأَوْلِيَائِهِ {خَبِيرًا} بِجَمِيعِ خَلْقِهِ

ترجمه: اې نبی ﷺ ته خپلو ازواج مطهراتو ته اووایه او دا نهه وې او دوی د نبی علیه السلام نه د دنیا زیب و زینت غوښتې وو او دا هغه سره نه وو که چرې تاسو دَ دنیاوی ژوندون (عیش) اودَدې ښائست غواړئې نو راشئې چه زه تاسو ته څه یعنی متعهٔ طلاق درکړم او تاسو پریږدم په ښه طریقې سره یعنی تاسو ته طلاق درکړم بغیر د ضرر رسولو نه اوکه چرې تاسو الله تعالی او دَهغه رسول او دَ آخرت کور غواړئې یعنی جنت نویقین اوکړئې چه په تاسو کښې نیک کارونه کونکو دَپاره الله تعالی دَ آخرت په کور کښې زبردست اجر یعنی جنت تیارکړې دې نوهغه ټولو آخرت ته په دنیاباندې ترجیح ورکړه، اې دَ نبی بیبیانو کومه یوه هم چه په تاسو کښې څه ښکاره بیهودګی اوکړی مُبَيِّنَةٌ کښې د "ی" په فتحې او په کسرې سره یعنی ښکاره کړې شوې یا ښکاره شوې نوهغوی ته به ډبل عذاب ورکولې شی او په یو قراءت کښې يُضَعَّف په تشدید سره دې او په یو قراءت کښې نُ نون سره دَ تشدید او العذاب په نصب سره (یعنی) دَ غیر ازواج دَعذاب ډبل، یعنی دوه چند اودَ الله تعالی په نیز دا ډیر آسان دی او په تاسو کښې چه څوک دَالله تعالی اودَ هغه دَ رسول ﷺ فرمانبرداری کوی او نیک عمل کوی نوموږ به هغوی ته ډبل اجر ورکوو یعنی دَ نورو ښځو په نسبت ډبل اجر او په یو قراءت کښې نعمل او نؤتها کښې یه یاء تحتانیه سره دې، اوموږ دَهغوی دَپاره په جنت کښې نور ډیر ښائسته رزق تیار کړې دې، اې دَ نبی بیبیانو تاسو دَ عامو ښځو په شان (معمولی) نه یئې که چرې تاسو دَالله تعالی تقویٰ اختیارکړئې نوبیشکه تاسو دَ لویودرجووالا یئې، تاسو سړو سره په خبرو اترو کښې نرمه لهجه مه اختیاروئې ګنې دَ چا په زړه کښې چه دَ نفاق مرض وی هغه به طمع کول شروع کړی او تاسو دَ نرمئی او نزاکت نه بغیر د قاعدې مطابق خبرې کوئې اوتاسو په خپلو کورونو کښې په آرام سره کینئی قَرنَ کښې په کسرې او فتحې دواړو سره دې دادَ قرار نه مشتق دې، دَدې اصل اِقْرَرْنَ د راء په فتحې او کسرې سره قَرَرْتَ په فتحې دَ راء او کسرې دَ راء نه مشتق دې، دَ راء حرکت دَ قاف طرف ته منتقل شو اوسره دَ همزې وصل حذف شو او د جاهلیت دَ پخوانې زمانې دَ رواج مطابق تاسو دَخپل ښائست مه ښکاره کوئې یعنی دَاسلام نه وړاندې زمانه کښې دَ ښځودَ سړو دَپاره دَ محاسنو دَ اظهارپه شان، اودَ اسلام دَ زمانې نه پس اظهار په آیت وَلَايُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّامَاظَهَرَمِنْهَا کښې ذکر دې اودَ مونځ پابندی کوئ اوزکوٰة اداکوئې اودَالله تعالی اودَهغه دَ رسول اطاعت کوئې اې اهل بیت یعنی د نبی بیبیانو الله تعالی ته دا منظوره چه تاسو نه دَ ګناه ګکړوالې لرې کړی اوتاسو ښه پاکې صفا اوساتی اوتاسو هغه قرآنی آیاتونه او حکمت سنت یاد اوساتئی دَ کوم چه ستاسو په کورونو کښې تذکره کیږی یقیناً الله تعالی په خپلو دوستانوباندې مهربانی کونکې او دَ خپل ټول مخلوق نه باخبردې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** یَاأَیُّهَا النَّبِیُّ قُل لِّأَزْوَاجِكَ دَ نبی کریم ﷺ دَ ازواج مهطراتو او نورو مسلمانانو ښځو اسلامی موقف بیانولو دَ پاره دا کلام مستانف دې.

**قوله:** فَتَعَالَیْنَ تاسو راشئ د تَعَالَیْ نه امر جمع مؤنث حاضر مبنی برسکون دې نون نسوة ښې فاعل دې؛ دا کلمه دکثرت استعمال دَ وجې نه أَقْبِلْ (واورئې) په معنی کښې استعمالیدل شروع شو.

**قوله:** أُمَتِّعْكُنَّ وَأُسَرِّحْكُنَّ په عام قراءت کښې دواړه صیغې په جزم سره دی دَ مجزوم کیدو دوه وجې کیدې شی اول دا چه دَ جواب شرط کیدو دَ وجې نه مجزوم وی او کُنتُنَّ شرط وی او دَ شرط او جواب شرط په مینځ کښې جمله معترضه وی. دویمه وجه دا ده چه فَتَعَالَیْنَ جواب شرط وی او أُمَتِّعْكُنَّ جواب د امر وی.

**قوله:** مِنكُنَّ، مِنْ بیانیه دې ځکه چه ټول ازواج محسنات دی دویم ترکیب دَ اول نه بهتر دې. (اعراب القرآن للدرویش)

**قوله:** إِنِ اتَّقَیْتُنَّ إِنْ حرف شرط اِتَّقَیْتُنَّ شرط محلاً مجزوم، جواب شرط محذوف دې لکه چه شارح ﷫ فَإِنَّ كُنَّ اعظم سره اشاره کړې ده او بعض مفسرینو فَلَا تَخْضَعْنَ بالقول جواب شرط ګرځولې دې

ای إن اتقیتن فلاتکلمن کلاماً لیناً خاضعاً مع الرجال ککلام المریبات.

**قوله:** وَقَرْنَ فِی بُیُوتِكُنَّ (در فارسی) ای آرام گیرید در خانهائے خویش یعنی په خپلو کورونو کښې په سکون سره اوسیږئې وَقَرْنَ کښې واؤ عاطفه دې جمع مؤنث امر حاضر معروف ① دا په اصل کښې د قرار نه اِقْرَرْنَ (سمع) یا ②په اصل کښې اِقْرِرْنَ وو دَ راء په کسرې او فتحې سره قَرَرْتَ (ضرب) یا قَرِرْتَ (سمع) نه دَ راء حرکت نقل کولو سره قاف ته ورکړې شو او راء سره دَ همزې حذف شوه، تاسو اوسیږئې، ③بیضاوی، زمخشری او نیشاپوری لیکلی دی چه دا د قَارَ یَقَارُ په وزن دَ خَافَ یَخَافُ نه دې یعنی تاسو کلکې اوسیږئې ④او بعضې حضراتو واؤ اصل ګرځولو سره د وَقَرَ یَقِرُ (مثال واوی) نه مشتق ګرځولې دې یعنی په سکون او قرار باندې اوسیږئې. (لغات القرآن)

**قوله:** تَبَرَّجْنَ په اصل کښې تَتَبَرَّجْنَ وو په ناز او انداز باندې تلل او خپل زینت او محاسن د پردو سړو ته ښکاره کول.

[ايا تونه: ٣٥ ـ ٤٠]

{إن المسلمين والمسلمات والمؤمنين والمؤمنات والقانتين والقانتات} المطيعات {والصادقين والصادقات} في الإيمان {والصابرين والصابرات} على الطاعات {والخاشعين} المتواضعين {والخاشعات} المتواضعات {والمتصدقين والمتصدقات والصائمين والصائمات والحافظين فروجهم والحافظات} عن الحرام {والذاكرين الله كثيرا والذاكرات أعد الله لهم مغفرة} للمعاصي {وأجرا عظيما} على الطاعات {وما كان لمؤمن ولا مؤمنة إذا قضى الله ورسوله أمرا أن يكون} بالتاء والياء {لهم الخيرة} أي الإختيار {من أمرهم} خلاف أمر الله ورسوله نزلت في عبد الله بن جحش وأخته زينب خطبها النبي لزيد بن حارثة فكرها ذلك حين علماه لظنهما قبل أن النبي صلى الله عليه وسلم خطبها لنفسه ثم رضيا للآية {ومن يعص الله ورسوله فقد ضل ضلالا مبينا} بينا فزوجها النبي صلى الله عليه وسلم لزيد ثم وقع بصره عليها بعد حين فوقع في نفسه حبها وفي نفس زيد كراهتها ثم قال للنبي صلى الله عليه وسلم اريد فراقها فقال امسك عليك زوجك كما قال تعالى {وإذ} منصوب باذكر {تقول للذي أنعم الله عليه} بالإسلام {وأنعمت عليه} بالإعتاق وهو زيد بن حارثة كان من سبي الجاهلية اشتراه رسول الله صلى الله عليه وسلم قبل البعثة وأعتقه وتبناه {أمسك عليك زوجك واتق الله} في امر طلاقها {وتخفي في نفسك ما الله مبديه} مظهره من محبتها وأن لو فارقها زيد تزوجتها {وتخشى الناس} ان يقولوا تزوج زوجة ابنه {والله أحق أن تخشاه} في كل شيء وتزوجها ولا عليك من قول الناس ثم طلقها زيد وانقضت عدتها قال تعالى {فلما قضى زيد منها وطرا} حاجة {زوجناكها} فدخل عليها النبي صلى الله عليه وسلم بغير إذن واشبع المسلمين خبزا ولحما {لكي لا يكون على المؤمنين حرج في أزواج أدعيائهم إذا قضوا منهن وطرا وكان أمر الله} مقضيه {مفعولا} {ما كان على النبي من حرج فيما فرض} أحل {الله له سنة الله} اي كسنة الله فنصب بنزع الخافض {في الذين خلوا من قبل} من الأنبياء أن لا حرج عليهم في ذلك توسعة لهم في النكاح {وكان أمر الله} فعله {قدرا مقدورا} مقضيا {الذين} نعت للذين قبله {يبلغون رسالات الله ويخشونه ولا يخشون أحدا إلا الله} فلا يخشون مقالة الناس فيما أحل الله لهم {وكفى بالله حسيبا} حافظا لأعمال خلقه ومحاسبتهم {ما كان محمد أبا أحد من رجالكم} فليس أبا زيد أي والده فلا يحرم عليه التزوج بزوجته زينب {ولكن} كان {رسول الله وخاتم النبيين} فلا يكون له ابن رجل بعده يكون نبيا وفي قراءة بفتح التاء كآلة الختم أي به ختموا {وكان الله بكل شيء عليما} منه بأن لا نبي بعده وإذا نزل السيد عيسى يحكم بشريعته

ترجمه: يقينًا مسلمانان سړی او مسلماناني ښځي اومؤمنان سړی اومؤمناني ښځي او فرمانبردار سړی او فرمانبرداري ښځي او په ايمان كښې مخلص سړی او مخلصې ښځي صبر كونكی سړی او صبر كونكي ښځي او خشوع او عاجزی كونكی سړی او خشوع او عاجزی كونكي ښځي او خيرات كونكی سړی او خيرات كونكي ښځي او روژي ساتونكی سړی او روژي ساتونكي ښځي او

دحرام نه دَخپل شرمگاه حفاظت کونکی سری او حفاظت کونکي ښځې او په کثرت سره د الله ذکر کونکی سري او ذکرکونکي ښځې دَدې ټولودَپاره الله تعالى دَ گناه نه مغفرت او په اطاعت باندې اجرعظيم تيار ساتلې دې او (گورئی) د يو مؤمن سړی او يوې مؤمنې ښځې دَپاره دَ الله تعالى اودَهغه دَ رسول دَ فيصلې نه پس په خپله معامله کښې دَ الله تعالى اودَهغه دَ رسول خلاف ورزی کولو هيڅ اختيار باقی نه پاتې کيږی، يکونُ کښې ی او ت دواړه دی دا آيت دَعبدالله بن جحش اودهغه دَ خور زينب (بنت جحش) په باره کښې نازل شوې دې، رسول الله ﷺ حضرت زينب ته دَ حضرت زيد بن حارثه رضي الله عنه دَ نکاح پيغام ورکړې وو کله چه دواړو خور او رور ته دَ دې (حقيت حال) معلوم شو نوپيغام ئې ناخوښه کړو خکه چه دې دواړو اول دا گنړلی وو چه حضورپاك پخپله دَخپل ځان دَپاره دَ زينب دَ نکاح پيغام ورکړې دې، دې نه پس دَ ذکرشوی آيت دَ نازليدو دَ وجې نه دواړه راضی شو (ياد ساتئی) دَالله تعالى اودَهغه دَ رسول ﷺ چه څوک هم نافرمانی کوی هغه به په ښکاره گمراهئی کښې پريوځی. نوهغوی دَ حضرت زينب رضي الله عنها نکاح د حضرت زيد رضي الله عنه سره اوکړه، بيا څه موده پس دَ حضورپاك نظر په حضرت زينب باندې پريوتلو نو دَهغې محبت دَ حضورپاك په زړه کښې راوچت شو او دَ زيد په زړه کښې دَ زينب نه نفرت (پيداشو) بيا زيد حضورپاك ته عرض اوکړو چه زه زينب ته طلاق ورکول غواړم، حضورپاك اوفرمائيل خپله بی بی (په نکاح کښې) اوساته لکه چه الله تعالى فرمائيلی دی کله چه حضورپاک هغه سړی ته وئيل په چاچه الله تعالى دَ اسلام په ذريعه انعام فرمائيلې دې او آزادولو سره تاسو هم په هغه باندې احسان اوکړو هغه زيدبن حارثه رضي الله عنه دې. دې دَ جاهليت دَ زمانې په قيديانو کښې وو رسول الله ﷺ دَ بعثت نه وړاندې اخستې وو او د آزادولونه پس ئې متبنٰی جوړکړې وو، خپله بی بی (زينب) په خپله نکاح کښې اوساته اودَهغې دَ طلاق په معامله کښې دَالله تعالى نه اووېرېږه او تاسو ﷺ په خپل زړه کښې (هغه خبره) پټه ساتلې وه کومه چه الله تعالى ښکاره کونکې وو اوهغه دَ زينب محبت وو اودا چه که زيد دې ته طلاق ورکړی نوزه به دې سره نکاح اوکړم. او تاسو ﷺ دَ خلقو دَ هغه خبرونه ويريدلې چه خلق به وائی چه محمد ﷺ دَ خپل ځوئی دَ ښځې سره نکاح اوکړه، او ويريدل خو دَ حضورپاك دَپاره په هر څيز کښې هم دَ الله تعالى نه لازم دی، اوهغه به ستادې سره نکاح اوکړی اوتاسوله دَخلقو دَخبرو هيڅ انديښنه نه دی کول پکار، روستو بيا حضرت زيد رضي الله عنه حضرت زينب رضي الله عنها ته طلاق ورکړو اودَهغې عدت هم تيرشو، الله تعالى اوفرمائيل چه کله زيد دَدې نه خپل حاجت پوره کړو نو مونږ ستا د هغې سره نکاح اوکړه نو حضورپاك زينب ته بغير دَ اجازت نه تشريف بوړو او په مسلمانانو باندې ئې (وليمه) کښې ښه په مړه خيټه غوښه اوروټئی اوخوړله دې دَپاره چه دَ مؤمنانو دَ پاره په دغه متبناگانو سره دَ نکاح په باره کښې تنگی نه وی، کله چه هغوی

دَدوی نه خپل حاجت پوره کړی اودَ الله تعالی امر فیصله شوې حکم خو هم کیدونکې وو کوم خیزچه الله تعالی دَنبی دَپاره فرض یعنی حلال کړو دَدې په (کولو) په نبی باندې هیڅ حرج نشته دَ پخوانو انبیاء کرامو په حق کښې هم د الله تعالی داسې طریقه ساتلې وه دا چه په دې کښې دَهغوی دَپاره څه حرج نشته دَهغوی دَپاره په نکاح کښې آسانی پیدا کولو دَ پاره سنّةً نه دَ نزع خافض دَ وجې نه نصب ورکړې شوې دې دَالله تعالی حکم یعنی دَهغه فعل مقررکړې شوې وی الَّذِیْنَ دَ سابق الَّذِیْنَ صفت دې دا ټول داسې وو چه دَ الله تعالی احکام به ئې رسول اوهم دَالله تعالی نه به ویریدل هم دغه وجه ده چه په دغه کارونوکښې کوم چه الله تعالی دَهغوی دَپاره حلال کړل دَ خلقودَ خبرو (پیغورونو) پرواه به ئې نه کوله او الله تعالی دَخپل مخلوق دَمحافظت او محاسبت په اعتبارسره کافی دې (اې خلقو) محمد ﷺ ستاسو دَ سړونه دَ چا پلارنه دې لهذا دَ زید پلار یعنی دَهغه والد (هم) نه دې په دې وجه دَهغه دَ پاره دَ زید بی بی زینب سره نکاح حرام نه ده لیکن حضورپاک دَ الله تعالی رسول دې اودَ ټولو انبیاء کرامو دَ سلسلې ختمونکې دې لهذا دَهغوی هیڅ بالغ اولاد نشته چه دَهغوی نه پس نبی وی او په یو قراءت کښې دَ تاء په فتحې سره دې یعنی په معنی دَ مهر، مطلب دا چه دَ حضورپاك په ذریعه د انبیاؤ سلسله باندې مهر لګولې شوې دې اوالله تعالی دَهرشئ نه ښه خبردې اوهم دَهغې نه داخبره هم ده چه دَ حضورپاك نه پس څوك نبی نشته، او كله چه به دَ سیدنا عیسی ﷺ نزول اوشی نو هم دَحضورپاك دَ شریعت مطابق به فیصله کوی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** المؤمنین والمؤمنات **سوال:** د دې عطف په المسلمین والمسلمات باندې کړې شوې دې حالانکه شرعًا دواړه یو دی اودَعطف دَ پاره مغایرت ضروری دې؟

**جواب:** دَمفهوم په اعتبار سره دواړه مختلف دی څکه چه اسلام بما جاء به النبی صلی الله علیه وسلم دَ تصدیقِ قلبی سره دَ شهادتین دَ تلفظ نوم دې او ایمان اذعان قلبی نوم دې د نطق باللسان په شرط سره، اودَ عطف دَپاره ادنی مغایرت کافی دې.

**قوله:** والحافظات د دې مفعول دَماقبل دَ دلالت دَ وجې نه حذف کړې شوې دې تقدیری عبارت دادې والحافظاتِ فُرُوْجَهُنَّ.

**قوله:** اِذَاقَضَی اللّٰه ورسوله دَ الله تعالی نوم تعظیمًا اودې خبرې طرف ته د اشارې کولو دَ پاره ذکر کړې شوې دې چه دَرسول الله فیصله هم دَ الله تعالی فیصله ده څکه چه رسول دَخپل طرف نه څه فیصله نه کوی.

**قوله:** لمؤمن، دکانَ خبرمقدم دې اوولامؤمنةٍ په حکم معطوف دې اذا ظرفیه متضمن ده معنی د شرط لره، جواب د شرط محذوف دې په کوم چه نفی مقدم دلالت کوی. اذاظرفیة

مينه کيدې شي په دې صورت کښې به دَ استقر محذوف معمول وی د کوم سره چه دَ کَانَ خبر متعلق دې تقديری عبارت به داشی وَمَا کَانَ مستقرًا لمؤمن ولا مؤمنةٍ وقت قضاء الله كون خيرة له في امره. (جمل)

قوله: الاختيار، د الخِيَرَةُ تفسير په الاختيار سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چه الخيرةُ مصدر غير قياسی دې.

قوله: خلافَ امرالله دا دَ الخيرة د مفعول کيدو دَوجې نه منصوب دې

قوله: مِن محبتها دا دَ ماابداهُ بيان دې.

قوله: سُنَّةَ الله مصدر کيدو دَ وجې نه هم منصوب کيدې شي.

قوله: قدرًا مقدورًا مقدورًا، دَ قدرًا تاکيد دې لکه ظِلاًّ ظليلاً وليلٌ اليَلُ.

قوله: ولکن رسول الله دَ جمهورو په قراءت کښې لکِنْ په تخفيف سره دې او دَرَسُوْلَ نصب دَ کَانَ محذوف خبر کيدو دَ وجې نه دې.

**[اياتونه: ۴۱ _ ۵۲]**

﴿يأيها الذين آمنوا اذكروا الله ذكرا كثيرا﴾ ﴿وَسَبِّحُوهُ بُكْرَةً وَأَصِيلًا﴾ أوّل النّهار وآخره ﴿هُوَ الَّذِي يُصَلِّي عَلَيْكُمْ﴾ أي يَرْحَمكُمْ ﴿وَمَلَائِكَته﴾ يَسْتَغْفِرُونَ لَكُمْ ﴿لِيُخْرِجَكُمْ﴾ لِيُدِيمَ إخْرَاجه إيَّاكُمْ ﴿مِنَ الظُّلُمَاتِ﴾ اي الكفر ﴿إلى النور﴾ اي الإيمان ﴿وكان بالمؤمنين رحيما﴾ ﴿تَحِيَّتُهُمْ﴾ مِنْهُ تَعَالَى ﴿يَوْمَ يَلْقَوْنَهُ سَلَامٌ﴾ بِلِسَانِ الْمَلَائِكَة ﴿وَأَعَدَّ لَهُمْ أَجْرًا كَرِيمًا﴾ هُوَ الْجَنَّة ﴿يأيها النَّبِيُّ إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا﴾ عَلَى مَنْ أُرْسِلْتَ إلَيْهِمْ ﴿وَمُبَشِّرًا﴾ مَنْ صَدَّقَك بِالْجَنَّةِ ﴿وَنَذِيرًا﴾ مُنْذِرًا مَنْ كَذَّبَك بِالنَّارِ ﴿وَدَاعِيًا إِلَى اللَّهِ﴾ إلَى طَاعَته ﴿بِإِذْنِهِ﴾ بِأَمْرِهِ ﴿وَسِرَاجًا مُنِيرًا﴾ أَيْ مِثْله فِي الِاهْتِدَاء بِهِ ﴿وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ بِأَنَّ لَهُمْ مِنَ اللَّهِ فَضْلًا كَبِيرًا﴾ هُوَ الْجَنَّة ﴿وَلَا تُطِعِ الْكَافِرِينَ وَالْمُنَافِقِينَ﴾ فِيمَا يُخَالِف شَرِيعَتك ﴿وَدَعْ﴾ اُتْرُكْ ﴿أَذَاهُمْ﴾ لَا تُجَازِهِمْ عَلَيْهِ إلَى أَنْ تُؤْمَر فِيهِمْ بِأَمْرٍ ﴿وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ﴾ فَهُوَ كَافِيك ﴿وَكَفَى بِاللَّهِ وَكِيلًا﴾ مُفَوَّضًا إلَيْهِ ﴿يأيها الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نَكَحْتُمُ الْمُؤْمِنَاتِ ثُمَّ طَلَّقْتُمُوهُنَّ مِنْ قَبْلِ أَنْ تَمَسُّوهُنَّ﴾ وَفِي قِرَاءَة تُمَاسُّوهُنَّ أَيْ تُجَامِعُوهُنَّ ﴿فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ عِدَّةٍ تَعْتَدُّونَهَا﴾ تُحْصُونَهَا بِالْأَقْرَاءِ وَغَيْرهَا ﴿فَمَتِّعُوهُنَّ﴾ أَعْطُوهُنَّ مَا يَسْتَمْتِعْنَ بِهِ أَيْ إنْ لَمْ يُسَمّ لَهُنَّ أصدقة وإلا فلهن نصف المسمى فقط قَالَه ابْن عَبَّاس وَعَلَيْهِ الشَّافِعِيّ ﴿وَسَرِّحُوهُنَّ سَرَاحًا جَمِيلًا﴾ خلّوا سبيلهن من غير إضرار ﴿يأيها النَّبِيُّ إِنَّا أَحْلَلْنَا لَكَ أَزْوَاجَكَ اللَّاتِي آتَيْتَ أُجُورَهُنَّ﴾ مُهُورهنَّ ﴿وَمَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ مِمَّا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَيْكَ﴾ مِنَ الْكُفَّار بِالسَّبْيِ كَصَفِيَّةَ وَجُوَيْرِيَة ﴿وَبَنَاتِ عَمِّكَ وَبَنَاتِ عَمَّاتِكَ وَبَنَاتِ خَالِكَ وَبَنَاتِ خَالَاتِكَ اللَّاتِي هَاجَرْنَ مَعَكَ﴾ بِخِلَافِ مَنْ لَمْ يُهَاجِرْنَ ﴿وَامْرَأَةً مُؤْمِنَةً إِنْ وَهَبَتْ نَفْسَهَا لِلنَّبِيِّ إِنْ أَرَادَ النَّبِيُّ أَنْ يَسْتَنْكِحَهَا﴾ يَطْلُب نِكَاحهَا بِغَيْرِ صَدَاق ﴿خَالِصَةً لَكَ مِنْ دُونِ الْمُؤْمِنِينَ﴾ النِّكَاح بِلَفْظِ الْهِبَة مِنْ غَيْر صَدَاق ﴿قَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ﴾ أَيْ الْمُؤْمِنِينَ ﴿فِي أَزْوَاجِهِمْ﴾ مِنَ الْأَحْكَام بِأَنْ لَا يَزِيدُوا عَلَى أَرْبَع نِسْوَة وَلَا يَتَزَوَّجُوا إلَّا بِوَلِيٍّ وَشُهُود ومهر ﴿وَ﴾

في (ما مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ) مِنَ الإِمَاءِ بِشِرَاءٍ وَغَيْرِه بِأَنْ تَكُونَ الأَمَةُ مِمَّنْ تَحِلُّ لِمَالِكِهَا كَالْكِتَابِيَّةِ بِخِلَافِ المجوسية والوثنية وأن تستبرئ قَبْلَ الْوَطْءِ (لِكَيْلَا) مُتَعَلِّقٌ بِمَا قَبْلَ ذٰلِكَ (يكون عليك حَرَجٌ) ضِيقٌ فِي النِّكَاحِ (وَكَانَ اللّٰهُ غَفُورًا) فِيمَا يَعْسُرُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ (رَحِيمًا) بِالتَّوْسِعَةِ فِي ذلك (ترجي) بِالْهَمْزَةِ وَالْيَاءِ بَدَلَه تُؤَخِّرُ (مَنْ تَشَاءُ مِنْهُنَّ) أَيْ أَزْوَاجِكَ عَنْ نَوْبَتِهَا (وَتُؤْوِي) تَضُمُّ (إِلَيْكَ مَنْ تَشَاءُ) مِنْهُنَّ فَتَأْتِيهَا (وَمَنِ ابْتَغَيْتَ) طَلَبْتَ (مِمَّنْ عَزَلْتَ) مِنَ الْقِسْمَةِ (فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكَ) فِي طَلَبِهَا وَضَمِّهَا إِلَيْكَ خُيِّرَ فِي ذٰلِكَ بَعْدَ أَنْ كَانَ الْقَسْمُ وَاجِبًا عَلَيْهِ (ذٰلِكَ) التَّخْيِيرُ (أَدْنَى) أَقْرَبُ إِلَى (أَنْ تَقَرَّ أَعْيُنُهُنَّ ولا يحزن ويرضين بِمَا آتَيْتَهُنَّ) مَا ذُكِرَ الْمُخَيَّرُ فِيهِ (كُلُّهُنَّ) تَأْكِيدٌ لِلْفَاعِلِ فِي يَرْضَيْنَ (وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا فِي قُلُوبِكُمْ) مِنْ أَمْرِ النِّسَاءِ وَالْمَيْلِ إِلَى بَعْضِهِنَّ وَإِنَّمَا خَيَّرْنَاكَ فِيهِنَّ تَيْسِيرًا عَلَيْكَ فِي كُلِّ مَا أَرَدْتَ (وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيمًا) بِخَلْقِهِ (حليمًا) عن عقابهم (لا تحل) بالتاء والياء (لَكَ النِّسَاءُ مِنْ بَعْدُ) بَعْدَ التِّسْعِ الَّاتِي اخْتَرْنَكَ (وَلَا أَنْ تَبَدَّلَ) بِتَرْكِ إِحْدَى التَّاءَيْنِ فِي الأَصْلِ (بِهِنَّ مِنْ أَزْوَاجٍ) بِأَنْ تُطَلِّقَهُنَّ أَوْ بَعْضَهُنَّ وَتَنْكِحَ بَدَلَ مِنْ طَلَّقْتَ (وَلَوْ أَعْجَبَكَ حُسْنُهُنَّ إِلَّا مَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ) مِنَ الإِمَاءِ فَتَحِلُّ لَكَ وَقَدْ مَلَكَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَهُنَّ مَارِيَةَ وَوَلَدَتْ لَهُ إِبْرَاهِيمَ وَمَاتَ فِي حَيَاتِه (وَكَانَ اللّٰهُ عَلَى كُلِّ شيء رقيبًا) حفيظا.

---

ترجمه: اې دَ ایمان والو تاسو دَ الله تعالی ذکر ښه په کثرت سره کوئی او سحرماښام یعنی دَ ورځې اول او په آخرۀ ورځ کښې (یعنی همیشه) دَهغه پاکی بیانوئی هغه داسې (رحیم) دې چه هغه په تاسو باندې رحمت نازلوی او دَهغه فرښتې (هم) ستاسو دَپاره دعا دَ رحمت کوی دې دَپاره چه تاسو دَ ظلمت یعنی دکفر نه نور یعنی ایمان طرف ته راوباسی، یعنی دې خروج ته دوام ورکړی، او الله تعالی په مؤمنانو باندې ډیر مهربان دې په کومه ورځ چه هغوی د الله تعالی سره ملاویږی نو دَ هغوی دَپاره به تحفه دَ الله تعالی دَ طرف نه دَ فرښتو په ژبه سلام وی او الله تعالی دَهغوی دَپاره ښکلې بدله تیاره ساتلې ده او هغه جنت دې او اې نبی یقینًا هم مونږ تاسو په مُرسَل الیهم (یعنی) په امت باندې گواه جوړولوسره او ستاسو تصدیق کونکوته دَ جنت زیرې ورکونکې جوړولوسره اودَ ستاسو تکذیب کونکې دَ دوزخ نه ویرونکې جوړکړې لیږلې ئې اودَ هغه په حکم سره دَ الله تعالی دَ اطاعت طرف ته رابلونکې او روښانه چراغ جوړولوسره لیږلې ئې یعنی دَ چراغ په شان دې، دَ هغه په ذریعه هدایت حاصلولو کښې او تاسو مؤمنانوته زیرې واوروئی چه په هغوی باندې دَ الله تعالی دَ طرف نه ډیر لوئی فضل کیدونکې دې او هغه جنت دې او په هغه خبرو کښې چه ستاسو دَ شریعت خلاف وی، دَ کافرانو او منافقانو خبره مه منئی او دَهغوی دَ طرف نه تکلیف رسول هیرکړئی او په دغه تکلیفونو باندې بدله مه اخلئی ترکومې چه دَهغوی نه دَ بدلې اخستلو حکم نه وی درکړې شوې او په الله تعالی باندې یقین ساتئی ځکه چه هغه ستاسو دَپاره کافی دې او الله تعالی دکارسازئی دَپاره کافی دې یعنی (کارونه) هغه ته د حواله کولو په اعتبارسره کافی دې، اې مؤمنانو کله چه تاسو مؤمنانو ښځو سره

نکاح اوکړئ يا ,حقيقةً يا حكماً، دَ کوروالی نه وړاندې هغوی ته طلاق ورکړئ او په يو قرامت کښې تَمَسُّوهُنَّ دې او معنی ئې تُجَامِعُوهُنَّ ده نو په ,دې صورت، کښې ستاسو په هغوی باندې هيڅ دَعدت حق نشته کوم چه ياسو دَحيض وغيره په ذريعه سره اوشميرئی نوتاسو هغوی ته متعه ورکړئی يعنی هغوی نه څه ,مال، ورکړئی په کوم سره چه هغوی څه فائده حاصله کړی. اوداً په هغه صورت کښې دی چه دَهغې مهر نه وی متعين شوې ګنی دَهغې دَپاره نصف مهر کافی دی حضرت ابن عباس رضی الله عنهم دغه فرمائيلی دی اوهم دغه دَ امام شافعی رحمه الله په نيزدی او په ښه شان سره هغوی رخصت کړئی يعنی بغيردَ څه نقصان تکليف، رسولو هغوی په ښه طريقه سره رخصت کړئی، اې نبی مونږ ستاسو دَپاره هغه ښځې دَکوموچه تاسو مهراداکړې دې حلال کړی دی اوهغه ښځې هم کومې چه الله تعالی تاسو ته په غنيمت کښې درکړی دی يعنی دکافرانونه دَ قيد په ذريعه لکه صفيه رضی الله عنها او جويريه رضی الله عنها اوستاسو دَ تره لونړه او ستاسو د ماماګونو لونړه او دَستاسو دَ ترور لونړه او ستاسو دَخاله ګانو لونړه چاچه تاسو سره هجرت کړې وی اوهغه مؤمنه ښځه هم حلال ده چاچه خپل ځان نبی ته ,بغيردَ مهر، حواله کړې دې په دې شرط چه نبی د هغې سره نکاح کول قبول کړی يعنی ,نبی، هغې سره بغيردَ مهر نکاح کول منظورکړی دا دَ ستاسو خصوصيت دې نه چه دَ نورو مسلمانانو دَپاره يعنی بغير نه دَمهر په لفظ د هبې سره نکاح ,دَحضورپاك خصوصيت دې، مونږ ته هغه احکام معلوم دی کوم چه مونږ په هغوی باندې يعنی په مؤمنانو باندې دَهغوی دَ ببيبانو په باره کښې مقررکړی دی دا چه دَڅلورونه زيات نکاح به نه کوی او ,هغه احکام هم معلوم دی، چه دَهغوی دَ وينځو په باره کښې مونږ مقررکړی دی هغه وينځې ,که، اخستې شوې وی او که په ملکيت کښې راغلې وی يا په څه بله طريقه، وينځه داسې وی کومه چه دَمالك دَپاره حلال وی لکه کتابيه په خلاف دَ مجوسې او بت پرستې اودا چه دَ کوروالی نه وړاندې ستقيه د رحم اوکړې دې دَپاره چه دَ نکاح باره کښې په تاسو تنګی نه وی ,لِكَيْلَا، دَدې تعلق د ماقبل يعنی اِنَّآ اَحْلَلْنَالَكَ سره دې او الله تعالی په هغه ,امر، کښې دَ کوم نه بچ کيدل چه سخت وی بخښونکې دې او په دې کښې آسانی ورکولوسره رحم کونکې دې دَ دغه ببيبانونه کومې چه تاسو غوارئی دَهغې دَنمبرنه جدا اوساتئی، او کومې چه غوارئی ځان سره ئې اوساتئی يعنی دَهغې نمبر هغې ته ورکړی تُرْجِیْ په همزه سره اودَ همزه په ځائې ی سره په معنی د تُؤْخِرُ او دکومې نمبر چه تاسو روستوکړې وو يا تاسو دَهغې نمبر شروع کول غوارئی نودَ هغې نمبر شروع کولو او خپل ځان سره يوځائ کولو کښې په تاسو باندې هيڅ حرج نشته اولاً په حضورپاك باندې نمبر مقررکول واجب وو روستو دَ نمبر مقررکولوباره کښې اختيار ورکړې شو په دې تخيير کښې زياته توقع ده چه دَهغوی سترګې يخې شی او دَهغوی خاطر به دروند نه شی او کوم څه چه تاسو په مخيرفيه کښې هغوی ته ورکوئی په هغې باندې به ټولې په

تولې راضي وي. كُلُّهُنَّ دَ يَرْضَيْنَ دَ فاعل تاكيد دې دَ ښځو په معامله كښې او په هغوى كښې دَبعضو طرف ته (دَ دير) رغبت باره كښې الله تعالى ته ستاسو دَ زړونو حال معلوم دې مونږ ستاسو دَ آسانتيا دپاره دَ بيبيانوباره كښې ستاسو په غوښتنه كښې اختيارورکړې دې، الله تعالى دَخپل مخلوق باره كښې ښه علم لرى اوهغوى ته دَ سزا وركولوباره كښې حليم دې، ستا دَپاره دَ دغه نهو ښځونه علاوه كومې چه تاسو اختياركړى دى ستاسودَ پاره حلال نه دى بِحِلُّ كښې تاء او ياء دواړه دى اونه ستاسو دَپاره دا صحيح دى چه دَ دغه بيبيانو په ځائې نورې اوكړئې په داسې توګه چه دغه ټولې يا د دوى نه بعضو ته طلاق وركړې او دَ طلاق شوې په بدله كښې نورې اوكړئې اګرچه تاسو ته دَهغه (نورو) حسن ښه لګى، مګر هغه وينځې كومې چه ستاسو مملوكې وى نو په هغې كښې ستاسو دَپاره (بدلون) حلال دې، حضورپاك دَ بيبيانونه پس دَ ماريه قبطيه مالك شو اودَحضورپاك دَهغې نه ځونى ابراهيم پيداشو دَ كوم انتقال چه هم دَحضورپاك په ژوندمبارك كښې اوشو او الله تعالى دَهرڅيزپوره ساتونكې دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** هُوَالَّذِي يُصَلِّي عَلَيْكُمْ جمله مستانفه ده اودَ امربالذكروالتسبيح علت دې يعنى چه كله دَ ذكراوتسبيح حكم وركړې شو نوسوال پيدا شوچه ذكر اوتسبيح دې ولې اوكړې شى؟ نوجواب وركړې شو دَدې دپاره چه هغه په تاسو باندې رحمت نازل كړى.

**قوله:** اَىْ يَرْحَمُكُمْ دَ اضافې مقصد داخودل دى چه دَ صلوة نسبت كله دَ الله تعالى طرف ته اوشى نونزول د رحمت مراد وى.

**قوله:** ملاٰئِكَتُهُ دَدې عطف د يُصَلِّيْ په ضمير مستترباندې دې، مګردلته به دا اعتراض كيږى چه په ضمير مرفوع متصل باندې د عطف دَپاره د ضمير منفصل په ذريعه تاكيدضرورى وى كوم چه دلته نشته.

**جواب:** دادې چه چونكه دَ عَلَيْكُمْ فاصل موجود دې په دې وجه دَ ضمير په ذريعه دَ تاكيدضرورت نشته، او ملاٰئِكَتُهُ نه پس يستغفرون دَاضافې مقصد داخودل دى چه د صلوة نسبت كله دَملائكوطرف ته وى نو طلب د مغفرت مراد وى.

**قوله:** لِيُخْرِجَكُمْ دې تفسير په لِيُدِيمَ سره د كولومقصد دَ يوسوال جواب وركول دى، سوال دادې چه دَاهل ايمان د كفر دَ ظلمت نه وتل هم په نفس ايمان سره ثابت دى بيا دَ دوباره راويستلوڅه مطلب دې؟ داخوتحصيل د حاصل دې؟

**جواب.** حاصل دادې چه دَدې تفسيرمقصد دې خبرې طرف ته اشاره كول دى چه دَخروج نه دوام واستقرار مراددې، ځكه چه كله دَ خالق نه غفلت زياتيږى نو دَايمان نه دَ خروج سبب

جوړيږي. (العياذبالله).

**سوال:** اَلظُّلُمَاتِ جمع او النُّوْرُ واحد راوړلو کښې څه مصلحت دې؟

**توله:** دکفرانواع چونکه ډير وی دَ دې وجې نه دَ هغې ظلمات هم زيات وی او ايمان خو شئ واحد دې په دې کښې تعددنشته دې کوم خلق چه دَتعدد قائل دی هغه دَ اهل سنت والجماعت نه خارج دي. (صاوی)

**توله:** بِإِذْنِهِ تفسير بِأَمْرِهِ سره کولو کښې مقصد دَ يوسوال مقدر جواب دي.

**سوال:** إِذْن واجازت خو د اِنَّآ اَرْسَلْنٰكَ شَاهِدًا وَمُبَشِّرًا نه مستفاد دي بيا دَ دوباره اجازت څه ضرورت دي؟

**جواب:** خلاصه داده چه دلته د إِذْن نه امر (حکم) مراد دي، او په اذن اوامر کښې فرق ظاهر دي.

**توله:** دَعْ اَذَاهُمْ دا اضافت د مصدر الى الفاعل دَ قبيلې نه دې، تقدير د عبارت دادې دَعْ اَذِيَّتَهُمْ اِيَّاكَ يعنی تاسو دَ هغوی تکليف رسول معاف کړئی دَهغوی نه دَهغوی دَتکليف رسولو بدله مه اخلئی، يا اضافت د مصدرالى المفعول دَ قبيلې نه دې اَىْ اُتْرُكْ اَذِيَّتَكَ لَهُمْ يعنی تاسو هغوی ته تکليف رسول پريږدئ، هغوی ته په سزا ورکولو کښې تادی مه کوئی ترهغه وخته پورې چه تاسو ته اجازت ملاؤشی، نو دَ جنګ په آياتونو سره اجازت ملاؤشو او دَ معاف کولو هغه حکم منسوخ شو.

**توله:** وَمَا مَلَكَتْ يَمِيْنُكَ دمَا مَلَكَتْ يَمِيْنُكَ په مثال کښې مفسرعلام دَ صفيه ﷠ بنت حيی بن اخطب او جويريه ﷠ بنت الحارث الخزاعيه پيش کړی دی، دَدې مقتضٰی ده چه دَمَامَلَكَتْ عطف په اٰتَيْتَ اُجُوْرَهُنَّ باندې وی مګر دا د ظاهر خلاف دې ظاهردادی چه دَ دې عطف اَزْوَاجَكَ باندې وی مګر په دې صورت کښې دَ مَامَلَكَتْ په مثال کښې صفيه ﷠ او جويريه ﷠ پيش کول صحيح نه دی ځکه چه دا په مَامِمَّلَكَتْ کښې نه بلکه دَ ازواج مطهرات نه دی، دَ صفيه اوجويريه ﷠ په ځائې ماريه قبطيه او ريحانه پيش کول پکاردی ځکه چه دا دواړه دَحضورپاك دَ وينځونه دی.

**توله:** مِمَّا اَفَاءَ اللهُ عَلَيْكَ مِمَّا اَفَاءَ اللهُ دمَامَلَكَتْ بيان دې د مَامَلَكَتْ قيد احترازی نه دې بلکه تغليبی دې، چونکه دَ حضورپاك اکثر وينځې په مال غنيمت کښې هغوی ته حاصلې شوې وې په دې وجه ئې دَ مَامَلَكَتْ قيد لګولې دې ګنی دَا خستې شوو وينځوهم دغه حکم دې کوم چه دَ غنيمت په توګه دَ حاصل شوو وينځو دې. (يعنی حلت)

**توله:** اِمْرَاَةً مُؤْمِنَةً دَدې عطف هم د اَحْلَلْنَالَكَ په مفعول اَزْوَاجَكَ باندې دې مطلب دادې چه دَحضورپاك دَ پاره مؤمن ښځې حلالې دی کافرې نه.

قوله: إِنْ أَرَادَ النبي ﷺ دا دَ وهبتْ نَفْسَهَا شرط دي يعنی دَ يوې ښځې محض خپل نفس هبه کول دَ نکاح پوره کيدو دَپاره کافی نه دی بلکه دَ حضور پاك قبلول هم شرط دي.

قوله: خَالِصَةً لكَ، د خَالِصَةً د منصوب کیدو درې وجوهات کيدې شی ① د وَهَبَتْ دَ فاعل نه حال کيدو دَ وجې نه ای حالَ کونها خَالصةً لكَ دونَ غيرِكَ ② د إمرأةً نه حال واقع کیدو دَ وجې نه په دواړو صورتونو کښې به معنی هم يوه وی ③ دَ مصدر محذوف صفت کیدو دَ وجې نه منصوب وی، ای هِبَةً خَالِصَةً لكَ دونَ غيرِكَ.

قوله: لِكَيْلَا دا دَ خپل ماقبل يعنی د خَالِصَةً سره متعلق دي.

قوله: تُرْجِئُ دا دَ ارجَاءٌ نه د مضارع واحد مذکر حاضر صيغه ده ته مهلت ورکړئ، ته روستو ئې کړه.

قوله: تُؤْوِيْ، اِيْواءٌ نه واحد مذکر حاضر دې ته ځائې ورکړه، ته ځان سره اوساته، ته ملاؤ کړه.

قوله: وَمَنْ ابْتَغَيْتَ من شرطيه دي د ابْتَغَيْتَ مفعول مقدم کیدو دَ وجې نه محلاً منصوب دي، فلاجناح جواب شرط دي اودا هم کيدې شی چه مَنْ موصوله وی او د مبتدأ کیدو دَ وجې نه محلاً مرفوع وی او لَاجُنَاحَ عَلَيكَ دَ مبتدأ خبر وی.

**[ایاتو له: ۵۳ ـ ۵۸]**

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَنْ يُؤْذَنَ لَكُمْ﴾ فِي الدُّخُول بِالدُّعَاءِ ﴿إِلَى طَعَامٍ﴾ فَتَدْخُلُوا ﴿غَيْرَ نَاظِرِينَ﴾ مُنْتَظِرِينَ ﴿إِنَاهُ﴾ نُضْجه مَصْدَر أَنَى يَأْنِي ﴿وَلَكِنْ إِذَا دُعِيتُمْ فَادْخُلُوا فَإِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوا وَلَا﴾ تَمْكُثُوا ﴿مُسْتَأْنِسِينَ لِحَدِيثٍ﴾ مِنْ بَعْضكُمْ لِبَعْضٍ ﴿إِنَّ ذَلِكُمْ﴾ الْمُكْث ﴿كَانَ يُؤْذِي النَّبِيَّ فَيَسْتَحْيِي مِنْكُمْ﴾ أن يخرجكم ﴿وَاللَّهُ لَا يَسْتَحْيِي مِنَ الْحَقِّ﴾ أَنْ يُخْرِجكُمْ أَيْ لَا يَتْرُك بَيَانه وَقُرِيءَ يَسْتَحِي بِيَاءٍ وَاحِدَة ﴿وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ﴾ أَيْ أَزْوَاج النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ﴾ سِتْر ﴿ذَلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوبِكُمْ وَقُلُوبِهِنَّ﴾ مِنَ الْخَوَاطِر الْمُرِيبَة ﴿وَمَا كَانَ لَكُمْ أَنْ تُؤْذُوا رَسُولَ اللَّهِ﴾ بِشَيْءٍ ﴿وَلَا أَنْ تَنْكِحُوا أَزْوَاجَهُ مِنْ بَعْدِهِ أَبَدًا إِنَّ ذَلِكُمْ كَانَ عِنْدَ اللَّهِ﴾ ذنبا ﴿عَظِيمًا﴾ ﴿إِنْ تُبْدُوا شَيْئًا أَوْ تُخْفُوهُ﴾ مِنْ نِكَاحهنَّ بَعْده ﴿فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا﴾ فيجازيكم عليه ﴿لَا جُنَاحَ عَلَيْهِنَّ فِي آبَائِهِنَّ وَلَا أَبْنَائِهِنَّ وَلَا إِخْوَانِهِنَّ وَلَا أَبْنَاءِ إِخْوَانِهِنَّ وَلَا أَبْنَاءِ أَخَوَاتِهِنَّ وَلَا نِسَائِهِنَّ﴾ أَيْ الْمُؤْمِنَات ﴿وَلَا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ﴾ مِنَ الْإِمَاء وَالْعَبِيد أَنْ يَرَوْهُنَّ وَيُكَلِّمُوهُنَّ مِنْ غَيْر حِجَاب ﴿وَاتَّقِينَ اللَّهَ﴾ فِيمَا أُمِرْتُنَّ بِهِ ﴿إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدًا﴾ لَا يَخْفَى عَلَيْهِ شَيْء ﴿إِنَّ اللَّهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى النَّبِيِّ﴾ مُحَمَّد صلى الله عليه وسلم ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيمًا﴾ أَيْ قُولُوا اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى سَيِّدنَا مُحَمَّد وَسَلِّمْ ﴿إِنَّ الَّذِينَ يُؤْذُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ﴾ وَهُمْ الْكُفَّار يَصِفُونَ اللَّه بِمَا هُوَ مُنَزَّه عَنْهُ مِنَ الْوَلَد وَالشَّرِيك وَيُكَذِّبُونَ رَسُوله ﴿لَعَنَهُمُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ﴾ أَبْعَدَهُمْ ﴿وَأَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا مُهِينًا﴾ ذَا إِهَانَة وَهُوَ النَّار ﴿وَالَّذِينَ يُؤْذُونَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ بِغَيْرِ مَا اكْتَسَبُوا﴾ يَرْمُونَهُمْ بِغَيْرِ مَا عَمِلُوا ﴿فَقَدِ

احتملوا بهتانا، تحملوا كذبا (واثمامبينا) بينا

ترجمه: اې دَ ايمان والو! دَنبى په كورونوكښې (بغيردَ رابللو) مه ورځئى مګردا چه تاسو دَ خوراک دَپاره دَ دعوت په توګه دَ راتللو اجازت دركړې شى نو داسې داخليدې شئى چه دَ خوراك دَ تيارى په انتظاركښې مه كينئ، إنى، د أنى يأنى مصدردې، خوچه كله تاسو راؤبللې شئى نوبيا ورځئى بياچه كله دَخوراک نه فارغ شئى نوپاسئى اوځئى او خپل مينځ كښې دَګپ شپ د خبرونه د خوند اغستلو د پاره مه كينئى بيشكه دغه كيناستل دَ نبى ته تكليف رسوى اوهغه تاسو ته دَ تللو دَپاره دَ ويناباره كښې ستاسو لحاظ كوى، اوالله تعالى دَ حق په بيان كښې دَچا لحاظ نه ساتى يعنى دَحق بيانول نه ترك كوى او په يوقراءت يَسْتَحِى په يو ياء سره هم دې، كله چه تاسو هغوى نه يعنى دَ نبى د بيبيانو نه څه څيز غوارئى نودَ پردې نه بهر غوارئى داستاسو اودَ هغوى دَ زړونو دَ شك منو خيالاتونه پاكوالې دې اوستاسو دَپاره داخبره مناسب نه ده چه په څه طريقه هم دَالله تعالى رسول ﷺ ته تكليف اورسوئى اونه ستاسو دَپاره داحلال دى چه دَ رسول الله ﷺ نه پس كله هم دَهغوى ازواج سره نكاح اوكړئى بيشكه دَالله تعالى په نيزدا يوعظيم ګناه ده كه تاسو څه ښكاره كړئى اوكه پټ ئې كړئى دَ حضورپاك نه پس دَ هغوى دَ ازواج مطهراتو سره دَ نكاح په باره كښې، الله تعالى دَهرشئ نه ښه خبر دې هغه به تاسو ته په دې باندې ضرور بدله دركړى اوپه ازواج مطهرات باندې دَ خپلو پلارانو باره كښې هيڅ ګناه نشته اونه دَخپل ځامنوباره كښې اونه دَخپلو رونړو باره كښې اونه دَ خپلو وريرونوباره كښې اونه دَ خوريونو باره كښې اونه دَ خپلو ښځو يعنى مؤمناتو باره كښې اونه دَ خپل مملوك باره كښې كه هغه وينځه وى او كه غلام هيڅ حرج نشته دا چه هغوى ته اوګورى او بغيردَ پردې نه هغوى سره خبرې اوكړى اودَ كومې خبرې چه تاسو ته حكم دركړې شوې دې په هغې كښې دَالله تعالى نه ويرېږئ بيشكه الله تعالى دَهرڅيزخيال ساتونكې دې دَهغه نه څه څيز پټ نه دې بيشكه الله تعالى اودَ هغه فرښتې په نبى محمد ﷺ باندې رحمت راليږى اې ايمان والو تاسو هم په رسول الله ﷺ باندې درود ليږئى او ښه سلام ورليږئى يعنى اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّسَلِّمْ وايئې بيشكه هغه خلق څوک چه الله تعالى اودَهغه رسول ته تكليف وركوى اوهغه كافران دى دَ الله تعالى دَپاره داسې صفات ثابتوى دَڅه نه چه هغه پاك دې يعنى دَ اولاد نه اوشرك نه اودَهغه دَ رسول تكذيب كوى الله تعالى په هغوى باندې په دنيااو آخرت كښې لعنت كړې دې يعنى هغوى ئې دَ رحمت نه لرې كړى دى اودَهغوى دَپاره ئې دَ سپكاوى نه ډک عذاب تيارساتلې دې اوهغه اور دې څوک چه مؤمنانو اومؤمناتو ته بې وجې تكليف رسوى يعنى دهغوى دَڅه كولونه بغير پيغورونه كوى نوهغوى دَ بهتان يعنى دَ دروغو او د ښكاره ګناه بوج اوچتوى.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** اِلَّآ اَنْ يُّؤْذَنَ لَكُمْ دا دَ عموم احوال نه استثناء ده ای لاتدخلوها فی حال من الاحوال الاحال کونکم ماذونالکم.

**قوله:** الی طعام د دې تعلق د يُؤْذَنَ معنی لره متضمن کیدودَ وجې نه د يُؤْذَنَ سره دې، شارح رحمه الله دَ بالدعاء اضافه دَدې خودلودپاره کړې ده چه يُؤْذَنَ دَ يُدعون معنی لره متضمن دې ګنی د يُؤْذَنُ صله الی نه راځی، دَ اکثرو مفسرینو وینا ده چه دا آیت دَ زینب بنت جحش رضي الله عنها د ولیمې په باره کښې نازل شوې دې،

**قوله:** اِنَاهُ، اَنٰی دَ بابِ مصدر دې په وزن دَ رَمٰی يَرْمِی پخیدل تیاریدل، اَنِی بالفتح والکسر دا د اَنٰی یانی (ض) مصدر دې معنی ئې دَ پخیدو او دَوخت دَ راتلوده، اِنٰی مصدر سماعی دې مصدر قیاسی انٰی دې لیکن دا سماعی نه دی. (اعراب القرآن للدرویش)

**قوله:** فَانْتَشِرُوا دَ اِذَا طَعِمْتُمْ جواب دې.

**قوله:** وَلَا مُسْتَاْنِسِيْنَ عطف دې په غيرناظرين باندې او بعضې حضراتو وئیلی دی چه دا په حال مقدرباندې عطف دې ای لاتدخلوها هاجمين ولامستانسين زمخشری وئیلی دی چه مُسْتَاْنِسِيْنَ په ناظرین باندې معطوف کیدودَوجې نه مجروردې.

**قوله:** لَا يَسْتَحْيِیْ د دې تفسیر ئې په لايترك سره کولوکښې اشاره اوکړه چه يستحی په معنی د لایترک دې کوم چه لازم معنی ده ځکه چه دَ حیاء نسبت دَ الله تعالی طرف ته صحیح نه دې.

**قوله:** ذٰلِكُمْ اَطْهَرُ، د ذلكم مرجع بغیردَ اجازت نه نه داخلیدل، او په خبرو کښې دلچسپی اخستلوسره کلك نه کیناستل، اودَ پردې نه بهر سامان غوښتل دی، یعنی دغه ذکرشوې خبرې دَ تهمت او شیطانی وسوسو دَ لرې کولودپاره ډیرې فائده مندې او مؤثرې دی.

**قوله:** مَا كَانَ لَكُمْ ای ماصح لکم اَنْ تُؤْذُوا، اَنْ تُؤْذُوا دکان اسم دې او لَكُمْ دَدې خبر او وَاَنْ تَنْكِحُوٓا عطف دې دَ كَانَ په اسم باندې.

**قوله:** اَنْ يَّرَوْهُنَّ وَيُكَلِّمُوْهُنَّ دَ اضافې مقصد دې خبرې طرف ته اشاره کول دی چه فِیْ اٰبَآئِهِنَّ وَلَآ اَبْنَآئِهِنَّ الخ په حذف د مضاف سره دې، یعنی دې خلقوته کتل او دوی سره خبرې کولوکښې هیڅ ګناه نشته دې.

**قوله:** وَاتَّقِيْنَ الله دَدې عطف په محذوف باندې دې ای اِمْتَثِلْنَ مَا اُمِرْتُنَّ به واتقين الله.

**قوله:** صلوة دَدې ډیرې معنې دی رحمت، دعا، تعظیم اوثناء دا ټولې معانی په یووخت مراد اخستل عموم مشترك یادیږی دَ بعضې حضراتو په نیزدا جائزنه دی دَدې دَپاره به دا وئیلی شی چه د لفظ صلوة په دې ځائې کښې هم یوه معنی مراد ده یعنی دَ نبی علیه

السلام تعظيم مدح اوثناء بيا چه كله دا معنى دَالله تعالى طرف ته منسوب وى نورحمت به مراد وى اوچه دَ فرښتو طرف ته منسوب وى نودعاء او استغفاربه مراد وى اوكه چرې دَ عام مؤمنانو طرف ته منسوب وى نو دعاء مدح اوتعظيم مجموعه به مراد وى. لفظ دَ سلام مصدردې په معنى دَ سلامت لكه ملام په معنى دَ ملامت مستعمليږى اودې نه مراددادې چه دَ نقصاناتو عيبونو او آفاتونو نه سلامتى دې تاسره وى دَ عربى ژبې په قاعدې سره دلته دَحرف على موقع نه ده مگر چونكه لفظ سلام دَ ثناء معنى لره متضمن دې په دې وجه حرف على سره عليكَ ياعليكم وئيلى شى.

**[اياتونه: ۵۹ - ۶۸]**

{يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ} جَمْع جِلْبَاب وَهِيَ الْمُلْحفة الَّتِي تَشْتَمِل بِهَا الْمَرْأَة أَيْ يُرْخِين بَعْضهَا عَلَى الْوُجُوه إِذَا خَرَجْنَ لِحَاجَتِهِنَّ إِلَّا عَيْنًا وَاحِدَة {ذَلِكَ أَدْنَى} أَقْرَب إِلَى {أَنْ يُعْرَفْنَ} بِأَنَّهُنَّ حَرَائِر {فَلَا يُؤْذَيْنَ} بِالتَّعَرُّضِ لَهُنَّ بِخِلَافِ الْإِمَاء فَلَا يُغَطِّين وُجُوههنَّ وَكَانَ الْمُنَافِقُونَ يَتَعَرَّضُونَ لَهُنَّ {وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا} لِمَا سَلَفَ مِنْهُنَّ مِنْ تَرْك السَّتْر {رَحِيمًا} بِهِنَّ إِذْ سَتَرَهُنَّ {لَئِنْ} لَام قَسَم {لَمْ يَنْتَهِ الْمُنَافِقُونَ} عَنْ نفاقهم {والذين في قلوبهم مرض} بالزنا {وَالْمُرْجِفُونَ فِي الْمَدِينَةِ} الْمُؤْمِنِينَ بِقَوْلِهِمْ قَدْ أَتَاكُمْ الْعَدُوّ وَسَرَايَاكُمْ قُتِلُوا أَوْ هُزِمُوا {لَنُغْرِيَنَّكَ بِهِمْ} لنسلطنك عليهم {ثُمَّ لَا يُجَاوِرُونَكَ} يساكنونك {فِيهَا إِلَّا قَلِيلًا} ثُمَّ يَخْرُجُونَ {مَلْعُونِينَ} مُبْعَدِينَ عَنْ الرَّحْمَة {أَيْنَمَا ثُقِفُوا} وُجِدُوا {أُخِذُوا وَقُتِّلُوا تَقْتِيلًا} أَيْ الْحُكْم فِيهِمْ هَذَا عَلَى جِهَة الْأَمْر بِهِ {سُنَّةَ اللَّهِ} أَيْ سَنَّ اللَّه ذَلِكَ {فِي الَّذِينَ خَلَوْا مِنْ قَبْلُ} مِنْ الْأُمَم الْمَاضِيَة فِي مُنَافِقِيهِمْ الْمُرْجِفِينَ الْمُؤْمِنِينَ {وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللَّهِ تَبْدِيلًا} مِنْهُ {يَسْأَلُكَ النَّاسُ} أَهْل مَكَّة {عَنِ السَّاعَةِ} مَتَى تَكُون {قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ اللَّهِ وَمَا يُدْرِيكَ} يُعْلِمك بِهَا أَيْ أَنْتَ لَا تَعْلَمهَا {لعل الساعة تكون} توجد {قريبا} {إِنَّ اللَّهَ لَعَنَ الْكَافِرِينَ} أَبْعَدَهُمْ {وَأَعَدَّ لَهُمْ سَعِيرًا} نَارًا شَدِيدَة يَدْخُلُونَهَا {خَالِدِينَ} مُقَدَّرًا خُلُودهمْ {فِيهَا أَبَدًا لَا يَجِدُونَ وَلِيًّا} يَحْفَظهُمْ عَنْهَا {وَلَا نَصِيرًا} يَدْفَعهَا عَنْهُمْ {يَوْمَ تُقَلَّبُ وُجُوهُهُمْ فِي النَّارِ يَقُولُونَ يَا} لِلتَّنْبِيهِ {ليتنا أطعنا الله وأطعنا الرسولا} {وَقَالُوا} أَيْ الْأَتْبَاع مِنْهُمْ {رَبَّنَا إِنَّا أَطَعْنَا سَادَتَنَا} وَفِي قِرَاءَة سَادَاتنَا جَمْع الْجَمْع {وَكُبَرَاءَنَا فَأَضَلُّونَا السَّبِيلَا} طَرِيق الْهُدَى {رَبَّنَا آتِهِمْ ضِعْفَيْنِ مِنَ الْعَذَابِ} أَيْ مِثْلَيْ عَذَابنَا {وَالْعَنْهُمْ} عذبهم {لعنا كبيرا} عدده وفي قراءة بالموحدة اي عظيما.

ترجمه: اې نبى خپلو بيبيانواو خپلو لونړو ته او دَ (نورو) مسلمانانو ښځوته اووايه چه دَ (سرنه) دې ښكته كړئى په خپل ځان باندې لړشان څادرونه (يعنى په مخ باندې دې راخواره كړئى) جَلَابِيبُ، دَجِلْبَابٌ جمع ده، مِلْحَفَةٌ هغه څادر ته وائى كوم چه ښځې اچوى كوم ته چه لوپټه وائى يعنى كله چه دَخپل حاجت دَپاره اوځئى نودَ څادر څه حصه په خپلو مخونوباندې زوړندوئى. بغيردَ يوې سترگې نه په دې طريقه به زر دَهغوى پيژند گلو كولې شى چه دا آزادې

ښځې دی نودوی نه به چیر چاړکولو باندې څه تکلیف نه شی رسولې په خلاف دَ وینځو چه هغوی دې خپل مخونه نه پټوی اومنافقانو به وینځو سره چیرچاړ کولو، دَ بې پردګئی باره کښې د هغوی نه تراوسه پورې چه کومې کوتاهئی شوی دی الله تعالی هغې لره معاف او په هغوی رحم کونکې دې چه هغوی ئې پټې (محفوظ کړې) کونکې دې ، قسم دې لئن کښې لام قسمیه دې که چرې منافقان په د خپل نفاق نه اوهغه خلق دَ چا په زړونو کښې چه دَ زنا مرض دې اوهغه خلق چه په مدینه یعنی په مؤمنانو کښې داسې ویناکولو سره خبرې خوروی چه په تاسو باندې دښمن حمله اوکړهٔ اوستاسو لښکر قتل کړې شو یاماتې ئې اوخوړلو، منع نه شو نه نو مونږ به تاسو په هغوی باندې ضرور مسلط کړو دَدې نه پس به هغوی ستاسو په ګاونډ مدینه کښې سکونت اختیار نه کړې شی مګر دَ مختصر مودې پورې بیابه هغوی ویستلې شی حال دادې چه هغوی به نه رټلې شوې شړلې شوې وی (یعنی) دَ رحمت نه به لرې کړې شوې وی چرته چه ملاویږی راګیرولې به شی او وژلې تکولې به شی یعنی داحکم دَهغوی باره کښې دَ الله تعالی دَ امر په رڼراکښې دې الله تعالی په هغه خلقو کښې هم کوم چه پخوا تیرشوی دی یعنی الله تعالی په پخوانو امتونو کښې هم افواګانې خورونکو منافقانو دَپاره هم دغه طریقه ساتلې وه او تاسو به دَ الله تعالی په دستور کښې هیڅ قسم بدلون اونه وینئی، خلق یعنی دَ مکې والا تاسو نه دَ قیامت باره کښې پوښتنه کوی چه کله به راځی؟ نوته ورته اووایه چه دَدې (صحیح) علم خو هم الله تعالی ته دې اوتاسو ته څه معلوم دې؟ یعنی تاسو دَدې باره کښې نه پیژنئی امید دې چه قیامت ډیر زر واقع شی بیشکه الله تعالی کافران دَ رحمت نه لرې ساتلی دی اودَهغوی دَپاره ئې سخت تیر سور کړې شوې اور تیار ساتلې دې په کوم کښې چه به هغوی داخلیږی او هغوی به په دې کښې دَهمیشه دَپاره اوسیږی یعنی دَهغوی دَ پاره خلود مقدر شوې دې هیڅوک دوست به نه مومی چه دَهغوی دَ اور نه حفاظت اوکړې شی اونه به څوک امدادی چه دَ هغوی نه دغه اور لرې کړې شی، په کومه ورځ چه به دَهغوی مخونه په اور کښې اولټه را اولټه کړې شی (نو په ارمان سره) به وائی افسوس چه مونږ دَالله تعالی اودَهغه دَ رسول ﷺ اطاعت کولې یاء دَ تنبیه دَپاره ده او په دوی کښې به متبعین او وائی اې زمونږ پروردګار مونږ دَخپلو سردارانو او په یوقراءت کښې ساداتنا جمع الجمع دې اودَخپلو مشرانو اطاعت کړې دې هم هغوی مونږ دَ هدایت دَلارې نه اوړولې یو اې زمونږ پروردګار دوی ته ډبل عذاب ورکړې یعنی زمونږ دَ عذاب دوچند، او په دوی باندې په ډیر شمیر کښې په کسرت سره لعنت اوکړی او په یوقراءت کښې په باء موحده سره دې یعنی (کبیرا دې) غټ لعنت.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: يُدْنِيْنَ د إدناء نه مضارع جمع مؤنث غائب، هغوی دې ښکته کړی، ماده دُنُوٌّ ده په يُدْنِيْنَ کښې دا احتمال هم دې چه دَ قول مقوله وی او خبر په معنی د امروی اوداهم

احتمال دې چه جواب امر وی لکه چه قُل لعبادی الذین آمنوا یقیموا الصلوة.

قوله. لَا يُؤْذَيْنَ د ايذاء نه مضارع جمع مؤنث غائب منفی مجهول، دغه ښځوته به تکليف نه ورکولې کيږی.

قوله: الْمُرْجِفُوْنَ دا د اِرْجَافٌ نه اسم فاعل دې د رَجْفَةٌ نه مشتق دې دَدې معنی حرکت ورکول دی دَ دروغو خبر او افواه گانوته هم رجفة ونيلې شی ځکه چه په افواه سره هم گړبړ او بې چينی خوريږی.

قوله: مَلْعُوْنِيْنَ دَ فعل مقدردَ فاعل نه حال کيدودَ وجې نه منصوب دې ای يُخْرَجُوْنَ ملعونين شارح رحمه الله يخرجون محذوف منلوسره هم دې طرف ته اشاره کړې ده.

قوله: وَمَا يُدْرِيْكَ مَا مبتدا او يُدْرِيْكَ جمله خبر، استفهام انکاری دې، شارح رحمه الله انت لاتعلمها سره هم دې طرف ته اشاره کړې ده.

قوله: يَوْمَ تُقَلَّبُ دا د يَقُوْلُوْنَ ظرف مقدم دې خَالِدِيْنَ او نَصِيْرًا هم ظرف کيدې شی. (جمل)

قوله: يقولونَ يٰلَيْتَنَا جمله مستانفه د سوال مقدر جواب دې کوم چه د کلام سابق نه پيداکيږی په سابق کښې چه کله دَ دوزخيانو دَ خراب حالت ذکر اوکړې شو نو سوال پيداشو چه هغوی به څه کوی؟ نو اووئيلې شو چه په مافات باندې به دَ ارمان په توگه وائی يَالَيْتَنَا او دَ وُجُوْهُهُمْ ضمير يا نفس وجوه نه حال کيدې هم شی.

**[اياتونه: ۶۹ ـ ۷۳]**

{يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَكُوْنُوْا} مَعَ نَبِيِّكُمْ {كَالَّذِيْنَ اٰذَوْا مُوْسٰى} بِقَوْلِهِمْ مَثَلًا مَا يَمْنَعُهُ أَنْ يَغْتَسِلَ مَعَنَا إِلَّا أَنَّهُ آدَرُ {فَبَرَّأَهُ اللّٰهُ مِمَّا قَالُوْا} بِأَنْ وَضَعَ ثَوْبَهُ عَلَى حَجَرٍ لِيَغْتَسِلَ فَفَرَّ الْحَجَرُ بِهِ حَتّٰى وَقَفَ بَيْنَ مَلَأٍ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيْلَ فَأَدْرَكَهُ مُوْسٰى فَأَخَذَ ثَوْبَهُ فَاسْتَتَرَ بِهِ فَرَأَوْهُ وَلَا أُدْرَةَ بِهِ وَهِيَ نَفْخَةٌ فِي الْخُصْيَةِ {وَكَانَ عِنْدَ اللّٰهِ وَجِيْهًا} ذَا جَاهٍ وَمِمَّا أُوْذِيَ بِهِ نَبِيُّنَا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَسَمَ قَسْمًا فَقَالَ رَجُلٌ هٰذِهِ قِسْمَةٌ مَا أُرِيْدَ بِهَا وَجْهُ اللّٰهِ تَعَالٰى فَغَضِبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ ذٰلِكَ وَقَالَ يَرْحَمُ اللّٰهُ مُوْسٰى لَقَدْ أُوْذِيَ بِأَكْثَرَ مِنْ هٰذَا فَصَبَرَ رواه البخاري {يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَقُوْلُوْا قَوْلًا سَدِيْدًا} صوابا {يُصْلِحْ لَكُمْ اَعْمَالَكُمْ} يَتَقَبَّلُهَا {وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيْمًا} نَالَ غَايَةَ مَطْلُوْبِهِ {اِنَّا عَرَضْنَا الْاَمَانَةَ} الصَّلَوَاتِ وَغَيْرَهَا مِمَّا فِي فِعْلِهَا مِنَ الثَّوَابِ وَتَرْكِهَا مِنَ الْعِقَابِ {عَلَى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَالْجِبَالِ} بِأَنْ خَلَقَ فِيْهِمَا فَهْمًا وَنُطْقًا {فَاَبَيْنَ اَنْ يَّحْمِلْنَهَا وَاَشْفَقْنَ} خِفْنَ {مِنْهَا وَحَمَلَهَا الْاِنْسَانُ} آدَمُ بَعْدَ عَرْضِهَا عَلَيْهِ {اِنَّهٗ كَانَ ظَلُوْمًا} لِنَفْسِهِ بِمَا حَمَلَهُ {جَهُوْلًا} بِهِ {لِّيُعَذِّبَ اللّٰهُ} اللام مُتَعَلِّقَةٌ بِعَرَضْنَا الْمُتَرَتَّبِ عَلَيْهِ حَمْلُ آدَمَ {الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْمُنٰفِقٰتِ وَالْمُشْرِكِيْنَ وَالْمُشْرِكٰتِ} الْمُضَيِّعِيْنَ الْأَمَانَةَ {وَيَتُوْبَ اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ} الْمُؤَدِّيْنَ الْأَمَانَةَ {وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا} لِلْمُؤْمِنِيْنَ {رَّحِيْمًا} بِهِمْ

ترجمه: اې ایمان والو! تاسو دَخپل نبی سره دَهغه خلقو په شان مه کيږئ چاچه موسیٰ ﷺ ته مثلاً داسې وينا کولو سره تکليف ورکړو چه موسیٰ ﷺ لره زمونږ سره د (بربنډ) غسل کولونه سوا دَ دې نه هيڅ څيز منع کونکې نشته چه هغه عظيم الخصيتين دې نوکومه خبره چه هغوی کړې وه الله تعالی هغه دَهغې نه برئ کړو په داسې طريقه چه (يوه ورځ) دَ غسل په ارادې (موسیٰ ﷺ) خپلې کپړې کوزې کړې او په يوکاڼړی باندې ئې کيخودې نوکاڼړی دَهغه کپړې واخستې اوتختيدو اودَ بنی اسرائيلو دَ سردارانو په مينځ ته لاړو اودريدو نوموسیٰ ﷺ کاڼړې هم هلته اونيولو اودَهغه نه ئې خپلې کپړې واخستې نوهغه خلقو موسیٰ ﷺ اوليدلو چه هغه ته د عظيم الخصيتين مرض نشته او اُدْرَة خصيتين کښې هواډکيدوته وائی او موسیٰ ﷺ دَ الله تعالی په نيز ډير دَعزت مالک وو، يعنی دَ مرتبې خاوند وو اوپه کومو خبرو چه زمونږ نبی ﷺ ته تکليف رسولې شوې دې دا دې چه حضورپاك (يوځل مال غنيمت) تقسيم کړو نو يوسړی اووئيل دا داسې تقسيم دې چه په دې سره دَالله تعالی خوشحالول مقصدنه دې نو نبی ﷺ ته په دې باندې تکليف اورسيدو غصه شو او وئې فرمائيل الله تعالی دې په موسیٰ ﷺ باندې رحم اوکړی چه هغه ته دَدې نه هم زيات تکليفونه رسولې شوی دی بيائی هم صبرکړې، دا روايت بخاری شريف نقل کړې دې اې ايمان والودَ الله تعالی نه اوويريږئ او نيغه صحيح خبره کوئ الله تعالی به (دَدې په بدله کښې) ستاسو دَاعمالو اصلاح اوکړی اوکوم کس چه دَ الله تعالی اودَهغه دَرسول اطاعت کوی هغه به لوئې کاميابئ ته اورسيږی يعنی غايت مقصودبه حاصل کړی مونږ دا امانت يعنی مونځ وغيره دَ کوم په کولوکښې چه ثواب او په ترك کولوکښې ئې عذاب دې په آسمانونو زمکو او غرونو باندې پيش کړو په داسې طريقه چه مونږ په هغې کښې پوهه او د خبرې کولو طاقت پيدا کړو نوهغوی دَدې ذمه واری قبلولونه انکاراوکړو او دَدې نه اوويريدل اوانسان يعنی آدم ﷺ دا امانت په هغه باندې پيش کولو نه پس قبول کړو بيشکه انسان دَ امانت بوج اوچتولو دَ وجې نه په خپل ځان باندې ډير ظلم کونکې اودَ امانت دَ بوج دَ اوچتولو دَا نجام نه ناخبره دې او دا (عرض امانت) ځکه اوشو چه الله تعالی منافقان سړو اومنافقانو ښځو اومشرکانو سړو او مشرکانو ښځو چه دَ امانت ضائع کونکی دی هغوی ته سزا ورکړی دَ لِيُعَذِّبَ الله لام د عَرَضْنَا سره متعلق دې په کوم چه آدم ﷺ (دَ امانت بوج) اوچتول مرتب دی او الله تعالی د (حق) دَ امانت اداکونکو دَ مؤمنانو سړو او مؤمنانو ښځو توبه قبل کړی او الله تعالی غفور اورحيم دې په دوی باندې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** لاأُدْرَةَ بِه، "أُدْرَةَ" یو مرض دې په کوم کښې چه ګنده ماده یا ګنده هوا په خصیتین کښې راکوزیږی دَ کوم دَ وجې نه چه دَ خصیتین حجم ډیر زیات لوئیږی داسې سړی ته آدِرْ وائی په وزن دَ آدِمْ.

**قوله:** مِمَّا قَالُوْا که مَا مصدریه وی نو تقدیری عبارت به داسې شی فَبَرَّأَهُ اللهُ مِن قولهم او که چرې موصوله وی نو تقدیری عبارت به داسې شی فَبَرَّأَهُ اللهُ ای مِنَ الَّذِی قَالُوْا.

**قوله:** به ای بالثوب.

**قوله:** مِمَّا په دې کښې مِن دَ مع په معنی کښې دې ای مَعَ مَا فِی فِعْلِهَا.

**قوله:** مِنَ الثواب دا دَ مَا بیان دې.

**قوله:** ابین: دا د إبانة نه د ماضی، جمع مؤنث غائب صیغه ده.

**سوال:** أَبَيْنَ، يَحْمِلْنَ او أَشْفَقْنَ دا دریواړه دَ جمع مؤنث صیغې دی او دَدې مرجع سموات، ارض او جبال دې په دې کښې سموات او ارض مؤنث دی او جبال مذکر دې دَدې نه معلومیږی چه مؤنث ته غلبه ورکولو د وجې دَمؤنث ضمیرونه راوړلې شوی دی او غلبه خو مذکر ته ورکولې شی؟

**جواب:** چونکه سموات او جبال جمع تکسیر غیرِ عاقل ده لهذا دَدې دَپاره دَ مؤنث ضمیر راوړل جائز دی.

**قوله:** وَحَمَلَهَا الإنسان دَدې معطوف علیه محذوف دې تقدیری عبارت دادې چه فَعَرَضْنَاهَا فَحَمَلَهَا الإنسانُ شارح رحمه الله په خپل قول بَعدَ عرضِهَا علیه سره هم دې تقدیر طرف ته اشاره کړې ده.

**قوله:** ظَلُوْمًا لِنفسه ای إِتْعَابِهِ إِيَّاهَا یعنی خپل ځان په مشقت کښې اچول. شارح رحمه الله خپل قول بِمَا حَمَلَهُ سره هم دې معنی طرف ته اشاره کړې ده او دا ظلم ممدوح دې او کومو حضراتو چه دَدې په بیانولو کښې توقف کړې دې هغوی دَ ظلم نه حقیقی ظلم ګڼړلې دې کوم چه د حد دَ شرع نه تجاوز دې.

**قوله:** به ای بعاقبته (انجام).

**قوله:** لِيُعَذِّبَ اللهُ المنافقين لام دَ عاقبت دې ای حَمَلَهَا الإنسانُ لِيُعَذِّبَ اللهُ بعضَ أفراده الذين لم يُرَاعُوْهَا.

## [٣٤] سورة سبا

سورة السبا مكية الا وير الذين اوتوا العلم الآية وهي اربع او خمس وخمسون آية

سورت سبامکی دی سوا دَ ویری الذین اوتوا العلم" آیت نه او دَدې څلور پنځوس یا پنځه پنځوس آیاتونه دی.

### [ایاتونه: ۱ - ۹]

بسم الله الرحمن الرحيم (الْحَمْدُ لِلَّهِ) حَمِدَ الله تَعَالَى نَفْسه بِذَلِكَ وَالْمُرَاد بِهِ الثَّنَاء بِمَضْمُونِهِ مِنْ ثُبُوت الْحَمْد وَهُوَ الْوَصْف بِالْجَمِيلِ لِلَّهِ تَعَالَى (الَّذِي لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ) مِلْكًا وَخَلْقًا (وَلَهُ الْحَمْدُ فِي الْآخِرَةِ) كَالدُّنْيَا يَحْمَدهُ أَوْلِيَاؤُهُ إِذَا دَخَلُوا الْجَنَّة (وَهُوَ الْحَكِيمُ) فِي فِعْله (الْخَبِيرُ) فِي خَلْقه (يَعْلَمُ مَا يَلِجُ) يَدْخُل (فِي الْأَرْضِ) كَمَاءٍ وغيره (وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا) كَنَبَات وَغَيْره (وَمَا يَنْزِلُ مِنَ السَّمَاءِ) مِنْ رِزْق وَغَيْره (وَمَا يَعْرُجُ) يَصْعَد (فِيهَا) مِنْ عَمَل وَغَيْره (وَهُوَ الرَّحِيمُ) بِأَوْلِيَائِهِ (الْغَفُورُ) لَهُمْ (وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَأْتِينَا السَّاعَةُ) الْقِيَامَة (قُلْ) لَهُمْ (بَلَى وَرَبِّي لَتَأْتِيَنَّكُمْ عَالِمِ الْغَيْبِ) بِالْجَرّ صِفَة وَالرَّفْع خَبَر مبتدأ و في قراءة وَعَلَّام بِالْجَرّ (لَا يَعْزُبُ) يَغِيب (عَنْهُ مِثْقَالُ) وَزْن (ذَرَّةٍ) اصغر نملة (فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ وَلَا أَصْغَرُ مِنْ ذَلِكَ وَلَا أَكْبَرُ إِلَّا فِي كِتَابٍ مُبِينٍ) بَيِّن هُوَ اللَّوْح الْمَحْفُوظ (لِيَجْزِيَ) فِيهَا (الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ أُولَئِكَ لَهُمْ مَغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ) حَسَن فِي الْجَنَّة (وَالَّذِينَ سَعَوْا فِي) إِبْطَال (آيَاتِنَا) الْقُرْآن (مُعَجِّزِينَ) وَفِي قِرَاءَة هُنَا وَفِيمَا يَأْتِي مُعَاجِزِينَ أَيْ مُقَدِّرِينَ عِجْزنَا أَوْ مُسَابِقِينَ لَنَا فَيَفُوتُونَا لِظَنِّهِمْ أَنْ لَا بَعْث وَلَا عِقَاب (أُولَئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مِنْ رِجْزٍ) سيء الْعَذَاب (أَلِيمٌ) مُؤْلِم بِالْجَرّ وَالرَّفْع صِفَة لِرِجْزٍ او عذاب (وَيَرَى) يَعْلَم (الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ) مُؤْمِنُو أَهْل الْكِتَاب كَعَبْدِ اللَّه بْن سَلَام وَأَصْحَابه (الَّذِي أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ) أَيْ الْقُرْآن (هُوَ) فَصْل (الْحَقَّ وَيَهْدِي إِلَى صِرَاطِ) طَرِيق (الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ) اي الله ذِي الْعِزَّة الْمَحْمُود (وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا) أَيْ قَالَ بَعْضهمْ عَلَى جِهَة التَّعَجُّب لِبَعْضٍ (هَلْ نَدُلُّكُمْ عَلَى رَجُلٍ) هُوَ مُحَمَّد (يُنَبِّئُكُمْ) يُخْبِركُمْ أَنَّكُمْ (إِذَا مُزِّقْتُمْ) قطعتم (كُلَّ مُمَزَّقٍ) بمعنى تمزيق (إِنَّكُمْ لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍ) (أَفْتَرَى) بِفَتْحِ الْهَمْزَة لِلِاسْتِفْهَامِ وَاسْتُغْنِيَ بِهَا عَنْ همزة الوصل (عَلَى اللَّهِ كَذِبًا) في ذلك (أَمْ بِهِ جِنَّةٌ) جُنُون تَخَيَّلَ بِهِ ذَلِكَ قال تعالى (بَلِ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ) الْمُشْتَمِلَة عَلَى البعث والعذاب (فِي الْعَذَابِ) فيها (وَالضَّلَالِ الْبَعِيدِ) عَنْ الْحَقّ فِي الدُّنْيَا (أَفَلَمْ يَرَوْا) يَنْظُرُوا (إِلَى مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ) مَا فَوْقهمْ وَمَا تَحْتهمْ (مِنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ إِنْ نَشَأْ نَخْسِفْ بِهِمُ الْأَرْضَ أَوْ نُسْقِطْ عَلَيْهِمْ كِسَفًا) بِسُكُونِ السِّين وَفَتْحهَا قطعا (مِنَ السَّمَاءِ) وَفِي قِرَاءَة فِي الْأَفْعَال الثَّلَاثَة بِالْيَاءِ (إِنَّ فِي ذَلِكَ) الْمَرْئِيّ (لَآيَةً لِكُلِّ عَبْدٍ مُنِيبٍ) رَاجِع إِلَى رَبّه تَدُلّ عَلَى قُدْرَة اللَّه عَلَى الْبَعْث وَمَا يَشَاء

ترجمه: شروع کوم په نامه دَ الله چه ډیر بخښونکې او ډیر مهربان دې ټول تعریفونه دَ هغه الله تعالی دَپاره ثابت دی دچا په ملکیت کښې چه هغه ټول هرڅه دی کوم چه په آسمانونو کښې او په

زمکو کښې دی، الله تبارك و تعالى (دَدې کلام) په ذريعه خپل تعريف فرمائيلي دې اودې کلام نه مراد، دَدې کلام دَمضمون په ذريعه چه هغه ثبوت د حمد دې تعريف کول دی، او دَ حمد د الله تعالى دَ پاره دَ صفات کماليه بيانول دی، دَ ملك په اعتبارسره اودَ تخليق په اعتبارسره اودَ غلام کيدو په اعتبارسره او دَ دنيا په شان په آخرت کښې هم دَ هغه حمد دې، دَ هغه دوستان چه کله جنت ته داخل شي نو دَهغه حمد به بيانوی هغه په خپل فعل کښې دَ لويو حکمتونو والا دې اودَ خپل مخلوق نه باخبردې اوهغه دَ هرهغه شي نه خبرداردې کوم چه په زمکه کښې داخليږی لکه اوبه وغيره اودَهغه شي نه (هم) کوم چه دَ زمکې نه راوځی مثلاً وابنه وغيره اودَهغې نه (هم) کوم چه دَآسمان نه نازليږی لکه رزق وغيره اودَهغې نه هم کوم چه دَآسمان طرف ته خيژی (مثلاً) اعمال وغيره هغه په خپلو دوستانو باندې رحم کونکې دې (او) هغوی له معاف کونکې دې اوکافران وائی چه په مونږ به قيامت نه راځی ته هغوی ته اووايه قسم دې زما دَ رب چه عالم الغيب دې چه هغه به يقيناً په تاسو باندې راځی دَ (عالم) دَ جر په صورت کښې دَ رَبِّی صفت دې اودَ رفع په صورت کښې دَ مبتدأ خبردې او په يوقراءت کښې علاّم په جرسره دې اودَهغه نه دَ يوې ذرې برابر څه څيزپټ نه دې نه په آسمانونو کښې اونه په زمکه کښې، ذره دَتولو نه وړوکی میږی ته وائی بلکه دَدې نه هم وړوکې او نه لوئی څيز مگر په ښکاره کتاب کښې موجود دې اوهغه لوح محفوظ دې دې دَپاره چه دَ قيامت په ورځ ايمان والوته اونيکانوته ښه بدله ورکړی، هم دغه خلق دی دَ چا دَ پاره چه مغفرت او په جنت کښې دَ عزت روزی ده اوکومو خلقو چه زمونږ آياتونه قرآن باطل کولوسره د (رسول) دَ ښکته کولو کوشش کړې دې او په يوقراءت کښې دلته او روستو مُعَاجِزِيْنَ يعنی مونږ عاجز فرض کولوسره يا مونږ مغلوب گنړلوسره، چه زمونږ نه به بچ اوشي دَهغوی دا گمان کولوَ وجې نه چه نه بعث شته اونه عقاب، دَ داسې خلقو دَپاره بدترين عذاب دې. اَلِيْمٌ په معنی د مولم په جر او په رفع سره د رجز يا د عذابٌ صفت دې اوکومو خلقو ته چه علم ورکړې شوې دې (يعنی) دَ اهل کتاب نه (په حضورپاك ﷺ باندې) ايمان راوړونکی لکه عبدالله بن سلام ﷺ اودَ هغه ملگری په هغه قرآن چه په تاسو باندې ستاسو دَ رب دَ طرف نه نازل کړې شوې پوهيږی چه دا حق دې (هو) د يَرَى دَ دوؤ مفعولونو په مينځ کښې فصل دې اوهغه دَعزت والا مستحق دَ تعريف دَالله تعالى دَلارې طرف ته رهنمائی کوی اودا کافران وائی يعنی په خپل مينځ کښې په تعجب سره وائی آيا مونږ تاسو ته يوداسې سړې اونه ښايو؟ هغه محمد ﷺ دې چه تاسو ته دَدې خبرې خبردرکوی چه کله تاسو په پوره ټوټې باندې ذره ذره شئ (ممزق) په معنی د تمزيق دې نو بيابه تاسو دَ نوی سرنه راپيدا کولې شی نه ده معلومه چه دې سړی په الله تعالى باندې بهتان لگولې دې؟ (اَفْتَرَى) دَهمزه په فتحې سره، دَ استفهام دَپاره دې دَ همزې دَ استفهام دَ وجې نه همزه دَ وصل نه

مستغنی شو یا دې لیونې دې؟ دَ کوم دَ وجې نه چه دې داسې خیالی خبرې کوی، الله تعالی اوفرمائیل بلکه (حقیقت دا دې) چه کوم خلق په آخرت باندې یقین نه ساتی کوم چه په بعث اوحساب باندې مشتمل دې هغوی په آخرت کښې په عذاب کښې او په دنیاکښې دَحق نه دَ لریوالی په گمراهئ کښې دی آیا دا خلق دَخپل وړاندې روستو پورته ښکته آسمان اوزمکې ته نه گوری؟ که چرې مونږ غواړو نو دوی به په زمکه کښې ورخښ کړو یا به دوی باندې دَ آسمان ټکړې راوغورزوو (کِسَفًا) کښې دَ سین په سکون او فتحې سره او په یوقراءت کښې دریواړو افعالو کښې په ''ی'' سره دې یقینًا دغه نظر راتلونکې څیزکښې دَ رجوع کونکی بنده دَپاره دلیل دې یعنی دَخپل رب طرف ته رجوع کونکې بنده دپاره (داسې) دلیل چه دَ الله تعالی دَ بعث او په هره اراده باندې دَ قادرکیدو دلالت کوی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا، دَ يَعْرُجُ صله ''الی'' راځی نه چه ''فِي'' مگرچونکه يَعْرُجُ داِسْتِقْرَار معنی لره متضمن دې دَدې وجې نه دَدې تعدیه دَ ''فی'' په ذریعه صحیح ده.

**قوله:** قُلْ لَهُمْ بَلٰى، بَلٰی نفی لره د ردکولو اومنفی لره د ثابتولو دَپاره راځی، مشرکینو وئیلی وو لَا تَأْتِينَا السَّاعَةُ دَهغوی دا قول رد کوی او فرمائی بَلٰی ولې نه؟ ضرور راتلونکې دې ای لیس الامر الا اتیانها.

**قوله:** وَرَبِّيْ لَتَأْتِيَنَّكُمْ کښې واؤ قسمیه جاره د ې اودا اثبات دَنفی دَ تاکید دَپاره دې لام جواب قسم دَپاره دې، تَأْتِيَنَّكُمْ فعل مضارع مبنی برفتحه بانون تاکید ثقیلة دې دا دریم تاکید دې او کُمْ مفعول به دې.

**قوله:** عَالِمِ الْغَيْبِ دَ جر په صورت کښې دَ رب صفت یا بدل دې عَالِمُ دَ مبتدأ محذوف خبر کیدو دَ وجې نه مرفوع هم کیدې شی، ای هُوَ عَالِمُ الْغَيْبِ، عَالِمُ الْغَيْبِ مبتدأ لَا يَعْزُبُ دَدې خبر يَعْزُبُ دَ جمهورو په قراءت کښې دَ زاء په ضمې سره دې اودَ کسائی رحمه الله په نیز دَ زاء په کسرې سره دې (ن، ض) عُزُوبًا پټیدل، لرې کیدل.

**قوله:** لَا أَصْغَرُ مبتدأ مِنْ ذٰلِكَ دَدې خبر، دا دَجملې لَا يَعْزُبُ دَتاکید دَپاره دې.

**قوله:** لِيَجْزِيَ الَّذِينَ آمَنُوا دَ لَتَأْتِيَنَّكُمْ علت دې یعنی قیامت به خامخا راځی دې دَپاره چه الله تعالی تاسو ته بدله درکړی.

**قوله:** أُولٰئِكَ مبتدأ لَهُمْ خبرمقدم وَمَغْفِرَةٌ مبتدأ مؤخر جمله اسمیه د أُولٰئِكَ مبتدأ خبر، او رِزْقٌ كَرِيمٌ موصوف صفت په مَغْفِرَةٌ باندې عطف دې.

**قوله:** وَالَّذِينَ سَعَوْا موصول صله أُولٰئِكَ اودَدې مابعد خبر دویم ترکیب داهم کیدې شی چه

وَالَّذِيْنَ سَعَوْ عطف ماقبل اَلَّذِيْنَ آمنوا باندې اوشی ای وَتَجْزِی الَّذِيْنَ سَعَوْا په دې صورت کښې به روستو والا اولئكَ جمله مستانفه شی او دَ ماقبل والا اولئكَ اودَ هغې د ماتحت معطوفتینو په مینځ کښې جمله به معترضه وی.

**قوله:** فیمایأتی ای فی آخر السورة.

**قوله:** مقدرین عَجِزَنَا اَوْمُسَابِقِيْنَ لَنَا په دې کښې لف اونشر مرتب دې، مقدرین د رومبی قراءت تشریح ده او مسابقین لنا د دویم قراءت تشریح ده اومقدرین مطلب دې معتقدین.

**قوله:** مُعَاجِزِيْنَ نه مراد مُسَابِقِيْنَ دې مسَابقة باندې معَاجزة اطلاق ځکه اوکړې شو چه مسابقت کونکی په خپل مینځ کښې دَیوبل عاجزکولو کوشش کوی مګر دلته باب مفاعله په خپله معنی کښې نه دې ځکه چه د الله تعالی عاجزکول متصورنه دی، لهذا دا عاجزکول دَهغوی دَ خپل فاسد ګمان په اعتبارسره دی نه چه په حقیقت کښې.

**قوله:** وَيَرَى الَّذِيْنَ دا "یا" خو په نَجْزِیَ باندې دَ عطف دَ وجې نه منصوب دې یادَ جملې مستانفې کیدودَ وجې نه مرفوع دې، یَرٰی بَعْلَمَ په معنی کښې دې او اَلَّذِيْنَ اُوْتُواالعِلْمَ دَ یَرٰی فاعل دې او اَلَّذِيْنَ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مفعول اول دې او الحق مفعول ثانی او هُوَ دَدوو مفعولو په مینځ کښې ضمیرفصل دې اودَ يَهْدِیْ عطف په الحَقَّ باندې دې، ای مُرْتِبًا مُحِقًّا وهَادِيًا

**سوال:** په دې صورت کښې دَفعل په اسم باندې عطف لازمیږی کوم چه صحیح نه دې؟

**جواب:** فعل چه کله دَ اسم په تاویل کښې وی نوعطف صحیح وی دلته يَهْدِیْ، دَهَادِيًا په معنی کښې دې تقدیری عبارت دادې وَيَرَى الَّذِيْنَ اُوْتُوا العِلْمَ الَّذِیْ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ الحَقَّ وَهَادِيًا، دیَرٰی په نَجْزِیَ باندې دَ عطف په صورت کښې دا اعتراض راځی چه د یَرَی الَّذِيْنَ اُوْتُواالعلمَ نه مراد دَهغوی دَپاره په دنیا کښې علم ثابتول دی او نَجْزِیَ باندې دَعطف تقاضه داده چه علم دې په آخرت کښې ثابت وی کوم چه مرادنه دې نو د دې نه معلومیږی چه استیناف والا ترکیب صحیح دې.

**قوله:** بمعنی تَمْزِيْقٍ په دې سره ئې اشاره اوکړه چه اسم مفعول دَ مصدر په معنی کښې دې.

**قوله:** فی الافعال الثلث بالیاء ای نشا، نخسف، نُسْقِطْ.

**[ایاتونه: ۱۰ ـ ۱۴]**

(وَلَقَدْ آتَيْنَا دَاوُدَ مِنَّا فَضْلًا) نُبُوَّةً وَكِتَابًا وَقُلْنَا (يَا جِبَالُ أَوِّبِي) رَجِّعِي (مَعَهُ) بِالتَّسْبِيحِ (وَالطَّيْرَ) بِالنَّصْبِ عَطْفًا عَلَى مَحَلِّ الْجِبَالِ أَيْ ودعوناها تُسَبِّحُ مَعَهُ (وَأَلَنَّا لَهُ الْحَدِيدَ) فَكَانَ فِي يَدِهِ كالعجين وَقُلْنَا (أَنِ اعْمَلْ) مِنْهُ (سَابِغَاتٍ) دُرُوعًا كَوَامِلَ يَجُرُّهَا لَابِسُهَا عَلَى الْأَرْضِ (وَقَدِّرْ فِي السَّرْدِ) أَيْ نَسْجِ الدُّرُوعِ قِيلَ لِصَانِعِهَا سَرَّادٌ أَيْ اجْعَلْهُ بِحَيْثُ تَتَنَاسَبُ حِلَقُهُ (وَاعْمَلُوا) أَيْ آلَ دَاوُدَ مَعَهُ (صَالِحًا إِنِّي بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ)

فاجازیکم به (و) سخرنا (لِسُلَیْمَانَ الرِّیحَ) وَقِرَاءَةُ الرَّفْعِ بِتَقْدِیرِ تَسْخِیرِ (غُدُوُّهَا) مَسِیرُهَا مِنَ الْغُدْوَةِ بِمَعْنَی الصَّبَاحِ إِلَی الزَّوَالِ (شَهْرٌ وَرَوَاحُهَا) مَسِیرُهَا مِنَ الزَّوَالِ إِلَی الْغُرُوبِ (شَهْرٌ) أَيْ مَسِیرَتُه (وَأَسَلْنَا) اذبنا (لَهُ عَیْنَ الْقِطْرِ) أَيِ النُّحَاسِ فَأُجْرِیَتْ ثَلَاثَةَ أَیَّامٍ بِلَیَالِیهِنَّ کَجَرْيِ الْمَاءِ وَعَمَلُ النَّاسِ إِلَی الْیَوْمِ مِمَّا أُعْطِيَ سُلَیْمَانُ (وَمِنَ الْجِنِّ مَنْ یَعْمَلُ بَیْنَ یَدَیْهِ بِإِذْنِ) بِأَمْرِ (رَبِّهِ وَمَنْ یَزِغْ) یَعْدِلْ (مِنْهُمْ عَنْ أَمْرِنَا) لَهُ بِطَاعَتِهِ (نُذِقْهُ مِنْ عَذَابِ السَّعِیرِ) النَّارِ فِي الْآخِرَةِ وَقِیلَ فِي الدنیا ان یَضْرِبَهُ مَلَكٌ بِسَوْطٍ مِنْهَا ضَرْبَةً تُحْرِقُهُ (یَعْمَلُونَ لَهُ مَا یَشَاءُ مِنْ مَحَارِیبَ) أَبْنِیَةٍ مُرْتَفِعَةٍ یُصْعَدُ إِلَیْهَا بِدَرَجٍ (وَتَمَاثِیلَ) جَمْعُ تِمْثَالٍ وَهُوَ كُلُّ شَيْءٍ مَثَّلْتَه بِشَيْءٍ أَيْ صُوَرٍ مِنْ نُحَاسٍ وَزُجَاجٍ وَرُخَامٍ وَلَمْ یَكُنْ اتِّخَاذُ الصُّوَرِ حَرَامًا فِي شَرِیعَتِه (وَجِفَانٍ) جَمْعُ جَفْنَةٍ (كَالْجَوَابِ) جَمْعُ جَابِیَةٍ وَهُوَ حَوْضٌ كَبِیرٌ یَجْتَمِعُ عَلَی الْجَفْنَةِ أَلْفُ رَجُلٍ یَأْكُلُونَ مِنْهَا (وَقُدُورٍ رَّاسِیَاتٍ) ثَابِتَاتٍ لَهَا قَوَائِمُ لَا تَتَحَرَّكُ عَنْ أَمَاكِنِهَا تتخذ من الجبال بالیمن یُصْعَدُ إِلَیْهَا بِالسَّلَالِمِ وَقُلْنَا (اعْمَلُوا) یَا (آلَ دَاوُدَ) بِطَاعَةِ اللهِ (شُكْرًا) لَهُ عَلَی مَا آتَاكُمْ (وَقَلِیلٌ مِنْ عِبَادِيَ الشَّكُورُ) الْعَامِلُ بِطَاعَتِي شكرا لنعمتي (فلما قضینا علیه) علی سلیمان (الموت) أَيْ مَاتَ وَمَكَثَ قَائِمًا عَلَی عَصَاهُ حَوْلًا مَیِّتًا وَالْجِنُّ تَعْمَلُ تِلْكَ الْأَعْمَالَ الشَّاقَّةَ عَلَی عَادَتِهَا لَا تَشْعُرُ بِمَوْتِهِ حَتَّی أَكَلَتِ الْأَرَضَةُ عَصَاهُ فَخَرَّ مَیِّتًا (مَا دَلَّهُمْ عَلَی مَوْتِهِ إِلَّا دَابَّةُ الْأَرْضِ) مَصْدَرُ أُرِضَتِ الْخَشَبَةُ بِالْبِنَاءِ لِلْمَفْعُولِ أَكَلَتْهَا الْأَرَضَةُ (تَأْكُلُ مِنْسَأَتَه) بِالْهَمْزِ وَتَرْكِه بِأَلِفٍ عَصَاهُ لِأَنَّهَا یُنْسَأُ یُطْرَدُ وَیُزْجَرُ بِهَا (فلما خر) میتا (تبینت الجن) انکشفت لَهُمْ (أَنْ) مُخَفَّفَةٌ أَيْ أَنَّهُمْ (لَوْ كَانُوا یَعْلَمُونَ الْغَیْبَ) وَمِنْهُ مَا غَابَ عَنْهُمْ مِنْ مَوْتِ سُلَیْمَانَ (مَا لَبِثُوا فِي الْعَذَابِ الْمُهِینِ) الْعَمَلِ الشَّاقِّ لَهُمْ لِظَنِّهِمْ حَیَاتَه خِلَافَ ظَنِّهِمْ عِلْمَ الْغَیْبِ وَعُلِمَ كَوْنُه سَنَةً بِحِسَابِ مَا أَكَلَتْهُ الْأَرَضَةُ مِنَ الْعَصَا بَعْدَ مَوْتِه یَوْمًا ولیلة مثلا.

**ترجمه:** او مونږ حضرت داؤد علیه السلام ته د خپل طرف نه لوئی فضیلت ورکړو یعنی نبوت او کتاب او مونږ اوویل ای غرونو او ای مرغو تاسو د داؤد علیه السلام سره تسبیح وایئ، طیر منصوب دې د جبال په محل باندې عطف کیدو وجې نه، او مونږ هغوی ته داؤد علیه السلام سره د تسبیح لوستلو حکم ورکړو، او مونږ د هغه دپاره اوسپنه نرمه کړه. چنانچه د حضرت داؤد علیه السلام په لاس کښې اوسپنه د اغږلې شوې اوړو په شان شوه او مونږ حکم ورکړو چه د اوسپنې نه اوږدې (مکمل) زغرې جوړې کړه چه اچونکې ئې په زمکه کښې راکاږي او په جوړولو کښې د یو شان والی خیال ساته زغرې جوړونکی ته ئراد وائی یعنی داسې زغرې جوړوه چه د هغې حلقې (کړئی) برابرې وی، اې آل داؤد تاسو د داؤد علیه السلام په معیت کښې نیك کارکوئی زه ستاسو د ټولو اعمالو ته گورم لهذا زه به تاسو ته د دې بدله درکړم او مونږ هوا د حضرت سلیمان علیه السلام د پاره مسخر کړه او په یو قرامت کښې ریح رفع سره دې د تسخر په تقدیر سره چه د هغې د سحر نه تر زوال پورې سفر د یوې میاشتې فاصله وه غدوها الغداة نه ماخوذ دې په معنی د سحر او (د غه شان) د هغې ماښام (یعنې) د زوال نه د نمر ډوبیدو پورې سفر د یوې میاشتې فاصله

وه اومونږ دَحضرت سلیمان عليه السلام دَپاره دَ تانبې چینه ویلې کړې جاري کړه نو دریو ورځو شپوپورې لکه دَاوبو جاري وه، حضرت سلیمان عليه السلام ته چه کوم (دَمعجزې په توګه) عطاکړې شوې وو ترننه پورې خلق هغه استعمالوي. پیریانوکښې څه داسې وو چه دَ الله تعالی په حکم سره ئې دَحضرت سلیمان عليه السلام لاندې کارکولو اوکوم چه په هغوی کښې (سلیمان عليه السلام) دَ اطاعت نه زمونږ دَ حکم نه مخ واړه وی مونږ به هغوی ته په آخرت کښې دَ اور عذاب ورڅکوو او وئیلی شوی دی چه هم په دنیاکښې (ورڅکوو) په داسې توګه چه فرښته به هغوی دَاور په کوړه سره یو ګذار وهی هغه اور به هغوی اوسوزوی سلیمان عليه السلام چه څه غوښتل (پیریانو) به دَهغه دَپاره هم هغه جوړول مثلاً محاریب یعنی لوئی لوئی اوچت عمارتونه کوم ته چه دَ پاؤړو په ذریعه اوختلې شی او مجسمې تماثیل دَتمثال جمع ده تمثال هرهغه څیز ته وائی کوم چه ته دَ یو په شان جوړکړې یعنی دَ تانبې اوسپنې یا سنګ مرمر شکلونه به ئې جوړول اودَ شکلونو بتانو جوړول دَهغوی په شریعت کښې حرام نه وو او دَحوض په شان لګن (به ئې جوړول) جِفَانٌ دَ جَفْنَةٌ جمع ده (په معنی د لګن لوئی پیالې) او جَوَابٌ دَ جَابِيَةٌ جمع ده لوئی حوض ته وئیلې شی. دَ جَفْنَةٌ نه په یووخت زر کسان خوراك کولې شی او په یوځائې باندې کلک پراته دیګونه به ئې (جوړول) دَ کوم چه به خپې وې چه دَخپل ځائې نه به خوزیدې نه شو، دا به په یمن کښې دَغرونونه جوړولې شو کوم ته چه به په پاؤړو باندې ختلې شو، مونږ اووئیل اې آل داوُد دَالله تعالی په اطاعت کښې څه هغه تاسو ته درکړی دی دَهغې په شکریه کښې (نیك) عمل کوئی زما په بندیګانوکښې شکر کونکی بندیګان کم وی یعنی زمادَ نعمت په عملی توګه باندې شکر کونکی (کم وی) بیاچه کله مونږ په سلیمان عليه السلام باندې دَمرګ حکم راولیږلو یعنی وفات شو او په خپله همساباندې تر یوکال پورې په حالت دَ مرې ولاړ وو او پیریان دَخپل عادت مطابق په خپل کارکښې لګیا وو (هغوی ته) دَحضرت سلیمان عليه السلام دَمرګ احساس هم اونه شوو تردې چه کله وینه دَهغه همسا اوخوړله نودَمړه کیدودَ وجې نه راپریوتلو، نودَهغه دَ مرګ خبر هغوی ته هیڅچا ورنه کړو سوا دَ وینه نه اَلارْض. اَرضَتِ الخَشَبَةُ نه مصدر مبنی للمفول دې (یعنی) هغه وینه اوخوړله کوم چه دَهغه همسا خوړله مِنْسَاَةٌ به همزه سره دې او بغیر د همزې الف سره هم دې (مِنْسَاتَه) اې عصَاهُ ځکه چه په دې سره شړل او لرې کول او درکه کوله. کیږی نو کله چه سلیمان عليه السلام مړ شو پریوتلو نو بیاچرته پیریانوته دَهغوی دَ (مرګ) پته اولګیدله که چرې جنات په غیبوباندې پوهیدلې نو دَ دغه ذلت په مشقت کښې به نه وو راګیر اودَهغوی دَ علم غیب دَدعوی نفی دَدې نه هم کیږی چه دَهغوی نه دَ حضرت سلیمان عليه السلام مرګ پټ پاتې شو یعنی حضرت سلیمان عليه السلام ژوندې ګنړلوسره دَخپل علم غیب د

دعوې باوجود دَمشقت په کارکښې اخته وو اودَ سخت کار دَیو کال د مودې علم دَهغوی دَهغه مقدار په حساب سره اوشو کوم مقدار چه وینه دَ سلیمان علیه السلام دَ مرګ نه پس مثلاً په یوه شپه ورځ کښې خوړلې وه.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** أَوِّبِيْ دا تَأوِيبٌ نه دَامر واحد مؤنث حاضر صیغه ده په معنی د تَرجِيعٌ بار بار کول، تکرارکول، أَوِّبِيْ اصل کښې اَوِّبِيْنَ وو دَ امردَوجې نه نون حذف شو وَلَقَدْ اٰتَيْنَا دَاوٗدَ مِنَّا فَضْلًا واؤ استینافیه دې او لام قسم د محذوف په جواب باندې داخل دې، تقدیرداد دې وعزتنا وجلالنا لقد اتینا منا، مِنَّا، اٰتَيْنَا سره متعلق دې یا دَ محذوف متعلق او حال دې تقدیری عبارت دادې، کائنا مِنَّا فَضْلًا، کائنا مِنَّا اصل کښې د فَضْلًا صفت دې دَمقدم کیدودَ وجې نه حال شو فَضْلًا مفعول ثانی دې او داؤد مفعول اول دې.

**قوله:** وَقُلْنَا يَا جِبَالُ، يَاجِبَالُ دقُلْنَا فعل محذوف مقوله ده او دَدې عطف په اٰتَيْنَا باندې دې د وَالطَّيْرَ عطف په محل د جبال باندې کیدودَوجې نه منصوب دې ځکه چه منادی مفرد محلاً منصوب وی یا مفعول معه کیدودَوجې نه منصوب دې د وَالطَّيْرُ لفظ په جبال باندې د عطف دَ وجې نه مرفوع هم لوستلې شوې دې.

**قوله:** دُرُوْعًا، دُرُوْعًا مقدرمنلوسره شارح رحمه الله اشاره اوکړه چه سابغات صفت دې او دُرُوْعًا دَدې موصوف محذوف دې.

**قوله:** سَرْدٌ زغرې ته وائی سَرَّادٌ زغرې جوړونکی ته وائی.

**قوله:** لِسُلَيْمَانَ مفسرعلام سَخَّرْنَا محذوف منلوسره اشاره اوکړه چه دَ جارمجرور متعلق سخرنا دې او رِيْحٌ مفعول به کیدو دَ وجې نه منصوب دې اودَ رفع په صورت کښې ریح مبتدأ مؤخر په حذف د مضاف سره او لِسُلَيْمَانَ خبرمقدم، تقدیر د عبارت دادې وَتسخير الريح کائن لسليمان مضاف حذف کولوسره مضاف الیه دَ هغې قائم مقام کړو.

**قوله:** وَمِنَ الْجِنِّ مَنْ يَّعْمَلُ، مِنَ الْجِنِّ د فعل مقدر متعلق دې، تقدیرعبارت دادې وسخرنا له من الجن او مَنْ يَّعْمَلُ به دَ فعل مقدر مفعول به وی او داهم جائزدی چه من الجن خبرمقدم وی او مَنْ يَّعْمَلُ مبتدأ مؤخر.

**قوله:** قُدُوْرٍ، دَ قِدْرٌ جمع ده په معنی د کټوئی راسيات ای ثابتات.

**قوله:** اِعْمَلُوْا جمله مستانفه ده آل داؤدَ منادی ده او حرف ندامحذوف ده او شُكْرًا مفعول له دې.

**قوله:** قَلِيْلٌ خبرمقدم دې اومن عبادی دَدې صفت دې او الشکور مبتدأ مؤخرده.

**قوله:** الارضَةُ وينه، ګونړې، (جمع) ارض.
**قوله:** مِنْسَاْتَهٗ په وزن دَ مفعَلَةٌ په يو قرامت كښې د الف سره دې، همسا، دَ شړلو آله.
**قوله:** دَابَّةُ الارضِ وينه، ګونړې.

**[ايات قوله: ۱۵ ـ ۲۱]**

{لَقَدْ كَانَ لِسَبَإٍ} بالصرْفِ وَعَدَمِهِ قَبِيلَةٌ سُمِّيَتْ بِاسم جد لهم من العرب {فِي مَسْكَنِهِمْ} بِالْيَمَنِ {آيَةٌ} دَالَّةٌ عَلَى قُدْرَةِ اللّٰهِ تَعَالَى {جَنَّتَانِ} بَدَل {عَنْ يَمِينٍ وَشِمَالٍ} عَنْ يَمِين واديهم وشماله وقيل لهم {كُلُوا مِنْ رِزْقِ رَبِّكُمْ وَاشْكُرُوا لَهُ} عَلَى مَا رَزَقَكُمْ مِنَ النِّعْمَةِ فِي أَرْض سَبَا {بَلْدَةٌ طَيِّبَةٌ} لَيْسَ فِيهَا سِبَاخ وَلَا بَعُوضَة وَلَا ذُبَابَة وَلَا بُرْغُوث وَلَا عَقْرَب وَلَا حَيَّة وَيَمُرّ الْغَرِيب فِيهَا وَفِي ثِيَابه قَمْل فَيَمُوت لِطِيبِ هَوَائِهَا {وَ} اللّٰه {رَبٌّ غَفُورٌ} {فَأَعْرَضُوا} عَنْ شُكْرِهِ وَكَفَرُوا {فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ سَيْلَ الْعَرِمِ} جَمْع عَرِمَة وَهُوَ مَا يُمْسِك الْمَاء مِنْ بِنَاء وَغَيْرِه إِلَى وَقْت حَاجَته أَيْ سَيْل وَادِيهِمْ الْمَمْسُوك بِمَا ذُكِرَ فَأَغْرَقَ جَنَّتَيْهِمْ وَأَمْوَالهمْ {وَبَدَّلْنَاهُمْ بِجَنَّتَيْهِمْ جَنَّتَيْنِ ذَوَاتَيْ} تَثْنِيَة ذَوَات مُفْرَد عَلَى الْأَصْل {أُكُلٍ خَمْطٍ} مُرّ بَشِع بِإِضَافَةِ أُكُل بِمَعْنَى مَأْكُول وَتَرْكهَا وَيُعْطَف عَلَيْهِ {وَأَثْلٍ وَشَيْءٍ مِنْ سِدْرٍ قَلِيلٍ} {ذَٰلِكَ} التَّبْدِيل {جَزَيْنَاهُمْ بِمَا كَفَرُوا} بِكُفْرِهِمْ {وَهَلْ نُجَازِي إِلَّا الْكَفُورَ} بِالْيَاءِ وَالنُّون مَعَ كَسْر الزَّاي وَنَصْب الْكَفُور أَيْ مَا يُنَاقَش إِلَّا هُوَ {وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمْ} بَيْن سَبَا وَهُمْ بِالْيَمَنِ {وَبَيْنَ الْقُرَى الَّتِي بَارَكْنَا فِيهَا} بِالْمَاءِ وَالشَّجَر وَهِيَ قُرَى الشَّام الَّتِي يَسِيرُونَ إِلَيْهَا لِلتِّجَارَةِ {قُرًى ظَاهِرَةً} مُتَوَاصِلَة مِنَ الْيَمَن إِلَى الشَّام {وَقَدَّرْنَا فِيهَا السَّيْرَ} بِحَيْثُ يَقِيلُونَ فِي وَاحِدَة وَيَبِيتُونَ فِي أُخْرَى إِلَى انْتِهَاء سَفَرهمْ وَلَا يَحْتَاجُونَ فِيهِ إِلَى حَمْل زَاد وَمَاء أَيْ وَقُلْنَا {سِيرُوا فِيهَا لَيَالِيَ وَأَيَّامًا آمِنِينَ} لَا تَخَافُونَ فِي لَيْل وَلَا فِي نَهَار {فَقَالُوا رَبَّنَا بَاعِدْ} وَفِي قِرَاءَة بَعِّدْ {بَيْنَ أَسْفَارِنَا} إِلَى الشَّام اجْعَلْهَا مَفَاوِز لِيَتَطَاوَلُوا عَلَى الْفُقَرَاء بِرُكُوبِ الرَّوَاحِل وَحَمْل الزَّاد وَالْمَاء فَبَطِرُوا النِّعْمَة {وَظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ} بِالْكُفْرِ {فَجَعَلْنَاهُمْ أَحَادِيثَ} لِمَنْ بَعْدهمْ فِي ذَلِكَ {وَمَزَّقْنَاهُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ} فَرَّقْنَاهُمْ فِي الْبِلَاد كُلّ التَّفْرِيق {إِنَّ فِي ذَٰلِكَ} الْمَذْكُور {لَآيَاتٍ} عِبَرًا {لِكُلِّ صَبَّارٍ} عَنِ الْمَعَاصِي {شَكُورٍ} عَلَى النِّعَم {وَلَقَدْ صَدَّقَ} بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيد {عَلَيْهِمْ} أَيِ الْكُفَّار مِنْهُمْ سَبَا {إِبْلِيسُ ظَنَّهُ} أَنَّهُمْ بِإِغْوَائِهِ يَتْبَعُونَهُ {فَاتَّبَعُوهُ} فَصَدَقَ بِالتَّخْفِيفِ فِي ظَنّه أَوْ صَدَّقَ بِالتَّشْدِيدِ ظَنّه أَيْ وَجَدَهُ صَادِقًا {إِلَّا} بِمَعْنَى لَكِنْ {فَرِيقًا مِنَ الْمُؤْمِنِينَ} لِلْبَيَانِ أَيْ هُمُ الْمُؤْمِنُونَ لَمْ يَتْبَعُوهُ {وَمَا كَانَ لَهُ عَلَيْهِمْ مِنْ سُلْطَانٍ} تَسْلِيط منا {إِلَّا لِنَعْلَمَ} عِلْم ظُهُور {مَنْ يُؤْمِنُ بِالْآخِرَةِ مِمَّنْ هُوَ مِنْهَا فِي شَكٍّ} فَنُجَازِي كُلًّا مِنْهُمَا {وَرَبُّكَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ حَفِيظٌ} رَقِيب

**ترجمه:** په تحقيق سره دَ قوم سبا دَپاره (سبا) منصرف او غير منصرف (دواړه دي) سبا دَ يو قبيلې نوم دې دَهغوى عربى مشر نيكه په نوم باندې كيخودې شوې دې. په يمن كښې دَهغوى په كلوكښې دَ الله تعالى دَقدرت نخښه وه دَهغوى ښى او ګس طرف ته دوه ارخيز باغونه وو يعنى دَهغوى دَ وادئ ښى ا وګس طرف ته جنتان دآيه نه بدل دې هغوى ته اوونيلې شو چه

دَخپل رب درکړې شوې رزق خورئی او په ملك سباکښې تاسو ته د درکړې شوی نعمتونو شکراداکرئی دانبکلې ښاردې یعنی په دې کښې نه زمکه خاوریژنه ده، نه مچان، نه ماشی، نه کتمل، نه لړمانان، اونه ماران شته، او(که چرې) په دې ښار به څوك داسې مسافر تیریدو چه دَهغه په کپړوکښې به سپږې وې نو هغه به دَ دغه ښار دَ پاکې هوادَ وجې نه مړې شوې او الله بخښونکې رب دې لیکن هغوی دَدې دَ شکر نه ډډه اوکړه او ناشکری ئې اوکړه نو مونږ په هغوی باندې دَ بند اوبه راولیږلې عَرِمٌ دَ عرِمَة جمع ده عَرِمَةٌ هغه عمارت وغیره ته وائی دَ کوم په ذریعه چه دَ ضرورت په وخت اوبه ذخیره کولې شی، یعنی دَهغوی دَ وادئ رابندې کړې شوې اوبه مو په هغوی باندې راپریخودې نوهغه اوبو دَ هغوی دوه اړخیزباغونه اودَهغوی مالونه غرق کړل او مونږ دَهغوی دَ دوه اړخیزو باغونو په عوض داسې دوه باغونه ورکړل دکوموميوې چه بې خونده تروې او بې کاره وې، ذواتَیْ دذوَات دَمفر دتثنیه ده په اصل کښې دَ اُكُلٍ په اضافت سره (اکل) په معنی دَماکول دې، او بغیر دَ اضافت او اُكُلٍ باندې اَثْلٍ عطف دې او په کثرت سره جهاړیدارې ونې او څه څنګلی بیرې مونږ هغوی ته دا سزا دَهغوی دَناشکرئی دَ وجې نه یعنی دَهغوی دَکفردَ وجې نه ورکړه او مونږ هم داسې سزا ناشکره خلقو ته ورکوو (یُجَازِی) کښې یاء او نون دواړه دی اودَ زاء په کسرې اودَ کُفُور په نصب سره یعنی هم دکافرانو مناقشه په (سختئی سره محاسبه) کولې شی او مونږ دَهغوی یعنی دَملك سبا په مینځ کښې حال دا چه هغوی هم په یمن کښې اوسیدل اودَ هغه کلو په مینځ کښې په کوم کښې چه مونږ داویو او ونو په ذریعه برکت ورکړې دې اوهغه دَ شام دَملك کلی دی دکوم طرف ته چه به هغوی دَ تجارت دَپاره تلل ډیرکلی آبادکړې وو چه دَیمن نه ترشام پورې نیزدې نیزدې (فاصله) باندې وو اومونږ دَ دغه کلو په مینځ کښې دَ سفریو خاص مسافت کیخودې وو په داسې طریقه چه هغوی به په یو کلی کښې قیلوله کوله په دویم کښې به ئې شپه تیروله اودَهغوی دَ سفرپوره کیدو پورې به هم دغه صورت وو، او په سفرکښې به دَ لارې خرچه او اوبه څان سره دَ اوړلو ضرورت نه پیښیدلو اومونږ اووئیل په کلوکښې دَ شپې اودَ ورځې په امن او امان سره سفرکوئې چنانچه دَهغوی نه دَ شپې څه ویره وه او نه دَ ورځې مگر هغوی اووئیل اې زمونږ پروردګاردَ شام دَ ملك پورې زمونږدَ سفرونو په مینځ کښې لریوالې راوله او په یو قراءت کښې بَاعِد دې یعنی دا کلی ارت هوار میدانونه کړه دې دَپاره چه هغوی دَ فقیرانو په مقابله کښې په سورلوسواره شی او څان سره دلارې خرچه او توشه او اوبو ساتلوباندې فخراوکړی نوهغوی دَالله تعالی په نعمت باندې تکبراوکړو او دکفرپه ذریعه هغوی په خپلو ځانونوباندې ظلم اوکړو، نو مونږ هغوی دَ روستو راتلونکو دَ پاره دَ ظلم په سبب سره افسانې اوقصې جوړکړل اومونږ هغوی

په پوره توګه سره ګډوډ کړل یعنی مونږ هغوی په مختلفو ښارونو کښې پوره خواره واره کړل،
بیشکه په دغه مذکوره قصه کښې دګناه نه منع کیدونکو دپاره او په نعمتونو باندې هر یو
شکرکونکی دپاره عبرت دې او واقعی د دغه خلقو یعنی کافرانو په باره کښې او په هغوی
کښې اهل سبا هم دی ابلیس خپل ګمان صحیح اومندلو چه هغوی دهغه په لمسون باندې
دهغه اتباع اوکړه صدّق کښې تخفیف اوتشدید دواړه دی چه داخلق دهغه تابع شو،
صَدَق په تخفیف سره دهغه ګمان ربنتیا شو اوصدّق په تشدید سره هغه خپل ګمان ربنتیا
ثابت کړو سوادَ مؤمنانودَ جماعت الا په معنی د لکن دې اومؤمنین د فریقًا بیان دې یعنی
هغه ډله چه دَ شیطان اتباع ئې اونه کړه هغه مؤمنان دی دَ شیطان په هغوی باندې هیڅ قابو نه
وه بلکه زمونږ دَ طرف نه په هغوی باندې مسلط کول صرف ددې وجې نه اوشو چه مونږ
هغه خلق څوک چه په آخرت باندې ایمان راوړی دهغه خلقو نه جدا کړو چه دَ په آخرت باره کښې په
شک کښې اخته دی، نو دَ دغه (دواړو نه) به مونږ هر یوته بدله ورکړو او ستا رب د هرشی
ساتونکې دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: اُکُلٍ میوه خَمْطٍ د پیلو ونه (دمسواک ونه)، هر تریو یاتریخ څیز.

قوله: بَشِمٌ بې خونده، تریوبې کاره.

قوله: اَثْلٍ جهاړیداره (ګوره خیلې والا) ونه (ددې جمع ده) اَثلاث، آثال، اُثول.

قوله: ذَوَاتَيْ تثنیه ذوات مفرد على الاصل ذوات دَ ذُو مؤنث دې دا په اصل کښې ذُوَيَةٌ وو په دې
کښې ة دَ تانیث علامت دې یاء متحرك ماقبل مفتوح دَ وجې نه الف شو ذواتٌ تری جوړ
شو، بیا واؤ تخفیفًا حذف کړې شو، ذاتٌ شو، اوس دَ واحدمؤنث دوه شکلونه شو یودَ
واؤ دحذف نه وړاندې، هغه ذواتٌ، او دویم دحذف واؤ نه پس اوهغه ذاتٌ دې. مفسرعلام
چه دا وئیلی دی چه ذَوَاتَيْ په اصل کښې دَ ذوات تثنیه ده ددې مطلب دا دې چه حذف دَ
واؤنه وړاندې حالت تثنیه ده که چرې حذف دَ واؤ نه دَ پس حالت تثنیه وي نو ذاتَيْ به وي.

قوله: بَشِمٌ په وزن د کیفَبې خونده، تریو، اُکُلِ خمطٍ دا اضافت د موصوف الى الصفت دَ قبیلې
نه دې اوترك د اضافت سره هم لوستلې شوې دې اى اُکُلٍ خمطٍ په دې صورت کښې به
اکل موصوف او خمط صفت وی.

قوله: یُعْطَفُ علیه اى على اُکُلٍ اُکُلٍ په قاف باندې جزم او ضمه دواړه قراءت سبعه دی.

قوله: ذلك جزَیْنٰهُمْ ذلكَ، دَجزینا مفعول ثانی دې کوم چه مقدم دې، اول مفعول هُمْ دې اى
جَزَیْنٰهُمْ ذلِكَ التبدیل.

قوله: بِکُفْرِهِمْ ای بسبب کفرهم.
قوله: وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمْ دا عطف د قصه علی القصه دقبیلې نه دې یعنی اول د اعطاء جنتین ذکر اوکړې شو اوبیا دَمذکوره بدلون ذکر اوکړې شو.
قوله: سِيرُوا فِيهَا ای فی هذه المسافة دا امر په معنی د خبر دې یعنی هغوی به په امن سره سفر کولو لَيَالِيَ او أَيَّامًا حال دی.
قوله: إِلَّا په معنی دلکن په دې کښې اشاره ده چه دا مستثنی منقطع ده ځکه چه مؤمنان دَ کافرانو دَ جنس نه نه دی.

**[ایاتونه: ۲۲ ـ ۳۰]**

{قُلْ} يَا مُحَمَّد لِكُفَّارِ مَكَّة {ادْعُوا الَّذِينَ زَعَمْتُمْ} أَيْ زَعَمْتُمُوهُمْ آلِهَة {مِنْ دُونِ اللَّهِ} أَيْ غَيْره لِيَنْفَعُوكُمْ بِزَعْمِكُمْ قَالَ تَعَالَى فِيهِمْ {لَا يَمْلِكُونَ مِثْقَالَ} وَزْن {ذَرَّةٍ} مِنْ خَيْر او شر {فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ وَمَا لَهُمْ فِيهِمَا مِنْ شِرْكٍ} شَرِكَة {وَمَا لَهُ} تَعَالَى {مِنْهُمْ} مِنَ الآلِهَة {مِنْ ظَهِيرٍ} مُعِين {وَلَا تَنْفَعُ الشَّفَاعَةُ عِنْدَهُ} تعالى ردا لقولهم إنَّ آلِهَتهمْ تَشْفَع عِنْده {إِلَّا لِمَنْ أَذِنَ} بفتح الهمزة وضمها {لَهُ} فيها {حَتَّى إِذَا فُزِّعَ} بِالْبِنَاءِ لِلْفَاعِلِ وَالْمَفْعُول {عَنْ قُلُوبِهِمْ} كُشِفَ عَنْهَا الْفَزَع بِالْإِذْنِ فِيهَا {قَالُوا} قَالَ بَعْضهمْ لِبَعْضٍ اسْتِبْشَارًا {مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ} فِيهَا {قَالُوا} الْقَوْل {الْحَقَّ} أَيْ قَدْ أَذِنَ فِيهَا {وَهُوَ الْعَلِيُّ} فَوْق خَلْقه بِالْقَهْرِ {الْكَبِيرُ} العظيم {قُلْ مَنْ يَرْزُقُكُمْ مِنَ السَّمَاوَاتِ} الْمَطَر {وَالْأَرْضِ} النَّبَات {قُلِ اللَّهُ} إنْ لَمْ يَقُولُوهُ لَا جَوَاب غَيْره {وَإِنَّا أَوْ إِيَّاكُمْ} أَيْ أَحَد الْفَرِيقَيْنِ {لَعَلَى هُدًى أَوْ فِي ضَلَالٍ مُبِينٍ} بَيِّن فِي الْإِبْهَام تَلَطُّف بِهِمْ دَاعٍ إِلَى الْإِيمَان إِذَا وُفِّقُوا لَهُ {قُلْ لَا تُسْأَلُونَ عَمَّا أَجْرَمْنَا} أَذْنَبْنَا {وَلَا نُسْأَلُ عَمَّا تَعْمَلُونَ} لِأَنَّا بَرِيئُونَ مِنْكُمْ {قُلْ يَجْمَعُ بَيْنَنَا رَبُّنَا} يَوْم الْقِيَامَة {ثُمَّ يَفْتَحُ} يَحْكُم {بَيْنَنَا بِالْحَقِّ} فَيُدْخِل الْمُحِقِّينَ الْجَنَّة وَالْمُبْطِلِينَ النَّار {وَهُوَ الْفَتَّاحُ} الْحَاكِم {الْعَلِيمُ} بِمَا يحكم به {قُلْ أَرُونِيَ} اعلموني {الَّذِينَ أَلْحَقْتُمْ بِهِ شُرَكَاءَ} فِي الْعِبَادَة {كَلَّا} رَدْع لَهُمْ عَنْ اعْتِقَاد شَرِيك لَهُ {بَلْ هُوَ اللَّهُ الْعَزِيزُ} الْغَالِب عَلَى أَمْره {الْحَكِيمُ} فِي تَدْبِيره لِخَلْقِهِ فَلَا يَكُون لَهُ شَرِيك فِي ملكه {وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا كَافَّةً} حَال مِنَ النَّاس قُدِّمَ لِلِاهْتِمَامِ {لِلنَّاسِ بَشِيرًا} مُبَشِّرًا لِلْمُؤْمِنِينَ بِالْجَنَّةِ {وَنَذِيرًا} مُنْذِرًا لِلْكَافِرِينَ بِالْعَذَابِ {وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ} أَيْ كُفَّار مَكَّة {لَا يَعْلَمُونَ} ذَلِكَ {وَيَقُولُونَ مَتَى هَذَا الْوَعْدُ} بِالْعَذَابِ {إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ} فيه {قُلْ لَكُمْ مِيعَادُ يَوْمٍ لَا تَسْتَأْخِرُونَ عَنْهُ سَاعَةً وَلَا تَسْتَقْدِمُونَ} عَلَيْهِ وَهُوَ يَوْم الْقِيَامَة.

ترجمه: اې محمد (ﷺ) دَمکې کافرانو ته اووایه چه دکوموځیزونو باره کښې چه ستاسو دَ الله تعالی نه سوا (دَ خدائې) ګمان دې یعنی څوک چه تاسو دَالله تعالی نه علاوه معبود ګنړئ هغوی ته آواز اوکړئ دې دَپاره چه هغوی ستاسو دَ ګمان مطابق تاسو ته نفع دراورسوی، الله تعالی دَهغوی باره کښې اوفرمائیل هغوی یوه ذره برابر دَخیر او شر اختیار نه لری، نه په

آسمانونو کښې اونه په زمکه کښې اونه دَهغه دواړو (په پیدا کولو) کښې د هغوی شرکت دې اونه دَالله تعالی دَدغه معبودانو نه څوک مددګار دې اودَالله تعالی په وړاندې دَ چا سفارش په کار نه راځي دائی دَهغوی دَدې قول دَ رد دَپاره اوفرمائیل چه دَهغوی معبودان به دَهغه په وړاندې دَهغوی سفارش کوی سوا د هغه چا نه نه دَ چادَپاره چه اجازت اوشی دَ همزې په فتحې او په ضمې سره ترڅو چه کله دَهغوی دَ زړونونه ویره لرې کولې شی دَمعروف اومجهول په صیغې سره، یعنی کله چه اجازت ورکړې شی اودَهغوی دَ زړونو نه ویره لرې کړې شی نو په خپل مینځ کښې به دَ بشارت دَ طلب په توګه پوښتنه اوکړی چه ستاسو پروردګار دَ سفارش باره کښې څه اوفرمائیل؟ جواب به ورکړی چه حق خبره ئې اوفرمائیله یعنی دَ شفاعت اجازت ئې ورکړو هغه دَلوئی شان والا یعنی په خپل مخلوق دَ قهرپه ذریعه غالب دې دَ ټولونه لوئی دې. تاسو پوښتنه اوکړئی چه تاسو ته دَآسمانونو نه اوبه راورولو سره اودَ زمکې نه بوټی راټولولو سره رزق څوک دررسوی؟ که چرې هغوی جواب درنه کړی نو ته (پخپله) جواب ورکړه چه الله تعالی (روزی ورکوی) (ځکه چه) دَدې نه علاوه بل څه جواب هغو شته نه (واؤرئی) مونږیا تاسو یعنی دَ دواړو فریقونه یو یا خویقینًا په هدایت باندې دی یا په ښکاره ګمراهئی کښې دی، مبهم ساتلو کښې هغوی سره نرمی ده چه دَ ایمان طرف ته داعی (سبب) دې کله چه هغوی ته دَ ایمان توفیق ورکړې شی تاسو ورته اووایئی زمونږ دَ کړې شوې جرم ګناه په بابت به تاسو نه هیڅ سوال نه شی کولې او نه به زمونږ نه ستاسو د عمل باره کښې تپوس کولې شی ځکه چه مونږ تاسو نه بری یو، تاسو دوی ته اووائئ چه مونږ ټول به زمونږرب دَ قیامت په ورځ راجمع کوی بیا به زمونږ په مینځ کښې په حق سره فیصله کوی حق پرست به جنت ته او باطل پرست به دوزخ ته داخل کړی هغه ډیر لوئی فیصله کونکې دې او کومه فیصله چه کوی هغه ښه پېژندونکې دې (تاسو) ورته اووایئی ښه ده ماته هم لږ اوښایئې چه څوک چه تاسو دَ الله تعالی سره په عبادت کښې شریک ګرځوئی د هغه سره یوځای کړی دی دی داسې هیڅ کله نه ده، دا کافرانو ته دَهغوی د شرك په عقیدې توبیخ (زورنه) ده بلکه هم هغه دې الله تعالی په خپل امر باندې غالب اودَ خپل مخلوق په تدبیر کښې حکمت والا دې لهذا په دې ملك کښې دَهغه څوك شریك کیدې نه شی مونږ لره ټولوخلقوته یعنی مؤمنانوته دَ جنت زیرې اوروونکې اوکافرانو لره دَ عذاب نه ویرونکې جوړکړې لیږلې یئې کافة دللناس نه حال دې دَدې دَاهتمام په وجه مقدم کړې شوې دې مګر اکثر خلق یعنی دَمکې کافران دَدې علم نه لری او پوښتنه کوی چه دادَ عذاب وعده کله ده؟ که چرې تاسو په دې (وعده) کښې رښتونی ئې نو (اوښایئې) تاسو جواب ورکړئ چه ستاسو دَپاره دَ وعدې ورځ مقرره ده دَهغې نه تاسو نه یو ساعت شاته کیدې شئی او نه وړاندې کیدې شئی اوهم هغه دَقیامت ورځ ده.

............

# د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: اَلَّذِیْنَ زَعَمْتُمْ مِنْ دُوْنِ اللهِ ای زَعَمْتُمُوْهُمْ اٰلِهَةً دَدي عبارت په اضافې سره دَ شارح رحمه الله مقصد دا خودل دی چه دزَعَمْتُمْ دواړه مفعول لـه دَ موصول باصـلـه دَ اوړدیـدودَ وجې نـه محذوف دی اول مفعول حذف کړې شو او دویم مفعول یعنی اٰلِهَةً ئې د صفت یعنی مِنْ دُوْنِ اللهِ قائم مقام کیدو دَ وجې نه حذف کړو مفعول اول هُمْ او مفعول ثانی اٰلِهَةً دي.

قوله: لِيَنْفَعُوْكُمْ: د اُدْعُوْا متعلق دې ای اُدْعُوْا لِيَكْشِفُوْا عَنْكُمُ الضُّرَّ.

قوله: وَمَا لَهُمْ فِيْهِمَا مِنْ شِرْكٍ ما نافیه ده او لَهُمْ خبر مقدم دې مـن زائده دې شِرْكٍ مبـتـدأ مؤخر لفظًا مجرور او محلاً مرفوع دې.

قوله: فُزِّعَ مبنی للمفعول یعنی دَهغوی دَ زړه ویره لرې کړې شوه، تـضـعیف دَ سـلب دَپـاره دې لکه وئیلی شی قَرَّدْتُ الْبَعِيْرَ ای اَزَلْتُ قُرَادَهُ مادَ اوبن کونې لرې کړو.

قوله: مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ فِيْهَا ای فی الشفاعة.

قوله: القول الحق په دې کښې اشاره دې طرف ته ده چه الحقَّ د مصدرِ محذوف صفت دې.

قوله: قل الله، اللهُ مبتدأ يَرْزُقُنَا دَدې خبر محذوف.

قوله: اَرُوْنِيْ، اَعْلِمُوْنِي په دې کښې دې خبرې طرف تـه اشـاره ده چـه دَ رؤیت نـه مـراد رؤیت قلبیه دې او متعدی بدو مفعول دې. کله چه دَدې پـه شـروع کـښـې همزه راوړلې شوه نو متعدی په دریو مفعولوشو اول مفعول اروني کښې ي ده دویم اسم موصول او دریم شُرَكَاء دَ صلې ضمیرِ عائد محذوف دی ای اَلْحَقْتُمُوْهُمْ.

قوله: كَـافَّةً ای جَمِيْعًا دَاَرْسَلْنٰكَ دکاف نه حال دې ای اَرْسَلْنٰكَ جامعًا للناس فی الانذار والابلاغ د مبالغې دَپاره ده لکه چه علامة کښې ة دَمبالغه دَپـاره ده او کـافة دللنّاس نـه حـال مقدم هم کیدې شی ای للناس کافة دادَهغه چا په نیزدی چه پـه جار مجرور باندې تقدیم د حال جائز گنړی دارنګ دَ مصدرِ محذوف صفت هم کیدې شی. ای اِرْسَالَةً كَافَّةً للناس.

قوله: بَشِيْرًا وَّنَذِيْرًا دا دواړه دَ ارسلناكَ دکاف نه حال دی.

قوله: قل لَكُمْ مِيْعَادُ يَوْمٍ کښې لَكُمْ خبر مقدم دې او مِيْعَادُ يَوْمٍ مبتدأ مؤخر.

**[اياتونه: ۳۱ - ۳۶]**

---

(وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا) مِن اهل مكة (لَنْ نُّؤْمِنَ بِهٰذَا الْقُرْاٰنِ وَلَا بِالَّذِيْ بَيْنَ يَدَيْهِ) ای تقدمه كالتوراة والانجيل الدالين على البعث لانكارهم له قال تعالى فيهم (وَلَوْ تَرٰى) يا محمد (اِذِ الظّٰلِمُوْنَ) الكافرون (مَوْقُوْفُوْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ يَرْجِعُ بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضِ الْقَوْلَ يَقُوْلُ الَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْا) الاتباع (لِلَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا) الرؤساء (لَوْلَا

أَنَحْنُ صَدَدْنَاكُمْ عَنِ الإِيمَانِ {لَكُنَّا مُؤْمِنِينَ} بِالنَّبِي {قَالَ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا لِلَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا أَنَحْنُ صَدَدْنَاكُمْ عَنِ الْهُدَى بَعْدَ إِذْ جَاءَكُمْ} لَا {بَلْ كُنْتُمْ مُجْرِمِينَ} فِي أَنْفُسِكُمْ {وَقَالَ الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا لِلَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا بَلْ مَكْرُ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ} أَيْ مَكْرٌ فِيهِمَا مِنْكُمْ بِنَا {إِذْ تَأْمُرُونَنَا أَنْ نَكْفُرَ بِاللَّهِ وَنَجْعَلَ لَهُ أَنْدَادًا} شُرَكَاءَ {وَأَسَرُّوا} أَيِ الْفَرِيقَانِ {النَّدَامَةَ} عَلَى تَرْكِ الإِيمَانِ بِهِ {لَمَّا رَأَوُا الْعَذَابَ} أَيْ أَخْفَاهَا كُلٌّ عَنْ رَفِيقِهِ مَخَافَةَ التَّعْيِيرِ {وَجَعَلْنَا الْأَغْلَالَ فِي أَعْنَاقِ الَّذِينَ كَفَرُوا} فِي النَّارِ {هَلْ} مَا {يُجْزَوْنَ إِلَّا} جَزَاءَ {مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ} فِي الدُّنْيَا {وَمَا أَرْسَلْنَا فِي قَرْيَةٍ مِنْ نَذِيرٍ إِلَّا قَالَ مُتْرَفُوهَا} رُؤَسَاؤُهَا الْمُتَنَعِّمُونَ {إِنَّا بِمَا أُرْسِلْتُمْ بِهِ كَافِرُونَ} {وَقَالُوا نَحْنُ أَكْثَرُ أَمْوَالًا وَأَوْلَادًا} مِمَّنْ آمَنَ {وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِينَ} {قُلْ إِنَّ رَبِّي يَبْسُطُ الرِّزْقَ} يُوَسِّعُهُ {لِمَنْ يَشَاءُ} امْتِحَانًا {وَيَقْدِرُ} يُضَيِّقُهُ لِمَنْ يَشَاءُ ابْتِلَاءً {وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ} أَيْ كُفَّارَ مَكَّةَ {لَا يَعْلَمُونَ} ذَلِكَ

**ترجمه:** او دَ مکې کافران وائي چه مونږ به هيڅ کله دا قرآن او نه منو او نه هغه کتابونه کوم چه د دې نه وړاندې دی لکه تورات او انجيل چه دَ مرګ نه پس په ژوندی کيدو باندې دلالت کوی، ددوی دَ بعث بعد الموت نه دَ منکر کيدو دَ وجې نه، الله تعالى ددوی باره کښې اوفرمائيل او اې محمد ﷺ که چرې تاسو دا ظالمان کافران هغه وخت اوګورئی کله چه دوی دَ خپل رب په وړاندې اودريږی او (خپل مينځ) کښې به په يو بل باندې الزام لګوی دَ کمزورې درجې خلق يعنی متبعين به غټو خلقو ته يعنی سردارانو ته وائي که چرې تاسو مونږ لره دَ ايمان نه بند کړې نه وې نو مونږ به نبی منونکې وې دا غټان خلق به کمزورو خلقو ته جواب ورکړی چه آيا تاسو ته دَ هدايت راتلو نه پس مونږ تاسو دَ هغې نه منع کړې وئ؟ نه، بلکه تاسو خو پخپله قصوروار وئ (ددې په جواب کښې به) کمزوری خلق متکبرانو خلقو ته اووائي بلکه مونږ سره ستاسو دَ شپې ورځې تدبيرونو منع کړې وو کوم وخت چه تاسو وئيل چه دَ الله تعالى نه انکار اوکړئی او هغه سره شريک اوګرځوئی دواړه فريقه چه کله عذاب اوګوری نو دَ ايمان په ترک کولو باندې به خپيمانتيا پټوی يعنی هر فريق به دَ خپل مخالف فريق نه دَ شرم دَ ويرې خپيمانتيا پټوی او په جهنم کښې به مونږ دَ کافرانو په غاړه کښې طوق واچوو هغوی ته به صرف په دنيا کښې دَ کړې شوې عملونو بدله ورکولې شی او مونږ خو چه په کوم کلی کښې کوم يو هم خبر ورکونکې (رسول) ليږلې دې دَ هغه ځائي خوشحال خلقو يعنی خوشحاله سردارانو هم دغه وئيلی دی چه کوم څيز درکولو سره چه تاسو راليږلې شوی يئې مونږ دَ هغې نه منکرين يوو، او وئ وئيل چه مونږ په مال، اولاد کښې دَ ايمان والو نه ډير يو، داسې نه شی کيدې چه مونږ ته عذاب راکړې شی، تاسو ورته اووايئی زما رب چا لره چه اوغواړی دَ ازميښت په توګه ورله رزق فراخه کوی او دَ امتحان په توګه دَ چا دَ پاره چه غواړی رزق تنګوی ليکن اکثر خلق يعنی دَ مکې کافران دا خبره نه پيژنی.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** وَلَوْ تَرَى، دَ لَوْ جواب او دَ تَرَى مفعول محذوف دې تقديری عبارت دادې وَلَوْ تَرَى

حَالَ الظالمين وَقتَ وقوفهم عند ربّهم لرأيت أمرًا فظيعًا حالَ مفعول دي او لرأيتَ العجواب لو دي.

قوله: إذالظالمون دَ ترى ظرف دي.

قوله: يَرْجِعُ بَعْضُهُمْ دا دَموقوفون دَ ضميرنه حال دي.

قوله: يقول الذين استضعفوا، دَيَرْجِعُ تفسيردي.

قوله: لَوْلَا مبتدأ ده، دَدې خبرمحذوف دي، شارح ﷫ دَخپل قول صَدَدْتُمُوْنَا سره دَ خبرِ محذوف طرف ته اشاره اوکړه، او لَكُنَّا مُؤْمِنِيْنَ،دَ لَوْلَاجواب دي.

قوله: أَنَحْنُ صَدَدْنَاكُمْ نه پس شارح ﷫ لاَ مقدرمنلوسره اشاره اوکړه چه أَنَحْنُ کښې همزه د استفهام انکاري دَپاره ده.

قوله: بَلْ مكرُ الليل، مكرٌ د فعل محذوف فاعل دي تقديري عبارت دادې بَلْ صَدَّنَامكرُكُمْ بِنَا فِي الليل والنَّهَارِ، مكرُكُمْ کښې كُمْ مضاف اليه حذف کړې شو او الساعًا وظرف دَ مضاف اليه په ځائې کړو.

قوله: إِذْتَأْمُرُوْنَنَا، دا دَ مكرُ ظرف دي اى مكرُكُمْ وقتَ امرِكُمْ لَنَا.

قوله: أَسَرُّوا جمله حاليه يا مستانفه ده.

قوله: إِلَّاقَالَ مُتْرَفُوْهَا دا دَ قرية نه حال دي قرية اګرچه نکره ده مګر په سياق د نفي کښې واقع ده دَ دې وجې نه د ذوالحال دَ جوړيدو ګنجائش پيدا شو.

قوله: مُتْرَفوها په اصل کښې مُتْرفونَ بِهَا نون د اضافت دَ وجې نه پريوتلو دا د إِتْرَافٌ نه اسم مفعول جمع مذکردي، مالدار، خوشحال خلق.

قوله: بِمَا أُرْسِلْتُمْ بِه، د كَافِرُوْنَ سره متعلق دي اهتمام او رعايتَ دَ فواصل دَ وجې نه مقدم کړو، تقديري عبارت دادې اى كَافِرُوْنَ بِمَا أُرْسِلْتُمْ بِه.

**[ايات قوله: ٣٧ ـ ٤٥]**

(وَمَا أَمْوَالُكُمْ وَلَا أَوْلَادُكُمْ بِالَّتِي تُقَرِّبُكُمْ عِنْدَنَا زُلْفَى) قُرْبَى اَيْ تَقْرِيبًا (إِلَّا) لَكِنْ (مَنْ آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَأُولَئِكَ لَهُمْ جَزَاءُ الضِّعْفِ بِمَا عَمِلُوا) اَيْ جَزاء العَمَل الحَسَنَة مَثَلًا بِعَشرٍ فَاكثر (وَهُمْ فِي الْغُرُفَاتِ) مِن الجَنَّة (آمنون) من الموت وغيره وفي قراءة الغرفة وهي بمعنى الجمع (والذين يسعون في آياتنا) القرآن بالإبطال (معجزين) لنا مقدرين عجزنا وانهم يفوتونا (أولئك في العذاب محضرون) (قُلْ إِنَّ رَبِّي يَبْسُطُ الرِّزْقَ) يُوسِّعُهُ (لِمَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ) امتِحَانًا (وَيَقْدِرُ) يُضَيِّقُهُ (لَهُ) بَعْدَ البَسْط أَوْ لِمَنْ يَشَاء ابتِلَاء (وَمَا أَنْفَقْتُمْ مِنْ شَيْءٍ) فِي الخَيْرِ (فَهُوَ يُخْلِفُهُ وَهُوَ خَيْرُ الرَّازِقِينَ) يُقَال كُلُّ إِنسَان يَرزُقُ عَائِلَته اي من رزق الله (و) اذكر (يَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا) اَيْ المُشرِكِين (ثُمَّ نَقُولُ لِلْمَلَائِكَةِ أَهَؤُلَاءِ إِيَّاكُمْ) بِتَحقِيق الهَمزَتَيْن وَإِبْدَال الأُولَى يَاء وَاِسقاطها (كَانُوا يَعْبُدُونَ) (قَالُوا سُبْحَانَكَ) تَنزِيهًا لك عَنِ الشَّرِيك (أَنْتَ وَلِيُّنَا مِنْ دُونِهِمْ) اَيْ لَا مُوَالَاة

بيننا وبينهم من جهتنا (بل) للانتقال (كانوا يعبدون الجن) الشياطين اي يطيعونهم في عبادتهم ايانا (اكثرهم بهم مؤمنون) مصدقون فيما يقولون لهم قال تعالى (فاليوم لا يملك بعضكم لبعض) اي بعض المعبودين لبعض العابدين (نفعا) شفاعة (ولا ضرا) تعذيبا (ونقول للذين ظلموا) كفروا (ذوقوا عذاب النار التي كنتم بها تكذبون) (واذا تتلى عليهم آياتنا) القرآن (بينات) واضحات بلسان نبينا محمد صلى الله عليه وسلم (قالوا ما هذا الا رجل يريد ان يصدكم عما كان يعبد آباؤكم) من الاصنام (وقالوا ما هذا) اي القرآن (الا افك) كذب (مفترى) على الله (وقال الذين كفروا للحق) القرآن (لما جاءهم ان) ما (هذا الا سحر مبين) بين قال تعالى (وما آتيناهم من كتب يدرسونها وما ارسلنا اليهم قبلك من نذير) فمن اين كذبوك (وكذب الذين من قبلهم وما بلغوا) اي هؤلاء (معشار ما آتيناهم) من القوة وطول العمر وكثرة المال (فكذبوا رسلي) اليهم (فكيف كان نكير) انكاري عليهم بالعقوبة والاهلاك اي هو واقع موقعه

ترجمه:او ستاسو مالونه او اولاد داسې څیزونه نه دي چې تاسو لره زمونږه نیزدې خلق جوړ کړي، البته چا چې ایمان راوړو او نیک عملونه ئې اوکړل یقینا د هغوی د پاره مونږ سره دوچنده ثواب دې، مثلا د نیک اعمالو بدله لس چنده او ددې نه هم زیاته او هغوی به د جنت په بالاخانو کښې د مرګ وغیره نه بې ویرې وی او په یو قراءت کښې الغرفة دې، او دا په معنی د جمع کښې دې، او هغه خلق چې زمونږ آیتونه دقرآن د باطلولو په کوشش کښې لګیا دی مونږ عاجزه کنړلو سره د دې چې مونږ نه به بچ شو دوی دغه وجه ده چې دوی به په عذاب کښې نیولې شوې حاضر شی، ته ورته اووایه چې ځما رب په خپلو بندګانو کښې چاته چې اوغواړی روزی امتحانا پراخه کوی او د هغه یا بل چاته چې خوښه شی د پرخوالی نه پس امتحانا روزی تنګوی او تاسو چې څه هم په نیک کارونو کښې خرچ کوئی الله به ددې بدله درکوی او هغه بهترین روزی رسونکې دې، وئیلې شی هر انسان خپل اهل او اعیال ته روزی ورکړی د الله د رزق نه او هغه ورځ د ذکر کولو قابله ده په کومه ورځ چې الله به دې ټولو مشرکانو لره جمع کړی بیا به فرشتو ته ارشاد اوکړی چې آیا دې خلقو ستاسو عبادت کولو؟ د دواړو همزو په تحقیق سره او د اولې همزې لره په یاء بدلولو سره او ددې غورزولو سره هغوی به عرض اوکړی ته د شرک نه پاک ئې زمونږ ولی خو هم ته ئې نه چې هغوی یعنی زمونږ او ددوی په مینځ کښې ئې هیڅ تعلق نشته، بلکې دې خلقو خو د شیطانانو عبادت کولو یعنی زمونږ په بندګی کولو کښې د هغوی تابعداری کوله په دوی کښې د ډیرو په دوی باندې ایمان وو، یعنی هغوی به چې څه دوی ته وئیل د هغې به ئې تصدیق کولو، الله تعالی اوفرمائیل څوک چه چا ته یعنی یو معبود یو عابد ته نه د سفارش د فائدې رسولو اختیار لری او نه د عذاب د ورکولو، او مونږ به ظالمانو کافرانو ته اووایو چې د هغه عذاب مزه اوڅکئ کوم ته چې تاسو دروغ وئیل او چې کله ددوی په مخکښې د قرآن آیتونه کوم چې صفا صفا دی زمونږ د نبی محمد ﷺ په ژبه باندې

اورولې شي نو واثي چې دا داسې سړې دې چې تاسو لره ستاسو د پلار نيكه د معبودانو يعنې بتانو نه منع كول غواړي او وائي چې دا قرآن صرف په الله باندې لګولې شوې بهتان دې، او كافران ددې حق په باره كښې يعنې د قرآن چې كله د دوی طرف ته راغلو وائي چې دا صرف يو ښكاره جادو دې، الله تعالى اوفرمائيل نه خو مونږ دوی ته كتابونه وركړي دی كوم چې دوی لولی او نه مونږ ددوی خوا له ستا نه مخكښې څوک خبر وركونكې راليږلي دې، نو بيا دوی څنګه ستا تكذيب كوی او ددوی نه مخكښې خلقو هم تكذيب كړې وو او هغوی ته چې څه مونږ وركړي وو نو دوی د هغې لسمې حصې ته هم رسيدلي نه دی، يعنې په قوت، اوږد عمر او ډير مال كښې. دې خلقو دوی ته راليږلې شوې پيغمبران دروغژن اوګڼل، بيا اوګوره په دوی باندې د سزا او د هلاكت په اعتبار سره څما عذاب څنګه وو؟ يعنې هغه په صحيح موقع (په حقه) پرې راغلو..

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** وما اموالكم ولا اولادكم بالتي تقربكم عندنا زلفى: (وما اموالكم) جمله مستانفه ده د مخكښې تحقيق او تقرير د پاره راوړی شوې ده (ما) مشابه بليس دې اموالكم د خپل معطوف سره ددې اسم دې، بالتي موصول د صلې سره د اموال واولاد صفت دې، اګرچې په موصوف صفت كښې په ښكاره مطابقت نشته خو جمع تكسير كه هغه د ذوی العقول د پاره وی او كه د غير ذوی العقول د پاره خو د واحد مؤنث په حكم كښې وی، په دې اعتبار سره په موصوف صفت كښې مطابقت شته، او دا هم كيدې شي چې بالتي د موصوف محذوف صفت وی، تقديری عبارت دادې بالاحوال التي تقربكم، مفسر علام د زلفى تفسير په قربى كولو كښې اشاره اوكړه چې زلفى د تقربكم مفعول مطلق من غير لفظه دې، اى تقربكم تقريبا

**قوله:** اولئك: اسم اشاره مبتدأ ده او مشاراليه په (من آمن) كښې (من) دې، او اولئك جمع د (من) د معنى په اعتبار سره دې، دواړه فعلونه ئې د من د لفظ د رعايت د وجې مفرد راوړې دی.

**قوله:** لهم: خبر مقدم او جزاء الضعف مبتدأ مؤخر، جمله اسميه د (اولئك) مبتدأ خبر دې، او جزاء الضعف د اضافت موصوف الى الصفت د قبيل نه دې، اى لهم الجزاء المضاعف، يو قراءت كښې الغرفة دې، الف لام د جنس په وجه په معنى كښې جمع دې.

**قوله:** مقدرين عجزنا اي معتقدين انهم يعجزون فلا نقدر عليهم:

**قوله:** قل ان ربي يبسط الرزق لمن يشاء: الخ ددې آيت په باره كښې بعضې حضراتو وئيلي دی چې دا آيت مكرر دې، او د ماقبل د تاكيد د پاره دې، او بعضې حضراتو وئيلي دی چې دا آيت د اول نه غير دې، اول د اشخاص متعدده د پاره دې، يعنې د چا

روزي تنګوي او د چا روزي پراخه کوي، او دا آيت د يو کس په باره کښې دې يعنې د يو کس روزي په يو وخت کښې پراخوي او هم ددغه سړي په بل وخت کښې تنګوي.

**قوله: فهو يخلفه:** يعنې الله تعالى په خپله لاره کښې د خرچ کړې شوي څيز بدله او عوض ورکوي.

**قوله: يقال كل انسان يرزق عائلته:** دا د يو سوال مقدر جواب دې.

**سوال:** سوال دادې چې رازقين ئې جمع راوړې ده ددې نه معلوميږي چې رزاقين ډير دي حالانکه رزاق صرف الله دې؟

**جواب:** حقيقي رازق خو الله تعالى دې چونکه بنده په ښکاره د الله د ورکړې شوي رزق نه خپل خاندان، نوکرانو وغيره ته رزق ورکوي، نو مجازا بنده ته هم رازق وئيلې شي، ددې وجې نه بنده ته رازق وئيلې شي خو رزاق نشي وئيلې، ځکه چې دا د اسماء حسنىٰ مختصه نه دې.

**قوله: اكثرهم بهم مؤمنون:** اكثرهم مبتدأ مومنون ددې خبر، بهم د مومنون متعلق، او د اکثر نه مراد کل دې.

**قوله: تقول:** د دې عطف په لا يملک باندې دې.

**قوله: وقال الذين كفروا:** دلته ضمير راوړل هم کافي کيدل ځکه چې د کافرانو مشرکانو ذکر مخکښې تير شوې دې يعنې د قال الذين كفروا په ځائې به ئې وقالوا وئيلې وو، خو چونکه په دې کښې د دوی د کفر صفت د ښکاره کولو په وجه خرابوالې او قباحت زيات دې ځکه ئې د اسم ضمير په ځائې اسم ظاهر راوړو.

**قوله: المعشار:** لسمه حصه، بعضې حضراتو وئيلې دي چې د لسمې لسمه، يعنې سلمه حصه، مقصد تحديد نه دې، بلکه د قلت بيان دې، که د فكذبوا رسلي عطف په كذب الذين من قبلهم باندې وي نو بلغوا معشار ما آتيناهم به د معطوف او معطوف اليه په مينځ کښې جمله معترضه وي.

**[ایاتونه: ۴۶ ـ ۵۴]**

﴿قُلْ إِنَّمَآ أَعِظُكُم بِوَاحِدَةٍ﴾ هِيَ ﴿أَن تَقُومُوا لِلَّهِ﴾ أَيْ لِأَجْلِهِ ﴿مَثْنَىٰ﴾ أَيْ اثْنَيْنِ اثْنَيْنِ ﴿وَفُرَادَىٰ﴾ وَاحِدًا وَاحِدًا ﴿ثُمَّ تَتَفَكَّرُوا﴾ فَتَعْلَمُوا ﴿مَا بِصَاحِبِكُم﴾ مُحَمَّدٍ ﴿مِّن جِنَّةٍ﴾ جُنُونٍ ﴿إِنْ﴾ مَا ﴿هُوَ إِلَّا نَذِيرٌ لَّكُم بَيْنَ يَدَيْ﴾ أَيْ قَبْلَ ﴿عَذَابٍ شَدِيدٍ﴾ فِي الْآخِرَةِ إِنْ عَصَيْتُمُوهُ ﴿قُلْ﴾ لَهُمْ ﴿مَا سَأَلْتُكُم﴾ عَلَى الْإِنْذَارِ وَالتَّبْلِيغِ ﴿مِّنْ أَجْرٍ فَهُوَ لَكُمْ﴾ أَيْ لَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا ﴿إِنْ أَجْرِيَ﴾ مَا ثَوَابِي ﴿إِلَّا عَلَى اللَّهِ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ﴾ مُطَّلِعٌ يَعْلَمُ صِدْقِي ﴿قُلْ إِنَّ رَبِّي يَقْذِفُ بِالْحَقِّ﴾ يُلْقِيهِ إِلَى أَنْبِيَائِهِ ﴿عَلَّامُ الْغُيُوبِ﴾ مَا غَابَ عَنْ خَلْقِهِ فِي السَّمَاوَاتِ

وَالأَرْض {قُلْ جَاءَ الْحَقُّ} الإِسْلَام {وَمَا يُبْدِئُ الْبَاطِلُ} الْكُفْر {وَمَا يُعِيدُ} أَيْ لَمْ يَبْقَ لَهُ أَثَر {قُلْ إِنْ ضَلَلْتُ} عَنِ الْحَقِّ {فَإِنَّمَا أَضِلُّ عَلَى نَفْسِي} أَيْ إِثْم ضَلَالِي عَلَيْهَا {وَإِنِ اهْتَدَيْتُ فَبِمَا يُوحِي إِلَيَّ رَبِّي} مِنَ الْقُرْآن وَالْحِكْمَة {إِنَّهُ سَمِيعٌ} لِلدُّعَاء {قَرِيبٌ} {وَلَوْ تَرَى} يَا مُحَمَّد {إِذْ فَزِعُوا} عِنْدَ الْبَعْث لَرَأَيْتَ أَمْرًا عَظِيمًا {فَلَا فَوْتَ} لَهُمْ مِنَّا أَيْ لَا يَفُوتُونَنَا {وَأُخِذُوا مِنْ مَكَانٍ قَرِيبٍ} أَيْ الْقُبُور {وَقَالُوا آمَنَّا بِهِ} بِمُحَمَّدٍ أَوْ الْقُرْآن {وَأَنَّى لَهُمُ التَّنَاوُشُ} بِوَاوٍ وَبِالْهَمْزَةِ بَدَلَهَا أَيْ تَنَاوُل الإِيمَان {مِنْ مَكَانٍ بَعِيدٍ} عَنْ مَحَلّه إِذْ هُمْ فِي الْآخِرَة وَمَحَلّه الدُّنْيَا {وَقَدْ كَفَرُوا بِهِ مِنْ قَبْلُ} فِي الدُّنْيَا {وَيَقْذِفُونَ} يَرْمُونَ {بِالْغَيْبِ مِنْ مَكَانٍ بَعِيدٍ} أَيْ بِمَا غَابَ عِلْمه عَنْهُمْ غَيْبَة بَعِيدَة حَيْثُ قَالُوا فِي النَّبِيّ سَاحِر شَاعِر كَاهِن وَفِي الْقُرْآن سِحْر شِعْر كِهَانَة {وَحِيلَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ مَا يَشْتَهُونَ} مِنَ الإِيمَان أَيْ قَبُوله {كَمَا فُعِلَ بِأَشْيَاعِهِمْ} أَشْبَاههمْ فِي الْكُفْر {مِنْ قَبْلُ} أَيْ قَبْلهمْ {إِنَّهُمْ كَانُوا فِي شَكٍّ مُرِيبٍ} مُوقِع فِي الرِّيبَة لَهُمْ فِيمَا آمَنُوا بِهِ الْآنَ وَلَمْ يَعْتَدُّوا بِدَلَائِلِهِ فِي الدُّنْيَا

**ترجمه:** ته ورته اووایه چې څه تاسو ته صرف د یو مختصر غوندې خبرې نصیحت کوم، هغه دا چې تاسو د خدائی د پاره ضد پریبښودلو سره دوه دوه یا یواځې ولاړ تیار اودېږئ، بیا سوچ اوکړئ، نو تاسو ته به پته اولږی، چې ستاسو په ملگری محمد ﷺ باندې څه جنون نشته، هغه خو تاسو لره د آخرت د یو سخت عذاب د راتلو نه مخکښې ویرولو والا دې، که تاسو د هغه خبره اونه منئ. تاسو دوی ته اووایئ چې څه تاسو لره په خبرولو او تبلیغ باندې تاسو نه څه مطالبه غواړم نو هغه دې تاسو ته مبارک شی یعنی په دې انداز او تبلیغ باندې تاسو نه څه طلب کوم نه، ځما بدله خو د الله سره ده، هغه د هر یو څیز نه خبردار دې ځما د رشتینولی نه هم خبر دې، ته ورته اووایه چې ځما رب حق خبرې لره په خپلو نبیانو باندې نازلوی، په اسمانونو او زمکه کښې چې کوم څیز د هغه د مخلوق نه پټ دې دغې پټ څیز لره هغه پیژنی ته ورته اووایه چې حق راغلو او باطل، کفر خو نه مخکښې څه اثر کړې وو او نه به وروستو ئې څه اثر وی ته ورته اووایه که چرې څه الله مه کړه بې لارې شوم نو ځما د اوریدلو وبال به په ما باندې وی او که زه په هدایت باندې یم نو دا دهغه قرآن او حکمت د وجې نه دی کوم چې ځما رب ماته په ذریعه د وحی رالیږی، هغه دعا لره اوریدونکې او ماته نیزدې دې، اې محمد ﷺ تاسو هغه وخت په خیال کښې راولئ، کله چې په د قبر نه د پاسیدو په وخت کښې کافران ویروندونکې گرځی، نو ته به یو لوې خطرناک منظر اوگورې نو بیا ددوی د پاره خلاصیدل نشته، یعنی زمونږ د نیولو نه د تختیدلو څه صورت به نه وی، او نیزدې د قبرونو نه به دوی گرفتار کړې شی، هغه وخت به وائی چې مونږ په دې باندې محمد ﷺ یا په قرآن باندې ایمان راوړو، دومره لرې نه ددوی د پاره ایمان په لاس راتلل چرته ممکن دی، التناوش په واو سره، او د واؤ په عوض د همزې سره دې، یعنی ایمان حاصلیدل (چرته ممکن دی) ځکه چه دوی اوس په عالم آخرت کښې دی، او د ایمان ځایې دنیا ده، حالانکه ددې نه مخکښې په دنیا کښې دوی ددې انکار

کړي وو، او د لرې نه يې تحقيقه په اندازه او په اټکل خبرې به ئې کولې يعنی داسې خبرې ئې کولې چې د هغې د علم نه دوی ډير لرې وو. په داسې طريقه چې دوی نبی ﷺ ته ساحر کاهن او شاعر اووئيل او د قرآن په باره کښې ئې سحر شعر او کله کهانت اووئيل د دوی او د دوی د ايمان په مينځ کښې پرده حائله کړې شوه يعنی د ايمان د قبوليت په مينځ کښې، څنګه چې د دې نه مخکښې په کفر کښې د دوی مشرانو سره کړې شوه وه، هغوی هم د دوی په شان په پوخ شک کښې پراته وو، چې په کومه خبره ئې اوس ايمان راوړو د دې په باره کښې په شک کښې پراته وو، حالانکه په دنيا کښې ئې دې ايمان طرف ته توجه ورکړې نه ده.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: بواحدة: دا د موصوف محذوف صفت دې، ای بخصلة واحدة او په حذف باندې قرينه ان تقوموالله دې. دا په په تاويل د مصدر سره د (هی) مبتدأ محذوف خبر دې، څنګه چې شارح (هی) محذوف منلو سره اشاره کړې ده، اوان تقوموا په تاويل د مصدر سره د بواحدة عطف بيان يا بدل دې، په دې دواړو صورتونو کښې به ان تقوموا محلا مجرور وی.

قوله: ثم تتفكروا: ثم حرف د عطف د تاخير او ترتيب د پاره دې، او د تتفكروا عطف په ان تقوموا باندې دې، لومثنیٰ اوفرادیٰ د حال د وجې نه منصوب دی، بصاحبكم خبر مقدم، من جنة مبتدأ مؤخر محلا مرفوع او لفظا مجرور دې، (من) زائده دې.

قوله: ما سالتكم من اجر فهو لكم: "ما" شرطيه د "سالتكم" مفعول ثانی مقدم دې، او "من" اجر د (ما) بيان دې، او "فهو لكم" جواب شرط دې، او دا هم احتمال دې، چې "ما" موصوله مبتدأ وی او "فهو لكم" د دې خبر وی، او موصول چونکه متضمن معنی د شرط لره دې خکه په فهو باندې فاء د رابطې د پاره ده، ان اجری الا علی الله په دې خبره باندې دلالت کوی چې هغوی ﷺ د انذار او تبليغ په عوض کښې د هيڅ څيز مطالبه نه ده کړې.

قوله: يقذف بالحق: د يقذف مفعول محذوف دې، ای يقذف الباطل بالحق: دويم ترکيب چې هغې ته شارح اشاره کړې ده دا کيدې شی چې (باء) د ملابست د پاره وی او مفعول محذوف وی، تقديری عبارت به دا وی يقذف الوحی الی انبيائه متلبسا بالحق.

قوله: علام الغيوب: د (ان) خبر ثانی دې، يا د (هو) مبتدأ محذوف خبر دې، او د يقذف د ضمير نه بدل هم کيدې شی

قوله: ما غاب عن خلقه: الله تعالی غيب څيزونو لره ډير ښه پيژنی، په (ماغاب) باندې د مغيبات اطلاق د مخلوق په اعتبار سره دې، ګنی هغه ته خو ماضی، حال او مستقبل تول ښکاره دی،

هم ددې سوال مقدر د جواب د پاره شارح ﷫ د ما غاب عن خلقه اضافه کړې ده.

**قوله. فبما یوحی الی ربی:** (ما) مصدریه هم کیدې شی، او (باء) سببیه ده، ای بسبب ایحاء ربی الی او موصوله هم کیدې شی، ای بسبب الذی یوحیه الی.

**قوله: ولو تری:** په دې کښې دا احتمال دې چې د تری مفعول محذوف وی تقدیری عبارت به دا وی، لوتری حالهم وقت فزعهم.

**قوله: لرایت امر عظیما:** مقدر کرخولو سره اشاره ئې اوکړه چې د (لو) جواب شرط محذوف دې.

**قوله: تناوش:** په دې کښې دوه قراءتونه دی په واؤ باندې ضمه، او واؤ په همزې سره بدلول تناوش په وزن د تفاعل، ناش ینوش نوشا نیول، اخستل.

**قوله: وقد کفروا:** دا جمله حالیه ده، چې هغوی په دنیا کښې کفر کړې دې.

**قوله: ویقذفون بالغیب:** ددې عطف د حکایت حال ماضی په توګه په (قدکفروا) باندې دې.

**قوله: باشیاعهم:** ای اشباههم فی الکفر، اشیاع د شیع جمع ده، او شیع د شیعة جمع ده، نو اشیاع د شیعة جمع الجمع ده.

## [۳۵] سورة فاطر

سورة فاطر مكية و هي خمس او ست و اربعون اية

سوره فاطر مکی دې اودا ۴۵ یا ۴۶ آیتونه دی.

### [ایاتونه: ۱ ـ ۷]

بسم الله الرحمن الرحيم (الْحَمْدُ لِلَّهِ) حَمِدَ تَعَالَى نَفْسَه بِذَلِكَ كَمَا بُيِّنَ فِي أَوَّلِ سُورَةِ سَبَأ (فَاطِرِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ) خَالِقِهِمَا عَلَى غَيْرِ مِثَالٍ سَبَقَ (جَاعِلِ الْمَلَائِكَةِ رُسُلًا) إلَى الْأَنْبِيَاء (أُولِي أَجْنِحَةٍ مَثْنَى وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ يَزِيدُ فِي الْخَلْقِ) فِي الْمَلَائِكَة وغيرها (مَا يَشَاءُ إِنَّ اللَّهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ) (مَا يَفْتَحِ اللَّهُ لِلنَّاسِ مِنْ رَحْمَةٍ) كَرِزْقٍ وَمَطَر (فَلَا مُمْسِكَ لَهَا وَمَا يُمْسِكْ) مِنْ ذَلِكَ (فَلَا مُرْسِلَ لَهُ مِنْ بَعْدِهِ) أَيْ بَعْد إمْسَاكه (وَهُوَ الْعَزِيزُ) الْغَالِب عَلَى أَمْره (الْحَكِيمُ) فِي فِعْله (يَا أَيُّهَا النَّاسُ) أَيْ أَهْل مَكَّة (اذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ) بِإِسْكَانِكُمْ الْحَرَم وَمَنْع الْغَارَات عَنْكُمْ (هَلْ مِنْ خَالِقٍ) مِنْ زَائِدَة وَخَالِق مبتدأ (غَيْرُ اللَّهِ) بِالرَّفْعِ وَالْجَرّ نَعْت لِخَالِقٍ لَفْظًا وَمَحَلًّا وخبر المبتدأ (يَرْزُقُكُمْ مِنَ السَّمَاءِ) المطر (وَ) من (الْأَرْضِ) النَّبَات وَالِاسْتِفْهَام لِلتَّقْرِيرِ أَيْ لَا خَالِق رَازِق غَيْره (لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ فَأَنَّى تُؤْفَكُونَ) مِنْ أَيْنَ تُصْرَفُونَ عَنْ تَوْحِيده مَعَ إقْرَارِكُمْ بِأَنَّهُ الْخَالِق الرَّازِق (وَإِنْ يُكَذِّبُوكَ) يَا مُحَمَّد فِي مَجِيئِك بِالتَّوْحِيدِ وَالْبَعْث وَالْحِسَاب وَالْعِقَاب (فَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِنْ قَبْلِكَ) فِي ذَلِكَ فَاصْبِرْ كَمَا صَبَرُوا (وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ) فِي الْآخِرَة فَيُجَازِي الْمُكَذِّبِينَ وينصر المسلمين (يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ) بِالْبَعْثِ وَغَيْره (حَقٌّ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا) عَنْ الْإِيمَان بِذَلِكَ (وَلَا يَغُرَّنَّكُمْ بِاللَّهِ) فِي حِلْمه وَإِمْهَاله (الْغَرُورُ) الشيطان (إِنَّ الشَّيْطَانَ لَكُمْ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوهُ عَدُوًّا) بِطَاعَةِ الله ولا

تطيعوه ﴿إِنَّمَا يَدْعُو حِزْبَهُ﴾ أتباعه في الكفر ﴿لِيَكُونُوا مِنْ أَصْحَابِ السَّعِيرِ﴾ النار الشديدة ﴿الَّذِينَ كَفَرُوا لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ مَغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ كَبِيرٌ﴾ هذا بيان ما لموافقي الشيطان وما لمخالفيه

ترجمه: شروع كوم دالله په نوم سره چې ډير مهربانه او ډير رحم والا دې، ټول تعريفونه الله لره ثابت دي اوسورت سبا پشان دلته هم الله تعالي په خپله د خان ثنا بيان كړه هلته ئې وضاحت شوي دې. كوم چې د اسمانونو او زمكې لره د مخكښې نمونې نه بغير پيدا كونكې دې،او كوم چې فرشتو لره انبياؤ ته خبر رسونكى جوړونكې دې، چې په هغې كښې د چا دوه دوه درې درې او څلور څلور وزرې دي، او هغه چې د ملائكو وغيره په پيدا كولو كښې چې څه غوارى اضافه كولو والا دې، الله تعالى يقينا په هر څيز باندې قادر دې، اوالله تعالى چې د خلقو د پاره كوم رحمت مثلا رزق او باران كولاؤ كړى، نو هغې لره څوک بندولو والا نشته، او په دې كښې چې څه بند كړى نو د هغوى د بندولو نه پس څوک د هغې كولاوولو والا نشته، هغه په خپل حكم باندې غالب او په خپل كار كښې حكمت والا دې، اې خلقو يعنى مكې والو تاسو په خپل ځان باندې هغه نعمتونه ياد كړئ كوم چې تاسو باندې په حرم كښې د استوګنې دركولو او تاسو د حملو نه محفوظ ساتلو په صورت كښې كړې دى آيا د الله نه سوا بل څوک معبود شته؟ دا (من) زائد دې، او خالق مبتدأ او غير الله په رفع او جر سره، د خالق لفظا او محلا صفت دې، او د مبتدأ خبر يرزقكم من السماء دى. كوم چې اسمان نه يعنى د باران په ذريعه او د زمكې يعنى د بوټو په ذريعه تاسو ته روزى دراورسوى، استفهام تقريرى دې يعنى د هغه نه سوا بل خالق او رازق نشته، د هغه نه سوا بل معبود نشته، نو تاسو چرته اړولې كيږې،يعنى د هغه توحيد پريښودلو سره، ستاسو د دې اقرار نه باوجود چې هم هغه خالق او رازق دې، شرک كولو سره چرته ځئى، او اې محمد ﷺ كه دا خلق تاسو لره د توحيد د بيان، د بعث، حساب او د عقاب په باره كښې دروغژن ګڼرى، نو په دې معامله كښې ستاسو نه د مخكښې رسولانو هم تكذيب شوي دې، لهذا تاسو صبر كوئى څنګه چې هغوى صبر كړې وو، او په آخرت كښې به ټول كارونه الله ته واپس كولې شى، چنانحه تكذيب كولو والا ته به سزا وركړى او او د مسلماناو به ممد اوكړى، اې خلقو د الله د بعث وغيره وعده رشتونې ده، نو داسې دې نه وى چې په دې وعدې باندې د ايمان راوړلو نه د دنيا زندګى تاسو په دهوكه كښې واچوى، او داسې دې نه وى چې دهوكه باز شيطان تاسو لره د الله د حلم او مهلت دركولو په باره كښې په دهوكه كښې واچوى، ياد ساتئ شيطان ستاسو دشمن دې، لهذا د الله اطاعت كولو سره هغه لره خپل دشمن اوګنړئ، او د هغه اطاعت مه كوئى، هغه خو خپل جماعت لره يعنى په كفر كښې د هغه اتباع كولو والا جماعت ځكه راغواړى چې هغوى د دوزخيانو نه شى، چا چې كفر اوكړو د هغوى د پاره سخته سزا ده، او چې كومو خلقو ايمان راوړو او نيک اعمال ئې اوكړل د

هغوی د پاره بخښنه ده، او لوئي اجر دي، او دا «سزا و جزاء» د هغه څيز بيان دي کوم چې د شيطان د دوستانانو او د مخالفينو د پاره دی.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

د سورة فاطر دويم نوم سورة ملائکه هم دي.

**قوله:** فاطر السموات اي خالقها على غير مثال: د فطر اصلي معنى مطلقا شق دي، (ن) وعن مجاهد عن ابن عباس رضی الله عنه ماكنت ادرى ما فاطر السموات والارض حتى اختصم الى اعرابيان في بئر فقال احدهما انا فطرتها اي ابتدأتها وابتدعتها.

**سوال:** فاطر السموات والارض کښې اضافت لفظي دي لهذا دا د تعريف فائده نه ورکوي، حالانکه دا جمله د لفظ الله صفت واقع شوې دي، کوم چې معرفه ده؟

**جواب:** چونکه فاطر د فعل ماضي په معنى کښې دې د هغې د وجه نه دا اضافت معنوي دې لهذا د لفظ الله صفت واقع کيدل صحيح دی.

**قوله:** جاعل الملائكة: دا لفظ د لفظ الله دويم صفت دي.

**سوال:** جاعل د ماضي په معنى کښې دې يا د حال يا د استقبال؟ که د ماضي په معنى کښې وی نو د دې عامل کيدل صحيح نه دی، حالانکه دا په رسل کښې عامل دې، او که د حال يا د استقبال په معنى کښې وی نو دا اضافت لفظي دې، کوم چې د تعريف فائده نه ورکوی. په دې صورت کښې د لفظ الله صفت جوړول صحيح نه دی؟

**جواب:** دلته جاعل د استمرار په معنى کښې دې، لهذا د ماضي په معنى کښې د کيدو د وجې نه به دا اضافت معنوي وی، او د تعريف فائده به ورکوی، چې د هغې د وجې نه د لفظ الله صفت جوړول صحيح وی، او چونکه د حال او استقبال په معنى کښې هم دې، لهذا د دې عامل کيدل هم صحيح به وی، اوس څه اعتراض پاتې نشو.

**قوله:** اولی: دا په حالت نصبي او جری کښې دې په حالت رفعي کښې «اولو» استعماليږی، په معنى د «والا او صاحب». دا د جمع په معنى کښې مستعمل دې د دې واحد نه رازی، او بعضې حضراتو د دې واحد «ذو» ښودلې دې.

**قوله:** اولی اجنحة: دا د جناح جمع ده، د دې معنى «وزرو والا» دا د رسلا صفت دې، دواړه چونکه د لفظ په اعتبار سره نکره دی، ځکه مطابقت هم موجود دې. خو د دې نه شبه پيدا کيږی چې د وزرو کيدل خو د هغه فرشتو سره خاص دی کومې چې پيغمبرانو او رسولانو ته ليږلې شی، حالانکه د هر يو فرشتې وزرې وی لهذا دې لره د ملائکو صفت يا حال کرځول زيات مناسب دی.

**قوله:** مثنى وثلث ورباع: د اجنحة نه بدل د وجې نه محلا مجرور دي، د دې فتحه د کسرې د

نیابت د وجې نه ده ځکه چې دا درې وارو کلمې د وصفیت او د عدل د وجې نه غیر منصرف دی، دا کلمې د تکرار نه عدول کړې راغلې دی مثلا مثنی د اثنین اثنین نه معدول دې، دغه شان باقی.

**قوله: یزید فی الخلق ما یشاء:** داکلام مستانف دې چې د ماقبل د تاکید د پاره راوړې شوې دې،

**قوله: فلا ممسک لها:** کښې، ویزید فی الخلق ما یشاء کښې (لها) او فلا مرسل له کښې (له)، د دوارو مرجع (ما) دې، لها د معنی د رعایت د وجې نه، او (له) د لفظ د رعایت د وجه نه،

**قوله: هل من خالق:** هل د استفهام انکاری د پاره دې، او توبیخ د پاره هم کیدې شی، او (من) زائده دې، او خالق مبتدأ لفظا مجرور محلا مرفوع دې، او غیر الله په رفع سره د خالق صفت دې، د محل په اعتبار سره، او غیر الله صفت دې، د لفظ په اعتبار سره، د خالق مبتدأ خبر یرزقکم دې، او بعضو وئیلې دی چې لکم ددې خبر محذوف دې،

**قوله: تؤفکون:** دا د (افک) بالفتح نه ماخوذ دې، ددې معنې ورکیدل (لار خطا کول) او اوړبدل دی، او افک په کسرې سره معنی ده کذب وافتراء تؤفکون، مضارع مبنی للمجهول ده، واؤ نائب فاعل دې، تاسو چرته اړولې شئ.

**قوله: فاصبر کما صبروا:** دا په حقیقت کښې د (ان یکذبوا) جزاء ده، او فاء جزائیه ده، خو د جزاء سبب کوم چې فقد کذبت دې، د جزاء قائم مقام کړې شوې دې.

**[ایاتونه: ۸ ـ ۱۴]**

وَنَزَلَ فِي أَبِي جَهْل وَغَيْرِه (أَفَمَنْ زُيِّنَ لَهُ سُوءُ عَمَلِه) بِالتَّمْوِيهِ (فَرَآهُ حَسَنًا) مِنْ مبتدا خبره كَمَنْ هَدَاهُ اللّٰه لَا دَلَّ عَلَيْهِ (فَإِنَّ اللّٰهَ يُضِلُّ مَنْ يَشَاءُ وَيَهْدِي مَنْ يَشَاءُ فَلَا تَذْهَبْ نَفْسُكَ عَلَيْهِمْ) عَلَى الْمُزَيَّنِ لَهُمْ (حَسَرَاتٍ) بِاغْتِمَامِكَ أَنْ لَا يُؤْمِنُوا (إِنَّ اللّٰهَ عَلِيمٌ بِمَا يَصْنَعُونَ) فَيُجَازِيهِمْ عَلَيْهِ (وَاللّٰهُ الَّذِي أَرْسَلَ الرِّيَاحَ) وَفِي قِرَاءَة الرِّيح (فَتُثِيرُ سَحَابًا) الْمُضَارِع لِحِكَايَةِ الْحَال الْمَاضِيَة أَيْ تُزْعِجهُ (فَسُقْنَاهُ) فِيهِ الْتِفَات عَنْ الْغَيْبَة (إِلَى بَلَدٍ مَيِّتٍ) بِالتَّشْدِيدِ وَالتَّخْفِيف لَا نَبَات بِهَا (فَأَحْيَيْنَا بِهِ الْأَرْضَ) مِنَ الْبَلَد (بَعْدَ مَوْتِهَا) يُبْسهَا أَيْ أَنْبَتْنَا بِهِ الزَّرْع وَالْكَلَأ (كَذَلِكَ النُّشُورُ) أَيْ الْبَعْث وَالْإِحْيَاء (مَنْ كَانَ يُرِيدُ الْعِزَّةَ فَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ جَمِيعًا) أَيْ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَة فَلَا تُنَال مِنْهُ إِلَّا بِطَاعَتِهِ فَلْيُطِعْهُ (إِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ) يَعْلَمهُ وَهُوَ لَا إِلٰه إِلَّا اللّٰه وَنَحْوهَا (وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُهُ) يَقْبَلهُ (وَالَّذِينَ يَمْكُرُونَ) الْمَكَرَات (السَّيِّئَاتِ) بِالنَّبِيِّ فِي دَار النَّدْوَة مِنْ تَقْيِيده أَوْ قَتْله أَوْ إِخْرَاجه كَمَا ذُكِرَ فِي الْأَنْفَال (لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ وَمَكْرُ أُولَئِكَ هُوَ يَبُورُ) يَهْلِك (وَاللّٰهُ خَلَقَكُمْ مِنْ تُرَابٍ) بِخَلْقِ أَبِيكُمْ آدَم مِنْهُ (ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ) أَيْ مَنِيّ بِخَلْقِ ذُرِّيَّته مِنْهَا (ثُمَّ جَعَلَكُمْ أَزْوَاجًا) ذُكُورًا وَإِنَاثًا (وَمَا تَحْمِلُ مِنْ أُنْثَى وَلَا تَضَعُ إِلَّا بِعِلْمِهِ) حَال أَيْ مَعْلُومَة لَهُ (وَمَا يُعَمَّرُ مِنْ مُعَمَّرٍ) أَيْ مَا يُزَاد فِي عُمُر طَوِيل

الْعُمُرِ {وَلَا يُنْقَصُ مِنْ عُمُرِهِ} أَيْ ذٰلِكَ الْمُعَمَّرِ أَوْ مُعَمَّرٍ آخَرَ {إِلَّا فِي كِتٰبٍ} هُوَ اللَّوْحُ الْمَحْفُوظُ {إِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللهِ يَسِيرٌ} هَيِّنٌ {وما يستوي البحران هذا عذب فرات} شَدِيدُ الْعُذُوبَةِ {سَائِغٌ شَرَابُهُ} شُرْبُهُ {وَهٰذَا مِلْحٌ أُجَاجٌ} شَدِيدُ الْمُلُوحَةِ {وَمِنْ كُلٍّ} مِنْهُمَا {تَأْكُلُونَ لَحْمًا طَرِيًّا} هُوَ السَّمَكُ {وَتَسْتَخْرِجُونَ} مِنَ الْمِلْحِ وَقِيلَ مِنْهُمَا {حِلْيَةً تَلْبَسُونَهَا} هِيَ اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ {وَتَرَى} تُبْصِرُ {الْفُلْكَ} السُّفُنَ {فِيهِ} فِي كُلٍّ مِنْهُمَا {مَوَاخِرَ} تَمْخَرُ الْمَاءَ أَيْ تَشُقُّهُ بِجَرْيِهَا فِيهِ مُقْبِلَةً وَمُدْبِرَةً بِرِيحٍ وَاحِدَةٍ {لِتَبْتَغُوا} تَطْلُبُوا {مِنْ فَضْلِهِ} تَعَالٰى بِالتِّجَارَةِ {وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ} اللهَ عَلَى ذٰلِكَ {يُولِجُ} يُدْخِلُ اللهُ {اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ} فَيَزِيدُ {وَيُولِجُ النَّهَارَ} يُدْخِلُهُ {فِي اللَّيْلِ} فَيَزِيدُ {وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ} مِنْهُمَا {يَجْرِي} فِي فَلَكِهِ {لِأَجَلٍ مُسَمًّى} يَوْمِ الْقِيَامَةِ {ذٰلِكُمُ اللهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ وَالَّذِينَ تَدْعُونَ} تَعْبُدُونَ {مِنْ دُونِهِ} أَيْ غَيْرِهِ وَهُمُ الْأَصْنَامُ {مَا يَمْلِكُونَ مِنْ قِطْمِيرٍ} لِفَافَةِ النَّوَاةِ {إِنْ تَدْعُوهُمْ لَا يَسْمَعُوا دُعَاءَكُمْ وَلَوْ سَمِعُوا} فَرْضًا {مَا اسْتَجَابُوا لَكُمْ} مَا أَجَابُوكُمْ {وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكْفُرُونَ بِشِرْكِكُمْ} بِإِشْرَاكِكُمْ إِيَّاهُمْ مَعَ اللهِ أَيْ يَتَبَرَّءُونَ مِنْكُمْ وَمِنْ عِبَادَتِكُمْ إِيَّاهُمْ {وَلَا يُنَبِّئُكَ} بِأَحْوَالِ الدَّارَيْنِ {مِثْلُ خَبِيرٍ} عَالِمٍ هُوَ اللهُ تَعَالٰى

---

**ترجمه:** (راوان آیت) د ابوجهل په باره کښې نازل شوې دې، آیا هغه کس چا ته چې د هغه خراب اعمال شیطانت (تلبیس) په ذریعې سره مزین کړې شوې پیش کړې شي بیا هغه دې لره نیک اعمال اوګنړل، د هغه کس برابر کیدې شی چاته چې الله هدایت نصیب کړو (من مبتدأ دې، او ددې خبر (کمن هداه الله) نه دې، (په دې حذف خبر باندې) فان الله یضل من یشاء دلالت کوی، یقین اوساته چالره چې الله اوغواړی ګمراه کړی او چاته چې اوغواړی هدایت ورنصیب کړی نو تاسو په هغوی باندې یعنی هغه خلقو باندې چې د چا د پاره خراب اعمال مزین کړې شوې دی، دومره غم مه کوې، چې د دوی په دې خبره باندې د غم د وجې نه چې دوی ایمان نه راوړی خپل ځان ورکړی، او څه چې دوی کوی الله ته معلوم دی، نو هغه به ددوی د اعمالو سزا ورکړی او الله هغه دې کوم چې هواګانو لره چلوی او په یو قراءت کښې الریح دې کومې هواګانې چې اوریځو لره اوچتوی، د مضارع استعمال د حالت ماضی د حکایت د پاره کړې شوې دې یعنی هواګانې اوریځو ته حرکت ورکوی بیا مونږ دې اوریځو لره د اوچې زمکې طرف ته په شړلو سره بوځو، په سقنا کښې د غیبت نه متکلم ته التفات دې، میت په تخفیف او تشدید سره دې، بیا مونږ ددې کلې زمکې د دې د مره کیدو لره یعنی د اوچیدو نه پس دوباره ژوندئ کوو، یعنی په دې کښې فصل او ګیا راتوکوو، دغه شان دوباره پاسیدل هم دی، یعنی دوباره ژوندی کیدل کوم کس چې عزت حاصلول غواړی نو ټول عزتونه الله لره دی. یعنی په دنیا او آخرت کښې، لهذا عزت د هغه په اطاعت سره حاصلیږی، نو پکار دی چې د هغه اطاعت اوکړې شی، ښه کارونه هغه ته رسی، یعنی هغه ددې نه خبر دې، او هغه (ښه کلام) لا اله الا الله او ددې پشان نور دی. او نیک کارونه هغه

اوچتوی، یعنی قبولوی ئې او کوم خلق چه د نبی ﷺ په باره کښې په دار الندوه کښې خراب سازشونه کوی مثلاً د نبی علیه السلام د قید کولو یا د وطن نه د ویستلو یا د قتل کولو.
ځنګه چې په سورة انفال کښې ذکر دی. داسې خلقو د پاره سخت ترین عذاب دې، او ددوی دا
مکر به تباه یعنی برباد به شی، اې خلقو الله تاسو لره د خاورې نه پیدا کړې یئ ستاسو نیکه آدم
علیه السلام د خاورې نه پیدا کړو. بیا ئې د نطفه د منئ نه پیدا کړئ. د ادم علیه السلام اولاد ئې د
نطفې نه پیدا کړو بیا ستاسو د نر او د مادې جوړې جوړې کړې، یو ښځه نه حامله کیږی او نه
بچې زیګولې (پیدا کولې) شی خو دا چې د الله په علم کښې وی، دا جمله حالیه ده یعنی د الله
تعالی په علم کښې وی او د کوم مشر کس چې عمر اوږد شی یعنی د لوئې عمر والا کس په
عمر کښې اضافه نه کیږی او نه ددې کس د عمر نه یا د بل چا د عمر نه کم کیدې شی خو دا
چې هغه په کتاب کښې موجود وی، او هغه لوح محفوظ دې. او الله تعالی د پاره دا خبره بالکل
اسانه ده، او برابر نه دی دوه سیندونه بلکه یو ډیر خوږ او ارام رسونکې او په څکلو کښې مزیدار او
بل ډیر زیات مالګین او تریو او تاسو د دې دواړو نه تازه غوښه خورئ، او هغه مهې دې او د
مالګین او تریو سیند نه او وئیلې شوې دی چې د دواړو نه تاسو کالی راوباسئ کوم چې
تاسو اچوئی. او ملغلرې او کونجکې دی. او اې مخاطب ته کشتیانو لره په دې کښې یعنی په
دې خوږ او تریو سیند کښې وینئ چې اوبه شلوی او روانې وی یعنی په اوبه کښې د تلو به
وجه دا په یو هوا تلو راتلو سره شلوی. چې تاسو د تجارت په ذریعه د الله فضل روزی طلب
کړئ چې تاسو په دې نعمت باندې د الله تعالی شکر ادا کړئ، هغه شپې لره په ورځ کښې داخلوی،
نو ورځ غټه شی او شپه په ورځ کښې داخلوی نو شپه غټه شی. او نمر او سپوږمئ هغه په کار
لګولې دی هر یو به په خپل محور کښې د ډیرې مودې یعنی د قیامت پورې به ګرځی، دغه
ستاسو الله دې هم د هغه بادشاهی ده، او څوک چې تاسو د هغه نه علاوه رابلئ بندګی ئې کوئی او
هغه بتان دی هغه خو د کهجورې د هډوکی د پوستکی هم مالک نه دې، او که تاسو هغوی ته اواز
اوکړئ نو هغوی ستاسو اواز نه اوری او که بالفرض واوری ئې هم نو ستاسو فریاد پورا کولې
نشی، یعنی ستاسو د وینا جواب ورکولې نشی. بلکه د قیامت په ورځ به ستاسو ددې شرک نه
صفا انکار اوکړی، یعنی ستاسو دوی لره د خدایانو جوړولو نه، یعنی تاسو نه به ستاسو د
هغوی د بندګئ د اظهار نه صفا انکار اوکړی. تاته به څوک د الله تعالی په شان خبردار د
دواړو د جهانو د احوالو خبر درنکړی، هغه صرف الله تعالی دې

## تحقيق، ترکيب، تسهيل، تفسيري فوائد

**قوله:** افمن زين: دا جمله مستانفه ده مخکښې چې د دوو ډلو د انجام په مینځ کښې کوم
فرق بیان شوې دې د هغې تائید دې. (من) د مبتدأ کیدو د وجې نه په محل د رفع کښې
دې، ددې خبر محذوف دې، تقدیری عبارت دادې افمن زين له سوء عمله کمن لم يزين له

کسانی وئیلې دی، چې ذهبت نفسك عليهم حسرات خبر دې، کوم چې محذوف دې، او د الله تعالی قول فلاتذهب نفسك عليهم حسرات په دې باندې دلالت کوی، او زجاج کمن هداه الله خبر محذوف گنړلې دې، اولنۍ صورت په لفظ او معنی کښې د مطابقت د وجې نه افضل دې.

**قوله:** سوء عمله: ای عمله السئ، دا د اضافت صفت الی الموصوف د قبیلې نه دې.

**قوله:** لا: د (لا) اضافه د استفهام انکاری طرف ته د اشارې د پاره کړې ده.

**قوله:** حسرات: د فلاتذهب مفعول له دې، او د جمع استعمال په کثرت د غم باندې دلالت کولو د پاره دې.

**قوله:** علیهم: د تذهب صله ده څنگه چې وئیلې شی مات علیه حزناً د علیهم تعلق د حسرات سره صحیح نه دې، ځکه چې د مصدر معمول په مصدر باندې مقدم کیدې نشی.

**قوله:** ان لایؤمنوا: ای علی ان لایؤمنوا

**قوله:** لحکایة الحال الماضیة: دا په اصل کښې د یو سوال مقدر جواب دې.

**سوال:** دا دې چې ددې نه مخکښې ارسل د ماضی صیغه استعال شوې ده او په دې مضمون کښې ئې فورا بعد فتثیر مضارع استعمال کړه، په دې کښې څه مصلحت دې؟

**جواب:** خلاصه دا ده چې د مضارع صیغه کومه چې په حال باندې دلالت کوی الله ددې نه د دې صورت عجیبه او غریبه استحضار کول غواړی، کوم چې د هغه په کمال قدرت او حکمت باندې دلالت کوی، او د یو صورت حال یا د یو واقعې داسې منظر بیانول چې د هغې نه مخکښې واقعه داسې د نظرونو وړاندې راشی گویا چې دا واقعه دغه وخت د نظر مخکښې کیږی، دې ته حکایت د حال ماضیه وئیلې شی.

**قوله:** تثیر: دا اثارة نه د مضارع واحد مؤنث غائب صیغه ده، هغه راوچتوی، حرکت ورکوی، د التفات عن الغیبة الی التکلم مطلب دا دې چې الله تعالی د ارسل غائب صیغه استعمال کړه، او په سقنا کښې ئې د متکلم صیغه استعمال کړه او د جمع استعمال ئې د عظمت په توگه کړې دې.

**قوله:** بلد: د بلد اطلاق په مذکر او مؤنث دواړو باندې کیږی، او د بلد اطلاق په آباد او غیر آباد دواړه قسم زمکو باندې هم کیږی. دلته د بلد میت نه هغه زمکه مراد ده چې په هغې کښې وابنه بالکل نه وی، د مړې زمکې نه اوچه بې گیاه زمکه مراد ده، او د زمکې د ژوندئ کولو نه مراد ددې زرغونول دی.

**قوله:** من البلد: کښې (من بیانیه دې، کذلك النشور، په دې کښې ئې مړو لره د اوچې زمکې سره تشبیه ورکړې ده، او د مړو ژوندی کولو لره ئې د زمکې د زرغونولو سره تشبیه

ورکړي ده،

**قوله: فليطعه:** شارح اشاره کړې ده چې په (من كان) کښې (من) شرطيه دې او فليطعه ددې جواب مقدر دې، او د الله تعالى قول فلله العزة جميعا د جواب شرط علت دې.

**قوله: يعلمه:** په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چې په کلام کښې مجاز دې او صعود په معنى د علم دې، او علم لره په صعود سره د تعبير کولو مقصد قبوليت طرف ته اشاره ده، ځکه چې د ثواب ځائې اوچت دې او د عذاب ځائې لاندې دې.

**قوله: الذين يمكرون:** د کلمات طيبه بيانولو نه پس د کلمات خبيثه بيان دې

**قوله: والسيئات:** دا د مفعول مطلق محذوف صفت دې، تقديرى عبارت ځنګه چې شارح المكرات محذوف ګڼړلو سره اشاره کړې ده اى يمكرون المكرات السيئات، السيئات د مفعول به کيدو د وجې نه منصوب کيدل صحيح نه دى. ځکه چې يمكرون فعل لازم دې کوم چې مفعول به ته نصب نشى ورکولې، بعضې حضراتو وئيلي دى چې يمكرون د يكسبون معنى لره د متضمن کيدو د وجې نه متعدي دې، لهذا ددې د السيئات لره د مفعول کيدو په اعتبار سره نصب ورکول صحيح دى.

**قوله: ومكر اولئك:** ترکيب اضافى مبتدأ او يبور ددې خبر دې، او (هو) ضمير فصل دې. د خبر نه وړاندې د ضمير فصل د راتللو په جواز او عدم جواز کښې اختلاف دې، راجح جواز دې، (اعراب القرآن) (يبور) مضارع واحد مذكر غائب (ن) بورا ، بورا ، هلاکيدل.

**قوله: فرات شديد العذوبة:** ډيرې خوږې اوبه.

**قوله: اجاج شديد الملوحة:** ډير مالګين

**قوله: وما يعمر من معمر:** (ما) نافيه ده يعمر فعل مضارع مجهول، (من) زائده او معمر نائب فاعل، قطمير هغه نرئى جالئى ته وائى کومه چې د کهجورې د هډوکى نه تاوْ وى، او بعضې حضراتو هغه ريشې ته وئيلي دى کومه چه د هډوکى په مينځ کښې وى، او بعضې حضراتو وئيلي دى چې هغه ريشې ته وائى کومه چې د هډوکى په شا باندې سورى کښې وى، مطلب دادې چې تاسو چاته اوازونه کوئى او د چا نه د امداد اميد ساتئ، نو هغوى د يو سپک او معمولى څيز اختيار هم نه لرى.

**[اياتو له: ۱۵ ـ ۲۶]**

{يايها النَّاس أَنْتُمُ الْفُقَرَاءُ إِلَى اللَّهِ} بِكُلِّ حَالٍ {وَاللَّهُ هُوَ الْغَنِيُّ} عَنْ خَلْقِهِ {الْحَمِيدُ} الْمَحْمُودُ فِي صُنْعِهِ بِهِمْ {إِنْ يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ وَيَأْتِ بِخَلْقٍ جَدِيدٍ} بَدَلَكُمْ {وَمَا ذَلِكَ عَلَى اللَّهِ بِعَزِيزٍ} شَدِيدٍ {وَلَا تَزِرُ} نَفْسٌ {وَازِرَةٌ} آثِمَةٌ أَيْ لَا تَحْمِلُ {وِزْرَ} نَفْسٍ {أُخْرَى وَإِنْ تَدْعُ} نَفْسٌ {مُثْقَلَةٌ} بِالْوِزْرِ {إِلَى حِمْلِهَا} مِنْهُ أَحَدًا لِيَحْمِلَ بَعْضَهُ

﴿لَا يُحْمَلْ مِنْهُ شَيْءٌ وَلَوْ كَانَ﴾ المدعو ﴿ذَا قُرْبَىٰ﴾ قرابة كالأب والابن وعدم الحمل في الشقين حكم من الله ﴿إِنَّمَا تُنذِرُ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُم بِالْغَيْبِ﴾ أي يخافونه وما رأوه لأنهم المنتفعون بالإنذار ﴿وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ﴾ أداموها ﴿وَمَن تَزَكَّىٰ﴾ تطهر من الشرك وغيره ﴿فَإِنَّمَا يَتَزَكَّىٰ لِنَفْسِهِ﴾ فصلاحه مختص به ﴿وَإِلَى اللَّهِ الْمَصِيرُ﴾ المرجع فيجزي بالعمل في الآخرة ﴿وَمَا يَسْتَوِي الْأَعْمَىٰ وَالْبَصِيرُ﴾ الكافر والمؤمن ﴿وَلَا الظُّلُمَاتُ﴾ الكفر ﴿وَلَا النُّورُ﴾ الإيمان ﴿وَلَا الظِّلُّ وَلَا الْحَرُورُ﴾ الجنة والنار ﴿وَمَا يَسْتَوِي الْأَحْيَاءُ وَلَا الْأَمْوَاتُ﴾ المؤمنون ولا الكفار وزيادة (لا) في الثلاثة تأكيد ﴿إِنَّ اللَّهَ يُسْمِعُ مَن يَشَاءُ﴾ هدايته فيجيبه بالإيمان ﴿وَمَا أَنتَ بِمُسْمِعٍ مَّن فِي الْقُبُورِ﴾ أي الكفار شبههم بالموتى فيجيبون ﴿إِنْ﴾ ما ﴿أَنتَ إِلَّا نَذِيرٌ﴾ منذر لهم ﴿إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ بِالْحَقِّ﴾ بالهدى ﴿بَشِيرًا﴾ من أجاب إليه ﴿وَنَذِيرًا﴾ من لم يجب إليه ﴿وَإِن﴾ ما ﴿مِّنْ أُمَّةٍ إِلَّا خَلَا﴾ سلف ﴿فِيهَا نَذِيرٌ﴾ نبي ينذرها ﴿وَإِن يُكَذِّبُوكَ﴾ أي أهل مكة ﴿فَقَدْ كَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ﴾ المعجزات ﴿وَبِالزُّبُرِ﴾ كصحف إبراهيم ﴿وَبِالْكِتَابِ الْمُنِيرِ﴾ هو التوراة والإنجيل فاصبر كما صبروا ﴿ثُمَّ أَخَذْتُ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ بتكذيبهم ﴿فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ﴾ إنكاري عليهم بالعقوبة والإهلاك أي هو واقع موقعه.

**ترجمه:** اې خلقو تاسو په هر حالت کښې د الله محتاج يئ او الله خو د خپل مخلوق نه بې نيازه دې، او په خپل مخلوق باندې د احسان د وجې نه د حمد لائق دې که اوغواړي نو تاسو به فناه کړي، او ستاسو په ځائې باندې به يو نوې مخلوق پيدا کړي، او دا خبره په الله باندې بالکل ګرانه نه ده هيڅ يو ګناه ګار سړې د بل ګناه ګار د ګناهونو پيټې اوچتولې نه شي، او که څوک د ګناهونو نه د درون پيټي والا کس بل څوک د خپل پيټي د اوچتولو د پاره را اوغواړي، نو د هغه نه به څه هم اوچت نه کړې شي، کوم سړي چې رابللې شوې دې دا اګر که رشته دار ولې نه وي، لکه پلار خوې. په دواړو صورتونو کښې نه اوچتول د الله په حکم دي، ته خو صرف هغه خلق ويرولې شې څوک چې د خپل رب نه غائبانه ويريږي، يعنی د هغه نه ويريږي حالانکه هغه ئې ليدلې نه دې. ځکه چې هم دا خلق د تنبيه نه فائده اخسونکې دي، او د مونځ پابندی کوي، او کوم کس چه د شرک وغيره نه پاک وي هغه دځان د پاره پاک وي، لهذا ددې فائده به هم ده سره مخصوص وي. او هم الله طرف ته واپس تلل دي، او په آخرت کښې به دعمل بدله ورکولې شي او ړوند او روغ يعنی مومن او کافر برابر کيدې نه شي، او نه تياره يعنی کفر او رڼا يعنی ايمان او نه سورې او دهوپ، يعنی جنت او دروزخ او نه ژوندی او مړه يعنی مومن او کافر برابر کيدې شي، په درې واړو ځايونو کښې د (لا) اضافه د تاکيد د پاره دې، او الله چې چاته اوغواړي هغه ته خپل هدايت اوروي، نو هغوی په ايمان باندې لبيک اووائي. او ته هغه خلقو ته اورولې نشې کوم چې په قبرونو کښې دي، يعنی کافرانو ته، کافرانو لره ئې د مړو سره تشبيه ورکړې ده، ځکه چې هغوی جواب ورکولې نشي. (هدايت قبلولې نشي) او ته خو ددوی د پاره صرف ويرولو والا يئ، او مونږ تالره حق ورکولو سره خوشخبری اورولو والا

او ویرولو والا جوړ کړي لیږلي ئې، او هیڅ یو امت داسې تیر شوی نه دی، چې په هغې کښې یو ویرونکې یعنی نبی ﷺ نه وی تیر شوی، او که مکې والا ستا تکذیب اوکړی نو ددوی نه مخکښې خلقو هم تکذیب کړې وو، او هغوی ته هم د هغوی رسولانو معجزې او صحیفې لکه صحیفه د ابراهیم ﷷ او روښانه کتابونه ئې هغه تورات انجیل دی، راوړې وو، نو تاسو د هغوی په شان صبر اوکړئ، بیا ما دې کافرانو لره ددوی دتکذیب د وجې نه اونیول، نو اوګوره څما دوی ته عذاب ورکول، په سزا او هلاکت ورکولو سره څنګه وو؟ یعنی هغه په ځائې او په موقع نازل شوې وو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله: یاایها الناس انتم الفقراء الی الله:** په آیت کښې خطاب خلقو ته دې، حالانکه هر یو څیز د الله محتاج دې، د دې وجه داده چې د انسان نه علاوه بل داسې مخلوق نشته، چې د غنا او استغناء دعوی کوی، څکه په خاص طور سره انسان مخاطب جوړ کړې شوې دې، د آیت معنی دا ده، یاایها الناس انتم اشد افتقارا واحتیاجا الی الله فی انفسکم وعیالکم واموالکم وفیمایعرض لکم من سائر الامور فلا غنی لکم عنه طرفة عین، ولا اقل من ذلك:

انسان په خپل ذات کښې، په صفاتو کښې، په خپل اعیال او مالونو کښې مطلب دا چې په ټولو کارونو کښې هر وخت محتاج دې، د چا چې څومره زیات ضرورتونه وی دومره هغه محتاج هم وی، د انسان چونکه ضرورتونه په ټول مخلوقاتو کښې زیات دی نو دده محتاجیدل هم د ټولو نه زیات دی، الله تعالی د انسان په باره کښې فرمائیلي دی خُلق الانسان ضعیفا،د ابوبکر ﷛ قول دې، من عرف نفسه فقد عرف ربه. یعنی چا چې خپل غریبی حاجت او خپله عاجزی اوپیژندله هغه د الله تعالی عزت او غنا او د هغه قدر او کمال اوپیژندلو.

**قوله: الی الله:** دا د فقراء متعلق دې، فقراء د فقیر جمع ده، فقیر صیفه د صفت ده، لهذا ددې سره متعلق کیدل صحیح دی.

**سوال:** د فقیر په مقابله کښې غنی راوړلو نه پس، د (الحمید) اضافه د څه مقصد د وجې نه شوې ده ؟

**جواب:** د بندګانو فقیر کیدل او د الله تعالی غنی کیدل خو ثابت شول، خو غنی فائده ورکونکې نشی کیدې ترڅو چې هغه سخی نه وی، او چې کله مالدار سخی وی نو چې چاباندې ئې انعام کړې وی هغه دده حمد او ثناء بیانوی، او منعم او محسن د منعم علیهم د احسان مستحق وی، لهذا دې خبرې ته اشاره کولو د پاره چې الله تعالی غنی او نافع دې، نو د (الحمید) اضافه ئې اوکړه.

قوله: ان يشأ يذهبكم ويأت بخلق جديد: دا د الله تعالى د غناء مطلق بيان دې، يعنى ستاسو فناء د هغه په مشيت او بقاء د هغه په فضل موقوف ده، په دې کښې د چا هيڅ دخل نشته، او د خپل قول ويأت بخلق جديد سره د زيادت استغناء بيان دې، يعنى څوک دې دا نه ګڼرى چې الله تعالى به انسانان فنا کړى نو دهغه په کمال ملک کښې به نقصان راشى، ځکه چې هغه په دې خبره باندې قادر دې، چې هغه نوې مخلوق پيدا کړى، چې ددې نه به هم احسن او ښکلې وى، وماذلك على الله بعزيز يعنى دوى ختمول او نور راوستل د الله د پاره څه ګرانه نه ده.

قوله: وازرة: دا د تزر فاعل دې، ددې موصوف محذوف دې، مفسر علام په خپل قول ''نفس'' سره د محذوف طرف ته اشاره کړې ده، يعنى يو ګناه ګار کس به د بل ګناه ګار کس د قيامت په ورځ پيټې اوچتولې نشى.

سوال: په دې آيت يعنى لا تزر وازرة وزرا اخرى، او بل آيت وليحملن اثقالهم، کښې تعارض معلوميږى، د تطبيق به څه صورت وى؟

جواب: دا آيت د ګمراه شوو او ګمراه کونکو باره کښې دې، مطلب دادې چې دا خلق به ضلال او اضلال يعنى د ګمراه کيدو او ګمراه کولو دواړو بوج اوچتوى. نو په دې طريقه به دوى خپله د خپل ګناهونو بوج اوچتونکې وى.

قوله: وان تدع مثقلة الى حملها: مثقلة اى نفس مثقلة بالذنوب.

قوله: حمل موصوف دې،

قوله: منه حمل (ه) دا حمل په معنى د محمول صفت دې، او ضمير ''وزر'' طرف ته راجع دې، اى الى محمولها الكائن من الوزر، حمل په کسرې سره هغه وزن ته وئيلې شى کوم چې په ملا يا په سر باندې اوړې شى، جمع ئې احمال او حمول رازى، او حمل په فتحې سره ميوو ته وائى، ترڅو پورې چې هغه په اونه کښې وى، او ماشوم ته وائى، ترڅو چې هغه د مور په بطن کښې وى، ازهرى وئيلې دى چې هم دا خبره صحيح ده، او هم دا د اصمعى قول دې.

قوله: عدم الحمل فى الشقين: د شقين نه مراد حمل اجبارى وى کوم چې په فلا تزر وازرة وزرا اخرى کښې ذکر دې او که حمل اختيارى وى، کوم چې په وان تدع، ذا قربى کښې ذکر دى، يعنى د حمل اجبارى او حمل اختيارى اجازت نه کيدل د الله په حکم سره به وى.

قوله: يخشون ربهم بالغيب: بالغيب د يخشون د ضمير فاعل نه حال دې، اى يخشونه حال كونهم غائبين عنه. غائبين دا د بندګانو صفت دې، نه چې د رب، ځکه چې د رب صفت قرب دې نه چې غيبت، كما قال الله تعالى ونحن اقرب اليه من حبل الوريد او دا هم صحيح ده

چې دیخشون د مفعول نه حال وی، ای یخشونه والحال انه غائب عنهم ای محجب بجلاله فلا یرونه مفسر علام په خپل قول (وما راوه) سره دې طرف ته اشاره کړې ده، د الله تعالی ته لیدل د هغه په صفت جلال کښې د محجوب کیدلو په وجه دی، او چې کله په جنت کښې په صفت جمال سره ښکاره شي نو جنتیانو ته به د الله دیدار حاصل شي. خو په دنیا کښې په دې سترګو د الله دیدار کول ممکن نه دی

**قوله: لانهم المنتفعون بالانذار:** ددې عبارت مقصد د یو اعتراض جواب ورکول دی، اعتراض دادې چې (انما) کلمه د حصر په ذریعې سره انذار ئې د اهل خشیت سره ولې خاص کړو؟حالانکه د هر مکلف د پاره انذار دې؟

**جواب:** د جواب حاصل دادې چې چونکه د نصیحت او انذار نه اهل خشیت منتفع کیږی ځکه ئې د اهل خشیت خاص ذکر اوکړو ګویا چې اویلې شو انما ینفع انذارك اهل الخشیة.

**قوله: وما یستوي الاعمی والبصیر:** دا د مومن او کافر مثال دې، اول یې ما یستوی الاعمی والبصیر سره د مومن او د کافر په مینځ کښې فرق بیان کړې دې او دویم ئې ولا الظلمات ولا النور سره د دواړو په صفاتو کښې فرق بیان کړې دې، او دریم ئې یعنی ولا الظل ولا الحرور سره ئې په آخرت کښې د دواړو د ټهکانو فرق بیان کړې دې، په درې واړو جملو کښې د (لا) زیادت د نفی د تاکید د پاره دی، ځکه چې نفس نفی خو د (ما) نافیه نه هم معلومیږی.

**قوله: ان الله یسمع:** نه فکیف کان نکیر پورې حضور ﷺ ته تسلی ورکول دی

**قوله: وما انت بمسمع من فی القبور:** د کافرانو ئې د اثر نه قبلولو د وجې د مړو سره تشبیه ورکړې ده.

**قوله: فلا یجیبون:** ددې ضمیر جمع د معنی په اعتبار سره (من) طرف ته راجع دې. ځکه مفسر علام د من تفسیر د کفار سره کړې دې، په بعضې نسخو کښې فیجیبون دې

**قوله: ان انت الا نذیر:** مطلب دادې چې تاسو باندې صرف تبلیغ فرض دې هدایت د الله په لاس کښې دې، هغه چې چاته غواړی هدایت ورکوی

**قوله: بالحق:** دا د ارسلنك د کاف نه حال دې، او حق په معنی د هدایت دې او هدایت د هادیًا په معنی کښې دې ای ارسلناك حال كونك هادیًا.

**قوله: أجاب إليه:** د إليه ضمیر هدایت طرف ته راجع دې، او اجاب اليه معنی جواب ورکول، قبلول، اجاب اليه ای قبله لم يجب اليه ای لم يقبله.

**قوله: وما یستوي الاحیاء ولا الاموات:** دا د کافرانو دویمه تشبیه ده، کومه چې د اولې نه ابلغه ده، رومبئ تشبیه ئې کافرانو لره په عدم نفع کښې د ړندو سره ورکړې ده، او په دې

کښې نې د مړو سره تشبیه ورکړې ده په ړندو کښې څه نه څه فائده وی، په خلاف د مړو نه، چې په هغوی کښې هيڅ فائده نه وی

**قوله: هوواقع موقعه:** په دې کښې اشاره ده چې په فکيف کان نکير کښې استفهام انکاری دې.

**[ایاتونه: ۲۷ - ۳۷]**

﴿أَلَمْ تَرَ﴾ تَعلم ﴿أَنَّ اللّٰهَ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجْنَا﴾ فِيهِ الْتِفَات عَنْ الْغَيبَة ﴿بِهِ ثَمَرَاتٍ مُّخْتَلِفًا أَلْوَانُهَا﴾ كَأَخضَر وَأَحمَر وَأَصفَر وَغَيرهَا ﴿وَمِنَ الْجِبَالِ جُدَدٌ﴾ جَمع جُدَّة طَرِيق فِي الْجَبَل وغيره ﴿بِيضٌ وَحُمْرٌ﴾ وَصُفر ﴿مُّخْتَلِفٌ أَلْوَانُهَا﴾ بِالشِّدَّةِ وَالضَّعف ﴿وَغَرَابِيبُ سُودٌ﴾ عَطف عَلَى جُدَد أَيْ صُخُور شَدِيدَة السَّوَاد يُقَال كَثِيرًا أَسْوَد غِرْبِيب وَقَلِيلًا غِرْبِيب أَسْوَد ﴿وَمِنَ النَّاسِ وَالدَّوَابِّ وَالْأَنْعَامِ مُخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ كَذَٰلِكَ﴾ كَاخْتِلَافِ الثِّمَار وَالْجِبَال ﴿إِنَّمَا يَخْشَى اللّٰهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ﴾ بِخِلَافِ الْجُهَّال كَكُفَّارِ مَكَّة ﴿إِنَّ اللّٰهَ عَزِيزٌ﴾ فِي مُلكه ﴿غَفُورٌ﴾ لِذُنُوبِ عِبَاده المؤمنين ﴿إن الذين يتلون﴾ يقرؤون ﴿كِتَابَ اللّٰهِ وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ﴾ أَدَامُوهَا ﴿وَأَنفَقُوا مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً﴾ زَكَاة وَغَيرهَا ﴿يَرْجُونَ تِجَارَةً لَّن تَبُورَ﴾ تَهلِك ﴿لِيُوَفِّيَهُمْ أُجُورَهُمْ﴾ ثَوَاب أَعمَالهمْ الْمَذكُورَة ﴿وَيَزِيدَهُم مِّن فَضْلِهِ إِنَّهُ غَفُورٌ﴾ لِذُنُوبِهِمْ ﴿شَكُورٌ﴾ لِطَاعَتِهِمْ ﴿والذي أوحينا إليك من الكتاب﴾ الْقرآن ﴿هُوَ الْحَقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ﴾ تَقَدَّمَهُ مِنَ الْكُتُب ﴿إِنَّ اللّٰهَ بِعِبَادِهِ لَخَبِيرٌ بَصِيرٌ﴾ عَالِم بِالْبَوَاطِنِ وَالظَّوَاهِر ﴿ثُمَّ أَوْرَثْنَا﴾ أَعطَيْنَا ﴿الْكِتَابَ﴾ الْقرآن ﴿الَّذِينَ اصْطَفَيْنَا مِنْ عِبَادِنَا﴾ وَهُمْ أُمَّتك ﴿فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِ﴾ بِالتَّقصِيرِ فِي الْعَمَل بِهِ ﴿وَمِنْهُم مُّقْتَصِدٌ﴾ يَعمَل بِهِ أَغلَب الْأَوقَات ﴿وَمِنْهُمْ سَابِقٌ بِالْخَيْرَاتِ﴾ يَضُمّ إِلَى الْعِلْم التَّعلِيم وَالْإِرْشَاد إِلَى الْعَمَل ﴿بإذن الله﴾ بإرادته ﴿ذلك﴾ اي إيراثهم الكتاب ﴿هو الفضل الكبير﴾ ﴿جَنَّاتُ عَدْنٍ﴾ أَيْ إِقَامَة ﴿يَدْخُلُونَهَا﴾ الثَّلَاثَة بالبناء للفاعل والمفعول خَبَر جَنَّات الْمبتدأ ﴿يُحَلَّوْنَ﴾ خَبَر ثَانٍ ﴿فِيهَا مِنْ﴾ بَعض ﴿أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٍ وَلُؤْلُؤًا﴾ مُرَصَّع بالذهب ﴿ولباسهم فيها حرير﴾ ﴿وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ﴾ جَمِيعه ﴿إِنَّ رَبَّنَا لَغَفُورٌ﴾ لِلذُّنُوبِ ﴿شَكُورٌ﴾ لِلطَّاعَةِ ﴿الَّذِي أَحَلَّنَا دَارَ الْمُقَامَةِ﴾ الْإِقَامَة ﴿مِن فَضْلِهِ لَا يَمَسُّنَا فِيهَا نَصَبٌ﴾ تَعَب ﴿وَلَا يَمَسُّنَا فِيهَا لُغُوبٌ﴾ إِعْيَاء مِنَ التَّعَب لِعَدَمِ التَّكلِيف فِيهَا وَذِكر الثَّانِي التَّابِع لِلْأَوَّلِ لِلتَّصرِيحِ بِنَفْيِهِ ﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا لَهُمْ نَارُ جَهَنَّمَ لَا يُقْضَىٰ عَلَيْهِمْ﴾ بِالْمَوْتِ ﴿فَيَمُوتُوا﴾ يَسْتَرِيحُوا ﴿وَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُم مِّنْ عَذَابِهَا﴾ طَرفَة عَين ﴿كَذَٰلِكَ﴾ كَمَا جَزَيْنَاهُمْ ﴿نَجْزِي كُلَّ كَفُورٍ﴾ كَافِر بِالْيَاءِ وَالنُّون الْمَفتُوحَة مَعَ كَسْر الزَّاي وَنَصب كُلّ ﴿وَهُمْ يَصْطَرِخُونَ فِيهَا﴾ يَستَغِيثُونَ بِشِدَّةٍ وَعَوِيل يَقُولُونَ ﴿رَبَّنَا أَخْرِجْنَا﴾ مِنهَا ﴿نَعْمَلْ صَالِحًا غَيْرَ الَّذِي كُنَّا نَعْمَلُ﴾ فيقال لهم ﴿أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُم مَّا﴾ وَقتا ﴿يَتَذَكَّرُ فِيهِ مَن تَذَكَّرَ وَجَاءَكُمُ النَّذِيرُ﴾ الرَّسُول فَمَا أَجَبتُمْ ﴿فَذُوقُوا فَمَا لِلظَّالِمِينَ﴾ الْكَافِرِينَ ﴿مِن نَّصِيرٍ﴾ يَدفَع الْعَذَاب عَنهُمْ

**ترجمه:** اې مخاطب آيا تا دې خبره ته نظر او نکړو چې الله د اسمان نه اوبه نازلې کړې بيا مونږ د دې اوبو له ذريعه مختلف رنګونو والا ميوې پيدا کړې، په دې کښې د غائب نه متکلم ته التفات دې لګه شين، سور او زيړ وغيره او په غرونو کښې هم مختلف قسم لارې دی جدد د

جدة جمع ده، د غر لارو وغيره ته وائي مثلا سپيني او سري او زيړ، او هغه رنګ د تيز والي او پيکوالي په اعتبار سره مختلف دی او ډيري زياتي توري هم ددې عطف په جدد باندې دې، يعنی ډيري زياتي تيز رنګ والا کاڼي، کثير الاستعمال اسود غريب دې، او قليل الاستعمال غريب اسود دي او دغه شان په انسانانو ځناورو او چوپايانو کښې هم داسې دی، د ميوو او ګلونو د اختلاف په شان ددوی رنګونه هم مختلف دی، د الله نه هغه بندګان ويريږی ځوک چې د هغه د عظمت علم لری، په خلاف د جاهلانو، لکه د مکې کافران، واقعی الله تعالی په خپله بادشاهئ کښې زبردست او د خپل مومنانو بندګانو ګناهونو لره معاف کونکې دې، بې شکه چې ځوک د الله د کتاب تلاوت کوی، او د مونځ پابندی کوی او مونږ چې څه دوی ته ورکړی دی د هغې نه په پټه او په ښکاره د زکواة وغيره په توګه خرچ کوی، هغوی د داسې تجارت اميد ساتی چې کله به په تاوان کښې نه وی، چې هغوی ته ددې پورا بدله ميلاؤ شی، يعنی د ددوی د ذکر شوې اعمالو ثواب، او هغوی ته خپل فضل نه نور هم زيات ورکړی، بې شکه هغه ګناهګارانو لره ډير بخښونکې او ددوی د تابعدارئی قدر کونکې دې، او دا کتاب قرآن کوم چې مونږ تاسو ته د وحی په ذريعې سره ليږلې دې هغه بالکل ټهيک دې، کوم چې د خپل مخکښنی کتابونو هم تصديق کوی، بې شکه الله تعالی د خپل بندګانو د حالت پورا خبر لرونکې او ښه کتونکې دې، يعنی د پټ او ښکاره عالم دې، بيا مونږ ددې کتاب قرآن هغه خلق وارثان جوړ کړل کوم چې مونږ په خپلو بندګانو کښې خوښ کړل، او هغه ستا امت دې نو په دې کښې بعضو په خپل ځان باندې په دې کتاب باندې په عمل کولو کښې په کوتاهئ سره ظلم کوی، او څه په دوی کښې مينځنی درجه کښې دی، چې اکثر وختونه په دې باندې عمل کوی او بعضې په دوی کښې داسې دی چې د الله په مشيت او توفيق سره نيکو کښې ترقی کوی يعنی په قرآن باندې عمل کولو سره سره تعليم او د عمل رهنمائی هم يوځائې کوی، دا يعنی ددې کتاب وارث جوړول د الله فضل دې، هغه هميشه د اوسيدو باغونه دی چې په هغې کښې به دا درې واړه ډلې داخليږی، يدخلون معروف او مجهول دواړه دی، يدخلونها، د جنات مبتدأ خبر دې، په جنت کښې به دوی ته د سرو کړئې او د سرو نه بنړلې شوې ملغلرې ورته اچولې شی، او ددوی لباس به په جنت کښې د ريښمو وی، او دوی به وائی چې د الله په لکهونو شکر دې، چې هغه زمونږ نه ټول غمونه لرې کړل بې شکه زمونږ پروردګار د ګناهونو ډير بخښونکې دې او د طاعاتو قدردان دې، چا چې مونږ په خپل فضل سره د هميشه د اوسيدو ځائې کښې داخل کړو، چرته چې به مونږ ته نه څه تکليف ميلاويږی او نه به څه ستړې والې وی، يعنی د ستړی والی د وجې نه ستومانی، په جنت کښې تکليف نه موجوديدو د وجې نه، او دويم يعنی د لغوب ذکر، کوم چې د اول (د نصب تابع) دې، صراحتا د ستړی والی د نفی د پاره دې. او د کافرانو د پاره د جهنم اور دې، نه به دوی ته مرګ رازی چې په مړونو باندې ارام

اومونی، او نه به ددوی نه لږ وخت د پاره د دوزخ اور سپکولې شی، څنګه چې دوی ته مونږ سزا ورکړه، داسې به مونږ هر کافر ته سزا ورکوو، د یاء او د نون په فتحې سره، د زاء په کسرې سره، او د کلّ په نصب سره، او دغه خلق به په جهنم کښې فریاد کوی، یعنی د سختوالی د وجې نه به هائې هائې اوازونو کولوسره وائی اې زمونږ پروردګاره مونږ خو ددې نه اوباسه، مونږ به د هغه کارونو نه خلاف کوو کوم چې به مو کول، نیک کارونه به کوو، نو دوی ته به جواب ورکړې شی، چې مونږ تاسو ته دومره عمر درکړې وو چې څوک پوهیدل نو هغوی پوهیدلې شو، او تاسو ته ویروونکو والا رسول هم راغلې وو، نو تاسو د هغه دعوت قبول نه کړو، نو مزه اوڅکئ، د داسې ظالمانو کافرانو به څوک مددګار نه وی، چې ددوی نه عذاب لرې کړی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله: الم تر:** دا کلام مستانف دې، دا د غالب قدرت، کمالِ حکمت او عجیبه کاریګرې بیانولو د پاره راوړې شوې دې، او د رؤیت نه مراد رؤیتِ قلبی دې، څنګه چې مفسر علام د (تری) تفسیر په (تعلم) سره کولو سره اشاره کړې ده، (ان) خپل اسم او خبر سره د (تری) په معنی د تعلم، د دوو مفعولو قائم مقام دې، او مخاطب حضور ﷺ دې او هر هغه کس مخاطب کیدې شی چا کښې چې د مخاطب جوړیدو صلاحیت وی.

**قوله: فاخرجنا به:** ای بالماء، (فاخرجنا) په دې کښې د غائب نه متکلم طرف ته التفات دې، او نکته په دې التفات کښې د صنعتِ بدیع طرف ته د عنایت اظهار کول دی، ځکه چې د انزال په مقابله کښې په اخراج کښې زیات احسان او صنعتِ بدیع دې.

**قوله: مختلفا الوانها:** د دې نصب د ثمرات د صفت د وجې نه دې، او د الوان نه مراد مختلف اقسام دی، ای بعضها ابیض وبعضها احمر وبعضها اصفر بعضها اخضر وبعضها اسود.

**قوله: جدد:** جمع جدة، په معنی د لارې، او بعضې حضراتو وئیلې دی چې جدة په معنی د قطعة دې، یقال جددت الشئ ای قطعته، او جوهری وئیلې دی چې جدة هغه لکیرو ته وائی کومې چې د ځنګلی خر په شا باندې وی.

**قوله: مختلف الوانها:** الوانها د مختلف فاعل دې، بیا جمله د جدد صفت دې، او د غرابیب عطف په جدد باندې دې، او سود غرابیب نه بدل دې، یعنی ډیر زیات تور غرونه، غربیب د اسود تاکید یا صفت دې، څنګه چې الاحمر القانی کښې قانی د احمر صفت دې یا تاکید دې، د مبالغې د وجې نه صفت یعنی تاکید مقدم کړې دې، ګنی عام طور صفت د موصوف نه او تاکید د مؤکد نه روستو وی، او دا د اصل مطابق دې، ځکه اسود غربیب کثیر الاستعمال دې، او غربیب اسود خلاف القیاس کیدو د وجې نه قلیل الاستعمال دې.

**قوله: ومن الناس:** خبر مقدم دې، مختلف الوانه د موصوف محذوف صفت دې، ای

صنف مختلف الوانه من الناس،

قوله: كذلك د مصدر محذوف صفت دي، اى اختلافاً كذلك.

قوله: انما يخشى الله من عباده العلماء: چونكه د ويرې تعلق د څيز په پيژندګلو باندې موقوف وى چاته چې څومره زيات معرفت حاصل وى دومره به هغه زيات ويريدونكې وى، چنانچه په حديث كښې راغلي دى انا اخشاكم لله واتقاكم له او په شاذ قرات كښې د لفظ الله په رفع سره او د علماء په نصب سره هم ونيلې شوې دې، خو په دې صورت كښې به يخشى په معنى د يعظم وى، يعنى الله تعالى د خان نه ويريدونكو خلق قدر كوى.

قوله: ان الله عزيز غفور: دا د خشيت د وجوب علت دې، مطلب دادې چې هر انسان له د هغه نه ويره پكار ده چې هغه په هر څيز باندې غالب او قاهر دې، او ګناه ګارو له معاف كونكې دې،

قوله: يرجون تجارة: د ان خبر دې،

قوله: سراوعلانية: د نزع حافض د وجې نه منصوب دې، اى فى السروالعلانية او د حال كيدو د وجې منصوب هم كيدې شى، اى مسرين ومعلنين، لن تبور فعل مضارع منصوب بلن دى، او جمله د تجارة صفت دې، او مضاف محذوف دې، اى يرجون ثواب تجارة لن تبور، تبور (ن) بوار، هلاكيدل، ختميدل، تبور واحد مؤنث حاضر، هغه هلاكه شوه، هغه خرابه شوه.

قوله: ليوفيهم اجورهم: كښې لام عاقبة دې.

قوله: والذي: الذى موصول، اوحينا اليك جمله صله، موصول د صلې سره مبتدأ، (من الكتاب) كښې (من) بيانيه دې، (هو) مبتدأ (الحق) خبر، مبتدأ خبر د (الذى) مبتدأ خبر، او بعضې حضراتو (هو) ته ضمير فصل ونيلې دى، او (الحق) ئې د (الذى) مبتدأ خبر ګرخولې دې.

قوله: مصدقاً: د الكتاب نه حال دې،

قوله: ثم اورثنا اعطينا: (ثم) د بُعد رتبى د بيانولو د پاره دې، او د اورثنا تفسير په اعطينا سره كولو كښې دې خبرې ته اشاره ده چې څنګه ميراث بغير د سترې او ستونزې نه حاصليږى دغه شان كتاب (القرآن) هم امت ته بغير د سترې ستونزې نه حاصل شوې دې،

قوله: من عبادنا: كښې (من) بيانيه او تبعيضيه دواړه كيدې شى،

قوله: اورثنا: فعل بافاعل دې، الكتاب مفعول به ثانى مقدم دې، او (الذين) مفعول اول مؤخر دې، او اصطفينا جمله د الذين صله ده، او من عبادنا حال دې،

قوله: مقتصد: اقتصاد نه اسم فاعل دې، واحد مذكر، په نيغه لاره قائم، درميانه چليدل،

**قوله: مرصع بالذهب:** دا تفسير د لؤلؤ د جر د قراءت په صورت کښې دې، او که لؤلؤا نصب والا قراءت وی نو د (من اساور) په محل باندې به عطف وی، يدخلون او يحلون دا تغليبا دی، گنی دغه حکم خو د ښځو هم دې،

**قوله: الحزن:** دا د باب سمع مصدر دې، په معنی د غم، او پريشانه کيدل. شارح علام د جميعه اضافه کولو سره دې خبرې ته اشاره کړې ده چې د هر قسم غم ازاله مراد ده، برابره ده که د معاش غم وی او که د معاد، مطلب دا چې په جنت کښې به د هيڅ ځيز غم نه وی

**قوله. قالوا:** د ماضی صيغه د يقينی واقع کيدو د وجې راوړې ده.

**قوله: احلنا:** دادحل يحل حلولا نه ماخوذ دې، په معنی د داخليدو سره.

**قوله: المقامة:** دا د باب افعال نه مصدر ميمی دې، په معنی د هميشه اوسيدل.

**قوله: نصب:** ستړې والې، تکليف

**قوله: لغوب:** لغوب مصدراواسم مصدر دې، سستی، ستومانی، کمزورې کيدل.

**قوله: ذکر الثانی التابع الاول:** د مفسرعلام مقصد ددې عبارت نه د يو شبهې جواب ورکول دی.

**شبه:** دا ده چه نَصَب (ستړې والې) سبب، او لُغُوبْ (سستی)، مسبب دې، او انتفاء د سبب انتفاء د مسبب لره مستلزم وی، او لايمسنا فيها نصب کښې د سبب نفی ده، لهذا د لغوب هم نفی اوشوه، دوباره د لغوب د نفی کولو څه ضرورت وو.؟

**جواب:** خلاصه دا ده چې اګرچې د سبب نفی د مسبب نفی لره مستلزم وی خو دا نفی ضمنا او تبعا وی، د لغوب نفی کولو سره ئې مستقلا د نفی طرف ته اشاره اوکړه.

**قوله: يصطرخون:** د اصطراخ نه جمع م[illegible] ائب، هغوی به چغې وهی، (افتعال) "تاء" په "طاء" سره بدله کړې شوه

**قوله: العويل:** رفع الصوت بالبکاء په چغه ژړل.

**قوله: اولم نعمرکم ما:** دا جمله د قول محذوف مقوله ده، ای فيقال لکم همزه استفهام د توبيخ انکاری د پاره ده، د واؤ عاطفه په ذريعې په محذوف باندې عطف دې، ای الم نمهلکم ونؤخرکم عمرا يتذکر فيه من تذکر، (ما) نکره موصوفه په معنی د وخت، او يتذکر جمله صفت دې

**قوله: ماجاءکم:** ددې عبارت د اضافې مقصد د يوې شبهې جواب دې.

**شبه** داده چې د ظاهر آيت نه دا معلوميږی چې د اذاقت عذاب ترتب په مهلت د رسول باندې مرتب دې، حالانکه دا خلاف واقع دې،

**جواب:** د جواب خلاصه داده چې اذاقت عذاب به محذوف باندې مرتب دې، نه چې په مجئيت رسول باندې، او هغه محذوف فما اجبتم دې.

**[ اياتونه ۳۸ ـ ۴۵ ]**

﴿إن الله عالم غيب السماوات والأرض إنه عليم بذات الصدور﴾ بما في القلوب فعلمه بغيره أولى بالنظر إلى حال الناس ﴿هو الذي جعلكم خلائف في الأرض﴾ جمع خليفة اي يخلف بعضكم بعضا ﴿فمن كفر﴾ منكم ﴿فعليه كفره﴾ اي وبال كفره ﴿ولا يزيد الكافرين كفرهم عند ربهم إلا مقتا﴾ غضبا ﴿ولا يزيد الكافرين كفرهم إلا خسارا﴾ للآخرة ﴿قل أرأيتم شركاءكم الذين تدعون﴾ تعبدون ﴿من دون الله﴾ اي غيره وهم الأصنام الذين زعمتم أنهم شركاء الله تعالى ﴿أروني﴾ أخبروني ﴿ماذا خلقوا من الأرض أم لهم شرك﴾ شركة مع الله ﴿في﴾ خلق ﴿السماوات أم آتيناهم كتابا فهم على بينة﴾ حجة ﴿منه﴾ بأن لهم معي شركة لا شيء من ذلك ﴿بل إن﴾ ما ﴿يعد الظالمون﴾ الكافرون ﴿بعضهم بعضا إلا غرورا﴾ باطلا بقولهم الأصنام تشفع لهم ﴿إن الله يمسك السماوات والأرض أن تزولا﴾ اي يمنعهما من الزوال ﴿ولئن﴾ لام قسم ﴿زالتا إن﴾ ما ﴿أمسكهما﴾ يمسكهما ﴿من أحد من بعده﴾ اي سواه ﴿إنه كان حليما غفورا﴾ في تأخير عقاب الكفار ﴿وأقسموا﴾ اي كفار مكة ﴿بالله جهد أيمانهم﴾ غاية اجتهادهم فيها ﴿لئن جاءهم نذير﴾ رسول ﴿ليكونن أهدى من إحدى الأمم﴾ اليهود والنصارى وغيرهم اي أي واحدة منها لما رأوا من تكذيب بعضهم بعضا إذ قالت اليهود ليست النصارى على شيء وقالت النصارى ليست اليهود على شيء ﴿فلما جاءهم نذير﴾ محمد صلى الله عليه وسلم ﴿ما زادهم﴾ مجيئه ﴿إلا نفورا﴾ تباعدا عن الهدى ﴿استكبارا في الأرض﴾ عن الإيمان مفعول له ﴿ومكر﴾ العمل ﴿السيء﴾ من الشرك وغيره ﴿ولا يحيق﴾ يحيط ﴿المكر السيء إلا بأهله﴾ وهو الماكر ووصف المكر بالسيء أصل وإضافته إليه قبل استعمال آخر قدر فيه مضاف اليه حذرا من الإضافة إلى الصفة ﴿فهل ينظرون﴾ ينتظرون ﴿إلا سنة الأولين﴾ سنة الله فيهم من تعذيبهم بتكذيبهم رسلهم ﴿فلن تجد لسنة الله تبديلا ولن تجد لسنة الله تحويلا﴾ اي لا يبدل بالعذاب غيره ولا يحول إلى غير مستحقه ﴿أولم يسيروا في الأرض فينظروا كيف كان عاقبة الذين من قبلهم وكانوا أشد منهم قوة﴾ فأهلكهم الله بتكذيبهم رسلهم ﴿وما كان الله ليعجزه من شيء﴾ يسبقه ويفوته ﴿في السماوات ولا في الأرض إنه كان عليما﴾ اي بالأشياء كلها ﴿قديرا﴾ عليها ﴿ولو يؤاخذ الله الناس بما كسبوا﴾ من المعاصي ﴿ما ترك على ظهرها﴾ اي الأرض ﴿من دابة﴾ نسمة تدب عليها ﴿ولكن يؤخرهم إلى أجل مسمى﴾ اي يوم القيامة ﴿فإذا جاء أجلهم فإن الله كان بعباده بصيرا﴾ فيجازيهم على أعمالهم بإثابة المؤمنين وعقاب الكافرين

**ترجمه** بې شکه الله تعالى د اسمانونو او زمکې په پټو څيزونو باندې پوهيدونکې دې، بې شکه هغه د زړونو د رازونو نه خبردار دې، لهذا د زړه د رازونو نه علاوه په نورو باندې خو په طريق اولى خبردار دې، او اولويت د خلقو د احوالو په اعتبار سره دې، هم هغه ذات دې

چا چې تاسو په زمکه کښې آباد کړئ، خلائف، د خلیفة جمع ده، یعنی بعضې د بعضې جانشین وی، نو چا چې تاسو نه کفر اوکړو نو هم په هغه باندې د هغه کفر دې، یعنی د کفر وبال او سزا، او د کافرانو د پاره د دوی کفر د دوی د پروردگار په نیز باندې د غصې باعث دې، او د کافرانو کفر په آخرت کښې ددوی په تاوان کښې د زیاتوالی باعث دې، تاسو ورته اووایئ چې آیا تاسو د خپلو فرضی شریکانو حال کتلې دې؟ د چا چې تاسو د الله نه علاوه بندگی کوئی؟ یعنی د الله نه غیر، او هغه بتان دی، چې د چا باره کښې تاسو یقین ساتئ چې دا د الله شریکان دی، ماته اووایئ چې هغوی د زمکې کومه حصه پیدا کړې ده؟ یا د هغوی الله سره د اسمانونو په پیدا کولو کښې شرکت دې؟ یا مونږ دوی ته څه کتاب ورکړېدې، ؟ چې د هغې د وجې دوی په دلیل باندې قائم دی، په دې کښې یو خبره هم نشته، بلکه دا ظالمان کافران یو بل ته وائی چې دا بتان بهٔ ددوی سفارش کوی، خالص د دهوکې وعدې کوی، بې شکه الله تعالی اسمانونو او زمکې لره د غورځیدلو نه راتینگ کړې دې، والله که چرې هغه رااوغورزیږی نو دده نه علاوه څوک هغې لره راتینگونکې نشته، بې شکه هغه د کافرانو په عذاب کښې روستوالی کولو والا غفورو رحیم دې، او د مکې خلقو دالله ډیر زوردار قسمونه اوخوړل که چرې دوی ته رسول راغې نو دوی به د هر امت نه یعنی د یهودیانو عیسایانو نه زیات هدایت قبلولو والا وی، یعنی په دې دوارو کښې د هر یو نه (دا د هغه وخت خبره ده) چې کله دوی اوکتل چې یهود او نصاری د یو بل تکذیب کولو سره اووئیل چې نصاری په حق باندې نه دی او نصاری اووئیل چې یهود په حق باندې نه دی، چې کله دوی ته ویرونکې یعنی محمد ﷺ راغلو نو د هغه په راتلو سره ئې په نفرت یعنی د هدایت نه په لرې کیدلو کښې اضافه اوکړه، په دنیا کښې د ایمان نه تکبر کولو د وجې نه او ددوی د شرک وغیره په خرابو تدبیرونو کښې زیاتوالې اوشو، استکبارا د نفورا مفعول له دې، او د خراب تدبیرونو وبال په خپله تدبیر کولو والا باندې راځی، او هغه خراب تدبیر کونکې دې، او د مکر صفت په سیئ سره اصل (استعمال) دې، مخکښې د مکر اضافت سیئ طرف ته بل استعمال دې، په دې کښې د اضافتِ موصوف الی الصفت نه د بچ کیدو د پاره مضاف محذوف گڼرلې شوې دې، (معلومیږی) چه دا خلق صرف د الله د هغه دستور په انتظار دی، کوم چې مخکښې خلقو سره کیدلو، او هغه دستور دوی لره د خپلو رسولانو د تکذیب د وجې نه په عذاب کښې مبتلا کول دی، نو تاسو به چرې هم د الله په دستور کښې تبدیلی اونه گورئی، او د الله په دستور کښې به بدلیدل هم اونه وینې، یعنی عذاب په غیر عذاب سره نه بدلیږی، او دغه شان د مستحق نه غیر مستحق ته به نه منتقل کیږی، نو ایا دا خلق په زمکه باندې نه گرځی چې اوگوری چې د مخکښې خلقو څه انجام شو؟ حالانکه هغوی په قوت کښې ددوی نه زیات وو، نو الله هغوی لره هغوی د رسول دتکذیب د وجې نه هلاک کړل، او الله داسې نه دې چې په اسمانو او زمکه

کښې څوک هغه ته شکست ورکړي، چې د هغه نه مخکښې شي، او هغه نه بچ اوځي، او هغه په ټولو ځيزونو باندې خبردار دې، او په دوی باندې قادر دې، او که الله تعالى خلقو له ددوی د ګناهونو د وجې نه نيول شروع کړي نو په مخ د زمکې به يو کس هم پاتې نه کړي، چې په زمکه باندې اوګرځي، (يعنى ژوندى پاتې شي) خو الله تعالى هغوی ته د يو وخت مقرر يعنى د قيامت ورځ پورې مهلت ورکوي نو چې کله ددوی وخت راشي نو الله تعالى به په خپله خپلو بندګانو سره پوهه شي، نو هغه به دوی ته ددوی د اعمالو بدله ورکړي، مؤمنينو ته ثواب ورکولو سره او کافرانو ته سزا ورکولو سره.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** انه عليم بذات الصدور: دا د عالم غيب السموات والارض علت دې، يعنى کوم ذات چې د سينې د رازونو نه خبردار دې، نو ددې نه په علاوه باندې په طريقهٔ اولى خبردار وی، ان الله عالم غيب السموات والارض دا دعوى ده، انه عليم بذات الصدرود دعوې دليل دې، اوفعلمه بغيره اولى دا نتيجه ده.

**قوله:** بالنظر الى حال الناس: داد يو سوال مقدر جواب دې، سوال دا دې چې د الله تعالى په علم کښې د اولويت واولويت په اعتبار سره څه فرق نه راځي، بلکه د هغه ته ټول ځيزونه يو برابر ښکاره دی، د الله په علم حضوری کښې دې خبرې سره څه فرق نه پريوزی چې بعضې ځيزونه د انسانانو د پاره پټ وی او بعضې ښکاره وی؟

**جواب:** د الله د طرف نه د اولويت نسبت د انسانانو د عادت په اعتبار سره دې چې انسان کله د پټ ځيز نه خبردار وی نو د ښکاره نه به په طريقهٔ اولى خبردار وی،

**قوله:** ولايزيد الكافرين: الخ دا د کفر د وبال او د هغې د انجام بيان دې،

**قوله:** قل ارايتم: (الأية) په دې کښې د اعراب په اعتبار سره دوه صورتونه دی، ① همزه استفهاميه او (اروني) د امر تعجيز د پاره جمله معترضه ده، په دې صورت کښې به دا د باب تنازع فعلان نه وی، او اروني ماذا خلقوا من الارض دا د ارايتم نه بدل الاشتمال دې، اى اخبروني عن شركائكم واروني اى شيئ خلقوا من الارض حتى يستحقوا الالهية والشركة، بعضې حضراتو وئيلي دی چې اروني د ارايتم نه بدل الكل دې، خو ابوحيان بدل ته ناجائز وئيلي دی، ددوی وينا ده چې کله مبدل منه باندې همزه استفهام راځل شي نو ضروری ده چې په بدل باندې هم داخل وی، او دلته داسې نه ده، او ابدال جمله عن الجملة په لغت عربی کښې معروف نه دې، او بدل د عامل د تکرار په نيت سره وی، او دلته مبدل منه يعنى ارايتم کښې عامل نشته.

② دویم احتمال دادې چې دا جمله د باب تنازع فعلان نه وی، په دې صورت کښې به ارایتم د باب افعال نه وی، او د اخبرونی په معنی به وی متعدی په دوه مفعولو سره وی، مفعول اول (نی) دې، دویم مفعول ته ددې ضرورت دې. دویم فعل ارونی دې، دا هم متعدی بدومفعول دې، یو مفعول دې سره متصل (نی) دې، د دې هم دویم مفعول ته ضرورت دې، او دویم مفعول چې په کوم کښې تنازع ده هغه ماذاخلقوامن الارض دې، چې په هغې کښې اروني اوارايتم تنازع کوی، د بصریین د مختار مذهب مطابق دویم فعل اروني ته عمل ورکړې شو.

**قوله: شرکائهم:** دا اضافت د ادنیٰ مناسبت د وجې دې، ځکه چې مشرکینو دوی لره د الله شریکان جوړ کړې وو، یا اضافت ددې وجې دې چې مشرکانو بتانو لره په حقیقت کښې په خپلو مالونو کښې شریک کړې وو، او باقاعده په خپلو مالونو کښې به ئې د بتانو حصه ساتله، ددوی د نوم قربانی به ئې کوله.

**قوله: امراتیناهم:** د(هم)نه مراد مشرکین دی، بعضې حضراتو وئیلې دی چې شریکان مراد دی، یعنی آیا مونږ مشرکینو لره یا شریکانو لره څه داسې کتاب ورکړې دې، چې په هغې کښې لیکلې وی، چې ځما په قدرت کښې ځما څوک شریک شته؟ لاشیئ من ذلك سره ئې اشاره اوکړه چې دااستفهام انکاری دې، او دا جمله د ذکر شوې درې واړو استفهامونو جواب دې.

**قوله: شرکه:** د شرک تفسیر په شرکة سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چې شرک مصدر په معنی دشرکة دې، (لغات القرآن)

**قوله: بعضهم:** دظالمون نه بدل دې.

**قوله: یمنعهمن الزوال:** دې سره ئې دې خبرې ته اشاره ده چې ان تزولا د حرف جر (من)د اسقاط سره په تاویل د مصدر د یمسك مفعول ثانی دې، او یمسك دیمنعهم په معنی کښې دې، او زجاج وئیلې دی چې مفعول له دې، ای مخافة ان تزولا.

**قوله: ولئن زالتا:** په دې کښې قسم او شرط دواړه جمع دی، ان امسکهما جواب قسم دې، او د قاعدې معروفې په اعتبار سره جواب شرط محذوف دې، کوم باندې چې جواب قسم دلالت کوی،

واحذف لدى اجتماع شرط وقسم   جواب ما اخرت فهوا ملتزم

**قوله: من احد:** من په فاعل باندې زائد دې، (احد) لفظا مجرور او محلا مرفوع دې.

**قوله: سواه:** دا د (من بعده) تفسیر دې، یعنی بُعد د غیر په معنی کښې دې، او په من بعده کښې (من) ابتدائیه دې،

قوله: انه كان غفورا رحيما: دا د يمسكهما السموات والارض علت دې، يعنى غفور او رحيم كيدو د وجې نه ئ زمكه او اسمان د غورزيدو نه منع كړې دى، يعنى كفر او شرك په حقيقت كښې داسې جرمونه دى چې د هغې سزا زر ميلاويدل پكار دى، خو هغه د صفت رحمت د وجې نه په عذاب كښې روستوالې كوى.

قوله: جهد ايمانهم: مفسر علام د جهد تفسير په غاية ايمانهم سره كړې دې، اشاره ئ اوكړه چې جهد د مصدريت د وجې نه منصوب دې، او دا هم صحيح ده چې د حال كيدو د وجې نه منصوب وى، اى اقسموا بالله جاهدين، جهد د جيم په فتحې سره، پورا طاقت لګول او كوشش كول. جهد بالضم په معنى د طاقت سره، د مشركينِ مكه دا عادت وو چې عام طور به ئې د بتانو قسمونه خوړل، خو چې كله به ئ په يو كار باندې يقين او باور كول مقصود وو، نو قسم د زيات مضبوطولو او مؤكد كولو د پاره به ئې د الله قسمونه خوړل.

قوله: ليكونن: دا بالمعنى حكايتِ حال دې، ګنى د مقام خو تقاضه دا وه چې لتكونن وې.

قوله: فلما جاءهم نذير: لما حرف شرط دې، او ما زادهم الا نفورا جواب شرط دې، دلته لما ظرفيه منل صحيح نه دى، ځكه چې د (ما) نافيه مابعد په ماقبل كښې عمل نه كوى، او د نفرت د زياتوالى اسناد نذير طرف ته يا د مجيئت طرف ته اسناد مجازى دې، ځكه چې نذير د نفرت سبب دې، ګنى د نذير كار د نفرت پيدا كول يا په نفرت كښې زياتوالې نه دې.

قوله: استكبارا: دا د نفورا مفعول له دې، يعنى د مشركينو د ايمان په مقابله كښې تكبر او لوئ د وجې نه ددوى په نفرت كښې اضافه اوشوه، دارنګ د نفورا نه بدل واقع كيدل هم صحيح دى، او د زادهم د ضمير نه حال هم كيدې شى، اى ما زادهم الا نفورا حال كونهم مستكبرين.

قوله: ومكر العمل السيئ: ددې عطف په استكبارا يا په نفورا دې، يعنى د مشركينو په نفرت كښې د اضافې سبب د ايمان نه اعراض او د خراب عملونو تدبيرونه دى، يا په نفرت كښې اضافه د تكبر او د خراب تدبير په وجه وه، په مكر السئ كښې اصل استعمال المكر السئ يعنى په تركيب توصيفى سره دې او په ماقبل جمله كښې چه په تركيب اضافى سره كوم استعمال شوې دې هغه خلاف اصل دې ځكه چه په هغې كښې د موصوف اضافت صفت طرف ته كيږى كوم چې اضافت الشئ الى نفسه د قبيلې نه دې، او ممنوع دې، ددې نه د بچ كيدو د پاره مفسر علام "العمل" مضاف اليه محذوف ګڼلې دې كوم چې د السئ موصوف دې، په دې طريقې سره اضافت الموصوف الى الصفت اعتراض ختم شو، ځكه چې په دې صورت كښې د (مكر) اضافت (العمل) طرف ته دې، نه چې د السيئ طرف ته، او د بعضې حضراتو په نيز د مكر السئ اصل أن مكروا مكر السئ دې، موصوف

یعنی المکر ئې د صفت یعنی د السیئ د وجې نه د مستغنی کیدو د وجې نه حذف کړو، بیا فعل سره د ان مصدریه یعنی د مکرنه ئې بدل کړو، بیا اتساعاً د مصدر اضافت، د صفت یعنی د السیئ طرف ته اوکړې شو، نو مکرالسیئ ترې جوړ شو

**قوله: وصف المکر بالسیئ اصل واضافته الیه قبل استعمال آخر قدر فیه مضاف الیه حذرا من الاضافة الی الصفة:** د شارح ددې عبارت نه مقصد داو خودل دی چې د مکر السیئ اصل او د قاعدې مطابق استعمال خو په ترکیب توصیفی لازمیږی څنګه چې ولا یحیق المکر السیئ الا باهله کښې دې، او اضافت سره استعمال خلاف اصل دې، څنګه چې مکر السیئ کښې دې، ځکه چه په دې صورت کښې د اضافت الشیئ الی نفسه قباحت لازمیږی، چونکه څیز او وصف د څیز هم یو وی ځکه مفسر علام (العمل) مضاف الیه محذوف منلې دې چې د اضافت الی الصفت اعتراض لازم نشی، العمل محذوف ګڼړولو نه پس د مکر اضافت صفت یعنی السیئ طرف ته نه دې بلکه د السیئ موصوف یعنی العمل طرف ته دې، او په دې کښې هیڅ قباحت نشته.

**قوله: الا سنت الاولین:** د دې تفسیرئې په سنة الله فیهم سره کولو کښې اشاره اوکړه چې مصدر مفعول طرف ته مضاف دې،

**قوله: اولم یسیروا فی الارض:** کښې واؤ عاطفه دې، او همزه محذوف باندې داخله ده تقدیری عبارت دادې اترکوا السفرولم یسیروا فی الارض: دا جمله په دې خبره باندې دلالت کوی چې د الله په دستور کښې تبدیلی نه رازی، کومه معامله چې مخکښې منکرینو او مشرکینو سره الله کړه وه هغه به دوی سره هم اوکړی، همزه استفهام انکاری ده، چې د هغې د وجې نفی النفی د اثبات فائده ورکړه، مطلب دادې چې دا خلق سفر کوی او دقوم صالح، لوط او شعیب وغیره نبیانو کوری خو هغې نه عبرت نه حاصلوی.

**قوله: بما کسبوا:** کښې باء سببیه ده او (ما) مصدریه یا موصوله ده، ای بسبب کسبهم او بسبب الذی کسبوه.

**قوله: نسمة:** ساه والا متنفس ته وئیلې شی، جمع ئې نَسَمٌ ده

**قوله: فیجازیهم:** مفسر علام په دې عبارت سره اشاره اوکړه چې اذا جاء اجلهم شرط دې، او ددې جزاء محذوف ده، او هغه فیجازیهم ده

## [۳۶] سورة يس

سورة يس مكية الا قوله: واذا قيل لهم انفقوا الاية، او مدنية و هي ثلث و ثمانون اية

سوره يٰس مكي ده سوا د "واذا قيل لهم انفقوا" آيت نه. دا مدني ده او په دې كښې ۸۳ آيتونه دي

### [اياتونه: ۱ ـ ۱۲]

بسم الله الرحمن الرحيم (يس) الله أعلم بمُرَادِهِ بِهِ (وَالْقرآن الْحَكِيم) الْمُحْكَم بِعَجِيب النَّظْم وَبَدِيع الْمَعَانِي (إنك) يا محمد (لمن المرسلين (عَلَى) مُتَعَلِّق بِمَا قَبْله (صِرَاط مُسْتَقِيم) أَيْ طَرِيق الْأَنْبِيَاء قَبْلك التَّوْحِيد وَالْهُدَى وَالتَّأْكِيد بِالْقَسَمِ وَغَيْره رَدّ لِقَوْلِ الْكُفَّار لَهُ لَسْت مُرْسَلًا (تَنْزِيلَ الْعَزِيزِ) فِي مُلْكه (الرَّحِيم) بِخَلْقِهِ خَبَر مبتدأ مُقَدَّر أَيْ القرآن (لِتُنْذِر) بِهِ (قَوْمًا) مُتَعَلِّق بِتَنْزِيلِ (مَا أُنْذِرَ آبَاؤُهُمْ) أَيْ لَمْ يُنْذَرُوا فِي زَمَن الْفَتْرَة (فَهُمْ) أَيْ الْقَوْم (غَافِلُونَ) عَنْ الْإِيمَان وَالرُّشْد (لَقَدْ حَقَّ الْقَوْل) وَجَبَ (عَلَى أَكْثَرهمْ) بِالْعَذَابِ (فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ) أَيْ الْأَكْثَر (إنَّا جَعَلْنَا فِي أَعْنَاقهمْ أَغْلَالًا) بِأَنْ تُضَمّ إلَيْهَا الْأَيْدِي لِأَنَّ الْغُلّ يَجْمَع الْيَد إلَى الْعُنُق (فَهِيَ) أَيْ الْأَيْدِي مَجْمُوعَة (إلَى الْأَذْقَان) جَمْع ذَقَن وَهِيَ مُجْتَمَع اللَّحْيَيْنِ (فَهُمْ مُقْمَحُونَ) رافعون رؤوسهم لَا يَسْتَطِيعُونَ خَفْضهَا وَهَذَا تَمْثِيل وَالْمُرَاد أَنَّهُمْ لا يذعنون للإيمان ولا يخفضون رؤوسهم له (وَجَعَلْنَا مِنْ بَيْن أَيْدِيهمْ سَدًّا وَمِنْ خَلْفهمْ سَدًّا) بِفَتْحِ السِّين وَضَمّهَا فِي الْمَوْضِعَيْنِ (فَأَغْشَيْنَاهُمْ فَهُمْ لَا يُبْصِرُونَ) تَمْثِيل أَيْضًا لِسَدِّ طُرُق الإيمان عليهم (وَسَوَاء عَلَيْهِمْ أَأَنْذَرْتهمْ) بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَإِبْدَال الثَّانِيَة أَلِفًا وَتَسْهِيلهَا وَإِدْخَال أَلِف بَيْن الْمُسَهَّلَة وَالْأُخْرَى وَتَرْكه (أم لم تنذرهم لا يؤمنون) (إنَّمَا تُنْذِر) يَنْفَع إنْذَارك (مَنْ اتَّبَعَ الذِّكْر) القرآن (وَخَشِيَ الرَّحْمَن بِالْغَيْبِ) خَافَهُ وَلَمْ يَرَهُ (فَبَشِّرْهُ بِمَغْفِرَةٍ وَأَجْر كَرِيم) هُوَ الْجَنَّة (إنَّا نَحْنُ نُحْيِي الْمَوْتَى) لِلْبَعْثِ (وَنَكْتُب) فِي اللَّوْح الْمَحْفُوظ (مَا قَدَّمُوا) فِي حَيَاتهمْ مِنْ خَيْر وَشَرّ لِيُجَازُوا عَلَيْهِ (وَآثَارهمْ) مَا اسْتَنَّ بِهِ بَعْدهمْ (وَكُلّ شَيْء) نَصْبه بِفِعْلٍ يُفَسِّرهُ (أَحْصَيْنَاهُ) ضَبَطْنَاهُ (فِي إمَام مُبِين) كِتَاب بَيِّن هُوَ اللَّوْح الْمَحْفُوظ

**ترجمه:** شروع كوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او ډير رحم والا دې، ددې نه د الله څه مراد دې، هم هغه ترې زيات خبر دې، قسم دې په دې محكم قرآن باندې كوم چې په عجيبه نظم او ناآشنا معانو سره محكم دې، بې شكه اې محمد ﷺ ته د پيغمبرانو نه يې، او په ينغه لاره باندې يې، (على) د خپل ماقبل (مرسلين) متعلق دې، او د طريق مستقيم نه مراد د مخكښې پيغمبرانو طريقه ده، كومه چې د توحيد او د هدايت لاره ده، او د قسم وغيره په ذريعه تاكيد د كافرانو خبرې (لست مرسلا) د رد د پاره دې، دا قرآن د هغه الله نازل كړه دې چې په خپله بادشاهئ كښې غالب او په خپل مخلوق باندې مهربان دې، تنزيل العزيز، د مبتدأ محذوف يعنى د القرآن خبر دې، دې د پاره چې ته داسې قوم لره خبر كړې چې د هغوى

پلار نیکه خبر کړې شوې نه وو یعنی هغوی د فترت یعنی د وقفې په زمانه کښې خبر کړې شوې نه وو ، لتنذر د تنزیل متعلق دې، د دغې وجې نه د ایمان او هدایت نه بې خبر دی په دوی کښې په اکثر خلقو باندې په تقدیری توګه خبره ثابته شوې ده نو دوی اکثر خلق به ایمان نه راوړی، مونږ د دوی په ستونو کښې طوق اچولی دی په داسې طریقې سره چې هغه طوق (مزې، رسې) د دوی لاسونو لره سټ سره تړلې دی، چنانچه هغه تړلې شوې زنې پورې انختې دی، اذقان د ذقن جمع ده، او ذقن د دواړو جامو د میلاویدو ځایې ته وائی. چې د هغې د وجې دوی سرونه اوچت کړې دی، هغه خکته کولې نشی، او دا یو مثال دې، او مراد دادې چې دا خلق دایمان اقرار نه کوی، او نه خپل سرونه د ایمان د پاره خکته کوی، او مونږ یو بند (ارهم) د دوی مخکښې او یو ارهم د دوی شاته جوړ کړې دې، په دواړه ځایونو کښې د سین په فتحې او ضمې سره دې، چې د هغې د وجې نه مونږ په دوی پرده اچولې ده، نو دوی کتلې نشی، دا هم یو مثال دې، په دوی باندې د ایمان لارې بندولو د پاره او ستاسو د دوی ویرول او نه ویرول برابر دی، د دواړو همزو تحقیق، او دویمه همزه الف باندې بدلولو سره، او د دویمې تسهیل یعنی نرمئی سره، او د مسهله او غیر مسهله په مینځ کښې الف داخلولو سره، او نه داخلولو سره، هغوی ایمان راوړونکې نه دی، ته خو صرف هغه کس ته نصیحت کولې شې، کوم چې د نصیحت یعنی د قرآن تابعداری کوی، او غائبانه توګه باندې یعنی د رحمن د لیدلو نه بغیر د رحمن نه ویرېږی، یعنی ستاسو ویرول دوی ته فائده ورکوی، نو ته دوی ته د بنه عوض چې هغه جنت دې خوشخبری ورکړه، او بې شکه مونږ به مړی د پاسولو د پاره ژوندی کوو، او دوی چې په خپل ژوند کښې کوم خراب اعمال مخکښې لیږلې دی او کوم اعمال ئې چې روستو پرېښودی دی چې د هغې په نقش قدم باندې روستو تلل اوشو مونږ هغه په لوح محفوظ کښې لیکلې دی، دې د پاره چې دوی ته د دوی د اعمالو بدله ورکړې شی او مونږ هر څیز لره په روښانه کتاب یعنی په لوح محفوظ کښې لیکلې دې، روښانه کتاب لوح محفوظ دې، کل شئ د هغه فعل مقدر د وجې نه منصوب دې، د کوم چې ددې نه پس فعل (احصیناه) تفسیر کوی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله: یس:** قراء سبعۀ د نون په سکون سره وئیلې دې، ددې نه علاوه د نون ضمه، فتحه، او کسره درې واړو قراءتونو سره هم دې، خو شاذ دې

**قوله: الله اعلم بمراده:** د حروف مقطعات په باره کښې دا قول د ټولو نه زیات منلې شوې او هم دا محتاط قول دې، د ابن عباس ﷺ نه روایت دې چې (یس) په لغت د بنی طئ کښې د (یا انسان) په معنی کښې دې، او د ابن الحنفیه نه روایت دې، چې یس د یا محمد په معنی کښې دې.

قوله: والقرآن الحكيم: واؤ قسميه دې او القرآن مقسم به دې، انك لمن المرسلين جواب قسم دې.

قوله: مقمحون: دا د اقماح نه مقمح اسم مفعول، جمع مذكر دې، قمح ماده ده، د څټ انختيدو د وجې نه څټونه بره طرف ته اوچت شي، يعني قامح،هغه اوښ چې اوبه څکلو نه پس سترګې پټې کړي سر اوچت کړي او اودريږي، چونکه د دوزخيانو په څټونو کښې په تيزندئ (طوقونه) وي چې د هغې د وجه نه به زنې بره کړې شوي وي، چې د هغې د وجې نه به څټونه هم بره وي،

قوله: تنزيل العزيز: دا د هذا مبتدأ محذوف خبر دې، يا د امدح فعل محذوف د وجې نه منصوب دې، اى امدح تنزيل العزيز، يا د نزل محذوف د مفعول مطلق كيدو د وجې نه منصوب دې، نزل تنزيلا

قوله: في لوح محفوظ: دا د نكتب ظرف دې، بهتره به وه چې مفسر علام د (لوح محفوظ) په ځاى (في صحف الملائكة) وئيلې وې، ځكه چې په دنيا كښې د اعمالو ليكل د ملائكو په صحيفو كښې وى نه چې په لوح محفوظ كښې.

قوله: كل شيئ: د خپل مابعد فعل د وجې نه منصوب دې، او دا د بابِ اشتعال نه دې، اى احصيناه كل شيئ احصيناه

قوله: اثار: دا اثر جمع ده، نښې ته وائى، دلته عملى نمونې مراد دى، كه هغه ښې وى او كه بدې.

## پاره نمبر ۲۳ [ومالي]

## [اياتونه: ۱۳ - ۳۲]

{وَاضْرِبْ} اجْعَلْ {لَهُمْ مَثَلًا} مَفْعُول أَوَّل {أَصْحَاب} مَفْعُول ثَانٍ {الْقَرْيَة} أَنْطَاكِيَة {إِذْ جَاءَهَا} إِلَى آخِره بَدَل اشْتِمَال مِنْ أَصْحَاب الْقَرْيَة {الْمُرْسَلُونَ} أَيْ رُسُل عِيسَى {إِذْ أَرْسَلْنَا إِلَيْهِمُ اثْنَيْنِ فَكَذَّبُوهُمَا} إِلَى آخِره بَدَل مِنْ إِذْ الْأُولَى الخ {فَعَزَّزْنَا} بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيد قَوَّيْنَا الاثنين {بِثَالِثٍ فَقَالُوا إِنَّا إِلَيْكُمْ مُرْسَلُونَ} {قَالُوا مَا أَنْتُمْ إِلَّا بَشَرٌ مِثْلُنَا وَمَا أَنْزَلَ الرَّحْمَنُ مِنْ شَيْءٍ إِنْ} ما {أَنْتُمْ إِلَّا تَكْذِبُونَ} {قَالُوا رَبُّنَا يَعْلَمُ} جَارٍ مَجْرَى الْقَسَم وَزِيدَ التَّأْكِيد بِهِ وَبِاللَّامِ عَلَى مَا قَبْله لِزِيَادَةِ الْإِنْكَار فِي {إِنَّا إِلَيْكُمْ لَمُرْسَلُونَ} {وَمَا عَلَيْنَا إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ} التَّبْلِيغ الْمُبِين الظَّاهِر بِالْأَدِلَّةِ الْوَاضِحَة وَهِيَ إِبْرَاء الْأَكْمَه وَالْأَبْرَص وَالْمَرِيض وَإِحْيَاء الْمَيِّت {قَالُوا إِنَّا تَطَيَّرْنَا} تَشَاءَمْنَا {بِكُمْ} لِانْقِطَاعِ الْمَطَر عَنَّا بِسَبَبِكُمْ {لَئِنْ} لَام قَسَم {لَمْ تَنْتَهُوا لَنَرْجُمَنَّكُمْ} بِالْحِجَارَةِ {وَلَيَمَسَّنَّكُمْ مِنَّا عَذَابٌ أَلِيمٌ} مُؤْلِم {قَالُوا طَائِرُكُمْ} شُؤْمكُمْ {مَعَكُمْ} بِكُفْرِكُمْ {أَئِنْ} هَمْزَة اسْتِفْهَام دَخَلَتْ عَلَى إِنْ الشَّرْطِيَّة وَفِي هَمْزَتهَا التَّحْقِيق وَالتَّسْهِيل وَإِدْخَال أَلِف بَيْنهَا بِوَجْهَيْهَا وَبَيْن الْأُخْرَى {ذُكِّرْتُمْ} وُعِظْتُمْ وَخُوِّفْتُمْ وَجَوَاب الشَّرْط مَحْذُوف أَيْ تَطَيَّرْتُمْ وَكَفَرْتُمْ وَهُوَ مَحَلّ الِاسْتِفْهَام وَالْمُرَاد بِهِ التَّوْبِيخ {بَلْ أَنْتُمْ قَوْمٌ

مُسْرِفُونَ، متجاوزون الحد بشرككم ﴿وجاء من أقصا المدينة رجل﴾ هُوَ حَبِيب النَّجَّار كَانَ قَدْ آمَنَ بِالرُّسُلِ وَمَنْزِله بِأَقْصَى الْبَلَد ﴿يَسْعَى﴾ يَشْتَدّ عدوا لما سمع بتكذيب القوم الرسل ﴿قال يا قوم اتبعوا المرسلين﴾ ﴿اتبعوا﴾ تَأْكِيد لِلْأَوَّلِ ﴿مَنْ لَا يَسْأَلُكُمْ أَجْرًا﴾ عَلَى رِسَالَته ﴿وَهُمْ مُهْتَدُونَ﴾ فَقِيلَ لَهُ أَنْتَ عَلَى دينهم فقال ﴿وَمَا لِيَ لَا أَعْبُدُ الَّذِي فَطَرَنِي﴾ خلقني أَيْ لَا مَانِع لِي مِنْ عِبَادَته الْمَوْجُود مُقْتَضِيهَا وَأَنْتُمْ كَذَلِكَ ﴿وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ﴾ بَعْد الْمَوْت فيجازيكم بكفركم ﴿أَأَتَّخِذُ﴾ فِي الْهَمْزَتَيْنِ مِنْهُ مَا تَقَدَّمَ فِي ﴿أَأَنْذَرْتهمْ﴾ وَهُوَ اسْتِفْهَام بِمَعْنَى النَّفْي ﴿مِنْ دُونه﴾ أَيْ غَيْره ﴿آلِهَة﴾ أصنامًا ﴿إِنْ يُرِدْنِ الرَّحْمَٰنُ بِضُرٍّ لَا تُغْنِ عَنِّي شَفَاعَتُهُمْ﴾ الَّتِي زَعَمْتُمُوهَا ﴿شَيْئًا وَلَا يُنْقِذُونِ﴾ صِفَة آلِهَة ﴿إِنِّي إِذًا﴾ أَيْ إِنْ عَبَدْت غَيْر اللَّه ﴿لَفِي ضَلَالٍ مُبِينٍ﴾ بَيِّن ﴿إِنِّي آمَنْتُ بِرَبِّكُمْ فَاسْمَعُونِ﴾ أَيْ اسْمَعُوا قَوْلِي فرجموه فمات ﴿قِيلَ﴾ لَهُ عِنْد مَوْته ﴿ادْخُلِ الْجَنَّةَ﴾ وَقِيلَ دخلها حيا ﴿قَالَ يَا﴾ حرف تنبيه ﴿ليت قومي يعلمون﴾ ﴿بما غفر لي ربي﴾ بغفرانه ﴿وجعلني من المكرمين﴾ ﴿وَمَا﴾ نَافِيَة ﴿أَنْزَلْنَا عَلَىٰ قَوْمِهِ﴾ أَيْ حَبِيب ﴿مِنْ بَعْدِهِ﴾ بَعْد مَوْته ﴿مِنْ جُنْدٍ مِنَ السَّمَاءِ﴾ أَيْ مَلَائِكَة لِإِهْلَاكِهِمْ ﴿وَمَا كُنَّا مُنْزِلِينَ﴾ مَلَائِكَة لِإِهْلَاكِ أحد ﴿إِنْ﴾ مَا ﴿كَانَتْ﴾ عُقُوبَتهمْ ﴿إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً﴾ صَاحَ بِهِمْ جِبْرِيل ﴿فَإِذَا هُمْ خَامِدُونَ﴾ سَاكِتُونَ ميتون ﴿يَا حَسْرَةً عَلَى الْعِبَادِ﴾ هَؤُلَاءِ وَنَحْوهمْ مِمَّنْ كَذَّبُوا الرُّسُل فَأُهْلِكُوا وَهِيَ شِدَّة التَّأَلُّم وَنِدَاؤُهَا مَجَاز أَيْ هَذَا أَوَانك فاحضري ﴿مَا يَأْتِيهِمْ مِنْ رَسُولٍ إِلَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ﴾ مَسُوق لِبَيَانِ سَبَبهَا لِاشْتِمَالِهِ عَلَى اسْتِهْزَائِهِمْ الْمُؤَدِّي إِلَى إِهْلَاكهمْ الْمُسَبَّب عَنْهُ الْحَسْرَة ﴿أَلَمْ يَرَوْا﴾ أَيْ أَهْل مَكَّة الْقَائِلُونَ لِلنَّبِيِّ لَسْت مُرْسَلًا وَالِاسْتِفْهَام لِلتَّقْرِيرِ أَيْ عَلِمُوا ﴿كَمْ﴾ خبرية بمعنى كثيرا معمولة لما بَعْدهَا مُعَلِّقَة لِمَا قَبْلهَا عَنْ الْعَمَل وَالْمَعْنَى إِنَّا ﴿أَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ﴾ كَثِيرًا ﴿مِنَ الْقُرُونِ﴾ الْأُمَم ﴿أَنَّهُمْ﴾ أَيْ الْمُهْلَكِينَ ﴿إِلَيْهِمْ﴾ أَيْ الْمُكَذِّبِينَ ﴿لَا يَرْجِعُونَ﴾ أَفَلَا يَعْتَبِرُونَ بِهِمْ وَأَنَّهُ إِلَخْ بَدَل مِمَّا قَبْله بِرِعَايَةِ الْمَعْنَى الْمَذْكُور ﴿وَإِنْ﴾ نَافِيَة أَوْ مُخَفَّفَة ﴿كُلٌّ﴾ أَيْ كُلّ الْخَلَائِق مبتدأ ﴿لَمَّا﴾ بِالتَّشْدِيدِ بِمَعْنَى إِلَّا أَوْ بِالتَّخْفِيفِ فَاللَّام فَارِقَة وَمَا مَزِيدَة ﴿جَمِيعٌ﴾ خَبَر الْمُبْتَدَأ أَيْ مَجْمُوعُونَ ﴿لَدَيْنَا﴾ عِنْدنَا فِي الْمَوْقِف بَعْد بَعْثهمْ ﴿مُحْضَرُونَ﴾ لِلْحِسَابِ خَبَر ثَانٍ

---

**ترجمه:** ته دوی ته یو مثال یعنی د یو کلی انطاکیه مثال د هغه وخت بیان کړه چې کله په دې کلی کښې دیر رسولان راغلل، (مثلا، مفعول اول دې، او (اصحب القرية) مفعول ثانی دې، چې کله هغوی دوی ته اذجاءها الخ، داصحاب قریةنه بدل الاشتمال دې، او د مرسلون نه د عیسی علیه السلام قاصدان مراد دې، یعنی کله چې مونږ دوی ته اول ځل کښې دوه کسان راولیږل نو دوی د دواړو تکذیب اوکړو، اذ ارسلنا د اولنی اذنه بدل دې، بیا مونږ ورته په دریم سره طاقت ورکړو فعززنا کښې تخفیف او تشدید دواړه قراءتونه دی، یعنی ددوو مو په دریم سره مرسته اوکړه، نو دې دریواړو اووئیل چې مونږ تاسو ته رالیږلې شوې یو، نو هغه خلقو جواب ورکړو چې تاسو خو مونږ په شان انسانان یئ او الله تعالی څه شئ نازل کړې نه دې، تاسو تش دروغ وائی، لیږلې شوو اووئیل چې زمونږ رب ته ښه پته ده، چې مونږ تاسو ته رالیږلې شوې یو، ربنا قائم مقام د

قسم دې، او د دې قسم او د لام د وجې نه د ماقبل په نسبت سره د انكار د زيانوالى د وجې نه په انا الیکم لمرسلون کښې تاکید زيات راوړې شو. او زمونږ په ذمه خو په ښکاره پيغام رسول دی، او بس، كوم چې په واضحه معجزو باندې ورته مرسته حاصله ده. او هغه معجزې ړندو لره بينا كول، جزام والا او مريض لره روغول. او مړي ژوند کول وو. هغوی اووئيل چې ستاسو د وجې نه د باران د نه كيدو د وجې نه په مونږ باندې سپيره والې راغلې دې، كه تاسو منع نه شئ نو مونږ به تاسو لره سنګسار كړو، او تاسو ته به زمونږ: طرف نه سخت تكليف اورسی، هغه ليږلي شوو اووئيل ستاسو نحوست ستاسو د كفر د وجې نه تاسو سره دې، آيا تاسو دا نحوست ګنړئ چې تاسو ته نصيحت اوكړې شو، بلكه خپله تاسو داسې خلق يئ چې د خپل شرك د وجې نه مو د حد نه تجاوز كړې دې، همزه استفهام په ان شرطيه باندې داخله ده. او ددې په همزه كښې تحقيق وتسهيل او په دواړه صورتونو كښې، ددې او دويم يعنى د همزه استفهام په مينځ كښې الف داخلول دى او نه داخلول دى، او ذكرتم په معنى د وعظتم اوخوفتم دې، او جوابِ شرط محذوف دې، يعنى تطيرتم وكفرتم او هم دا محل د استفهام دې، او مراد ددې نه توبيخ دې، او د ښار د هغه ژائې يو كس چې د هغه نوم حبيب نجار وو. هغه په رسولانو باندې ايمان راوړې وو او د هغه كور د ښار په لرې غاړې باندې وو چې كله ده د خپل قوم د رسولانو په تكذيب كولو باندې اوليدو نو په منډه منډه راغلو، او وئ وئيل چې اې ځما قومه، د داسې رسولانو تابعدارى اوكړئ ثانى اتبعوا، د اول اتبعوا تاكيد لفظى دې، چې ستاسو نه د رسالت په تبليغ باندې څه صله نه غواړى، او دوى په نيغه لاره باندې دى، نو هغه ته اووئيلې شول چې ته هم ددوى په دين باندې يې، هغه جواب وركړو ماته څه عذر دې؟ چې څه د هغه ذات بندګى اونكړم چاچې زه پيدا كړې يم، يعنى د هغه د بندګئ نه ماته څه ركاوټ نشته، او د هغه د عبادت مقتضى او باعث موجود دې، او ستاسو حال هم داسې دې څنګه چې ځما دې، او د مرګ نه پس، تاسو به هغه ته واپس كيږئ، دلتخذ په دواړو همزو كښې هم هغه قراءتونه دى كوم چې په انذرتهم كښې تير شوې دى، او دا استفهام په معنى د نفى دې، آيا څه د هغه پرېښودلو سره د هغه غير يعنى بتانو لره خدائى جوړ كړم.؟ كه الله ځما په حق كښې د نقصان اراده كړې وى نو ددوى شفاعت به ماته څه فائده رانكړى، د كوم چې تاسو ددوى نه توقع ساتئ. او نه دوى ما خلاصولې شى، لا ينقذون د الهة صفت دې، كه ما داسې اوكړل يعنى كه ما د غير الله بندګى اوكړه، نو بې شكه څه به په ښكاره ګمراهئ كښې اخته شم، ما خو ستاسو په پروردګار باندې ايمان راوړې دې، نو ځما طرف ته توجه اوكړئ، يعنى ځما خبره واورئ نو هغه خلقو ده لره سنګسار كړو نو هغه مړ شو. د مرګ په وخت هغه ته حكم وركړې شو چې جنت ته داخل شه، او يو قول دا هم دې چې هغه په ژوندونې

جنت ته داخل شو، کاش چې ځما قوم ته ځما د پروردګار د طرف نه ځما د بخښنې او ځما په معززو خلقو کښې د شاملیدو علم وې، او مونږ د هغه حبیب په قوم باندې د اسمان نه د هغه د مرګ نه پس، ددوی د هلاک کولو د پاره د فرشتو لښکر راونه لیږلو او نه مونږ ته د چا د هلاک کولو د پاره د فرشتو د رالیږلو ضرورت وو، ما نافیه ده، ددوی سزا خو صرف یو چغه وه کومه چې جبرئیل علیه السلام په دوی باندې اووهله، نو دوی ناګهانه مړه شول، یعنی په خاموشی پاتې شول، په دې کافرانو بندګانو باندې او ددوی په شان نورو باندې چا چې د پیغمبرانو تکذیب اوکړو افسوس چې هغوی هلاک کړې شول، او افسوس ته دا نداء د زیادت درد د وجې دې، او دې ته نداء وئیل مجازا دې، یعنی اې افسوسه دا ستا د حاضرئ وخت دې، ته حاضر شه، دوی ته څوک داسې رسول نه وو راغلې چې دوی په هغه پسې توقې نه وی کړې، کلام د حسرت سبب بیانولو د پاره راوړې شو، دهغه کلام د استهزا باندې د دلالت کولو د وجې نه کوم چې ددوی هلاکت طرف ته بوتلونکې وو، کوم چې د حسرت مسبب عنه (یعنی سبب) دې،

**فائده**: د حسرت سبب هلاکت او د هلاکت سبب استهزا، ګویا چې استهزاء په واسطې د هلاکت د افسوس وجه جوړه شوه

آیا دې اهل مکې ته کوم چې د نبی ﷺ په باره کښې "لست مرسلا" وائی ددې خبرې علم نشته چې مونږ ددوی نه مخکښې دیر امتونه هلاک کړې دی، او هلاک شوې دوی ته یعنی مکې والا ته واپس دنیا ته راتلونکې نه دی، او استفهام تقریری دې، یعنی غور دې اوکړی، کم خبریه دې، او دکثیرا په معنی دې، او د خپل مابعد معمول دې، او خپل ماقبل لره په خان کښې د عمل نه منع کونکې دې، آیا دا خلق ددې نه عبرت نه حاصلوی، اوانهم الخ د معنی مذکور رعایت سره د ماقبل نه بدل دې، او په معنی د الا اهلکنا قبلهم کثیرا دې، او ټول په ټول به په محشر کښې د ژوندی کیدو نه پس زمونږ مخکښې د حساب د پاره حاضریږی، ان نافیه ده یا مخففه دې، کل یعنی ټول مخلوق، کل مبتدأ ده لما په تشدید سره د الا په معنی دې، یا په تخفیف سره ده، او لام فارقه دې، او ما زائده ده، جمیع مبتدأ خبر اول دې، او په معنی د مجموعون دې، محضرون للحساب خبر ثانی دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: واضرب لهم مثلا: دا کلام مستانف دې، او مخاطب حضور ﷺ دې، مثلا ئې د (اضرب بمعنی اجعل) مفعول اول، او اصحاب القریة ئې مفعول ثانی ګرځولې دې، خو واضح او ښه دا ده چې (اصحاب القریة) مفعول اول او (مثلا) مفعول ثانی شی، وراندې چونکه د اصحاب القریة تشریح راروانه ده، ځکه مفعول اول مقدم کړې شو چې اجمال او تفصیل متصل شی،

**قوله**: **واضرب لهم**: الخ ددې عطف په ماقبل باندې هم كيدې شي، خو دا عطف به د قصې على القصه په طور وي، او دا هم كيدې شي چې په مقدر باندې عطف وي، اى فانذرهم واضرب لهم، او ضرب مثل بعضې وخت يوې عجيبه قصې لره د بلې عجيبې قصې سره د مطابقت او مماثلت بيانولو ته وئيلې شي، څنګه چې د الله تعالى قول ضرب الله مثلا للذين كفروا امرأة نوح، او بعضې وخت د تطبيق او د مماثلت د ارادې نه بغير حالت غريبه بيانولو ته وئيلى شي، څنګه چې د الله تعالى قول وضربنا لكم الامثال، په اول صورت كښې بهٔ دآيت معنى دا شى اجعل اصحاب القرية مثلا لهؤلاء في الغلو في الكفر والاصرار في التكذيب اى طبق حالهم بحالهم، د اصحاب القرية نه مخكښې مثل مضاف محذوف دې، اضرب لهم مثلا مثل اصحاب القرية او دا مضاف د مثلا نه بدل الكل عن الكل دې، او بعضې حضراتو عطف بيان هم وئيلې دې، خو د هغه چا په نيز څوک چې د تعريف او تنكير د اختلاف باوجود بدل صحيح ګڼړى.

**قوله**: **القرية**: د قاف په فتحې اوكسرې سره، الضيعة والمصر الجامع، كلې، آبادى، جمع قرىٰ وقرى، په ضمې د قاف او په كسرې د قاف، (اعراب القرآن) دلته د قريه نه د روم مشهور ښار انطاكيه مراد دې،

**قوله**: **المرسلون**: حضرت عيسى ﷺ اول اهل انطاكيه ته د خپلو حواريانو نه دوه قاصدان چې د هغوى نومونه يحيى او بولس وو، رالیږلې وو، او وهب وائى چې ددوى نومونه يوحنا او بولس وو، او صادق مصدوق هم وئيلې شوى دى، ددې نه پس ئې دريم قاصد اوليږلو چې د هغه نوم شمعون وو،

**قوله**: **الى آخره**، اى آخر القصه،

**قوله**: **اذارسلنا**: اذجاءها المرسلون نه بدل المفصل من المجمل دې،

**قوله**: **المرسلون**: د دريم قاصد په اعتبار سره د جمع صيغه راوړې شوې ده،

**قوله**: **رسل عيسى**: د عيسى ﷺ قاصدان مشهور هم دادې او يو قول دا هم دې چې هغه بلا واسطه د الله رسولان وو، او دعيسى ﷺ رسولانو ته هم د الله رسول وئيلې شى څكه چه عيسى ﷺ د الله په حكم سره دوى ليږلې وو،

**قوله**: **تطيرنا**: په اصل كښې د مرغو په ذريعې سره نيک يا بد فال معلومول، دلته مطلقا د بد فال په معنى كښې استعمال شوې دې، د عربو عادت وو چې هغوى به د مرغو په ذريعې سره فال معلومولو، كه مرغئ به د ګس نه ښى طرف ته مخكښې والوته نو عربو به دا نيک فال ګڼړلو او دې ته به ئې الطائر السانح وئيلو، او ددې ضد يعنى د ښى طرف

نه كس طرف ته الوتلو والا مرغئ نه به ئ بد فال نيولو، او دې ته به ئې الطائر البارح وئيلو، ددې نه پس د هر بد فال د پاره استعمال شو،

**قوله: ربنا يعلم انا اليكم لمرسلون:** په انا اليكم مرسلون كښې دوه تاكيدونه استعمال شوې دى، يو جمله اسميه او دويم (ان) ځكه چې هلته په تكذيب او نفى كښې هم تاكيد نه وو، دلته چونكه ډير تاكيدونو سره انكار او تكذيب مؤكد دې ځكه په اثبات كښې هم تاكيدات راوړې شوې دى، اول قسم كوم چې د تاكيد قائم مقام دې، دويم (ان) دريم جمله اسميه، او څلورم لام تاكيد.

**قوله: بكفركم باء سببيه، اى بسبب كفركم**

**قوله: ائن ذكرتم:** همزه استفهام انكارى توبيخى په ان شرطيه باندې داخل دې، دواړو ته د جواب ضرورت دې كه همزه استفهام او شرط جمع شى نو سيبويه ئ همزه د استفهام جواب ګرځوى، او جواب شرط محذوف ګنړى او يونس ئ د شرط جواب ګنړى، او جواب استفهام محذوف ګنړى، مفسر علام محلى جواب الشرط محذوف وئيلو سره اشاره اوكړه چې دده په نيز د سيبويه مذهب راجح دې، د سيبويه په نيز تقديرى عبارت داسې دې ائن ذكرتم تتطيرون، او د يونس په نيز ائن ذكرتم تطيروا په جزم سره، مفسر علام د بما غفرلى ربى تفسير په بغفرانه كولو كښې دې ته اشاره اوكړه چې (ما) مصدريه ده، او دا هم صحيح دى چې ما موصوله وى، په دې صورت كښې به عائد محذوف وى، او تقديرى عبارت به داسې وى، بالذى غفره لى ربى من الذنوب او استفهاميه هم صحيح ده، اى بأى شئ غفرلى اى بأمر عظيم وهو توحيدى وصدق بالحق، (صاوى) حسرت ته ندا كول مجازا دې، ځكه چې حسرت كښې د منادى جوړيدو صلاحيت نشته،

**قوله: يا حسرة على العباد:** په دې كښې درې احتماله دى، ① دا د الله كلام وى، ② د ملائيكه كلام وى، ③ د مومنين كلام وى،

او العباد نه مراد ټول كافران دى، په دې صورت كښې به الف لام د جنس وى، او وئيلې شوې دى چې د العباد نه مراد رسل وى، او (على) په معنى د (من) دې، او قائل كفار وى، تقديرى عبارت به دا وى، يا حسرة علينا من مخالفة العباد، خو اولنې صورت اولى دې، كوم چې مفسر علام بيان كړې دې.

**قوله: الا كانوا به يستهزءون:** دا جمله د يأتيهم د مفعول نه حال دې،

**قوله: مسوق لبيان سببها:** دا جمله مستانفه ده، او سبب د حسرت د بيانولو د پاره راوړې شوې ده، ګويا چې دا ديوسوال جواب دې، سوال اوكړې شو ما وجه التحسر عليهم؟ جواب وركړې شو ما يأتيهم من رسول الا كانوا به يستهزءون، دا جمله بالواسطه د حسرت د سبب

بيانولو د پاره ده، چې استهزا سبب د هلاکت دې، او هلاکت سبب د حسرت دې، نو ګويا چې استهزا د حسرت سبب دې.

**قوله: لاشتماله:** اى لدلالة هذا الكلام على الاستهزاء

**قوله: الم يروا:** دلته د رويت نه مراد رويت علميه دې، يعنى آيا مکې والو ته علم نشته، (کم) خبريه دې، او د اهلکنا مفعول مقدم دې، او قبلهم د اهلکنا ظرف دې، او من القرون د (کم) بيان دې، اولم يروا کښې استفهام تقريرى يعنى د مابعد د نفى د اقرار کولو د پاره دې، يعنى علم دې، (کم) خبريه د مابعد يعنى د (اهلکنا) معمول دې، ماقبل يعنى د (لم يروا) معمول نه دې، ځکه چې (کم) خبريه د کلام صدارت غواړى، لهذا ددې ماقبل په دې کښې عامل نشى کيدې، ګنى د دې صدارت به باطل شى.

**قوله: معلقة ما قبلها عن العمل:** يعنى کم خبريه خپل ماقبل يعنى لم يروا د لفظى عمل نه منع کړې دې، اګرچې په معنى کښې عمل جارى دې

**سوال:** د عمل نه مانع (کم) استفهاميه وى نه چې خبريه، او دا (کم) خبريه دې ؟

**جواب:** چونکه په (کم) کښې استفهاميه کيدل اصل دى، لهذا په تعليق يعنى مانع کيدو کښې (کم) خبريه د (کم) استفهاميه قائم مقام کړې شو.

**[اياتونه: ۳۳ ـ ۵۰]**

(وَآيَةٌ لَّهُمُ) عَلَى الْبَعْثِ خَبَر مُقَدَّم (الْأَرْضُ الْمَيْتَةُ) بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيدِ (أَحْيَيْنَاهَا) بِالْمَاءِ مبتدأ (وَأَخْرَجْنَا مِنْهَا حَبًّا) كالحنطة (فمنه يأكلون) (وَجَعَلْنَا فِيهَا جَنَّاتٍ) بَسَاتِين (مِّن نَّخِيلٍ وَأَعْنَابٍ وَفَجَّرْنَا فِيهَا مِنَ الْعُيُونِ) أَيْ بَعْضَهَا (لِيَأْكُلُوا مِن ثَمَرِهِ) بِفَتْحَتَيْنِ وَضَمَّتَيْنِ أَيْ ثَمَر الْمَذْكُور مِنَ النَّخِيل وَغَيْره (وَمَا عَمِلَتْهُ أَيْدِيهِمْ) أَيْ لَمْ تَعْمَل الثَّمَر (أَفَلَا يَشْكُرُونَ) أَنْعُمَه تعالى عليهم (سُبْحَانَ الَّذِي خَلَقَ الْأَزْوَاجَ) الْأَصْنَاف (كُلَّهَا مِمَّا تُنبِتُ الْأَرْضُ) مِنَ الْحُبُوب وَغَيْرهَا (وَمِنْ أَنفُسِهِمْ) مِنَ الذُّكُور وَالْإِنَاث (وَمِمَّا لَا يَعْلَمُونَ) مِنَ الْمَخْلُوقَات الْعَجِيبَة الْغَرِيبَة (وَآيَةٌ لَّهُمُ) عَلَى الْقُدْرَة الْعَظِيمَة (اللَّيْلُ نَسْلَخُ) نَفْصِل (مِنْهُ النَّهَارَ فَإِذَا هُم مُّظْلِمُونَ) دَاخِلُونَ فِي الظلام (وَالشَّمْسُ تَجْرِي) إِلَى آخِره مِنْ جُمْلَة الْآيَة لَهُمْ أَوْ آيَة أُخْرَى وَالْقَمَر كَذَلِكَ (لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا) أَيْ إِلَيْهِ لَا تَتَجَاوَزهُ (ذَٰلِكَ) أَيْ جَرْيهَا (تَقْدِيرُ الْعَزِيزِ) فِي مُلْكه (الْعَلِيمِ) بِخَلْقِهِ (وَالْقَمَرَ) بِالرَّفْعِ وَالنَّصْب وَهُوَ مَنْصُوب بِفِعْلٍ يُفَسِّرهُ مَا بَعْده (قَدَّرْنَاهُ) مِنْ حَيْثُ سَيْره (مَنَازِلَ) ثَمَانِيَة وَعِشْرِينَ مَنْزِلًا فِي ثَمَان وَعِشْرِينَ لَيْلَة مِنْ كُلّ شَهْر وَيَسْتَتِر لَيْلَتَيْنِ إِنْ كَانَ الشَّهْر ثَلَاثِينَ يَوْمًا وَلَيْلَة إِنْ كَانَ تِسْعَة وَعِشْرِينَ يَوْمًا (حَتَّىٰ عَادَ) فِي آخِر مَنَازِله فِي رَأْي الْعَيْن (كَالْعُرْجُونِ الْقَدِيمِ) أَيْ كَعُودِ الشَّمَارِيخ إِذَا عَتَقَ فَإِنَّهُ يَرِقّ وَيَتَقَوَّس وَيَصْفَرّ (لَا الشَّمْسُ يَنبَغِي) يَسْهُل وَيَصِحّ (لَهَا أَن تُدْرِكَ الْقَمَرَ) فَتَجْتَمِع مَعَهُ فِي اللَّيْل (وَلَا اللَّيْلُ سَابِقُ النَّهَارِ) فَلَا يَأْتِي قَبْل انْقِضَائِهِ (وَكُلٌّ) تَنْوِينه عِوَض عَنِ الْمُضَاف إِلَيْهِ مِنَ الشَّمْس وَالْقَمَر

وَالنُّجوم (فِي فَلَكٍ) مُستدير (يَسْبَحُونَ) يَسيرون نَزَلُوا مَنزِلَةَ العُقَلاء (وَآيَةٌ لَّهُمْ) عَلَى قُدرتنا (أَنَّا حَمَلْنَا ذُرِّيَّتَهُمْ) وفِي قِراءة ذُرِّيَاتهم أي آباءَهُم الأُصول (فِي الْفُلْكِ) أي سَفِينة نُوح (الْمَشْحُونِ) المَملُوء (وَخَلَقْنَا لَهُم مِّن مِّثْلِهِ) أي مِثل فُلك نُوح وَهُوَ مَا عَمِلُوهُ عَلَى شَكله مِنَ السُّفُن الصِّغار وَالكِبار بِتَعلِيم اللّٰه تَعالَى (مَا يَرْكَبُونَ) فيه (وَإِن نَّشَأْ نُغْرِقْهُمْ) مَعَ إيجاد السُّفُن (فَلَا صَرِيخَ) مُغِيث (لَهُمْ وَلَا هُمْ يُنقَذُونَ) يُنجَون (إِلَّا رَحْمَةً مِّنَّا وَمَتَاعًا إِلَىٰ حِينٍ) أي لَا يُنجِيهم إلَّا رَحمَتنا لَهُم وَتَمتِيعنا إيَّاهُم بِلَذَّاتِهِم إلَى انقِضاء آجالِهم (وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّقُوا مَا بَيْنَ أَيْدِيكُمْ) مِن عَذاب الدُّنيا كَغَيرِهِم (وَمَا خَلْفَكُمْ) مِن عذاب الآخرة (لعلكم ترحمون) اعرضوا (وما تأتيهم من آية من آيات ربهم إلا كانوا عنها معرضين) (وَإِذَا قِيلَ) أي قالَ فُقَراء الصَّحابة (لَهُمْ أَنفِقُوا) عَلَينا (مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ) مِنَ الأَموال (قَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلَّذِينَ آمَنُوا) اسْتِهزاء بِهِم (أَنُطْعِمُ مَن لَّوْ يَشَاءُ اللَّهُ أَطْعَمَهُ) فِي مُعتَقَدِكُم هٰذا (إِنْ) مَا (أَنتُمْ) فِي قَولِكُم لَنا ذٰلِكَ مَعَ مُعتَقَدِكُم هٰذا (إِلَّا فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ) بَيِّن وَلِلتَّصريح بِكُفرِهِم مَوقِع عَظِيم (وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ) بِالبَعثِ (إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ) فيه قال تعالى (مَا يَنظُرُونَ) أي يَنتَظِرُونَ (إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً) وَهِيَ نَفخَة إِسرافِيل الأُولَى (تَأْخُذُهُمْ وَهُمْ يَخِصِّمُونَ) بِالتَّشدِيدِ أَصْله يَختَصِمُونَ نُقِلَتْ حَرَكَة التَّاء إِلَى الخَاء وَأُدغِمَتْ فِي الصَّاد أي وَهُم فِي غَفلَة عَنها بِتَخاصُم وَتَبايُع وَأَكل وَشُرب وَغَير ذٰلِكَ وَفِي قِراءَة يَخصِمُونَ كَيَضرِبُونَ أي يَخصِم بعضهم بعضا (فَلَا يَسْتَطِيعُونَ تَوْصِيَةً) أي أَن يُوصُوا (وَلَا إِلَىٰ أَهْلِهِمْ يَرْجِعُونَ) مِن أَسْوَاقِهِم وَأَشغَالِهِم بَل يموتون فيها

ترجمه: او يوه نښه ددوی د پاره د مرګ نه پس ژوندی کيدو باندې مړه زمکه ده، اية لهم خبر مقدم دې، او الميتة په تخفيف او تشديد سره دې، چې مونږ دې لره د اوبو په ذريعې بسره ژوندئ کړه، والارض الخ مبتدا مؤخر دې، او مونږ ددې زمکې نه غله مثلا غنم پيدا کړل، نو دا خلق ددې نه خوراک کوی، او دغه شان مونږ په زمکه کښې د کهجورو او د انارو باغونه پيدا کړل، او په دې کښې مو چينې جاری کړې چې خلق ددې نه ميوې اوخوری، ثمره کښې (ث، م) دواړه په فتحې او ضمې سره دی، چې ددې ذکر شوې کهجورو او ميوو وغيره نه خوراک اوکړی، او دې ميوو لره ددوی لاسونو نه دی پيدا کړې، نو بيا دا خلق په خپل خان باندې د الله تعالی د انعاماتو شکر ولې نه ادا کوی، ؟ هغه پاک ذات دې، چا چې ټول د زمکې نباتات مثلا غله وغيره او په خپله د دوی نفسونه د نر او د مادې جوړې او د هغه کښې عجيب او غريب مخلوقاتو نه کوم چې هغوی پيژنی هم نه، جوړې پيدا کړې، او د الله په اوچت قدرت باندې يو نښه شپه هم ده، چې د هغې نه مونږ ورځ راوباسو، نو سمدستی دوی په تياره کښې داخل شی، او د قدرتونو نه يا د نورو نښو نه نمر هم دې، کوم چې په خپل مدار کښې روان دې چې د هغې نه د سر د ويختو هومره هم تجاوز نه کوی، او د نمر دا ګردش د هغه په بادشاهئ کښې غالب خبردار الله طرف نه مقرر شوې دې، او د سپوږمئ هم د هغې د رفتار په اعتبار سره مونږ په هر يو مياشت کښې اته ويشت منزلونه په اته ويشت شپو کښې مقرر کړی دی که مياشت د

دیرشو ورځو وی نو سپوږمۍ په آخری دوه شپو کښې پټه وی، او که میاشت د یوکم دیرش وی، نو سپوږمۍ یو شپه پټه وی، تر دې چې سپوږمۍ په آخری منزل کښې کتونکی ته د کهجورې د زړې ځانګې پشان په نظر راځی، او په قمر باندې نصب او رفع دواړه جائز دی. دا د فعل محذوف د وجې نه منصوب دې، چې د هغې روستو فعل (قدرنا) تفسیر کوی، یعنی سپوږمۍ په آخری شپو کښې د کهجورې د ځانګې په شان شیٔ. کله چې دا زړه کیدو سره نرئی او کږه او زیړه شی، او نه د نمر مجال شته چې سپوږمۍ رالاندې کړی، چنانچه شپه د ورځې د ختمیدو نه مخکښې نشی راتلې، او هریو په خپل خپل مدار کښې ګرځی، د کل تنوین د مضاف الیه په عوض کښې دې چې هغه نمر، سپوږمۍ او ستورې دی. شمس او قمر وغیره یې ذوی العقول کښې شمار کړې دی. او ددوی دپاره زمونږ په قدرت کښې یوه نښه داده چې مونږ ددوی ذریت یعنی د دوی پلار نیکه په ډکې کشتۍ کښې یعنی دنوح علیه السلام په کشتۍ کښې سواره کړل، او په یو قراءت کښې د ذریة په ځائې ذریات دې. او مونږ ددوی دپاره ددې په شان یعنی د نوح د کشتۍ په شان څیزونه پیدا کړل، او هغه وړې غټې کشتۍ دی کومې چې خلقو د الله په خودنې سره د نوح علیه السلام د کشتۍ په شان جوړې کړې. چې په هغې کښې دا خلق سورلی کوئ او که مونږ اوغواړو، نو ددې کشتو باوجود به مونږ دوی غرق کړو، بیا به نه ددوی څوک فریاد اوریدونکې وی او نه به دوی ته خلاصی میلاویږی، خو دا زمونږ مهربانی ده، او دوی ته د یو وخت پورې فائده ورکول منظور دی، یعنی په دوی باندې زمونږ مهربانی او ددوی د مرګ پورې زمونږ د طرف نه دوی ته د لذت اخستلو موقع ورکول خلاصی ورکولې شی، او چې کله دې خلقو ته اووئیلې شی چې تاسو د هغه عذاب نه ویریږئ، کوم چې د نورو پشان د دنیا عذاب ستاسو مخکښې دې او کوم چه ستاسو نه روستو دې، یعنی د آخرت عذاب، چې په تاسو باندې رحم اوکړې شی، نو دوی اعراض اوکړو او دوی ته ددوی د رب د طرف نه څه نښه نه راځی، خو دا چې دوی ترې مخ اړوی، او چې کله دوی ته اووئیلې شی چې الله تاسو ته څۀ درکړې دی د هغې نه خرچ کوئ، یعنی فقیرانو صحابه کرامو دوی ته وئیلې وو چې د الله تعالی د ورکړې شوی مال نه په مونږ باندې خرچ کړئ، نو دې کافرانو مومنانو ته د توقو په توګه اووئیل چې آیا مونږ داسې خلقو باندې خوراک اوکړو، چه که چرې الله غوښتله نو خپله په دوی باندې به ئې خوراک کړې وو، خنګه چې اې مومنانو ستاسو عقیده ده، او اې مومنانو ددې عقیدې باوجود ستاسو زمونږ نه خوراک طلب کول ښکاره غلطی ده، او ددې کافرانو د کفر د ښکاره کیدو دا لویا موقع ده، او دا خلق وائی که چرې تاسو د بعث په وعده کښې رشتونې یئ نو اووایئ چه دا وعده د بعث به کله پورا کیږی؟ الله تعالی اوفرمائیل دوی د یو چغې په انتظار کښې دی، او هغه د اسرافیل علیه السلام اوله شپیلۍ ده، هغه به دوی داسې حالت کښې اونیسی چې دوی به یو بل سره په جنګ وی، یخصمون په تشدید

سره دي، ددې اصل يختصمون دې، د تاء حرکت د خاء طرف ته منتقل شو، او تاء په صاد کښې مدغم شوه، او دوی بۀ د دې چغې نه غافله وی، يو بل سره د جهګړو او په اخستلو خرڅولو او خوراک څښاک وغيره کښې د مشغوليدو د وجې نه، او په يو قرامت کښې يخصمون په وزن د يضربون دې، نو دوی ته به نه د وصيت کولو موقع ملاوشی او نه به دوی د خپل اهل طرف ته د بازارونو او مشغلونه واپس شی، بلکه په بازارونو او لوبو کښې به مړه شی.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله: وأية لهم الارض احيينـاهـا:** اية خبر مقدم دې، او دا تقديم د اهتمام د پاره دې، تنوين د تعظيم د پاره دې، اى علامة عظيمة ودلالة واضحة على احياء بعد الموت.

**قوله: لهم اي اهل مكه:** لهم د اية متعلق هم کيدې شی، ځکه آيت په معنی د علامة دې، باد کائنة متعلق کيدو سره د اية صفت دې، الارض الميتة په ترکيب توصيفی سره مبتدأ مؤخر ده.

**قوله: احيينـاهـا:** بعضې حضراتو وئيلې دی، چې احيناها د قدرت د علامت د کيفيت د بيانولو د پاره جمله مستانفه ده، او دا هم کيدې شی چې احيناها جمله د الارض الميتة صفت وی، د مفسر علام د عبارت نه هم ددې تائيد کيږی، ځکه چې مبتدأ ئې د احيناها نه پس ذکر کړې ده، که د مفسر علام په نيز احيناها جمله مستانفه وی، نو مبتدأ به ئې د احيناها نه مقدم ذکر کړې وه.

**قوله: وجعلنـا:** ددې عطف په احيناها باندې دې،

**قوله: من نخيل:** نخل او نخيل دواړه په يو معنی باندې دی خو النخل اسم جمع ده، او ددې واحد نخلة رازی، لفظ د نخلة د اهل حجاز په نيز مؤنث دې، او د تميم او نجد په نيز مذکر دې، او نخل په اتفاق سره مؤنث دې، (صاوی) ددې نه معلوميږی چې د مفسر روستو راتلونکې قول من النخل وغيره مناسب نه دې، بلکه منه وغيرها دې، ځکه چې د (٥) ضمير مرجع ماقبل ذکر شوې نخيل دې، کوم چې په اتفاق سره مؤنث دې،

**قوله: ثمر المذکور من النخيل وغيره:** د مفسر علام مقصد ددې عبارت د اضافې نه د يو اعتراض دفع کول دی، اعتراض دادې چې د ثمره ضمير نخل او اعناب ته راجع دې، اول خو اعناب او نخيل جمع دی، کوم چې د واحد مؤنث په حکم کښې دی، په دې لحاظ سره من ثمرها پکار وو، او که اعناب او نخيل دوه نوعه تسليم کړې شی نو بيا هما ضمير د تثنيې پکار دې، حالانکه مفسر علام نه خو واحد مؤنث ضمير راوړو او نه ئې د تثنيې، بلکه واحد مذکر ضمير ئې راوړې دې، کوم چې په ظاهره صحيح نه معلوميږی؟

په مذکوره عبارت سره ئې د دې اعتراض جواب ورکړې دې د جواب خلاصه داده چې

نخیل او اعناب د مذکور په معنی کښې اخستلو د وجې واحد مذکر ضمیر راوړل صحیح دی، یا د ثمره ضمیر ما ء طرف ته راجع دې، کوم چې د من العیون نه فهمیږی، ځکه چې د ثمر وجود د اوبو د وجې وی، (فتح القدیر شوکانی)

سوال: الارض المیتة دواړه معرف بالام د وجه معرفه دی، او احییناها د جمله کیدو د وجې نه نکره ده، په دې صورت کښې که احییناها د الارض صفت اوګرځولې شی نو د معرفې صفت به نکره راشی کوم چې د مطابقت د قاعدې خلاف دې؟

جواب: په الارض المیتة باندې الف لام د جنس د پاره دی، ځکه چې څه خاص زمکه مراد نه ده، لهذا مذکوره الف لام فائده نه ورکوی، چې د هغې دوجې نه د نکرې صفت جوړیدل صحیح دی، ددې نظیر د شاعر دا قول:

ولقد امر علی اللئیم یسبنی  فمضیت ثمة قلت لا یعنینی

په دې شعر کښې اللئیم معرف باللام دې او یسبنی جمله ې صفت واقع شوی دی.

قوله: اخرجنا منها حبا فمنه یاکلون: حب د حبة جمع ده، هغه غلې ته وائی کوم چې اوړه کولې شی، لکه غنم اوربشې وغیره، او بِذر هغه غلې ته وایی د کوم نه چې تیل اوزی لکه اورئ، شرشم، وغیره.

قوله: فمنه: ای من الحب

سوال: د تقدیم دصلې نه حصر فهمیږی، په اصل کښې اخرجنا حبا یاکلون منه دې، د منه د تقدیم نه حصر مستفاد کیږی، چې اکلِ مذکور په دواړه قسمه غلو کښې منحصر دې، حالانکه ددې باطلیدل ښکاره دی، ځکه چې د مذکوره دواړه قسمو غلو نه علاوه نورې هم ډیر غلې دی چه خوړلې کیږی؟

جواب: تقدیم د صلې جنس ماکول لره په حبوب کښې منحصر کولو دپاره نه دې، بلکه اکثر ماکول په حبوب کښې د منحصر کولو دپاره دې، ځکه چې حبوب په اکثریت سره د خوړلو غذا ده.

قوله: من العیون: تفسیر ئې په بعضها سره کولو کښې اشاره اوکړه چې من تبعیضیه دې، بیانیه هم ګرځول صحیح دی،

قوله: وما عملته ایدیهم: ددې عطف په ثمره باندې دې، ای لیاکلوا من ثمره ویاکلوا مما علمت ایدیهم کالعصیر والدبس ونحوهما: یعنی د کهجورو او د انګورو میوې اوخورئی او هغه څیزونه اوخورئی کوم چې ددې نه جوړوی، مثلاً عرق، (جوس) شیره وغیره، دا ترجمه به په هغه صورت کښې وی چې کله (ما) موصوله شی، او بعضې حضراتو (ما) نافیه ګرځولې ده، یعنی چې تاسو مذکوره څیزونو نه خوارک اوخورئ، کوم چې تاسو پیدا

کړې نه دی بلکه ددې پیدا کولو والا الله تعالی دې، یعنی په مذکوره څیزونو په پیدا کولو کښې ستاسو څه دخل نشته، بلکه تاسو خو په ظاهره موجوده څیز هم په خاورو کښې ضائع کړئ، دا صرف د الله فضل او کرم دې، او دغه د ګاریګرئی او قدرتونه دی چې کومه دانه تاسو د خښا کولو د پاره په زمکه کښې دفن کړئ، الله تعالی نه صرف د هغې په خپل فضل او کرم سره حفاظت اوکړی بلکه هغه ئې څو چنده دوه چنده درې چنده تاسو ته حواله کړه، (ما) مصدریه هم کیدې شی، ای لما کلوامن عمل ایدیهم

**قوله:** افلا یشکرون: همزه په محذوف باندې داخله ده، تقدیری عبارت دادې اینتفعون بهذه النعم فلا یشکرونها

**قوله:** سبحان الذی: سبحان مصدر په معنی د تسبیح دې، په دې باندې نصب، او د مفرد طرف ته اضافت لازم دې، مفرد که اسم ظاهر وی لکه سبحان الله، اوسبحان الذی، او که اسم ضمیر وی، لکه سبحانه ان یکون له ولد، سبحان الذی خلق الازواج کلها جمله مستانفه ده، په شکر پرینبودو باندې تنزیه بیانولو د پاره راوړې شوې ده، (روح المعانی) بعضې حضراتو وئیلې دی چې دواړه آیتونه یعنی ایة لهم الارض المیتة، الأیة، او آیة لهم اللیل نسلخ، په مینځ کښې جمله معترضه ده.

**قوله:** اية لهم الیل نسلخ منه النهار: ایة خبر مقدم دې، اواللیل خبر مؤخر دې، کما سبق، او نسلخ د (لیل) په د قدرت د نخښو نه د کیدو کیفیت بیانولو د پاره دې،

**قوله:** نسلخ: مضارع جمع متکلم (ن ف) سلخا، څرمن ویستل، مطلقا یو څیز ویستل، ختمول، یعنی مونږ ورځ لره د شپې نه اوباسو، فاذاهم مظلمون نو هغوی په تیاره کښې پاتې شی، ددې نه معلومیږی چې په کائنات کښې تیاره اصل ده، او رڼا (ورځ) پرې طاری ده، څنګه چې د څناور نه څرمن ویستلو نه پس غوښه ظاهره شی، دغه شان ورځ د شپې نه د ویستو نه پس شپه باقی پاتې شی، مفسر علام د نسلخ تفسیر په نفصل سره ښائې فاذا هم مصبحون پکار وو، څکه چې دآیت معنی به دا وی وایته اللیل نکشف ونظهر منه النهار نفصل (منه) کښې (من) په معنی د (عن) دې، ددې نه دا خبره هم معلومه شوه چې لیل د نهار نه مقدم دې، څکه چې مسلوخ منه د مسلوخ نه مقدم وی،

**قوله:** مظلمون: داظلم القوم نه ماخوذ دې، ای دخلوا فی الظلام

**قوله:** من جملة الأیة: ددې عطف (الارض) مبتدا باندې دې، یعنی عطف د مفرد علی المفرد دې.

**قوله:** اوایة اخری:دا دویم ترکیب ته اشاره ده، یعنی الشمس مبتدأ ده، او تجری ددې خبر دې، په دې صورت کښې به عطف د جملې علی الجمله وی،

**قوله:** والقمر کذلك:یعنی قمر د ایتونو نه یو آیت دې، یا ځان له مستقل آیت دې، دا ترکیب به په هغه صورت کښې وی چې کله القمر مرفوع اووئیلې شی، او که القمر منصوب اووئیلې شی، نو دفعل مقدر د وجې به منصوب وی، او په دې صورت کښې به د ما اضمر عامله د قبیلې نه وی، تقدیری عبارت به دا وی قدرنا القمر قدرناه او که مرفوع اووئیلې شی، نومخکښې مبتدأ یعنی الارض میتة باندې به عطف وی، او تقدیری عبارت اية لهم القمر وی، یا القمر په خپله مبتدأ او قدرناه خبر شو.

**قوله:** المنازل:په دې کښې درې ترکیبونه کیدې شی ① دقدرنا مفعول ثانی کیدو د وجه نه منصوب وی، په دې صورت کښې به قدرنا په معنی د صیرنا شی.

② د قدرناه د ضمیر نه حال وی، په دې صورت کښې بهٔ د منازل اولنې مضاف محذوف گنړل لازم شی، ځکه چې خپله قمر منازل نه دې، بلکه ذومنازل دې، تقدیری عبارت به دا وی، قدرناه ذومنازل،

③ دا چې منازل ظرف وی، ای قدرناسیره فی منازل،علامه جلال الدین محلی په خپل قول، من حیث سیره سره دې ترکیب ته اشاره کړې ده،

**قوله:** العرجون:بروزن فعلون،د کهجورې ځانگه، کومه ځانگه چې په ونه کښې د اوچیدو نه پس زیړه شوې وی، نرئ او کږه په شان د هلال وی.

**قوله:** شماریخ:دا د شمروخ جمع ده، دا د عرجون تشریح ده، په دې کښې تشبیه مرکب ده، ځکه د هلال د عرجون سره په درې اوصافو کښې تشبیه ورکړې شوې ده ، دقت، تقوس او اصفرار.

**قوله:** نزلوا منزلة العقلا:په دې عبارت سره مقصد د یو سوال مقدر جواب ورکول دی.

**سوال:** کل یا په عموم باندې دلالت کولو د وجې نه، یا تنوین د مضاف الیه په عوض کښې د راتلو د وجې نه مبتدأ دې، ای کل احد من الشمس والقمر والنجوم فی فلك یسبحون،یسبحون د مبتدأ خبر دې، مبتدأ غیر ذوی العقول ده، او ددې خبر یسبحون واؤ نون سره راوړې شوې دې، کوم چې د ذوی العقول سره خاص دې، لهذا یسبحون واؤنون سره صحیح نه معلومیږی؟

**جواب:** یسبحون د سبح نه مشتق دې، چې د هغې معنی د لامبو وهل دی، او دا د ذوی العقول صفت دې، چونکه غیر ذوی العقول طرف ته د ذوی العقول د فعل نسبت شوې

دي، ځکه غير ذوی العقول د ذوی العقول په درجه کښې شو، چې د هغې د وجې نه يسبحون خبر راوړل صحيح شو.

**قوله: اية لهم انا حملنا ذريتهم:** اية لهم خبر مقدم دې، او انا حملنا د مصدر په تاويل سره مبتدا مؤخر دہ، اي حملنا ذريتهم في الفلك اية دالة علي باهر قدرتنا.

**قوله: اي اباءهم الاصول:** په دې عبارت سره ئې اشاره اوکړه چې د ذرية اطلاق څنګه په فروعو باندې کيږي دغه شان په اصولو باندې هم کيږي، ځکه چې دا د ذرية نه ماخوذ دې، چې د هغې معنی د خلق د دہ، او فروع د اصول نه مخلوق دې، لهذا اوس هغه اعتراض ختم شو، چې د نوح عليه السلام په کشتئ کښې ناست خلق اصول د اهل مکه وو، نه چې فروع، او بعضې حضراتو د مذکوره اعتراض دا جواب ورکړې دې، چې په في الفلک کښې الف لام د جنس دې، چې دهغې نه جنس کشتئ مراد دہ، نه چې يو خاص کشتئ د نوح، ځکه چه ددې آيت مقصد په اهل مکه باندې احسان کول دی، او ښکاره خبره دہ چې مطلق کشتئ مراد اخستو کښې احسان کول بالواسطه او بلاواسطه دواړه شامل دی. (لغات القرآن للدرويش)

**قوله: کغيرکم: اي کالمؤمنين:**

(قوله: اعرضوا. ددې اضافې سره ئې اشاره اوکړه چې د اذاقيل لهم جواب اعرضوا محذوف دې،

**قوله: خلقنا لهم من مثله:** دا دويم احسان ذکر کول دی کوم چې په مخکښنی امتنان باندې مرتب دې، د آيت معنی دہ (جعلنا سفينة نوح اية عظيمة علی قدرتنا ونعمة للخلق وعلمناهم صنعة السفينة فعملوا سفنا کبارا وصغارا لينتفعوا بها:

**قوله: وخلقنا لهم من مثله ما يرکبون:** من مثله د مفعول مؤخر نه حال دې، او د مثله ضمير د فلک طرف ته راجع دې،

**قوله: في متعتقدکم هذا:** اې مومنانو ستاسو د دې عقيدې باوجود چې هم الله رزاق دې هغه تولو باندې خوراک او څښاک کوی بيا زمونږ نه ولې خوراک طلب کوئی، ؟ په دې صورت کښې به الذين کفروا کښې د کافرو نه مراد د الله د وجود نه منکر خلق دهريان دې، او که مطلب دا وی چې د چا روزی الله تعالی بنده کړی او الله هغه باندې خوړل نه غواړی نو مونږ د هغه د مرضئ او مشيت نه خلاف په هغه باندې خوراک کونکې څوک کيدې شو؟ په دې صورت کښې په الذين کفروا کښې د کافر نه مراد مشرک وی، کوم چې د الله د وجود قائل دی خو هغه سره شرک کوی، ددې دويم مطلب تائيد ددې روايت نه هم کيږی چې ابوبکر رضي الله عنه به مسلمانانو مسکينانو باندې ډير خوراکونه کول، يو ورځ د ابوجهل د ابوبکر رضي الله عنه سره ملاقات اوشو نو وې وئيل اې ابوبکر! آيا ستا دا عقيده دہ

چې الله تعالی دې خلقو باندې خوراک کولو باندې قادر دی؟صدیق اکبر رضي الله عنه اوفرمائیل چې آو! نو هغه ورته اووئیل چه بیا څه وجه ده چې دوی باندې خوراک نه کوی؟ ابوبکر رضي الله عنه اوفرمائیل چې الله تعالی څوک په غریبۍ او څوک په غنا سره په امتحان کښې اچوی، او فقیرانو ته ئې د روزگار او مالدارو ته ئې د سخاوت حکم ورکړې دی، نو ابوجهل اووئیل (والله یا ابابکر ان انت الا فی ضلال) اې ابوبکر ته په غلط فهمۍ کښې مبتلا ئې، آیا ته دا گنړې، چې هغه دوی ته د خوراک په ورکولو باندې د قادر کیدو باوجود خوراک نه ورکوی، خو ته پرې خوراک کوې؟

**قوله: موقع عظیم**:د قائلینو د کفر په ښکاره کولو، د کفارو تبکیت او تقبیح نه علاوه اهم خبره دا ده، چې د کافرانو دوه قسمونو طرف ته اشاره اوشوه، یو هغه چې د سر نه د الله د وجود نه انکاری وی، دلته د کافر نه هم هغه کافر مراد دې، او دویم هغه چې د الله د وجود نه منکر خو نه وی، خو هغه سره شریک جوړوی، ماقبل کښې د الله تعالی قول الم یرواکم اهلکنا قبلهم من القرون (الأیة) کښې دویم قسم کافران مراد دی.(صاوی وجمل)

**قوله: ویقولون متی هذا الوعد**:دا قول د دویم قسم یعنی د مشرکینو طرف ته راجع دې.

**قوله: وادغمت فی الصاد**:یعنی تاء په صاد سره د بدلولو نه پس، په صاد کښې ادغام کړې شوه، (والله اعلم بالصواب)

### [ایاتونه: ۵۱ـ ۶۷]

(وَنُفِخَ فِي الصُّورِ) هُوَ قَرْنَ النَّفْخَة الثَّانِيَة لِلْبَعْثِ وَبَيْنَ النَّفْخَتَيْنِ أَرْبَعُونَ سَنَة (فَإِذَا هُمْ) أَيْ الْمَقْبُورُونَ (مِنَ الْأَجْدَاثِ) الْقُبُور (إِلَى رَبِّهِمْ يَنْسِلُونَ) يَخْرُجُونَ بِسُرْعَةٍ (قَالُوا) أَيْ الْكُفَّار مِنْهُمْ (يَا) لِلتَّنْبِيهِ (وَيْلَنَا) هَلَاكنَا وَهُوَ مَصْدَر لَا فِعْل لَهُ مِنْ لَفْظه (مَنْ بَعَثَنَا مِنْ مَرْقَدِنَا) لِأَنَّهُمْ كَانُوا بَيْن النَّفْخَتَيْنِ نَائِمِينَ لَمْ يُعَذَّبُوا (هَذَا) أَيْ الْبَعْث (مَا) أَيْ الَّذِي (وَعَدَ) بِهِ (الرَّحْمَنُ وَصَدَقَ) فِيهِ (الْمُرْسَلُونَ) أَقَرُّوا حِين لَا يَنْفَعهُمْ الْإِقْرَار وَقِيلَ يُقَال لَهُمْ ذَلِكَ (إِنْ) مَا (كَانَتْ إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً فَإِذَا هُمْ جَمِيعٌ لَدَيْنَا) عِنْدنَا (مُحْضَرُونَ) (فَالْيَوْمَ لَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا وَلَا تُجْزَوْنَ إِلَّا) جزاء (مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ) (إِنَّ أَصْحَابَ الْجَنَّةِ الْيَوْمَ فِي شُغُلٍ) بِسُكُونِ الْغَيْن وَضَمّهَا عَمَّا فِيهِ أَهْل النَّار مِمَّا يَتَلَذَّذُونَ بِهِ كَافْتِضَاضِ الْأَبْكَار لَا شُغْل يَتْعَبُونَ فِيهِ لِأَنَّ الْجَنَّة لَا نَصَب فِيهَا (فَاكِهُونَ) نَاعِمُونَ خَبَر ثَانٍ لِإِنَّ وَالْأَوَّل فِي شُغُل (هُمْ) مبتدأ (وَأَزْوَاجُهُمْ فِي ظِلَالٍ) جَمْع ظُلَّة أَوْ ظِلّ خَبَر أَيْ لَا تُصِيبهُمْ الشَّمْس (عَلَى الْأَرَائِكِ) جَمْع أَرِيكَة وَهُوَ السَّرِير فِي الْحَجَلَة أَوْ الْفُرُش فِيهَا (مُتَّكِئُونَ) خَبَر ثَانٍ متعلق على (لَهُمْ فِيهَا فَاكِهَةٌ وَلَهُمْ) فِيهَا (مَا يَدَّعُونَ) يتمنون (سَلَامٌ) مبتدأ (قَوْلًا) أَيْ بِالْقَوْلِ خَبَره (مِنْ رَبٍّ رَحِيمٍ) بِهِمْ أَيْ يَقُول لَهُمْ سَلَام عليكم (و) يقول (امْتَازُوا الْيَوْمَ أَيُّهَا الْمُجْرِمُونَ) أَيْ انْفَرِدُوا عَنْ الْمُؤْمِنِينَ عِنْد اخْتِلَاطهمْ بِهِمْ (أَلَمْ أَعْهَدْ إِلَيْكُمْ) آمُركُمْ (يَا بَنِي آدَمَ) عَلَى لِسَان رُسُلِي (أَنْ لَا تَعْبُدُوا

الشَّيْطَان) لا تُطِيعُوهُ (إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ) بَيِّن العداوة (وَأَنِ اعْبُدُونِي) وَحِّدُونِي وَأَطِيعُونِي (هَٰذَا صِرَاطٌ) طَرِيق (مستقيم) (وَلَقَدْ أَضَلَّ مِنكُمْ جِبِلًّا) خَلْقًا جَمْع جَبِيل كَقَدِيم وَفِي قِرَاءَة بِضَمِّ الْبَاء (كَثِيرًا أَفَلَمْ تَكُونُوا تَعْقِلُونَ) عَدَاوَته وَإِضْلاله أَوْ مَا حَلَّ بِهِمْ مِنَ الْعَذَاب فَتُؤْمِنُونَ وَيُقَال لَهُمْ فِي الْآخِرَة (هذه جهنم التي كنتم توعدون) بها (اصلوها اليوم بما كنتم تكفرون) (الْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلَىٰ أَفْوَاهِهِمْ) أَيْ الْكُفَّار لِقَوْلِهِمْ وَاَللَّه رَبّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ (وَتُكَلِّمُنَا أَيْدِيهِمْ وَتَشْهَدُ أَرْجُلُهُم) وَغَيْرهَا (بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ) فَكُلّ عُضْو يَنْطِق بِمَا صَدَرَ مِنْهُ (وَلَوْ نَشَاءُ لَطَمَسْنَا عَلَىٰ أَعْيُنِهِمْ) لَأَعْمَيْنَاهَا طَمْسًا (فَاسْتَبَقُوا) ابْتَدَرُوا (الصِّرَاط) الطَّرِيق ذَاهِبِينَ كَعَادَتِهِمْ (فَأَنَّىٰ) فَكَيْفَ (يُبْصِرُونَ) حِينَئِذٍ أَيْ لَا يُبْصِرُونَ (وَلَوْ نَشَاءُ لَمَسَخْنَاهُمْ) قِرَدَة وَخَنَازِير أَوْ حِجَارَة (عَلَىٰ مَكَانَتِهِمْ) وَفِي قِرَاءَة مَكَانَاتهمْ جَمْع مَكَانَة بِمَعْنَى مَكَان أَيْ فِي مَنَازِلهمْ (فَمَا اسْتَطَاعُوا مُضِيًّا وَلَا يَرْجِعُونَ) أَيْ لَمْ يَقْدِرُوا عَلَى ذَهَاب وَلَا مَجِيء

ترجمه: او شيطانۍ به اووهلې شي، او هغه يو خکر دې، او دويمه شپيلۍ به د ژوندي کولو د پاره وي، او په دوارو نفخو کښې به وقفه څلويښت کاله وي. يا چې کله يعنی هغه مړی د قبرونو نه راوتلو سره په تيزۍ د خپل پروردګار طرف ته ځی، په دوی کښې به کافران وائی، هائې زمونږ کمبختۍ، ياء د تنبيه د پاره ده هائې زمونږ هلاکته، ويل داسې مصدر دې چې ددې لفظی فعل نه وی، چا مونږ د قبرونو نه پاسولو، ؟ څکه چه د دواړه نفخو په مينځ کښې به دوی اوده وی، او دوی ته به عذاب ورکولې نشی، دا هم هغه بعث دې، د کوم چې رحمن وعده کړې وه، او رسولانو ددې باره کښې رشتيا وئيلی وو، په داسې وخت به اقرار اوکړی چه ددوی اقرار به څه فائده ورنکړی، او يو قول دا هم دې، چې دا خبره به کافرانو ته اووئيلې شی، نو دا به يو زوردار اواز وی، چې هغې سره به سمدسی ټول زمونږ مخکښې حاضر کړې شی، بيا به هغه ورځ به په هيڅ يو کس باندې ذره برابر هم ظلم نه کيږی، او تاسو ته به د هغه کارونو بدله ملاويږی کوم چې تاسو کول، جنتيان به په هغه ورځ د ددې دوزخيانو د عذاب نه بې خبر په عيش او عشرت کښې به وی، د هغه څيزونو د وجې نه د کوم نه چې دوی مزې اخلی، لکه خوانانو جينکو سره صحبت، نه چې داسې يو کار چې په هغې کښې څه سترې والې او تکليف وی، څکه چې جنت د تکليفونو او د سترې ځائې نه دې، شغل د عين په سکون او ضمې سره دې، فاکهون په معنی د ناعمون يعنی خوشحاله، دا د إن دويم خبر دې، او اول خبر ئې شغل دې، دوی او ددوی ښځې به په سورو کښې په بالختونو باندې ددې وهلې ناست وی، هم مبتدأ ده، ظلال د ظلة جمع ده، (فی ظلال) اول خبر دې، يعنی په دوی باندې به دهوپ (د نمر تپش) نه وی، ارائك د اريكة جمع ده هغه بالخت ته وائی کوم چې په خيمه کښې وی، يا هغه فرش ته وائی چې په خيمه کښې وی، متکئون دويم خبر دې، او دا د (علی) متعلق دې، هلته به د هغوی د پاره ميوې او څه چې غواړی هغه به موجود وی، دوی ته

به د پروردګار مهربان د طرف نه سلام پیش کړې شي، سلام مبتدأ ده او قولا خبر دې، یعنی دوی ته به سلام علیکم وئیلې شي، او الله تعالی به د دوی د اختلاط په وخت کښې وائي اې مجرمانو نن (د مومنانو نه) جدا شئې، او اې د آدم اولاده آیا ما تاسو ته د رسولانو په ژبه تاکیدی حکم کړې نه وو، چې د شیطان تابعداري یعنی د هغه اطاعت مه کوئی، هغه ستاسو ښکاره دښمن دې، یعنی د هغه دښمنی ښکاره ده، او صرف ځما بندګی کوئی، یعنی ځما د توحید اقرار کوئی، او ځما اطاعت کوئئ هم دا نیغه لاره ده، هغه شیطان په تاسو کښې یو لویه ډله ګمراه کړې ده، جبلا د جبل جمع ده څنګه چې قدما د قدیم جمع ده، او په یو قراءت کښې د باء په ضمې سره دې، ځملا نو آیا تاسو د هغه په ګمراه کولو، یا د هغه په ښمنۍ او یا په هغه عذاب کوم چې په هغوی باندې نازل شو، نه پوهیږئ، چې ایمان مو راوړې وو، او دوی ته به اوئیلې شي چه دغه دې هغه جهنم! د کوم چې به تاسو سره وعده کیدې شوه نن په دې کښې د خپل کفر د وجې نه داخل شئ، نن به مونږ د کافرانو په خلو باندې مهرونه اولګوو، د دوی دا وئیلو د وجې چې اې ځمونږ پروردګاره مونږ د مشرکانو نه نه وو، کوم څه چې دوی په دنیا کښې کول، د دوی لاسونه به ئې مونږ ته بیان کړي، او د دوی خپې وغیره به ګواهي ورکوي، او که مونږ اوغواړو نو د دوی سترګو لره به ختمې کړو یعنی ختمولو سره به ئې ړندې کړو، بیا به دوی لارې طرف ته د خپل عادت مطابق منډې وهي نو هغه وخت به دوی څنګه کتل کوی؟ یعنی کتلې به نشي، او که مونږ اوغواړو نو دوی چې په کوم ځاې دی هلته به ئې په بیزوګانو او خنزیرانو یا په کاڼرو کښې به ئې بدل کړو، او په یو قراءت کښې مکاناتهم دې، کوم چې د مکانة جمع ده، په معنی د مکان دې، یعنی د دوی په کورونو کښې بیا به دا خلق مخکښې تلې نشي، او نه به واپس کیدې شي، یعنی دا خلق به نه په تلو قادر وی او نه په راتلو باندې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: الصور اى القرن: چې هغې ته نن صبا خلق بوق (بګل) وائي، (ج) ابواق وبيقان وبيقات

قوله: الاجداث: جمع جدث، بمعنى قبر

قوله: ينسلون: (ن ض) نسلامنډې وهل، مجبوراً تیز تلل

قوله: يا للتنبيه: تنبيه اضافې سره ددې سوال جواب دې، چې ندا عُقَلاؤ سره خاص ده او (ويل) د ذوى العقول نه نه دې، لهذا دې ته اواز کول صحيح نه دی؟

د جواب خلاصه داده چې یاء د نداد پاره نه ده، بلکه د تنبیه د پاره ده لهذا هیڅ اعتراض نشته، یا مجازا ویلّ ته ندا شوې ده، اى يا ويلنا احضر فهذا اوان حضورك د جمهورو په نیز یا ویلنا دې، او ابن ابی لیلی یا ویلتنا وئیلې دې.

قوله: من بعثنا: د جمهورو په نیز (من) استفهامیه مبتدأ ده، او بعثنا ددې خبر دې، او

(مِن) په کسرې د ميم سره بطور شاذ ونيلې شوې دی، په دې صورت کښې به جار مجرور د ويلنا متعلق وی، او بعث به مصدر وی.

**قوله: ويلنا:** ويل داسې مصدر دې چې ددې لفظا فعل مستعمل نه دې، لهذا معنی ددې فعل (هلک) استعماليدې شی،

**قوله: من مرقدنا:** دا د بعثنا متعلق دې، مرقدنا مصدر ميمی دې، اوده کيدل، او اسم مکان هم کيدې شی، يعنی د خوب ځاې (قبر) مفرد د مصدر کيدو د وجې د جمع قائم مقام کړې شو.

**قوله: هذا ما وعد الرحمن وصدق المرسلون:** دوعد او صدق مفعول محذوف دې، ای وعدنابه وصدقونافيه، مفسر علام د أقرواحين لاينفعهم الاقرار په اضافې سره اشاره اوکړه چې هذا ما وعد الرحمن الخ د کفارو قول دې، هذا مبتدأ ده، او ما وعد الرحمن جمله خبر.

**قوله: وعد الرحمن:** دقالوا محذوف مقوله کيدو د وجې نه په محل د نصب کښې دې،

**قوله: قيل يقال لهم ذلك:** مفسر علام په دې عبارت سره دې خبرې ته اشاره کړې ده چې بعضې حضراتو ما وعد الرحمن د الله تعالی يا د مومنانو يا د ملائکه قول ګرځولې دې.

**قوله: فاکهون اي الناعمون:** اسم فاعل جمع مذکر (س) فُکَاهة، آرام موندل، مزې اخستل، توقو کولو والا، صاحب معجم القرآن ليکلی دی د فکهين او فاکهين معنی ده مسلمانانو پسې توقې کولو سره مزې اخستل، (لغات القرآن)

**قوله: على الارائك:** دا د متكئون متعلق مقدم دې، او متکون د خپل متعلق سره د (هم) مبتدأ خبر ثاني دې.

**قوله: ما يدعون:** يدعون په اصل کښې يدتعيون وو، بروزن يفتعلون، په ياء باندې ضمه ثقيله وه ماقبل ع ته ئې ورکړه، د التقاء ساکنين د وجې نه ياء اوغورزيدله، بيا تاء په دال سره بدله کړې شوه، او دال په دال کښې مدغم شو.

**قوله: سلام قولا من رب رحيم:** ددې جملې په ترکيب کښې مختلف اقوال دی، جمهورو سلام په رفع سره وئيلې دې، او أُبَیّ او ابن مسعود او عيسی سلاما په نصب سره وئيلې دې، نصب يا خو د مصدريت د وجې نه دې، يا د حال کيدو د وجې نه، ای خالصا، علامه محلی منصوب بنزع الخافض ګرځولې دې، او ای بالقول وئيلو سره ئې دې طرف ته اشاره اوکړه، او د رفع څو وجوهات دی ① د ما يدعون خبر دې، ② د (ما) نه بدل دې، دا د زمخشری قول دې، شيخ وئيلې دی که چرې سلام بدل وی، نو د مايدعون نه به مخصوص تمنا مراد وی، چې بدل واقع کيدل صحيح شی، او ښکاره دا ده چې مايدعون

کل مايتمناه لره عام دي، په دې صورت کښې بدل واقع کيدل صحيح نه دی.
③د (ما) صفت دې، خو دا به په هغه صورت کښې وی چې کله (ما) نکره موصوفه اوګنړلې شی، او که د الذی په معنی کښې واخستلې شی يا مصدريه واخستلې شی، نو صفت واقع کيدل به ګران وی، په نکره او معرفه کښې د مخالفت د وجې.④ دمبتدأ محذوف د خبر د وجې نه مرفوع دې، ای هو سلام: ⑤سلام مبتدأ او ددې د خبر (د قولا) ناصب محذوف دی ای سلام يقال لهم قولا، بعضې حضراتو سلام عليکم تقدير منلې دې ⑥سلام مبتدأ او من رب العلمين ددې خبر، او قولاد د تاکيد د پاره دې، او د خپل عامل سره د مبتدأ او د خبر په مينځ کښې جمله معترضه ده.(لغات القرآن للدرويش)
**قوله: الم اعهد اليکم**:دا استفهام توبيخی دې.
**قوله: لا تطيعوه**:دا د ان لا تعبدوا الشيطان تفسير دې، مقصد ددې شبهې ازاله کول دی چې د شيطان بندګی څوک هم نه کوی، بيا د شيطان د بندګئ نه څه مراد؟
د جواب حاصل دادې چه عبادت په معنی د اطاعت دې، يعنی د شيطان د اطاعت د وجه نه خلق د غير الله بندګی شروع کړی، نو دا ګويا چې د شيطان بندګی شوه، ان لا تعبدوا کښې (ان) تفسيريه دې، ځکه چې په ماقبل کښې لفظ آمرکم موجود دې، کوم چې په معنی د قول دې، لهذا د (ان) تفسيريه کيدل صحيح دی.
**قوله: انه لکم عدو مبين**:دا د وجوب ممانعت علت دې،
**قوله: ولقد اضل منکم**:دا د تعليل تاکيد دې
**قوله: جبلا**:د باء او د جيم په کسره او د لام په تخفيف سره، دې نه علاوه دوه نور قراءتونه هم دی ①د جيم او باء دواړو په ضمې سره ②د جيم په ضمې سره د باء د سکون سره، او د لام تخفيف سره، مذکوره درې واړه قراءتونه سبعيه دی.
**قوله: توعدون بها**:د بها اضافه کولو سره ئې اشاره اوکړه چې توعدون جمله صله ده، او د دې عائد بها محذوف دې.
**قوله: بما کنتم**:ای بسبب ما کنتم تکفرون:په بما کښې (ما) مصدريه ده، بسبب کفرکم
**قوله: ولو نشاء لطمسنا علی اعينهم**:لو شرطيه دې، نشاء فعل بافاعل دې، او د نشاء مفعول به محذوف دې، ای لو نشاء طمسها لطمسناها،لطمسنا جواب شرط دې،
**قوله: فانی يبصرون**:يعنی استفهام انکاری دې، يعنی کتلې به نشی.
**قوله: ولو نشاء لمسخناهم**:ای لو نشاء مسخهم لمسخناهم:
**قوله: علی مکانتهم**:علی په معنی د فی ده، ځکه چې شارح فی منازلهم وئيلو سره اشاره اوکړه.

[اياتونه: ٦٨ - ٧٣]

(وَمَنْ نُعَمِّرْهُ) بِإِطَالَةِ أَجَله (نُنَكِّسْهُ) وَفِي قِرَاءَة بِالتَّشْدِيدِ مِنَ التَّنْكِيس (فِي الْخَلْقِ) فَيَكُون بَعْد قُوَّته وَشَبَابه ضَعِيفًا وَهَرِمًا (أَفَلَا يَعْقِلُونَ) أَنَّ الْقَادِر عَلَى ذَلِكَ الْمَعْلُوم عِنْدهمْ قَادِر عَلَى الْبَعْث فَيُؤْمِنُونَ وَفِي قِرَاءَة بِالتَّاء (وَمَا عَلَّمْنَاهُ) أَيْ النَّبِيّ (الشِّعْر) رَدّ لِقَوْلِهِمْ إِنَّ مَا أَتَى بِهِ مِنَ الْقُرْآن شِعْر (وَمَا يَنْبَغِي) يَسْهُل (لَهُ) الشِّعْر (إِنْ هُوَ) لَيْسَ الَّذِي أَتَى بِهِ (إِلَّا ذِكْر) عِظَة (وَقُرْآن مُبِين) مُظْهِر لِلْأَحْكَامِ وَغَيْرهَا (لِيُنْذِر) بِالْيَاءِ وَالتَّاء بِهِ (مَنْ كَانَ حَيًّا) يَعْقِل مَا يُخَاطَب بِهِ وَهُمْ الْمُؤْمِنُونَ (وَيَحِقّ الْقَوْل) بِالْعَذَابِ (عَلَى الْكَافِرِينَ) وَهُمْ كَالْمَيِّتِينَ لا يعقلون ما يخاطبون به (أولم يروا) يَعْلَمُوا وَالِاسْتِفْهَام لِلتَّقْرِيرِ وَالْوَاو الدَّاخِلَة عَلَيْهَا للعطف (أنا خلقنا لهم) في جملة الناس (مِمَّا عَمِلَتْ أَيْدِينَا) عَمِلْنَاهُ بِلَا شَرِيك وَلَا مُعِين (أَنْعَامًا) هِيَ الْإِبِل وَالْبَقَر وَالْغَنَم (فَهُمْ لَهَا مَالِكُونَ) ضَابِطُونَ (وذللناها) سخرناها (لهم فمنها ركوبهم) مركوبهم (ومنها يأكلون) (وَلَهُمْ فِيهَا مَنَافِع) كَأَصْوَافِهَا وَأَوْبَارهَا وَأَشْعَارهَا (وَمَشَارِب) مِنْ لَبَنهَا جَمْع مَشْرَب بِمَعْنَى شُرْب أَوْ مَوْضِعه (أَفَلَا يَشْكُرُونَ) الْمُنْعِم عَلَيْهِمْ بِهَا فَيُؤْمِنُونَ أَيْ مَا فَعَلُوا ذَلِكَ (وَاتَّخَذُوا مِنْ دُون اللَّه) أَيْ غَيْره (آلِهَة) أَصْنَامًا يَعْبُدُونَهَا (لَعَلَّهُمْ يُنْصَرُونَ) يُمْنَعُونَ مِنْ عَذَاب اللَّه تَعَالَى بِشَفَاعَةِ آلِهَتهمْ بِزَعْمِهِمْ (لَا يَسْتَطِيعُونَ) أَيْ آلِهَتهمْ نُزِّلُوا مَنْزِلَة الْعُقَلَاء (نَصْرهمْ وَهُمْ) أَيْ آلِهَتهمْ مِنَ الْأَصْنَام (لَهُمْ جُنْد) بِزَعْمِهِمْ نَصْرهمْ (مُحْضَرُونَ) فِي النَّار مَعَهُمْ (فَلَا يَحْزُنك قَوْلهمْ) لَك لَسْت مُرْسَلًا وَغَيْر ذَلِكَ (إِنَّا نَعْلَم مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ) مِنْ ذَلِكَ وَغَيْره فَنُجَازِيهِمْ عَلَيْهِ (أَوَلَمْ يَرَ الْإِنْسَان) يَعْلَم وَهُوَ الْعَاصِي بْن وَائِل (أَنَّا خَلَقْنَاهُ مِنْ نُطْفَة) مَنِيّ إِلَى أَنْ صَيَّرْنَاهُ شَدِيدًا قَوِيًّا (فَإِذَا هُوَ خَصِيم) شَدِيد الْخُصُومَة لَنَا (مُبِين) بَيِّنهَا فِي نَفْي البعث (وَضَرَبَ لَنَا مَثَلًا) فِي ذَلِكَ (وَنَسِيَ خَلْقه) مِنَ الْمَنِيّ وَهُوَ أَغْرَب مِنْ مِثْله (قَالَ مَنْ يُحْيِي الْعِظَام وَهِيَ رَمِيم) أَيْ بَالِيَة وَلَمْ يَقُلْ رَمِيمَة بِالتَّاء لِأَنَّهُ اسْم لَا صِفَة وَرُوِيَ أَنَّهُ أَخَذَ عَظْمًا رَمِيمًا فَفَتَّتَهُ وَقَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتُرَى يُحْيِي اللَّه هَذَا بَعْد مَا بَلِيَ وَرَمَّ فَقَالَ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَعَمْ وَيُدْخِلك النار (قُلْ يُحْيِيهَا الَّذِي أَنْشَأَهَا أَوَّل مَرَّة وَهُوَ بِكُلِّ خَلْق) مَخْلُوق (عَلِيم) مُجْمَلًا وَمُفَصَّلًا قَبْل خَلْقه وَبَعْد خَلْقه (الَّذِي جَعَلَ لَكُمْ) فِي جُمْلَة النَّاس (مِنَ الشَّجَر الْأَخْضَر) الْمَرْخ وَالْعَفَار أَوْ كُلّ شَجَر إِلَّا الْعُنَّاب (نَارًا فَإِذَا أَنْتُمْ مِنْهُ تُوقِدُونَ) تَقْدَحُونَ وَهَذَا دَالّ عَلَى الْقُدْرَة عَلَى الْبَعْث فَإِنَّهُ جَمَعَ فِيهِ بَيْن الْمَاء وَالنَّار وَالْخَشَب فلا الماء يطفيء النار ولا النار تحرق الخشب (أوليس الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَات وَالْأَرْض) مَعَ عِظَمهمَا (بِقَادِرٍ عَلَى أَنْ يَخْلُق مِثْلهمْ) أَيْ الْأَنَاسِيّ فِي الصِّغَر (بَلَى) أَيْ هُوَ قَادِر عَلَى ذَلِكَ أَجَابَ نَفْسه (وَهُوَ الْخَلَّاق) الْكَثِير الْخَلْق (الْعَلِيم) بِكُلِّ شَيْء (إِنَّمَا أَمْره) شَأْنه (إِذَا أَرَادَ شَيْئًا) أَيْ خَلْق شَيْء (أَنْ يَقُول لَهُ كُنْ فَيَكُون) أَيْ فَهُوَ يَكُون وَفِي قِرَاءَة بِالنَّصْبِ عَطْفًا عَلَى يَقُول (فَسُبْحَان الَّذِي بِيَدِهِ مَلَكُوت) مُلْك زِيدَتْ الْوَاو وَالتَّاء لِلْمُبَالَغَةِ أَيْ الْقُدْرَة عَلَى (كُلّ شَيْء وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ) تُرَدُّونَ فِي الْآخِرَة

ترجمه: او چا لره چې مونږه عمر په اوږدولو سره معمر (پوخ عمر والا) جوړ کړو نو د هغه

تخليق واړوو، او په يو قراءت كښې تنكيس په تشديد سره دې، نو هغه د ځوانئ او د قوت نه پس كمزورئ او بوډها شي، نو آيا دوى نه پوهيږي، چې كوم ذات په دې خبره باندې چې كوم دوى ته معلوم ده قادر دې، هغه په بعث بعد الموت باندې هم قادر دې، چې هغوى ايمان راوړي، او په يو قراءت كښې حخ تاء سره دې، او مونږ دې نبي ﷺ ته شعرونه وئيل خودلې نه دى، دا د كافرانو د هغه خبرې جواب دې چې محمد ﷺ څه هم د قرآن نه پيش كوي هغه شعرونه دى، او نه شعر وئيل د هغه د شان سره مناسب دى، چې كوم دوى پيش كوي، هغه خو صرف يو نصيحت دې، او احكام وغيره ښكاره كولو والا قرآن دې، چې هغه كس د قرآن په ذريعه سره كوم چې ژوندې دې خبردار كړي، يعنى څه چې هغه ته اووئيلې شي په هغې پوهيږي او هغه اهلِ ايمان دى، او په كافرانو باندې د عذاب وعده ثابته شي، او كافران د مړو پشان دى څكه چې كومه خبره دوى ته كولې شي په هغې نه پوهيږي، آيا دا خلق په دې باندې نه پوهيږي چې مونږ په خپل لاس باندې بغير د شريک او د مددګار نه پيدا كړې شوې څيزونو كښې سره د ټولو خلقو ددوى د پاره څناور، چې هغه اوښان، غواګانې او چيلئ پيدا كړى دى چې دوى ئې مالكان جوړ شوې دى، په قابو كښې كړې ئې دى، په (أولم يروا) كښې استفهام تقريرى دې، او كوم واؤ چې په دې باندې داخل دې عاطفه دې هغه او مونږ دا څناور ددوى په قابو كښې وركړې دى، په دې كښې بعضې ددوى سورلې دى، او بعضې ددې نه خورى، او ددوى د پاره په دې كښې نورې هم ډيرې فائدې دى، لكه وړئ، ويخته وغيره او د څكلو څيزونه دى، مثلاً پې، يا ددې محل، (غلانزه) مشارب د مشرب جمع ده، په معنى د شُرب، آيا دا خلق په خپل ځان باندې د څناورو په ذريعې سره د احسان كونكى ذات شكريه نه ادا كوي، چې ايمان راوړي، يعنى دوى داسې اونه كړه، او دوى غير الله يعنى بتانو لره معبود نيولې دى، چې د هغوى بندګى كوي، چې كيدې شي چې ددوى د طرف نه دوى ته څه مدد اورسي، چې د الله د عذاب نه ددوى د اعتقاد مطابق ددې بتانو په سفارش سره د (عذاب) نه محفوظ شي، خو ددوى معبودان به ددوى هيڅ مدد نشي كولې، دې معبودانو لره ئې د ذوى العقول په درجه كښې اچولې دى به هغوى يعنى د دوى بتان د چا نه چې د دوى د مدد اميد ساتلو د وجې نه ددوى په لښكر كښې دې عبادت كونكو سره په جهنم كښې حاضرولې شي، نو ستا په باره كښې ددوى قول لَسْتَ مُرْسَلًا وغيره دې تا لره خفه نه كړى بې شكه مونږ دې خبرې لره او دې نه علاوه په نورو خبرو ښه پوهيږو، كوم چې دوى پټوي، او چې كوم ښكاره كوي، مونږ د هغې بدله وركړو، آيا انسان ته معلومه نه ده او هغه عاص بن وائل دې چې مونږ هغه لره د منى د نطفې نه پيدا كړو، تر دې چې هغه مونږ مضبوط او طاقتور جوړ كړو، بيا هغه د بعث نه انكار كولو سره خصومت ښكاره كړو او په ښكاره ئې اعتراض اوكړو يعنى مونږ سره ئې مخالفت شروع كړو او ده په دې باره كښې زمونږ په شان كښې يوه

عجيبه خبره اوکړه، او خپل اصل حقيقت ئې هير کړو، چې هغه د منی د نطفې نه پيدا شوې دې، او دا د هغې د عجيبه خبرې نه زياته عجيبه خبره ده، وائي چې هغه هډوکي کوم چې وراسته شوې وی، څوک ژوندی کولې شي؟ رميم په (بمعنی بالية) (وراسته) په رميمة تاء سره نې اونه وئيل (ځکه چې د قياس تقاضه ده) ځکه چه رميم اسم دې، نه چې صفت دې. روايت کړې شوې دې چې عاص بن وائل، يو روست هډوکې راوخستلو او هغه ئې ريزه ريزه کړو، او حضور ﷺ ته يې اووئيل چې ستا دا خيال دې چې الله به دې هډوکي لره د وچيدو او روست کيدو نه پس بيا دوباره ژوندې کوی؟ نو حضور ﷺ ورته جواباً ارشاد اوکړو، چې او ولې نه؛ او تا به دوزخ ته داخل کړی، تاسو جواب ورکړئ چې دې لره به هغه ذات ژوندې کوی کوم چې په اول ځل پيدا کړې وو، او هغه د خپل مخلوق په باره کښې د پيدا کولو نه وړاندې او پس مجملاً او مفصلاً خبردار دې، او هغه داسې ذات دې چا چې ستاسو د پاره سره د تولو خلقو نه د مَرَخ او د عَفَار يا د هر شنې اونې نه سوا د انګورو نه اور پيدا کړو يا تاسو دې نه اور لګوئی، او دا په بعث بعد الموت باندې د قادر کيدو دليل دې، ځکه چې په دې کښې هغه اوبه، لرګې او اور (مختلف څيزونه) جمع کړې دی، اوبه اور لره نه مړه کوی، او نه اور اونې لره سوزوی، چا چې د آسمان او زمکې غوندې څيزونه پيدا کړې دی، آيا هغه په دې باندې قادر نه دې چې ددې پشان واړه انسانان پيدا کړی؟ خامخا پيدا کولې شي. يعنی هغه په دې خبره باندې قادر دې په خپله يې جواب ورکړو هغه لوئې پيدا کونکې دې، او په هر څيز باندې علم لرونکې دې، د هغه شان خو دا دې چې کله هغه د څه څيز د پيدا کولو اراده اوکړی، نو هغې ته اووائي چې شه، نو هغه شي، او په يو قراءت کښې يکون په نصب سره دې، په يقول باندې د عطف د وجې نه، هغه پاک ذات دې، د هغه په لاس و قدرت کښې د هر څيز اختيار دې، په ملکوت کښې واؤ او تاء زائد دی، او تاسو ټول به هغه ته واپس کيږئ، په آخرت کښې

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** نعمرة: اى نطل اجله مونږ د هغه عمر زيات کړو، جمع متکلم مضارع مجزوم

**قوله:** وننكسه اى نقلبه اى نجعله على عكس ما خلقناه مونږ د هغه تخليق بدل کړو، (اعراب القرآن) يعنی درجه په درجه د هغه حالت لره بدلوو، تر دې چه په بوډاوالی کښې د هغه حالت د ماشومانو پشان شي.

**قوله:** ومن نعمرة: (الآية) دا جمله مستانفه ده، د قوت نه د کمزورئ طرف ته د انسان د حالت د بدليدلو کيفيت بيانولو د پاره راوړې شوې ده، (من) اسم شرط دې، او (نعمر) فعلِ شرط دې، ننكسه، جواب شرط دې.

**قوله:** افلا تعقلون: فا عاطفه ده، تقدیری عبارت دا دي اتركوا التفكر فلا يعقلون.

**قوله:** وما علمنه الشعر: دا په حضور ﷺ باندې د کافرانو د طرف نه د شاعر کیدو د الزام جواب دې، ددې عطف په سورة کښې انك لمن المرسلين (جمله قسميه) باندې دې.

**قوله:** الشعر: معروف دې، (ج) اشعار، شعر، په لغت کښې علم دقيق او احساس لطيف ته وئيلې شي، او موزون او مُقَفّٰى کلام ته وئيلې شي، بعضې خلقو وئيلی دی چې شعر يا خو منطقی وی، يا هغه چې په مقدمات کاذبه باندې مشتمل وی، ځکه هغه دلالتونه کوم چې په مقدمات کاذبه باندې مشتمل وی ادله شعريه ورته وئيلې شي، او په اصطلاح کښې كلام مقفى وموزون على القصد ته وئيلې شي، په آخری قيد سره هغه شعر بهر دې کوم چې بغير د ارادې نه اتفاقی طور سره جاری شوې وی، لکه آيات شريفه او بعضې کلمات نبويه، ځکه چې په هغې کښې بغير د قصد نه اتفاقی طور باندې کلام د علم عروض د وزن مطابق شوې دې. (حاشية جلالين ملخصاً)

**قوله:** اولم يرالانسان: (الأية) همزه استفهام انکاری تعجبيۀ ده، په محذوف باندې داخل ده، واؤ عاطفه دې، تقديری عبارت دا دې اولم يتفكروا، د رؤيت نه مراد رؤيت علميه دې، انا خلقناه من نطفة قائم مقام د دوو مفعولو دې.

**قوله:** خصيم: المخاصم المجادل

**قوله:** خلقنا لهم: لام حکمت د پاره دې، اى حكمة خلقنا ذلك انتفاعهم.

**قوله:** في جملة الناس: په دې سره ئې اشاره اوکړه چې دا نعمتونه د هغوی د پاره خاص نه دی، بلکه د ټولو د پاره دی،

**قوله:** ما فعلوا ذلك: دې سره اشاره اوکړه چې په افلا يشكرون کښې همزه د استفهام انکاری ده.

**قوله:** نزلوا منزلة العقلاء: په دې سره د شبهې جواب دې:

شبهه: چې د لا يستطيعون نه مراد د مشرکينو بتان معبودان دی، کوم چې غير ذوی العقول دی، ددې جمع په واؤ او نون سره راوړل صحيح نه دی. د جواب خلاصه داده چې په عابدين او معبودين کښې د مشاکلت په طور باندې د ذوی العقول درجې ته د راکوزولو د وجې واؤ او نون سره جمع راوړې شوې ده.

**قوله:** وهم لهم جند محضرون: هم مبتدأ، جند خبر اول. محضرون خبر ثاني، اولهم د جند متعلق دې او محضرون د جند صفت هم کيدې شي.

**قوله:** اى الهتهم من الاصنام: د دې عبارت د اضافې سره د شارح مقصد (هم) ضمير مرجع څرګندول دی، يعنی هغه بتان ددوی د لښکرو په شان دی، محضرون اى معدون لحفظهم يعنی

د خپل حفاظت د پاره تیار کړې شوي لښکرې دي، چې په دنیا کښې به ددوی د خیال مطابق ددوی حفاظت کوي، (روح المعاني) دویم قول دادې چې د [هم] مرجع کفار دي، یعنی کافران عابدین دهغوی دپاره دحاضر تابعدار لښکر په شان دي چه دهغوی حفاظت کوي. (جمل)

**قوله**: من ذلك: أي قولهم لست مرسلا.

**قوله**: الذي جعل لكم: دا د الذي ألفاها نه بدل دې.

**قوله**: إلا العذاب: د عناب باره کښې مشهور دې چه ددې په مرلوسره اور نه اوخي، او همدا وجه ده چه قصاریان (دهوبیان) د عناب لرګی نه مطارق (سوبارې) جوړوي چه په وهلو سره ئې د کپړو نه اور اونه لګي. (صاوي)

## [۳۷] سورة الصافات

سورة الصافات مكية و هي مائة و اثنان و ثمانون اية

سوره صافات مکی دې، په دې کښې ۱۸۲ آیتونه دي.

[ایاتونه: ۱ - ۲۱]

---

بسم الله الرحمن الرحيم (وَالصَّافَّاتِ صَفًّا) الْمَلَائِكَة تَصُفّ نُفُوسهَا فِي الْعِبَادَة أَوْ أَجْنِحَتهَا فِي الْهَوَاء تَنْتَظِر مَا تُؤْمَر بِهِ (فَالزَّاجِرَاتِ زَجْرًا) الْمَلَائِكَة تَزْجُر السَّحَاب أَيْ تَسُوقهُ (فَالتَّالِيَاتِ) أَيْ قُرَّاء الْقُرْآن يَتْلُونَهُ (ذِكْرًا) مَصْدَر مِنْ مَعْنَى التَّالِيَات (إِنَّ إِلَٰهَكُمْ) يا اهل مكة (لَوَاحِدٌ) (رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَرَبُّ الْمَشَارِقِ) اي والمغارب للشمس ولها كُلّ يَوْم مَشْرِق وَمَغْرِب (إِنَّا زَيَّنَّا السَّمَاءَ الدُّنْيَا بِزِينَةٍ الْكَوَاكِبِ) أَيْ بِضَوْئِهَا أَوْ بِهَا وَالْإِضَافَة لِلْبَيَانِ كَقِرَاءَةِ تَنْوِين زِينَة الْمُبَيَّنَة بِالْكَوَاكِبِ (وَحِفْظًا) مَنْصُوب بِفِعْلٍ مُقَدَّر أَيْ حَفِظْنَاهَا بِالشُّهُبِ (مِنْ كُلِّ) مُتَعَلِّق بِالْمُقَدَّرِ (شَيْطَانٍ مَارِدٍ) عَاتٍ خَارِج عَنْ الطَّاعَة (لَا يَسَّمَّعُونَ) أَيْ الشَّيَاطِين مُسْتَأْنَف وَسَمَاعهمْ هُوَ فِي الْمَعْنَى الْمَحْفُوظ عَنْهُ (إِلَى الْمَلَإِ الْأَعْلَى) الْمَلَائِكَة فِي السَّمَاء وَعُدِّيَ السَّمَاع بِإِلَى لِتَضَمُّنِهِ مَعْنَى الْإِصْغَاء وَفِي قِرَاءَة بِتَشْدِيدِ الْمِيم وَالسِّين أَصْله يَتَسَمَّعُونَ أُدْغِمَتْ التَّاء فِي السِّين (وَيُقْذَفُونَ) أَيْ الشَّيَاطِين بِالشُّهُبِ (مِنْ كُلِّ جَانِبٍ) مِنْ آفَاق السماء (دُحُورًا) مَصْدَر دَحَرَهُ أَيْ طَرَدَهُ وَأَبْعَدَهُ وَهُوَ مَفْعُول لَهُ (وَلَهُمْ) فِي الْآخِرَة (عَذَابٌ وَاصِبٌ) دائم (إِلَّا مَنْ خَطِفَ الْخَطْفَةَ) مَصْدَر أَيْ الْمَرَّة وَالِاسْتِثْنَاء مِنْ ضَمِير يَسْمَعُونَ أَيْ لَا يَسْمَع إلَّا الشَّيْطَان الَّذِي سَمِعَ الْكَلِمَة مِنْ الْمَلَائِكَة فَأَخَذَهَا بِسُرْعَةٍ (فَأَتْبَعَهُ شِهَابٌ) كَوْكَب مُضِيء (ثَاقِبٌ) يَثْقُبهُ أَوْ يُحْرِقهُ أَوْ يُخَبِّلهُ (فَاسْتَفْتِهِمْ) اسْتَخْبِرْ كُفَّار مَكَّة تَقْرِيرًا أَوْ تَوْبِيخًا (أَهُمْ أَشَدُّ خَلْقًا أَمْ مَنْ خَلَقْنَا) مِنْ الْمَلَائِكَة وَالسَّمَاوَات وَالْأَرْضِينَ وَمَا فِيهِمَا وَفِي الْإِتْيَان بِمَنْ تَغْلِيب الْعُقَلَاء (إِنَّا خَلَقْنَاهُمْ) أَيْ أَصْلهمْ آدَم (مِنْ طِينٍ لَازِبٍ) لَازِم يَلْصَق بِالْيَدِ الْمَعْنَى أَنَّ خَلْقهمْ ضَعِيف فَلَا يَتَكَبَّرُوا بِإِنْكَارِ النَّبِيّ وَالْقُرْآن الْمُؤَدِّي إلَى هَلَاكهمْ الْيَسِير (بَلْ) لِلِانْتِقَالِ مِنْ غَرَض إلَى آخَر وَهُوَ الْإِخْبَار بِحَالِهِ وَحَالهمْ (عَجِبْتَ) بِفَتْحِ التَّاء خِطَابًا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيْ مِنْ تكذيبهم إياك

(و) هم (يسخرون) من تعجبك (وَإِذَا ذُكِّرُوا) وُعِظوا بالقرآن (لَا يَذْكُرُونَ) لا يتعظون (وَإِذَا رَأَوْا آيَةً) كانشقاق القمر (يَسْتَسْخِرُونَ) يَسْتَهْزِءُونَ بها (وَقَالُوا) فِيهَا (إِنْ) ما (هَذَا إِلَّا سِحْرٌ مبين) بين وقالوا منكرين للبعث (أئذا متنا وكنا ترابا وعظاما أئنا لَمَبْعُوثُونَ) في الهَمزتين في المَوْضِعَيْنِ التَّحْقِيق وَتَسْهِيل الثَّانِيَة وَإِدْخَال أَلِف بَيْنهمَا عَلَى الوَجْهَيْنِ (أَوَآبَاؤُنَا الْأَوَّلُونَ) بِسُكُونِ الْوَاو عَطفًا بِأَوْ وَبِفَتْحِهَا وَالْهَمزَة لِلاسْتِفْهَام وَالْعَطف بِالْوَاوِ وَالْمَعْطُوف عَلَيْهِ مَحَلّ إِنَّ وَاسْمهَا أَوْ الضَّمِير فِي لَمَبْعُوثُونَ وَالْفَاصِل هَمْزَة الاسْتِفْهَام (قُلْ نَعَمْ) تُبْعَثُونَ (وَأَنْتُمْ دَاخِرُونَ) أَيْ صَاغِرُونَ (فَإِنَّمَا هِيَ) ضَمِير مُبْهَم يُفَسِّرهُ (زَجْرَة) أي صَيْحَة (وَاحِدَة فَإِذَا هُمْ) أَيْ الْخَلَائِق أَحْيَاء (يَنْظُرُونَ) مَا يُفْعَل بِهِمْ (وقَالُوا) اي الكفار (يَا) لِلتَّنْبِيهِ (وَيْلَنَا) هَلَاكنَا وَهُوَ مَصْدَر لَا فِعْل لَهُ مِنْ لَفْظه وَتَقُول لَهُمْ الْمَلَائِكَة (هَذَا يَوْمُ الدِّينِ) يَوْم الْحِسَاب وَالْجَزَاء (هذا يوم الفصل) بين الخلائق (الذي كنتم به تكذبون)

ترجمه: شروع كوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او ډير رحم والا دې، قسم دې په صف جوړونكو فرشتو باندې، كومې چې د عبادت د پاره په صفونو كښې اودريږي. بيا قسم په هغه فرشتو باندې كومې چې اوريځې رټي، يعنى هغه شړي. بيا د هغه فرشتو د جماعت كومې چې د قرآن تلاوت كوي، او ذكرا د معنى په اعتبار سره د تاليات مصدر دې، اې اهل مكه. بې شكه ستاسو معبود يو دې، كوم چې د اسمانونو او د زمكې او څه چې په دې كښې دى د ټولو رب دې، او د مشرقونو رب دې، يعنى د مشارقو او د مغاربو رب دې، د نور د پاره روزانه په دنيا كښې ځائې د راښتو او ډوبيدو دې، بې شكه مونږ د دنيا اسمان په ستورو ښكلې كړې دې، يعنى د هغې په رڼړا يا په خپله په ستورو، او په بزينة ن الكواكب) كښې اضافت بيانيه دې، څنگه چې د زينة د تنوين والا قراءت په صورت كښې به الكواكب د زينة بيان وى، مونږ د اسمان د هر سركش شيطان نه حفاظت كړې دې، حفظاً د فعل مقدر د وجې نه منصوب دې، اى حفظناها حفظا بالشهب، من كل د محذوف متعلق دې، مارد په معنى د عاتٍ دې. د طاعت د حد نه وتونكې، هغه شيطانان عالم بالا ته غوږ هم لگولې نشي، يعنى په اسمان كښې د فرشتو مجلس اعلى ته غوږ هم نږدې كولې نشي، (وسماعهم هو فى المعنى المحفوظ عنه) يعنى آسمان ئې د هغوى د غوږ لگولو نه محفوظ كړې دې، مطلب دا دې چې اسمان محفوظ دې او سماع محفوظ عنه ده نه چه د دې عكس، لايسمعون جمله مستانفه، او د سماع د اصغاء معنى لره د متضمن كيدو د وجې نه د الىٰ په ذريعې سره متعدې كړې شوې دې. او په يو قراءت كښې د سين او ميم په تشديد سره دې، يسمعون، په اصل كښې يتسمعون وو، تاء ئې په سين كښې مدغم كړه، او په دې شيطانانو باندې د اسمان د طرف نه د ويشتلو د پاره د هر طرف نه څكروټې ويشتلې شي، دُحُورا دَحَرَة مصدر دې، دحره د طرده په معنى كښې

دي، او دوی ته به په آخرت کښې هميشګير عذاب وي، خو که يو شيطان يو خبر او تختوی نو يو شغله وهونکی څکروټه ده پسې شي، چې هغه سوری کړي يا سوزوي، يا ئې هوش او حواس ختم کړي، نو تاسو دې يعنې کفار مکه نه د اقرار په طور يا د توبيخ په طور تپوس اوکړئ چې آيا ددوی پيدا کول زيات ګران دي يا زمونږ پيدا کړې شوې څيزونه، يعنې فرشتې اسمان او زمکه او هغه څيزونه کوم چې ددې په مينځ کښې دي، او د من استعمال ذوی العقول ته د غلبې ورکولو د وجه دې مونږ دوی يعنې ددوی اصل ادم ﷺ د سليخناکې خټې نه پيدا کړو، کومه چې لاسونو سره انخلي، د آيت مطلب دا دې چې ددوی تخليق د کمزورې مادې نه شوې دې، لهذا دوی له د نبی ﷺ او د قرآن نه انکار کولو سره تکبر کول پکار نه دی. کوم چې په اسانئ سره ددوی هلاکت طرف ته بوتلل کوي، بلکه ته خو ددوی په ناپوهئ باندې حيرانيږې، او دا خلق ستا حيرانيدو پسې توقې کوي، بَل د يو غرض نه بل غرض ته د انتقال د پاره راغلې دې، او هغه غرض ددوی او ستا د حالت خبر ورکول دی، (عجبت) د تاء په فتحې سره نبی کريم ﷺ ته خطاب دې، يعنې ددوی ستاسو په تکذيب باندې تاسو حيرانيږئ، او چې کله دوی ته د قرآن په ذريعې سره نصيحت کيږي نو دا خلق نصيحت نه قبلوي، او چې کله د شقِ قمر په شان څه معجزه اوګوري نو هغې پسې توقې کوي، او ددې معجزې په باره کښې وائي، چې دا خو صفا جادو دې، دا څنګه کيدې شي چې کله مونږ مړه شو او خاورې او هډوکی شو، نو آيا مونږ به دوباره ژوندي کيږو؟ په دواړو ځايونو کښې د همزهٔ اول محقق او د دويمې تسهيل يعنې نرمی ده، او د دواړو په مينځ کښې الف داخلول دې، په دواړو صورتونو کښې او آيا زمونږ مخکښني پلار نيکه هم (او) د واؤ په سکون سره د (او) په ذريعې سره عطف دې، او (او) د واؤ په فتحې سره او د همزه د استفهام د پاره ده، او عطف د واؤ په ذريعې سره دې، او معطوف عليه (ان) او د هغې د اسم محل دې، يا په لمبعوثون کښې ضمير دې، او فاصل همزه استفهام ده، ته ورته اووايه چې تاسو به خامخا ژوندی کولې شئ، او تاسو به ذليله کيږئ، نو هغه قيامت به يو جرق وي، هی ضمير مبهم، مابعد ددې تفسير کوي، اچانک دا يعنې مخلوق به ژوندی کيدو سره اوګوري چې دوی سره څه څه کيږي، او کفار به وائي، هايې زمونږ کم بختی، ياء د تنبيه د پاره ده، ويلنا په معنی د هلاکنا، ويل داسې مصدر دې چې ددې لفظې فعل نشته، او فرشتې به دوی ته وائی دا د بدلې ورځ ده، يعنې د حساب او د جزاء دا د مخلوق په مينځ کښې د فيصلې ورځ ده د کومې چې تاسو تکذيب کولو.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله: والصافات صفا:** واؤ حرفِ قسم او جر دې، او والصافات مجرور مقسم به، او د مابعد

معطوف عليه دي،

**قوله: ان الهكم:** جواب قسم دي، تقديري عبارت دا دي وحق الصافات وحق الزاجرات وحق التاليات،جار مجرور د أقسم فعل محذوف متعلق دي،

**سوال:** په مذكوره درې وارو صفاتو كښې كوم چې د ملائكو دی، تاء د تانيث ده، او دا د هغوی په انوثيت باندې دلالت كوی، حالانكه ملايكه صفت د ذكوريت او انوثيت نه پاک دی؟

**جواب:** ملائكه د لفظ په اعتبار سره مؤنث دی، لهذا په دې اعتبار سره ذكر شوې درې واړه صفات په تانيث سره راوړې شوې دی، د انوثت نه د ملايكو د تنزيه سوال نوهغه تانيث معنوی دې نه چې لفظی.

**قوله: تصف نفوسها:** په دې كښې اشاره ده چې د صافات مفعول به محذوف دې، او هغه نفوسها دې، يا اجنحتها دې، او بعضې حضراتو وئيلې دی چې صافات د صافة جمع ده، په معنی د طائفة يا جماعة.

**قوله: مصدر من معنى التاليات:** په دې كښې دې طرف ته اشاره ده چې ذكرا د تاليات مفعول مطلق من غير لفظه دې، ځكه چې ذكراً د تلاوت په معنی كښې دې. ای تالهات تلاوة،او بعضې حضراتو ذكراً د قرآن په معنی كښې اخستلې دې، په دې صورت كښې به ذكرًا د التاليات مفعول به وی.

**قوله: رب السموات والارض:** دا د لواحد نه بدل دې، يا د «ان» خبر ثانی دې، يا د مبتدأ محذوف خبر دې، ای هورب السموات والارض.

**قوله: ورب المشارق:** **سوال:** دلته يواځې په مشارق باندې اكتفا ولې شوې ده؟ يعنی رب المشارق والمغارب ئې اونه وئيلو؟

**جواب:** دا د سرابيل تقيكم الحر،د قبيلې نه دې، يعنی چې څنګه دلته په «حر» باندې اكتفا كړې شوې ده، حالانكه سرابيل د «حَرْ» او د «بَرْدْ» دواړو نه حفاظت كوی. اوس دا سوال چې په مشارق باندې ولې اكتفا اوشوه او په مغارب باندې ولې اونه شوه. نو ددې څه وجه ده؟

**جواب:** د جواب خلاصه داده چې مشارق د مغارب په نسبت باندې ډير منفعت والا دې ځكه په مشارق باندې اكتفا اوشوه.

**سوال:** دلته مشارق ئې د جمع صيغې سره راوړې دې او ددې مقابل يعنی مغارب ئې حذف كړې دې، او په سورة سال كښې دواړه د جمع په صيغې سره راغلې دی، او په سورة رحمن كښې دواړه په صيغې د تثنيه راغلې دی، او په سورة مزمل كښې دواړه د مفرد په

صيغه راوړلې شوې دی، په دې تولو صورتونو کښې د تطبيق به څه صورت وی؟
**جواب:** د دواړو د جمع راوړلو وجه داده چې روزانه نوې مشرق او نوې مغرب وی، لهذا په کال کښې ۳۲۵ مشرق او ۳۲۵ مغرب دی، مفسر علام لها كل يوم مشرق ومغرب سره دې جواب ته اشاره کړې ده، او پاتې شو په سورة رحمن کښې د تثنيه صورت، نو دا د مشرق شتائی او صيفی د (گرمئ او يخنئ) په اعتبار سره دې، د يخنئ او د گرمئ د موسم په اعتبار سره پورا کال کښې دوه مشرقونه او مغربونه وی، او د مفرد راوړلو وجه داده چې دټول کال يو مشرق او يو مغرب وی.
**قوله:** بضوئها: په دې کښې د مضاف حذف طرف ته اشاره ده مطلب دا چې د دنيا د اسمان زينت د ستورو په رڼا سره يا خپله د ستورو په وجه دې، او اضافت بيانيه دې، څنګه چې بلا اضافت يعنی (د زينة د تنوين په صورت کښې هم، زِينَةٌ مُبِيْن اوالكواكب د دې بيان دې.
**قوله:** من كل: د حفظنا مقدر متعلق دې.
**قوله:** لا يسمعون: په اصل کښې لا يتسمعون وو، تاء په سين کښې مدغم شوه، او سين ته شد ورکړې شو، يعنی هغوی غوږ نه ږدی، په فارسئ کښې (گوش ند ازند) په يو قراءت کښې لا يسمعون هم دې، هغوی نه اوری، او په فارسئ کښې (نشنوند) يسمعون چونکه د اصغاء معنې ته شامل دې څکه د دې صله (الی) راوړل صحيح دی.
**قوله:** هوفی المعنی المحفوظ عنه: يعنی اسمان محفوظ او سماع محفوظ عنه ده، نه چې په عکس سره، دا جمله مستانفه ده، د حفظ کيفيت بيانولو د پاره د نمونې په طور سره راوړلې شوې ده.
**قوله:** بالشهب: جمع شهاب، څنګه چې د کتب جمع کتاب ده، د اور شعله.
**قوله:** مارد: جمع مَرَدَةٌ، سرکش کوم چې د خير نه خالی وی، غُصْنٌ اَمْرَد، هغه څانګه چې د پاڼو نه خالی وی، رجلٌ اَمْرَد هغه سړې د چا چې ګيره او بريت نه وی، (ن ک) مُرُدا، مُرادة سرکش کيدل.
**قوله:** دحورا مصدر: د دحورا نه پس ئې د مصدر لفظ اضافه کولو سره اشاره اوکړه چې دُحُوراً د يقذفون مفعول مطلق من غير لفظه دې، څکه چې قذف په معنی د دَحَر دې، ای دَحَرَه دَحْرا او مفسر علام په خپل قول (هو مفعول له) سره اشاره اوکړه چې دحورا د يقذفون مفعول له هم کيدې شی، يعنی دحورا د قذف علت دې، يعنی په شعتې سره د ويشتلو علت د دوی دفع کول دی. او دحورا د يقذفون د ضمير نه حال هم کيدې شی، ای يقذفون مدحورين، دحورا چونکه مصدر دې، څکه په واحد جمع تولو باندې اطلاق کيدې شی.
**قوله:** الامن خطف الخطفة: الخطفة دا مفعول د مَرّة د پاره دې، لکه ضربت ضربة کښې چه دې، ما

هغه اوهلو یو خل وهل، یعنی یو خل تختول، په فارسیٔ کښې «مکرربايد يک ربودن»
والخطف، الاختلاس بسرعة، تختول.

**قوله: والاستثناء من ضمیر یسمعون:** یعنی «من» د استثناء د وجې نه د نصب په محل کښې دې، او د بدل کیدو په صورت کښې محلا مرفوع هم کیدې شی، او دا هم کیدې شی چې «من» شرطیه وی، او ددې جواب «فأتبعه» وی، یا «من» موصوله مبتدأ وی، او ددې خبر «فاتبعه» وی، په دې صورت کښې به مستثنی منقطع وی، کقوله تعالی لست علیهم بمصیطر الامن تولی وکفر.

**قوله: ثاقب:** (ن) ثقبا، سورې کول، سیرول.

**قوله: اویحرقه اویخبله:** «او» د تنویع د پاره دې، نه چې د تردید د پاره، «خَبَل» (ن) خَبْلا «عقل تباه کول، خرابول.

**قوله: هو الاخبار بحاله اوحالهم:** دا د یو غرض نه بل غرض ته د انتقال د وضاحت د پاره دې، مطلب دادې چې په مخکښینئ آیت کښې د مشرکینو د حالت بیان وو. او د «بل عجبت» نه د حضور ﷺ د حالت بیان دې.

**قوله: ءاذامتنا وکنا ترابا:** (الآیة) همزه د استفام انکاری ده، کومه چې په فعل محذوف باندې داخله ده، ای انبعث اذامتنا، دا اذا ظرفیه عامل محذوف دې، یعنی نبعث چې په هغې باندې لمبعوثون دلالت کوی، خپله لمبعوثون په اذا کښې عامل نه دې، ځکه چې د عامل او معمول په مینځ کښې همزه استفهام کوم چې صدارت غواړی، مانع موجود دې.

**قوله: اوآباؤنا الاولون:** اوکښې دوه قراءتونه دی، د جمهورو په نیز واؤ په فتحې سره دې، یعنی «أوَ» او ابن عامر او قالون واؤ په سکون سره وئیلې دې، یعنی «أوْ» په دې صورت کښې به «او» حرف عطف وی، په دې باندې بهٔ همزه د استفهام نه وی، په اوآباؤنا الاولون کښې یو ترکیب دا هم دې، چې اوآباؤنا الاولون مبتدأ وی، مبعوثون ددې خبر محذوف، او بعض حضراتو وئیلې دی چه د ان د اسم په محل باندې عطف دې، او بعضو وئیلې دی چې د لبعوثون په ضمیر مستتر باندې عطف دې، خو په دې صورت کښې به دا اعتراض وی چې کله په ضمیر مرفوع باندې عطف وی نو د هغې تاکید په ضمیر منفصل سره راوړل ضروری وی، او هغه دلته نشته؟

**جواب** فصل هم قائم مقام د ضمیر کیدې شی، او دلته د همزه استفهام فصل موجود دې، خو په دې صورت کښې به دا اعتراض وی چې د همزه استفهام صدارت به باطل شی؟
نو ددې جواب دادې چې دویمه همزه د اولې همزې د تاکید د پاره ده، نو گویا چې دویمه همزه بعینه اولنئ همزه ده، لهذا دویمه همزه به معنوی طور سره مقدم وی، چې د هغې د وجې نه ددې صدارت نه باطلیږی

[ایاتونه: ۲۲ ـ ۵۰]

ويقال للملائكة (أُحْشُرُوا الَّذِينَ ظَلَمُوا) أنفسهم بالشرك (وَأَزْوَاجَهُمْ) قرناءهم من الشياطين (وما كانوا يعبدون) (مِنْ دُونِ اللَّهِ) أي غيره من الأوثان (فَاهْدُوهُمْ) دلوهم وسوقوهم (إِلَى صِرَاطِ الْجَحِيمِ) طريق النار (وَقِفُوهُمْ) احبسوهم عند الصراط (إِنَّهُمْ مَسْئُولُونَ) عن جميع أقوالهم وأفعالهم ويقال لهم توبيخا (مَا لَكُمْ لَا تَنَاصَرُونَ) لا ينصر بعضكم بعضا كحالكم في الدنيا ويقال لهم (بَلْ هُمُ الْيَوْمَ مُسْتَسْلِمُونَ) منقادون اذلاء (وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ) يتلاومون ويتخاصمون (قَالُوا) أي الأتباع منهم للمتبوعين (إِنَّكُمْ كُنْتُمْ تَأْتُونَنَا عَنِ الْيَمِينِ) عن الجهة التي كنا نأمنكم منها لحلفكم أنكم على الحق فصدقناكم واتبعناكم المعنى أنكم اضللتمونا (قَالُوا) أي المتبوعون لهم (بَلْ لَمْ تَكُونُوا مُؤْمِنِينَ) وإنما يصدق الإضلال منا أن لو كنتم مؤمنين فرجعتم عن الإيمان إلينا (وَمَا كَانَ لَنَا عَلَيْكُمْ مِنْ سُلْطَانٍ) قوة وقدرة تقهركم على متابعتنا (بَلْ كُنْتُمْ قَوْمًا طَاغِينَ) ضالين مثلنا (فَحَقَّ) وجب (عَلَيْنَا) جميعا (قَوْلُ رَبِّنَا) بالعذاب أي قوله (لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ) (إِنَّا) جميعا (لَذَائِقُونَ) العذاب بذلك القول ونشأ عنه قولهم (فأغويناكم) المعلل بقولهم (إنا كنا غاوين) قال تعالى (فَإِنَّهُمْ يَوْمَئِذٍ) يوم القيامة (فِي الْعَذَابِ مُشْتَرِكُونَ) أي لاشتراكهم في الغواية (إِنَّا كَذَلِكَ) كما نفعل بهؤلاء (نَفْعَلُ بِالْمُجْرِمِينَ) غير هؤلاء أي نعذبهم التابع منهم والمتبوع (إنهم) اي هؤلاء بقرينة ما بعده (كانوا إذا قيل لهم لا إله إلا الله يستكبرون) (ويقولون أئنا) في همزتيه ما تقدم (لَتَارِكُوا آلِهَتِنَا لِشَاعِرٍ مَجْنُونٍ) اي لاجل محمد قال تعالى (بَلْ جَاءَ بِالْحَقِّ وَصَدَّقَ الْمُرْسَلِينَ) الجائين به وهو أن لا إله إلا الله (إنكم) فيه التفات (لذائقوا العذاب الأليم) (وَمَا تُجْزَوْنَ إِلَّا) جزاء (مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ) (إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ) أي المؤمنين استثناء منقطع اي ذكر جزاؤهم في قوله (أُولَئِكَ لَهُمْ) في الجنة (رِزْقٌ مَعْلُومٌ) بكرة وعشيا (فَوَاكِهُ) بدل أو بيان للرزق وهو ما يؤكل تلذذا لا لحفظ صحة لأن أهل الجنة مستغنون عن حفظها بخلق أجسامهم للأبد (وهم مكرمون) بثواب الله سبحانه وتعالى (في جنات النعيم) (عَلَى سُرُرٍ مُتَقَابِلِينَ) لا يرى بعضهم قفا بعض (يُطَافُ عَلَيْهِمْ) على كل منهم (بِكَأْسٍ) هو الإناء بشرابه (مِنْ مَعِينٍ) من خمر يجري على وجه الأرض كأنهار الماء (بَيْضَاءَ) أشد بياضا من اللبن (لَذَّةٍ) لذيذة (لِلشَّارِبِينَ) بخلاف خمر الدنيا فإنها كريهة عند الشرب (لَا فِيهَا غَوْلٌ) ما يغتال عقولهم (وَلَا هُمْ عَنْهَا يُنْزَفُونَ) بفتح الزاي وكسرها من نزف الشارب وأنزف أي يسكرون بخلاف خمر الدنيا (وَعِنْدَهُمْ قَاصِرَاتُ الطَّرْفِ) حابسات الأعين على أزواجهن لا ينظرن إلى غيرهم لحسنهم عندهن (عِينٌ) ضخام الأعين حسانها (كَأَنَّهُنَّ) في اللون (بَيْضٌ) للنعام (مَكْنُونٌ) مستور بريشه لا يصل إليه غبار ولونه وهو البياض في صفرة أحسن ألوان النساء (فَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ) بعض أهل الجنة (عَلَى بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ) عما مر بهم في الدنيا

ترجمه: او فرشتو ته به اووئيلې شي، چې هغه خلق راجمع کړې چا چې شرک کولو سره په ځپل

ځان باندې ظلم کړې دې او ددوی هغه شیطانی ملګری او هغه معبودان د چا چې دوی بغیر د الله نه عبادت کولو. چې هغه بتان دی، او هغوی ته د جهنم لاره اوښائې، او په راځکو ئې بوځئ، او دوی صراط (پل) سره اودروئ، ددوی نه د دوی د ټولو قولونو او فعلونو باره کښې سوال کولې شی، او دوی به د زورنې د پاره وئیلې شی په تاسو څه شوې دی چې تاسو د یو بل مدد نه کوئ، څنګه چې په دنیا کښې ستاسو طریقه وه، او ددوی د حالت په باره کښې به اووئیلې شی بلکه دوی به نن ورځ سرکوزی، ذلیله وی، او دوی به یو بل طرف ته متوجه شی او یو بل به ملامته او الزام تراشی کوی، په دوی کښې تابعین به متبوعینو ته وائی تاسو به مونږ ته په قسمونو سره راتلل کول، مونږ ستاسو د هغه قسم دوجې نه چې تاسو په حق باندې ئې، ستاسو یقین به اوکړو، مطلب دادې چې تاسو مونږ ګمراه کړې یوو، متبوعین به دوی ته وائی چې نا، بلکه حقیقت دادې چې تاسو خپله مومنان نه وئې، زمونږ د طرف نه ګمراه کول به هغه وخت رشتیا ور چې تاسو مومنان وئی او بیا د ایمان نه راوړیدلې وئی، او زمونږ په تاسو باندې څه زور او قدرت خو نه وو، چې تاسو به مونږ په اتباع باندې مجبور کولئ. خو تاسو په خپله باندې زمونږ په شان ګمراه خلق وئې، نو په مونږ ټولو باندې زمونږ د رب د عذاب وعید یعنی لَاَمْلَاَنَّ جهنم من الجنة والناس اجمعین رشتیا ثابت شو، اوس مونږ ټولو له د دې وعید مطابق د عذاب مزه څکل دی، او د رب قول یعنی مذکوره وعید سره ددوی قول فَاَغْوَیْنٰکُمْ ثابت شو. یعنی زمونږ تاسو لره د قضاء او قدر د وجې ګمراه کول ثابت شو، لهذا زمونږ تاسو لره د ګمراه کولو په وجه تاسو په مونږ باندې غصه مه کوئی، فاغوینکم دا معلول دې، ددوی د قول (انا کنا غاوین) الله تعالی به اوفرمائی، چې هغه ټول تابعین او متبوعین د قیامت په ورځ به په عذاب کښې شریک وی، د دوی په ګمراهئی کښې د شریک کیدو د وجې نه مونږ چې دوی سره څه کوو، ددوی نه علاوه د هر مجرم سره مونږ داسې کوو، یعنی تابع او متبوع ته عذاب ورکوو، دوی ته یعنی د مابعد د قرینې نه هم دغه خلق مراد دی، چه کله اووئیلې شی چې لا اله الا الله اووایئ، نو دوی تکبر کوی، او وائی چې آیا مونږ د یو شاعر لیونی په وینا خپل معبودان پریږدو، ؟ یعنی د محمد ﷺ په وینا، خبره داسې نه ده، بلکه رشتیا خو دادی چې هغه حق راوړې دې، او حق راوړلو والا د رسولانو تصدیق کوی، او حق لا اله الا الله دې، یقینا تاسو به دردناک عذاب څکلو والا یئ، په دې کښې د غیبت نه د خطاب طرف ته التفات دې، تاسو ته به هغه څه بدله ملاویږی، څه چې تاسو کول، خو د الله مخلص بندګان یعنی مومنین، دا مستثنی منقطع ده، د دوی جزا د الله قول اولئك لهم رزق معلوم (الآیة) کښې ذکر شوی ده دا هغه خلق دی چې د دوی رزق چه هغه میوې دی به جنت کښې به مقرر وخت به باندې سره سحر او ماښام ملاویږی فواکه د رزق نه بدل دې یا عطف بیان دې فواکه هغه میوو وئیلې شی کوم چې د خوند د پاره خوړلې شی، نه د صحت د بقا د پاره، څکه چې جنتیان به د صحت د بقاء نه

مستغني وي، ځکه چې ددوی د جسمونو تخليق د هميشه د پاره دې، او د الله په فضل سره، د نعمتونو والا جنت کښې به ددوی عزت او خيال ساتلې شی، حال دادې چې په تختونو باندې به يو بل ته مخامخ ناست وی ځوک به د چا شا نه وينی، او په دوی کښې به هر يو باندې د بهيدونکي صفا شرابو د جام دور گرځولې شی، (کاس) هغه جام ته وائی چې په هغې کښې شراب وی، (قدح ورته هم وئيلې شی) معين هغه شراب چې د زمکې په سطح باندې د اوبو پشان جاري وی، د پيوو نه به هم زيات سپين وی، د څکلو والو د پاره به ډير خوندور وی، په خلاف د دنيا د شرابو چې هغه په څکلو کښې بې مزې وی، نه به په هغې کښې د سر درد وی، چې په دوی کښې دعقل فتور راولی، او نه به ددې د وجې نه بدحواسه کيږی، ينزفون د زاء په فتحې او کسرې سره، دا د نزف الشارب انزف نه ماخوذ دې، يعنی بدمست به نه وی، په خلاف د دنيا د شرابو چې په هغې کښې بدمستي وی، او دوی سره به لاندې نظرونه والا شرمناکې، يعنی خپل نظرونه خپل خاوندانو پورې محدود کولو والا، نورو طرف ته به نظر نه اوچتوی، ځکه چې ددوی خاوندان به ددوی په نظر کښې د ټولو نه زيات ښکلې وی، غټې غټې سترگو والا به وی، گويا چې هغه په رنگ کښې د شترمرغ هگۍ دی، کوم چې د هغوی په وزرو کښې پټې دی، هغې ته دوړې نه رسيږی، او ددې رنگ به سپين زيربښن وی، کوم چې د ښځو ښکلې رنگ گڼړلې شی، جنتيان به يو بل ته متوجه شی او د دنيا د حالاتو په باره کښې خبرې به کوی.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله: احشروا:** تاسو راجمع کړئ، د حشر نه جمع مذکر حاضر دې، (ن ض)

**قوله: انفسهم بالشرك:** انفسهم محذوف گڼړلو سره ئې اشاره اوکړه چې د ظلموا مفعول محذوف دې، او په بالشرک کښې باء سببيه ده، يعنی هغوی د شرک په وجه په خپلو ځانونو ظلم کړې وو،

**قوله: قفوهم:** امر جمع مذکر معروف (ن ض) وقفا وقوفا، لازم او متعدی دواړه قسم مستعمل دی، اودرول ، اودريدل، دلته متعدی دې، يعنی هغوی اودروئ.

**قوله: تاتوننا عن اليمين:** عن اليمين د تاتوننا د ضمير نه حال دې، ای تاتوننا اقوياء،

① د يمين يوه معنى ده، ښې لاس، مقصد ترې د قوت اظهار دی، ② دويمه معنى ئې قسم ده، ځکه چې متعاقدين د بيع پوره کولو پاره او پخولو د پاره په خپلو لاسونو سره مصافحه کوی، ځنگه چې په قسم سره خبره پخيږی، دغه شان د عربو په عرف کښې لاس په لاس کښې ورکولو سره به بيع مکمل او پخيدله، د فقه په اصطلاح کښې دې ته صفقه وانی، ددې معنى ده لاسونه پرقول، ددې معنې په اعتبار سره به تقديری عبارت داسې

وی، تاتوننا حالفين

قوله: يتساءلون: تفسير ئې په يتلاومون او يتخاصمون سره كولو كښې ئې اشاره اوكړه، چې دلته د تساول نه مراد خير خيريت معلومول نه دى بلكه لعنت او الزام تراشى مراد ده، د مشركينو په باره كښې بل ځائې كښې وئيلې شوې دى كلما دخلت امة لعنت اختها، د دې په خلاف په جنت كښې د مومنانو، تساول چې هغه به د شكر او د نعمت د بيان په طور سره وى.

قوله: قالوا بل لم تكونوا مؤمنين: الأية د مشركينو سردارانو د كمزورې طبقې مشركينو د الزامونو پنځه جوابونه وركړې دى، په هغې كښې اول او اخرى فاغويناكم انا كنا غاوين، دې مطلب دا دې چې تاسو كله هم مومنان نه وئ، لهذا زمونږ د گمراه كولو بالكل سوال نه پيدا كيږى، په مونږ باندې به د گمراه كولو الزام هغه وخت راتللو چې تاسو اول ايمان راوړې وى، او زمونږ د گمراه كولو د وجه نه تاسو ايمان پريښودو سره كفر اختيار كړې وې.

قوله: انكم فيه التفات: يعنى د غيبت نه خطاب ته التفات دې، كانوا اذا قيل لهم كښې د غائب صيغه استعمال شوې ده، او د قباحت د زياتوالى د پاره د غائب نه خطاب طرف ته التفات كړې دې.

قوله: وما تجزون الا ما كنتم تعملون: واؤ عاطفه دې، (ما) نافيه ده، تجزون مبنى للمفعول دې، په دې كښې ضمير نائب فاعل دې، الا حرف استثنا ده او (ما) مفعول به ثانى دې، او د دې نه مخكښې مضاف محذوف دې، اى ما تجزون الاجزاء ما كنتم تعملون.

قوله: الا عباد الله المخلصين: : الا حرف استثناء ده، په معنى د لكن ځكه چې دا استثناء منقطع ده، عباد الله د تجزون د ضمير نه مستثنى ده.

قوله: اولئك لهم رزق معلوم: كلام مستانف دې.

قوله: بكاس: كاس پياله، چې كله په كښې شراب وى، او چې خالى وى نو قدح ورته وائى، د دې جمع اكواس او كؤس راځى.

قوله: بيضاء: دا د كاس صفت هم كيدې شى، او د خمر هم، ځكه چې دا دواړه مؤنث سماعى دى.

قوله: لذة: يا خو د صفت مشبه صيغه ده، لكه صعب، سهل، په دې صورت كښې به مشتق وى، او د دې صفت جوړول ښكاره دى، او كه مصدر وى نو صفت په مبالغة وى، يا به مضاف محذوف وى، اى ذات لذة

قوله: غول: اسم فعل دې او مصدر هم مستعمل دې، نشه، درد، مستى، فساد، اچانك هلاک كول، يعنى د جنت په شرابو كښې به نه بدمستى وى او د عقل خرابيدل، او نه د



سر درد په خلاف د دنیا د شرابو.

**قوله:** ينزفون: دنزفـنه مضارع مجهول، جمع مذكر غائب، (ض) يعني د دوى په عقل كښې به كمې نه راځى.

**قوله:** عين: دا د عيناء جمع ده، غټو ستركو والا.

**قوله:** بيض مكنونٌ: بيض د بيضةٌ جمع ده، لهذا د جمع په اعتبار سره مكنونة كيدل پكار دى.

**جواب:** چې د كومې جمع په واحد او په جمع كښې په (ة) سره فرق وى په هغې كښې تذكير او تانيث برابر وى.

**[اياتونه: ۵١ ـ ٧٤]**

﴿قَالَ قَائِلٌ مِّنْهُمْ إِنِّي كَانَ لِي قَرِينٌ﴾ صاحب ينكر البعث ﴿يقول﴾ لي تبكيتا ﴿أئنك لمن المصدقين﴾ بالبعث ﴿ء إذا متنا وكنا ترابا وعظاما أ إنا﴾ فِي الْهَمْزَتَيْنِ فِي الثَّلَاثَةِ مَوَاضِع مَا تَقَدَّمَ ﴿لَمَدِينُونَ﴾ مَجْزِيُّونَ وَمُحَاسَبُونَ أَنْكَرَ ذَلِكَ أَيْضًا ﴿قَالَ﴾ ذَلِكَ الْقَائِل لِإِخْوَانِهِ ﴿هَلْ أَنْتُمْ مُّطَّلِعُونَ﴾ مَعِي إِلَى النَّار لِنَنْظُر حَاله فَيَقُولُونَ لَا ﴿فَاطَّلَعَ﴾ ذَلِكَ الْقَائِل مِنْ بَعْض كُوَى الْجَنَّة ﴿فَرَآهُ﴾ أَيْ رَأَى قَرِينه ﴿فِي سَوَاءِ الْجَحِيمِ﴾ فِي وَسَط النَّار ﴿قَالَ﴾ لَهُ تَشْمِيتًا ﴿تَاللَّهِ إِنْ﴾ مُخَفَّفَة مِنَ الثَّقِيلَة ﴿كدت﴾ قاربت ﴿لتردين﴾ لتهلكني باغوائك ﴿وَلَوْلَا نِعْمَةُ رَبِّي﴾ عَلَيَّ بِالْإِيمَانِ ﴿لَكُنتُ مِنَ الْمُحْضَرِينَ﴾ مَعَك فِي النَّار وَتَقُول أَهْل الْجَنَّة ﴿أفما نحن بميتين﴾ ﴿إِلَّا مَوْتَتَنَا الْأُولَى﴾ أَيْ الَّتِي فِي الدُّنْيَا ﴿وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِينَ﴾ هُوَ اسْتِفْهَام تَلَذُّذ وَتَحَدُّث بِنِعْمَةِ اللَّه تَعَالَى مِنْ تَأْبِيد الْحَيَاة وَعَدَم التَّعْذِيب ﴿إن هذا﴾ الذي ذكرت لأهل الجنة ﴿لهو الفوز العظيم﴾ ﴿لمثل هذا فليعمل العاملون﴾ قيل يقال لَهُمْ ذَلِكَ وَقِيلَ هُمْ يَقُولُونَهُ ﴿أَذَٰلِكَ﴾ الْمَذْكُور لَهُمْ ﴿خَيْرٌ نُّزُلًا﴾ وَهُوَ مَا يُعَدّ لِلنَّازِلِ مِنْ ضَيْف وَغَيْره ﴿أَمْ شَجَرَةُ الزَّقُّومِ﴾ الْمُعَدَّة لِأَهْلِ النَّار وَهِيَ مِنْ أَخْبَث الشَّجَر الْمُرّ بِتِهَامَة يُنْبِتهَا اللَّه فِي الْجَحِيم كما سيأتي ﴿إِنَّا جَعَلْنَاهَا﴾ بِذَلِكَ ﴿فِتْنَةً لِّلظَّالِمِينَ﴾ أَيْ الْكَافِرِينَ مِنْ أَهْل مَكَّة إِذْ قَالُوا النَّار تُحْرِق الشَّجَر فَكَيْفَ تُنْبِتهُ ﴿إِنَّهَا شَجَرَةٌ تَخْرُجُ فِي أَصْلِ الْجَحِيمِ﴾ أَيْ قَعْر جَهَنَّم وَأَغْصَانهَا تَرْتَفِع إِلَى دَرَكَاتهَا ﴿طلعها﴾ المشبه بطلع النخل ﴿كأنه رؤوس الشياطين﴾ الْحَيَّات الْقَبِيحَة الْمَنْظَر ﴿فَإِنَّهُمْ﴾ أَيْ الْكُفَّار ﴿لَآكِلُونَ مِنْهَا﴾ مَعَ قُبْحهَا لِشِدَّة جوعهم ﴿فمالئون منها البطون﴾ ﴿ثُمَّ إِنَّ لَهُمْ عَلَيْهَا لَشَوْبًا مِّنْ حَمِيمٍ﴾ أَيْ مَاء حَارّ يَشْرَبُونَهُ فَيَخْتَلِط بِالْمَأْكُولِ مِنْهَا فَيَصِير شَوْبًا لَهُ ﴿ثُمَّ إِنَّ مَرْجِعَهُمْ لَإِلَى الْجَحِيمِ﴾ يُفِيد أَنَّهُمْ يَخْرُجُونَ مِنْهَا لِشُرْبِ الْحَمِيم وَأَنَّهُ خارجها ﴿إنهم ألفوا﴾ وجدوا ﴿آباءهم ضالين﴾ ﴿فَهُمْ عَلَىٰ آثَارِهِمْ يُهْرَعُونَ﴾ يُزْعَجُونَ إِلَى اتِّبَاعهمْ فيسرعون إليه ﴿وَلَقَدْ ضَلَّ قَبْلَهُمْ أَكْثَرُ الْأَوَّلِينَ﴾ مِنَ الْأُمَم الماضية ﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا فِيهِم مُّنذِرِينَ﴾ مِنَ الرُّسُل مُخَوِّفِينَ ﴿فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنذَرِينَ﴾ الْكَافِرِينَ أَيْ عاقبتهم العذاب ﴿إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ﴾ أَيْ الْمُؤْمِنِينَ فَإِنَّهُمْ نَجَوْا مِنَ الْعَذَاب لِإِخْلَاصِهِمْ فِي الْعِبَادَة أَوْ لِأَنَّ اللَّه أَخْلَصَهُمْ لَهَا عَلَى قِرَاءَة فَتْح اللام

ترجمه: په دوی کښې به یو ویونکې اووایئ چې ځما یو دوست وو کوم چې د بعث بعد الموت نه انکار کولو هغه به ماته ځما د لاجواب کولو د پاره وئیل چې آیا ته هم د بعث بعد الموت عقیده لرونکې ئې؟ چې کله مونږ مړه شو، او خاورې او هډوکی شو، نو آیا مونږ ته به بدله ملاویږی؟ او زمونږ حساب به کیږی؟ او هغه د دې جزاء او سزا نه هم منکر وو دا ویونکې به خپلو رونړو دوستانو ته اووایئ چې آیا تاسو ماسره په دوزخ کښې هغه کتل غواړیئ؟ چې تاسو د هغه حالت اوګورئی، نو هغوی به جواب اوکړی چې نا، نو دا ویونکې به د جنت بعضې روښندانو نه په وربښکاره کیدو سره اوګوری نو خپل دوست لره به د دوزخ په مینځ کښې پروت اوګوری، دا مومن به خپل ملاقاتی ته د خوشحالئ ښکاره کولو د پاره اووایئ په الله قسم تا خو ځه تباه کولم، چې ته ما د خپلې ګمراهئ په ذریعه هلاک کړې، (ان د مشدده نه مخففه ده، که په ما باندې د خپل رب فضل نه وو، یعنی په ما باندې که د هغه فضل نه وو نو ځه به هم سره د حاضر کړې شوو نه ووم یعنی تاسره به په اور کښې د دزخیانو نه ووم، جنتیان به خپلو کښې اووایئ اوس مونږ د دنیا د مرګ نه علاوه مړه کیدو والا نه یوو، او نه به مونږ ته عذاب وی، دا استفهام دلذت حاصلولو دپاره دې، په همیشه ژوند او د عذاب په نه ورکولو باندې، د الله په نعمتونو باندې د شکریه په طور بې شکه د اهل جنت د پاره چې کوم انعامات ذکر کړې شوې دی دغه لویه کامیابی ده، داسې کامیابئ د پاره د عمل کولو والا د پاره عمل کول پکار دی، وئیلې شوې دی چې دا خبره به جنتیانو ته اووئیلې شی، او دا هم وئیلې شوې دی چې جنتیان به په خپلو کښې دا خبره کوی، آیا دا نعمتونه کوم چې ذکر شوې دی د جنتیانو د پاره د میلمستیا په اعتبار سره ډیر ښه دی، نزل هغه څیز ته وائی کوم چې راتلونکی میلمنو وغیره د پاره تیاریږی، یا د زقوم تونړ اونه؟ کومه چې د جهنمیانو د پاره تیاره کړې شوې ده، هغه خبیثه اونه ده کومه چې الله تعالی په دوزخ کښې پیدا کړې ده، لکه زر به د دې ذکر راشی، مونږ هغه اونه د اهل مکه نه د کافرانو د پاره موجب د امتحان جوړه کړې ده، او کافرانو اووئیل چې اور خو اونو لره سوزوی، نو بیا به هغه دا اونه څنګه رازرغونوی، هغه یو اونه ده چې د دوزخ په مینځ کښې راوزی، او ددې ځانګې به د دوزخ هرې طبقې ته رسیدلې وی، او د هغې غونچې کومې چې د کهجورو د غونچو سره یو شان دی ګویا چه هغه د شیطانانو یعنی د بدشکله مارانو سرونه دی نو هغوی یعنی کافران به دهغې د بدشکلئ باوجود د سختې لوګې په وجه د هغې نه به خوراک کوی او هم ددې نه به خیټې ډکوی، بیا دوی ته به د روټئ نه پس یشیدلې اوبه ملاوهلو سره ورڅکولې شی، یعنی ګرمې اوبه کومې چې به هغوی څکی، نو ددې اوبو به د خوړلې شوې د زقوم اونې سره مخلوطه جوړه شی، بیا به ددوی اخیری ځایې جهنم وی، ددې نه دا معلومیږی چې هغوی ته به ګرمې اوبه د جهنم د مینځ نه راویستلې شی، او هغه ګرمې اوبه به د جهنم نه

بهر وي، دوی خپل مشران په گمراهئ کښې موندلي وو، يا دوی هم د هغوی په نقش قدم باندې په تيزئ سره تلل، د هغوی د اتباع د پاره به ئې مخکښې والي کولو. او ددوی نه مخکښې خلق هم يعنی په امتونو کښې ډير گمراه شوي دی، او مونږ په هغوی کښې هم يرولو والا رسولان ليږلي وو، نو اوگوره د هغه خلقو کوم چې يرولې شوي وو، څنگه خراب انجام شو، يعنی د هغوی انجام هم عذاب دې، خو هغه چه دالله مخلص يعنی خوښ کړې شوي يعنی مومنا نو هغوی به په عبادت کښې د اخلاص د وجې يا ددې د پاره چې الله دوی د عبادت د پاره خوښ کړي وو، د عذاب نه خلاصې اومندلو، دا ترجمه به د لام د فتحې والا قرات په صورت کښې وی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: قَالَ قَائِلٌ: دا ويونکې به څوک جنتې وی جنتيان چې نورې ډيرې خبرې به هم کوی په دې تولو کښې به يو کس د خپل منکر د بعث دوست قصې واوروی، دې خبرو لره قرآن کريم قَالَ قَائِلٌ مِنْهُمْ اِنِّی كَانَ لِیْ قَرِيْنٌ سره دپيش کوئی په طور سره بيان کړی دی، اود تبکيت معنی ده، شرم ورکول، رټل، په مصباح کښې دی بكت زيد عمرا زيد عمر ته پيغور ورکړو.

قوله: كوى، جمع كوة. كوة د كاف په ضمې او فتحې سره، د ديوار سورې، روشندان، په جمع کښې د كاف ضمه او فتحه دواړه صحيح دی، البته د فتحې په صورت کښې مد او قصر، دواړه صحيح دی، او د ضمې په صورت کښې قصر متعين دې.

قوله: تَاللّٰه: تاء قسميه جاره ده، اقسم د فعل محذوف متعلق دې، (ان) مخففه عن المشدده ده، که دا عامل اوگرځولې شي، نو ددې اسم به محذوف وی، او جمله كِدتَّ ددې خبر، تقديری عبارت به دا وی، انك كدت، او که غير عامل اوگرځولې شی نو جمله كدت لتردين به جوابِ قسم وی، ان مخففه عام طور سره په كاد يا كان باندې داخليږی، لتردين کښې به لام فارقه وی، د مخففه او نافيه په مينځ کښې.

قوله: لَتُرْدِيْنِ: لام فارقه دې، تردين د ارداءٌ نه مضارع واحد مذکر حاضر، نون وقايه، (ی) مفعول به ضمير واحد متكلم محذوف، معنی ده (ته به ما هلاک کړی) ياء ئې د مصحف د سنت په اتباع کښې حذف کړه. (اعراب القرآن للدرويش)

قوله: اَفَمَا نَحْنُ بِمَيِّتِيْنَ: همزه د استفهام په محذوف باندې داخله ده او فاء عاطفه ده، عطف په محذوف باندې دې، تقديری عبارت داسې دې، انحن مخلدون منعمون فما نحن بميتين

قوله: اَذٰلِكَ خَيْرٌ نُّزُلًا: دا جمله د قول محذوف مقوله ده تقديری عبارت داسې دې، قل لهم يا محمد اذلك خير ام شجرة الزقوم، د ذلک مشار اليه مخکښې ذکر شوي رزق معلوم دې، . نزل د

دوارو (ن، زاء) په ضمو سره او د نون ضمې او د زاء په سکون سره، هغه څيز چې د ميلمه د پاره تيار کړې شي، جمع انزال، نزلا د خير نه تميز راتلو د وجې نه منصوب دې.

**قوله: تهامة:** د عربو هغه حصه کوم ځائې چې مکه مکرمه واقع ده.

**قوله: ام شجرة الزقوم:** ام حرف عطف دې، او د شجرة الزقوم عطف په ذلک اسم اشاره باندې دې، ام شجرة الزقوم مبتدأ ددې خبر د ماقبل د دلالت د وجې نه محذوف دې، تقديرى عبارت داسې دې ام شجرة الزقوم خير نزلا

**قوله: لشوبا:** د شين په فتحې سره د جمهورو قرامت دې، او په ضمې سره شاذ دې، دا د (ن) نه شوبا مصدر دې، ملاوول، ملاوټ کول، لشوبا، د ان اسم مؤخر، او لهم ئې خبر مقدم دې، عليها محذوف سره متعلق حال دې.

**قوله: لاالى الجحيم:** لام د تاکيد د پاره دې، خو د مصحفِ امام د رسم الخط په اتباع کښې (لا) ليکل ضروري دی، خو دا الف وئيلې نشي.

**قوله: انهم الفوا آباءهم ضالين:** دا جمله مخکښې ذکر شوې قسما قسم عذابونو کښې د مبتلا کيدو علت دې، يعني د بت پرستئ د حق کيدو او د توحيد د ناحق کيدو دليل دوی سره بغير د سوچ او پوهې نه، د پلار نيکه د تقليد نه علاوه بل څه نشته، او هم دا د هغوی د گمراهئ وجه ده، چې د هغې د وجې نه دوی مخکښې ذکر شوې قسما قسم عذابونو کښې مبتلا وی.

**قوله: يهرعون:** د اهراع نه مضارع جمع مذکر غائب مجهول، په تيزه منډه وهل.

**[اياتونه: ۷۵ _ ۱۱۳]**

---

(وَلَقَدْ نَادَانَا نُوحٌ) بِقَوْلِهِ رَبِّ إِنِّي مَغْلُوبٌ فَانْتَصِرْ (فَلَنِعْمَ الْمُجِيبُونَ) لَهُ نَحْنُ أَيْ دَعَانَا عَلَى قَوْمِه فَأَهْلَكْنَاهُمْ بِالْغَرَقِ (وَنَجَّيْنَاهُ وَأَهْلَه مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيمِ) أَيْ الْغَرَقِ (وَجَعَلْنَا ذُرِّيَّتَه هُمُ الْبَاقِينَ) فَالنَّاس كُلُّهمْ مِنْ نَسْله عَلَيْهِ السَّلَام وَكَانَ لَهُ ثَلَاثَة أَوْلَاد سَام وَهُوَ أَبُو الْعَرَب وَالْفُرْس وَالرُّوم وَحَام وَهُوَ أَبُو السُّودَان وَيَافِث وَهُوَ أَبُو التُّرْك وَالْخَزَر وَيَأْجُوج وَمَأْجُوج وَمَا هُنَالِكَ (وَتَرَكْنَا) أَبْقَيْنَا (عَلَيْهِ) ثَنَاء حَسَنًا (فِي الْآخِرِينَ) مِنَ الْأَنْبِيَاء وَالْأُمَم إِلَى يَوْم الْقِيَامَة (سَلَامٌ) مِنَّا (عَلَى نُوحٍ فِي الْعَالَمِينَ) (إِنَّا كَذَلِكَ) كَمَا جَزَيْنَاهُمْ (نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ) (إِنَّه مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِينَ) (ثُمَّ أَغْرَقْنَا الْآخَرِينَ) كُفَّار قَوْمه (وَإِنَّ مِنْ شِيعَتِه) أَيْ مِمَّنْ تَابَعَهُ فِي أَصْل الدِّين (لَإِبْرَاهِيمَ) وَإِنْ طَالَ الزَّمَان بَيْنهمَا وَهُوَ أَلْفَانِ وَسِتّمِائَةٍ وَأَرْبَعُونَ سَنَة وَكَانَ بَيْنهمَا هُود وَصَالِح (إِذْ جَاءَ رَبَّه) أَيْ تَابَعَهُ وَقْت مَجِيئِهِ (بِقَلْبٍ سَلِيمٍ) مِنَ الشَّكّ وَغَيْره (إِذْ قَالَ) فِي هَذِهِ الْحَالَة الْمُسْتَمِرَّة لَهُ (لِأَبِيهِ وَقَوْمِه) مُوَبِّخًا (مَاذَا) مَا الَّذِي (تَعْبُدُونَ) (أَئِفْكًا) فِي هَمْزَتَيْهِ مَا تَقَدَّمَ (آلِهَةً دُونَ اللّٰه تُرِيدُونَ) وَإِفْكًا مَفْعُول لَهُ وَآلِهَة مَفْعُول بِهِ لِتُرِيدُونَ وَالْإِفْك أَسْوَأ الْكَذِب أَيْ أَتَعْبُدُونَ غَيْر الله (فَمَا ظَنُّكُمْ

برب العالمين، إذ عبدتم غيره أنه يتركم بلا عقاب لا وكانوا نجامين فخرجوا إلى عيد لهم وتركوا طعامهم عند أصنامهم زعموا التبرك عليه فإذا رجعوا أكلوه وقالوا للسيد إبراهيم أخرج معنا (فنظر نظرة في النجوم) إيهاما لهم أنه يعتمد عليها ليتبعوه (فقال إني سقيم) عليل أي سأسقم (فتولوا عنه) إلى عيدهم (مدبرين) (فراغ) مال في خفية (إلى آلهتهم) وهي الأصنام وعندها الطعام (فقال) استهزاء (ألا تأكلون) فلم ينطقوا فقال (ما لكم لا تنطقون) فلم يجب (فراغ عليهم ضربا باليمين) بالقوة فكسرها فبلغ قومه ممن رآه (فأقبلوا إليه يزفون) أي يسرعون المشي فقالوا له نحن نعبدها وأنت تكسرها (قال) لهم موبخا (أتعبدون ما تنحتون) من الحجارة وغيرها أصناما (والله خلقكم وما تعملون) من نحتكم ومنحوتكم فاعبدوه وحده وما مصدرية وقيل موصولة وقيل موصوفة (قالوا) بينهم (ابنوا له بنيانا) فاملأوه حطبا وأضرموه بالنار فإذا التهب (فألقوه في الجحيم) النار الشديدة (فأرادوا به كيدا) بإلقائه في النار لتهلكه (فجعلناهم الأسفلين) المقهورين فخرج من النار سالما (وقال إني ذاهب إلى ربي) مهاجر إليه من دار الكفر (سيهدين) إلى حيث أمرني ربي بالمصير إليه وهو الشام فلما وصل إلى الأرض المقدسة قال (رب هب لي) ولدا (من الصالحين) (فبشرناه بغلام حليم) أي ذي حلم كثير (فلما بلغ معه السعي) أي أن يسعى معه ويعينه قيل بلغ سبع سنين وقيل ثلاث عشرة سنة (قال يا بني إني أرى) أي رأيت (في المنام أني أذبحك) ورؤيا الأنبياء حق وأفعالهم بأمر الله تعالى (فانظر ماذا ترى) من الرأي شاوره ليأنس بالذبح وينقاد للأمر به (قال يا أبت) التاء عوض عن ياء الإضافة (افعل ما تؤمر) به (ستجدني إن شاء الله من الصابرين) على ذلك (فلما أسلما) خضعا وانقادا لأمر الله تعالى (وتله للجبين) صرعه عليه ولكل إنسان جبينان بينهما الجبهة وكان ذلك بمنى وأمر السكين على حلقه فلم تعمل شيئا بمانع من القدرة الإلهية (وناديناه أن يا إبراهيم) (قد صدقت الرؤيا) بما أتيت به مما أمكنك من أمر الذبح أي يكفيك ذلك فجملة ناديناه جواب لما بزيادة الواو (إنا كذلك) كما جزيناك (نجزي المحسنين) لأنفسهم بامتثال الأمر بإفراج الشدة عنهم (إن هذا) الذبح المأمور به (لهو البلاء المبين) أي الاختبار الظاهر (وفديناه) أي المأمور بذبحه وهو إسماعيل أو إسحاق قولان (بذبح) بكبش (عظيم) من الجنة وهو الذي قربه هابيل جاء به جبريل عليه السلام فذبحه السيد إبراهيم مكبرا (وتركنا) أبقينا (عليه في الآخرين) ثناء حسنا (سلام) منا (على إبراهيم) (كذلك) كما جزيناه (نجزي المحسنين) لأنفسهم (إنه من عبادنا المؤمنين) (وبشرناه بإسحاق) استدل بذلك على أن الذبيح غيره (نبيا) حال مقدرة أي يوجد مقدرا نبوته (من الصالحين) (وباركنا عليه) بتكثير ذريته (وعلى إسحاق) ولده بجعلنا أكثر الأنبياء من نسله (ومن ذريتهما محسن) مؤمن (وظالم لنفسه) كافر (مبين) بين الكفر

---

ترجمه: او مونږ ته نوح ﷺ رب الي مغلوب فانتصر وئيلو سره اواز اوكړو، نو اوګوره مونږ څنګه ښه فرياد اوريدونكي يو، يعنې هغه څما نه د خپل قوم د پاره بد دعاء اوغوښتله، نو مونږ

هغوی غرق کولو سره هلاک کړل، او مونږ هغه ته او د هغه کوروالو ته د ډیر لوئي غم یعنی د غرقیدو نه خلاصې ورکړو، او مونږ هم د هغه اولاد باقي پاتې کړل، نو ټول خلق د نوح علیه السلام د نسل نه دی، د هغوی درې ځامن وو، سام، دا د عرب او د فارس او د روم نیکه وو، حام، دا د سوډان والو نیکه وو، او یافث دا د ترک، خزرج او د یاجوج وماجوج او څوک چې د دوی خواشاه دی، د هغوی مشر نیکه وو، او مونږ په روستنو یعنی په پیغمبرانو او دقیامت پورې راتلونکی خلقو کښې، ددوی ښه ذکر باقي اوساتلو، او زمونږ دطرف نه په نوح باندې دې په ټولو جهانو کښې سلام وی، چې څنګه مونږ هغه ته صله ورکړه، نو مونږ نیکانو ته هم داسې بدله ورکوو، بې شکه هغه زمونږ د مومنانو بندګانو نه وو، بیا مونږ نورو خلقو لره یعنی دهغه قوم د کافرانو لره غرق کړل، او بې شکه هم د هغه د ډلې نه یعنی هغه خلق چا چې د هغه د اصولِ دین تابعداری اوکړه ابراهیم هم وو، اګرچې د دې دواړو په مینځ کښې اوږده زمانه ده، او هغه دوه زره شپږ سوه څلویښت کاله زمانه وه، او دې دواړو په مینځ کښې هود او صالح(علیهما) هم وو، چې کله هغوی د خپل رب طرف ته د شک وغیره (د عیب) نه خالی زړه سره متوجه شول، یعنی دتوجه په وخت کښې ئې د نوح علیه السلام تابعداری اوکړه، کله چې ابراهیم علیه السلام په دې دائمی حالت کښې خپل پلار او خپل قوم ته په زورنې سره اووئیل دا څه بې کاره څیز دی چې د هغې تاسو عبادت کوئی، آیا تاسو الله پریښودلو سره د دروغو فرضی معبود لره حقیقی معبود جوړول غواړئ، په دواړو همزو کښې هم هغه قراءت دې کوم چې مخکښې تیر شوې دې، افکاً مفعول له دې، او الهة دلتریدون مفعول به دې، او افک بدترین دروغو ته وائی، یعنی ایا تاسو د غیر الله بندګی کوئی، چې کله تاسو دغیر الله بندګی کوئی، نو د رب العالمین په باره کښې ستاسو څه خیال دې، آیا هغه به بغیر دعذاب نه تاسو پریږدی، هرګز نا، او دا خلق نجومیان وو، چنانچه داخلق خپل عیدګاه ته اووتل، او خپل خوراکونه ئې خپلو بتانو ته په دې عقیده کیخودل چې دا به برکتی شی، چې کله به واپس راغلل نو دا به ئې برکتی ګڼړلو سره خوړل، او ددې قوم خلقو ابراهیم علیه السلام ته هم اووئیل چې ته مونږ سره لاړ شه، ابراهیم علیه السلام ستورو طرف ته اوکتل یو نظر، دوی لره په دې وهم کښې اچولو د پاره چې هغه هم په دې ستورو باندې اعتماد کوی، دې د پاره چې دوی د هغه خبره اومنی، بیا هغه اوفرمائیل چې څه بیمار یم یعنی مستقبل قریب کښې به بیماریږم، غرضدا چې هغه خلقو دې پریښودو او خپلې عیدګاه یعنی د میلې ځائې ته لاړل، نو دې په پټه باندې د هغوی معبودانو ته متوجه شو، او هغه بتان وو، او هغوی سره خوراک پروت وو، ابراهیم علیه السلام ټوقو په طور سره بتانو ته اووئیل تاسو خوراک ولې نه کوئې، ؟ چې کله بتانو څه جواب ورنکړو نو بیا ابراهیم علیه السلام اوفرمائیل په تاسو څه شوې دی چې تاسو خبرې نه کوئی؟ بیا هم هغوی څه جواب ورنکړو، نو بیا ئې هغوی لره په پوره طاقت سره وهل

شروع کړل، او هغه ئې ټکرې ټکرې کړل. د هغې نه پس يو کتونکي د هغه قوم ته اطلاع ورکړه نو هغه خلقو ډير په تيزئ سره د ده طرف ته متوجه شول، او وئيل ئې شروع کړل چې مونږ ددې عبادت کوو او ته دوی لره ماتوې، نو آبراهيم علیه السلام دوی ته د زورنې په توګه اوفرمائيل چې تاسو ددې بتانو عبادت کوئ، چې هغه تاسو خپله کانړی تراشلو سره جوړوئې، حالانکه تاسو لره او ستاسو جوړشوې څيزونو لره يعني ستاسو تراشل. او ستاسو تراشلې شوی څيزونه الله پيدا کړې دی، لهذا د هغه بندګی اوکړئ، او دهغه د يو والي عقيده اوساتئ. او (ما) مصدريه ده، او وئيلې شوې دی چې موصوله ده، او دا هم وئيلې شوې دی چې موصوفه ده، دې خلقو په خپل مينځ کښې مشوره کولو سره اووئيل چې دده د پاره د اور يو ځائې جوړکړئ، او هغه د لرګو نه ډک کړئ، او په هغې اور اولګولئ، چې کله اور شعلې وهل شروع کړی، نو دې په دې سخت اور کښې واچوئ، غرض دا چې دې خلقو ابراهيم علیه السلام لره په اور کښې د غورزولو د پاره تدبير کولو اراده اوکړه، چې اور دې هلاک کړی، مګر مونږ هغوی لره لاندې يعني مغلوب کړل، چنانچه ابراهيم علیه السلام د اور نه بالکل صحيح سلامت راوتلو. او ابراهيم علیه السلام اوفرمائيل څه د کفر د کور نه هجرت کولو سره د خپل رب طرف ته تلونکې يم، هغه به د دې ځائې طرف ته خامخا ماته لار خودنه اوکړی، کوم ځائې ته ئې چې ماته د تلو حکم کړې دې، او هغه ملک د شام دې، چنانچه هغه پاکې زمکې ته اورسيدو. نو دعائې اوکړه چې اې پروردګار ماته نيک هلک راکړه، نو مونږ هغه ته د ډير نيک هلک خوشخبری ورکړه، يا چې کله هغه ماشوم د دې قابل شو چې هغه تل راتلل شروع کړل يعني د هغه سره ئې په لوبو کښې منډې وهل شروع کړې، او په کار کښې دمدد کولو قابل شو، يو قول دادې چې د اوو کالو شو او دويم قول دادې چې د ديارلس کالو شو. نو ابراهيم علیه السلام اوفرمائيل چې اې ځما خوږه بچيه، ما خوب کښې ليدلې دی چې څه تالره ذبح کوم، او د پيغمبرانو خوبونه رښتيا وی، او ددوی کارونه د الله په حکم سره وی. اوس ته اووايه ستا څه رائې ده؟ ابراهيم علیه السلام د خوی نه څکه مشوره واخستله چې هغه ذبح سره مانوس شی يعني ذهنی طور سره تيار شی، او د ذبح حکم ته سر ښکته کړی، (خوی اسماعيل) اووئيل اې ځما پلاره د کوم کار چې تاسو ته حکم درکړې شوې دې هغه کار اوکړئ، تاسو به ان شاءالله مالره په دې کار کښې صبر کونکې اوګورئ، نو چې کله دواړو د الله حکم ته سرښکته کړو، او هغه ئې په تندی يعني په دده باندې سملولو، د هر انسان د مخ دوه اړخونه وی. ددې په مينځ کښې تندې وی، او دا واقعه په مِنٰی کښې راغلې وه، او ابراهيم علیه السلام چاړه د خوی په څټ باندې راښکله، خو چاړې د الله د قدرت مخکښې هيڅ اثر اونکړو، نو مونږ هغه ته اواز اوکړو چې اې ابراهيم علیه السلام يقيناً تا خپل خوب په دې عمل سره چې کوم ستا دپاره د ذبح په معامله کښې ممکن وو رښتيا کړو :يعني ستا دا کار د حکم پورا کولو د پاره کافی دې، جمله وناديناه الخ واؤ زياتوالی

سره د لما جواب دی، مونږ دغه شان چې ښکه مو تاسو ته صله ورکړه، په حکم پوره کولو سره په خپل ځان باندې احسان کونکو ته دوی تکليف لرې کولو سره بدله ورکوو. په حقيقت کښې دا ذبح د کومې چې حکم شوې وو ښکاره امتحان وو، او مونږ دغه يعنی د چا د ذبح چې حکم شوې وو، او هغه اسماعيل يا اسحق (عليهما) وو. دا دواړه قولونه دی، په بدل کښې گډ ورکړو. دا هغه گډ وو کوم چې هابيل قربانی کړې وو، او هغه جبرائيل عليه السلام راوستلې وو. او ابراهيم عليه السلام هغه په الله اکبر ونيلو سره ذبح کړو، او مونږ د هغه نيک ذکر راتلونکی خلقو کښې باقی اوساتلو، او په ابرهيم عليه السلام باندې دې زمونږ دطرف نه سلام وی، چې ښکه مونږ هغه ته صله ورکړه په خپل ځان باندې احسان کونکو ته هم دغه شان صله ورکوو، بې شکه هغه زمونږ دمومنانو بندگانو نه وو، او مونږ هغه ته د اسحق نبی زيرې ورکړو، ددې نه استدلال کړې شوې دې چې ذبيح د اسحق نه علاوه اسماعيل عليه السلام وو. نبياً حال مقدره دې، يعنی دهغې وجود به وی، حال دا چې دهغه د پاره پيغمبری مقرر شوې ده. کوم چې دنيکانو خلقو نه وی، او مونږ په ابراهيم عليه السلام باندې دير اولاد ورکولو سره برکت نازل کړو، او دهغه ځوی اسحق باندې هم، دير پيغمبران دهغه د نسل نه د پيدا کيدو د وجې نه، او د دې دواړو په اولاد کښې مومنان هم وو او په خپل ځان باندې ظلم کونکی هم وو، چې د هغوی کفر بالکل ښکاره وو.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** ولقد نادانا نوح: کلام مستانف دې، مخکښې ولقد ارسلنا فيهم منذرين چې دهغې اجمالی ذکر وو، دلته د هغې تفصيل دې، په دې سورت کښې د اوو پيغمبرانو ذکر دې په هغې کښې دا اولنې دې.

**قوله:** لقد: لام قسميه دې، تقدير داسې دې بالله لقد دعانا نوح، دلته نادانا د دعانا په معنی کښې دې، قرينه ئې فلنعم المجيبون ده، په دې کښې هم لام قسميه دې، تقديری عبارت داسې دې فوالله لنعم المجيبون نحن، نحن مخصوص بالمدح دې، المجيبون کښې واؤ د جمع دليل دعظمت او د کبريائی په توگه دې، (روح البيان) د دواړو قسمونو جواب محذوف دې، تقديری عبارت داسې دې، والله لقد نادانا نوح لما يئس من ايمان قومه فاجبناه احسن اجابة فوالله لنعم المجيبون نحن.

**قوله:** واهله: دا د نجيناه مفعول به دې، ددې عطف په (ه) ضمير باندې دې، او ه لته دا مفعول معه هم کيدې شی

**قوله:** هم الباقين: د (هم) په اضافې سره د حصر او دتخصيص فائده مقصود ده، يعنی د طوفان نه پس صرف د نوح عليه السلام د درې ځامنو اولاد باقی پاتې شول، په دې وخت کښې

ټول انسانان ددې درې ځامنو اولاد دی، حام یافث او سام د عجمې او علمیت د وجې نه غیر منصرف دی.

**قوله: ثناءحسنا:** مفسر علام اشاره اوکړه چې دترکنا مفعول محذوف دې،

**قوله: فی العالمین:** دا د فی الآخرین نه بدل دې،

**قوله: اذجاءربه بقلب سلیم:** رب ته د قلب سلیم راوړلو نه مراد د شک او شبهې نه پاک زړه دې، یعنی خپل رب ته په اخلاص سره متوجه شو،

**قوله: شیعته:** شیعة الرجل، اتباعه وانصاره، یعنی طرفتداری، حمایتان، اوس د یو خاص فرقې نوم جوړ شوې دې، جمع ئې شیع راځی.

**قوله: ءافکا:** همزه د استفهام انکاری توبیخ په توګه ده، افکا د مفعول له کیدو د وجې نه منصوب دې، ای اتریدون الهة دون الله افکا، د تریدون مفعول به هم کیدې شی، او دفعل معمولات ئې د اهمیت د وجې نه په فعل باندې مقدم کړل، افکا د تریدون د فاعل نه حال هم کیدې شی.

**قوله: وکانوانجامین:** یعنی د ابرهیم علیه السلام قوم نجومیان وو، او د کائناتو په تبدیلئ کښې ئې دستورو داثر عقیده لرله،

**قوله: ساسقم:** دا د انی سقیم تفسیر دې، مقصد ددې تفسیر دادې چې هغه وخت ابراهیم علیه السلام بیمار نه وو، چې د هغې د وجې نه د دروغو شبه راتله، ځکه ئې ساسقم وئیلو سره تاویل اوکړو چې انسان کله نه کله خو بیماریږی.

**قوله: یزفون:** (ض) زفا، زفیفا، من دې وهل، جمع مذکر غائب، منډه وهل.

**قوله: والله خلقکم وما تعملون:** واؤ حالیه دې، د تعبدون د فاعل نه حال دې، والله مبتدأ، خلقکم خبر، په (ما) کښې څلور صورتونه کیدې شی

① مصدریه ای خلقکم وخلق اعمالکم ② موصوله، ای وخلق الذی تصنعونه علی العموم ویدخل فیها الاصنام التی تنحتونها په دې صورت کښې به دعمل نه مراد بت تراشل وی.

③ استفهامیه توبیخیه، ای، ای شیئ تعملون، ④ نافیه ای ان العمل فی الحقیقة لیس لکم فانتم لاتعملون شیئا، یعنی په ظاهر چې تاسو څه کویئ دا په حقیقت کښې د الله عمل دې.

**قوله: فبشرناه:** دا په محذوف باندې مرتب دې، تقدیر داسې دې فاستجبناله فبشرناه

**قوله: یابنی:** دا د (فلما) جواب دې.

**قوله: فدیناه:** (ض) فداء، په بدله کښې ورکول، ددې عطف په نادیناه باندې دې.

............

[ایاتونه: ۱۱۴ـ۱۲۸]

﴿وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلٰى مُوسٰى وَهَارُونَ﴾ بِالنُّبُوَّةِ ﴿وَنَجَّيْنَاهُمَا وَقَوْمَهُمَا﴾ بَنِي إِسْرَائِيل ﴿مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيمِ﴾ أي استعباد فرعون إياهم ﴿ونصرناهم﴾ على القبط ﴿فكانوا هم الغالبين﴾ ﴿وَآتَيْنَاهُمَا الْكِتَابَ الْمُسْتَبِينَ﴾ الْبَلِيغ الْبَيَان فِيمَا أَتَى بِهِ مِنَ الْحُدُود وَالْأَحْكَام وَغَيْرهَا وَهُوَ التَّوْرَاة ﴿وهديناهما الصراط﴾ الطريق ﴿المستقيم﴾ ﴿وَتَرَكْنَا﴾ أَبْقَيْنَا ﴿عَلَيْهِمَا فِي الْآخِرِينَ﴾ ثَنَاء حَسَنًا ﴿سلام﴾ منا ﴿على موسى﴾ وهارون ﴿إنا كذلك﴾ كما جزيناهما ﴿نجزي المحسنين﴾ ﴿إنهما من عبادنا المؤمنين﴾ ﴿وَإِنَّ إِلْيَاس﴾ بِالْهَمْزَةِ أَوَّله وَتَرْكه ﴿لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ﴾ قيل هو ابن أخي هَارُونَ أَخِي مُوسَى وَقِيلَ غَيْره أُرْسِلَ إِلَى قَوْم بِبَعْلَبَكّ وَنَوَاحِيهَا ﴿إِذْ﴾ مَنْصُوب بِاذْكُرْ مُقَدَّرًا ﴿قَالَ لِقَوْمِهِ أَلَا تَتقون﴾ الله ﴿أَتَدْعُونَ بَعْلًا﴾ اسْم صَنَم لَهُمْ مِنْ ذَهَب وَبِهِ سُمِّيَ الْبَلَد أَيْضًا مُضَافًا إِلَى بَكّ أَيْ أَتَعْبُدُونَهُ ﴿وَتَذَرُونَ﴾ تَتْرُكُونَ ﴿أَحْسَنَ الْخَالِقِينَ﴾ فَلَا تعبدونه ﴿اللَّهَ رَبَّكُمْ وَرَبَّ آبَائِكُمُ الْأَوَّلِينَ﴾ بِرَفْعِ الثَّلَاثَة عَلَى إضْمَار هُوَ وَبِنَصْبِهَا عَلَى الْبَدَل مِنْ احسن ﴿فَكَذَّبُوهُ فَإِنَّهُمْ لَمُحْضَرُونَ﴾ فِي النَّار ﴿إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ﴾ أَيْ الْمُؤْمِنِينَ مِنْهُمْ فَإِنَّهُمْ نَجَوْا مِنْهَا ﴿وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْآخِرِينَ﴾ ثَنَاء حَسَنًا ﴿سَلَامٌ﴾ مِنَّا ﴿عَلَى إِلْ يَاسِينَ﴾ قِيلَ هُوَ إلْيَاس الْمُتَقَدِّم ذِكْره وَقِيلَ هُوَ وَمَنْ آمَنَ مَعَهُ فَجُمِعُوا مَعَهُ تَغْلِيبًا كَقَوْلِهِمْ لِلْمُهَلَّبِ وَقَوْمه الْمُهَلَّبُونَ وَعَلَى قِرَاءَة آل يَاسِين بِالْمَدِّ أَيْ أَهْله الْمُرَاد بِهِ إلْيَاس أَيْضًا ﴿إنا كذلك﴾ كما جزيناه ﴿نجزي المحسنين﴾ ﴿إنه من عبادنا المؤمنين﴾ ﴿وإن لوطا لمن المرسلين﴾ اذكر ﴿إِذْ نَجَّيْنَاهُ وَأَهْلَهُ أَجْمَعِينَ﴾ ﴿إِلَّا عَجُوزًا فِي الْغَابِرِينَ﴾ أَيْ الْبَاقِينَ فِي الْعَذَاب ﴿ثُمَّ دَمَّرْنَا﴾ أَهْلَكْنَا ﴿الْآخَرِينَ﴾ كُفَّار قَوْمه ﴿وَإِنَّكُمْ لَتَمُرُّونَ عَلَيْهِمْ﴾ عَلَى آثَارهمْ وَمَنَازِلهمْ فِي أَسْفَاركُمْ ﴿مُصْبِحِينَ﴾ أَيْ وَقْت الصَّبَاح يَعْنِي بِالنَّهَارِ ﴿وَبِاللَّيْلِ أَفَلَا تَعْقِلُونَ﴾ يَا أَهْل مَكَّة مَا حل بهم فتعتبرون به

**ترجمه:** او يقينا مونږ په موسى او هارون (عليهما السلام) باندې نبوت وركولو سره احسان اوكړو، او دې دواړو ته او ددوى قوم بنى اسرائيل ته مو د يو لوئ غم (مصيبت) نه خلاصې وركړو، يعنى د فرعون دوى لره غلامان جوړولو نه، او مونږ د قبطيانو په مقابله كښې ددوى مدد اوكړو نو دوى غالب وو، او مونږ دوى ته د احكامو او حدودو وغيره نه كوم چې په دې كښې بيان شوې دى واضح بيان والا كتاب وركړو او هغه تورات دې، او مونږ دې دواړو ته د نيغې لارې هدايت وركړو، او مونږ ددوى د پاره په راتلونكى خلقو كښې ذكر خير باقى اوساتلو، او مونږ دغه شان ښكله چې مو دوى ته بدله وركړه، نيک كار كونكو ته صله وركوو، بې شكه هغوى زمونږ د مومنانو بندګانو نه وو، او بې شكه الياس عليه السلام هم د پيغمبرانو نه وو، ددې په شروع كښې همزې سره او بغير د همزې نه، دواړه صورتونه دى. او وئيلې شوې دى چې الياس د موسى عليه السلام يعنى د هارون وراره وو بعلبک او ددې خاوشاه علاقو ته ليږلې شوې وو، هغه وخت ياد كړه چې كله الياس عليه السلام خپل قوم ته اووئيل چې آيا تاسو د الله نه نه ويريږئ؟ آيا تاسو بعل نومې بت ته اوازونه كوئى، ؟ بعل ددوى د سرو زرو د يو بت نوم دې، او هم ددې په نوم سره د بعلبک ښار نوم ايخودې شوې دې، او د بعل اضافت بک

نه شوې دې، يعنې تاسو دهغوی بندگی کوئی، او د ټولو نه ښه خالق پرېږدئ، ؟ چې دهغه عبادت نه کوئی، او هغه الله دې، چې کوم ستاسو او ستاسو نه مخکښې د پلار نيکه رب دې، هو محذوف گڼرلو په صورت کښې د درېواړو په رفع سره، او په نصب سره د احسن نه د بدل په صورت کښې، خو قوم د هغوی تکذيب اوکړو، او هغه خلق به اور کښې حاضر کړې شی، سوا دالله مخلصو يعنی په دوی کښې د مومنانو بندگانو نه، هغوی به د اور نه خلاصې بيا اومومی، او مونږ د الياس ﷺ په روستنو خلقو کښې ذکر خير باقی پاتې کړو، په الياسين باندې دې زمونږ د طرف نه سلام وی، دا هغه الياس دې د کوم چې مخکښې ذکر شوې دې، او وئيلې شوې دی، چې الياس ﷺ او چا چې په دوی باندې ايمان راوړې دې هغه ترې مراد دی، لهذا دوی سره تغليباً جمع راوړې شوې ده، لکه څنگه چې مهلب او د هغه قوم ته په جمع سره مهلبون وئيلې شی، او په يو قراءت کښې آل يسين په مد سره دې، يعنی د دوی اهل، ددې نه الياس ﷺ مراد دې، مونږ دغه شان څنگه چې مودوی ته بدله ورکړه نيکانو خلقو ته بدله ورکوو، او بې شکه لوط ﷺ هم د پيغمبرانو نه وو، هغه وخت ياد کړه، چې مونږ دوی ته او ده ته کور والو ته خلاصې ورکړو، سوا د يوې بوډۍ نه، چې په عذاب کښې مبتلا خلقو سره باقی پاتې شوه، بيا مونږ نورو لره يعنی ددې قوم کافرانو لره هلاک کړل، او تاسو خو په هغوی باندې يعنی د اسفار په وخت کښې ددوی په نښو او خراب شوې مکانونو باندې د سحر په وخت يعنی په ورځ کښې او د شپې تيرېږئ، بيا هم تاسو اې اهل مکه نه پوهېږئ، چې په هغوی باندې څه قيامت تير شو؟ چې تاسو د هغوی نه عبرت حاصل کړئ.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله: ولقد مننا:** دا جمله مستانفه ده، مقصد دلته د دريمې قصې بيان دې، په دې صورت کښې به واؤ استنافيه وی، او دا هم کيدې شی چه عطف القصه علی القصه وی، په دې صورت کښې به واؤ عاطفه وی، لام جواب قسم دپاره دې، قسم محذوف دې. تقدير د عبارت دا دې وعزتنا وجلالنا لقد مننا.

**قوله: ونصرناهم:** د (هم) ضمير مرجع موسی او هارون (عليهما السلام) او ددوی قوم دې.

**قوله: فکانوا هم الغالبين:** (هم) ضمير فصل دې، ددې څه محل د اعراب نشته. او الغالبين د کانوا خبر دې، او بعضې (هم) د کانوا د (واؤ) تاکيد يا بدل گرځولې دې

**قوله: سلام علی موسی وهارون:** سلام مبتدأ، تنوين تعظيم د پاره، لهذا د نکرې مبتدأ راتلل صحيح دی. خبر محذوف دې، او هغه (منا) دې، او علی موسی وهارون د سلام متعلق دې، او دا هم کيدې شی، چې علی موسی وهارون د کائن متعلق وی او د مبتدأ خبر وی.

**قوله: وان الياس:** واؤ استنافيه دې، او عاطفه هم کيدې شی، په دې صورت کښې به عطف القصه علی القصه وی.

**قوله: بالهمز اوله وترکه**: یعنی همزه د وصل او د قطع دواړه صحیح دی، د دواړو صورتونو د جواز وجه دا ده چې الیاس عجمي کلمه ده، په عربي کښې استعمالیږي، ځکه د همزې وصلي کیدل یا قطعي کیدل متعین نه دی، په دې وجه دواړه جائز دی

**قوله: الا عباد الله المخلصین: فانهم نجوا منها**: مرهٔني اشاره اوکړه چې الاعباد الله، الخ د محضرون د واؤ نه مستثنی ده، یعنی کومو خلقو چې دالیاس علیه السلام تکذیب اوکړو هغوی به جهنم ته حاضرولې شی، البته چا چې د تکذیب نه توبه اوکړه هغوی به نشی حاضرولې، صاحب لغات القرآن وئیلې دی چه د کذبوا ضمیر نه مستثنی متصل ده، او **مخلصین** د **عباد الله** صفت دې، دجلالین محشی لیکلی دی چه الاعباد الله المخلصین په ظاهره د مخضرون نه استثناء ده، خو دا صحیح نه ده، بلکه صحیح دا ده چې د کذبوا د واؤ نه استثناء ده، ددې مطلب به دا وی چې د حضرت الیاس علیه السلام په قوم کښې داسې خلق هم وو چا چې تکذیب اونکړو، ددې وجې نه ئې الاعباد الله سره استثناء اوکړه، او دمحضرون نه استثناء ځکه صحیح نه ده چې ددې نه دا خبره لازمیږی چې په مکذبینو کښې به بعضې د مخلص بندګانو کیدو د وجې حاضرولې نشی، او دا ښکاره فساد دې، او مستثنی منقطع صحیح نه ده ځکه چې په دې صورت کښې به مطلب داوی چې خوک به حاضرولې نه شی هغه به د الیاس علیه السلام د قوم نه نه وی، په دې کښې د کلام د نظم فساد ښکاره دې.

**[ایاتونه: ۱۴۰ - ۱۸۲]**

(وان یونس لمن المرسلین) (اذ أبق) هَرَبَ (الی الفلک المشحون) السَّفِينَة الْمَمْلُوءَة حِين غَاضَبَ قَوْمه لَمَّا لَمْ يَنْزِل بِهِمْ الْعَذَاب الَّذِي وَعَدَهُمْ بِهِ فَرَكِبَ السَّفِينَة فَوَقَفَتْ فِي لُجَّة الْبَحْر فَقَالَ الْمَلَّاحُونَ هُنَا عَبْد أَبَقَ مِنْ سَيِّده تُظْهِرهُ الْقُرْعَة (فساهم) قَارَعَ أَهْل السَّفِينَة (فكان من المدحضين) الْمَغْلُوبِينَ بِالْقُرْعَةِ فَأَلْقَوْهُ فِي الْبَحْر (فالتقمه الحوت) ابْتَلَعَهُ (وهو مليم) أَيْ آتٍ بِمَا يُلَام عَلَيْهِ مِنْ ذَهَابه إِلَى الْبَحْر وَرُكُوبه السَّفِينَة بِلَا إِذْن مِنْ رَبّه (فلولا أنه كان من المسبحين) الذَّاكِرِينَ بِقَوْلِهِ كَثِيرًا فِي بَطْن الْحُوت لَا إِلَه إِلَّا أَنْتَ سُبْحَانك إِنِّي كُنْت مِنْ الظَّالِمِينَ (للبث في بطنه إلى يوم يبعثون) لَصَارَ بَطْن الْحُوت قَبْرًا لَهُ إِلَى يَوْم الْقِيَامَة (فنبذناه) أَيْ أَلْقَيْنَاهُ مِنْ بَطْن الْحُوت (بالعراء) بِوَجْهِ الْأَرْض أَيْ بِالسَّاحِلِ مِنْ يَوْمه أَوْ بَعْد ثَلَاثَة أَوْ سَبْعَة أَيَّام أَوْ عِشْرِينَ أَوْ أَرْبَعِينَ يَوْمًا (وهو سقيم) عَلِيل كَالْفَرْخِ الممعط (وأنبتنا عليه شجرة من يقطين) وَهِيَ الْقَرْع تُظِلّهُ بِسَاقٍ عَلَى خِلَاف الْعَادَة فِي الْقَرْع مُعْجِزَة لَهُ وَكَانَتْ تَأْتِيه وَعِلَّة صَبَاحًا وَمَسَاء يَشْرَب مِنْ لَبَنهَا حَتَّى قَوِيَ (وأرسلناه) بَعْد ذَلِكَ كَقَبْلِهِ إِلَى قَوْم بِنِينَوَى مِنْ أَرْض الْمَوْصِل (إلى مائة ألف أو) بَلْ (يزيدون) عِشْرِينَ أَوْ ثَلَاثِينَ أَوْ سَبْعِينَ ألفا (فآمنوا) عِنْد مُعَايَنَة الْعَذَاب الْمَوْعُودِينَ بِهِ (فمتعناهم) ابقيناهم متمتعين بما لهم (إلى حين) تَنْقَضِي آجَالهمْ فِيهِ (فاستفتهم) اسْتَخْبِرْ كُفَّار مَكَّة تَوْبِيخًا لَهُمْ (ألربك البنات) بِزَعْمِهِمْ أَنَّ الْمَلَائِكَة بَنَات اللَّه (ولهم البنون) فَيَخْتَصُّونَ بِالْأَسْنَى (أم خلقنا الملائكة إناثا

وهم شاهدون﴾ خلقنا فيقولون ذلك ﴿ألا إنهم من إفكهم﴾ كذبهم ﴿ليقولون﴾ ﴿ولد الله﴾ بقولهم الملائكة بنات الله ﴿وإنهم لكاذبون﴾ فيه ﴿أصطفى﴾ بفتح الهمزة للإستفهام واستغني بها عن همزة الوصل فحذفت أي أختار ﴿البنات على البنين﴾ ﴿ما لكم كيف تحكمون﴾ هذا الحكم الفاسد ﴿أفلا تذكرون﴾ بإدغام التاء في الذال أنه سبحانه وتعالى منزه عن الولد ﴿أم لكم سلطان مبين﴾ حجة واضحة أن لله ولدا ﴿فأتوا بكتابكم﴾ التوراة فأروني ذلك فيه ﴿إن كنتم صادقين﴾ في قولكم ذلك ﴿وجعلوا﴾ أي المشركون ﴿بينه﴾ تعالى ﴿وبين الجنة﴾ أي الملائكة لإجتنانهم عن الأبصار ﴿نسبا﴾ بقولهم إنها بنات الله ﴿ولقد علمت الجنة إنهم﴾ أي قائلي ذلك ﴿لمحضرون﴾ للنار يعذبون فيها ﴿سبحان الله﴾ تنزيها له ﴿عما يصفون﴾ بأن لله ولدا ﴿إلا عباد الله المخلصين﴾ أي المؤمنين استثناء منقطع أي فإنهم ينزهون الله تعالى عما يصفه هؤلاء ﴿فإنكم وما تعبدون﴾ من الأصنام ﴿ما أنتم عليه﴾ أي على معبودكم وعليه متعلق بقوله ﴿بفاتنين﴾ أي أحدا ﴿إلا من هو صال الجحيم﴾ في علم الله تعالى قال جبريل للنبي صلى الله عليه وسلم ﴿وما منا﴾ معشر الملائكة أحد ﴿إلا له مقام معلوم﴾ في السماوات يعبد الله فيه لا يتجاوزه ﴿وإنا لنحن الصافون﴾ أقدامنا في الصلاة ﴿وإنا لنحن المسبحون﴾ المنزهون الله عما لا يليق به ﴿وإن﴾ مخففة من الثقيلة ﴿كانوا﴾ أي كفار مكة ﴿ليقولون﴾ ﴿لو أن عندنا ذكرا﴾ كتابا ﴿من الأولين﴾ أي من كتب الأمم الماضية ﴿لكنا عباد الله المخلصين﴾ العبادة له قال تعالى ﴿فكفروا به﴾ بالكتاب الذي جاءهم وهو القرآن الأشرف من تلك الكتب ﴿فسوف يعلمون﴾ عاقبة كفرهم ﴿ولقد سبقت كلمتنا﴾ بالنصر ﴿لعبادنا المرسلين﴾ وهي لأغلبن أنا ورسلي أو هي قوله ﴿إنهم لهم المنصورون﴾ ﴿وإن جندنا﴾ أي المؤمنين ﴿لهم الغالبون﴾ الكفار بالحجة والنصرة عليهم في الدنيا وإن لم ينتصر بعض منهم في الدنيا ففي الآخرة ﴿فتول عنهم﴾ أي أعرض عن كفار مكة ﴿حتى حين﴾ تؤمر فيه بقتالهم ﴿وأبصرهم﴾ إذ نزل بهم العذاب ﴿فسوف يبصرون﴾ عاقبة كفرهم ﴿فقالوا﴾ استهزاء متى نزول هذا العذاب قال تعالى تهديدا لهم ﴿أفبعذابنا يستعجلون﴾ ﴿فإذا نزل بساحتهم﴾ بفنائهم قال الفراء العرب تكتفي بذكر الساحة عن القوم ﴿فساء﴾ بئس صباحا ﴿صباح المنذرين﴾ فيه إقامة الظاهر مقام المضمر ﴿وتول عنهم حتى حين﴾ ﴿وأبصر فسوف يبصرون﴾ كرر تأكيدا لتهديدهم وتسلية له صلى الله عليه وسلم ﴿سبحان ربك رب العزة﴾ الغلبة ﴿عما يصفون﴾ بأن له ولدا ﴿وسلام على المرسلين﴾ المبلغين عن الله التوحيد والشرائع ﴿والحمد لله رب العالمين﴾ على نصرهم وهلاك الكافرين

ترجمه: بې شكه يونس علیه السلام هم د پيغمبرانو نه وو، هغه وخت ياد كړه چې كله يونس علیه السلام اوتښتيدو او ډكې كشتۍ ته اورسيدلو، چې كله هغه د خپل قوم نه خفا شو چې كله په دوی باندې هغه عذاب نازل نه شو د كوم چې دوی سره وعده كړې شوې وه، نو په كشتۍ كښې سور شو، كشتۍ د سيند په مينځ كښې اونختله، نو ملاحانو اووئيل چې په كشتۍ كښې څوك داسې كس دې چې د خپل آقا نه تختيدلې دې، خښترې به هغه ښكاره كړی، نو

کشتئ والا خخنږي واچولو نو دې د خخنږي په ذريعې سره مغلوب شو، نو دې ني سيند ته اوغورځولو نو يو مهی دې تير کړلو، په داسې حال کښې چې هغه د ملامتيا قابل کار کړې وو، يعنی د خپل رب د اجازت نه بغير سيند ته تلل او په کشتئ کښې د سوريدلو داسې کار ني اوکړو کوم چې د ملامتيا قابل وو، که هغه د مهی په ګيډه کښې د لا اله الا انت سبحانك انی کنت من الظالمين ډير ذکر نه وې کړې نو د مهی په ګيډه کښې به د قيامت پورې وو، يعنی دمهی ګيډه به د قيامت پورې دده قبر جوړ شوې وو، نو مونږ ده لره د مهی د ګيډې نه په زمکه يعنی د سيند په غاړه هم، په هغه ورځ يا درې يا اووه يا شل يا څلويښت ورځې پس واچولو او هغه بيمار (کمزورې) وو، ځنګه چې د څانګو او وزرو نه بغير د چرګې بچې وی، او مونږ په دوی باندې د سوری د پاره ميوه داره اونه هم زرغون کړه او هغه د کدو اونه وه کومې چې په دوی باندې سورې کړې وو، او هغه اونه د هغوی د معجزې په توګه د نورو اونو نه په خلاف تنې والا وو، او هغه ته به سحر مابنام يو غريزه چيلئ راتلله، يونس عليه السلام به د هغې پئ څکلئ، تر دې چې طاقت ور شو او مونږ دوی ته دا واقعې نه پس د مخکښې په شان په موصل کښې د نينوا خلقو طرف ته رسول جوړولو سره يو لاک شل زره يا ديرش زره يا اوويا زره خلقو طرف ته اوليږلو، بيا هغه خلقو د هغه عذاب ليدلو سره د کوم چې دوی سره وعده کړې شوې وه ايمان راوړې وو، نو مونږ دوی ددوی د راحت د اسبابو نه کوم چې دوی ته حاصل وو، د هغې نه د نفع حاصلولو د پاره د يو مودې يعنی د عمر ختميدو پورې ژوندې اوساتل، تاسو دې کفار مکه نه توبيخاً پوښتنه اوکړئ چې ايا ستاسو د رب د پاره لورياني دی، ؟ دا خبره ددوی د دې قول په وجه لازم راځی چې فرشتې د الله لورياني دی، او خپله ددوی د پاره ځامن دی؟ يعنی د دوی د پاره ځامن خاص کړې شوې دی، يا چې کله مونږ فرشتو لره پيدا کړې وې نو دوی زمونږ تخليق ته کتل؟ چې د هغې د وجې نه دوی داسې خبره کوی ښه واورئ دوی د خپلو دروغو نه وائی چې د الله اولاد دې، دا خبره ددوی دې قول نه چې فرشتې د الله لورياني دی، (لازميږی) او دوی بې شکه په دې کښې دروغژن دی، آيا الله د لوريانو په مقابله کښې ځامنو لره خوښ کړې دی؟ اصطفی، د همزې په فتحې سره استفهام د پاره، ددې همز ې د استفهام د وجې نه همزه وصل نه استغنا اوشوه، چې د هغې د وجې نه همزه د استفهام حذف کړې شوه، او اصطفی په معنی د اختيار دې، تاسو باندې څه شوې دی چې تاسو دومره فاسد حکم لګوئی، آيا تاسو دې خبرې باندې نه پوهيږئی چې الله تعالی د اولاد نه پاک دې، (تذکرون کښې تاء په ذال کښې ادغام کولو سره آيا تاسو سره په دې خبره باندې څه ښکاره دليل شته؟ چې د الله اولاد دې، نو خپل کتاب تورات راوړئی، او په هغې کښې مونږ ته دا خبره اوښايئ چې د الله د پاره اولاد دی، که تاسو په دې دعوی کښې رشتونې يئ، او مشرکينو د الله او د جناتو يعنی دملائکو په مينځ

كښې دې ونيلو سره رشته داري قائم كړه چې فرښتې دالله لورياني دى، فرښتو ته نې جنات ځكه اووئيل چې هغوى هم د پيريانو په شان د نظر نه پناه دى، حالانكه د جناتو خپله دا عقيده ده يعنى هغوى دا عقيده لري چې هغوى به د جهنم اورته حاضرولې شى، او په هغې كښې به عذاب وركولې شى، الله تعالى د هغه ټولو صفاتو د نقصان نه پاك دې، كوم چې دوى بيانوى، چې د الله اولاد دې خو دالله مخلص بندګان يعنى مومنان، المؤمنين مستثنى منقطع ده، يعنى مومنين ددې ناقص صفاتو نه د هغه پاكى بيانوى، كوم چې دوى د هغه د پاره ثابتوى، يقين اوساتئ تاسو ټول سره د هغه بتانو د چا چې تاسو عبادت كوئى، د الله نه څوك ګمراه كولې نشئ، او عليه، د الله قول فاتنين سره متعلق مقدم دې، سوا د هغه خلقو نه چې د الله په علم كښې جهنم ته تلونكى دى، حضرت جبرائيل عليه السلام حضور ﷺ ته اوفرمائيل مونږ يعنى د فرښتو د جماعت نه د هريو په اسمانونو كښې خاص ځاى دې، هلته كښې د الله بندګى كوى، د هغې نه تجاوز نه كوى، او مونږ قدم د قدم ملاوولو سره په مونځ كښې صف جوړ كړې ولاړ يو، او مونږ خو د هغه د هغه صفاتو نه پاكى بيانوو، كوم چې د هغه دشان سره مناسب نه دى، او دې خلقو يعنى كافرانو به وئيل كه مونږ سره د مخكښې امتونو د كتابونو نه يو كتاب وو، نو مونږ به هم په عبادت كښې د الله د مخلصو بندګانو نه وو، الله تعالى اوفرمائيل، بيا دوى د هغه كتاب يعنى قرآن د هغه كوم چې په اسمانى كتابونو كښې فضيلت والا دې، دوى له راغلو نو دوى ترې انكار اوكړو، دوى ته به ډير زر د خپل كفر انجام معلوم شى، او البته زمونږ رسولانو سره وعده د مدد ډير مخكښې شوې ده، او هغه وعده داده چې ځه او ځما رسولان به خامخا غالب وى، يا هغه د مدد وعده د الله تعالى قول انهم لهم المنصورون (الآية) ده چې يقينا هم ددوى به مدد كولې شى، او يقينا زمونږ لښكر يعنى مومنان به په كفارو باندې په حجت او نصرت سره په دنيا كښې غالبيږى، او كه دوى كښې بعضو سره په دنيا كښې مدد اونشى، نو په آخرت كښې به خامخا كيږى، تاسو د كافرانو نه لږ وخت د پاره چې په هغې كښې تاسو ته د جهاد اجازت دركړې شى توجه لرې كړئ، او دوى ته ګوره، چې په دوى باندې عذاب كله نازليږى؟ دوى به هم د خپل كفر انجام ډير زر اوګورى، نو دوى په ټوقو سره اووئيل، دا عذاب به كله نازليږى؟ الله تعالى ددوى د ويرولو دپاره اوفرمائيل، آيا دوى زمونږ عذاب ته جلدى كوى، نو واورئى چې كله عذاب ددوى په ميدان كښې يعنى په دوى باندې نازل شى، فراء وئيلې دى چې عرب د قوم په ځائې د ساحة ذكر باندې اكتفاء كوى، يعنى ساحة وئيلو سره قوم مراد اخلى، نو هغه وخت به د هغه خلقو كوم چې ويرولې شوې دى ډير خراب سحر وى، په دې كښې د اسم ضمير په ځائې اسم ظاهر استعمال شوې دې، تاسو لږ وخت د پاره ددوى خيال پريږدئ، او ګوره دوى به هم ډير زر اوګورى د كافرانو د ويرولو او د حضور ﷺ د تسلى د پاره دا جمله دوه پيرې راوړې

شوي ده، ستا رب ډير زيات عزت والا او غلبې والا دې، دهغه خبرو نه کومې چې دوی کوی، مثلا دا چې د هغه اولاد نشته، پاک دې، د الله توحيد او احکام رسونکو رسولانو باندې دې سلام وی،د رسولانو په نصرت او د کافرانو په هلاکت دټولو تعريفونو مستحق الله رب العالمين دې.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** ان يونس لمن المرسلين: يونس ابن متّی د تاء په تشديد سره، بتثليث النون، متّی د يونس عليه السلام د پلار نوم دې، او وئيلې شوی دی چې د هغوی دمور نوم دې، او په کشف الاسرار کښې دی، چې ددوی د پلار نوم متی وو، او د مور نوم ئې تنجيس وو، يونس عليه السلام د هود (عليه السلام) د اولاد نه دې (ذوالنون) او صاحب الحوت ددوی لقب دې.

**قوله:** اذ ابق: ماضی واحد مذکر غائب، د خپل آقا نه اوتختيدو، (س ض ن) د غلام د خپل آقا نه تختيدل، يونس عليه السلام د حقيقی مولی چې الله تعالی دې، د اجازت نه بغير خپل قوم پريښودلو او لاړو، ځکه دوی ته مجازا آبق اووئيلې شو، اذ ابق د اذکر فعل محذوف ظرف دې.

**قوله:** حين غاضب قومه: ای غضب قومه، غضب په خپله معنی کښې نه دې ځکه چې د مفاعلې خاصيت د طرفينو نه د فعل تقاضه کوی، او دا هم ممکن ده چې غاضب د خپل باب نه وی، په دې صورت کښې به مطلب دا وی، چې حضرت يونس عليه السلام او د هغه قوم دواړه په خپل مينځ کښې يو بل ته غصه شو.

**قوله:** ساهم: مساهمة،څخنړې اچول، قرعه اندازی.

**قوله:** المدحضين: ادحاض (افعال) نه اسم مفعول، مغلوب کيدونکې، په قرعه اندازئی کښې بيلولو والا.

**قوله:** مليم: دا د التقمه د ضمير مفعول نه حال دې.

**قوله:** : مليم: اسم فاعل واحد مذکر غائب (الامة)(افعال) د ملامتيا مستحق، داسې کار کولو والا چې په هغې باندې ملامت کړې شی، وهو مليم نفسه.

**قوله:** کثيرا: ددې تعلق د (کان سره دې، او لا اله الا انت، الآية) دا د قول مقوله ده، او د کثرت معنی دباب تفعيل نه مستفاد ده.

**قوله:** بالعراء: ای فی العراء، العراء المکان الخالی عن البناء والنبات والاشجار، (هوار ميدان)

**قوله:** کالفرخ الممعّط: بضم الميم الاولی وتشديد الثانية وزری وتلې چرګوټې، ممعط په اصل کښې منمعط وو، (انفعال) نون په ميم کښې مدغم شو، معط وامتعط ای سقط شعره من الداء ونحوه. (جمل)

**قوله:** وعلة،غرزنې چيلئ، (ج) وعِلات

قوله: التوراة: صحيح خبره داده چې دلته د تورات ونيلو ضرورت نشته، ځکه چې مخاطب مشركين دي اهل كتاب نه دي.

قوله: ان كنتم صادقين: دا جمله شرطيه ده د ماقبل دلالت د وجې جواب شرط محذوف دې، اى قالوا.

قوله: لقد علمت الجنة انهم لمحضرون: واؤ حاليه دې، قد حرف تحقيق لام د جواب قسم دې، انهم لمحضرون، (ان) دخپل اسم او خبر سره د دوو مفعولو په ځاى دې، د ان په خبر باندې د لام داخليدو د وجې نه د ان همزې ته كسره وركړې شوې ده، ګنې دلته خو ان كيد ل پكار وو،

قوله: الاعباد الله المخلصين: دا د محضرون نه مستثنى منقطع ده، يعنى نيک بندګان به د ګرفتارشوو نه نه وى، مستثنى منه، يا خو د جعلوا فاعل دې، يا د تصنعون فاعل دې يا د محضرون ضمير دې، الا عباد الله المخلصين، مستثنى متصل هم كيدې شى، چې كله د محضرون نه مستثنى وى، اى انهم يحضرون النار الامن اخلص، په دې صورت كښې به جمله تسبيح جمله معترضه وى.

قوله: بفاتنين: اسم فاعل جمع مذكر، باء زائده ده، مصدر فتنة دې، ددې مفعول احدا محذوف دې، ځنګه چې مفسر علام اشاره اوكړه تاسو څوک د الله نه اړولې نشئ، يعنى ګمراه كولې نشئ.

قوله: صال: اسم فاعل دداخليدونكې، په اصل كښې صالى وو، د آخر نه ياء حذف كړې شوه،

قوله: العبادة له: مفسر علام د مخلصين مفعول العبادة ښكاره كړو، خو د مفعول تقدير به په هغه صورت كښې صحيح وى، چې كله مخلصين د لام په كسرې سره اووئيلې شى، ځنګه چې د مدنى او كوفى نه علاوه قرات دې.

قوله: وفيه اقامة الظاهر مقام المضمر: د قباحت د زياتوالى د وجې نه ئ د ضمير په ځاى اسم ظاهر راورو، په اصل كښې فساء صباحهم وو، او د صباح نه مراد ورځ يا وخت دې.

......ختم شده....